# أنوار الهلالين

## لفوايد قيودات الجلالين

پښتو ترجمه — جلد اول

# جمالين شرح جلالين


شارح: محمد جمال بلندشهری
مدرس د دارالعلوم ديوبند
پښتو مترجم: مولانا شاه فيصل
فاضل دارالعلوم اسلاميه چارسده، امداد العلوم پېښور، وفاق المدارس


## خصوصيات

① لغوی تحقيق، چې ددې لفظ په لغت کښې څه معنی ده.
② صرفی تحقيق مثلاً دا کلمه د څه صيغه ده وغيره
③ نحوی تحقيق مثلاً دا کلمه په ترکيب کښې څه واقع شوې ده.
④ بلاغی تحقيق چې په دې اضافي قيد کښې کومه بلاغی نکته ده.
⑤ فقهي تحقيق چې په دې اضافی قيد سره کومې مسئلې ته اشاره ده.
⑥ د قراءت تحقيق چې په دې مقام کښې دا قراءت څنګه دې.
⑦ تقديرات راويستل چې دلته کوم لفظ مقدر پروت دې.
⑧ د تقديری عبارا تو وجه او سبب بيانول.


خوورونکی
فيصل کتب خانه مدينه مارکيټ
محله جنګی پيښور موبائل نمبر: ۰۳۱۵۹۵۹۵۶۱۷

# فهرس د مقدمې د اُصول تفسیر

# فهرست دآياتونو

## مقدمه د انتخاب

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على خير الانام والمرسلين وعلى آله وصحبه اجمعين. اما بعد:
څنګه چې تاسو ته معلومه ده قرآن پاک د الله تعالى آخرى كتاب دې كوم چې ترقيامته پورې راتلونكى خلقو دپاره د هدايت چينه ده. دا آخرى آسمانى كتاب دې ددې وجې د دې د حفاظت ذمه وارى الله تعالى په خپله اخستې ده او په هره زمانه كښې د دې امت عالمانو د قرآن پاک په مختلف انداز خدمتونه كړى دى مثلاً

① چا د دې په اعراب باندې د اعراب القرآن په نوم كتابونه ليكلى دى.
② چا د دې په احكامو باندې د ،، احكام القرآن،، په نوم كتابونه ليكلى دى.
③ چا د دې په بلاغى اړخ باندې د بلاغة القرآن په نوم كتابونه ليكلى دى.
④ چا ددې په قراتونو باندې قراءات القرآن په نوم كتابونه ليكلى دى.
⑤ چا ددې په شان نزول كتابونه ليكلى دى. وغيره

غرض دا چې د قرآن پاک په هر اړخ باندې قرآنى خدمات شوى دى من جمله په دغه خدماتو كښې تفسيرجلالين هم دې. دا يومختصر خو دالله تعالى مراد او مقصد واضح كولو په اعتبار سره يو ناشنا تفسير دې هم دغه وجه ده چې ددې تفسير ګڼر شروحات په مختلفو ژبو كښې شوى دى. په دغه شروحاتو كښې په اردو ژبه كښې د ،، جمالين شرح جلالين،، په نوم د هندوستان د يو نامور عالم محمد جمال بلند شهرى متوطن ميرټهه تصنيف دى دوى د تفسير جلالين په قيوداتو په آسان انداز اونهج كښې كار كړې دې. چې تقريباً د هريو قيد فائده ئې ذكر كړې ده. او زمونږ په مدارسو كښې د دې تفسير په نصاب كښې د شاملولو غرض هم دا دې چې د قرآن پاک محذوفات، تقديرات، معانى وغيره امورو يو مسلمان په آسان طريقه پوهه شى. د تفسيرجلالين د خادمينو په فهرس كښې ځان شاملولو دپاره مونږ د ،، دارالتصنف والتحقيق،، ملګرو دجمالين څخه د هغه امورو انتخاب اوكړو. كوم چې د جلالين په تدريس كښې اولنې حيثيت لرى. او خپلو پښتنو عالمانو او طالبانو ورونړو ته ئې وړاندې كوو. د انتخاب طريقه لاندې ده.

① د جلالين د متن اوشرحې په پښتو كښې ترجمه شوې ده.

② په جمالين شرح جلالين كښې د ،، تحقيق وتركيب وتسهيل و تفسيرفوائد ،، په عنوان سره د تفسيرجلالين د اهمو څيزونو حل شوې دې. نوصرف دغه مو پښتو ته ترجمه كړل. ځكه چې ددې اهميت او ضرورت ډير زيات وو.

③ باقى په جمالين كښې چې كومې نورې تفسيرى خبرې وې نوهغه مو په خپل انتخاب كښې د لاندې خبرو په وجه شامل نكړې.

(الف) اول خو د په تفسيرجلالين كښې په مختصر انداز سره تفسير موجود دې.

(ب) كه بالفرض په يو ځائې د جلالين د تفسير څخه اضافى خبرې ته ضرورت وى نو په نورو تفسيرونو كښې هغه ضرورى خبره كتلې شى مثلاً مونږ چې په پښتو كښې كوم تفسيرونه د

اضافي خصوصياتو سره ترجمې کړې دي هغه د تفسير خيرکثير ترجمه تفسيرابن کثير په نوم ترجمه، چاپ شوي ده دغه شان معارف القرآن د مفتي محمد شفيع صاحب او تفسيرعثماني، هم د فيصل کتب خانه څخه ترجمه شوي اوچاپ شوي دي. دې تفسيرونو ته رجوع کولی شي. اوددې څخه دعربئ تفسيرونه خو بې شميره ده.

(ج) تفسيرجلالين زمونږ د افغانستان او پاکستان د مدارسو په نصاب کښې شامل دې اود پنځلس پارو دپاره صرف يو پيرډ (۴۰ م نټه دورانيه) وي. په دې مختصر وخت کښې چې د تفسير جلالين صرف د قيوداتو فوائد بيان شي دا هم غنيمت دې. لاپاتې اضافي تفسيری تشريحات. ددې وجې مو د وخت د بچت په غرض د عام تفسيری خبرو څخه ډډه اوکړه.

په انتخاب کښې شاملې خبرې:

① لغوی تحقيق، چې ددې لفظ په لغت کښې څه معنی ده.

② صرفي تحقيق مثلاً په يوه کلمه کښې تعليل کول چې دا په اصل کښې څنګه وو. او موجود حالت ته څنګه راغلو.

③ نحوی تحقيق مثلاً دلته اضافي قيد سره کومې خبرې ته اشاره ده. يا دا کلمه په ترکيب کښې څخه واقع شوې ده.

④ بلاغی تحقيق چې په دې اضافي قيد سره د بلاغت کومې قاعدې ته اشاره ده.

⑤ فقهي تحقيق چې په دې اضافي قيد سره کومې مسئلې ته اشاره ده.

⑥ د قراءت تحقيق چې په دې مقام کښې دا قراءت څنګه دې.

⑦ تقديرات راويستل چې دلته کوم لفظ مقدر پروت دې. او د تقدير وجه بيان شوې ده.

⑧ شان نزول طرف ته اشاره

⑨ حديث طرف ته اشاره کول چې دا خبره په حديث کښې راغلې ده.

⑩ د تخصيص تعميم وغيره نکات بيانول مثلاً چې دلته دا لفظ ولې خاص کړل.

چونکه دا ټولې ډيرې قيمتی خبرې وې ددې وجې مونږ صرف ددې انتخاب اوکړو.

**د تفسير مفيده مقدمه شاملول:** د تفسير څخه بعضې ضروری مباحث وی کوم چې د تفسير د شروع کولو څخه وړاندې مفسرينو په خپلو تفسيرونو کښې ذکر کړی وی. د انوارالهلالين په اول کښې ما د مفتي تقي عثماني مدظله العالي د کتاب،، علوم القرآن،، څخه انتخاب اوکړو. اوپه انوارالهلالين کښې مې شامله کړه. ځکه چې ما ډير پخوا د علوم القرآن ترجمه په پښتو کښې کړې وه هغه راسره په کمپيوټر کښې موجود وه هم هغه مې په انوارالهلالين کښې شامله کړه.

په آخره کښې ستاسو په خدمت کښې درخواست کوم چې ما په خپلو دعاګانو کښې بالخصوص په انفرادی دعاګانو کښې ياد ساتئ چې الله تعالی راته د خپل دين د خدمت دپاره د عافيت ژوند راکړی. او د کومو کتابونو د ليکلو چې مې اراده ده دهغې د تکميل توفيق راکړی.

ستاسو اسلامی ورور شاه فيصل

تاريخ: ۴ دسمبر ۲۰۱۹ء بمطابق ۷ ربيع الثاني

# مقدمه د اُصول تفسیر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَنْزَلَ الْقُرْاٰنَ الْكَرِيْمَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا وَالصلاة والسلام على من رغب في تعليم القرآن وتعلمه ولم يجعل له حدا،

**وحی او ددې حقیقت** قرآن کریم چونکه په نبی ﷺ د وحی په ذریعه نازل شوې دې نو ددې وجې د ټولونه اول د وحی په باره کښې څو خبرې پیژندل ضروری دی.

**د وحی ضرورت** هر مسلمان ته پته ده چې الله ﷻ انسان دې دنیا ته د امتحان دپاره رالیږلې دې. او په ده باندې ئې څه فرائض مقرر کړی دی. اوټول کائنات ئې دده په خدمت کښې لګیا کړی دی. نو دنیاته د راتلونه پس دانسان دپاره دوه کارونه ضروری دی. یو دا چې ددې کائناتو نه کوم چې د ده نه څلور واړه طرفونوته پراته دی. ددې نه صحیح صحیح کار واخلی. دویم دا چې دا کائنات په خپل استعمال کښې راولی. او چې دالله ﷻ د احکامو خیال په کښې اوساتی. اوداسې څه حرکت اونکړی.چې دالله ﷻ درضا خلاف وی.

**دعلم ضرورت** ددې دواړوکارونو دپاره ده ته د علم ضرورت دې. ځکه چې ترتر څور پورې ده ته دا معلومه نه وی. چې ددې کائناتو حقیقت څه دې؟ددې دفلانی څیزخواص څه دی؟ددې نه څنګه فائده اخستلې شی. نوترهغه وخته پورې دې د دنیا هیڅ یوڅیزدخپلې فائدې دپاره نشی استعمالولې. دغه شان چې تر څور پورې ده ته دا معلومه نه وی. چې دالله ﷻ رضا څه ده؟هغه کوم کارونه خوښوی. ؟ او کوم کارونه نه خوښوی؟ ترهغه وخته پورې د هغه دپاره دالله ﷻ د رضا مطابق اوسیدل ممکن نه دی.

**دعلم د تحصیل درې ذرائع** نوالله ﷻ دانسان پیدا کولو سره سره درې څیزونه داسې پیدا کړی دی چې دهغې په ذریعه ده ته دپورتنو خبرو علم کیدیشی. [چې دکائناتو نه به څنګه فائده اخلی. اودالله ﷻ د رضا حصول به څنګه کوی؟ ① یو دانسان حواس یعنی سترګې غوږونه. پوزه، خوله اولاسونه پښې ② دویم عقل ③ او دریم وحی. انسان ته زیاتې خبرې دخپلو حواسو په ذریعه معلومیږی. او ډیرې دعقل په ذریعه اوکومې خبرې چې په دې دواړو ذرائعو باندې نشی معلومې دې. نو د هغې علم د وحی په ذریعه باندې ورکولې شی.

**دعلم په ذرائعو کښې ترتیب** دعلم په دې دریو ذرائعو کښې ترتیب څه داسې دے چې د هر یو خپل حد اومخصوص دائره کار دې. چې دهغې نه وړاندې کار نه کوی. نو کوم څیزونه چې انسان ته دحواسو په ذریعه معلومیږی. دهغې علم صرف دعقل په ذریعه نشی معلومېدې. مثلا اوس ماته مخامخ یوانسان ناست دې. ماته دخپلو سترګو په ذریعه دا معلومه شوه. چې دا انسان دې. هم سترګو ماته دا اوخودلو. چې دده رنګ بادامی دې.

اوتن دا یئ پلن دې. ویخ ته یئ تور دی. شونډې ئې نرئ دی. اومخ ئې کتابی دې. لیکن که هم دا خبرې زه خپل حواس بیکاره کړم. او دعقل په ذریعه معلومول غواړم. مثلا چې سترګې بندې کړم. او دا اوغواړم. چې ددې انسان رنګ اوددہ داندامونو صحیح صحیح جوړخت څنګه دې؟ او ددہ د سر نه تر پښو پورې صحیح شکل ماته صرف په خپل عقل سره شی معلوم شی. نودا ناممکنه دہ.

**د عقل دائره کار:** دغه شان چې د کوموخیزونوعلم په عقل سره حاصلیدې شی. نو هغه صرف په حواسو نه معلومیږی. مثلا ددغه کس په باره کښې ماته دا هم معلومه دہ. چې ددہ به خامخا مور هم وی.دغه شان راته هم علم دې. چې دې به چا پیدا کړی وی. اګرچې په هغه وخت کښې نه دهغه مور ماته مخامخ شته. او نه دهغه پیدا کونکې زه وینم. لیکن زما عقل دا ښائی. چې داکس په خپله نشی پیداکیدې. اوس که داعلم دعقل په ځائې دخپلوسترګو په ذریعه حاصلول غواړم.نودا ممکن نه دہ.ځکه چې دهغه دتخلیق اوپیدائش منظرزما د سترګو وړاندې نه دې. غرض دا چې ترکومې پورې د حواس خمسه تعلق دې هلته عقل څه راهنمائی نه کوی. اوپه کوم ځائې کښې چې حواس خمسه بې کاره شی. نوهلته کښې عقل کار شروع کړی. لیکن ددې عقل راهنمائی هم غیر محدود نه دہ. بلکه دا هم چې یو ځائې ته لاړ شی. اواودریږی.

**د وحی دائره کار:** او ډیرې خبرې داسې دی چې نه هغه دحواسو په ذریعه حاصلیدې شی. اونه دعقل په ذریعه. مثلا ددغه کس په باره کښې خو عقل دا اوخودل. چې دے چا پیدا کړیدې لیکن دا سړې یئ ولې پیدا کړیدې. په دہ باندې دالله ﷻ د طرف نه څه فرائض دی؟ ددہ کوم کار دالله ﷻ خوښ دې. اوکوم کار یې ناخوښه دې. دا سوالونه داسې دی. که عقل او حواس یوځائې شی. نوهم ددې جواب نشی ورکولې. انسان ته ددې سوالاتو دجوابونودپاره چې الله ﷻ کومه ذریعه پیدا کړې دہ. د هغې نوم "وحی " دې.

او ددې طریقه دا وی چه الله تعالی په خپلو بندګانو کښې څوك منتخب کوی او خپل پیغمبر ئې ګرځوی او په هغه باندې خپل کلام نازلوی، هم دې کلام ته ``وحی،، وائی.

**د علم په ذرائعو کښې د وحی عظمت** ددې نه معلومه شوہ. چې وحی د انسان دپاره هغه اوچته ذریعه دعلم دہ. چې دہ ته ددہ د ژوند متعلق د هغه سوالونو جوابونه ورکوی. چې هغه د عقل او حواسو په ذریعه نشی حل کیدې. لیکن دهغې علم حاصلول د دہ دپاره ضروری دی. د پورتنی وضاحت نه دا هم معلومه شوہ. چې صرف عقل او مشاهده د انسانی رهنمائې دپاره کافی نه دہ. بلکه ددہ د هدایت دپاره دالله ﷻ وحی یو اهم ضرورت دې. اوچونکه بنیادی طور د وحی ضرورت په هغه ځائې کښې راځی. په کوم ځائې کښې چې عقل کار نه کوی. نوځکه دا ضروری نه دہ. چې دوحی دهرې خبرې ادراك دې په عقل

سره اوشی. لکه څنګه چې د یوڅیز رنګ معلومول د عقل کار نه دې بلکه دحواسوکار دې. دغه شان د ډیرو دینی معتقداتو علم حاصلول دعقل په څانې د وحی منصب دې. اودهغې د ادراك دپاره صرف په عقل باندې بهروسه کول ټیك نه دی.[1]

او معاذالله هغه ماده پرستو خلقو چې هغوی د سر نه د الله ﷻ د وجود نه منکر دی. هغوی سره خو د وحی په مسئله باندې خبرې کول بالکل فضول دی. څکه څوك چې دالله ﷻ د وجود نه منکر وی. نو دهغه دپاره ممکن نه دی. چې هغه د وحی په حقیقت په کهولاو زړه سره غور اوکړی. اوپه سراو سترګو دا تسلیم کړی. هغه سره خو د ټولو نه وړاندې د الله ﷻ په وجود باندې دخبرو کولو ضرورت دې. باقی پاتی شوهغه کسان چې د الله ﷻ د وجود قائل دی. نو دهغوی دپاره دوحی عقلی ضرورت ددې امکان اوددې حقیقی وجود پیژندل څه ګران نه دی.

**د عاقل فعل د حکمت نه خالی نه وی:** که ته دا یقین ساتې. چې دا کائنات یو قادر مطلق پیدا کړی دی. او هم هغه دا مربوط اومستحکم نظام په خپل حکمت بالغه سره چلوی. اوهم هغه انسان د یوخاص مقصد دپاره دلته رالیږلې دې.نوبیا دا څنګه ممکن ده. چې انسان به یې پیدا کړی وی. او داسې به یې په تیارۀ کښې پریخې وی. اوهغه ته به دومره قدرې نه بنائی. چې دې دڅه دپاره دے دنیا ته راغلې دې؟ دلته کښې دده څه ذمه وارۍ دی. او دده څه منزل مقصود دې. او دې به څنګه خپل ژوند تیروی. آیا یوکس چې عقل اوحواس ئې کار کوی. داسې کولې شی. چې د څه خاص مقصد دپاره خپل نوکر په سفر باندې اولیږی. او هغه ته نه په سفر د روانیدو په وخت کښې د سفر مقصد اوبنائی. او نه بیا روستو په څه ذریعه هغه خبر کړی. چې دې د څه کار دپاره لیږلې شوې دې او دسفر په دوران کښې به دده ذمه واری څه وی؟ کله چې یو معمولی انسان داسې حرکت نشی کولې. نوبیا د هغه پاك ذات په باره کښې دا تصور څنګه کیدیشی. چې دهغه په حکمت بالغه د کائناتو دا ټول نظام چلیږی. آخر دا څګه ممکن ده. چې کوم ذات سپوږمۍ، نمر آسمان، زمکه، ستوری او د سیارو دا عقل حیرانونکې نظام پیدا کړېدې. هغه به خپلو بندګانو ته د پیغام رالیږلو داسې څه انتظام نشی کولې. چې دهغې په ذریعه انسانانو ته دهغوی د ژوند دمقصد په باره کښې هدایات ورکړی. که د الله ﷻ په حکمت بالغه باندې ایمان وی. نوبیا به دا منل هم ضروری وی. چې هغه خپل بندګان په تیارۀ کښې نه دی پریخی. بلکه د هغوی د لار خودلو دپاره به یې څه باقاعده نظام ضرور جوړ کړې وی.

---

[1] دلته کښې د وحی ضرورت ته ډیر اجمالی اشارې اوشوې. په دې موضوع باندې دتفصیلی بحث دپاره "تمهید ابی شکورسالمی رحمه الله صفحات ۶۸ تا ۷۲ اود مولانا شمس الحق افغانی رحمه الله کتاب "علوم القرآن" صفحات ۳ تا ۱۸ مطبوعه اداره مطبعه فاروقیه بهاولپور کال ۱۳۸۹هجری اوګوری.

بس د لار خودلو ددې باقاعده نظام نوم وحی او رسالت دې.

**عدم مشاهده دلیل د عدم وجود نه دې** ددې نه ښکاره ثابته شوه. چې "وحی" صرف دینی اعتقاد نه دې. بلکه یو عقلی ضروت دې. ددې نه انکار په حقیقت کښې د الله ﷻ د حکمت بالغه نه انکار دې.

**په نبی ﷺ دوحی طریقې** د وحی او رسالت دا مقدّسه سلسله د دواړو جهانونو په سردار محمد مصطفیٰ ﷺ باندې ختمه شوه، اوس به نه په یو انسان باندی وحی نازلیږی او نه ددې ضرورت شته.

په نبی ﷺ هم په مختلفو طریقو وحی نازله شوې ده. دصحیح بخاری په یو حدیث کښې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی. چې یوځل حضرت حارث بن هشام [۲] د نبی ﷺ نه تپوس اوکړلو. چې په تاسو به وحی څنګه راتله؟ نونبی ﷺ اوفرمائیل: [أحياناً يأتيني مثل صلصلة الجرس وهو أشده علي فيفصم عني وقد وعيت ما قال وأحياناً يتمثل لي الملك رجلا] [۳] کله خو به ماته د ټلېٔ آواز اورولې شو. او د وحی دا صورت زما دپاره د ټولو نه زیات سخت وو. بیا چې کله دا سلسله ختمه شوه. نو چې څه آواز به وو. هغه به ماته یاد شوې وو. اوکله به فرښته ماته مخامخ د سړی په شکل کښې راتله. [صحیح بخاری ج۱ ص۲]

په دې حدیث کښې نبی کریم ﷺ د وحی آواز لره د ټلېٔ آواز سره تشبیه ورکړې ده.

شیخ حضرت محی الدین ابن عربی رحمه الله نه ددې تشبیه کوم مطلب نقل کړېدې. هغه د ذکر شوو ټولوتوجیهاتونه زیات لطیف دې. دهغوی وینا دا ده چې دا تشبیه صرف په دوو اعتبارو سره ورکړې شوې ده. یوخو دآواز تسلسل سره وی. لکه څنګه دټلېٔ آواز مسلسل وی. اونه اودریږی.

اودویم په دې اعتبار سره چې ټلېٔ مسلسل ټنګیږی. نو اوریدونکی ته عام طور د هغې د آواز طرف متعین کول ګران وی. څکه چې د هغې آواز د هر طرف نه محسوسیږی. اوالله ﷻ چونکه د جهت اومکان نه پاك دې. نو څکه د کلام الهی دا خصوصیت دے چې د هغه آواز د یوطرف نه نهٔ راځی. بلکه د هرطرف نه راځی. ددې کیفیت صحیح ادراك د مشاهدې نه بغیر ممکن نه دې. لیکن دا خبره عامو ذهنونو ته د نزدے راوستلو دپاره ددې تشبیه نبی ﷺ د ټلېٔ د آواز سره ورکړې ده. [۴]

---

[۲] حضرت حارث بن هشام رضی الله عنه په اوچتو صحابه کرامو کښې دې. دمکه دفتح په موقعه یې اسلام راوړلې او په کال ۱۵هجری کښې دشام په فتح کولو کښې شهید شوې وو. [القسطلانی:ارشادالساری ۱ / ۵۷ بولاق مصر کال ۱۳۲۳هجری]

[۳] صحیح بخاری ۲/۱، اصح المطابع کراچی

[۴] فیض الباری ۱۹/۱، ۲۰] قاهره کال شي ۱۳۵۷هجری]

د دې قسم د سختوالی وجه کله چه به په دې طریقه نبی علیه السلام باندې وحی نازلیده نو داپه نبی ﷺ د ټولو نه زیاته سخته وه. ددې سره به په نبی ﷺ زیات بوج پریوتلو. [۵] حضرت عائشه رضی الله عنها د پورتنی حدیث په آخر کښې فرمائی. چې [ولقد رأیته ینزل علیه الوحی فی الیوم الشدید البرد فیفصم عنه وإن جبینه لیتفصد عرقا] [۶] ما د سخت ژمی په ورځ نبی ﷺ د وحی نازلیدو په وخت کښې لیدلې وو. [چې په داسې یخنۍ کښې هم] چې کله به د وحی سلسله ختمه شوه. نو د نبی ﷺ د تندی نه به خولې بهیدلې. په یو بل روایت کښې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی. چې کله به په نبی ﷺ وحی نازلیدله. نو د نبی ﷺ ساه به بندیدله. او مخ مبارك به یې بدلیدو. اود کهجورې د شاخ پشان به زیړ شو. مخامخ غاښونه به یې د یخنۍ نه رچیدل. او په نبی ﷺ به دومره خوله راتله. چې دهغې څاڅکی به د ملغلرو پشان ځځیدل. [۷]

د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه دوحی په دې کیفیت کښې به بعضې وخت دومره سخت والی پیدا شو. چې نبی ﷺ به په هغه وخت کښې په کوم څاروی سور وو. نو هغه به د ډیر بوج د وجې کیناستلو. او یوځل نبی ﷺ خپل سر مبارك د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په پتون باندې ایخودې وو. چې په دې حالت کښې د وحی نزول شروع شو. په دې باندې د حضرت زید رضی الله عنه په پتون دومره بوج پریوتلو. چې ماتیدوته نزدې وو [۸] بعضې وخت به ددې وحی معمولی معمولی آواز نوروهم اوریدلو. حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی. چې کله به په نبی ﷺ وحی نازلیدله. نود نبی ﷺ د مخ مبارك سره به د شاتو د مچو پشان بنګار اوریدې شو. [۹]

تمثیل ملك: دوحی دویم صورت چې په دې حدیث کښې ئې ذکر ذادې وو. چې فرښته به انسانی شکل کښې راتلله. او نبی ﷺ ته به یې پیغام راوړو. په داسې موقع به اکثر حضرت جبرئیل ﷺ د مشهور صحابی حضرت دحیة کلبی رضی الله عنه په صورت کښې تشریف راوړلو. البته په بعضې وختونو کښې په نورو صورتونو کښې هم دحضرت جبرئیل ﷺ راتلل ثابت دی. بهر حال د وحی په دې صورت کښې په فرښته په انسانی شکل کښې راتلله. اود وحی په دې طریقه کښې به په نبی ﷺ څه سختی نه راتله.

د فرښتې په خپل اصلی شکل کښې راتلل: د وحی دریم صورت دا وو. چې حضرت جبرئیل ﷺ د

---

[۵] فتح الباری [۱۶/۱] قاهره، کال ۱۳۵۷هجری
[۶] صحیح بخاری [۲/۱] حدیث نمبر ۲۰۰
[۷] السیوطی الاتقان [۴۶/۱] قاهره کال ۱۳۶۸ هجری پحواله ابن سعید
[۸] ابن قیم زادالمعاد فی هدی خیر الأنام [۱۹/۱، ۱۸] المطبعة المیمنیة مصر.
[۹] ایضاً [۲۱۲/۲۰]

انساني شکل جوړولو نه بغير په خپل اصلي شکل کښې ښکاره کيدلو. داسې د نبي ﷺ په ټول عمر کښې درې ځله شوي وو. يوځل هغه وخت چې د نبي ﷺ په خپله د جبرئيل ﷺ په خپل اصلي شکل کښې د ليدلو خواهش کړې وو. دويم ځل په معراج کښې او دريم ځل بيخي د نبوت په ابتدائي زمانه کښې په مکه مکرمه کښې په مقام اجياد باندې. اولني دوه واقعات خو په صحيح سند سره ثابتې شوي دي. خو آخري دريمه واقعه د سند د کمزورۍ د وجې مشکوکه ده. [۱۰]

**الله تعالى سره خبرې کول:** دوحي ځلورم صورت دا وو. چې نبي ﷺ ته هم الله ﷻ سره براه راست د خبروکولوشرف حاصل شوې وو. دبيدارۍ په حالت کښې دا واقعه صرف د معراج په موقعه پيشکه شوې وه. ددې نه علاوه يوځل نبي ﷺ په خوب کښې هم الله ﷻ سره خبرې کړې وې. [۱۱]

**نفث في الروع:** د وحي پنځمه طريقه دا وه چې حضرت جبرئيل ﷺ به بغير د څه شکل اختيارلو نه د نبي ﷺ په زړه کښې څه خبره واچوله.

دې ته په اصطلاح کښې ''نفث في الروع،، وائي. [ايضاً]

## د قرآن د نزول تاريخ

قرآن کريم په اصل کښې دالله ﷻ کلام دې. خکه د ازل نه په لوح محفوظ کښې موجود دې. دقرآن کريم ارشاددې ﴿بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَّجِيدٌ فِي لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ﴾ البروج: ۲۲، ۲۱) بلکه دا قرآن مجيد دې په لوح محفوظ کښې.

**دقرآن دنزول دوه طريقې:** بيا د قرآن کريم نزول دوه ځله شوې دې يوځل دا ټول په دنياوي آسماني کښې بيت العزت ته نازل شوې وو.

بيتِ عزّت [چه دې ته البيت المعمور هم وائي] د کعبة الله په محاذات کښې په آسمان کښې د فرشتو د عبادت ځائې دې، دا نزول په ليلة القدر کښې شوې وو. بيادويم ځل نبي ﷺ باندې لږ لږ دضرورت مطابق نازليدلۀ. تر دې چې په درويشت کاله کښې ددې تکميل اوشو.

**د حديث نه د دوو طريقو ثبوت:** دقرآن کريم دا دوه صورتونه پخپله دقرآن کريم د اندازبيان نه هم معلوميږي. ددې نه علاوه په نسائي، حاکم، بيهقي ابن ابي شيبه، طبراني او ابن مردويه ﷺ د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه ګڼ روايات نقل کړي دي. دهغې خلاصه هم دا ده. چې دقرآن کريم اولنې نزول ددنيا آسمان ته شوې وو. اودويم نزول په مزه مزه نبي

[۱۰] د تفصيل دپاره اوګورئ فتح الباري [۱/، ۱۹، ۱۸]

[۱۱] الإتقان [۴۶/۱]

ﷺ ته شوي وو. [۱۲]

اولني نزول: دقرآن کریم اولني نزول حکمت علامه ابوشامه رحمه الله دا بیان کړېدي. چې په دي کښې دقرآن کریم آوچت والي د مقام ته اشاره ده. او دغه مقام نه فرشتو ته دا خبره خودل مقصودوو. چې دادي لله ﷻ آخری کتاب دي. چې دزمکې دخلقو دهدایت دپاره نازلیدو والا دي.

د کتاب اتقان ته اشاره، زرقاني رحمه الله هم دا نکته بیان کړي ده. [۱۳] چې ددې په دوه خله نازلولو کښې دا مقصود وو. چې دا کتاب دشك او شبه نه پاك دې. چې د نبی ﷺ د مبارك زړه نه علاوه دا په نورو دووځایونو کښې هم محفوظ دې. یولوح محفوظ اودویم بیت العزت والله اعلم. بهر حال دالله ﷻ د حکمتونو احاطه څوك کولې شي. هم هغه ته صحیح علم دې. چې ددې به نور څه څه حکمتونه وی. اومونږ ته دهغې په لټولو کښې د پریوتولو ضرورت هم نشته. البته مونږ ته د دومره وضاحت سره خودلې شوی دی. چې دا اولني نزول په شب قدر کښې شوي وو.

دویم نزول په دي باندې تقریبا اتفاق دې. چې دقرآن کریم دویم تدریجی نزول هغه وخت شروع شو. کله چې د نبی ﷺ عمر څلویښت کاله شو. ددې نزول شروع هم د صحیح قول مطابق په شب قدر کښې شوي وه. [۱۴] دا هم هغه تاریخ وو. چې روستو په کښې جنګ بدر شوي وو. لیکن دا شپه د رمضان کوم تاریخ وو. په دې باره کښې په قرآن کریم کښې څه یقیني خبره نشی کولې. د بعضې روایاتونه درمضان اوولسمه او د بعضو نه نورلسمه او د بعضو نه اوویشتمه شپه معلومیږی. [۱۵]

## د ټولو نه اولنی نازلیدونکې آیت

د سورت علق ابتدائی ایاتونه: صحیح قول دادې چې په نبی ﷺ د ټولو نه اولنی آیتونه چې کوم نازل شوي وو. هغه د سورت علق اولنی آیاتونه دی. په صحیح بخاری کښې حضرت عائشه رضي الله عنها ددې واقعه داسې بیانوی. چې په رسول الله ﷺ د وحی شروع د ریښتینی خوبونو نه شوي وه. ددې نه پس په خلوت کښې نبی ﷺ ته د عبادت کولو شوق پیدا شو. او په هغه دوران کښې به نبی ﷺ څو څو شپې په غار حرا کښې تیرولې. او په عبادت

[۱۲] اوګورئ الاتقان ۴۱/۱ النوع السادس عشر]

[۱۳] مناهل العرفان [۳۹\۱۱]۔

[۱۴] مشهوره دا ده. چې نبی ﷺ ته نبوت په ربیع الاول کښې ملاو شوي وو. علامه سیوطی رحمه الله ددې محمل دا خودلې دې. چې نبی ﷺ ته په ربیع الاول کښې ریښتینې خوبونه لیدل شروع شوی وو. دا سلسله شپږو میاشتو پورې جاری وه. بیا په رمضان کښې قرآن نازل شو. [الاتقان ۴۲/۱]

[۱۵] تفسیر جامع البیان دې بن جریر طبری ۷/۱، طبع مصر ]

کښې به مشغول اوسیدلو. تر دې چې يوه ورځ هم په هغه غار کښې نبی ﷺ ته دالله ﷻ د طرف نه فرښته راغله. او هغې د ټولو نه اولنۍ خبره دا اوکړله. ،،اِقرأ،، يعنی اولوله. نبی ﷺ اوفرمائیل:زه لوستونکې نه يم. ددې نه پس رسول الله ﷺ پخپله واقعه بيانوی. چې زما په دې جواب فرښتې زه اونیولم. اوماته يې داسې زورراکړلو. چې ماته سخت تکليف اورسیدلو. بيا هغې زه پريخودم. او ماته يې اوئیل،، اقرا،، ما جواب ورکړلو. چې زه لوستونکې نه يم. په دې باندې هغې زه په دريم ځل اونیولم. او زور ئې راته راکړلو. بيا ئې اووئیل :اولوله﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ ۚ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۚ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ۙ الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۙ عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ یَعْلَمْ ؕ﴾اولوله دخپل پرودرګارد نوم نه چاچې پيدا کول کړی دی. چاچې انسان د چکه وينې نه پيدا کړيدې. اولوله. اوستا پروردګار د ټولو نه زيات مهربانه دې. الخ.

**د سورت مدثر آياتونه** دا په نبی ﷺ باندې نازل شوی د ټولو نه اولنی آياتونه وو. ددې نه پس دري کاله پورې د وحی سلسله بنده وه. دې زمانې ته د "فترت وحی" زمانه وائی. بيادرې کاله پس هغه فرښته چې په غار حراء کښې راغلې وه. نبی ﷺ د آسمان اوزمکې په مينځ کښې اوخودلې شوه. او هغې نبی ﷺ ته د سورت مدثر آياتونه واورول. دې نه پس د وحی سلسله شروع شوه.

## مکي اومدني آياتونه

① **هجرت معيار ګرځول:** تاسو به د قرآن کريم د سورتونو په عنواناتو کښې کتلی وی. چې د بعضې سورت سره مکی او د بعضې سره مدنی ليکلې شوې وی. ددې صحيح مفهوم پيژندل ضروری دی. داکثرو مفسرينو داصطلاح مطابق د "مکی آيت" نه هغه آيت مراد دې. چې د نبی ﷺ دهجرت په غرض مدينې طيبې ته د تلو نه وړاندې نازل شوی وی.

② **مکه اومدينه معيار ګرځول:** بعضې کسان د مکی نه دا مطلب اخلی. چې په مکه ښار کښې نازل شوی وی. او د مدنی نه دا چې په مدينه ښار کښې نازل شوی وی. ليکن د اکثرو مفسرينو داصطلاح مطابق دا مطلب اخستل ټيک نه دی. ځکه چې څو آياتونه داسې دی. چې دمکې په ښار کښې نازل شوی نه دی. ليکن چونکه د هجرت نه وړاندې نازل شوی دی. نو ځکه ورته مکی وئيلی شی. په منی، عرفات وغيره او د معراج په سفر کښې نازل شوی آياتونه داسې دی. تر دې چې د هجرت په سفر کښې چې په لار کښې کوم آياتونه نازل شوی دی. هغې ته مکی وائی. دغه شان ډير آياتونه داسې دی. چې په مدينه ښار کښې نه دی نازل شوی. ليکن هغې ته مدنی وائی. دهجرت نه پس نبی ﷺ ډير سفرونه کړی وو. چې په هغې کښې نبی ﷺ د مدينې نه په سوونو ميله لرې هم تشريف اوړے وو. په دې ټولو مقاماتو کښې نازل شوو آياتونو ته مدنی وائی. تر دې چې

هغه آیاتونو ته هم مدنی وائی چې د فتح مکې یا غزوه حدیبیې په موقع باندې یا خاص کر په مکه ښار یا ددې په مضافاتوکښې نازل شوی دی. [۱۶] د قرآن آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ _ النساء﴾ مدنی دې. حالانکه دا په مکه مکرمه کښې نازل شوې دې [۱۷] بیا بعضې صورتونه خو داسې دی. چې هغه ټول مکی یا ټول مدنی دی. مثلا سورت مدثر ټول مکی دې. اوسورت آل عمران ټول مدنی دې. او بعضې وخت داسې هم شوی دی. چې ټول سورت خو مکی وی. خو په هغې کښې یو یا څو آیاتونه مدنی وی. مثلا سورت اعراف مکی دې. لیکن په دې کښې ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ نه واخله تر ﴿وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ﴾ پورې آیاتونه مدنی دی. دغه شان کله ددې په عکس هم وی. مثلا سورت حج مدنی دې. لیکن په دې کښې څلور آیاتونه ﴿وما . . . . . تمنی ﴾ نه تر ﴿عذاب عظیم﴾ پورې مکی دی. ددې نه دا هم ښکاره کیږی. چې د یو سورت مکی یا مدنی کیدل عام طور دهغې د زیاتوآیاتونو په اعتبار سره وی. او اکثریه داسې کیدل. چې دکوم سورت ابتدائی آیاتونه دهجرت نه وړاندې نازل شوی وو. هغه مکی اوګرځولې شوې ګر چې روستو دهغې بعضې آیاتونه دهجرت نه پس نازل شوی وو [۱۸]

## دمکی او مدنی آیاتونو خصوصیات

دتفسیر عالمانو د مکی او مدنی سورتونو لټون کړیدې. او ددې بعضې داسې خصوصیات یې بیان کړی دی. چې د هغې نه په اولنی نظر سره دا معلومیږی. چې دا سورت مکی دے که مدنی. په دې سلسله کښې بعضې کلی قاعدے دی. او بعضې اکثری قاعدے دی.

**لفظ د،، کلا،، معیار ګرځول** ① هر هغه سورت چې په هغې کښې د "کلا" [هیڅ کله نه ] لفظ راغلې وی. هغه مکی وی. دا لفظ په پنځلس سورتونو کښې دری دیرش [۳۳] ځله راغلې دې. او دا ټول آیاتونو د قرآن په آخری نیمه حصه کښې دی.

**آیت د سجدې معیار ګرځول** ②هر هغه سورت چې په هغې کښې آیت د سجدې وی. مکی دې. [دا اصول د احنافو په مسلك دې.

**دآدم ﷺ واقعه معیار ګرځول** ③ د سورت بقره نه سوا هر هغه سورت چې په هغې کښې دحضرت آدم ﷺ او شیطان واقعه راغلې وی. هغه مکی دې.

---

[۱۶] دتفصیل دپاره اوګورئ البرهان فی علوم القرآن ۱/۱۸۸ النوع التاسع ]
[۱۷] مناهل العرفان ۱/۱۸۸]
[۱۸] مناهل العرفان ۱/۱۹۲]

جهاد معیار شکر څول: ⑧ هر هغه سورت چې په هغې کښې د جهاد اجازت یا ددې احکام ذکر شوي وي. مدني دي.

د منافقانو ذکر معیار شکر څول ⑨ هر هغه سورت چې په هغې کښې د منافقانو ذکر راغلې وي. مدني دي.

دمکي اومدني سورتونو پیژندګلو اکثري قاعدې اود سورتونو دا لاندنیې خصوصیات عمومي اواکثري دي. یعنی کله کله ددې خلاف هم کیږي. لیکن اکثر اوزیات هم داسې دي.

خطاب معیار شکر څول ① په مکي سورتونوکښې اکثر په ﴿یاایها الناس﴾، ، اے خلقو، ، الفاظو سره خطاب شوي دې اوپه مدني سورتونوکښې کښې د ﴿یاایها الذین آمنوا﴾ الفاظو سره خطاب شوي دي.

طوالت او اختصار معیار شکر څول: ② مکي آیاتونه اوسورتونه اکثر واړه واړه دي. اومدني آیاتونه اوسورتونه "طوال او مفصل دي. [د طوال اومفصل تفصیل به روستو راشي .

توحید او احکام معیارک شکر څول: ③ مکي سورتونه زیات تر د توحید، رسالت اود آخرت اثبات، دحشر اونشر منظر کشي، نبی ﷺ ته دصبر او تسلي تلقین، او د وړاندېني امتونو په واقعاتو مشتمل دي. اوپه دې کښې احکام اوقوانین ډیر کم بیان شوي دي. ددې په خلاف په مدني سورتونو کښې خانداني اوتمدني قوانین، دجهاد او قتال احکام اوحدود او فرائض بیان شوي دي.

مخاطبه د کافرانو او اهل کتابو معیارک شکر څول ④ په مکي سورتونوکښې زیاته مقابله د بت پرستو سره شوې ده. اوپه مدني سورتونوکښې د اهل کتابواومنافقانو سره.

اسلوب بیان معیار شکر څول ⑤ د مکي سورتونوترتیب اسلوب زیات تر د شکایت دې. اوپه دې کښې استعارات، تشبیهات اومثالونه زیات دي. اوذخیره الفاظ یې ډیر زیات دي. ددې په خلاف د مدني سورتونو اسلوب نسبتاً ساده دې.

په مکي اومدني اسلوب کښې د فرق وجوهات د مکي او مدني سورتونو په انداز بیان کښې دا فرق په اصل کښې دحالاتو، ماحول اومخاطبینو د اختلاف د وجې پیدا شوي دې په مکي ژوند کښې دمسلمانانومقابله چونکه زیاته د بت پرستو عربو سره وه. او اسلامي ریاست موجود شوې نه وو. څکه په دغه دور کښې زیادت زور د عقائدو په تیک کولو اود اخلاقو په اصلاح او د بت پرستو مدلل تردید او قرآن کریم د شان اعجاز په اظهار باندې ورکړې شوي دې. ددې په خلاف په مدینه طیبه کښې یواسلامي ریاست قائم شوې وو. خلق به ډلې ډلې د اسلامي جنډے لاندې راتلل. په علمي میدان کښې د بت پرستۍ ابطال شوې وو. او ټول نظریاتي جنګ داهل کتابو سره وو. څکه ددې ځائې احکام، قوانین،

حدود اود فرائضو په تعليم باندې زيات توجه ورکړې شوې ده. او ددې مناسب اسلوب يې اختيار کړېدې.

## د قرآن کريم تدريجي نزول

په اول کښې راغلي ووچې په نبي ﷺ باندې قرآن کريم په يو ځل نه وو نازل شوې. بلکه لږ لږ تقريبا په دېرويشت کالو کښې نازل شوې وو. بعضے وخت به حضرت جبرئيل امين ﷺ د يو ورکوټي آيت بلکه د آيت د يوې حصے دپاره هم تشريف راوړلو. اوکله به ځوځو آياتونه په يو وخت نازل شو. د قرآن کريم د ټولو نه وړه حصه چې ځان له نازله شوې وه. هغه ﴿غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ: النساء:۹۵﴾ ده. دا ديو اوږد آيت ټکړه ده. بل طرف ته سورت انعام ټول په يوځل نازل شوې دې[۱۹]

د مشرکانو اعتراض: قرآن کريم په يو ځل نازلولوپه ځائې لږ لږ ولې نازل شوې دې؟دا سوال په خپله د عربومشرکانو د نبي ﷺ نه کړې وو. الله ﷻ ددې سوال جواب په خپله په دې الفاظو کښې ورکړېدې ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً ۚ كَذَٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ ۖ وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيلًا ۝ الفرقان:۳۲﴾ او کافرانو اوونيل: چې په تا باندې قرآن ولې په يو ځل نه نازليږي. دغه شان مونږ قرآن پاك تدريجا نازل کړېدې. چې ستا زړه پرې مطمئين کړو. لومونږ دا په مزه مزه لوستے دې. او دوی به څه خبره تاته نه راوړي. مګر مونږ به تاته حق راوړو. او د هغې به ښه تفسير پيش کوو،،

د تدريجي نزول حکمتونه: امام رازی ﷫ ددې آيت په تفسيرکښې د قرآن کريم په تدريجي نزول کښې چې کوم حکمتونه بيان کړی دی. دلته کښې د هغې خلاصه پيژندل کافي دی. هغوی فرمائي. چې ددې په تدريجي نزول کښې څو حکمتونه دی.

① نبي ﷺ امي وو. ليکل لوستل يې نشو کولې. نو که ټول قرآن په يوځل نازل شوې نه وې. نوددې يادول او ضبط کول به ګران وو. ددې په خلاف حضرت موسی ﷺ ليکونکې اولوستونکې وو. ځکه په هغوی باندې تورات په يو ځل نازل شوې وو.

② که ټول قرآن په يو ځل نازل شوې وو. نو د ټولو احکامو پابندی به فورا شروع شوې وه. نودابه ددې د حکيمانه تدريج نه خلاف وو. د کوم چې په شريعت کښې خيال ساتلی شي.

③ نبي ﷺ به هره ورځ دخپل قوم د طرف نه نوی نوی تکليفونه برداشت کول. د قرآن دنازلولو دپاره د حضرت جبرئيل ﷺ بار بار راتګ به د دغه تکليفونو مقابله کول آسانوله. او د نبي ﷺ د زړه دمضبوطتيا سبب به جوړيده.

---

[۱۹] تفسير ابن کثير ۱۲۲/۲

⑦ د قرآن كريم زياته حصه د خلقو د سوالونو جواب او مختلفو واقعاتو سره متعلق ده. څكه ددې آياتونو نزول په هغه وخت كښې مناسب وو. په كوم وخت كښې چې دغه سوالاته شوى وو. يا واقعات پيښ شوى وو. دې سره د مسلمانانو بصيرت هم زياتيدلو. او د قرآن كريم غيبي خبرو بيانولو سره ددې حقانيت نور هم ښكاره كيدلو.[۲۰]

## شان نزول

دقرآن كريم دوه قسمه آياتونه دى. يوهغه آياتونه دى. چې په خپله نازل شوى دى. څه خاص واقعه يا د چا سوال وغيره دهغې د نزول سبب نه وى جوړ شوې. دويم قسم آياتونه هغه دى. چې دهغې نزول د څه خاص واقعې يا دچا دسوال په جواب كښې شوى وى. هغې ته د دغه آياتونو پس منظر وئيل پكار دى. دې پس منظر ته د مفسرينو په اصطلاح كښې "سبب نزول" يا "شان نزول" وئيلې شى.

مثلا دسورت بقره آيت دې. ﴿وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ ۗ :: البقرة: ۲۲۱﴾مشركو ښځو سره ترهغه وخته پورې نكاح مه كوئ. ترڅوچې هغوى ايمان نه وى راوړے. بيشكه يوه مومنه وينځه دمشركې نه بهتره ده. اګرچې مشركه ستاسو خوښه وى

د پورتنى آيت شان نزول: دا آيت په يوه خاص واقعه كښې نازل شوې وو. په زمانه د جاهليت كښې حضرت مرثد بن ابى مرثد غنوى ﷛ دعناق نومې يوې ښځې سره تعلقات وو. د اسلام راوړلو نه پس دے مدينې طيبې ته راغلو. اوهغه ښځه په مكه مكرمه كښې پاتې شوه. يو ځل دڅه كاردپاره حضرت مرثد ﷛ مكې ته تشريف يوړلو. نوعناق ده ته دګناه دعوت وركړلو. حضرت مرثد ﷛ ترې صفا انكار اوكړلو. اووې فرمائيل:اسلام زما اوستا په مينځ كښې پرده جوړه شوې ده. ليكن كه ته غواړے. نوزه د نبى ﷺ په اجازت سره تا سره نكاح كولې شم. چې مدينې منورے ته يې تشريف راوړلو. نو حضرت مرثد ﷛ د نبى ﷺ نه د نكاح كولواجازت اوغوښتلو. اود خپلې خوښې اظهار يې اوكړلو. په دې باندې دا آيت نازل شو. اودے د مشركو ښځوسره د نكاح كولونه ممانعت اوكړلو[۲۱]

داواقعه دپورتنى آيت سبب نزول يا شان نزول دې.

د قرآن كريم په تفسير كښې ''شانِ نزول،، ډير اهميت لرى، د ډيرو آياتونو مفهوم ترهغه وخته پورې په صحيح طريقه پوهه كښې نه راځى چه ترڅو پورې دهغې شانِ نزول معلوم نه شى.

---

[۲۰] تفسير كبير دامام رازى ﷫ [۳۳۶/۶] مطبع عامره كال ۱۳۲٤هجرى
[۲۱] الواحدى :اسباب النزول صفحه ۳۸، مصطفى البابى مصر كال ۱۳۷۹ ]

## د قرآن د حفاظت تاريخ

درسول ﷺ په زمانه کښې د قرآن حفاظت قران کريم په يوځل پوره په پوره نه دي نازل شوي . بلکه ددې مختلف آياتونه دضرورت اوحالاتو په مناسبت سره نازليدل. نوځکه په عهد رسالت کښې دامکنه نه وه. چې هم د شروع نه دا په کتابی شکل کښې اوليکلې شي اومحفوظ کړې شي . ددې نه علاوه الله ﷻ قران کريم ته د نورو آسمانی کتابونو په مقابله کښې دا مرتبه ورکړې وه. چې ددې حفاظت يې دقلم اوکاغذ نه زيات دحافظانو په سينوسره اوکړو. لکه په صحيح مسلم کښې دی . چې الله ﷻ نبی کريم ﷺ ته اوفرمائيل [ومنزل عليك كتابالايغسله الماء] يعنی څه په تا باندې يوداسې کتاب نازلونکې يم. چې اوبه يې نشی ونځلې.

مطلب دا دې چې ددنيا دعامو کتابونوحال خودادې . چې هغه ددنياوی آفتونو په وجه ضائع کيږی . لکه چې تورات انجيل او نورې آسمانی صحيفې هم دغه شان ختمې شوې نه وې. خو قران کريم به په سينو کښې داسې محفوظ کړې شی . چې ددې دضائع کولو په هيڅ خطره باقی پاتې نه شی . ([22]) ددې وجې د اسلام په اول کښې د قران کريم دحفاظت دپاره دټولونه زيات زور په حافظه باندې ورکړې شوې وو. په شروع شروع کښې چې به کله وحی نازليدله. نونبی کريم ﷺ به هغه الفاظ هم هغه وخت بيا بيا اړول راړول. چې ښه ورته ياد شی . دے باندې دا آيت نازل شو ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ ﴾ تاسوقران مجيد د زريادولو په خيال خپلې ژبې ته حرکت مه ورکوئ. (ځکه) چې ددې (قران)جمع کول او لوستل مونږ په خپله ذمه اخستې دی،،

په دې آيت کښې داخبره واضحه کړې شوه. چې قران کريم د يادساتلو دپاره تاسوته د وحی د نزول په وخت زرزر د الفاظو د لوستلو ضرورت نشته . الله ﷻ به په خپله په تاسوکښې داسې حافظه پيداکړی . چې يوځل د نزول وحی نه پس به تاسو نه دا نه هيريږی . او هم داسې اوشوه. چې يو طرف ته به په نبی کريم ﷺ باندې قرآنی آياتونه نازل شو. اوبل طرف ته به هغه نبی کريم ﷺ ته يادېدل. دغه شان دسرکاردوعالم ﷺ سينه مبارکه دقران کريم د ټولونه زياته محفوظه خزانه وه. چې په دې کښې ديوې معمولی غلطۍ يا ترميم او بدليدو امکان نه وو. بيا به نبی کريم ﷺ د زيات احتياط په طور باندې هرکال د رمضان په مياشت کښې حضرت جبرئيل ؑ ته قران اورولو. اوپه کوم کال چې د نبی کريم ﷺ وفات اوشو . په دغه کال نبی کريم ﷺ دوه ځله حضرت جبرئيل ؑ سره دور اوکړو. ① بيا نبی کريم ﷺ صحابه کرامو ؓ ته د قران کريم صرف

---

[22]) النشر فی القرآات العشرلابن الجزری رحمه الله . ص٦ج١

د معانيوتعليم نه وركولو. بلكه هغوى ته به يې د هغې الفاظ هم يادول.

**د قران په حفظ كښې د صحابوشوق:** اوپه خپله صحابه كرامو ﷺ سره د قران كريم د زده كولو او ددې ديادولو دومره شوق وو. چې هرسړې به په دې معامله كښې د بل كس نه د وړاندې كيدو په فكركښې وو، بعضې ښځو دخپلو خاوندانو نه ددې نه سوا دهيڅ مهر مطالبه اونه كړه چه هغه به دې ته د قرآن كريم تعليم وركوي، په سوونو صحابه كرامو خپل خانونه د نورو ټولو غمونو نه آزاد كړو اوخپل ژوند ئې ددې كار دپاره وقف كړې وو، هغوى به قرآن كريم صرف يادولو نه بلكه د شپې به ئې په مونځونو كښې تلاوت كولو، حضرت عُباده بن صامت ﷺ فرمائي چه كله به چا هجرت اوكړو اود مكې مكرّمې نه به مدينې طيّبې ته راغې نو نبى كريم ﷺ به هغه په مونږ انصارو كښې چاته حواله كولو، چه هغه ده ته قرآن اوښائى، اوپه مسجد نبوى [ﷺ] كښې د قرآن ښودونكو او زده كونكو د آوازونو دومره شور شو چه رسول الله ﷺ دا تاكيد اوفرمائيلو چه خپل آوازونه رو كړئ، چه څه غلطى اونه شى. [مناهل العرفان ج١ ص٢٣٤]

په لږه موده كښې د صحابه كرامو يو داسې لوئې جماعت تيار شو چه هغوى ته قرآن كريم ټول حفظ وو، په دغه جماعت كښې د خلفائې راشدينو نه علاوه حضرت طلحه، حضرت سعد، حضرت ابن مسعود، حضرت حذيفه بن يمان، حضرت سالم مولى ابى حذيفه، حضرت ابوهريره، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عمرو بن عاص، حضرت عبدالله بن عمرو، حضرت معاويه، حضرت عبدالله بن زبير، حضرت عبدالله بن السّائب، حضرت عائشه، حضرت حفصه، حضرت امّ سلمه [رضى الله عنهم اجمعين] خاص طور قابل ذكردى. [٢٣]

غرض داچه په ابتداء د اسلام كښې زيات زور د قرآن په حفظ كولو وركړې شو، او دهغه وخت په حالاتو كښې دا طريقه زياته محفوظه او قابل اعتماد وه، ځكه چه په هغه زمانه كښې د ليكونكو او لوستونكو تعداد ډيركم وو، د كتابونو چهاپ كولو دپاره د پريس وغيره ذريعې موجود نه وې، په دې وجه كه صرف په ليكلو باندې اعتماد شوې وې نو نه به د قرآن كريم په لويه پيمانه اشاعت شوې وې، او نه به ددې قابل اعتماد حفاظت كيدو، ددې په ځائې الله تعالى د عربو خلقو ته د حافظې داسې قوت وركړې وو چه يو يو سړې به د زرګونو شعرونو حافظ وو، او معمولى معمولى د باندو اوسيدونكو ته به صرف دخپل خاندان نه بلكه هغوى ته به دخپلو اسونو نسب نامې هم يادې وې، په دې وجه د قرآن كريم په حفاظت كښې ددې قوتِ حافظې نه كار واخستلې شو، او ددې په

[٢٣] د زياتى تفصيل دپاره اوګورئ "علوم القرآن"، د احقر مفصّل كتاب.

ذريعه د قرآن کريم آياتونه او سورتونه د عربو کوټ کوټ ته اورسيدل.

## په عهدرسالت کښې د کتابت قرآن اوله مرحله

**د قرآن حفاظت د ليکلو په ذريعه:** دحفاظت قران اصل مدار اګرچې په حافظه باندې وو. خو ددې سره سره نبی کريمﷺ دقران کريم دکتابت هم خاص اهتمام کړې وو. دکتابت طريقه حضرت زيدبن ثابت ﷺ په يوحديث کښې دا بيان کړې ده. چې [كنت اكتب الوحي لرسول الله ﷺ وكان اذانزل عليه الوحي اخذته برحاء شديدة وعرق عرقاً مثل الجمان ثم سرّي عنه. فكنت أدخل عليه بقطعة الكتف اوكسرة فأكتب وهو يملي علي فما أفرغ حتى تكاد رجلي تنكسر من ثقل القران حتى أقول لا أمشي على رجلي أبداً فإذا فرغت قال إقرأ فأقره فإن كان فيه سقط أقامه ثم أخرج به الى الناس.[۲۴]»ما درسول الله ﷺ دپاره د وحی کتابت کولو. چې کله به په نبی کريمﷺ باندې وحی نازليدله. نود نبی کريمﷺ به سخته ګرمی کيد. له. اود نبی کريم ﷺ په پاك بدن باندې به دخولوڅاڅکی د غمو په شان رابهيدل. بيا به د نبی کريمﷺ نه دا حالت ختم شو. نوما به د اوږې يو هډوکے[يا دڅه بل څيز ټکړه] راوړلو. په خدمت کښې به حاضرشوم نبی کريمﷺ به املا ونيله اومابه ليکله. تر دې چې زه به دليکلونه فارغ شوم. نو دقران د نقل کولو د بوج نه به ماته داسې محسوسيدله. لکه چې زما پښه ماتيږي. اوګرځيدے پرې نشم. چې کله به زه اوزګار شوم. نو نبی کريمﷺ به فرمائيل.،، واوروه.،، ا نوما به اورولو. که په دې کښې به څه نقص وو. نو نبی کريمﷺ به دهغې اصلاح کوله. اوبيا به يې دخلقومخې ته راوړلو. دوحی دکتابت کار صرف حضرت زيدبن ثابت ﷺ ته نه وو حواله. بلکه نبی کريمﷺ ډير صحابه ﷺ د دې کار دپاره مقررکړی وو. چې هغوی به دضرورت مطابق خپل فرائض سرته رسول. دکاتبين وحی تعداد دځلويښتو پورې شمارکړې شوې دې.[۲۵]

**کاتبين وحی:** خو په دوی کښې مشهوردا حضرات دی. حضرت ابوبکرﷺ، حضرت عمرﷺ. حضرت عثمان ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت أبی بن کعب ﷺ، حضرت عبدالله بن ابی سرح ﷺ، حضرت زبيربن عوام ﷺ، حضرت خالدبن سعيد بن العاص ﷺ، حضرت ابان بن سعيدبن العاص ﷺ، حضرت حنظله ابن الربيع ﷺ، حضرت معقيب بن ابی فاطمه ﷺ. حضرت عبدالله بن ارقم الزهری ﷺ، حضرت شرحبيل بن حسنه ﷺ، حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ، [۲۶] حضرت عامربن فهيرﷺ، حضرت

---

[۲۴] رواه الطبراني رحمه الله في الاسط ورجاله موثقون الدّان فيه وجدت في كتاب خالي فهورجاله [مجمع الزوائد نورالدين الهيثمي ص۱۵۲. ج۱. باب عرض الكتاب بعدإملاله. دارالكتاب العربي. بيروت سن ۱۹۶۷ع

[۲۵] علوم القران. صبحى صالح. ترجمه اردوغلام احمدحريری. ص ۱۰۱. بحواله مستشرق بلشير وغيره ملک برادران لائلپورسن ۱۹۶۸

[۲۶] تر دې ځائې پورې نومونه دفتح الباری. ص۱۸. ج۹. نه اخستې شوی دی

عمروبن العاص ﷺ، حضرت ثابت بن قیس بن شماس ﷺ، حضرت مغیره بن شعبه ﷺ، حضرت خالدبن ولید ﷺ، حضرت معاویه بن ابی سفیان ﷺ، حضرت زیدبن ثابت ﷺ، [۲۷]

**دحضرت عثمان ﷺ طریقه کار** حضرت عثمان ﷺ فرمائی. چې د نبی کریم ﷺ معمول دا وو. چې کله به دقران څه حصه نازله شوه. نونبی کریم ﷺ به کاتب وحی ته دا هدایت کولو. چې دا دے په فلانی سورت کښې د فلانی فلانی آیاتونونه پس اولیکلې شی. [۲۸] دا به دنبی کریم ﷺ دهدایت مطابق لیکلی شو.

**قرآنی آیاتونه به په څه لیکلی شو؟** په هغه زمانه کښې په عربوکښې کاغذ ډیرکم وو. ددې وجې به داقرانی آیاتونه زیات دکانړو په تختو، دخرمنوپه ټکړو، دکهجورو په ښاخونو، د بانړس په ټکړو، د اونوپه پانړواو د څناورو په هډوکو باندې لیکلی شو. خو کله کله دکاغذ ټکړې هم استعمال شوی دی. [۲۹] دغه شان په عهد رسالت کښې د قران کریم یوه نسخه خوهغه وه. چې هغه نبی کریم ﷺ په خپله نګرانۍ کښې لیکلې وه. اګرچې هغه په کتابی شکل کښې نه وه بلکه د متفرقو پانړو په شکل کښې وه. هم دے سره به بعضې صحابه کراموﷺ هم دخپل یاد دې شت دپاره دقران کریم آیاتونه خپل خان سره لیکل اودا سلسله داسلام بالکل د ابتدائی زمانې نه جاری وه. ددې شهادت د دې خبرې نه ملاویږی. چې دحضرت عمر ﷺ خور فاطمه بنت خطاب ﷺ او اوخې حضرت سعید بن زید ﷺ د حضرت عمر ﷺ نه وراندې مسلمانان شوی وو.

.................

## دحضرت ابوبکر ﷺ په عهد کښې جمع قرآن

**دویمه مرحله:** خو د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې چې څومره نسخې لیکلې شوې نه وې. دهغې طریقه دا وه. چې یا خودا په متفرقو څیزونو باندې لیکلې شوې نه وې. څه آیاتونه په څرمنو باندې، څه د اونوپه پانړو باندې، څه په هډوکو باندې، پوره مکملې نسخې نه وې د بعضې صحابوٚ سره یو یوسورت لیکلې شوې وو. د چا سره لس یا پنځه سورتونه. اود چاسره صرف یوڅو آیاتونه. اود بعضې صحابوﷺ سره د ایاتونوسره څه تفسیری جملې هم لیکلې شوې نه وې. په دې وجه حضرت ابوبکر ﷺ په خپل عهدخلافت کښې

[۲۷] ددې حضراتونومونو دپاره اوګورئ زادالمعاد لابن قیم ﷺ. ص۳۰. ج۱.مطبعه میمنیه مصر]
[۲۸] فتح الباری. ص ۱۸. ج۸. بحواله مسنداحمد ﷺ ترمزی ﷺ. نسائی ﷺ ابوداود، ابن حبان ﷺ وحاکم ﷺ وصححه ابن حبان ﷺ والحاکم ﷺ
[۲۹] ایضا. ص۱۱. ج۹. وعمده القاری. ص ۱۷. ج۲۰. اداره الطباعه المنیریه دمشق

دا ضروری اوګنړله. چې د قران کریم دا خورے ورے حصے یوځائې اومحفوظ کړې شی.

**په جنګ یمامه کښې د حافظانو شهادت** هغوی چې ما کارنامه دکومو وجوهاتودکبله په کومه طریقه سرته رسولې وه. دهغې تفصیل حضرت زیدبن ثابت ﷛ داسې فرمائی. چې د جنګ یمامه نه پس حضرت ابوبکر﷛ یوځلې ماته پیغام راولیګه. چې زه ورغلم. نو هلته حضرت عمر﷛ هم موجود وو. حضرت ابوبکر﷛ ماته اوفرمائیل چې عمر﷛ ماته داخبره اوکړه. چې په جنګ یمامه کښې دقران کریم دحافظانو یوه لویه ډله شهیدان شول. اوکه چرې په مختلفو ځائینو باندې دقران کریم داسې حافظان شهیدان کیږی. نو ماسره ویره ده. چې چرته د قران کریم یوه لویه حصه ختمه نه شی. نو زما رائې دا ده. چې تاسو په خپل حکم سره د قران کریم راجمع کولو کارشروع کړئ. نو ما عمر﷛ ته اووئیل. چې کوم کارنبی کریمﷺ نه دې کړې. هغه مونږ څنګه اوکړو؟ عمر﷛ جواب راکړو. په الله قسم چې داکار ډیر بهتر دې. دے نه پس به عمر﷛ ماته باربار هم دغه شان وئیل: تر دې چې زما زړه هم په دې باندې مطمئن شو. او اوس زما رائې هم هغه ده. کومه چې د عمر﷛ ده. ددې نه پس حضرت ابوبکر﷛ ماته اوفرمائیل چې ته ځوان او پوهه سړې یې. زمونږ په تا باندې څه بدګمانی نشته. تا به د نبی کریمﷺ په وړاندې وحی لیکله. نوته دقران کریم آیاتونه ښه اولټوه. اوجمع یې کړه.

**د زید بن ثابت ﷛ د قرآن جمع کولو ته غاړه کیخودل:** حضرت زیدبن ثابت ﷛ فرمائی. په الله قسم! که چرې دے حضراتو ماته د یَو غر راوړلوحکم کړې وې. نو ما باندې به ددې دومره بوج به نه وو. څومره چې د قران د را جمع کولوو. دې نه پس حضرت ابوبکر﷛ ماته باربار هم دا فرمائیل. [چې قرآن راجمع کړه. تر دې چې الله ﷻ زما سینه هغې رائې ته پرانسته کومه. چې د حضرت ابوبکر﷛ او حضرت عمر﷛ رائې وه. نوما قرآنی آیاتونه لټول شروع کړل. اودکهجورو د ښاخونو، دکانړود تختو، او د خلقو دسینونه مې قران کریم راجمع کړو. [۳۰]

**دقرآن په تدوین کښې احتیاط کول:** په دې موقع باندې د قران د جمع کولو په سلسله کښې دحضرت زیدبن ثابت ﷛ په طریقه باندې ځان پوهه کول پکاردی. څنګه چې مخکښې تیرشو. چې هغه په خپله حافظ قران وو. هغه په خپل یاد دې شت سره پوره قران کریم لیکلې شو. دې نه علاوه هم په سوونو حافظان په دغه وخت کښې موجود کښې وو. د هغوئ یې یوجماعت جوړکړې وې. نوهم یې قران کریم لیکلې شو. دغه شان د قران کریم چې کومې مکملے نسخې د نبی کریمﷺ په زمانه کښې لیکلې شوې نه وې. حضرت زید ﷛ دهغې نه هم قران کریم رانقل کولې شو. لیکن هغوی د احتیاط دپاره په هغې کښې

[۳۰] صحیح بخاری ﷫ مع فتح الباری. ص ۸ تا ۱۱ ج۹

صرف په یوه طریقه باندې بسوالے اونکړلو. بلکه ددې تولو ذرایعو نه یې په یووخت کاروا خستلو. اود هغې وخته پورې به یې هیڅ آیت په خپلو صحیفو کښې نه لیکلو. ترڅو چې به ورته په طریقه د تواتر سره تحریری او زبانی شهادتونه ملاو نشو. [چې یقینی دا قرآن پاك دې دے نه علاوه نبی کریم ﷺ چې دقران کریم کوم ایاتونه په خپله نگرانۍ کښې لیکلی وو. هغه د مختلفو صحابو ﷺ سره محفوظ وو. حضرت زید ﷺ هغه یوځاني کړل. چې نورے نسخه هم د هغې نه تیاره کړې شی. نو دا اعلان یې عام اوکړلو. چې د چا سره د قران کریم کوم آیاتونه لیکلی شوی موجود وی. هغه دې حضرت زید ﷺ ته راوړی [۳۱] اوچې یو سړی به ورته د قران کریم یو آیت راوړلو. نو هغه به لاندینو څلورو طریقو سره ددې تصدیق کولو.

① د ټولونه مخکښې به یې خپل یاد دې شت سره د هغې موازنه کوله.

② بیا حضرت عمر ﷺ هم حافظ قران وو. اود روایاتونه ثابته ده. چې حضرت ابوبکر ﷺ هغوی هم په دې کار کښې د حضرت زید ﷺ سره شامل کړې وو. چې کله به چا یو آیت راوړلو. نو حضرت زید ﷺ اوحضرت عمر ﷺ دواړو به په شریکه وصولولو. [۳۲] د حضرت زید ﷺ نه علاوه حضرت عمر ﷺ به هم دخپلے حافظے نه د هغې توثیق کولو.

③ هیڅ لیکلې شوې آیت به ترهغه وخته پورې نشو قبلولے. ترڅو چې به دوو معتبرو گواهانو د دې خبرې گواهي ورنکړله. چې دا آیت د نبی کریم ﷺ په مخکښې لیکلې شوې وو. علامه سیوطی رحمه الله فرمائی. چې په ظاهره د اگواهي په دې خبره هم اخستې شوه. چې دا لیکلې شوې آیت د نبی کریم ﷺ د وفات په کال نبی کریم ﷺ ته پیش شوې وو. اونبی کریم ﷺ ددې خبرې تصدیق کړې وو. چې دا د هغوی د حروف سبعه مطابق دې په کومه چې قران کریم نازل شوې دې [۳۳] د علامه سیوطی رحمه الله ددې خبرې تائید په گنړو روایاتوسره هم کړیدې.

④ دے نه پس به دهغې لیکلی شوی آیاتونو هغې مجموعو سره مقابله کولې شوه. چې هغه مختلفو صحابو ﷺ تیارے کړې وو. [۳۴] امام ابوشامه رحمه الله فرمائی. ددې طریقه کار مقصد دې وو. چې د قران کریم په کتابت کښې د زیاتونه زیات احتیاط اوکړې شی.

---

[۳۱] فتح الباری ص۱۱. ج۹. بحواله ابن ابی داود فی کتاب المصاحف]

[۳۲] ایضا بحواله مذکور

[۳۳] الاتقان. ص ۶۰. ج۱

[۳۴] وانما طلب القران متفرقا لیعارض بالمجتمع عندمن بقی ممن جمع القران لیشترک الجمیع فی علم ماجمع [البرهان فی علوم القران. ص۲۳۸ج۱]

اوصرف په حافظه باندې د بسوالی په ځائې بعینه د هغې آیاتونونه نقل کړې شي. چې د نبی کریمﷺ حضور کښې لیکلی شوی وو. [۳۵]

**صرف حضرت ابوخزیمه رضی الله عنه سره د یو آیت موندلو مطلب** د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په زمانه کښې دجمع قران دا طریقه کارچې په ذهن کښې وی. نو دحضرت زید رضی الله عنه ددې وینا په مطلب ښه پوهه راتلې شي. چې،، د سورة براءة آخری آیت ﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ....الخ﴾ ماته صرف د ابوخزیمه سره ملاوشو،، د هغوی نه علاوه د بل چاسره ملاو نشو. ددې مطلب دا هرګز نه دې. چې دا آیت د حضرت ابوخزیمه رضی الله عنه نه سوا بل هیڅ چاته یاد هم نه وو. یاد بل چاسره لیکلې شوې نه وو. او د هغوی نه علاوه بل چاته دا معلومه نه وه. چې دا د قرآن حصه ده. بلکه مطلب دادې. چې کومو خلقو د نبی کریمﷺ لیکلی شوی د قران کریم مختلف آیاتونه راوړل. په هغې کښې دا آیت د حضرت خزیمه رضی الله عنه نه بغیر بل چا سره ملاو نشو. ګنی دکومې پورې چې ددې آیت د قران د جزئیت تعلق دې. نو دا خبره په تواتر سره ټولوته معلومه وه. اول خوچې کومو په سوونو حافظانو ته قران کریم یاد وو. هغوی ته دا آیت هم یاد وو. دویم چې دقرآنی آیاتو کومې مکملې مجموعې مختلفو صحابوﷺ تیارکړې وې. په هغې کښې هم دا آیاتونه لیکلی شوی وو. خوحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه د ډیراحتیاط دپاره په پورته ذکر شوی ذرائعو باندې د اکتفا کولو په ځائې متفرق طورد لیکلی شوی آیاتونو راجمع کولو ذمه واری هم اخستې وه. د ددې وجې دوی دا آیت د هغه وخته پورې په دې نوے مجموعه کښې اونه لیکلو. ترڅو چې ورته په دې دریمه طریقه هم هغه نه وو ملاو شوې. د نورو آیاتونومعامله خودا وه. چې هغه به حافظانو صحابوﷺ ته یاد وو. اود عهد رسالت په مکملو مجموعو کښې به هم محفوظ وو دے نه علاوه د څوڅوصحابوﷺ سره ځانله ځانله لیکلې شروی هم وو. یو یو آیت به څوڅو صحابوﷺ راوړلو. ددې په عکس د سورة براءة آخری آیت په سوونو صحابوﷺ ته یاد خو وو. او د کوموحضراتوسره چې دقرآنی ایاتو مکملےمجموعے نه وې. هغوی سره لیکلې شوې هم وو. لیکن د نبی کریمﷺ په نګرانۍ کښې بیل لیکلې شوې صرف د حضرت ابوخزیمه رضی الله عنه سره ملاوشو. بل د هیڅ چاسره نه. [۳۶]

**دحضرت زید رضی الله عنه دلسطې خصوصیات** حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په پوره احتیاط سره قرآنی آیاتونه راجمع کړل. هغه یې دکاغذ په صحیفو باندې په مرتب شکل کښې تحریر کړل[۳۷]

---

[۳۵] الاتقان. ص ۶۰ ج ۱

[۳۶] البرهان فی علوم القران. ص ۲۳۴، ۲۳۵. ج ۱

[۳۷] عن سالم قال جمع ابوبکرالقران فی قراطیس] یو روایت داهم دې چې دانسخه هم دچمړے په ټکرو باندې لیکلې شوې وه خوحافظ ابن حجر رحمه الله ددې تردید کړېدې [ایضا]

خو هرسوره په خانله صحيفو کښې اوليکلې شو. د ددې وجې دا نسخه په ډيروصحيفو باندې مشتمله وه. په اصطلاح کښې دے نسخې ته،، ام،، وئيلې شي. اوددې خصوصيات دارو

① په دې نسخه کښې قرآنی آياتونه د نبی کريمﷺ دخودلی شوی ترتيب مطابق وو. ليکن سورتونه مرتب نه وو. هرسورت خانله خانله ليکلې شوې وو. [۳۸]

② په دې نسخه کښې اووه واړه حروف جمع وو. [۳۹]

③ دا نسخه په خط حيری کښې ليکلې شوې وه. [۴۰]

④ په دې کښې صرف هغه آياتونه درج وو. چې د هغې تلاوت منسوخ شوې نه وو.

⑤ ددې دليکلو مقصددې وو. چې يوه مرتبه نسخه د ټول امت په اجماعی تصديق سره تياره شي. چې په ضرورت راتلو کښې دے طرف ته رجوع کولې شي.

دحضرت ابوبکرؓ دا ليکلې شوې صحيفې د هغوی په ژوند کښې هغوی سره نه وې. بيا حضرت عمرؓ سره نه وې. دحضرت عمرؓ دشهادت نه پس دهغوی د وصيت مطابق هغه ام المومنين حضرت حفصه ؓ ته منتقل کړې شوې. [۴۱]

بيا مروان بن حکم په خپل عهد حکومت کښې د حضرت حفصه ؓ نه دا صحيفې اوغوښتلې. نو هغوی د ورکولونه انکار اوکړو. تر دې پورې چې دحضرت حفصه ؓ وفات شوه. نو مروان هغه صحيفې رااوغوښتلې. اوهغه يئ په دې خيال اوسوزولې. چې اوس په دې خبره باندې اجماع منعقد شوې وه. چې د رسم الخط او سورتونو د ترتيب په لحاظ سره دحضرت عثمان ؓ تيار کړې شوی مصاحفو اتباع لازمی ده. اوچې داسې نسخه باقی پاتې نشي. چې ددې د رسم الخط او ترتيب نه خلاف وی. [۴۲]

## دحضرت عثمان ؓ په زمانه کښې د قرآن پاک جمع دريمه مرحله

په ابتداء کښې دامت د اختلاف ويره نه وه چې کله حضرت عثمان ؓ خليفه جوړشو. نو اسلام د عربونه خور شوې وو. او د روم اوايران لرې لرې علاقوته رسيدلې وو. دهرې نوے علاقے خلق چې به مسلمانيدل. نوهغوی به داسلام د دغه مجاهدينويا هغه سوداګرو سره قران کريم زده کولو. دچا په وجه چې به ورته داسلام نعمت حاصل شوې وو. وراندې تاسو لوستی دی. چې قران کريم په اووه حروفو نازل شوې وو. اومختلفوصحابه کرامو ؓ

[۳۸] اتقان. ۶۰ ج ۱

[۳۹] مناهل العرفان. ص۲۴۶. ۲۴۷. ج ۱. وتاريخ القران للكروی. ص۲۸]

[۴۰] تاريخ القران ازعبدالصمد صارم. ص ۴۳. مطبوعه لاهور سن ۱۹۶۳ع

[۴۱] فتح الباری. ص۱۳. ۱۲. ج۹.

[۴۲] ايضا. ص ۱۶

هغه د نبی کريمﷺ نه د مختلفوقراءتونومطابق زده کړې وو. د ددې وجې هرصحابی ﷺ خپلو شاګردانو ته هم د هغې قراءت مطابق قران خودلو. دکوم مطابق چې به هغه د نبی کريمﷺ نه لوستلې وو. دغه شان دقراءتونو دا اختلاف لرې لرې ملکونو ته اورسيده. چې ترڅو چې خلق د دې حقيقت نه خبر وو. چې قران کريم په اووه حروفو نازل شوې وو. ترهغه وخته پورې ددې اختلاف په سبب څه خرابی نه پيدا شوې.

**په قراءت کښې د جګړو پيدا کيدو ويره:** خو چې کله دا اختلاف لرې لرې ملکونو ته اورسيده. اودا خبره په هغوی کښې پوره مشهوره نشوه. چې قران کريم په اووه حروفو نازل شوې دې نو په دغه وخت کښې په خلقو کښې جګړې پيدا شوې. بعضې خلقو به خپل قراءت ته صحيح اود بل قراءت ته غلط وئيل. په دې جهګړوسره يوطرف ته خوداخطره وه چې خلقه به د قران کريم متواتر قراءتونوته دغلط وئيلو سنګينه غلطئ کښې مبتلاشی. دويم داچې سوا دحضرت زيد ﷺ ليکلې شوې يوې نسخې نه چې هغه په مدينه منوره کښې موجوده وه. په پوره عالم اسلام کښې څه داسې معياری نسخه موجودنه وه. چې هغه دپوره امت دپاره حجت جوړشی. ځکه چې نورے نسخې په انفرادی طورباندې ليکلې شوې نه وې. اوپه هغې کښې اووه واړه حروفه دجمع کولو څه اهتمام نه وو. ددې وجې نه ددې جګړو دهواری څه قابل اعتماد صورت نه وو. چې داسې نسخې په پوره عالم اسلام کښې خورے کړې شی. چې په هغې کښې اووه واړه حروفه جمع وی. او د هغې په کتلوسره دافيصله اوکړې شی. چې کوم يو قراءت صحيح اوکوم غلط دې؟

**دحضرت حذيفه بن يمان ﷺ مشوره:** حضرت عثمان ﷺ په خپل دورخلافت کښې دغه عظيم الشان کارنامه سرته رسولې وه.ددې کارنامے تفصيل دحديثو د رواياتو نه دا معلوميږی. چې حضرت حذيفه بن يمان ﷺ آرمينيا او آذربائيجان په محاذ باندې په جهادکښې مشغول وو. هلته هغوی اوکتل. چې په خلقو کښې د قران کريم د قراءتونو په باره کښې جګړې کيدې. مدينے طيبے ته په واپس راتلوسره هغوی نيغ حضرت عثمان ﷺ ته اورسيدل. اوعرض يې اوکړو،، اميرالمومنين ! مخکښې ددې نه چې دا امت د الله په کتاب کښې د يهود اونصاروٰ په شان اختلاف کښې پريوځی. تاسو ددې علاج اوکړئ. حضرت عثمان ﷺ تپوس اوکړو. خبره څه ده؟ حضرت حذيفه ﷺ په جواب کښې اووئيل. چې زه د آرمينيا په محاذ باندې په جهاد کښې شريک ووم. هلته کښې ما اوکتل چې د شام خلق دابی بن کعب ﷺ قراءت وائی. هغه اهل عراق نه دې اوريدلې. اواهل عراق د عبدالله بن مسعود ﷺ قراءت لولی. دا اهل شام نه دې اوريدلې. ددې په نتيجه کښې يوبل ته کافر وائی.

**دحضرت عثمان ﷺ احساس:** حضرت عثمان ﷺ په خپله هم ددې خطرے احساس مخکښې نه

محسوس کړې وو. هغوی ته دا اطلاع ملاؤ شوې وه. چې په خپله مدینه طیبه کښې داسې واقعات راپیښ شوی دی. چې دقران کریم یومعلم خپلو شاګردانو ته د یو قراءت مطابق قراءت اولوستو اوبل معلم دبل قراءت مطابق. دغه شان د مختلفو استاذانو شاګردان به چې کله خپلو کښې ملاویدل. نو په هغوی کښې به اختلاف پیدا کیدو او خو خله دا اختلاف د استاذانو پورې رسیدلې وو. اوهغوی به هم د یوبل قراءت ته غلط ونیل چې حضرت حذیفه رضی الله عنه هم دے خطرے طرف ته توجه ورکړه. نوحضرت عثمان رضی الله عنه جلیل القدر صحابه رضی الله عنهم راجمع کړل. دوی نه یې مشوره واخستله. او وې فرمائیل چې ماته دا خبر ملاؤ شوې دې. چې بعضې خلق یو بل ته داسې قسم خبرې کوی چې زما قراءت ستا د قراءت نه بهتر دې. اودا خبره دکفر حد ته رسیدے شی. نوستاسو خلقو په دې باره کښې څه رائې ده؟ صحابورضی الله عنهم دحضرت عثمان رضی الله عنه نه تپوس اوکړو. چې ستاسو څه رائې ده؟ د،، حضرت عثمان رضی الله عنه اوفرمائیل چې،، زما رائې داده. چې مونږ ټول خلق په یو مصحف باندې جمع کړو. چې هیڅ اختلاف او افتراق راپیښ نشی صحابورضی الله عنهم دا رائې خوښه کړه. اودحضرت عثمان رضی الله عنه تائید یې اوکړلو.

**دتدوین قرآن دپاره خطبه ونیل:** حضرت عثمان رضی الله عنه خلق راجمع کړل. یوه خطبه یې اوونیله اوپه هغې کښې یې اوفرمایل،، تاسو خلق په مدینه طیبه کښې سره د دے چې ماته نزدے اوسیږئ. د قران کریم د قراءتونو په باره کښې د یو بل تکذیب اود یو بل نه اختلاف کوئ دې نه ظاهره ده. چې کوم خلق مانه لرې دی. هغوی خو به نور هم زیات تکذیب اواختلاف کوی. نو ټول خلق ملاؤ شئ. او یوه داسې نسخه تیاره کړئ. چې هغه د ټولو دپاره واجب الاقتداء وی. دې غرض دپاره حضرت عثمان رضی الله عنه حضرت حفصے رضی الله عنها ته پیغام اولیګلو. چې تاسوسره [د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د زمانې] کومې صحیفې موجود دی. هغه مونږ ته راولیګه. مونږ به هغه صحیفوته نقل کړو. تاسوته به یې واپس کړو حضرت حفصه رضی الله عنها هغه صحیفې حضرت عثمان رضی الله عنه ته راولیګلے.

**د دولسوصحابورضی الله عنهم انتخاب:** حضرت عثمان رضی الله عنه د څلورو صحابورضی الله عنهم یو جماعت جوړ کړه. چې په حضرت زید رضی الله عنه، حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه، حضرت سعید بن العاص رضی الله عنه او حضرت عبدالرحمن بن حارث بن هشام رضی الله عنه باندې مشتمل وو. دا جماعت په دې کار باندې مامور شو. چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د صحیفو نه نقل اوکړی. او یو څو داسې صحیفې تیارے کړی. چې په هغې کښې سورتونه هم مرتب وی. په دې څلورو صحابو رضی الله عنهم کښې صرف حضرت زید رضی الله عنه انصاری وو. اوباقی درې واړه حضرات قریشی وو. د ددې وجې حضرت عثمان رضی الله عنه هغوی ته اوفرمائیل،، چې کله ستاسو اود حضرت زید رضی الله عنه د قران په څه حصه کښې اختلاف راشی. [یعنی په دې کښې اختلاف راشی. چې

كوم يو حرف څنګه اوليكلې شي؟] نو دا د قريشو د ژبې مطابق اوليكئ. ځكه چې قران كريم هم د دوى په ژبه كښې نازل شوې دې بنيادى طور دا كار د ذكر شوى څلورو حضرا نو په زمه مقرر كړې شوې. خو بيا يئ نورو صحابوٴ ﷺ هم د دوى د مدد دپاره دوى سره شامل كړل.

**د تدوين قرآن د زمه وارانو كارنامې:** دے حضراتو د قران د كتابت په سلسله كښې دا لاندې كارونه اوكړل.

**سورتونوته ترتيب وركول:** دحضرت ابوبكر ﷺ په زمانه كښې چې كومه نسخه تياره شوې وه. په هغې كښې سورتونه مرتب نه وو. بلكه هر سورت جدا جدا ليكلې شوې وو. دےحضراتو ټول سورتونه په ترتيب سره په يومصحف كښې اوليكل. [۴۳]

**په يورسم الخط ليكل:** دقران كريم آياتونه يئد اسې اوليكل. چې ددې په رسم الخط كښې ټول متواتر قراءتونه راجمع شي. د ددې وجې په دې باندې نه نقطے اولګولې شوې. اونه حركات [زير، زور، پيښ] چې دا د ټولومتواتر قراءتونو مطابق لوستلې شي. مثلاً ﴿ننشزها اوليكلې شو﴾ چې دا ﴿ننشرها﴾ او ﴿ننشزها﴾ دواړه شان لوستلې شي. ځكه چې دا دواړه قراءتونه صحيح دى. [۴۴]

**د اجتماعى تصديق اووه نسخې تيارول:** ترهغه وخته پورې چې كومه مكمله معيارى نسخه د پوره امت په اجتماعى تصديق سره مرتبه شوې وه صرف يوه وه. دېحضراتو ددې مرتب شوى مصحف د يو نه زيات نقلونه تياركړل. عام طور باندې مشهوره دا ده. چې حضرت عثمان ﷺ پنځه مصاحف تياركړى وو. خو د ابوحاتم سجستانى ﷫ ارشاد دې چې ټولې يئ اووه نسخې تيارې كړې وې. چې په دې كښې يوه يوه مكه مكرمه، شام، يمن، بحرين، بصرې، اوكوفې ته اوليګلې شوې. اويوه مدينے طيبے كښې محفوظ كړې شوه. [۴۵]

**د قرآن په جمع كښې دصحابو ﷺ احتياط:** د ذكرشوى كارونو دپاره دے حضراتو بنيادى طور خو هم دغه صحيفې مخې ته كيخودې نه وې. چې دحضرت ابوبكر ﷺ په زمانې كښې ليكلې شوې نه وې. خو دې سره سره د زيات احتياط دپاره هم هغه طريقه اختياركړله. چې كومه يئ د حضرت ابوبكر ﷺ په زمانه كښې اختياركړې وه. چې د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې كوم متفرق تحريرونه د مختلفوصحابو ﷺ سره محفوظ وو. هغه يئ دوباره را اوغوښتل. اود هغې سره يئ د سرنه مقابله اوكړله. دا نوے نسخې يئ تيارے كړې.

**د حضرت خزيمه انصارى سره د آيت مولدل:** دے ځل دسورة احزاب يو آيت ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا

[۴۳] مستدرک حاکم ﷫. ص۲۲۹. ج۲
[۴۴] مناهل العرفان. ص ۲۵٤. ۲۵۳. ج۱
[۴۵] صحيح بخارى فتح البارى. ص۱۷. ج۹

عَاهَدُوااللّٰهَ عَلَيْهِ﴾ ليكلې شوې صرف دحضرت خزيمه بن ثابت انصارى رضي الله عنه سره ملاوشو وراندې مونږ ليکلی وو. چې ددې مطلب دا نه دې. چې دا آيت بل هيڅ چاته ياد نه وو خکه چې حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه فرمائي. [فقدت آية من الاحزاب حين نسخنا المصحف قد كنت أسمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقرابها، فالتمسناها فوجدناها مع خزيمة بن ثابت الأنصاري رضي الله عنه] د مصحف ليکلو په وخت ماته د سورة احزاب آيت ملاؤ نشو. کوم چې به ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلو. مونږ دا تلاش شروع کړه. نو هغه دخزيمه بن ثابت انصارى رضي الله عنه سره وو دېنه ښکاره ثابته شوه. چې دا آيت حضرت زيد رضي الله عنه اونورو صحابوﷺ ته په ځه شان ياد وو. [۴۶] دغه شان ددې مطلب دا هم نه دې چې دا آيت سره په بل ځائې کښې ليکلې شوې نه وو. ځکه چې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه په زمانه کښې کومې صحيفې اوليکلې شوې ظاهره ده. چې دا آيت په هغې کښې موجود وو. هم دغه شان چې د نوروصحابو رضي الله عنهم سره دقران کريم کومې ځان له ځان له ليکلې شوې نسخې موجود نه وې. په هغې کښې دا آيت هم شامل وو. خو چې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه د زمانې په شان دا ځل هم هغه ټولې متفرق تحريرونه راجمع کړې شوى وو. چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره ليکلى شوى وو. ځکه به حضرت زيد رضي الله عنه وغيره هيڅ يو آيت په هغې مصاحفو کښې ترهغه وخته پورې نه ليکلو. چې ترڅو به په هغه تحريرونو کښې ملاؤ نشو. خود سورة احزاب دا آيت بغير د خزيمه بن ثابت رضي الله عنه نه بل هيڅ چاسره جدا ليکلې شوې ملاؤ نشو.

**انفرادي نسخې سوزول:** د قران کريم دا ګڼړے نسخې د تيارولونه پس حضرت عثمان رضي الله عنه هغه ټولې انفرادى نسخې اوسوزولې. چې د مختلفو صحابو رضي الله عنهم سره موجود نه وې. چې رسم الخط، منلې شوى قراءتونواو د سورتونو د ترتيب په اعتبارسره ټول مصاحف يو شان شى. او په دې کښې هيڅ اختلاف باقى پاتې نشى.

دحضرت عثمان رضي الله عنه دے کارنامے ته پوره امت د استحسان په نظرسره اوکتل. او ټولو صحابو رضي الله عنهم په دې کار کښې د دوى تائيد اوحمايت اوکړلو.

صرف عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته په دې معامله کښې لږ خفګان وو، چه دهغې د تفصيل دا موقع نه ده. [۴۷]

حضرت على رضي الله عنه فرمائي. [لاتقولوا فى عثمان رضي الله عنه إلا خيراً فوالله مافعل الذي فعل فى المصاحف إلاعن ملامنا] [۴۸]،، د عثمان رضي الله عنه په باره کښې هيڅ يوه خبره د دوى د خير نه

---

[۴۶] صحيح بخارى مع فتح البارى. ص۱۷. ج۹

[۴۷] د زياتى تفصيل دپاره اوګورئ ``علوم القرآن،، د احقر مفصّل کتاب.

[۴۸] فتح البارى. ص۱۵. ج۹. بحواله ابى داودٌ بسند صحيح

بغير مکوئ. ځکه چې په الله قسم هغوی چې د مصاحفو په معامله کښې کوم کار اوکړلو. هغه يئ زمونږ د ټولو په موجودګئ کښې[ اوپه مشوره سره] اوکړو.

## د تلاوت د آسانتيا اقدامات

**څلورمه مرحله:** دحضرت عثمان ؓ ذکرشوی کارنامو نه پس دامت په دې باندې اجماع ده. چې قران کريم د رسم عثمانی په خلاف په بله طريقه ليکل جائز نه دی. ځکه ددې نه پس ټول مصاحف هم د هغې مطابق اوليکلی شو. اوصحابوؓ اوتابعينو ؒ د مصاحف عثمانی نقلونه تيارکړل. او د قران کريم يئ په لويه پيمانه باندې اشاعت اوکړو. خو لاترهغه وخته پورې د قران کريم نسخې د نقطو اود زير زور پيښ نه خالی وے. د ددې وجې عجميانو [چې عرب نه وی ] ته به د دې تلاوت ګران وو. نوکله چې اسلام په عجمی ملکونو کښې نورهم زيات خورشو. ددې خبرې ضرورت محسوس شو. چې په دې کښې د نقطو اوحرکاتو اضافه اوکړې شی. چې ټول خلق په آسانتيا سره ددې تلاوت کولې شی. ددې مقصد دپاره مختلف اقدامات اوکړې شو. چې مختصر تاريخ يئ دادې.

**نقطې** په عربو کښې په اول کښې په حروفو باندې د نقطو لګولو رواج نه وو. بلکه د ليکونکويه خالی د حروفو په ليکلو اکتفاکو. له. اولوستونکی به ددې طرز دومره بلد وو. چې هغوی ته به د بې نقطو تحريرلوستلوکښې ګرانی نه وه. د سياق وسباق په مدد سره به په مشتبه حروفوکښې امتياز هم په آسانئ سره کيدې شو.

خاص طور سره د قرآن کريم په معامله کښې د څه شك شبهې امکان ځکه نه وو چه ددې د حفاظت مدار په کتابت باندې نه وو بلکه په حافظه باندې وو، او حضرت عثمان ؓ چه کومې نسخې د اسلامی ملکونو مختلفو حصو ته ليږلې وې دهغې سره ئې قاريان هم ليږلی وو، چه دوی ئې هغوی ته اوښائی.

په دې کښې روايات مختلف دی چې د قران کريم په نسخه باندې د ټولونه مخکښې چا نقطې لګولی دی؟ بعض روايات دا وائی. چې دا کارنامه د ټولونه مخکښې ابوالاسود دوولی ؒ کړې ده.[49] دبعضې قول دادې چې هغوی دا کار دحضرت علی ؓ د تلقين لاندې کړې وو.[50] او بعضو وئيلې دی،چې د کوفې ګورنرزياد بن ابی سفيان ؒ په هغوی باندې داکارکړې وو[51] يوروايت داهم دی.چې داکارنامه حجاج بن يوسف دحسن بصری ؒ، يحی بن يعمر او د نصر بن عاصم ليثی ؒ په ذريعه پوره کړه.[52]

---

[49] البرهان فی علوم القران. ص ۲۵۰. ج۱. والاتقان. ص۱۷۱. ج۲. نوع۷۶]

[50] صبح الاعشی. ص۱۵۵ج۷۳

[51] البرهان. ص۲۵۰. ۲۵۱. نوع ۱٤

[52] تفسيرالقرطبی. ص ۶۳ ج۱. وتاريخ القران للکردی ؒ. ص ۱۸۱

**حرکات:** د نقطو په شان په شروع کښې په قران کريم باندې حرکات [ زير. زبر. پيښ] هم نه وو. او په دې کښې هم د رواياتو ډيراختلاف دې چې د ټولونه مخکښې چا حرکات لګولی دی. د بعضې حضراتو وينا ده. چې داکارد ټولونه مخکښې ابوالاسود دولی رحمه الله کړې وو. بعضې وائی چې دا کار حجاج بن يوسف په يحی بن يعمر رحمه الله اونصر بن عاصم ليثی رحمه الله باندې کړېدې. [۵۳] په دې باره کښې چې ټولو روايات باندې چې نظر واچولې شی نو داسې معلوميږی چې حرکات د ټولونه مخکښې ابوالاسود دولی رحمه الله وضع کړی دی. ليکن دا حرکات داسې نه وو. لکه څنګه چې نن صبا مشهوردی. بلکه د زور دپاره په حرف باندې يوه نقطه [-ـَ-] د زير دپاره دحرف لاندې يوه نقطه[-ـِ-] د پيښ دپاره دحرف مخې ته يوه نقطه[---] اود تنوين دپاره دوه نقطې[-ـً-]يا[-ـٍ-] يا [--] مقرر کړې شوې نه وې. [۵۴] روستو خليل بن احمد رحمه الله د همزې او تشديد علامتونه مقرر کړل. [۵۵] دې نه پس حجاج بن يوسف په يحی بن يعمر، نصر بن عاصم او حسن بصری رحمهم الله باندې په يو وخت کښې په قران کريم باندې د نقطو اوحرکاتو دواړه لګولو حکم اوکړلو. په دې موقع باندې دحرکاتو د اظهار دپاره د نقطو په ځائې د زير زبر پيښ موجوده صورتونه مقرر کړې شو. چې د حروفو ذاتی صورتونو سره ددې التباس راپيښ نه شی. والله سبحانه ﷻ اعلم.

**احزاب يا منزلونه:** د صحابوؓ اوتابعينو رحمهم الله معمول وو. چې هغوی به په هره هفته کښې يو قران کريم ختمولو. ددې مقصددپاره هغوی روزانه د تلاوت يومقدار مقررکړې وو. چې ورته ''حزب'' يا،، منزل،، وئيلې شی. دغه شان قران کريم ټول په اووه احزابو باندې تقسيم کړې شوې.

**اجزاء يا پارې:** نن صبا قران کريم په ديرشو اجزاء باندې تقسيم دې. چې ورته ديرش پارې وئيلې شی. دپارو دا تقسيم د معنی په اعتبارسره نه دې بلکه ماشومانوته د لوستلو دپاره د آسانتيا په خيال سره په ديرشو برابروحصو باندې تقسيم شوې دې څکه چې بعضې وخت بالکل په نيم ګړې خبره باندې پاره ختميږی. په يقين سره دا وئيل ګران دی. چې دا د ديرشو پارو تقسيم چاکړېدې؟ د بعضې حضراتودا خيال دې. چې حضرت عثمان ؓ مصحفونه رانقل کولوپه وخت دا په ديرشو مختلفو صحيفو کښې ليکلې وو. نو دا تقسيم هم د هغوی د زمانې دې [۵۶] خو د متقدمينو په کتابونوکښې ددې څه

[۵۳] تفسيرالقرطبی. ص ۶۳ ج ۱

[۵۴] صبح الاعشی. ص ۱۶۰. ج ۳. وتاريخ القران للکردی. ص ۱۸۰

[۵۵] الاتقان. ص ۱۷۱. ج ۲. صبح الاعشی. ص ۱۶۱. ج ۳

[۵۶] تاريخ القران ازمولاناعبدالصمدصارم. ص ۸۱

دلیل احقرته ملاؤ نشو. البته علامه بدرالدین زرکشی رحمه الله لیکلی دی. چې دقران کریم دیرش پارے مشهورے رارواندی. اود مدارسو په قرآنی نسخوکښې ددې رواج دې. [۵۷] په ظاهره داسې معلومیږی چې دا تقسیم د صحابوﷺ د زمانې نه پس د تعلیم دسهولت دپاره شوې دې والله اعلم.

اخماس اواعشار: دقرون أولى په قرآنی نسخوکښې د یوبل علامت رواج وو. او هغه دا چې د هر پنځو آیاتونو نه پس به یې[په حاشیه باندې ] لفظ د ،، خمس،، اود هر لسو آیاتونو نه پس لفظ د ،،عشر،، یا ،، ع،، لیکلو. اولنی قسم علامتونو ته،، اخماس،، او دویم قسم علامتونو ته،، اعشار،، وئیلی شو. [۵۸] په متقدمینو عالمانوکښې دا اختلاف هم وو. چې بعضې حضراتویه دا علامتونه جائز اوبعضې مکروه ګنړل. [۵۹] په یقینی طور دا وئیل هم ګران دی. چې دا علامتونه د ټولونه مخکښې چا لګولی دی؟یوقول دادې چې ددې موجد حجاج بن یوسف وو.او دویم قول دادې. چې د ټولو نه مخکښې عباسی خلیفه مامون د دې حکم ورکړې وو. [۶۰] خو دا دواړه اقوال څکه ټیك نه معلومیږی. چې په خپله د صحابوﷺ په زمانه کښې د ،،اعشار،،تصور ملاویږی. مسروق رحمه الله فرمانی چې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به په مصحف کښې د ،،اعشار،،نشان لګول مکروه ګنړلو.

رکوع: یوبل علامت چې رواج ئے روستو شوې وو. اوترنن ورځې پورې جاری دې. د رکوع علامت دے او ددې تعین د معنی په لحاظ سره شوې دې یعنی کوم ځائې چې دکلام سلسله ختمه شوه. هلته کښې د رکوع علامت[ په حاشیه باندې،، ع،، ] جوړکړې شو. د احقر د لټون باوجود په مستنده طریقه دا معلومه نشوه. چې د رکوع شروع چا اوپه کومه زمانه کښې کړې وه؟ د بعضې حضراتوخیال دې. چې ددې رکوعاګانو تعین هم د حضرت عثمان رضي الله عنه د زمانې نه شوې وو. [۶۱] د روایاتونه ددې دعوی دلیل احقرته ملاؤ نشو. خو دا خبره تقریباً یقینی ده. چې ددې علاماتو مقصد د آیاتونو د داسې درمیانه مقدار تعین دې. چې په یورکعت کښې اولوستلې شي. او دې ته رکوع څکه وائی. چې په مانځه کښې دے ځائې ته په رسیدلو رکوع اوکړې شی. مشائخو قران کریم په پنځه سوه اوڅلویښت رکوع ګانو تقسیم کړیدې. [۶۲] اوپه مصاحفو کښې یې ددې علامتونه

[۵۷] البرهان. ص ۲۵۰. ج۱ومزیداوګورئ. مناهل العرفان. ص۴۰۲. ج۱

[۵۸] مناهل العرفان. ص ۴۰۳. ج۱

[۵۹] الاتقان. ص۱۷۱. ج۲. نوع۷۵

[۶۰] البرهان. ص۲۵۱. ج۱

[۶۱] تاریخ القران ازمولانا عبدالصمد صارم. ص۸۱

[۶۲] په فتاوی عالمګیریه کښې د مشائخ بخارا په حوالې سره د رکوع ګانو شمار ۵۴۰ .....

جوړ کړی دی. چې په [ تراویحو کښې] دقران کریم ختم په اوویشتمه شپه اوکړئ شي.
رموزاوقاف د تلاوت اوتجوید دسهولت دپاره یوبل مفید کار دا شوې دې چې په مختلفو قرآني جملو باندې داسې اشارې ته لیکلی شوی دی. چې د هغې نه دا معلومیږي. چې دلته کښې وقف کول [ساه اخستل ]څنګه دی؟ دے اشارې تو ته،، رموزاوقاف،، وائي. او ددې مقصددې دې. چې یوغیرعربي دان انسان هم چې کله تلاوت کوي. چې په صحیح مقام باندې وقف کولې شي. او په غلط ځائې باندې ساه اخستلو سره په معنی کښې څه تبدیلي رانشي. په دې کښې زیات رموز د ټولونه مخکښې علامه ابوعبدالله محمد بن طیفور سجاوندی رحمه الله مقرر کړی دی. [63] د هغې رموزو تفصیل دادے:
[ط] دا د،، وقف مطلق،، مخفف دې. اود دې مطلب دادې. چې دلته کښې خبره پوره شوې ده.
ددې وجې دلته کښې وقف کول بهتر دی.
[ج] داد ''وقف جائز'' مخفف دې. اوددې مطلب دادې چې دلته کښې وقف کول جائزدی.
[ز] دا د،، وقف مجوز،، مخفف دې. د دې مطلب دادې. چې وقف کول خو ټیک دی. خو غوره دا ده. چې وقف اونه کړی شي.
[ص] داد،، وقف مرخص،، مخفف دې. ددې مطلب دادې. چې دلته خبره پورشوې نه ده. خو جمله اوږده شوې ده. ددې وجې ساه اخستلو دپاره د نورومقاماتوپه ځائې دلته وقف کول پکاردی. [64]
[م] داد،، وقف لازم،،'مخفف دې. د دې مطلب دادې. که دلته کښې وقف اونه کړی شي نو د آیت په معنی کښې د فحش غلطئ امکان دې. نو دلته وقف کول زیات بهتر دی. بعضې حضرات دے ته،، وقف واجب،، هم وائي. خو ددې نه مراد فقهي واجب نه دې چې په پریخودو کښې به یئ ګناه وي. بلکه مقصد صرف دادې. چې په ټولو وقفونو کښې په دې ځائې کښې وقف کول دیرزیات بهتر دې. [65]

.........خودلې شوې دې خو چې مونږ په خپله دقران کریم په مروجه نسخوکښې شمیراوکړو. نو د رکوع ګانو شمار ۵۵۸ اوختلو. او بعضې حضراتو مونږته په خط کښې اولیکل. چې دهغوی د شمیرمطابق درکوع ګانو ټول تعداد ۵۶۷ دې. کیدې شي چې درکوع په علامت لګولو کښې په مختلفو نسخوکښې څه اختلاف راغلې وي. والله اعلم از ناشر ۱۶. ۱۲. ۸۳هـ

[63] النشرفي القراآت العشرلابن الجوزی رحمه الله. ص ۲۲۵. ج۱

[64] د دې څلوروړموزودپاره اوګورئ المنح الفکریه شرح المقدمه الجزریه للملا علی قاري. ص ۶۳ مطبوعه ابناء غلام رسول

[65] النشر. ص ۲۳۱. ج۱

[لا] داد ،، لا تقف،، مخفف دي. د دې مطلب دا دي چې،، دلته مه اودريږه،، خو ددې منشاء دا نه ده. چې دلته کښې وقف کول ناجائزدي. بلکه په دې کښې ډيرمقامات داسې دي. چې هلته په وقف کولوکښې څه باك نشته دي. اوددې نه روستنې لفظ نه شروع کول هم جائزدي. نو د دې صحيح مطلب دادي. که دلته کښې وقف اوکړې شي. نوبهتره دا ده چې دا دوباره واپس اووئيلې شي. د راروان لفظ نه شروع کول ښه خبره نه ده. [۶۶] ددې رموزاتو په باره کښې په يقين سره دا ثابته ده. چې دا د علامه سجاوندی رحمه الله وضع شوی دی. ددې نه علاوه هم بعضې نور رموزات هم په قران کريم کښې موجود دی. مثلاً

[مع] دا د،، معانقه،، مخفف دي. دا علامت هغه ځائې کښې ليکلې شی. کوم ځائې کښې چې په يوايت کښې دوه تفسيرونه ممکن وی. د يو تفسيرمطابق به وقف يوځائې کښې کولې شی. اود بل تفسيرمطابق به په بل ځائې کښې. نو په دې کښې په يو ځائې کښې وقف کولې شی. خو يوځائې د وقف کولونه پس دويم ځائې کښې وقف کول درست نه دی. مثلاً ﴿ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ ۚ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ﴾ په دې کښې که په،، التورة،، باندې وقف اوکړی. نو په،، الانجيل،، باندې وقف کول درست نه دی. اوکه چرې په،، الانجيل،، باندې وقف کول وی نوپه،، التورة،، باندې درست نه دې. اوکه په دواړو ځايونوکښې وقف نه کوی. نو ټيك ده. ددې يو نوم،، مقابله،، هم دې. او ددې د ټولونه رومبې خودنه امام ابوالفضل رازی رحمه الله کړې ده. [۶۷]

[سکته] دا د،، سکتې،، علامت دې. ددې مقصددې دې. چې دےځائې کښې اودريدل پکار دی. خوساه بنده نشی. دا عموماً هغه ځائې کښې راوځی. کوم ځائې کښې چې په ملاويدلوسره په معنی کښې د غلطۍ ويره وی.

[وقفه] په دې ځائې کښې د،، سکتې،، نه څه قدرې زيات اودريدل پکاردی. خوچې ساه دلته کښې هم بنده نه شی.

[ق] دا د،، قيل عليه الوقف،، مخفف دې. مطلب دادې. چې د بعضې حضراتو په نزد دلته کښې وقف دے. او د بعضو په نزد نشته.

[قف] دا لفظ،، قف،، مخفف دې. ددې معنی ده اودريږه. او دا هغه ځائې کښې راځی. کوم ځائې کښې چې لوستونکی ته داخيال راتلې شی چې دلته کښې وقف کول ټيك نه دې.

[صلے] داد،، الوصل اولی،، مخفف دې. د دې معنی ده چې په،، ملاوهلوسره وئيل بهتر دی،،

---

[۶۶] النشر۲۳۳

[۶۷] النشر. ص ۲۳۷. ج ۱. او. الاتقان. ص ۸۸ ج ۱

[صل] داد،، قد یوصل،، مخفف دي. یعنی دلته کښې بعضې خلق اودریږی. او بعضې په ملاویدلو سره وئیل خوښوی. دا رموزات زیات مشهوردی. خو احقرته دا معلومه نشوه. چې ددې واضع او موجدڅوک دي؟

## دقران کریم طباعت

**پنځمه مرحله**: ترڅو چې پریس [چې‌اپه خانه] ایجاد شوې نه وو. د قران کریم ټولې نسخې په قلم لیکلې شوې. اوپه هردورکښې د داسې کاتبانو یولوئې شمیر موجود پاتې شوې دې چې دکتابت قران نه بغیر یې‌هیڅ مشغله نه وه. د قران کریم حروف د بهترنه بهتر اندازکښې لیکلودپاره چې مسلمانانوکوم محنتونه کړی دی. اوځنګه چې یې دے عظیم کتاب سره دخپلےکلکےمینے اظهار کړیدې. ددې یولوئې مفصل اوزړه راښکونکې‌تاریخ دې. چې تصنیف ورله پکاردې. دلته کښې ددې د تفصیل موقع نه ده. بیاچې کله پریس ایجاد شو. نو د ټولونه مخکښې د هیمبرګ په مقام باندې په کال [۱۱۱۳هـ] کښې قران کریم چاپ شو. چې د هغې یوه نسخه تر اوسه پورې په دې رالکتب المصریه کښې موجود ده. دې نه پس ګڼړو مستشرقینو دقران کریم نسخې چاپ کړې. خو په اسلامی دنیاکښې دے ته قبولیت حاصل نشو. دې نه پس په مسلمانانوکښې د ټولونه مخکښې مولاے عثمان دروس ښارپه سینټ پیټرس برګ کښې په کال [۱۷۸۷عیسوی] کښې دقران کریم یوه نسخه چاپ کرلهٔ. دغه شان په قازان کښې هم یوه نسخه چاپ شوه. په کال [۱۸۲۸عیسوی ] کښې د ایران په تهران نومے ښارکښې قران کریم په کاڼړی باندې چې‌اپ کړې شو. بیا ددې چاپ شوې نسخې په ټوله دنیاکښې عامې شوې. [۶۸]

**علم تفسیر**: اوس څه ضروری معلومات دعلم تفسیرپه باره کښې پیش خدمت دی، په عربې ژبه کښې د،، تفسیر،، لفظی معنی ،، دکهولاؤیدو،، [سپړدو] ده اوپه اصطلاح کښې علم تفسیر هغه علم ته وائی په کوم کښې چې دقرآن کریم معانی بیانیږی، اوددې احکام اوحکمتونه واضحه کیږی [البرهان] په قرآن کریم کښې نبی علیه السلام ته خطاب کولو سره ارشاد دې ـ وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ [۱۶: ۴۴]

اومونږقرآن په تاباندې نازل کړوددې دپاره چې ته خلقوته هغه خبرې واضاحت سره بیان کړې کومې چې دهغوی طرف ته رالیکلې شوی دی.،

نیز دقرآن کریم ارشاد دې ـ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ [۳: ۱۶۴]

[۶۸] دطباعت دتاریخ د پاره اوګورئ تاریخ القران للکردی رحمه الله. ص ۱۸۶. او. علوم القران ډاکټرصبحي صالح اردوترجمه ازغلام احمد حریری. ص۱۴۲]

..بيشکه الله تعالى په مسلمانانوباندې لوئې احسان فرمائيلې دې چې دهغوی په مينځ کښې هم دهغوی نه يو رسول رواستولو، کوم چې دهغوی په وړاندې دالله تعالى آياتونه تلاوت کړی، اوهغوی پاک صاف کړی، اوهغوی د الله دکتاب اودحکمت دخبرو تعليم ورکړی -،،

نونبي عليه السلام په صحابه کراموته نه صرف دقرآن کريم الفاظ نه ښودل، بلکه ددې پوره تفسيريه ئې بيانولو، هم داوجه ده چې صحابه کراموته به په يو يوسورت لوستلو کښې سوسو کاله لګيدل، دکوم تفصيل به چې انشاء الله وړاندې راشي -

ترکومې پورې چې نبی کريم ﷺ په دنياکښې تشريف فرماوو هغه وخت پورې دکوم آيت تفسير معلومول څه ګنران نه وو، صحابه کراموته به چې په کوم ځائې کښې څه ګنرانی پيښيدله نوهغوی ته به ئې رجوع کوله اوهغوی نوبه ورته تسلی بخش جواب ملاؤشو، ليکن دهغوی [ﷺ] نه پس ددې خبرې ضرورت وو چې تفسيرلره ديومستقل علم په صورت کښې محفوظ کړې شی چې دامت دپاره دقرآن کريم الفاظوسره سره ددې صحيح معنې هم محفوظه شی، او دملحد اوګمراه خلقودپاره په دې کښې دمعنوی تحريف څه ګنجائش باقی پاتې نشی، نودالله تعالى په فضل اوکرم اودهغه په توفيق سره دې امت دا کارنامه داسې ښائسته اوخوبې سره انجام کړه چې نن مونږداخبره بغير دڅه تردد وائيلې شوچې دالله تعالى ددې آخری کتاب صرف الفاظ محفوظ نه دی بلکه ددې هغه صحيح تفسيراوتشريح هم محفوظه ده کومه چې حضوراکرم ﷺ اودهغوی دجانثار صحابه کرامو په ذريعه مونږ ته رارسيدلې ده -

**دقرآن د تفسير ماخذ:** علم تفسيرلره دې امت څنګه څنګه محفوظ کړې دې؟ په دې لار کښې دوی څنګه څنګه مشقتونه اوچت کړی دی؟ اودا جدوجهد دڅومره مراحلونه تيرشوې دې؟ ددې يو اوږد اوخوندور تاريخ دې دکوم چې داموقع نه ده، [۲۹] ليکن دلته دا مختصرا ښودل دی چې دتفسيرقرآن ماخذ څه څه دی؟ اوپه علم تفسيرباندې کوم بيشماره کتابونه په هرژبه کښې ملاويږی هغوی دقرآن کريم په تشريح دکوموکومو سرچيشمونه استفاده کړې ده، دا سرچيشمې ټولې شپږ [۶] دی

① **اولنې ماخذ په خپله قران کريم د بل آيت په رڼا کښې تفسير:** د قرآن د تفسير اولنې ماخذ پخپله قرآن کريم دې يعنې ددې آياتونه بعضې وخت د يو بل تفسير کوی. يو ځائې يوه خبره په مبهم انداز کښې بيان شوې وی. او په بل ځائې کښې هغه ابهام لرې کړې شوې وی.

مثلاً په سورت فاتحه کښې ارشاد دې چې ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾

[۲۹] ددې دپاره په علوم القرآن باندې داحقر مفصل کتاب ملاحظ کړئ -

فاتحه﴾ مونږ ته نیغه لار اوښایه. دهغه خلقو لاره چې تا پرې نعمت کړیدې،، دلته کښې خبره واضحه کړې شوې نه ده. چې په کومو خلقو انعام شوې دې د هغوی نه کوم خلق مراد دی. خو په بل ځائې کښې ارشاد دې ﴿فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ: نساء﴾ داهغه خلق دی. چې په چاالله ﷻ انعام کړیدې. یعنی پیغمبران صدیقان شهیدان او نیکان خلق.

نو مفسیرین کرام چې کله دکوم آیت تفسیرکوی نودټولونه ړومبې داګوری چې ددې آیت تفسیر په قرآن مجید بل ځائې کښې موجود دې که نه؟ که چرې موجود وی نودټولونه ړومبې هغه اختیار فرمائی۔

② حدیث: ,,حدیث،، دنبی کریم ﷺ اقوالواو افعالوته وائیلی کیږی، اوځنګه چې مخکښې بیان کړې شوی دی چې الله تعالی دقرآن کریم سره نبی علیه السلام لره ددې دپاره مبعوث اوفرمائیلو چې هغوی ﷺ دخلقوپه مخکښې دقرآن کریم صحیح تشریح ښه په واضحه بیان کړی، نوهغوی ﷺ په خپل قول اوعمل دواړوسره دا فریضه په ښه طریقه سره سرته اورسوله، اوپه حقیقت کښې دهغوی ټول ژوندمبارک هم دقرآن عملی تفسیردې، ځکه مفسرین کرام ﷺ دقرآن مجید دپوهیدلودپاره په دویم نمبرباندې دټولونه زیات زورپه حدیث باندې ورکړې دې، اوداحادیثوپه رڼړه کښې دکتاب الله معنی ئې متعین کړی دی، البته چونکه په حدیث کښې صحیح، ضعیف اوموضوع هرشان روایات موجود دی، ځکه محققه مفسرین ترهغه وخته پورې دچا روایت لره قابل اعتماد نه ګڼړی ترکومې پورې چې هغه دتنقیدروایات په اوصولوباندې نووی برابر، نولهذا چې کوم روایت چرته په نظرباندې راشی دهغې کتلوسره دقرآن کریم کوم تفسیرمتعین کول درست نه دی، ځکه چې هغه روایت ضعیف اودنورو مظبوطوروایتو خلاف هم کیدې شی اوپه حقیقت کښې دا معامله ډیره نازکه ده، اوپه دې کښې قدم ایخودل هم دهغه خلقوکار دې کوموچې خپل ټول عمرونه ددې علومو په حاصلولو کښې تیرکړې دې۔

③ دصحابه کرامو ﷺ اقوال: صحابه کرامو ﷺ د قرآن کریم تعلیم براه راست دنبی علیه السلام نه حاصل کړې وو، ددې نه علاوه دنزول وحی په وخت پخپله موجود وو، هغوی دنزول وحی دپوره احوالوپس منظربذات خدمشاهده کړې وه، نوځکه په فطری توګه باندې دقرآن کریم په تفسیرکښې چې څومره ددې خلقواقوال مستنداوقابل اعتماد کیدې شی، روستو خلقو ته هغه مقام نشی حاصلیدې، نولهذا دکومو آیتونو تفسیرچې د قرآن یاحدیث نه نه معلومیږی په هغه ټولوکښې نوپه دغه کښې دټولونه زیات اهمیت دصحابه کرامو ﷺ اقوالوته حاصل دې، نودکوم آیت په تفسیرباندې چې دصحابه کرام

اتفاق وی نومفسرین کرام هم هغه اختیاره وی اوددغه خلاف بل یوتفسیرکول جائزنهی،
آیا که چرې دکوم آیت په تفسیرکښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اقوال مختلف وی نوبیا روستومفسرین دنورو دلائلو په رڼره کښې دا ګوری چې کوم تفسیرته ترجیح ورکړې شي؟ په دې معامله کښې اهم اصول اوقواعد اصول فقه، اصول حدیث اواصول تفسیر مدون دی، دهغې دتفصیل دا موقع نه ده،

④ **دتابعینواقوال:** دصحابه کرامو رضی الله عنهم نه پس دتابعینونمبرراځی، داهغه حضرات دی کومو چې دقرآن تفسیردصحابه کرامو رضی الله عنهم نه زده کړې دې، نوځکه دهغوی اقوال هم په علم تفسیرکښې دلوئ اهیمت جوګه ده، اګرچه په دې معامله کښې دعلماؤ اختلاف دې چې دتابعینواقوال په تفسیرکښې حجت دی که نه؟ [ الاتقان ۲ \ ۱۷۹] خوددې د اهمیت نه انکار نشی کیدې۔

⑤ **لغت عرب:** قرآن کریم چونکه په عربې ژبه کښې نازل شوې دې، ځکه دتفسیرقرآن دپاره په دې ژبه باندې پوره عبور حاصلول ضروری دی، دقرآن کریم ډیرآیتونه داسې دی چې دهغې په پس منظرکښې چونکه څه شان نزول یاڅه فقهی یاکلامی مسئله نه وی، نوځکه په هغې کښې دحضوراکرم ﷺ اویا دصحابه کرامواویا دتابیعنواقوال منقول نه وی، نودهغې دتفسیرذریعه صرف لغت عرب وی اوهم دلغت په بنیادباندې دهغې تشریح کیدې شی، ددې نه علاوه که چرې دکوم آیت په تفسیرکښې څه اختلاف وی نوپه مختلف آراء کښې دمحاکمه دپاره هم دعلم لغت نه کار اغستلې کیږی۔

⑥ **تدبراواستنباط:** دتفسیرآخری ماخذ,, تدبر اواستنباط،، دې دقرآن کریم نکات او اسرار یو داسې بحربې کناردې دکوم چې هرو څه حداونهایت نشته دې، نوچې کښې سړی ته الله تعالی په اسلامی علوموکښې بصیرت عطاءکړې وی هغه چې څومره څومره په دې کښې غوراوفکرکوی هغه هومره په کښې نوی نوی اسراراونکات مخې ته راځی، دغه شان مفسرین کرام دخپل خپل تدبرنتائج هم په خپلوتفسیرونوکښې بیانه وی، لیکن دا اسراراو نکات هم په هغه وخت کښې قابل قبول وی کله چې دهغه مذکوره پینځو مآخذوسره متصادم نه وی، لهذا که چرې یوسړې دقرآن په تفسیرکښې یوداسې نکته یا اجتهاد بیان کړی کومه چې دقرآن اوسنت، اجماع، لغت، یا دصحابه کرامو رضی الله عنهم یا دتابعینو رحمهم الله داقوالوخلاف وی یا دبل کوم شرعی اصولوسره ټکراؤ وی نودداسې تفسیریا نکته څه اعتبارنشته دې، بعضې صوفیاء کرامو رحمهم الله په تفسیرکښې داسې قسمه اسرار اونکات بیانول شروع کړی وو، لیکن دامت محقق علماؤهغه قابل اعتبار اونه ګنړل، ځکه چې هغه دسنتواودشریعت دبنیادی اصولو خلاف یو شخصی راې ظاهره ده چې څه حیثیت نه لری [ اتقان ۲\۱۴۸ ]

① **اسرائیلی روایات** اسرائیلیات یا اسرائیلی روایات هغه روایاتو ته وائی. کوم چې د یهودیانو یا عیسایانو نه مونږ ته رارسیدلی دی
په اوله زمانه کښې دمفسرینو عادت وو چې هغوی به دکوم آیت په زمن کښې هرقسمه هغه روایات لیکل کوم چې به هغوی ته په سندسره رسیدلې وو، په دې کښې به ډیر روایات د اسرائیلیاتو څخه هم وو، ځکه دهغې دحقیقت څخه خبریدل هم ضروری دی، دهغې حقیقت دادې چې بعضې صحابه کرامو رضی الله عنهم اوتابیعنو رحمهم الله اول داهل کتابو مذهب سره تعلق لرولو، بیاچې کله هغوی روستو په اسلام باندې منورشوا ودقرآن کریم تعلیم ئې حاصل کړو نوهغوی ته قرآن کریم دتیرشوامتونو ډیرهغه واقعات په نظر راغلل کوم چې هغوی د خپلوسابقه مذهبونو کتابونو کښې لیدلی وو، هم داتفصیلات د اسرائیلیاتو په نوم باندې دتفسیرپه کتابونو کښې داخل شوی دی،
مشهور محقق صاحب د تفسیر حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکی. چې داسې رویات پدرې قسمه دی:
① اولنې هغه قسم اسرائیلیات دی. چې د هغې تصدیق د نورو خارجی دلائلو سره شوی وی. مثلاً د فرعون غرقیدل، دحضرت موسی علیه السلام کوه طور ته تلل وغیره
② دویم قسم هغه اسرائیلیات دی. چې د هغې دروغ د خارجی دلائلو نه ثابت وی. مثلاً دا قصه چې حضرت سلیمان علیه السلام په آخر عمر کښې [معاذالله] په بت پرستئ کښې اخته شوې وو.[۷۰] دا رویت ددې وجه بالکل باطل دې. چې قرآن کریم ښکاره ددې تردید کړیدې دغه شان د حضرت داؤد علیه السلام په باره کښې دا د ځان نه جوړه شوې قصه چې [معاذالله] دوی دخپل جرنیل اوریا ښځې سره زنا کړې وه، یاهغه ئې په مختلفو تدبیرونو سره مړ کړو اودهغه ښځه سره ئې نکاح اوکړه، داهم ښکاره دروغ دی، اوداسې قسمه روایتونه غلط ګڼړل لازم دی _[۷۱]
③ دریم قسم هغه اسرائیلیات دی. چې د هغې په باره کښې د خارجی دلائلو نه نه دا ثابته وی. چې دا رښتینی. او نه دا ثابته وی. چې دا دروغ دی. مثلاً د تورات احکام وغیرد د داسې اسرائیلیاتو په باره کښې نبی کریم ارشاددې دې. چې [**لا تصدقوها ولا تکذبوها**] مه دهغې تصدیق کوئ. او نه تکذیب داسې قسم روایات بیانول خو جائز دی. خو نه په دې باندې څه دینی مسئله ثابتیږی. او نه د هغې تصدیق یا تکذیب کولې شی او د داسې قسم روایاتو بیانولو څه خاص فائده هم نشته.
ځکه چې شرعی اعتبار سره هغه حجت نه دی [ مقدمه تفسیر ابن کثیر ]

---

[۷۰] بائبل کتاب سلاطین اول ۱۳، ۱۲، ۱۱ ]
[۷۱] تفسیر ابن کثیر مقدمه ۲/۱ او اصول التفسیر لابن تیمیه ۲، ۳۳]

## د قرآن د تفسير باره کښې يوه سخته غلط فهمي

**دکلام خلاصه:** ددې تشريح نه دا خبره ښکاره شوه. چې د قرآن د تفسير دپاره په عربۍ ژبه باندې معمولي واقفيت کافي نه دې. بلکه ددې دپاره علم اصول تفسير، علم حديث، اصول حديث، اصول فقه، علم فقه، علم نحو علم صرف علم لغت، علم ادب، او علم بلاغت کښې ماهرانه بصيرت او ددې سره طهارت او تقوی ضروري دی. ددې ضروري شرائطو نه بغير د تفسير په ميدان کښې قدم کيخودل خپل ځان د ګمراهۍ په لاره د روانولو برابر دی.

زمونږ په زمانه کښې دے سبب ډير لوئې قيامت راوستې دې. داغلط فهمي عامه روانه ده. چې صرف د عربۍ ژبې وئيلو نه پس انسان د قرآن کريم عالم جوړيږي. او ددې نه پس چې هغه څنګه غواړي. د قرآن کريم تفسير کولې شي.

بلکه په بعضې وختونوکښې داسې هم کتلې شوی دی دعربې ژبې معمولي پوهې والا خلق چې په عربې ژبه ورته پوره عبورنه وی حاصل، نه صرف داچې دخپل ځان په خپله خوښه اوطريقه باندې دقرآن تفسيرشروع کوی، بلکه د زړو مفسرينودغلطيانو راويستلوپه تکل کښې وی، تردې پورې چې بعضې ظالمان خوصرف دترجمې مطالعه کولوسره خپل ځان دقرآن عالم ګڼړی، اوپه لوئې لوئې مفسرينوباندې تنقيد کولونه روستوکيږی۔

ښه پرې باندې ځان پوهول پکاردی دا انتهائی خطرناک طرز عمل دې کوم چې د دين په معامله کښې ډيرهلاکونکی ګمراهې طرف ته روانونکې دې۔

حالانکه د سوچ خبره دا ده. چې د دنيا هيڅ يو علم او فن داسې نشته. چې په هغې کښې د ژبې په وجه مهارت پيد اکولې شي. ترڅو ورځې پورے هيڅ يو عقل مند کس چې په انګريزۍ ئے مکمل عبور وی. دا دعوی نه ده کړې چې هغه ډاکټر شو. چې د ميډيکل سائنس کتابونه اوګوري. او په دنيا باندې دظلم مشق شروع کړی. دغه شان يو کس چې صرف د انجنرنګ د کتابونو مطالعه اوکړی. نود انجنير جوړيدو دعوی نشی کولې او نه چې د قانون اوچت کتابونه اوګوری. هغه ته ماهر قانون وئيلې شي. او که څوک دا دعوی اوکړی. نو يقيني ده چې ټوله دنيا به ورته احمق او بيوقوف وائی. حالانکه هر کس پيژنی. چې دا ټول علوم او فنون صرف په ژبه باندې او ځانله مطالعه کولو سره نه حاصليږی.بلکه ددې دپاره په کلونو محنت پکار دې دا د ماهرانو استاذانو نه وئيلې شي. او دهغوی نه باقاعده دې فن لره زده کول پکاردی، کله چې ډاکټر اوانجنئير جوړيدو دپاره داشرائط ضروری نوآخردقرآن اوحديث په معامله کښې صرف عربی ژبه زده کول کافي کيدې شي. دژوندپه هره شعبه کښې هرسړې دا اوصول پيژنی اوپه دې باندې عمل

کوی، چې دهرفن زدهٔ کولودپاره یوه خاصه طریقه اودهغې مخصوص شرائط وی، کومولره چې دپوره کولونه بغیرپه دغه علم اوفن کښې دهغه رایې معتبرنه ګڼړلې کیږی، نوآخرقرآن اوسنت دومره لاوارثه څنګه کیدې شی چې ددې تشریح اوتفسیردپاره دکوم علم اوفن حاصلولوضرورت نه وی، اوپه دې معامله کښې کوم سړې چې غواړی خپله رایې دې پیش کوی؟

## څو غلط فهمیانې :

په دې سلسله کښې د څو غلط فهمیانو ازاله ضروری ده.

① اولنۍ غلط فهمی: بعضې خلق وائی. چې قران کریم په خپله د خپل ځان په باره کښې ارشا فرمائی. چې ﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ۞: القمرآیت: ۱۷﴾ بیشکه مونږ قرآن کریم د نصیحت حاصلونکو دپاره آسان کړېدې. او هرکله چې قرآن کریم یو آسان کتاب دې. نو ددې د تشریح دپاره د اوږدو علمونو او فنونو ضرورت نشته. بلکه هر کس چې د قرآن کریم متن چې اولولی. نو په دې باندې پوهیدے شی.

دقرآن دآیاتونوآسان قسم خو دا استدلال یوه لویه مغالطه ده. چې په کم فهمئ او ظاهری نظر کولو باندې مبنی ده. واقعه دا ده. چې د قرآن کریم آیاتونه په دوه قسمه دی. یو هغه آیتونه دی. چې په هغې کښې عام د نصیحت خبرې، سبق آموز واقعات او د عبرت او موعظت مضامین بیان شوی دی. مثلا د دنیا بے ثباتی دجنت او دوزخ حالات، داللہ ویره او د آخرت فکر پیدا کونکی خبرې او د ژوند نور سیده ساده حقائق داسې قسم آیاتونه بیشکه آسان دی. او کوم کس چې په عربئ پوهیږی. هغه په دې پوهیږی او نصیحت ترې حاصلولے شی. د پورتنی آیت مقصد او مفهوم دادې. چې مونږ قرآن آسان کړېدې. نو قرآن کریم دا خبره مجمله نه دې پریخودې. ځکه چې،، للذکر،، [د نصیحت دپاره] دا لفظ ئے زیاتی کړېدې.

دقرآن د آیتونو ګران قسم : ددې په خلاف دویم قسم آیاتونه هغه دی. چې په احکامو او قوانیو. عقائدو او علمی مضامینوباندې مشتمل دی. د داسې قسم آیاتونو کما حقه پیژندل او ددې نه احکام او مسائل راویستل دهر کس کار نه دې. تر څو چې ورته په اسلامی علومو کښې بصیرت او پوخوالے حاصل شوې نه وی. نو تر هغه وخته پورې د قرآن کریم نه دا مقصد نشی حاصلېدې هم دا وجه ده. چې د صحابه کرامو مورنئ ژبه اګرچې عربی وه. او د عربئ زده کولو دپاره هغوی ته د تعلیم ضرورت نه وو. خو هغوی به هم د نبی ﷺ نه د قرآن کریم زده کولو دپاره ډیرې ډیرې مودے لګولې.

دصحابه کرامو ﷺ د قرآن زده کولوحقیقت علامه سیوطی وغیره د عبدالرحمن سلمی ﷫ نه نقل کړی دی. چې کومو حضراتو د نبی ﷺ نه باقاعدګئ سره د قرآن تعلیم حاصل کړې

وو، . مثلاً حضرت عثمان بن عفان، عبدالله بن مسعود ﷢ وغيره هغوى مونږ ته بيان کړي وو. چې دوی به د نبی ﷺ نه د قران لس آياتونه زده کول. تر هغه وخته پورې به وراندې نه تلل. تر څو چې به يې د دغه آياتونو متعلق ټول علمی او عملی خبرو باندې عبورنه وو حاصل کړې. هغوی به فرمائيل. [فتعلمنا القران والعلم والعمل جيعاً] مونږ قرآن او علم او عمل يوځائې زده کول. په موطا امام مالك کښې روايت دې. چې حضرت عبدالله بن عمر صرف د سورت بقره په يادولو کښې اته کاله لګولی وو. او په مسند احمد کښې حضرت انس ﷜ فرمائي. چې په مونږ کښې به کوم کس سورت بقره او سورت آل عمران اوونيل نو زمونږ په نظرکښې به دهغه اوچت مقام وو[۷۲]

**دصحابو په طريقه باندې د خپلې مدعا دپاره استدلال:** دغور کولو خبره ده. چې دا حضرت صحابه کرام ﷢ چې د هغوی مورنۍ ژبه عربی وه. هغوی په عربی شعر او ادب کښې پوره مهارت لرلو. او هغوی ته به اوږدے اوږدے قصيدے په معمولی توجه سره د قل هو پشان يادېدلے. هغوی ته د قرآن کريم حفظ کول او ددې په معانيو باندې ځان پوهولو دپاره د دومره اوږدے مودے څه ضرورت وو. چې اته اته کاله کښې صرف د يو سورت په وئيلو کښې لګوی. ددې وجه دا وه چې قرآن کريم او ددې زده کولو دپاره صرف عربۍ ژبه کښې مهارت کافی نه وو. بلکه ددې دپاره د نبی ﷺ صحبت او د تعليم نه فائده اخستل ضروری وو. ښکاره خبره ده. چې کله صحابه کرام ﷢ چې هغوی ته په عربۍ ژبه کښې مهارت حاصل وو. او د نزول وحی ئے براه راست مشاهده کړې وه. ددې باوجود د عالم قرآن جوړيدو دپاره باقاعده د نبی ﷺ نه د تعليم حاصلولو ضرورت وو. نو د نزول قرآن نه په سوونو کاله روستو هغه کس چې په عربۍ باندې ورته څه معمولی غوندې واقفيت حاصل شوې وی. صرف به د ترجمې په کتلو دقرآن کريم د مفسرجوړيدو دعوی کوی. دا څومره د زړه ورتيا او علم دين سره د افسوسناکے خندا خبره ده. داسې خلقو ته چې دا زړه ورتيا کوی. د نبی ﷺ دا ارشاد ښه ياد ساتل پکار دې چې [من قال في القرآن بغير علم فليتبوأ مقعده في النار] کوم کس چې په قرآن کښې بغير د پوهې نه خبره کوی. نو هغه خپل ځائې په جهنم کښې تياروی. [ابوداؤد، از اتقان ۲| ۱۷۹]

او : _ من تکلم في القران برايه فاصاب فقد اخطاء.. کوم سړې چې دقرآن په معامله کښې [ محض ] په خپله رائې سره ګتفګو کوی اوپه هغې کښې صحيح خبره هم اوکړی نوبياهم هغه غلطی اوکړه.. [ ابوداؤد ﷫ ونسائی ﷫ ازاتقان ۲| ۱۷۹]

**څومشهور تفسيرونه:** دعهد رسالت نه روستودقرآن بيشماره تفسيرونه ليکلې شوی دی.

[۷۲] الاتقان ۲/۱۷۶ نوع ۷۷]

بلکه په دنیا کښې دیو کتاب هم دومره خدمت نه دې شوې، څومره چې دقرآن کریم شوې دې، ددې ټولو تفاسیرو تعارف په کوم مفصل کتاب کښې هم ممکنه نه دې، څه چې په دې مختصر غونډې مقدمه کښې ئې اراده اوکړې شي، لیکن دلته به مونږ دهغه اهم تفسیرونو مختصر تعارف کول غوارو کوم چې دمعارف القرآن خاص مآخذ پاتې شوې دی، اودکوم حواله چې په قرآن کښې بار بار راځی، اګرچه دمعارف القرآن د تصنیف په دوران کښې دیرتفسیرونه اوپه سلګونو کتابونه دنظر لاندې پاتې شوی دی، لیکن دلته صرف دهغه تفاسیرو تذکره مقصود ده دکومو حوالې چې په کثرت سره راځی ـ

**تفسیر ابن جریر:** ددې تفسیراصل نوم ,, جامع البیان،، دې، اودا دعلامه ابوجعفرمحمدبن جریرطبری رحمه الله [ متوفی ۳۱۰هه] تالیف دې، علامه طبری رحمه الله داوچتې درجې مفسر، محدث اومؤرخ دې، نقل کړې شوی دی چې هغه ترڅلویښتو [۴۰] کالوپورې مسلسل لیکلوکښې مشغول وو، اوپه هره ورځ کښې به ئې څلویښت [۴۰] ورقه لیکلومعمول وو[ البدایه والنهایه، ص۱۴۵ج۱۱] بعضې حضراتوپه دۀ باندې دشیعه کیدوالزام عائد کړې دې، لیکن محققینوددې الزام تردیدکړې دې، اوحقیقت هم دا دې چې هغه داهل سنت جلیل القدر عالم دې، بکله دهغه شمارپه ائمه مجتهدینوکښې کیږی ـ

ددۀ تفسیرپه دریشت [۳۰] جلدونوکښې دې، اوروستوتفاسیرو دپاره دبنیادی مآخذ حیثیت لری، هغه دآیاتونوپه تفسیرکښې دعلماؤ مختلف اقوال نقل کوی، اوبیا چې کوم قول دهغه په وړاندې راجح وی هغه ددلائلو په ذریعه سره ثابتوی، البته دهغه په تفسیرکښې صحیح اوسقیم هرشان روایات جمع شوی دی، څکه دهغه بیان کړې شوی هرروایت باندې اعتماد نشی کیدې، په اصل کښې دې تفسیرنه.دهغه مقصدداوچې دتفسیرقرآن په باره کښې څومره روایات چې هغه ملاوې دې شی هغه ټول جمع کړې شی. اودغه جمع کړې شوی موادو نه کار واغستلې شی، البته هغه دهرروایت سره دهغې سند هم ذکرکړې دې، دې دپاره چې کوم سړې غواړی دراویانو تحقیق کولوسره دروایت صحیح یا غلط کیدې فیصله اوکړې شی ـ

① **تفسیر ابن کثیر:** په دې کښې سرفهرست تفسیر ابن کثیر دې دا د حافظ عماد الدین ابوالفداء اسماعیل بن الخطیب ابی الحفص عمر بن کثیر الشافعی رحمه الله [المتوفی ۷۷۴ ه] تنصیف دې او په څلورو جلدونو مشتمل دې دې کتاب ته د تفسیر ابن جریر خلاصه وئیل پکار دی. حافظ بن کثیررحمه الله چې کومه طریقه اختیار کړې ده. هغه د تفسیر بالروایت طریقه ده.خو د حافظ ابن کثیررحمه الله خصوصیت دادې چې کوم کمزورې روایات چې دوی نقل کړی دی. نود هغې د اسناد په علتونو باندې ئې تنبیه هم ورکړې ده.

او په دې لحاظ سره داکتاب په ټولو تفسیری کتابونوکښې یوممتاز مقام لری ـ

④ تفسیر قرطبی: ددې پوره نوم "الجامع لاحکام القرآن" دادې د اندلس دمشهور او محقق عالم ابو عبدالله محمد بن احمد بن ابی بکر القرطبی رحمه الله [متوفی ۶۷۱ هـ] تصنیف دآ دوی په فقه کښې د امام مالك د مسلك تابع دې
دعبادت او دزهد په اعتبار سره لوئ ناموره سړې وو.
په اصل کښې خو ددې کتاب اصلی موضوع د قرآن کریم نه د فقهی احکامو او مسائلو استنباط دې. خو په دې ضمن کښې هغوی د قرآن کریم د آیتونو تشریح، د گرانو ټکو تحقیق، اعراب، بلاغت، اومتعلقه روایات هم په تفسیرکښې ښه جمع کړی دی. او باربار چاپ شوې دې.
⑤ تفسیر کبیر: د امام رازی رحمه الله تفسیر کبیر دې ددې اصل نوم "مفاتیح الغیب" دې خو د تفسیر کبیر په نوم باندې زیات مشهور دادې د امام فخر الدین محمد بن ضیاء الدین عمر الریزی [متوفی ۶۰۶ هـ] تصنیف دې. څنگه چې د روایت په اعتبار سره تفسیر ابن کثیر ډیر جامع او بې نظیره تفسیر دې دغه شان د علوم درایت په لحاظ سره تفسیر کبیر لاجوابه دې
بعضې خلقو په دې کتاب باندې دا فقره چسپان کړے ده. چې [فیه کل شئ إلا التفسیر] په دې کښې دتفسیر نه سوا هرڅه شته[۷۳] خوحقیقت دادې چې دا جمله ددې کتاب سره ډیرلوئې ظلم دې ځکه چې دقرآن پاك دحل دپاره ددې تفسیر څه ثانی نشته ددې امتیازی خصوصیات دا دی.
⑥ دتفسیر کبیر باره کښې څوضروری خبرې: امام رازی رحمه الله دا تفسیر د سورة فتح پورې لیکلې وو. چې وفات شو نو دسورة فتح نه پس یویل عالم قاضی شهاب الدین بن خلیل الخولی الدمشقی رحمه الله [متوفی ۶۳۹ هـ] یا شیخ نجم الدین احمد بن محمد القمولی [متوفی ۷۷۷ هـ] رحمه الله کښې مکمل کړلو [۷۴]
امام رازی رحمه الله دخپلې زمانې دضرورت مطابق چونکه کلامی بحث اودباطل فرقو تردید باندې خاص زور ور کړې دې او په دې ضمن کښې دهغه بحثونه په ډیرو ځاینو کښې ډیر اوږده شوی دی، البته په یوڅومقاماتو باندې هغوی دجمهورامت دلارې نه اخوا دآیات قرآنی تفسیر کړې دې، لیکن داسې مقامات اتهٔ [۸] غټ غټ جلدونو کښې خال خال دی
⑦ تفسیر البحر المحیط: دا دعلامه ابوحیان غرناطی اندلسی رحمه الله [ متوفی ۷۵۴هـ ] تصنیف دې، کوم چې داسلامی علومونه علاوه په علم نحواو بلاغت کښې خصوصی مهارت

[۷۳] الاتقان [۲/ و تجیب السلمین بکلام رب العالمین. خو زمونږ حقیره راینې دا ده که دجمله په څه کتاب باندې صحیح راځی نو هغه به زمونږ د زمانې په تفسیرالجواهر للطنطاوی دی.
[۷۴] کشف الظنون [۲/۴۷۷]

لرلو، نو ددهٔ په تفسيرکښې دنحواو دبلاغت رنګ ښکاره دې، دئ دهرآيت د الفاظو تحقيق، دترکيبونو اختلاف اودبلاغت نکات بيان کولو باندې خاص زرو ورکړې دې۔

④ احکام القرآن للجصاص رحمه الله: دا د امام ابوبکرجصاص رازی [ متوفی ٣٧٠هـ] تصنيف دې، کوم چې په فقهاء احنافوکښې دممتاز مقام خاوند دې، ددوی ددې کتاب موضوع دقرآن کريم نه فقهی احکامات اومسائل استنباط کول دی، اوهغوی دمسلسل آيتونو دتفسير په ځائې باندې صرف دهغه آيتونوفقهی تفصيلات بيان کړی دی، کوم چې په فقهی احکاماتوباندې مشتمل دی، په دې موضوع باندې ډيرکتابونه ليکلې شوی دی، ليکن دې کتاب ته په دغه ټولوکښې يولوړ اوممتاز مقام حاصل دې۔

⑤ تفسير الدرالمنثور: دا دعلامه جلال الدين سيوطی رحمه الله [متوفی ٩١٠هـ] تصنيف دې، اوددې پوره نوم ,, الدرا لمنثور فی التفسير بالماثور،، دې، په دې کښې علامه سيوطی رحمه الله دهغه ټولورواياتونودجمع کولو کوشش کړې دې کوم چې دقرآن کريم دتفسير سره متعلق هغه ته ملاؤ شوی دی، ددوی نه مخکښې ډيرو محدثينومثلا حافظ ابن جرير رحمه الله، امام بغوی رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله وغيره په خپله خپله ټوګه باندې دکار کړې دې،

علامه سيوطی رحمه الله ددغه ټولوبيان شوی جمع روايات په دې کتاب کښې جمع کړی دی. البته هغوی درواياتو سره دهغې پوره سندذکرکولوپه ځائې باندې صرف دهغه مصنف نوم ذکر کولوباندې اکتفاء کړې ده چاچې دې روايت په خپل سند سره بيان کړې دې، دې دپاره چې په وخت دضرورت دغې ته مراجعت کولوسره دسند تحقيق اوکړې شی، چونکه دهغه مقصد درواياتوذخيرې لره جمع کول وو، څه په دې کتاب کښې هم صحيح او سقيم هرشان رواياتونه جمع شوی دی، او دسند دتحقيق نه بغير ددهٔ هربيان کړې شوې روايت قابل اعتماد نه ګنړلې کيږی، علامه سيوطی رحمه الله په بعضې ځائې کښې دروايت سره دا هم اوانی چې ددې سند په کومه درجه کښې دې، چونکه دتنقيد حديث په معامله کښې هغه ډير متساهل مشهور دې، ځکه په دهٔ باندې کماحقه اعتماد کول مشکل دی۔

⑥ تفسير مظهری: دا دعلامه قاضی ثناء الله صاحب پانی پتی رحمه الله متوفی [ ١٢٢٥هـ] تصنيف دې اوهغه دخپل شيخ طريقت مرزا مظهرجان جانان دهلوی رحمه الله په نوم باندې ددې تفسيرنوم ,, تفسير مظهری ايښودې دې. ددهٔ دا تفسير ډيره ساده او واضحه دې، او په اختصار سره دقرآنی آياتونو تشريح معلوملودپاره ډير فائده مند، دهٔ د قرآنی آياتونو تشريح سره متعلقه رواياتونه هم ډير تفصيل سره ذکرکړی دی، د نورو تفسيرونو په مقابله کښې ډيرپه چهان بين سره درواياات کولو کوشش کړې دې۔

⑧ روح المعانی: ددې پوره نوم "روح المعانی فی تفسير القرآن العظيم والسبع المثانی" دې او د بغداد د

مشهور عالم علامه محمود آلوسی حنفی رحمه الله [متوفی ۱۲۷۰ ه] تصنیف دې او په دیرش جلدونو باندې مشتمل دې. دا چونکه بالکل دآخر دور تصنیف دې. نو ځکه دوی دا کوشش کړېدې. چې د وړاندېنو تفسیرونو اهم مباحث په دې کښې جمع کړی. نو په دې کښې لغت، نحو ادب، بلاغت، فقه، عقائد، کلام، فسلفه، هیئت، تصوف او متعلقه روایتو باندې تفصیلی بحث کړېدې. او کوشش یې دا کړېدې. چې د آیت سره متعلقه علمی بحث پاتې نشی. د حدیث د روایاتو په معامله کښې هم علامه آلوسی د نورو مفسرینو په مقابله کښې محتاط پاتې شوې دې په دې اعتبار سره دې کتاب ته د وړاندېنی تفاسیرو خلاصه وئیل پکار دی. او اوس قرآن د تفسیر په سلسله کښې هیڅ یو کار هم دداسې د مددنه بې نیازه کیدې نشی.

## ترجمة الإمامين الهمامين الجليلين

الشيخ محمد بن احمد جلال الدين المحلى، والشيخ عبدالرحمن بن ابى بكر جلال الدين السيوطى رحمهما الله تعالى

بې شکه چه دواړه حضرات په خپله زمانه کښې بې مثاله وو، داسې ذهین او لوئې شخصیتونه ډیر کم پیدا کیږی.

ہزاروں سال نرگس اپنی بے نوری پہ روتی ہے ۔۔۔ بڑی مشکل سے ہوتا ہے چمن میں دیدہ ور پیدا

سالہا در کعبہ و بت خانہ می نالد حیات ۔۔۔ تا ز بزم عشق یک دانائے راز آید بروں

هسې خو په دې رنګارنګه دنیا کښې بې شمیره قابل او لائق خلق پیدا کیږی، خو په هغوی کښې بعضې داسې وی چه هغوی په سینو او زړونو باندې همیشه دپاره نقش بریږدی او لاړشی، هم په دغه خوش نصیبه او د مبارک بادئ قابلو خلقو کښې د جلالین دواړه مصنفین هم دی.

اګرچه ددې دواړو حضراتو د تذکرې اوتعارف هیڅ ضرورت نشته ځکه چه میاں صاحب بان «دښکاره ځیزونو بیان ته ضرورت نه وی»، بلکه دا خونمر ته ډیوه ښکاره کول دی، خو چونکه د ترجمې لیکلو طریقه د اسلاف او اکابرو نه رارروانه ده،

شروع د جلالین د نصف ثانی د مصنف نه کولې شی ځکه چه موصوف ته تقدم زمانی حاصل دې، او دې سره سره دوی ته د نصف اول دمصنف علامه سیوطی د استاذ کیدو شرف هم حاصل دې.

## د جلالین د نصف ثانی مصنف

نوم او نسب د دوی نوم محمد او د پلار نوم ئې احمد دې او جلال الدین ئې لقب دې، سلسله نصب ئې داسې دې: محمد بن احمد بن محمد بن ابراهیم بن احمد بن هاشم بن شهاب بن کمال الانصاری محلی، د مصر یو مشهور محلة الکبری طرف ته منسوب دې.

**د پيدائش او وفات تاريخ:** دوی د شوال مياشت ۷۹۱ هـ کښې د مصر دارالسلطنت قاهره کښې پيدا شو، د دوی عمر ۷۳ کاله وو چه په ۸۶۴ هـ کښې په ۱۵/ رمضان المبارک د هفتې (شنبه) په ورځ د سحر په وخت کښې وفات شو په باب النصر قبرستان کښې دخپل پلار نيکونو سره نزدې مدفون کړې شو.

**د علم حصول:** دوی چه د قرآن کريم دحفظ نه فارغ شو نوابتدائی کتابونه ئې دمقامی استاذانو نه اووئيل او فقه ئې د علامه هيجوری، جلال بلقينی، والی عراقی څخه اووئيله، او نحو ئې د شهاب عجيمی او شمس شطعونی څخه اووئيله، او فرائض اوحساب ئې د ناصرالدين بن انس مصری حنفی نه او منطق، جدل، معانی، بيان، عروض ئې د بدر محمود اقصرائی نه اووئيل، او اصول دين او تفسير ئې د علامه شمس بساطی وغيره څخه حاصل کړل.ددې حضراتو څخه علاوه د نورو لويو لويو عالمانو ددرس په حلقو کښې حاضرشو او استفاده ئې ترې اوکړه، په شروع کښې دوی دکپړې تجارت اختيار کړو، تر يوې مودې پورې ئې د کپړې تجارت کولو، ددې نه پس ئې يو سرې قائم مقام جوړکړو، او په خپله په درس او تدريس کښې مشغول شو او ډيرو خلقو ددوی نه علم حاصل کړو، دوی ته د قضاء عهده هم پيش کړې شوه خو دوی انکار اوکړو.

**ددوی تصانيف:** ددوی ګڼې شمير تصانيف دی چه په هغې کښې جمع الجوامع او جلالين نصف ثانی ته ډير اهميت حاصل دې، دوی د تفسير ابتداء د سورة کهف نه اوکړه، دنصف ثانی مکمل کيدو نه پس ئې دنصف اول په تفسير شروع اوکړه، صرف د سورة فاتحه تفسير ئې پوره کړې وو چه ژوند ورسره وفا اونه کړه او ددې فانی دنيا څخه ئې کوچ اوکړو (انا لله وانا اليه راجعون) د باقی نصف اول تکميل ددوی شاګرد رشيد علامه سيوطی عبدالرحمن بن ابی بکر اوکړو.

## د جلالين د نصف اول مصنف

**نوم اونسب:** نوم ئې عبدالرحمن بن ابی بکر محمد کمال الدين، لقب ئې جلال الدين، کنيت ئې ابوالفضل دې، پوره نسب ئې داسې دې. عبدالرحمن بن ابی بکر محمد کمال الدين، بن سابق الدين، بن عثمان فخر الدين بن ناظرالدين السيوطی، سيوط طرف ته منسوب دې، چه اسيوط هم ورته وائی، سيوط د دريائې نيل مغربی طرف ته يو ښار دې، همدا محله خضريه ده کوم چه په سوق خضر نوم سره مشهور دې، په يکم رجب ۸۴۹ هـ د ماښام نه پس پيدا شو، دوی دخپلې زمانې په ائمه ؤ کښې ډير باکمال وو.

**دعلم حصول:** دوی په ماشوم والی کښې يعنی د پنځه کال اوو مياشتو په عمرکښې د پلار د سوری نه محرومه شو(يعنی پلار ئې وفات شو). دپلار محترم د وصيت مطابق د يو څو بزرګانو په سرپرستئ کښې پاتې شو، چه په هغوی کښې شيخ کمال ابن الهمام حنفی هم

وو، موصوف هغوی طرف ته پوره توجه ورکړه، په دې وجه ئې د اته کالو نه په کم عمر کښې د قرآن کریم حفظ اوکړو، ددې نه پس ئې منهاج الاصول، الفیه ابن مالک وغیره کتابونه حفظ کړل، د شیخ شمس سراجی او شیخ شمس مرزبانی حنفی نه ئې هم ډیر درسی او غیر درسی کتابونه اوونیل، ددوی نه علاوه ئې هم د نورو ډیرو استاذانو د علم او فن په درسی حلقو کښې شرکت اوکړو

**د يوې غلطۍ ازاله:** بعضې تذکره کونکو لیکلی دی چه علامه سیوطی دحافظ ابن حجر عسقلانی شاگرد دې، خودا د تاریخ په رڼا کښې صحیح نه ده، ځکه چه د اصحاب تاریخ دا صراحت موجود دې چه د حافظ ابن حجر وفات په ۸۵۲ هـ کښې شوې دې، اود علامه سیوطی پیدائش په ۸۴۹ هـ کښې دې، په دې حساب سره دحافظ ابن حجر د وفات په وخت دعلامه سیوطی عمر صرف درې کاله دې، ظاهره خبره ده چه په دې عمر کښې د شاگردئ سوال هم نه پیدا کیږی.

**درس او تدریس او افتاء:** د علومو د حصول او د فنونو د تکمیل نه پس ئې په ۸۷۰ هـ کښې د افتاء کار شروع کړو، او د ۸۷۲ هـ نه په املا کښې مشغوله شو، دوی په حسن المحاضره کښې لیکلی دی، چه الله تعالی ماته اووه علوم، تفسیر، حدیث، فقه، نحو، معانی، بیان، بدیع کښې ژور علم رانصیب کړې دې، او دائې هم لیکلی دی چه ما دحج په موقع باندې آب زمزم اوڅکل او دا دعامې اوکړه چه په فقه کښې د شیخ سراج الدین بلقینی رتبه اوپه حدیث کښې د حافظ ابن حجر مرتبې ته اورسیږم.

دوی په خپله زمانه کښې دحدیث ډیر لوئې عالم وو، دوی په خپله فرمائیلی دی چه ماته دوه لاکه احادیث یاد دی، اوکه ماته ددې نه هم زیات ملاؤ شوی وې نوهغه به مې هم یاد کړی وو، د څلویښتو کالو په عمر کښې دقضاء اوافتاء وغیره نه فارغ شو او گوشه نشینی (تنهائی) ئې اختیار کړه، اوپه ریاضت او عبادت، په رشد اوهدایت کښې مشغوله شو، ددوی د زهد او قناعت شان دا وو چه بادشاهان او لوئې مالداره خلق به ددوی په خدمت کښې حاضریدل، او قیمتی قیمتی هدیې او تحفې به ئې پیش کولې خو دوی به نه قبلول سلطان غوری یو خصی غلام او زر اشرفئ ددوی په خدمت کښې اولیږل، دوی اشرفئ واپس کړې او غلام ئې آزاد کړو او د نبی کریم ﷺ د حجرې مبارکې خادم ئې جوړ کړو.

دوی دکشف او کرامات لرونکو بزرگانو څخه وو، ددوی د طیّ الارض کرامت ډیر مشهوردې، ددوی د وینا مطابق دوی د نبی کریم ﷺ اویا ځله په خوب کښې زیارت کړې دې.

**علمی خدمات** د داؤد مالکی په قول ددوی د تصانیفو تعداد د پنځه سوو نه هم زیات دې،

ددوی په تصانيفو کښې رومبې تصنيف "شرح استعاذه وبسمله" ده، په علوم القرآن باندې ددوی تاليف "الاتقان في علوم القرآن" ډير اهم اومشهور کتاب دې.

وفات دوی ته د لاس د پړسوب بيماری اولگيده، چه ددې په وجه د جمعې د شپې په آخره حصه کښې په ۱۹ جمادی الاولی ۹۱۱ هـ کښې وفات شو. انا لله وانا اليه راجعون.

تفسير جلالين: دا دتفسير يو مختصر اوجامع تفسيردې، که دې ته د قرآن پاک عربی ترجمه اووئيلې شی نو نامناسبه به نه وی، قرآنی او تفسيری الفاظ د سورة مدثر پورې تقريباً برابر دې. ددې نه پس د قرآنی کلماتو نه تفسيری کلمات زيات دی، چه ددې په وجه علماء کرامو فرمائيلی دی چه تفسير جلالين ته بې اودسه لاس وړل جائز دی، دا تفسير چونکه د دوه بزرگانو دې او ددوی دواړو لقب جلال الدين دې په دې وجه ددې کتاب نوم جلالين کيخودې شو، بعضې وخت د نصف اول اونصف ثانی د مفسر په تعيين کښې اشتباه پيدا کيږی، ددې د ياد ساتلو آسان شکل دادې چه د سيوطی په شروع کښې سين دې اود محلی په شروع کښې ميم دې، او سين د حروف تهجی د ترتيب په اعتبار سره مقدم دې او ميم مؤخردې، لهذا دکوم په شروع کښې چه سين دې دهغه حصه مقدم ده او په کوم کښې چه ميم دې دهغه حصه مؤخر ده.

د جلالين ماخذ: شيخ موفق الدين احمد بن حسن بن رافع کواشی دوه تفسيرونه ليکلی دی، يو کبير چه هغې ته تبصره وائی او دويم صغير چه هغې ته تلخيص وائی، د شيخ جلال الدين محلی اعتماد په دې تفسير صغير باندې دې، علامه جلال الدين سيوطی هم په دې باندې اعتماد کړې دې خو دې سره ئې تفسير وجيز او تفسير بيضاوی او ابن کثير هم د نظر مخې ته ساتلی دی.

## د جلالين شروح او حواشي:

① جمالين: دا د ملا نورالدين علی بن سلطان محمد الهروی المشهور بملا علی قاری المتوفی ۱۰۱۴ هـ ډيره ښه حاشيه ده.

② قبس النيرين: دا د ۹۵۲ هـ تاليف دې

③ مجمع البحرين ومطلع البدرين: دا د جلال الدين محمد بن محمد کرخی ده په ډيرو جلدونو کښې ده.

④ کمالين: د شيخ سلام الله بن شيخ الاسلام بن عبدالصمد المتوفی ۱۲۲۹ هـ ده، دا د شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله د نمسو څخه دې.

ددې نه علاوه نور هم حواشی او شروحات شته خو چونکه استيعاب مقصود نه دې په دې وجه هم په دې باندې اکتفاء کوو.

(تمت بالخير)

# مقدمة الجلالين

بسم الله الرحمٰن الرحيم

الحمد لله حمدًا موافقًا لنعمه كافيًا لمزيده والصلوٰة والسلام على سيدنا محمد وآله وصحبه وجنوده أما بعد فهذا ما اشتدت إليه حاجة الراغبين في تكملة تفسير القرآن الكريم الذي ألفه الإمام العلامة المحقق المدقق جلال الدين محمد بن أحمد المحلى الشافعي وتتميم ما فاته وهو من أول سورة البقرة إلى آخر سورة الأسراء بتتمة على نمطه من ذكر ما يفهم به كلام الله تعالى والإعتماد على أرجح الأقوال وإعراب ما يحتاج إليه وتنبيه على القراءات المختلفة المشهورة على وجه لطيف وتعبير وجيز وترك التطويل بذكر أقوال غير مرضية وأعاريب محالها كتب العربية والله أسأل النفع به في الدنيا وأحسن الجزاء عليه في العقبى بمنه وكرمه.

ترجمه: ټول تعریفونه الله تعالی لره دی، داسې تعریفونه چې د هغوی د نعمتونو په مقدار وی اود هغوی د نوررو زیاتی نعمتونو سره برابر وی، اوزمونږ په سردار محمد اود هغوی په اولاد او صحابه کرامو او لښکرو باندې دې درود اوسلام وی.اودا (زما په ذهن کښې چې څه دی) چې د کومو کسانو د قرآن کریم تفسیر پوره کیدو ته ډیر شوق دې هغه تفسیر کوم چې امام علامه محقق اومدقق جلال الدین محمد بن احمد محلی شافعی تالیف کړې دې اوچې دغه(په ذهن کښې معهود تفسیر) د دغه (تفسیرمحلی) پوره والې وی هغه پوره والې کوم چې د سورة بقره څخه د سورة اسراء آخره پورې وی.اوچې ددې دا تکمیل د محلی د تفسیر په نهج باندې وی (اود محلی نهج ) په هغه طریقه دې چې په هغې سره د الله تعالی کلام په پوهه کښې راشی، اوپه راجح اقوالو باندې په کښې اعتماد وی، اوچې د کوم اعراب وضاحت ته ضرورت وی هغه په کښې وی، اوچې په مشهورو اومختلفو قراءتونو باندې تنبیه وی، اودا تنبیه په ښکلې طریقې سره وی، اوتعبیرئې مختصر وی اوکوم اوږدوالې چې د ناخوښه اقوالو به وجه راځی هغه په کښې پرینبودې شوې وی. اوهغه ناشنا خبرې په کښې پرینبودې شی کومې چې د عربئ په کتابونوکښې دی، او خاص دالله تعالی څخه په دې باندې په دنیا کښې د فائدې رسولو سوال کوم، اوپه آخرت کښې پرې په خپل فضل او کرم د ښکلې بدلې سوال کوم.

**قوله**:فهذا په ، ،هذا ، ، سره هغه عباراتونوته اشاره ده کوم چې سیوطی رحمه الله په خپل ذهن کښې مستحضرکړی وو چې زه به تفسیرجلالین محلی په کوموخبرو سره تکمیل ته رسوم.

**قوله** : تفسیر القرآن الکریم تفسیرپه لغت کښې وضاحت ته وائی اود تفسیراصل د تفسرة څخه ماخوذ دې. او دا تفسرة د هغه اوبوڅخه معلومات کول دی کومو ته

چې طبيب اوګوري نو د بيمار بيماری ترې معلوموي.دغه شان مفسرهم د قرآن پاک د قرآن وضاحت کوي.

اودتفسيراوتاويل په مينځ کښې فرق دا دې چې تفسيرد قرآن، حديث، اثر يا د شرعی قواعدو د تخريج په ذريعه سره د قرآن پاک د يو لفظ مفهوم ښکاره کول دی د تفسيردې قسم ته تفسيربالماثور وائی اوپه تفاسيروکښې تفسيرابن کثير، درمنثور، تفسيرطبری په دې قسم تفسيرونوکښې راځی.او تاويل دې ته وائی چې کله د قرآن پاک د يولفظ په معنی کښې څو احتمالات وی نود صحيح عقلی قواعدو په ذريعه دغه لفظ په يوه معنی باندې حمل کړې شی اوهغه ترې مراد واخستې شی.اود تفسيردې قسم ته تفسيربالرائې وائی تفسيرکبيروغيره په دې قسم کښې تفاسيرو کښې راځی.

**قوله:والإعتماد على أرجح الأقوال** بعضې وخت د يو لفظ يا آيت په تفسيرکښې مختلف اقوال وی نو که په دغه اقوالو کښې تطبيق کيدې شی خو صحيح ده خو بعضې وخت په هغه اقوالوکښې تطبيق نشی کيدې نو په دغه وخت د راجح قول تعين هرسړې نشی کولې ددې وجې جلال الدين رحمه الله فرمائي چې امام محلی په خپل تفسيرکښې صرف د راجح اقوالو انتخاب کړې دې مرجوح اقوال ئې په کښې نه دی ذکر کړې

**قوله: وإعراب ما يحتاج إليه** د قرآن پاک په تفسيرکښې د اعراب ډير لوئې اهميت دې ځکه چې بعضې وخت د اعراب د غلطۍ د وجې په معنی کښې فاحشه غلطی راځی.اوهم دا وجه ده چې بعضې مفسرينو صرف د اعراب القرآن په نوم باندې کتابونو ليکلی دی نوامام سيوطی رحمه الله فرمائی چې په دې مختصر تفسيرکښې د قرآن پاک د ټولو اعراباتووضاحت خو نشی کيدې البته چې د کومو آياتونود اعراب وضاحت ته ضرورت وی نوهغه امام محلی ذکر کړی دی.اوزه به هم دغه طريقه اختياروم

**قوله:وتنبيه على القراءات المختلفة** د قرآن پاک اووه مشهور قرآءتونه دی په دې تفسيرکښې د هغې وضاحت هم شوې دې چې دلته په دې لفظ کښې کوم قرآءت مشهور دې اوکوم شاذ وغيره ده.

..........

## پاره نمبر- ١ [الٓمّٓ]

## [١] سورة الفاتحه

## مكية وهى سبع آيات

سورة فاتحه مکی سورة دې په دیکښې سره د بسم الله اووه آیتونه دی.

بِالْبَسْمَلَةِ إِنْ كَانَتْ مِنْهَا وَالسَّابِعَةُ صِرَاطَ الَّذِيْنَ إِلَى آخِرِهَا وَ إِنْ لَمْ تَكُنْ مِنْهَا فَالسَّابِعَةُ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ، إِلَى آخِرِهَا، يُقَدَّرُ فِيْ أَوَّلِهَا قُوْلُوْا لِيَكُوْنَ مَا قَبْلَ إِيَّاكَ نَعْبُدُ، مُنَاسِبًا لَهُ بِكَوْنِهِ مِن مَقُوْلِ الْعِبَادِ.

**ترجمه:** که بِسْمِ اللّٰه د سورة فاتحې جزء وی نو اووم آیت د صِرَاطَ الَّذِيْنَ تر آخره پورې دې، اوکه بِسْمِ اللّٰه د سورة فاتحې جزء نه وی، نو اووم آیت د غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ نه آخره پورې دې. اود سورة فاتحه په شروع کې به قولوا مقدر منلې شی دې دپاره چه د اياک نعبد ماقبل، د بندګانو په مقوله کیدو کې ددې سره مناسب شی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: سبع آيات بالبسمل:** د امام شافعی رحمه الله په نزد چونکه بسم الله د سورة فاتحې يو آيت دې، په دې وجه اووم آيت د صراط الذين نه آخره پورې دې اود احنافو په نزد چونکه بسم الله د سورة فاتحې جزء نه دې، په دې وجه اووم آيت د غيرالمغضوب عليهم څخه آخره پورې دې.

**قوله: يقدر في اولها، قُولُوا:** د سورة فاتحه په شروع کښې به لفظ قُولوا مقدر منلې شی، که بسم الله د سورة فاتحې جزء دې نو قُولوا به د بسم الله نه مخکښې مقدر منلې شی، که بسم الله د سورة فاتحې جزء نه دې نو د بسم الله نه پس به مقدر منلې شی، د قُولوا مقدر منلو ضرورت په دې وجه پيښ شو چه د اِيَّاكَ نعبد ماقبل، مقوله به په عباد کيدو کښې د اِيَّاكَ نعبد سره مناسب شی، يعنی پوره سورة فاتحه به مقوله د عباد شی.

**قوله: بكونها:** کښې باء په معنی د فی ده، يعنی فی کون الفاتحة په يوه نسخه کښې د بكونها په ځائې بكونه دې دا زيات واضح دې، ضمير به ماقبل اِيَّاكَ طرف ته راجع وی او که د قُولوا تقدير ترک کړې شی نو احتمال به دا وې چه سورة فاتحه بتمامها دا د الله په خپله خپل تعريف دې.

## [١] اياتوله: ١-٧

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

{اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ} جُمْلَةٌ خَبَرِيَّةٌ قُصِدَ بِهَا الثَّنَاء عَلَى اللّٰهِ بِمَضْمُوْنِهَا عَلَى أَنَّهُ تَعَالَى مَالِكٌ لِجَمِيْعِ الْحَمْدِ مِنَ الْخَلْقِ أَوْ مُسْتَحِقٌّ لِأَنْ يَحْمَدُوْهُ وَاللّٰه عَلَم عَلَى الْمَعْبُوْد بِحَقٍّ {رَبِّ الْعَالَمِيْنَ} أَيْ مَالِك جَمِيْع الْخَلْق مِنَ الْإِنْس وَالْجِنّ وَالْمَلَائِكَة وَالدَّوَابّ وَغَيْرِهِمْ وَكُلّ مِنْهَا يُطْلَق عَلَيْهِ عَالَم يُقَال عَالَم الْإِنْس وَعَالَم الْجِنّ إِلَى

غَيْر ذَلِك وَغَلَبَ فِي جَمعه بِالْيَاءِ وَالنُّون أُولِي الْعِلْم عَلَي غَيرهِمْ وَهُوَ مِنَ الْعَلَامَة لِأَنَّهُ عَلَامَة عَلَي مُوجِده {الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ} أَيْ ذِي الرَّحْمَة وَهِيَ إِرَادَة الخير لاهله {مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ} أَيْ الْجَزَاء وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة وَخُصّ بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُ لَا مُلْك ظَاهِرًا فِيهِ لِأَحَدٍ إِلَّا لِلَّهِ تَعَالَي بِدَلِيلِ لِمَنْ الْمُلْك الْيَوْم لِلَّهِ وَمَنْ قَرَأَ مَالِك فَمَعْنَاهُ مَالِك الْأَمْر كُلّه فِي يَوْم الْقِيَامَة أَوْ هُوَ مَوْصُوف بِذَلِك دَائِمًا كَغَافِرِ الذَّنب فَصَحَّ وُقُوعه صِفَة لِمَعْرِفَةٍ {إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ} أَيْ نَخُصّك بِالْعِبَادَةِ من توحيد وغيره ونطلب المعونه علي العبادة وغيرها {اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ} أَيْ أَرْشِدْنَا إِلَيْهِ وَيُبْدَل منه {صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ} بِالْهِدَايَةِ وَيُبْدَل مِنَ الذين بصلته {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ} وَهُمْ الْيَهُود {وَلَا} وَغَيْر {الضَّالِّينَ} وَهُمْ النَّصَارَي وَنُكْتَة الْبَدَل إِفَادَة أَنَّ المهتدين ليسوا يهودا وَلَا نَصَارَي وَاللَّهُ أَعْلَم بِالصَّوَابِ وَإِلَيْهِ الْمَرْجِع وَالْمَآب وَصَلَّي اللَّهُ عَلَي سَيِّدنَا مُحَمَّد وَعَلَي آله وصحبه وسلم تسليما كثيرا دائما أبدا وحسبنا الله ونعم الوكيل ولا حول ولا قوة إلا بالله العلي العظيم

ترجمه: شروع کوم په نوم د الله چه ډیر زیات مهربان او ډیر رحم کونکې دې، هر تعریف الله لره ښائیګی. دا جمله خبریه ده، په دې جملې سره ددې د مضمون په ذریعه د الله تعالی د تعریف قصد کړې شوې دې، په دې طریقه چه الله تعالی دټول مخلوق د تعریف مالک دې یا ددې مستحق دې چه دهغه حمد بیان کړې شی، او الله د معبود حقیقی علم دې چه هغه دټولو عالمونو رب دې یعنی هغه دټولو مخلوقاتو مالک دې، که انسانان دی اوکه جنات دی، که ملائک دی اوکه حیوانات وغیره دی او په دوی کښې په هر یو باندې د عالم اطلاق کیږی، وئیلې شی چه: عالم الإنس،عالم الجن وعلى هذا القياس، د (عالم) یې او دې سره په جمع راوړلو کښې، ذوی العقول ته په غیر ذوی العقول باندې غلبه ورکړې شوې ده او (عالم) د علامة نه مشتق دې، ځکه چه (عالم) په خپل ایجادکونکی باندې علامت دې. زیات مهربان او ډیر رحم کونکې دې یعنی رحمت والا دې او رحمت د خیر مستحق کیدو سره دخیر د ارادې نوم دې، د ورځې د جزاء مالک دې، اوهغه (د جزاء ورځ) دقیامت ورځ ده، اود جزاء ورځ دخاص کولو دا وجه ده چه په دغه ورځ په ظاهره د الله تعالی نه سوا به د هیچا ملک (اختیار) نه وی. د (لمن الملك اليوم لله!) په دلیل سره او کومو خلقو چه مالك يوم الدين لوستلې دې نو ددې معنی ده، دقیامت په ورځ هغه دټولو امورو مالک دې یعنی هغه د مالکیت صفت سره همیشه متصف دې لکه په غافر الذنب کښې، لهذا ددې د معرفه صفت واقع کیدل صحیح دی، مونږستا عبادت کوو او صرف ستا نه مدد غواړو، مونږ صرف تا دعبادت دپاره خاص کوو چه هغه توحید وغیره دې اوپه عبادت وغیره باندې ستا نه مدد غواړو ، مونږته نیغه لاره اوښائې، یعنی نیغې لار طرف ته مو روان کړې،او صراط الذين،د الصراط المستقيم نه بدل دې،دهغه خلقو لاره چه په هغوی باندې تا د هدایت په ذریعه انعام کړې دې او د الذين نه سره دهغې د صلې غير المغضوب عليهم بدل

دې، دهغه خلقو نه چه په هغوی باندې غضب کړې شوې دې او هغه يهود دی او نه د گمراهانو اوهغه نصارى دى او نكته بدل گرځولو كښې ددې خبرې فائده رسول دى چه يهود هدايت موندونكي نه دى اونه نصارى دى، والله أعلم بالصواب وإليه المرجع والمآب وصلى الله على سيدنا محمد وعلى آله وأصحابه الطيبين الطاهرين صلوة وسلامًا دائمين متلازمين إلى يوم الدين والحمد لله رب العالمين» او د حقيقت حال نه الله ښه خبردې او هم هغه طرف ته د ورتلو ځائې دې. د الله رحمت دې وى زمونږ په سردار محمد ﷺ باندې اودهغه په پاكيزه او صفا آل او اصحاب باندې هميشه وى تر قيامته پورې او درود اوسلام دې وى او ټول تعريفونه د الله دپاره دی چه هغه دټولو عالمونو رب دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** {الْحَمْدُ لِلَّهِ} جُمْلَةٌ خَبَرِيَّةٌ: د خبرية د اضافي مقصد دا ښودل دى چه الحمد لله لفظًا جمله خبريه ده، ددې تقدير الحمد لله ثابت لله دې او د قُصدبها الثناء الخ د اضافې مقصد دا ښودل دى چه مذكوره جمله معنًا انشائيه ده، چه ددې د مضمون نه د الله تعالى د حمد بيانولو قصد كړې شوې دې.

**قوله:** أَنَّهُ تَعَالَى مَالِكٌ لِجَمِيعِ الْحَمْدِ مِنَ الْخَلْقِ: ددې جملې اضافى مقصد د جملې د مضمون تعين كول دى يعنى الله تعالى دخپل مخلوق دټولو تعريفونو (ثناگانو) مالک دې، په دې صورت كښې به د لله لام د ملک دپاره وى.

**قوله:** أَوْمُسْتَحِقٌّ: ددې اضافې مقصد دې خبرې طرف ته اشاره كول دى چه په لله كښې لام د استحقاق دې يعنى الله تعالى دخپل مخلوق د تعريفونو مستحق دې.

**قوله:** قُصِدَ بِهَا الثَّنَاءُ: ددې عبارت مقصد دا دې چې دلته د حمد څخه مراد مخاطب ته دا خبر وركول مقصود نه دى چې ټول تعريفونه الله تعالى لره دى ځكه چې دا خو هرچا ته پته ده اونه د حمد څخه دا مقصود دې چې متكلم مخاطب ته دا خبر وركوى چې ماته معلومه ده چې الله تعالى دټولوتعريفونومستحق دې بلكه ددې څخه مراد د حمد انشاء ده يعنى د الله تعالى دپاره نوې نوې اوبيا بيا تعريف اوحمد كول مراد دى.

**قوله:** وَاللَّهُ عَلَمٌ عَلَى الْمَعْبُودِ بِحَقٍّ: يعنى الله د معبود برحق عَلَمٌ (نوم) دې، مفسر علام جلال الملة والدين د لفظ الله تشريح په عَلَمٌ على المعبود بحق سره كړې ده اود يو اعتراض جواب ئې وركړې دې.

**اعتراض:** په دې مقام (الحمد لله) كښې لفظ «الله» د الله تعالى د نورو صفتى نومونو مثلاً (خالق، رازق وغيره) په مقابله كښې ولې اختيار كړو حالانكه صفتى نومونه په ذات مع الصفات باندې دلالت كوى.

**جواب.** الله د يو معبود ذات نوم دې کوم چې ټولود کمال صفتونو ته جامع دې. دالله تعالى څخه سوا باقي ټول نومونه صفتي دي که دالله تعالى په څانې بل صفتي نوم اختيار کړې وې نو چاته دا وهم کيدې شو چې الله تعالى هم ددې صفتي نوم په وجه د حمد مستحق دې نه چې د خپل ذات په اعتبار سره، څکه چې ديو صفت د يو حکم سره متعلق کيدل په دې خبره دلالت کوي چې هم دا وصف ددې حکم علت دې اودا خبره باطله ده څکه چې الله تعالى څنګه د خپل صفاتو په اعتبار سره مستحق د حمد دې دغه شان د ذات په اعتبار سره هم يوشان مستحق د حمد دې

**قوله** {رَبِّ الْعَالَمِينَ} أَيْ مَالِكِ: رَبٌ مصدر دې په معنى د تربية سره، رَبٌ د الله صفت د مبالغې په طور راوړلې شوې دې، د رب متعدد معانې راځي، سيد، مالک، معبود، مصلح وغيره، د مناسب مقام په وجه مفسر علام د مالک معنى اختيار کړې ده. لهذا رب په الله باندې د حمل کولو د عدم جواز اعتراض نه واقع کيږي.

**قوله** وَهُوَ إِرَادَةُ الخَيْرِ لِأَهْلِهِ: په دې اضافې سره د مفسر علام مقصد د يو سوال جواب دې رحمن او رحيم دواړه د مبالغې صيغې دې او د رحمت څخه مشتق دي اود رحمت معنى رقت قلب ده اودا معنى دالله تعالى دصفاتو سره ممتنع ده. څکه چې د رقت قلب دپاره د قلب ضروري وي او الله تعالى د قلب څخه منزه او پاک دې.

جواب دالله تعالى دپاره رحمت اطلاق د غايت او انجام په اعتبار سره دې يعنى د رقت قلب نتيجه اوانجام په خيرباندې اماده کول وي نودلته د رحمت ذکرکولې شي اومراد ترې د رحمت انجام چې خير دې هغه وي.

**قوله** مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ: په مَلِكِ کښې دوه قرائتونه دي، يوپه الف سره يعنى مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ، او دويم په حذف د الف سره يعنى مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ» په دويم قرأت کښې هيڅ اشکال نشته، يعنى هغه د بدلې د ورځې بادشاه دې، په رومبي قرأت يعنى مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ کښې اشکال دې

**سوال:-** مالک اسم فاعل دې او ددې اضافت، اضافت لفظيه وي، کوم چې د تعريف مفيد نه وي نو دا د الله تعالى صفت جوړيدل صحيح نه دي څکه چې الله معرفه دې او مالک يوم الدين نکره دې، او نکره د معرفه صفت نشي واقع کيدې ؟

**جواب:** د جواب حاصل دا دې چې د اسم فاعل څخه چې کله د حال يا استقبال قصد اوکړې شي نو اضافت لفظيه وي او که ددې څخه ماضي يا استمرار اراده کړې شي نو دا اضافت حقيقيه وي کوم چې د تعريف مفيد وي او دالله تعالى په ټولو صفتونو کښې استمرار او دوام مراد وي نو اوس څه اشکال نه پاتې کيږي.

قوله: وَخُصَّ بِالذِّكْرِ: په دې عبارت سره هم د یو سوال جواب مقصود دې.

سوال: په مالک یوم الدین کښې د یوم جزاء تخصیص ولې کړې شوې دې حال دا چې الله تعالی د ټولو زمانو او مکانونو مالک دې؟

جواب: دیوم جزاء څخه علاوه په دنیا کښې دانسانانو ملکیت هم وی اګرچې مجازی او عارضی وی اود قیامت په ورځ به د چا مجازی او عارضی ملکیت هم نه وی د قیامت په ورځ به الله تعالی تپوس اوکړی ((لمن الملک الیوم)) د جواب ورکولو والا به څوک نه وی نو الله تعالی به پخپله جواب اوفرمائی ((لله الواحد القهار)) نومفسر په خپل قول ((لا ملک ظاهراً فيّ لاحد الا له تعالی)) اوپه دې کښې ئې دغه جواب ته اشاره اوکړه.

قوله: تَخُصُّكَ بِالْعِبَادَةِ: ددې اضافې مقصد دا ښودل دی چه إياكَ د مفعول تقدیم، په تخصص باندې دلالت کولو دپاره دې، په اصل کښې نَعْبُدُكَ وو.

قوله: أَيْ أَرْشِدْنَا إِلَيْهِ أي ابتنا عليه: ارشاد په معنی داثبات دې، څکه چه هدایت خو حاصل شوې دې، لهذا اوس په دې باندې همیشوالې رانصیب کړې.

قوله: وَيُبْدَلُ منه {صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ}: دا بدل الکل من الکل دې، دا د الصراط المستقیم د مدح او تاکید دپاره راوړلې شوې دې.

قوله: وَيُبْدَلُ مِنْ الذين بصلته: یعنی الذین سره دخپلې صلې نه مبدل منه ده، او غیر المغضوب علیهم ددې نه بدل دې، په دې کښې مبدل منه معرفه او بدل نکره ده، اودا صحیح نه ده.

سوال: غیرچه کله د دوه متضاد څیزونو په مینځ کښې واقع شی، نوهغه معرفه کیږی، لکه څنګه چه دلته واقع دې، څکه چه انعمت علیهم او مغضوب علیهم دواړه په خپل مینځ کښې متضاد دی، او بعضې حضراتو غیرالمغضوب د الذین انعمت صفت ګرځولې دې، خوپه دې صورت کښې به دا اشکال وی چه د معرفه صفت نکره صحیح نه دې؟

جواب: موصول، په ابهام کښې مشابه بالنکرات دې، لهذا ددې سره د نکره په شان معامله شوې ده.

دویم جواب: غیر چې کله بین الضدین واقع شی نو دهغې نکارت ختمیږی لکه څرنګه چه دلته مابین الضدین واقع دې، لهذا هیڅ اشکال پاتې نشو

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## [٢] سورة البقرة

## سورة البقرة مدنية مائتان وست او سبع وثمانون اية

## سورت بقره مدني سورة دې ٢٨٦ ٢٨٧ آياتونه دي

## [اياتونه: ١ - ٧]

بسم الله الرحمن الرحيم {الم} الله أعلم بمُرَادِهِ بذَلِكَ {ذَٰلِك} أيْ هَذَا {الْكِتَاب} الَّذِي يَقْرَؤُهُ مُحَمَّد {لَارَيْبَ} لَا شَكَّ {فِيهِ} أنَّهُ مِنْ عِنْد الله وَجُمْلَة النَّفْي خَبَر مُبْتَدَؤُهُ ذَلِك وَالْإِشَارَة بِهِ لِلتَّعْظِيمِ {هُدًى} خَبَر ثَانٍ أيْ هَادٍ {لِلْمُتَّقِينَ} الصَّائِرِينَ إلَى التَّقْوَى بِامْتِثَالِ الْأَوَامِر وَاجْتِنَاب النَّوَاهِي لِاتِّقَائِهِمْ بِذَلِكَ النَّار {الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ} يُصَدِّقُونَ {بِالْغَيْبِ} بِمَا غَابَ عَنْهُمْ مِنْ الْبَعْث وَالْجَنَّة وَالنَّار {وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ} أيْ يَأْتُونَ بِهَا بِحُقُوقِهَا {وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ} أعْطَيْنَاهُمْ {يُنْفِقُونَ} فِي طَاعَة الله {وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إلَيْك} أيْ الْقُرْآن {وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلك} أيْ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل وغيرهما {وبالآخرة هم يوقنون} يعلمون {أُولَٰئِكَ} الْمَوْصُوفُونَ بِمَا ذُكِرَ {عَلَىٰ هُدًى مِنْ رَبِّهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ} الْفَائِزُونَ بِالْجَنَّةِ النَّاجُونَ من النار {إنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا} كَأَبِي جَهْل وَأَبِي لَهَب وَنَحْوهمَا {سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنْذَرْتَهُمْ} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَال الثَّانِيَة أَلِفًا وَتَسْهِيلهَا وَإِدْخَال أَلِف بَيْن الْمُسَهَّلَة وَالْأُخْرَى وَتَرْكه {أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ} لِعِلْمِ الله مِنْهُمْ ذَلِك فَلَا تَطْمَع فِي إيمَانهمْ وَالْإِنْذَار إعْلَام مَعَ تَخْوِيف {خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ} طَبَعَ عَلَيْهَا وَاسْتَوْثَقَ فَلَا يَدْخُلهَا خَيْر {وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ} أيْ مَوَاضِعه فَلَا يَنْتَفِعُونَ بِمَا يَسْمَعُونَهُ مِنْ الْحَقّ {وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ} غِطَاء فَلَا يُبْصِرُونَ الْحَقّ {وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ} قوي دائم

**ترجمه**: شروع کوم په نامه دَ الله چې ډير بخښونکي او مهربان دې. (الم) هم الله تعالى دَ دې لفظ نه خپل مراد پيژندونکې دې. دا کتاب دې کوم چې محمد ﷺ ئې لولي. په دې کښې هيڅ شک نشته چې دا دَ الله تعالى دَ طرف نه دې او جمله يعنى (لَا رَيْبَ فِيْهِ) خبر دې دَ کوم مبتدا چې (ذٰلِكَ) دې او دَ اسم اشاره بعيد استعمال دَ تعظيم دَ بيان دَ پاره دې. (هُدًى) خبر ثانى دې او په معنى کښې دَ (هَادٍ) دې. دَ پرهيزگارانو دَ پاره لاره خودونکې دې (يعنى) د امتثال اوامر او دَ اجتناب نواهي په ذريعه دَ تقوىٰ رغبت لرونکې دې (هم دَ دې امتثال او اجتناب) د برکته دَ جهنم دَ اورنه دَ بچ کيدو په وجې دوى ته متقى او وئيلې شو دا هغه خلق دى چې په غائبو باندې ايمان لرى يعنى په هغه څيزونو چې دَ دوى نه پټ دى مثلاً بعث بعد الموت دَ جنت او دوزخ تصديق کوى او مونځ قائموى يعنى سره دَ ارکانو او شرائطو ئې اداکوى او مونږ چې دوى ته کوم رزق ورکړې دې دَ هغې نه دَ الله تعالى په اطاعت کښې خرچ کوى او دا هغه خلق دى چې په دې قرآن باندې ايمان لرى کوم چې په تا باندې نازل کړې شوې دې

او په هغې هم کوم چې ستا نه وړاندې نازل کړې شوی دی یعنی تورات انجیل وغیره اوهغوی په آخرت باندې هم یقین لري یعنی دَهغې پوخ علم لري. هم دغه خلق کوم چې په مذکوره صفاتو باندې متصف دی دَخپل رب دَطرف نه (ښخه) په هدایت باندې دی اوهم دغه دی چې پوره کامیاب دی یعنی دَ جنت دَ (حصول) په ذریعه کامیاب اودَ دوزخ داور نه خلاصې بیامومونکی دی. بیشکه هغه خلق کوم چې منکرشو لکه ابوجهل او ابولهب وغیره ستاسو هغوی لره ویرول اونه ویرول برابردی. ﴿ءَأَنْذَرْتَهُمْ﴾ کښې دَ دواړو همزاؤ تحقیق اودویم لره په الف سره بدلول او په دویم کښې ترك تسهیل کولوسره اودَ مُسَهّله او محققه په مینځ کښې الف داخلولو سره (او ثانی کښې) ترك تسهیل کولو سره هغوی ایمان راوړونکی نه دی ځکه چې داخبره دَ هغوی باره کښې دَ الله تعالی په علم کښې شته لهذا تاسو دَهغوی دَایمان امید مه لرئی او انذار په خوف سره ویرولوته وائی الله تعالی دَهغوی په زړونو باندې مهرونه لګولی دی اوهغه ئی سیل (Seel) کړی دی لهذا اوس په هغې کښې خیرنه شی داخلیدلې اودَهغوی دَ اوریدو (قوت) یعنی په غوړونوباندې (معنوی) مهرلګولې شوې دې هم دغه وجه ده چې دَحق خبرې اوریدو سره مستفید کیږی نه اودَهغوی په سترګوباندې پرده ده چې دهغې دَ وجې نه حقه خبره نه شی کتلې اودَهغوی دَ پاره سخت اودَهمیشه عذاب دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**دَ سورة وجه تسمیه:-** سورة په لغت کښې اوچتوالی یا اوچت منزل ته وائی. (لسان، راغب) یعنی هرسورت دَ اوچتې مرتبې والا دې. دَ سورت یومعنی فصیل (دَ ښاردیوال) ته هم وائی. دَ ښاردَ خلورو واړو طرفودیوال ته سورالمدینة وائی. قرآنی سورتونوته دَ سورت ونیلووجه داده چې داخپل مضامینو لره هم دغه شان احاطه کونکې وی لکه ځنګه چې دَ ښاردیوال ښار راګیر کړې وی.

**قوله** ذٰلِكَ:- اسم اشاره دَ بعید دَپاره ده دکوم مشارالیه چې دَمحسوسات نه وی یعنی په حواس خمسه ظاهره سره چې دَ کوم ادراك کولې شی.

**قوله** رَيْبَ: شك شبه. هوالتردد بين النقيضين لاترجيح لاحدهما على الآخر عندالشاك.

**قوله** هُدًى. دَهدایت نه ماخوذ دې. په معنی دلارخودنه(لار ښودونی).

**قوله** غَيْبِ: هرهغه څیز (شئ) کوم چې دَانسان دَ حواس خمسه نه غائب وی.

**قوله** يُقِيْمُوْنَ:- دَاقامت نه ماخوذ دې دَ کوم معنی چې نیغول دی اودَ مونځ سیدا کول یعنی ادا کول دَدې دَ آدابو او شرائطو لحاظ کول او په خشوع اوخضوع سره ادا کول دی

**قوله** رزق:- دَ ژوند تیرولوسامان.

**قوله** يُنْفِقُوْنَ: دا دَ انفاق نه ماخوذ دي په معنى دَخرچ كولو.

**قوله** اٰخِرَةِ: مؤخراو روستوراتلونكي څيز دلته تيري دَعالم دنيا په مقابله كښې عالم آخرت مراددي.

**قوله** يُوْقِنُوْنَ: دَايمان نه ماخوذ دي جمع مذكرغائب.

**قوله** مُفْلِحُوْنَ: افلاح نه ماخوذ دي فلاح پوره كاميابئ ته وائى.

**قوله** سَوَآءٌ: دا اسم دي قائمقام دَ مصدر هم دغه وجه ده چې دَدې تثنيه اوجمع نه راځى. ونيلې شى هماسواءهمرسَوَآءٌ اوكله چې دَدې تثنيه راوړل وى نوونيلې شى. هماسيّان غشاوة په وزن دَفعالة. دا وزن په يوڅيز باندې مشتمل كيدو د معنى ظاهرولودپاره استعماليږى لكه: عصابه او عمامه، دغشوة په غين باندې درې واړه حركته صحيح دى. دَدې معنى سرپټول دى دا مصدر هم دې مگر دې ځائى كښې ترينه پټونكي څيزمراددي.

**قوله** هٰذَا: **سوال**:- دَ ذلك تفسير ئې په هذا سره ولې اوكړو.

**جواب**:- ذلك: په معنى د هذا دې ځكه چې دَ ذٰلِكَ مشاراليه، الٓمّٓ يا قرآن كريم دې اودواړه ډيرزيات نزدې دى.

**سوال**:- نوبيا دَ ذٰلِكَ په ځائى باندې ئې هذا ولې استعمال نه كړو؟

**جواب**:- بيان دَتعظيم دَپاره ئې اسم اشاره دَ بعيداستعمال كړه.

**قوله**:- اَلَّذِىْ يَقْرَؤُهُ مُحَمَّدٌ ﷺ: په دې سره دَ نورو آسمانى كتابونونه احتراز اوكړې شو

**قوله**. اَنَّهُ مِنْ عِنْدِاللهِ دَاضافه كولو مقصد دَيواعتراض جواب دې.

**اعتراض**:- (الكتاب) مفرد دې او په مفردكښې دَ شك هيڅ يومطلب نه وى ځكه چې شك اوظن اودَ علم تعلق د قضيه سره وى.

**جواب**:- الكتاب مفردنه دې بلكه قضيه ده دَدې تقديرى عبارت دادې ذلك الكتاب انه من عندالله.

**قوله**. اَلصَّائِرِيْنَ اِلَى التَّقْوٰى:

**سوال**: دَ لِلْمُتَّقِيْنَ تفسير په الصَّائِرِيْنَ اِلَى التَّقْوٰى سره كولوكښې څه نكته ده؟

**جواب**:- دَدې تفسيرنه دَ يوسوال مقدر جواب مقصوددې.

**سوال**:- سوال دادې چې په هُدًى لِلْمُتَّقِيْنَ كښې تحصيل د حاصل دې يعنى دا كتاب متقيانوته هدايت وركونكي دې. متقيانوته هدايت وركولونه څه مراد دې ځكه چې

متقي خو پخپله هدایت یافته وی.

**جواب:-** دَجواب حاصل دادې چې دَمتقين نه مراد راغبين الى التقوىٰ دی.

**قوله:** لِاِتِّقَائِهِمْ بِذٰلِكَ النَّارَ دَ اضافه مقصد متقي ته دَ متقي وئيلو وجه بيانول دی. متقي ته دَهغه دَاعمال صالحه په ذريعه سره به چونکه دَ دوزخ نه بچ کولې شی په دې وجه ده ته متقي وائی.

**قوله:** كَـابِى جَهْلٍ وَابِى لَهَبٍ وَغَيْرِهِمَا، دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال:-** إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ په دې آيت کښې دَ عموم سره وئيلې شوی دی چې ستاسو سره دوی ويرول اونه ويرول برابردی په دوی کښې يوهم ايمان راوړونکې نشته حالانکه هم دَدې حضراتو نه ډيرخلق په اسلام مشرف شوی دی.

**جواب:-** مفسرعلام اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا تفسير په کابی جهل وابی لهب سره کولو کښې اشاره اوکړه چې دَعموم نه بعضې کسان مراد دی اودَ چا ايمان نه راوړل چې دَالله تعالىٰ په علم کښې متعين وو لکه ابوجهل او ابولهب.

**قوله:** ءَاَنْذَرْتَهُمْ: په دې کښې پنځه قراءتونه دی اودَ دواړو همزاګانو دَتحقيق په ثابت پاتې کيدو په صورت کښې دوه قراءتونه دی: ① دَ دواړو همزه ګانو په مينځ کښې الف داخلولوسره ② ترک ادخال کولوسره دَدويم همزه تسهيل په صورت کښې هم دوه قراءتونه دی. ③ ادخال الف ④ ترک ادخال الف ⑤ پنځم قراءت دويم همزه په الف سره بدل کول او په ادخال الف کښې واؤ په معنى دَمع دې. اى مع ادخال الف. مذکوره پنځه واړه قراءتونه صاحب جلالين رحمه الله په دې ترتيب سره بيان کړی دی: ① تحقيق همزتين (يعنی تحقيق محض بلا ادخال) ② ابدال ثانيه بالالف مع المد ③ تسهيل محض (بلا ادخال الف) ④ تسهيل بلاادخال ⑤ ادخال مع تحقيق ثانيه.

الٓمّٓ دَمبتدامحذوف خبر کيدودَ وجې نه محلاً مرفوع دې. تقديری عبارت دادې هذا الٓمّٓ، ذلك اسم اشاره مبتداء اومحلاً مرفوع الكتاب ذلك دَ مبتداء خبر اول لَا رَيْبَ فِيْهِ خبرثانی تقديری عبارت دادې لَا رَيْبَ كَائِنٌ فِيْهِ لا نفی جنس رَيْبَ دَدې اسم فيه، کائن سره متعلق شو جمله شوه دَ ذلك خبر ثانی، هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ خبرثالث.

**قوله:** ءَاَنْذَرْتَهُمْ ومبې همزه استفهاميه دَ تسويه دَپاره ده. ءَاَنْذَرْتَهُمْ په تاويل د مصدر سره مبتداء دې او سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ خبرمقدم دې اوداهم کيدې شی چې سَوَاءٌ جاری مجرىٰ مصدراو د ءَاَنْذَرْتَهُمْ فاعل جمله کيدو سره دَ اِنَّ خبرشی.

**سوال** - په انذار او اخبار بالعذاب کښې څه فرق دې؟

**جواب**:- انذار په داسې وخت کښې ويرولوته وائي چې دَ امر مخوف منه نه احتراز ممکن وي ګنې اخبار بالعذاب به ورته وئيلې شي (اي في وقت يتم التحرز من الامر المخوف والا فهو إخباراً بالعذاب) (صاوی)

**قوله** خَتَمَ اللهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ: دا اودَې مابعددَ ماقبل دپاره علت دې يعني داخلق ايمان څکه نه راوړي چې دَدوی په زړونوباندې مهرلګولې شوې دې.

**سوال** - دَمهرلګولونه څه مراددې؟ حالانکه دا يو امر مشاهده دې چې ترننه پورې دَ يو کافرپه زړه باندې هم مهرلګيدلې په نظر نه راځي حالانکه دَ آپريشن په ذريعه دډيرو زړونو مشاهده کولې شي.

**جواب**:- دَ قلب نه مراد عقل دې کومه چې يوه لطيفه ربانيه ده چې قلب صنوبری سره قائميږی لکه چې دَ عرض قيام جوهرسره او دَحرارت قيام د اور سره کيږی دَدې اتصال کيفيت دَ الله تعالى نه علاوه څوك نه پيژني.

**قوله**: اى مَوَاضِعَهُ: دَ يو سوال جواب دې.

**سوال**:- مضاف دَ کومې فائدې دَپاره محذوف منلې شوې دې؟

**جواب**:- دادې چې سمع يومعنوی شئ دې دَدې طرف ته دَختم نسبت کول صحيح نه دې په دې وجه مضاف محذوف اومنلې شو او اوخودلې شو چې دَ سمع نه مراد مواضع السمع ده په کوم چې مهر لګيدلې شي.

**سوال**:- سمعٌ لره مفرد راوړلو کښې څه حکمت دې سره دَدې چې قلوب او ابصار جمع راوړلې شوی دی.

**جواب**:- ياخودَدې دَپاره چې سمعٌ مصدردې اودَ مصدرتثنيه اوجمع نه شی راتلې يادَدې دَپاره چې مسموع واحددې. وَعَلٰى سَمْعِهِمْ کښې وقف تام شو وَعَلٰى اَبْصَارِهِمْ خبرمقدم دې اوغِشَاوَةٌ مبتداء مؤخر او جمله مستانفه ده.

**قوله**:قوي دَائِمٌ: دَ عَظِيْمٌ تفسير دَ قوی دائم سره کولومقصد دَهغه شبه جواب ورکول دی چې عَظِيْمٌ دَ اجسام صفت واقع کيږی لکه چې لَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ او عذاب دَ قبيلې د معنی دته دی لهذا عَظِيْمٌ دَ عذاب صفت راوړل صحيح نه دی. دَ جواب خلاصه داده چې عَظِيْمٌ قَوِيٌ دائمٌ په معنی کښې دې کوم چې دَ معنی صفت واقع کيږی.

**[اياتونه: ٨-١٠]**

ونزل في المنافقين {وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ} أي يَوْم القِيَامَة لِأنَّهُ آخِر الأيَّام {وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ} رُوعِيَ فِيهِ مَعْنَى مَنْ وَفِي ضَمِير يَقُول لَفظهَا {يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا} بِإظْهَارِ خِلاف مَا أبْطَنُوهُ مِنَ الْكُفر لِيَدْفَعُوا عَنْهُمْ أحْكَامه الدُّنْيَوِيَّة {وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ} لِأنَّ وَبَال خِدَاعهمْ رَاجِع إلَيْهِمْ فَيَفْتَضِحُونَ فِي الدُّنْيَا بِإطْلَاعِ اللَّه نَبِيّه عَلَى مَا أبْطَنُوهُ وَيُعَاقَبُونَ فِي الآخِرَة {وَمَا يَشْعُرُونَ} يَعْلَمُونَ أنَّ خِدَاعهمْ لِأنْفُسِهِمْ وَالْمُخَادَعَة هُنَا مِنْ وَاحِد كَعَاقَبْت اللِّصّ وَذِكْر اللَّه فِيهَا تَحْسِين وَفِي قِرَاءَة وَمَا يَخْدَعُونَ {فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ} شَكّ وَنِفَاق فَهُوَ يُمْرِض قُلُوبهمْ أيْ يُضْعِفهَا {فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا} بِمَا أنْزَلَهُ مِنَ الْقُرْآن لِكُفْرِهِمْ بِهِ {وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم {بِمَا كَانُوا يُكَذِّبُونَ} بِالتَّشْدِيدِ أيْ نَبِيّ اللَّه وَبِالتَّخْفِيفِ أيْ قَوْلهمْ آمَنَّا

---

**ترجمه**: -(آئنده آيت) دَ منافقانو باره کښې نازل شوې دې. او بعض خلق داسې هم دي چې وائي چې مونږ په الله تعالى باندې او په ورځ دَ آخرت باندې ايمان راوړې دې يعنې دَ قيامت په ورځ ځکه چې هغه آخر الايام ده حالانکه هغوی (بالکل) ايمان نه راوړونکی نه دی. (دَ هم ضمير جمع راوړلو کښې) دَ مَنْ دَ معنی رعايت کړې شوې دې او دَ يقول ضمير (واحد راوړلو کښې) دَ مَنْ دَ لفظ رعايت کړې شوې دې (بلکه) د هغوی الله او د ايمان راوړونکو سره دهوکه بازی کوی. دَ خپل دغه کفر په خلاف به ئې ظاهرول کوم چې هغوی پټ کړې دې دې دَپاره چې هغوی دَ خپل ځان نه دَ کفر دنياوی احکام لرې کړې شی حالانکه (فی الواقع) هغوی چاته دهوکه نه ورکوی بغير دَ خپل ذات نه ځکه چې دَهغوی دَدهوکې وبال هم په هغوی باندې راپريوتونکې دې. او هغوی به هم په دنيا کښې ذليله کيږی يعنې الله تعالى خپل نبی لره په دغه انفاق باندې خبردار کولو په وجه کوم چې هغوی پټ کړی دی او په آخرت کښې به هغوی ته سزا ورکولې شی او هغوی ته دَدې احساس هم نشته يعنې دَدې خبرې علم نه لری چې دَهغوی دَ دهوکه کولو (ضرر) هم دَهغوی دَپاره دې او مُخَادِعَة (مفاعلة) دلته دَ يو طرف نه دې لکه په عاقبت اللص کښې او دَالله تعالى ذکر دَتحسين (بنائست) دَپاره دې او په يو قراءت کښې وَمَا يَخْدَعُوْنَ دې اودَ هغوی په زړونو کښې يوه بيماری ده چې دَهغوی زړونه مريض يعنې کمزورې کوی نو الله تعالى دَ هغوی بيماری زياته کړه په سبب دَهغې چې الله تعالى قرآن نازل کړو او هغوی انکار کوی. اودَ هغوی دَ دروغو دَ وجې دَهغوی پاره دردناک عذاب دې. (يُكَذِّبُوْنَ) په تشديد سره يعنې دَالله تعالى دَ نبی تکذيب کوی اودَ (ذال په تخفيف سره) يعنې په خپل قول آمَنَّا کښې دروغژن دی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: وَمِنَ النَّاسِ: مِن تبعيضيه دې النّاس اصل کښې أُنَاسٌ وو همزه تخفيفًا حذف کړې شو. په سورت اسراء کښې دا اصل استعمال شوې دې. ﴿ يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ ﴾ دَ سيبويه او فراء په نيز دَ اناس ماده همزه، نون، سين، دې اودَ کسائی په نيز دَدې ماده نون، واو، سين ده. دا دَ النوس نه مشتق دې دَدې معنى حرکت کول دی. نَاسَ يَنُوْسُ نَوْسًا حرکت کول، دَ ابونواس شاعر چې اصل نوم ئې حسن بن هانی وو ابونواس به نی ورته ځکه وئيلو چې دَهغه دَ ويښتو دوه لړونو(کوڅيو) به هوا سره حرکت کولو. (لغات القرآن للدرويش)

واؤ استينافيه يا عاطفه مِنَ النَّاسِ خبرمقدم مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا مبتداء مؤخر (دويم ترکيب) مِنَ النَّاسِ، فَرِيْقٌ، يااناسٌ دموصوف محذوف صفت دې او موصوف باصفت مبتداء او مَنْ يَّقُوْلُ الخ جمله کيدو سره خبر.

**قوله** وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ: باء دَ حرف جر اعاده ئې دَخپل ايمان دَدعوې دَ تاکيد دَپاره کړې ده الله تعالی دَ هغوی دَايمان دَعوی لره په خپل قول ﴿ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴾ نه په ابلغه او ډيره زياته مؤکده طريقه سره رد کړې ده او هغه په دې توګه چې جمله اسميه استعمال کړه کومه چې په هميشه والی او استمرار باندې دلالت کوی يعنی هغوی به په يوه زمانه کښې هم متصف بالايمان پاتې نه شو نه په ماضی کښې وو او نه حال کښې او نه به راتلونکی وخت کښې مؤمنان وی او په خبر باندې دَ حرف جر اضافه دَ تاکيددَپاره اوفرمائيله.

**قوله** وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ: واؤ حاليه دې ما مشابه بليس، هُمْ دَ دې اسم بِمُؤْمِنِيْنَ دَدې خبر باء زائده دَ تاکيددَپاره.

**قوله** اى يَوْمِ الْقِيَامَةِ: دَدې عبارت دَ اضافه کولو مقصد دَ يوې شبه جواب دې.

**شبه**. شبه داده چې په آخرايام باندې ايمان راوړل دَ موجباتو د دين نه نه دی نودَدې منکر ته کافر ولې وئيلې شی؟

**جواب**:- يوم الآخر نه مراد يوم القيامة دې يعنی دَ حساب کتاب او دَ اعمالو دَ بدلې ورځ ده او دا دَ موجباتو د دين نه دی.

**قوله** لِاَنَّهٗ اٰخر الايّام: په دې عبارت سره ئې دَ يوم الآخر دَ وجې تسميه طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله** يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: يُخٰدِعُوْنَ: دَ جمع مذکرغائب صيغه ده او باب دې(مفاعلة) هغوی په خپل مينځ کښې دهوکه ورکوی. اَلْخِدَاعُ په لغت کښې فساد او اِخفاء

ته وائي. او مُخَدَّعُ ميم مثلث سره په لويه كمره كښې وړه كمره يعني كوټنړئي ته وائي په كوم كښې چې مال او اسباب پټ ايږدي. (فتح القدير شوكاني) يُخَادِعُوْنَ: جمله استينافيه هم كيدې شي په دې صورت كښې به د يو سوال مقدر جواب شي.

**سوال:-** به داوي چې دَ باطن خلاف دا منافقان دَ ايمان اظهارولې كوي؟

**جواب:-** الله تعالى ته دَ دهوكې وركولو دَپاره داهم كيدې شي چې يُخٰدِعُوْنَ دَ يقول ضمير نه حال وي اى مُخَادِ عين الله الخ (اعراب القرآن) او د يَقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللهِ نه بدل اشتمال هم كيدې شي.

**قوله:** مِنَ الْكُفْرِ دا دَ مَا اَبْطَنُوْا بيان دې.

**قوله:** لِيَدْفَعُوْا دا دَ اظهار ايمان علت او وجه دې.

**قوله:** اَحْكَامَهُ: اى احكام الكفر اودَ احكام كفر نه دنياوى احكام مراد دى. يعنى منافقان دَ باطن خلاف دَ ايمان اظهار دَ كرفت نه دَ بچ كيدو دَپاره كوى. مثلاً دَ اظهار ايمان دَ وجې نه قتل او قيد، جزيه او رسوائى نه محفوظ پاتې كيږى او دَ اسلام دَ مراعاتو نه فائده حاصلوى. (صاوى)

**قوله.** يَعْلَمُوْنَ لره په دَ يشعرون سره تعبير كولو وجه داده چې دَ علم ذريعه هم مشاعر خمسه دى كه ظاهرى وى او كه باطنى.

**قوله:** اَلْمُخَادَعَةُ هُنَا مِنْ وَّاحِدٍ: دَدې عبارت دَ اضافه كولو فائده دَ يو اعتراض جواب دې.

**اعتراض:** باب مفاعلة دَ طرفين نه دَ شركت تقاضا كوى دَمنافقانودَ طرف نه خو مكر او خداع په پوهه كښې راځى خودَ الله تعالى دَ طرف نه دَدې نسبت په ذهن كښې نه راځى ځكه چې مكر او فريب د خصائل رذيله نه دى دَ كوم نه چې الله تعالى پاك دې.

**جواب:-** باب مفاعلة اګرچې دَ طرفينو نه دَ شركت تقاضا كوى مګر دا قاعده كليه نه ده ځكه چې دَدې يو خاصيت موافقت مجرد هم دې لكه عاقبت اللص. وسَافَرَ په د معنى سَفَرَ لهذا خَادَعَ په معنى دَ خَدَعَ دې.

**اعتراض:** يُخَادِعُوْنَ الله: هغوى الله تعالى ته دهوكه وركوى آيا الله تعالى دهوكه خوړلې شى؟ هغه خو عليم بذات الصدور دې دَهغه نه دَ چاهيڅ راز پټ نه دې. دهوكه خو هغه خورى چې دَ خادع دَ خدع او ماكر دمكر كولو مكر نه بې خبره وى.

جواب:-لفظ الله دَ تحسين كلام دَپاره دې معنى مقصود نه ده. تقدير دعبارت داسې دې يُخَادِعُوْنَ رسول الله وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا يا مقصد تحسين معنوى دې په دې توګه چې دا

استعاره تمثیلیه ده، مشبه لره به د مشبه د پاره مستعار اخستې شوې دي. يعنى الله تعالى سره د منافقينو معامله د هغه سړي د حال سره تشبيه ورکړې ده کوم چې خپل صاحب سره د دهوکې ورکولو معامله کوي يا د مجازعقلي په توګه د الله تعالى طرف ته نسبت کړې شوې دي لکه د الله تعالى قول ﴿ فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِي الْقُرْبٰى ﴾ کښې اسناد مجازي دې يا د مشاکلت په توګه د خداع نسبت د الله تعالى طرف ته کړې شوې دې لکه د الله تعالى قول ﴿ وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ ﴾ کښې.

**قوله** ﴿فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾: مرض، د طبيعت د اعتدال د حدنه وتلو ته وائي د کوم په وجه چې افعال او افکارکښې خلل واقع کیږي. دلته د مرض نه مراد روحاني مرض دې او داهم احتمال دې چې بدني مرض مرادوی کله چې دا دواړه امراض خپل انتهاء ته اورسیږي نو د روحاني اوبدني مرګ سبب کیږي.

**روحاني امراض**: مثلاً کفر، شرك شك نفاق جهل او بخل وغيره، علامه سیوطي رحمه الله خپل قول د شك اونفاق نه د روحاني مرض طرف ته او د يُمَرِّضُ قُلُوْبَهُمْ سره ئې بدني مرض طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله** مُؤْلِمٌ: د لام په فتحه سره څکه چې فعيل په معنى د مفعول مستعمل نه دې (ترويح الارواح) عَذَابٌ مُؤْلَمٌ داسې سخت عذاب چې د سختوالي د وجې نه ئې پخپله عذاب هم اذيت محسوس کړې شی دا د مبالغه په توګه دې. څکه چې اَلِيْمٌ صرف مَعذب صفت دې نه چې د عذاب بعض حضراتو مولِمٌ د لام په کسره سره هم ونیلې دي په دې صورت کښې د عذاب طرف ته به د اَلِيْمٌ نسبت حقيقي شي.

**[اياتونه: ۱۱-۱۵]**

{وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ} أيْ لِهٰؤُلَاءِ {لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ} بِالْكُفْرِ وَالتَّعْوِيقِ عَنِ الْإِيمَانِ {قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ} وَلَيْسَ مَا نَحْنُ فِيهِ بِفَسَادٍ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى رَدًّا عَلَيْهِمْ {أَلَا} لِلتَّنْبِيهِ {إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلٰكِنْ لَا يَشْعُرُونَ} بِذٰلِكَ {وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ} أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {قَالُوا أَنُؤْمِنُ كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ} الْجُهَّالُ أيْ لَا نَفْعَلُ كَفِعْلِهِمْ قَالَ تَعَالَى رَدًّا عَلَيْهِمْ {أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلٰكِنْ لَا يَعْلَمُونَ} ذٰلِكَ {وَإِذَا لَقُوا} أَصْلُهُ لَقِيُوا حُذِفَتِ الضَّمَّةُ لِلِاسْتِثْقَالِ ثُمَّ الْيَاءُ لِالْتِقَائِهَا سَاكِنَةً مَعَ الْوَاوِ {الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا} مِنْهُمْ وَرَجَعُوا {إِلَى شَيَاطِينِهِمْ} رُؤَسَائِهِمْ {قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ} فِي الدِّينِ {إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِئُونَ} بِهِمْ بِإِظْهَارِ الْإِيمَانِ {اللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ} يُجَازِيهِمْ بِاسْتِهْزَائِهِمْ {وَيَمُدُّهُمْ} يُمْهِلُهُمْ {فِي طُغْيَانِهِمْ} بِتَجَاوُزِهِمُ الْحَدَّ فِي الْكُفْرِ {يَعْمَهُونَ} يَتَرَدَّدُونَ تَحَيُّرًا حَالٌ

**ترجمه**: - کله چې هغوی ته وئیلې شی چې دَ کفر په ذریعه په ایمان کښې رکاوټ اچولو سره په زمکه کښې فساد مه خوره وئی نو جواب ورکوی چې مونږ خو صرف اصلاح کونکی یو او هغوی چې په کومه طریقه باندې دی هغه فساد نه دې. الله تعالی دَ دې تردید کولو سره اوفرمائیل خبردار! په حقیقت کښې هم دغه خلق مفسدان دی. الاَ دَ تنبیه دَپاره دې مګر دوی ته دَ دې شعور نشته او کله چې هغوی ته وئیلې شی چې د خلقو (یعنی) د نبی کریم ﷺ دَ صحابه کرامو په شان تاسو هم ایمان راوړئی نو هغوی جواب ورکوی چې آیا مونږ دَ بې وقوفانو (یعنی) جاهلانو په شان ایمان راوړو؟ یعنی مونږ داسې نه کوو. خبردار په حقیقت کښې خو دوی پخپله بې وقوفان دی لیکن په دې هغوی نه پوهیږی. او کله چې دوی اهل ایمان سره ملاویږی (اِذَا لَقُوْا) دَدې اصل لَقِيُوْا وو ضمه په یا باندې ثقیله ګنړلو سره حذف کړې شوه بیا یاء واؤ سره دَ التقاء ساکنین دَ وجې نه ساقط شوه نو وائی چې مونږ ایمان راوړلې دې او کله چې خپلو شیطانانو سردارانو سره ملاویږی نو وائی په دین کښې خو مونږ تاسو سره یو دَ ایمان اظهار کولو سره خو مونږ هغوی پورې ټوقې مذاق کوو. الله تعالی هغوی سره ټوقې کوی (یعنی) هغوی سره دَ استهزاء معامله کوی او هغه دوی ته دَ دوی په سرکشئی کښې وخت ورکوی دَهغوی دَ حدنه تجاوز کولو دَ وجې نه دَ کفر په وجه حال دا دې چې هغوی په حیرانتیا کښې ګرځی. (يَعْمَهُوْنَ) دَ ضمیر نه حال دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: بِالْكُفْرِ: باء سببیه ده اَلْكُفْر، معطوف علیه اَلتَّعْوِيْق د خپل متعلق عن الایمان سره یوځائی کیدو سره معطوف، تَعْوِيْق، (تفعیل) منع کول، بندول، په یو کار کښې بندیز اچول. ای تعويق الغير عن الايمان.

**قوله**: اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ: دا جمله حصر مبتداء فی الخبر دَ قبیل نه ده. یعنی مونږ خو هم اصلاح کوو دَ اصلاح نه علاوه خو زمونږ بل څه کار نشته. منافقانو خپل دې قول اِنَّمَا کلمه حصر په ذریعه او د جمله اسمیه په ذریعه کوم چې دَ دوام او استمرار دَپاره مفید ده مؤکد کړې ده. الله تبارك وتعالی دَدې جواب په داسې جمله سره ورکړې دې کوم چې په څلورو تاکیدونو سره مؤکد دې او هغه اَلَا اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ ① اَلا حرف تنبیه ② اِنَّ ③ ضمیر فصل ④ تعریف خبر بالالف واللام (ای المفسدون).

**قوله**: اصحابُ النبی: د اَلنَّاس تفسیر ئې په اصحاب النبی سره کولو کښې اشاره او کړه چې الناس کښې الف لام دَعهد دې.

**قوله**: لَقُوْا مفسر اعلام دَدې پوره تعلیل نه دې فرمائیلې پوره تعلیل داسې دې لَقُوْا په

اصل کښې لَقِيُوا وو ضمه په یاء باندې دشوار(درنه)گنړلوسره تخفیفًا اوغورزولې شو. اوس په یاء او واؤ کښې التقاء ساکنین اوشوه اودَ یاء او واؤ نه یاء ساقط شوه دَ واؤ په مناسبت سره دَ قاف کسره په ضمه سره بدله کړې شوه نو لَقُوْا شو.

**قوله** خَلَوْا مِنْهُمْ: مفسرعلام مِنْهُمْ مقدرمنلوسره دې طرف ته اشاره اوکړه چې دَخَلَوْا متعلق محذوف دې اودَ خَلَوْا تفسیر ئې په رَجَعُوْا سره کولو کښې اشاره اوکړه چې خَلَوْا،رَجَعُوْا معنې لره متضمن دې دې دَپاره چې دَدې صله اِلٰی راوړل صحیح شی. خَلَوْا په اصل کښې خَلَوُوْا وو اول واؤ لام کلمه ده او دویم دَ اعراب علامت دې. رومبې واؤ متحرك او دَدې ماقبل مفتوح لهذا واؤ په الف باندې بدلولوسره التقاء ساکنین اوشوه په الف او واؤ ثانیه کښې الف پریوتلو اودَ حذف الف دَ علامت په توګه فتحه باقی پاتې شوه نو خَلَوْا شو.

**قوله**: يَعْمَهُوْنَ مضارع مذکر غائب (ف، س) هغوی سرګردان ګرځی اوحیران ګرځی يَعْمَهُوْنَ، یاخو يَمُدُّهُمْ کښې ضمیرهم یا طُغْيَانِهِمْ کښې ضمیر هم، نه حال دې دَدې مقصد دې طرف ته اشاره کول دی چې يَعْمَهُوْنَ دَمذکوره ضمیرصفت نه دې ځکه چې ضمیرموصوف واقع کیږی.

**[ایاتونه:۱٦-۲۰]**

{أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ} أَيْ اسْتَبْدَلُوهَا بِهِ {فَمَا رَبِحَتْ تِجَارَتُهُمْ} أَيْ مَا رَبِحُوا فِيهَا بَلْ خَسِرُوا لِمَصِيرِهِمْ إلَى النَّار الْمُؤَبَّدَة عَلَيْهِمْ {وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ} فِيمَا فَعَلُوا {مَثَلُهُمْ} صِفَتهمْ فِي نِفَاقهمْ {كَمَثَلِ الَّذِي اسْتَوْقَدَ} أَوْقَدَ {نَارًا} فِي ظُلْمَة {فَلَمَّا أَضَاءَتْ} أَنَارَتْ {مَا حَوْلَهُ} فَأَبْصَرَ وَاسْتَدْفَأَ وَأَمِنَ مِمَّنْ يَخَافهُ {ذَهَبَ اللَّهُ بِنُورِهِمْ} أَطْفَأَهُ وَجُمِعَ الضَّمِير مُرَاعَاة لِمَعْنَى الَّذِي {وَتَرَكَهُمْ فِي ظُلُمَاتٍ لَا يُبْصِرُونَ} مَا حَوْلهمْ مُتَحَيِّرِينَ عَنْ الطَّرِيق خَائِفِينَ فَكَذَلِكَ هَؤُلَاءِ أَمِنُوا بِإِظْهَارِ كَلِمَة الْإِيمَان فَإِذَا مَاتُوا جَاءَهُمْ الْخَوْف وَالْعَذَاب هُمْ {صُمٌّ} عَنْ الْحَقّ فَلَا يَسْمَعُونَهُ سَمَاع قَبُول {بُكْمٌ} خُرْس عَنْ الْخَيْر فَلَا يَقُولُونَهُ {عُمْيٌ} عَنْ طَرِيق الْهُدَى فَلَا يَرَوْنَهُ {فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ} عَنْ الضَّلَالَة {أَوْ} مَثَلهمْ {كَصَيِّبٍ} أَيْ كَأَصْحَابِ مَطَر وَأَصْله صَيْوِب مِنْ صَابَ يَصُوب أَيْ يَنْزِل {مِنَ السَّمَاءِ} السَّحَاب {فِيهِ} أَيْ السَّحَاب {ظُلُمَاتٌ} مُتَكَاثِفَة {وَرَعْدٌ} هُوَ الْمَلَك الْمُوَكَّل بِهِ وَقِيلَ صَوْته {وَبَرْقٌ} لَمَعَان صَوْته الَّذِي يَزْجُرهُ بِهِ {يَجْعَلُونَ} اي اصحاب الصيب {أَصَابِعَهُمْ} اي انامله‍م {فِي آذَانِهِمْ مِنَ} أَجْل {الصَّوَاعِقِ} شِدَّة صَوْت الرَّعْد لِئَلَّا يَسْمَعُوهَا {حَذَرَ} خَوْف {الْمَوْتِ} مِنْ سَمَاعهَا كَذَلِكَ هَؤُلَاءِ إذَا نَزَلَ الْقُرْآن وَفِيهِ ذِكْر الْكُفْر الْمُشَبَّه بِالظُّلُمَاتِ وَالْوَعِيد عَلَيْهِ الْمُشَبَّه بِالرَّعْدِ وَالْحُجَج الْبَيِّنَة الْمُشَبَّهَة بِالْبَرْقِ يَسُدُّونَ آذَانهمْ لِئَلَّا يَسْمَعُوهُ فَيَمِيلُوا إلَى الْإِيمَان وَتَرْك دِينهمْ وَهُوَ عِنْدهمْ مَوْت {وَاللَّهُ مُحِيطٌ بِالْكَافِرِينَ} عِلْمًا وَقُدْرَة فَلَا يَفُوتُونَهُ {يَكَادُ} يَقْرُب {الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ} يَأْخُذهَا بِسُرْعَةٍ {كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُمْ مَشَوْا فِيهِ} أَيْ فِي ضَوْئِهِ

{وَإِذَآ أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا} وَقَفُوا تَمْثِيل لِإِزْعَاجِ مَا فِي الْقُرْآن مِنَ الْحُجَج قُلُوبهمْ وَتَصْدِيقهمْ لِمَا سَمِعُوا فِيهِ مِمَّا يُحِبُّونَ وَوُقُوفهمْ عَمَّا يَكْرَهُونَ {وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ} بِمَعْنَى أَسْمَاعهمْ {وَأَبْصَارِهِمْ} الظَّاهِرَة كَمَا ذَهَبَ بِالْبَاطِنَةِ {إِنَّ اللّٰهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ} شَاءَهُ {قَدِيرٌ} وَمِنْهُ إِذْهَاب مَا ذُكِر

**ترجمه:-** دا هغه خلق دی چاچې دَهدایت په بدله کښې گمراهي اختیارکړه (یعنی) گمراهي ئې په هدایت سره بدله کړه خودا سوداګ دوی دَپاره دَ گټې نه ده. یعنی دوی ته په دې سوداکښې گټه اونه شوه بلکه خساره اوشوه دَهغوی دَ همیشه والی اور طرف ته ورتاویدلوۀ وجې نه اودوی په خپل طریقه کارکښې هیڅ کله په صحیح طریقه نه دی. اودَدوی کیفیت دَ دوی په نفاق کښې دَهغه سړی په شان دې چې په تیاره کښې ئې اور لګولې وی نوچې اور اطراف او جوانب روښانه کړل هغه ته هر څیز ښکاره کیدل شروع شو اود یخنئی تکلیف لرې شو اوویرې والا دَ څیزونو دَ ویرې نه په امن کښې شو نوالله تعالی دَهغه دَ کتلو نور واخستو (یعنی) هغه ئې مړکړو او (هم) ضمیر جمع راوړل دَ اَلَّذِیۡ دَمعنی رعایت په اعتبارسره دې او هم په دغه تیاروکښې په دې حال کښې پریخودل چې هغوی ته په خپل خوا ؤشا کښې هیڅ په نظر نه راځي اوحال دادې چې هغه دَ لارې په باره کښې حیران دې او ویریږی هم دغه کیفیت دَ هغه خلقو دې کوم چې دَ ایمان دَ کلمې په اظهارکولوسره په امن کښې شو اوکله چې مړه شی نو په هغوی به ویره اوعذاب مسلط کړې شی دوی دَ حق اوریدو نه کاڼه دی دَ کوم دَ وجې نه چې ئې دَ قبلولو په اراده نه اوری دَ خیر(کلمه) ونیلونه گونګیان دی چې دا دَ ژبې نه نه اوباسی. دَ هدایت دَ لارې نه ړانده دی چې دې ته نه گوری. پس دا خلق دَ گمراهئی نه منع کیدونکی نه دی. یادَ دوی مثال دَهغه خلقو په شان دې چې دَ آسمان (اوریځونه) په زوره باران کیږی دَ (صَیِّبٌ) اصل صَیۡوِبٌ وو، صَابَ یَصُوۡبُ نه په معنی دَ یَنۡزِلُ او په هغه اوریځوکښې سختې تیارې وی او برېښنا وی اوهغه فرښته ده چې په دې باندې مامورده او وئیلې شوی دی چې دا دَهغه فرښتې آواز دې او دا برېښنا دَهغې دَ کوړې پړق دې په کوم سره چې هغه اوریځې شړی. دا باران والا دَ (بجلئی) گړځ اوریدوسره دَمرګ دَ ویرې نه خپلې گوتې په خپلو غوږونوکښې ورکوی یعنی دَ گړځ دَ آواز دَ سختوالی دَ وجې نه دې دَپاره چې هغوی واؤنړی. هم دغه کیفیت دَهغه خلقو دې. کله چې قرآن نازلیږی او په هغې کښې دکفر ذکردې چې دَ تیارو په شان دې او (په کفر) باندې وعیدې کوم چې د گړځ یعنی د تندر په شان دې او دلیلونه دی کوم چې دَ پړق په شان دی خپل غوږونه بندوی چې دا واؤنړی چرته (داسې نه وی) چې خپل دین ترک کړی اودَ ایمان طرف ته مائل شی اوداد هغوی په نیز مرګ دې. الله تعالی دادَ حق نه منکرین دَ (خپل) علم اوقدرت په احاطه کښې اخستې دی نودوی دَهغې نه بچ نه شی تللې. دَ پړق حالت دادې چې داسې

معلومیږی چې هغه به دَ دوی نظرونه واخلی چرته چې لږه شان رڼرا اوپرقیده نو دَهغې په رڼراکښې روانیږی او کله چې په هغوی باندې تیارې خوریږی نو اودریږی. دا دَ هغه تحریك تمثیل دې چې دَ قرآنی دلائلو دَ وجې نه دَهغوی په زړونوکښې پیداکیږی اودَهغوی دَ دغه خوښ کړې شوی څیز تمثیل دې کوم چې هغوی په قرآن کښې اوری اودَدې تمثیل دې کوم چې هغوی ناخوښه کوی دَهغې نه منع کیږی که چرې الله تعالی غوښتل نودَهغوی غوږونه اود هغوئ ظاهری بصارت به ئې بالکلیه سلب کړې وو لکه چې دَهغوی باطنی بصارت ئې سلب کړو یقینًا الله تعالی چې څه غواړی په هغې قدرت لری او هم دغه (قدرت) کښې مذکوره سلب کول هم داخل دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اِشْتَرَوا: اِشْتِرَاءٌ نه ماضی جمع مذکرغائب، هغوی واخستل هغوی اختیارکړل. زجاج دَ واؤ په ضمه سره لوستلې دې د واؤ د جمع او واؤ اصلیه په مینځ کښې فرق کولودَپاره او یحییٰ بن یعمر واؤ په کسره سره لوستلې دې التقاء ساکنین دَ قاعدې مطابق ابوالسماك عدوی واؤ په فتحه سره لوستلې دې دَ اخف الحرکات کیدو دَ وجې اوکسائی واؤ په همزه سره لوستلې دې.

**قوله**: أُولَٰئِكَ الَّذِينَ (الایة) أُولَٰئِكَ مبتداء، الَّذِينَ اسم موصول اِشْتَرَوُا خپل مفعول الضلالة اوخپل متعلق سره یوځائی کیدوسره جمله صله شوه، موصول خپلې صله سره یوځائی شو نو جمله شوه او د اولئك دَ مبتداء خبردې.

**قوله**: اِسْتَبْدَلُوهَا بِهِ: دَدې جملې دَ اضافه کولو فائده د یوسوال مقدرجواب دې.

**سوال**: ښیرید په قیمت باندې دَ یوڅیز حاصلولوته وائی څکه چې باء په ثمن باندې داخلیږی لکه چې وئیلې شی اِشْتَرَیْتُ القَلَمَ بِالدرهم یعنی درهم ورکولوسره قلم واخستو دَدې مطلب داشو چې هدایت ئې ورکړو ګمراهی ئې واخسته حالانکه هدایت هغوی سره دَ سر نه وو نه نو د هدایت ورکولو او ضلالت اخستلو هډو سوال نه پیداکیږی؟

جواب:- شراء نه مراد استبدال دې کوم چې دَ شراء دَپاره لازم دې لکه چې ملزوم وئیلوسره ئې لازم مراد اخستې دې اودَ استبدال نه مراد اختیارول او ترجیح ورکول دی، یعنی دَ هدایت او ضلالت دواړه لارې دَهغوی مخې ته موجود وې اوهغوی په خپله مرضئی اواختیارسره ګمراهی اختیارکړه.

**قوله**: فَمَا رَبِحَتْ تِجَارَتُهُمْ: **سوال**:- فَمَا رَبِحَتْ تِجَارَتُهُمْ: کښې دَ ربح نسبت تجارت طرف ته کړې شوې دې حالانکه نفع اونقصان اوچتول دَ صاحب تجارت صفت دې نه چې دَ تجارت؟

جواب:- دا اسنادد مجازعقلي په تو گه دي لکه اَنۡبَتَ الرَبِيۡعُ الۡبَقۡلَ کښې دي چې دا اسنادفعل الى ملابس الفاعل دَ قبيلې نه دي. عرب وائي رَبِحَ بَيۡعُكَ وَخَسِرَتۡ صَفۡقَتُكَ.

**قوله**: لِيَصِيۡرِهِمۡ اِلَى النَّارِ، دادَ عدم ربح علت دي.

**قوله**: وَمَاكَانُوۡا مُهۡتَدِيۡنَ: فِيۡمَافَعَلُوۡا يعنى دَ تجارت كومه طريقه چې هغوى اختياركړې ده په دې کښې سراسر نقصان اوخساره ده يعنى نفع او اصلى سرمايه دواړه ضايع شو.

**قوله**: صِفَتُهُمۡ فِى نِفَاقِهِمۡ: دَ مَثَلُهُمۡ تفسير ئې په صفتهم سره كولو كښې اشاره اوكړه چې دلته دَ مثل نه مراد مثل سائرنه دې بلكه دَهغې كيفيت اوحالت مراد دې.

**قوله**: اَوۡقَدَ، دَ اسۡتَوۡقَدَ تفسير ئې په اَوۡقَدَ دَسره كولوكښې اشاره اوكړه چې مزيد په معنى دمجرد دې. په اِسۡتَوۡقَدَ كښې سين اوتاء دَ طلب دَپاره نه دى.

**قوله**: اَنَارَتۡ، دَ اَضَاءَت تفسير ئې په اَنَارَتۡ سره كولوكښې اشاره اوكړه چې اضاءت فعل متعدى دې په دې كښې ضمير مستتردَدې فاعل اومَاحَوۡلَهُ جمله كيدوسره مفعول به دې اومَا په معنى دَ مكان دې اى اَضَاءَتۡ مكان الَّذِى مَاحَوۡلَهُ.

**قوله**: صُمٌّ دادَ مبتداء محذوف خبر اوجمله مستانفه ده اوبُكۡمٌ خبرثانى دې او عُمۡىٌ خبرثالث دې. مذكوره دريواړه خبرونه سره دَدې چې په الفاظوكښې متبائن دى خو په معنى اومدلول كښې متحددى. او هغه عدم قبول د حق دې په معنى دكونړ صُمٌّ دَ اَصَمٌّ جمع ده، بُكۡمٌ گونگا اودا دَ اَبۡكَمُ جمع ده اوعُمۡىٌ روند، دَاعمى جمع ده.

**قوله**: كصيب اى كاصحاب مطر په دې كښې دَحذف مضاف طرف ته اشاره ده او صَيِّبٌ په معنى دَ باران صَيِّبٌ په اصل كښې صَيۡوِبٌ په وزن دَ فعيل وو واؤ اوياء دواړه په يوه كلمه كښې راجمع شوه واؤ ياء كړې شو اودَياء په ياء كښې ادغام اوكړې شو اَوۡ دَ ترديددَپاره وې خو دلته دَ شك دَپاره نه دې بلكه د تنويع دپاره دى يا اَوۡ په معنى دَ واؤ دې.

**قوله**: فيه اى فى السحاب دَ ظاهرنظم نه معلوميږى چې دَ فيه ضمير دَ صَيِّبٌ طرف ته راجع دې لكه چې نورو مفسرينو دَ صَيِّبٌ طرف ته ضمير راجع كړې دې. په معالم التنزيل كښې دى فيه اى فى الصيب اومفسرعلامه سيوطى رحمه الله دَ السحاب طرف ته راجع كړې دې كوم چې دَ السماء مدلول دې مگر دا دظاهرنظم دَ آيت خلاف دې فيه كښې فى په معنى دَمع دې. اوبعضې مفسرينوحضراتودَ سماء طرف ته دَ فيه ضمير راجع كړې دې اودَ سماء نه مراد ئې اوريځې اخستى دى هم دغه وجه ده چې دَ فيه ضمير ئې مذكر راوړلې دې حالانكه دَ سماء استعمال دَ مؤنث په اعتبارسره اكثردې.

**قوله** اي أنامِلَهَا: دَ اصابع تفسير ئې په انامل سره كولوكښې اشاره اوكړه چې دا دَمجاز معنوى دَ قبيل نه دې يعنى كل وئيلوسره جزء مراداخستې شوې دې نكته په دې كښې په عدم سماع كښې مبالغه كول دى.

**قوله** وَاللهُ مُحِيْطٌ بِالْكَافِرِيْنَ: دا قصه په مينځ كښې جمله معترضه ده.

**قوله** مُحِيْطٌ په اصل كښې مُحْوِطٌ وو واؤمتحرك ماقبل حرف صحيح ساكن و واؤ كسره ماقبل نه وركړې شوه واؤ په ياء سره بدل كړې شو، محيطٌ شو.

**قوله** شَاءَهُ: دَ شئ تفسير ئې په شاءه سره كولوكښې دَ يوسوال مقدر جواب وركول مقصوددى

**سوال**:- شئ هغه څيزته وائى كوم چې موجود وى الله تعالى هم سره دَ خپل صفات او ذات موجود دې لهذا سوال دادې چې الله تعالى په اشياء كښې داخل دې كه نه؟ اوكه نه وى نودَ الله تعالى لاشئ كيدل لازم راځى چې په ظاهره بطلان دې ځكه چې هغه موجود دې اوكه داخل دې نو بيا خو كل شئ هَالِكٌ په وجه سره لازم راځى چې هغه هم هالك دې؟

**جواب**:- شئ نه مراد هغه شئ دې كوم چې دَ الله تعالى په مشيت او اراده كښې داخل وى اودَ الله تعالى ذات په مشيت كښې داخل نه دې ځكه چې كوم شئ دَ مشيت او ارادې لاندې داخل وى هغه به حادث وى اوالله تعالى قديم دې.

**[اياتونه: ۲۱ - ۲٤]**

{يٰأَيُّهَا النَّاسُ} أيْ اهل مَكَّة {اُعْبُدُوا} وَحِّدُوا {رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ} أَنْشَأَكُمْ وَلَمْ تَكُونُوا شَيْئًا {وَ} خلق {الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ} بِعِبَادَتِهِ عِقَابه وَلَعَلَّ فِي الْأَصْل لِلتَّرَجِّي وَفِي كَلَامه تعالي للتحقيق {الَّذِي جَعَلَ} خلق {لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا} حَال بِسَاطًا يُفْتَرَش لَا غَايَة فِي الصَّلَابَة أَوْ اللُّيُونَة فَلَا يُمْكِن الِاسْتِقْرَار عليها {وَالسَّمَاءَ بِنَاءً} سقفا {وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنْ} أنواع {الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ فَلَا تَجْعَلُوا لِلّٰهِ أَنْدَادًا} شُرَكَاء فِي الْعِبَادَة {وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ} أَنَّهُ الْخَالِق وَلَا تَخْلُقُونَ وَلَا يَكُون إلَهًا إلَّا مَنْ يخلُق {وَإِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ} شَكّ {مِمَّا نَزَّلْنَا عَلَى عَبْدِنَا} مُحَمَّد مِنْ الْقُرْآن أَنَّهُ مِنْ عِنْد الله {فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِنْ مِثْلِهِ} أَيْ الْمُنَزَّل وَمِنْ لِلْبَيَانِ أَيْ هِيَ مِثْله فِي الْبَلَاغَة وَحُسْن النَّظْم وَالْإِخْبَار عَنْ الْغَيْب وَالسُّورَة قِطْعَة لها أَوَّل وَآخِر أَقَلّهَا ثَلَاث آيَات {وَادْعُوا شُهَدَاءَكُمْ} آلِهَتكُمْ الَّتِي تَعْبُدُونَهَا {مِنْ دُونِ اللهِ} اي من غيره لِتُعِينكُمْ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي أَنَّ مُحَمَّدًا قَالَهُ مِنْ عِنْد نَفْسه فَافْعَلُوا ذَلِك فَإِنَّكُمْ عَرَبِيُّونَ فُصَحَاء مِثْله وَلَمَّا عَجَزُوا عَنْ ذَلِك قَالَ تَعَالَى {فَإِن لم تفعلوا} ما ذكر لعجزهم {وَلَنْ تَفْعَلُوا} ذَلِك أَبَدًا لِظُهُور إعْجَازه اعْتِرَاض {فَاتَّقُوا} بِالْإِيمَانِ بِاللهِ وَأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ كَلَام الْبَشَر {النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ} الْكُفَّار

{وَالْحِجَارَةُ} كَأَصْنَامِهِمْ مِنْهَا يَعْنِي أَنَّهَا مُفْرِطَةُ الْحَرَارَةِ تَتَّقِدُ بِمَا ذُكِرَ لَا كَنَارِ الدُّنْيَا تَتَّقِدُ بِالْحَطَبِ وَنَحْوِهِ {أُعِدَّتْ} هُيِّئَتْ {لِلْكَافِرِينَ} يُعَذَّبُونَ بِهَا جُمْلَةٌ مُسْتَأْنَفَةٌ أَوْ حَالٌ لَازِمَةٌ

**ترجمه**:- اې خلقو (يعنى) اې دَمكې اوسيدونكو، دَخپل هغه رب بندگى اوكړئى يعنى دَهغه دَتوحيد اقرار اوكړئى چاچې تاسو پيداكړئى حال دادې چې تاسو هيڅ (قابل ذكر) شئ نه وئى اوتاسونه وړاندې خلق ئى پيدا كړل دې دَپاره چې تاسو دَهغه دَ عبادت په ذريعه دَهغه دَ عذاب نه محفوظ پاتې شئى. او لَعَلَّ په اصل كښې دَ ترجى دَپاره دې اودَ الله تعالى په كلام كښې دَتحقيق دَپاره دې. چا چې ستاسو دَ پاره زمكه فرش اوغوړوله (فِرَاشًا) حال دادې (يعنى) داسې دَ خوروړلوځيز چې خورئى كړې چې نه ډير سخت دې اونه ډير نرم چې په دې باندې پاتې كيدل ممكن نه وى او آسمان ئى چت جوړ كړو دَآسمان نه ئى اوبه راوُروليې دَكوم په ذريعه چې ستاسو دَ خوراك دَپاره مختلف قسم ميوې پيداكړې كومې چې تاسو خورئى اوكومې چې تاسوخپلو څناوروته (دَ گيا په توگه) وركوئى نو تاسو په عبادت كښې څوك دَ الله تعالى برابر (يعنى) شريك مه گرځوئى اوحال دادې چې تاسو پوهيږئى چې خالق هم هغه دې او هغه شركاء تخليق نه شى كولې او معبود خو هم هغه كيدې شى څوك چې تخليق كولې شى. مونږ په خپل بنده محمد ﷺ باندې چې كوم (قرآن) نازل كړې دې كه چرې تاسو دَهغې دَالله تعالى دَ طرف نه كيدلو كښې په څه شك كښې ئى نو دَهغې مُّنَزَّل په شان يوسورت راوړئى او من بيانيه دې چې هغه سورت په بلاغت او حسن نظم كښې او اخبار بالغيب كښې هم دَهغې په شان وى، سورت داسې حصې ته وائى دَ كوم چې شروع او خاتمه وى او په هغې كښې كم نه كم درې آياتونه وى اوخپل هغه معبودان هم راوُغواړئى دَ كومو چې تاسو الله تعالى پريخودو سره بندگى كوئى دې دَپاره چې هغوى ستاسو امداد اوكړى كه چرې تاسو په دې خبره كښې چې محمد ﷺ هغه دَ خپل ځان نه جوړ كړې دې رښتونى ئى نو تاسو هم دا كار اوكړئى اوښائى څكه چې تاسو خو هم دَهغه په شان فصيح عرب ئى اوكله چې هغوى دَ دې نه عاجز شو نو الله تعالى اوفرمائيل كه تاسو دَخپل عجز دَ وجې نه مذكوره كار اونه كړې شو اوتاسو دا هيڅ كله هم نه شئى كولې دَدې دَ اعجاز دَ ښكاره كيدو دَ وجې نه (دَشرط اوجزاء په مينځ كښې دا جمله معترضه ده. لهذا تاسو په الله تعالى باندې ايمان راوړلو سره دَدې خبرې تصديق اوكړئى چې دا انسانى كلام نه دې نودَهغه اور نه بچ شئى دَ كوم خشاك چې به كافران انسانان او كاڼړى وى. مثلاً دَ كاڼړى نه جوړشوى بتان يعنى هغه اور به دَ سخت گرمائش والا وى چې په مذكوره څيزونو سره به تيزولې شى نه چې دَ دنياوى اور په شان په لرگو وغيره تيزولې شى.(هغه اور) دَ كافرانو دَپاره تياركړې شوې دې په هغې كښې به دوى ته عذاب وركولې شى (دا) جمله معترضه ده يا حال لازمه ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**. یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ ای اَهْلَ مَكَّةَ: یاحرف نداد متوسط دپاره ده په قرآن پاك كښې دَ ندا دپاره صرف دَ یاء استعمال شوې دې دَ دویم حرف ندا استعمال نه دې شوې، نداکه دَ خالق دَ طرف نه وی او که دَ مخلوق طرف نه وی، اَیُّ منادی لفظًا مبنی په ضمه دې او په محل کښې دَ نصب دې، ها، دَ تنبیه دپاره ده. اَلنَّاس لفظونو په اعتبارسره دَ اَیُّ صفت یا بدل دې

**قوله** اَیْ اَهْلَ مَكَّةَ دا دَ اَلنَّاس تفسیر دې.

**سوال**:- قاعده داده چې په قرآن پاك كښې اهل مکه ته خطاب په یٰۤاَیُّهَا النَّاس سره او اهل مدینه ته په یاایها الذین آمنوا سره کیږی. دا سورت مدنی دې او خطاب اهل مدینه ته په یٰۤاَیُّهَا النَّاس سره دې داسې ولې دی؟

**جواب**:- دا قاعده اکثری ده کلی نه ده. په لفظ اَهْلُ باندې رفع او نصب دواړه جائزدی. نصب په دې اعتبارسره چې دا په اعتبارد محل سره دَ النَّاس تفسیر دې او رفع په دې اعتبارسره چې په اعتبارد لفظ سره دَ النَّاس تفسیر دې.

**قوله**. وَحِّدُوا اُعْبُدُوا تفسیر په وَحِّدُوا سره دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په اتباع كښې دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وفرمائیل چې اُعْبُدُوا په قرآن پاك كښې چرته هم راغلې دې دَدې نه مراد توحید دَ ټولونه اول دې ځکه چې دَ توحیدنه بغیریو عبادت هم مقبول نه دې. دغه شان دَالنَّاس تفسیر د اهل مکه سره دا هم دَ ابن عباس رضی الله عنهما په اتباع كښې دې. ګنی نورو مفسرینو النَّاس مطلق ساتلې دې په کوم كښې چې دَ مکې او غیرمکې ټول خلق شامل دی.

**قوله**: لَعَلَّ فی الاصل للترجی: **سوال**:- دَ لَعَلَّ اصل استعمال طمع فی المحبوب دپاره دې. عوام دا په توقع سره تعبیرکوی او دا دَ جهل متقاضی دې دَ حق تعالی دَ پاره دَدې معنې استعمال محال دې.

**جواب**- مفسرعلام خپل "وقول وفی کلامه تعالی للتحقیق" سرهم دې جواب طرف ته اشاره کړې ده یعنی دَالله تعالی په کلام كښې دَلَعَلَّ استعمال دَتحقیق وقوع دپاره کیږی ځکه چې کریم هم دَدې توقع ورکوی کوم چې هغه په یقینی توګه باندې کوی.

**قوله**: فِرَاشًا، اَلْاَرْضَ. نه حال دې مګردا په هغه صورت كښې دې کله چې جَعَلَ په معنی دَ خَلَقَ متعدی یو مفعول ته وی لکه چې مفسرعلام د جَعَلَ تفسیر په خَلَقَ سره کولو كښې اشاره کړې ده او کومو حضراتو چې جَعَلَ په معنی د صَیَّرَ متعدی مفعولو ته اخستې دی

دَهغوی په نیزبه اَلْاَرْضَ مفعول اول او فِرَاشًا مفعول ثانی وی.

**قوله**: مِنَ السَّمَاءِ دَالسماء نه لغوی معنی مراد ده یعنی: قول، مَا علاكَ وَأظلك فهو سماءٌ، سماءٌ مؤنث دي اوکله مذکرهم استعمالیږی او باران هم دَ بره نه نازلیږی لهذا دا شك ختم شو چې باران دَ وریځونه راوریږی نه چې دَ آسمان نه. دویم جواب دا هم ورکړې شوې دې چې دَ سماء نه سحاب مراد دې.

**قوله**. تَعلفونَ به دَوَابَكُمْ: سره اشاره اوکړه چې دَ ثمرات نه دَ زمکې هرقسم پیداوار مراد دې او عَلَف دَ ځناورو ګیاته وائی.

**قوله**: فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا: دَدې تعلق په ماقبل کښې مذکور د اُعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِی، سره دې.

**قوله**: اَنْدَادًا، دا دَ نِدٌّ جمع ده په معنی د برابر، مقابل، شریك نِداً په ذات کښې شریك او مثل هرقسم شریك ته وائی.

**قوله**. وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ: مبتدا خبر سره ملاؤشو جمله شوه دَ فَلَا تَجْعَلُوْا دَ ضمیر نه حال دې.

**قوله**. اَنَّهُ الْخَالِقُ: معطوف علیه دې او ولا يخلقون جمله کیدوسره معطوف معطوف علیه داپوره جمله دَ تَعْلَمُوْنَ مفعول به دې.

**قوله**: فَافْعَلُوْا ذٰلِكَ: دا دَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ جزاء ده.

**قوله**: وَقُوْدُهَا، دَ واؤ فتحه سره په معنی مَا تُوْقَدُ بِهٖ یعنی خشاك اودَ واؤ ضمه سره مصدردې. په دې وزن باندې راتلونکو تولو صیغوکښې هم دغه دوه صورتونه دی مثلاً وَضُوْءٌ، سَحُوْرٌ، طَهُوْرٌ، قاعده داده چې د فَعُوْلٌ په وزن باندې راتلونکې هره صیغه کښې که چرې فاء کلمه باندې فتحه وی نو په معنی آله سره وی، اوکه چرته ضمه وی نومصدر بعضو وئیلی دی چې یودَ بل په ځائی هم مستعمل دې.

**قوله**: مِنْهَا داسره اَصْنامهم حال دې ای حال کونها مِنَ الحِجارة، مقصد په آیت کښې مذکوره وقودها الناس وَالحِجَارَة مطابقت سره دې. حِجَارَة دَ حَجَرٌ جمع ده لکه جِمَالَةٌ، دَ جَمَلٌ جمع ده.

**قوله**: اُعِدَّتْ جمله مستانفه ده او جمله مستانفه همیشه دَ یوسوال مقدر جواب وی نو دلته دَ کوم سوال جواب دې؟

**سوال**:- دا دې لِمَنْ اُعِدَّتْ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِیْ وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ؟

**جواب**:- اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ.

**قوله** أو حَالٌ، يعنى أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِيْنَ لفظ النار نه حال دې دَوَقُوْدُهَا ضميرنه حال واقع كيدل صحيح نه دى دَ كوم چې دوه وجوهات دى. ① ځكه چې د هَا ضمير مضاف اليه دې او مضاف اليه مقصودنه وى. ② ځكه چې د مضاف كوم چې دلته وَقُوْدٌ په معنى د حطب عين دې اودا جامد دې اواسم جامد عامل نه وى.

**قوله** لاَزمَةٌ. دَدې اضافه مقصد دا شك ختمول دى كوم چې د أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِيْنَ نه معلوميږى چې دَ دوزخ اور دَ كافرانودَ پاره تيارکړې شوې دې. نو لهذا مسلمانانوته دَ فكر كولوضرورت نشته كه هغه فاسق اوفاجرولې نه وى په دې شرط چې مؤمن وى.

**جواب**:- حال لازم په منزله دَ صفت وى دَ ذوالحال دَپاره او دَ ذوالحال نه جدا نه وى لكه چې ابوك عطوفًا كښې دَ پلار شفقت دَ ځوئى دَپاره لازم دې مګرخاص نه دې چې دَ ځوئى نه علاوه په بل چاباندې دَ پلار شفقت ممنوع وى. دغه شان دَ دوزخ اور دَ كافرانودپاره خو لازم دې مګرخاص نه دې. يعنى اصالةً او دوامًا خودَ دوزخ اور هم دَ كافرانودَپاره تيارکړې شوې دې نو لهذا مسلمانانولره دَ فكرمندكيدو ضرورت نشته كه فاسق فاجر ولې نه وى خوپه عارضى توګه دَ تاديب دَپاره به اهل فسق اوعصيان هم په دې كښې داخلولې شى نودا دَدې منافى نه ده (ماجدى ملخصا) وكون الاعداد للكافرين لاينافى دخول غيرهم فيه على جهة القطفل. (روح)

دويم جواب:- أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِيْنَ كښې دكافرنه مراد عام كافر وى كوم چې اصطلاحى كافر او لغوى كافردواړو ته شامل وى نو په دې صورت كښې هيڅ اعتراض نشته. د اصطلاحى كافر دخول به دَ هميشه دَپاره وى اولغوى كافر يعنى ناشكره او ګناهګار نافرمان داخليدل به دَ تطهيردَپاره عارضى وى.

**[اياتونه: ٢٥ - ٢٧]**

{وَبَشِّرْ} اخبِرْ {الَّذِينَ آمَنُوا} صدَّقُوا بِاللهِ {وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ} مِنَ الْفُرُوضِ وَالنَّوَافِلِ {أَنَّ} أَيْ بِأَنَّ {لَهُمْ جَنَّاتٍ} حَدَائِقَ ذَاتَ أَشْجَارٍ وَمَسَاكِنَ {تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا} أَيْ تَحْتَ أَشْجَارِهَا وَقُصُورِهَا {الْأَنْهَارُ} أَيْ الْمِيَاهُ فِيهَا وَالنَّهْرُ الْمَوْضِعُ الَّذِي يَجْرِي فِيهِ الْمَاءُ لِأَنَّ الْمَاءَ يَنْهَرُهُ أَيْ يَحْفِرُهُ وَإِسْنَادُ الْجَرْيِ إِلَيْهِ مَجَازٌ {كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا} أُطْعِمُوا مِنْ تِلْكَ الْجَنَّاتِ {مِنْ ثَمَرَةٍ رِزْقًا؟ قَالُوا هَذَا الَّذِي} أَيْ مِثْلُ مَا {رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْلَهُ فِي الْجَنَّةِ لِتَشَابُهِ ثِمَارِهَا بِقَرِينَةِ {وَأُتُوا بِهِ} أَيْ جِيئُوا بِالرِّزْقِ {مُتَشَابِهًا} يُشْبِهُ بَعْضُهُ بَعْضًا؟ لَوْنًا؟ وَيَخْتَلِفُ طَعْمًا؟ {وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ} مِنَ الْحُورِ وَغَيْرِهَا {مُطَهَّرَةٌ} مِنَ الْحَيْضِ وَكُلِّ قَذَرٍ {وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ} مَاكِثُونَ أَبَدًا؟ لَا يَفْنَوْنَ وَلَا يَخْرُجُونَ وَنَزَلَ رَدًّا؟ لِقَوْلِ الْيَهُودِ لَمَّا ضَرَبَ اللهُ الْمَثَلَ بِالذُّبَابِ فِي قَوْلِهِ {وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا؟} وَالْعَنْكَبُوتِ فِي قَوْلِهِ {كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوتِ} مَا أَرَادَ اللهُ بِذِكْرِ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ

الخبيثة فَأَنْزَلَ اللّٰه {إِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ} يَجْعَل {مَثَلًا} مَفْعُول أَوَّل {مَا} نَكِرَة مَوْصُوفَة بِمَا بَعْدَهَا مَفْعُول ثَانٍ أَيْ أَيَّ مَثَل كَانَ أَوْ زَائِدَة لِتَأْكِيدِ الْخِسَّة فَمَا بَعْدَهَا الْمَفْعُول الثَّانِي {بَعُوضَةً} مُفْرَد الْبَعُوض وَهُوَ صِغَار الْبَقّ {فَمَا فَوْقَهَا} أَيْ أَكْبَر مِنْهَا أَيْ لَا يَتْرُك بَيَانه لِمَا فِيهِ مِنَ الْحُكْم {فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ} أَيْ الْمَثَل {الْحَقُّ} الثَّابِت الْوَاقِع مَوْقِعه {مِنْ رَبِّهِمْ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا} تَمْيِيز أَيْ بِهٰذَا الْمَثَل وَمَا اسْتِفْهَام إِنْكَار مُبْتَدَأ وَذَا بِمَعْنَى الَّذِي بِصِلَتِهِ خَبَره أَيْ أَيّ فَائِدَة فِيهِ قَالَ تَعَالَى فِي جَوَابهمْ {يُضِلُّ بِهِ} أَيْ بِهٰذَا الْمَثَل {كَثِيرًا} عَنِ الْحَقّ لِكُفْرِهِمْ بِهِ {وَيَهْدِي بِهِ كَثِيرًا} مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لِتَصْدِيقِهِمْ بِهِ {وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ} الْخَارِجِينَ عَنْ طَاعَته {الَّذِينَ} نَعْت {يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللّٰهِ} مَا عَهِدَهُ إِلَيْهِمْ فِي الْكُتُب مِنَ الْإِيمَان بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ} تَوْكِيده عَلَيْهِمْ {وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللّٰهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ} مِنَ الْإِيمَان بِالنَّبِيِّ وَالرَّحِم وَغَيْر ذٰلِكَ وَأَنْ بَدَل مِنْ ضَمِير بِهِ {وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ} بِالْمَعَاصِي وَالتَّعْوِيق عَنِ الْإِيمَان {أُولٰئِكَ} الْمَوْصُوفُونَ بِمَا ذُكِرَ {هُمُ الْخَاسِرُونَ} لِمَصِيرِهِمْ إِلَى النَّار الْمُؤَبَّدَة عَلَيْهِمْ

---

**ترجمه**:- او (اې نبي) زيرې ورکړه خبر ورکړه هغه خلقو ته چې ايمان ئې راوړلې (يعنى) دَالله تعالى دَ (توحيد) تصديق ئى کړې اونيک عملونه ئى کړى چې هغه فرائض اونوافل دى. دَهغوى دَپاره دَ ونو والا اومحلونو والا باغونه دى اودَ دغه باغونو اومحلونو لاندې نهرونه جارى دى يعنى په دغه نهرونو کښې اوبه روانې دى اونهر هغه خائى وى په کوم کښې چې اوبه روانې وى (نهر ته نهر هم په دې وجه وائى) چې اوبه دغه نهر کنى اودَ جريان اسناد دَنهرطرف ته اسناد مجازى دى. کله چې دَ دغه باغونونه دوى ته څه ميوه دَ خوراک دَپاره دَغذا په توګه ورکولې شى نو وئيلې به شى چې دا خو هم هغه شان ده کومه چې مونږ ته دې نه ورانديې دَ خوراک دَپاره راکړې شوې وه يعنى چې دې نه وړاندې په جنت کښې راکړې شوه (دا به په دې وجه وى) چې دَ جنت ميوې به په يوشکل کښې وى (دَدې قول قرينه)﴿ وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا ﴾ دې اوملاوېږى به هم دوى ته دَ يوشکل ميوې چې دَ رنګ په لحاظ به دَ يوبل په شان وى مګر په خوند کښې به مختلف وى اودَهغوى دَپاره به په جنت کښې بيبيانې وى يعنى حورې وغيره چې پاکې به وى دَ حيض او د هرقسم ګندګنى نه اوهغوى به په دغه جنت کښې هميشه اوسيږى. يعنى دائمى قيام به وى نه به په دغې کښې فناکيږى اونه به دَ دې نه اوځى. آيت ﴿ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا ﴾ دَ يهودو اعتراض ﴿ مَاذَا أَرَادَ اللّٰهُ بِذِكْرِ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ الْخَسِيسَةِ ﴾ يعنى دَ دغه حقير څيزونو په ذکرکولو سره دَ الله تعالى څه مقصد دې؟ دَ رد کولودَپاره نازل شو او الله تعالى خپل قول ﴿ وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا ﴾ کښې دَ مچ او بل قول ﴿ كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوتِ ﴾ جولاګى مثال بيان کړې دې. يقيناً الله تعالى دَ يوڅيز مثال بيانولو سره شرميږى نه که دَ ماشى وى

او که دَدې نه دَ اوچت څیز. (مثلاً) ضَرَبَ په معنی دَ جَعَلَ مفعول اول دې. ما نکره موصوفه ده خپل مابعد صفت سره یوځائی شو اودَ ضَرَبَ مفعول ثانی دې. بَعُوْضَةً، دَ بعوض مفرد دې (یعنی) وړوکې ماشې یعنی دَدې بیان نه ترك کوی ځکه چې دَ دې په بیانولوکښې حکمتونه دی اهل ایمان خود امثال دَخپل رب دَ طرف نه صحیح ګڼړی. (یعنی) په ځائی بیان شوې دې اوکافران وائی چې د الله تعالی د داسې (سپك) مثال بیانولوسره څه کار؟ مَثَلاً تمیز دې (بهذا مَثَلاً) ای بِهٰذَا المثل (په معنی کښې دې) اوما استفهام انکاری مبتدا او ذا په معنی د الذی خپل صله سره یوځائی شو دَ مبتدا خبر یعنی په دې مثال کښې څه فائده ده؟ الله تعالی دَ دې (معترضینو) په جواب کښې اوفرمائیل چې هغه په دې مثالونوسره ډیر خلقو لره دَ حق نه دَدې مثالونو دَ انکار دَ وجې سره ګمراه کوی او ډیرومؤمنانو ته دَ دې مثالونو دَ تصدیق کولو دَ وجې لارخودنه کوی او په دې سره هغه فاسقان هم ګمراه کوی چې دَ الله تعالی عهد دَ پخولو باوجود ماتوی یعنی دَهغه دَ اطاعت نه دَ وتونکو (ګمراه کول) یعنی دا عهد کوم چې الله تعالی هغوی سره په کتابونوکښې په محمد ﷺ باندې دَ ایمان راوړلو باره کښې اخستې وو (اَلَّذِیْنَ) دَ فَاسِقِیْنَ صفت دې او الله تعالی چې دَ کوم دَ یوځائی کولوحکم ورکړې دې هغه ماتوی او هغه په نبی ﷺ باندې ایمان راوړل او صله رحمی وغیره کول دی. اودَ اَنْ یُّوْصَلَ، به د ضمیرنه بدل دې اودَ معاصی په ذریعه نور (خلق) دَ ایمان نه دَ بندیدلو په ذریعه په زمکه کښې فساد کوی په حقیقت کښې هم دغه خلق دی چې په مذکوره صفاتو باندې متصف دی او نقصان او چتونکی دی. په همیشه عذاب (کښې) دَهغوی ټکانه کیدو دَ وجې نه.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**. وَبَشِّرِ الَّذِیْنَ آمَنُوْا: دَدې عطف، عطف قصه علی القصه په توګه دَ فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا په مضمون باندې دې.

**قوله** بَشِّرْ. امر واحد مذکر حاضر په معنی دَ خیرخبراوروِل، بَشِّرْ، البشارة نه مشتق دې بشارت هغه رومبی خبرته وائی چې دَ خوشحالئ وی، رومبی دَ خوشحالئ خبرته بشارت ځکه وائی چې دَدې اثر (بشره) یعنی په مخ باندې ښکاره کیږی. (اَلْبِشَارَةُ: اَلْخَبَرُ الْاَوَّلُ السَّارُّ الَّذِیْ یَظْهَرُ بِهٖ اَثَرُ السُّرُوْرِ فِی الْبَشَرَةِ) (اعراب القرآن)

**قوله**. اَخْبِرْ دَ بَشِّرْ تفسیر په اَخْبِرْ سره کولوکښې اشاره اوکړه چې زیرې سره دَدې چې بښه خبرته وائی مګر دلته دا دَمطلق خبر په معنی کښې دې اودَ بشارت ضد انذار دې.

سوال- وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ، الصّٰلحت داسې وصف دې چې کولې نه شی ځکه چې وصف دَ

اعراض دَ قبيل نه دي او عرض موجود في الخارج نه وي ترکومې پورې چې يو جوهر (موصوف) سره متصل نه وي لهذا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وئيل صحيح نه دي.

**جواب:-** الصلحت، سره دَدې چې دَخپل اصل په اعتبارسره وصف دي خو په دې باندې اسميت غالب کيدوَ وجې نه دَاسم قائمقام دې. لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله:-** بِأَنَّ، بِأَنَّ باندې باء ظاهرولوسره اوخودلې شو چې أَنَّ اصل کښې بِأَنَّ وو باء جوازًا حذف کړې شوه أَنَّ سره دَ خپل مدخول د بَشِّرْ مفعول کيدو دَ وجې منصوب دې. (ابوالبقاء)

بعضې مفسرينو وئيلی دی چې دَ وَبَشِّرْ عطف په فَاتَّقُوا باندې دې مګر په دې صورت کښې بيا د تغاير دَ مخاطبينو اعتراض راځی. صاحب روح المعاني دَ دې اعتراض دا جواب ورکړې چې تغايرمخاطبينو عطف دَپاره مضرنه دې. لکه چې دَالله تعالى قول ﴿ يُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ۚ وَاسْتَغْفِرِيْ ﴾ دلته دمعطوف عليه او معطوف مخاطب جدا جدا دی مګر بياهم عطف کړې شوې دې.

**قوله** اَلَّذِيْنَ: موصول خپلې صله سره يوځائى شو دَبَشِّرْ مفعول به دې.

**قوله:** اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ دا مشابه مفعول به کيدوَ وجې منصوب دې ﴿ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ﴾ دَ جَنّٰتٍ صفت اول او ﴿ كُلَّمَا رُزِقُوْا ﴾ دويم صفت او ﴿ لَهُمْ فِيْهَا ﴾ دريم صفت او ﴿ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴾ څلورم صفت دې.

**قوله:** بِهٰذَا مَثَلًا تميز لفظ دَ تميز دَاضافه مقصد دې طرف ته اشاره کول دی چې مثلاً تميز دې حال نه دې لکه چې بعضې حضراتو مَثَلًا حال ګرځولې دې حالانکه حال ګرځول ضعيف دی. دَ ضعف وجه داده چې دَ اسم جامد حال واقع کيدو کښې اختلاف دې لهذا دَ مَثَلًا حال واقع کيدل مختلف فيه دی اودَ اسم جامد تميزواقع کيدوکښې دَ چااختلاف نشته دې. لهذا دَ مَثَلًا تميز ګرځول راجح دی.

**قوله:** بِهٰذَا مَثَلًا، مفسرعلام دَ بِهٰذَا مثلاً تفسير په بهذا المثل سره کولوکښې دَ سوال جواب ورکړې دې.

**سوال** - دادې چې په تميزکښې اصل دادې چې په نسبت سره واقع وی اوپه هذامثلاکښې نسبت نشته دې لهذا دَ مثلاًتميز واقع کيدل صحيح نه دی.

جواب:- هذامَثَلًا، دَ هذاالمثل په معنى کښې دې په کوم کښې چې نسبت موجود دې لهذا دَ مثلاً تميزواقع کيدل صحيح دی.

**قوله**: مَا، استفهام انکار، دَدې عبارت دَ اضافه مقصد هم دَ يوسوال جواب دې.
سوال۔ مَاذَآ اَرَادَ اللهُ بِهٰذَا مَثَلاً کښې دَ مثال بيانولو حکمت معلوم کړې شوې دې اودَ يوقول اوفعل حکمت معلومول مذموم نه دی حالانکه دلته مذموم گرځولې شوی دی.

**قوله** مبتداء: دَ دې عبارت مطلب دَ سيبويه مذهب راجح گرځول دی اوهغه دادی چې مَا مبتداء ده او ذَا موصول خپلې صله سره يوځائی شو دَ مبتداء خبر شو نه دا چې ذا مبتداء مؤخر او ما خبرمقدم، دَ ترجيح وجه داده چې دَ سيبويه ترکيب د قاعده معروفه مطابق دې اوهغه دا چې مبتداء مقدم او خبر مؤخر کيږی.

**قوله** اَلْخَارِجِيْنَ عَنْ طَاعَتِه: دا دَ اَلْفٰسِقِيْنَ تفسيردې. دې خبرې طرف ته اشاره ده چې دلته دَ فاسق نه فاسق کامل مراد دې او هغه مشرك اوکافردې نه چې مومن فاسق. مطلب داچې دلته دَ فسق لغوی معنی مراد وه نه چې اصطلاحی او شرعی لکه چې دَ الله تعالی قول ﴿ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴾ کښې منافق ته فاسق وئيلې شوی دې حالانکه منافق کليةً دَاسلام نه خارج کيږی.

**قوله** توکيده عَلَيْهِمْ: دا هم دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**:۔ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللهِ مِنْ بَعْدِ مِيْثَاقِ په آيت کښې دوه لفظونه استعمال شوی دی عهداوميثاق اودَ دواړو مفهوم هم يودې. دَدې ترجمه به دا شی هغویَ دَالله تعالی عهد ماتوی دَ هغه دَعهدنه پس او بل دَدې هيڅ مطلب نشته.

**جواب**:۔ ميثاق: په معنی دَتاکيداو پوخوالی ده يعنی هغه دَالله تعالی عهد دَهغې دَ پخولونه پس ماتوی اودا معنی صحيح ده.

**قوله** من الايمان بالنبی ﷺ دا ﴿ مَآ اَمَرَ اللهُ بِه ﴾ کښې دَمَا بيان دې يعنی هغه خلق هغې لره قطع کوی دکوم دَ متصل کولوچې حکم ورکړې شوې دې اوهغه ايمان بالرسول او صله رحمی ده.

**قوله** وَاَنْ يُّوْصَلَ بدل مِنْ ضميربه، په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې دَ اَنْ يُّوْصَلَ به ضمير سره دبدليدلو د وجې نه مجرور دې نه چې دَ مَا سره دَ بدل کيدو دَ وجې نه منصوب.

**[ايانونه: ۲۸ - ۲۹]**

{كيف تكفرون} يا اهل مكة {بالله و} وَقَدْ {كُنْتُمْ اَمْوَاتًا} نُطَفًا؟ فِي الْأَصْلَابِ {فَاَحْيَاكُمْ} فِي الأرحام والدنيا بنفخ الروح فيكم والاستفهام للتعجب مِنْ كُفْرِهِمْ مَعَ قِيَامِ الْبُرْهَانِ اَوْ لِلتَّوْبِيخِ {ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ} عِنْدَ انْتِهَاءِ آجَالِكُمْ {ثُمَّ يُحْيِيكُمْ} بِالْبَعْثِ {ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ} تُرَدُّوْنَ بَعْدَ الْبَعْثِ فَيُجَازِيْكُمْ بِاَعْمَالِكُمْ

وَقَالَ دَلِيلًا؟ عَلَي الْبَعْثِ لِمَا انكروه ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ﴾ أيْ الأَرْض وَمَا فِيهَا ﴿جَمِيعًا؟﴾ لِتَنْتَفِعُوا بِهِ وَتَعْتَبِرُوا ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ﴾ بَعْد خَلْق الأَرْض أيْ قَصَدَ ﴿إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ﴾ الضَّمِير يَرْجِع إلَي السَّمَاء لِأَنَّهَا فِي مَعْنَي الْجُمْلَة الآيِلَة إلَيْهِ أيْ صَيَّرَهَا كَمَا فِي آيَة أُخْرَي ﴿فَقَضَاهُنَّ﴾ ﴿سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ مُجْمَلًا؟ وَمُفَصَّلًا؟ أفَلَا تَعْتَبِرُونَ أنَّ الْقَادِر عَلَي خَلْق ذَلِكَ ابْتِدَاء؟ وَهُوَ أعْظَم مِنْكُمْ قَادِر عَلَي إعادتكم

**ترجمه**:- اې دَ مکې والو! تاسو الله تعالى سره دکفرويه ولې اختياروئی؟ حالانکه تاسو دَ پښتونونه يوبې سا نقطه وئی هغه دَ مور په رحمونوکښې او په دنياکښې په تاسو کښې روح پوك وهلو سره تاسوله ژوند درکړو او استفهام دَهغوی په کفر باندې دَ اظهارتعجب دَپاره دې اودَ توبيخ دَپاره دې. د قيام دليل باوجود به هغه تاسو ته مرګ درکوی ستاسو دَ ژوند موده ختميدو په وخت بيا به هم هغه تاسو دَ مرګ نه پس دوباره ژوندون درکوی. بيا دَ ژوندی کيدو نه پس هم دَهغه طرف ته واپس تلل دی. نوهغه به تاسو ته ستاسو دَاعمالو بدله درکوی. نوچې کله هغوی دَ بعث بعد الموت نه انکاراوکړو نو الله تعالى په دې باندې دَ دليل په توګه اوفرمائيل هم هغه خودې چې ستاسو دَپاره ئې دَ زمکې ټول څيزونه پيداکړل يعنی زمکه او څه چې په زمکه کښې دی دې دَپاره چې تاسو دَهغې نه فائده واخلئ او عبرت حاصل کړئی بيا (يعنی) په زمکه پيداکولونه پس هغه دَآسمان طرف ته متوجې شو او اووه آسمانونه ئی قايم کړل. دَ هُنَّ ضمير دَ اَلسَّمَاء طرف ته راجع دې دَدې دَپاره چې اَلسَّمَاء دَمَا يؤل په اعتبارسره دَ جمع په معنى کښې دی. (سوّٰهُنَّ) په معنى کښې صَيَّرَهَا دې. لکه چې دويم آيت کښې ﴿ فَقَضٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ﴾ او هغه دَهريوڅيز اجمالي اوتفصيلي علم لرونکې دې. آيا تاسو دَدې نه عبرت نه حاصلوئی چې کوم ذات دَدې (مذکوره) څيزونو ابتداء پيدا کولوباندې قادر دې چې ستاسو نه عظيم تر دې ستاسو په دوباره پيداکولو باندې (په طريق اولی) قادردې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ يا أهل مكة، كَيْفَ حرف استفهام دې دَ حالت نه دَ سوال کولودَپاره استعماليږی خو په قرآن کښې زيات تر دَانکار او په جرأت باندې دَ اظهارتعجب دَپاره مستعمل دې.

**قوله**: وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا: واؤ حاليه دې او کنتم امواتا، دَتکفرون دَ ضمير نه حال دې مفسرعلام دَ قَدْاضافه کولوسره دَيو سوال مقدرجواب ورکړې دې.

**سوال**:- دَماضی بغيردَ قد نه حال واقع کيدل صحيح نه دی.

**جواب:** - دَ قد لفظ کښې کیدل ضروری نه دی که قد مقدروی نوبیاهم ماضی حال واقع کیدې شی. دلته قد مقدردې لکه چې مفسرعلام قد مقدر منلوسره اشاره کړې ده.

**دویم جواب:** - بغیردَ قد دَ تقدیر نه هم حال جوړیدل صحیح دی ځکه چې حال صرف کنتم امواتًا نه دې بلکه ما بعد ترجعون پورې جمله کیدوسره حال دې کما جزم صاحب الکشاف، لکه چې داسې ئې اوونیل: کیف تکفرون؟ وقصتکم هذه. (فتح القدیر)

**قوله:** نُطَفًا فِي الْأَصْلَابِ، ای اصلاب الرجال، نطف دَ نُطْفَةٌ جمع ده صفا اوبه، لږې اوبه، څڅیدونکې څیز دلته دلته ترې دَ سړی نطفه منی مراد ده.

**قوله:** فَأَحْيَاكُمْ، دا په محذوف باندې مرتب دې تقدیری عبارت دې. وَكُنْتُمْ عَلَقَةً لمضغة فَأَحْيَاكُمْ دَدې تقدیر ضرورت په دې وجه پیښ شو چې دَنطفې نه فوراً روستو ژوند نه ورکړې کیږی بلکه دَ مور په رحم کښې ۱۲۰ ورځو کښې مختلفو مراحلو تیریدو نه پس ژوند ورکولې شی.

**قوله:** فِي الْأَرْحَامِ، وفی الدنیا بنفخ الروح دَ ظرفیت تعلق صرف د ارحام سره دې. بنفخ الروح کښې باء سببیه ده یعنی عطاء حیات دَ مور په رحم کښې دَ روح پوك وهلو په سبب سره کیږی غالبًا دَ دنیا ذکر دَ حیات رحم او د حیات دنیا کښې دَ فرق طرف ته دَاشارې کولو دَپاره دې. ځکه چې په دواړو ژوندونو کښې دَنوعیت فرق دې. (ترویح الارواح)

**قوله:** وَالاستفهام للتعجب من كفرهم: یعنی دَدومره ډیرو انعاماتوباوجود په کفر او انکارباندې جرأت کول دَ حیرانتیا اود تعجب سبب دې یا بیا استفهام دَ توبیخ دَپاره دې لکه چې مفسرﷺ اشاره کړې ده چې په معروف معنی کښې تعجب مراد نه دې ځکه چې په معروف معنی کښې تعجب اسبابو مخفی کیدو دَ وجې نه لاحق کیږی اودا معنی دَالله تعالی دَپاره متصور نه ده. ځکه چې دَالله تعالی نه دَ یوڅیز اسباب هم پټ نه دی

**قوله:** لِأَنَّهَا فی معنی الجمع دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ یوسوال جواب ورکول دی.

**سوال:** - ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ، کښې هُنَّ ضمیر اَلسَّماء طرف ته راجع دې او السَّماء مفرددې او ضمیرجمع دې. لهذا مرجع او ضمیر کښې مطابقت نشته.

**جواب:** - السَّماء مایؤل په اعتبارسره جمع دې دَدې دَپاره چې استوی نه پس اوه آسمانونه دی. چنانچې الله تعالی دَ دَخوارض نه پس اووه آسمانونه جوړکړی دی الله تعالی فرمائی: ﴿ فَقَضٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ﴾ دا جواب هم ورکولې شی چې په السَّماء کښې الف لام دَ جنس دې لهذا په جمع باندې اطلاق صحیح دې.

**[ایاتونه: ۳۰ - ۳۴]**

{و} اذكر يا محمد {إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً} يخلفني في تنفيذ أحكامي فيها وهو آدم {قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا} بالمعاصي {وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ} يريقها بالقتل كما فعل بنو الجان وكانوا فيها فلما أفسدوا أرسل الله عليهم الملائكة فطردوهم إلى الجزائر والجبال {وَنَحْنُ نُسَبِّحُ} متلبسين {بِحَمْدِكَ} أي نقول سبحان الله وبحمده {وَنُقَدِّسُ لَكَ} ننزهك عما لا يليق بك فاللام زائدة والجملة حال أي فنحن أحق بالاستخلاف {قَالَ} تعالى {إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ} من المصلحة في استخلاف آدم وأن ذريته فيهم المطيع والعاصي فيظهر العدل بينهم فقالوا لن يخلق ربنا خلقا؟ أكرم عليه منا ولا أعلم لسبقنا له ورؤيتنا ما لم يره فخلق الله تعالى آدم من أديم الأرض أي وجهها بأن قبض منها قبضة من جميع ألوانها وعجنت بالمياه المختلفة وسواه ونفخ فيه الروح فصار حيوانا؟ حساسا؟ بعد أن كان جمادا {وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ} أي أسماء المسميات {كُلَّهَا} بأن ألقى في قلبه علمها {ثُمَّ عَرَضَهُمْ} أي المسميات وفيه تغليب العقلاء {عَلَى الْمَلَائِكَةِ فَقَالَ} لهم تبكيتا؟ {أَنْبِئُونِي} أخبروني {بِأَسْمَاءِ هَؤُلَاءِ} المسميات {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} في أني لا أخلق أعلم منكم أو أنكم أحق بالخلافة وجواب الشرط دل عليه ما قبله {قَالُوا سُبْحَانَكَ} تنزيها لك عن الاعتراض عليك {لَا عِلْمَ لَنَا إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا} إياه {إِنَّكَ أَنْتَ} تأكيد للكاف {الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ} الذي لا يخرج شيء عن علمه وحكمته {قال} تعالى {يَا آدَمُ أَنْبِئْهُمْ} أي الملائكة {بِأَسْمَائِهِمْ} المسميات فسمى كل شيء باسمه وذكر حكمته التي خلق لها {فَلَمَّا أَنْبَأَهُمْ بِأَسْمَائِهِمْ قَالَ} تعالى لهم موبخا؟ {أَلَمْ أَقُلْ لَكُمْ إِنِّي أَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} ما غاب فيهما {وَأَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ} ما تظهرون من قولكم أتجعل فيها إلخ {وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ} تسرون من قولكم لن يخلق أكرم عليه منا ولا أعلم

**ترجمه:-** اې محمد ﷺ هغه وخت یاد کړه کوم وخت چې ستا رب فرښتوته فرمائیلي وو چې زه په زمکه کښې یو نائب جوړوم چې په زمکه کښې به زما احکام نافذ کولو کښې زما نیابت کوی او هغه آدم علیه السلام دې. نو فرښتو عرض اوکړو آیا ته په زمکه کښې داسې سړې مقرر کول غواړې چې په زمکه کښې دګناه په ذریعه وینې تویوی؟ یعنی دّ قتل په ذریعه به خونریزی کوی لکه څنګه چې جنات یعنی پیریانو کړی وو او په زمکه کښې دّ اول نه (مقیم) وو. چنانچې هغوی فساد اوکړو نوالله تعالی دّهغوی طرف ته فرښتې اولیګلې نو فرښتوهغوی دّ جزیرو او غرونو طرف وردیکه کړل اومونږ خوستا حمد اوثناء کوو یعنی سبحان الله او الحمدلله وایو. اود هغه خیزونو نه کوم چې ستا شان سره مناسب نه دی ستا پاکی بیانوو. (لَكَ) کښې لام زائده دې او جمله حال ده اودّخلافت مونږ زیات مستحق یو. الله تعالی اوفرمائیل دّ آدم علیه السلام نائب جوړولو کښې چې کوم مصلحت دې زه هغه پیژنم کوم

چې تاسو نه پېژنئ. (او هغه دا) چې دَهغه په اولاد کښې به فرمانبردار هم وی او نافرمان هم، نو په هغوی کښې به دَ عدل ظهور وی نو فرښتو عرض اوکړو چې زمونږ رب به هيڅ کله داسې يو مخلوق پيدا نه کړی چې دَهغه په نيزبه زمونږ نه غوره وی نه داسې چې زمونږ نه اعلم (زياته پوهه لرونکې) وی په دې وجه چې مونږ ته دَ سبقت حق حاصل دې او په دې وجه چې کوم مونږ ليدلی دی هغه چانه دی ليدلی. نوحق تعالی شانه آدم عليه السلام دَ زمکې دَ خاورې نه پيداکړو يعنی دَ زمکې (خاورې) نه په داسې طريقه چې دَ زمکې نه دَ هر رنګ يو موټې خاوره واخستله او هغه ئې په مختلفو اوبو سره واغړله او په هغې کښې ئې روح پوك وهلو نو هغه يو حساس (شئ) جوړشو. پس دَهغې نه چې هغه جماد (يو بې سا) وو او آدم عليه السلام ته ئې دَ ټولو څيزونو نومونه اوخودل تردې چې پياله، پيالئ او د لرګی ځمسی. په دې توګه دَ آدم عليه السلام په زړه کښې القاء کړل بيائی دغه څيزونه دَ فرښتو مخې ته وړاندې کړل. دَهم جمع مذکر ضميرراوړلووجه ذوی العقول ته غلبه ورکول دی او وئې فرمائيل چې تاسو ماته دَدغه څيزونو نومونه واخلئ که چرې تاسو په دې (مشوره) کښې رښتونی يئې چې زه به تاسو نه زيات پيژندونکې نه پيداکوم. يا تاسو په دغه دعوی کښې په حق باندې يئې چې په نيابت کښې تاسو زيات حقدار يئې (نوتاسوماته دَ دغه څيزونو نومونه اوښايئې) او په جواب شرط باندې دَدې ماقبل دلالت کوی. فرښتو عرض اوکړو ته خو پاک ئې (يعنی) ته خودَ اعتراض (نقص) نه پاك ئې مونږ ته هيڅ علم نشته مګردومره څومره چې تامونږ ته خودلې دې. بيشکه هم ته (انت ضمير) د کاف دَخطاب دَ تاکيد دَپاره دې علم اوحکمت والا ئې. ستا دَعلم اوحکمت نه هيڅ څيز بهرنه دې. الله تعالی اوفرمائيل اې آدم! ته اوښايه فرښتو ته دَ دغه څيزونو نومونه. حضرت آدم عليه السلام هغوی ته دَهر څيزنوم اوخودلو اودَهغې حکمت او خواص ئې بيان کړل دَ کوم څيزدَپاره چې هغه څيزونه پيداکړې شوی وو. کله چې آدم عليه السلام دَدغه څيزونو نومونه اوخودل نو الله تعالی توبيخًا او فرمائيل آيا ما تاسو ته نه وو وئيلی چې زه پيژنم دَ آسمانونو او زمکو پټ څيزونه کوم چې دَ فرښتونه پټ دی او هغه هم پيژنم کوم چې تاسو په خپل قول ﴿ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ﴾ سره ظاهره وئی او کومه خبره چې تاسو پټه وئی يعنی خپل قول لن يخلق ربنا خلقا اکرم عليه منا ولا اعلم.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ،** واؤ استئنافيه دې، إِذْ اُذْكُرْ. دَ فعل محذوف مفعول به دې. په قرآن کښې ذکر شوو قصو کښې هم دغه ترکيب اغلب دې. دَزمخشری او ابن عطيه هم دغه قول مختاردې او ابوحيان وئيلی دی چې إِذْ قَالُوا أَتَجْعَلُ دَ وجې نه منصوب دې.

**قوله** لِلْمَلَائِكَةِ: دا دَ مَلَكٌ جمع ده دا په اصل کښې مَالَكٌ دې په وزن دَ مفعل وو همزه تخفيفًا حذف کړې شوه مَلَكٌ دا دَ اَلُوكة نه مشتق دې. د اُلوكة معنى ده پيغام رسول، رسالت، فرښتې هم دَالله تعالى پيغام مخلوق ته د رسولوکارکوی او دَخالق اومخلوق په مينځ کښې واسطه وی په دې وجه دوی ته ملائکه وائی.

**قوله** مُتَلَبِّسِيْنَ، په دې کښې اشاره ده چې بِحَمْدِكَ، نسبح دَ ضمير نه حال دی او باء دَ ملابَست دپاره ده.

**قوله** نُقَدِّسُ لَكَ، کښې لام زائده دَ تاکيد دپاره دې ځکه چې نقدس متعدی بنفسه دې

**قوله** والجملة حال يعنى وَنَحْنُ نُسَبِّحُ، اَتَجْعَلُ دَ ضميرنه حال دې او د نقدس عطف نُسَبِّحُ باندې دې معطوف معطوف عليه سره ملاؤشو جمله فعليه شوه نحن مبتداء خبردې.

**قوله** والجملة حال، دَ يو اعتراض جواب کرځولې کيدې شی.

**سوال**:- وَنُسَبِّحُ، په اَتَجْعَلُ باندې عطف صحيح نه دې ځکه چې اَتَجْعَلُ جمله انشائيه ده او نُسَبِّحُ جمله خبريه ده.

**جواب**:- وَنُسَبِّحُ عطف په اَتَجْعَلُ باندې نه دې بلکه واؤ حاليه دې نه چې عاطفه لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله** نُنَزِّهُكَ عَمَّا لَا يَلِيْقُ بِكَ، ددې عبارت داضافه کولو مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**:- نُسَبِّحُ ونُقَدِّسُ دواړه په يومعنې دی نو دا تکرار بې فائدې دې.

**جواب**:- دَ دواړو معنی مختلف دی دَ تسبيح معنی ده په ژبه سره تسبيح بيانول اودَ تقديس معنی ده دَ پاکئ په زړه سره عقيده لرل.

**قوله** وجواب الشرط دَلّ عليه ما قبله، يعنى اِنْ كنتم صادقين جواب شرط محذوف دې او دال على الحذف ما قبل يعنى انبئونى دې. تقديری عبارت به داسې شی اِنْ كنتم صدقين انبئونى اودَ سيبويه په نيز چونکه دَ جواب شرط تقديم جائزدې لهذا دَ جواب شرط محذوف منل به ضروری نه وی بلکه په ماقبل کښې مذکور، هم انبئونى به جواب شرط وی.

**[ايات توله: ۳۴ - ۳۹]**

{وَ} اذْكُرْ {إِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ} سُجُود تَحِيَّة بِالِانْحِنَاء {فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ} هُوَ أَبُو الْجِنّ كَانَ بَيْنَ الْمَلَائِكَة {أَبَى} امْتَنَعَ مِنَ السُّجُود {وَاسْتَكْبَرَ} تَكَبَّرَ عَنْهُ وَقَالَ أَنَا خَيْر مِنْهُ {وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ} فِي عِلْم الله {وقلنا يآدم اسْكُنْ أَنتَ} تَأْكِيد لِلضَّمِيرِ الْمُسْتَتِر لِيَعْطِف عَلَيْهِ {وَزَوْجك} حَوَّاء بِالْمَدِّ وَكَانَ خَلَقَهَا مِنْ ضِلْعه الْأَيْسَر {الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا} أَكْلًا {رَغَدًا} وَاسِعًا لَا حَجْر فِيهِ {حَيْثُ شِئْتُمَا}

وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ} بِالْأَكْلِ مِنْهَا وَهِيَ الْحِنْطَةُ أَوِ الْكَرْمُ أَوْ غَيْرُهُمَا {فَتَكُونَا} فَتَصِيرَا {مِنَ الظَّالِمِينَ} الْعَاصِينَ {فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ} إِبْلِيسُ أَذْهَبَهُمَا وَفِي قِرَاءَةٍ فَأَزَالَهُمَا نَحَّاهُمَا {عَنْهَا} أَيِ الْجَنَّةِ بِأَنْ قَالَ لَهُمَا هَلْ أَدُلُّكُمَا عَلَى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَقَاسَمَهُمَا بِاللّٰهِ إِنَّهُ لَهُمَا لَمِنَ النَّاصِحِينَ فَأَكَلَا مِنْهَا {فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ} مِنَ النَّعِيمِ {وَقُلْنَا اهْبِطُوا} إِلَى الْأَرْضِ أَيْ أَنْتُمَا بِمَا اشْتَمَلْتُمَا عَلَيْهِ مِنْ ذُرِّيَّتِكُمَا {بَعْضُكُمْ} بَعْضُ الذُّرِّيَّةِ {لِبَعْضٍ عَدُوٌّ} مِنْ ظُلْمِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا {وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ} مَوْضِعُ قَرَارٍ {وَمَتَاعٌ} مَا تَتَمَتَّعُونَ بِهِ مِنْ نَبَاتِهَا {إِلَىٰ حِينٍ} وَقْتِ انْقِضَاءِ آجَالِكُمْ {فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ} أَلْهَمَهُ إِيَّاهَا وَفِي قِرَاءَةٍ بِنَصْبِ آدَمَ وَرَفْعِ كَلِمَاتٍ أَيْ جَاءَهُ وَهِيَ {رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا} الْآيَةَ فَدَعَا بِهَا {فَتَابَ عَلَيْهِ} قَبِلَ تَوْبَتَهُ {إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ} عَلَى عِبَادِهِ {الرَّحِيمُ} بِهِمْ {قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا} مِنَ الْجَنَّةِ {جَمِيعًا} كَرَّرَهُ لِيَعْطِفَ عَلَيْهِ {فَإِمَّا} فِيهِ إِدْغَامُ نُونِ إِنِ الشَّرْطِيَّةِ فِي مَا الزَّائِدَةِ {يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى} كِتَابٌ وَرَسُولٌ {فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ} فَآمَنَ بِي وَعَمِلَ بِطَاعَتِي {فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَةِ بِأَنْ يَدْخُلُوا الْجَنَّةَ {وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا} كُتُبِنَا {أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ} مَاكِثُونَ أَبَدًا؟ لَا يَفْنَوْنَ وَلَا يَخْرُجُونَ

---

**ترجمه** - او یاد کړه چې کوم وخت مونږ فرښتوته حکم وکړو چې دَ آدم په وړاندې دَتعظیم په توګه سره ټیټ شئی، ټول ښکته شوخو ابلیس ښکته نه شوهغه دَ پیریانو نیکه دې یعنی: سجدې کولونه منع شو هغه به دَ فرښتو په مینځ کښې اوسیدو او په سجده کولوسره نې تکبر اوکړو اوونی وئیل زه دَ ده نه غوره یم اوهغه دَالله تعالی په علم کښې دَ منکرینونه وو او مونږ اووئیل چې اې آدم ته (انت) ضمیر دَ مستتر دَتاکید دَپاره دې دې دپاره چې په دې باندې عطف اوکړې شی او ستا بی بی حوآء چې په مد سره اودَدې تخلیق نی دَ آدم علیه السلام دَ کچې پښتئی نه کړې وو. په جنت کښې اوسیږئی اوتاسو دواړه چې څه غواړئی دَ چرته نه غواړئی په فراخئ دلته هیڅ پابندی نشته لیکن دَ خوراك په اراده تاسو دواړه دې ونې سره نیزدې (هم) مه ورځئی هغه دَغنم ونه وه یا دَ انګور وغیره ګنی په نافرمانو کښې به شمیر کړې شئی. خو شیطان ابلیس دَدغه ونې دَ وجې نه دواړ دهوکه کړل او په یو قراءت کښې فَأَزَالَهُمَا دې یعنی دا دواړه ئی دَ جنت نه اوویستل. په داسې طریقه چې ابلیس دې دواړو ته اووئیل چې زه تاسو ته (شجرة الخلد) یعنی دَهمیشه والا ونه اونه ښایم؟ اوپه الله تعالی باندې قسم خوړلوسره ئی هغوی ته اووئیل چې هغه دَدې دواړو خیرخواه دې نوهغه دواړو دَدغه ونې نه څه اوخوړل. نو راویستل ئې هغه دواړه دَ دغه عیش نه په کوم کښې چې هغوی وو او مونږ هغوی ته اووئیل تاسوښکته زمکې ته کوز شئی یعنی تاسو دواړه سره دَ دغه اولاد کوم چې په تاسو کښې دې ستاسو اولاد به بعضې دَ بعضو دښمنان وی دَ بعضې په بعضو باندې دَ ظلم کولودَ وجې نه او ستاسودَپاره په زمکه کښې ټکانه ده اودَهغې دَ پیداوارنه دَ یووخت پورې نفع اوچتول دی یعنی ستاسو دَعمر موده ختمیدو پورې. آدم علیه السلام دَخپل رب نه یو څو کلمات زده

کړل کوم چې هغه آدم علیه السلام ته الهام کړل اوهغه کلمات ﴿ رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ۚ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝ ﴾ حضرت آدم علیه السلام دَ دغه کلماتو په ذریعه سره دعاء اوفرمائیله اوالله تعالی دَهغه دعاقبوله کړه. بیشکه هغه دَخپلو بندیګانو توبه قبولونکې دې او په هغوی باندې رحم کونکې دې. او مونږ هغوی ته اوویل چې تاسو دَ جنت نه لاړشئ دا جمله ئې مکرره ذکرکړې دې دپاره چې په دې باندې عطف اوکړې شی. کله چې تاسو ته زما هدایت کتاب او رسول اورسی اِمّا کښې اِن شرطیه دَ نون په ما زائده کښې ادغام دې نوچاچې زمادَهدایت تابعداری اوکړه په ما ئې ایمان راوړواوزما په طاعت باندې ئې عمل اوکړو نو په هغوی باندې نه څه ویره ده او نه به په آخرت کښې هغوی خفه وی ځکه چې هغوی به په جنت کښې وی او چاچې کفراوکړو او زمونږ دَ آیاتونو اوکتابونو تکذیب ئې اوکړو هغه دوزخیان دی اوهغوی به همیشه په هغې کښې پراته وی نه به فنا کیږی او نه به دَ «دې نه» راوځی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اُذْکر مفسرعلام حسب عادت اُذکر فعل مقدر منلوسره اشاره اوکړه چې اِذْقُلْنَا الخ دَفعل محذوف ظرف دې.

**قوله**: بِالْاِنْحِنَاءِ دَ سجدې تفسیر ئې په انحناء سره کولوکښې اشاره اوکړه چې دلته دَ سجدې لغوی معنی مراد ده اوهغه ښکته کیدل دی. قال ابو عمرو سجد اذا طاطارأسه ځنګه چې د حضرت یوسف علیه السلام په واقعه کښې د سجدې نه لغوی معنی مراد ده. په ټیټیدوسره تعظیم کول په سابقه امتونوکښې جائز وو په دې امت کښې جائزنه دی اوکه چرې دَ سجدې معنی وضع الجبهة علی الارض مراد وی نو په لِاٰدَمَ کښې په لام په د معنی الی وی یعنی سجده خو هم الله تعالی ته کول مراد دی مګر مخ دَ آدم علیه السلام طرف ته کول لکه چې بیت الله طرف ته مخ کولوسره الله تعالی ته سجده کولې شی مګردا قول ضعیف دې.

**قوله**: تَحِيَّةً «دا حَيِيَ يَحْيٰى (س) مصدر دې دَدې معنی ده حَيَّاكَ الله وئیل سلام کول.

**قوله**: ابلیس دَدې په مشتق اوغیرمشتق کیدو کښې اختلاف دې صحیح دادې چې دا عجمی لفظ دې او عجمه او علم کیدو دَ وجې نه غیرمنصرف دې اوکه چرې د ابلاس په معنی د مایوسی نه مشتق وو نومنصرف به وې.

**قوله**: هوابوالجن: دَدې عبارت دَ اضافه مقصددې خبرې طرف ته اشاره ده چې اِلاَّ ابلیس مستثنی منقطع ده یعنی ابلیس دَ فرښتو دَ جنس نه وو بلکه صرف په هغوی کښې اوسیدو تغلیبًا په فرښتو کښې شامل کړې شو. مفسرعلام وَكَانَ بَيْنَ الْمَلَائِكَةِ سره هم دې

طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله** وَاسْتَكْبَرَ: عطف په أبیٰ باندې عطف علت علی المعلول دَ قبیل نه دې یعنی استکبرعلت دې او أبیٰ معلول.

قوله تکبرً د استکبر تفسیر ئې تکبر سره اوکړو او دې کښې ئې اشاره اوکړه چې سین زائده د مبالغه دپاره دې.

**سوال** - علت معلول باندې مقدم وی نه چې عکس.

**جواب** - معلول چونکه ظاهراومحسوس دې اوعلت یعنی تکبر، معنوی اوغیرمحسوس شئ دې دَدې دَپاره ئې محسوس په غیرمحسوس باندې مقدم کړو.

**سوال** - کان من الکافرین سره سوال پیدا کیږی چې ابلیس دَاول نه کافروو نوبیاهغه په جنت کښې څنګه داخل شو؟

**جواب** - دَدې دوه جوابونه دی اول جواب دادې چې هغه وخت کافرنه وو. مګردَ الله تعالی دَازلی علم په اعتبارسره کافروو.دویم جواب کانَ په معنی صار دې یعنی کافرشو.

**قوله** بالاکل. مفسرعلام ددې کلمې په اضافه کولو سره اشاره اوکړه چې لاتقربا کښې د قرب مکانی نه نهی مقصودنه ده بلکه دَ نه خوړلو په تاکید کښې مبالغه مقصود ده لکه دَ الله تعالی قول ﴿ وَلَاتَقْرَبُوا الزِّنَىٰ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً ﴾ کښې چې دی.

**قوله** اَذْهَبَهُمَا وَاَزَالَهُمَا. دَدې دواړو کلمو دَاضافه مقصد اَزَلَّهُمَا دَ دوه معانو بیان دې یوه معنی دهوکه کول او دویمه معنی ویستل، ختمول.

**قوله** كَرَّرَهُ لِيُعْطَفَ عَلَيْهِ. ددې اضافه مقصد دَ یوسوال مقدر جواب دې.

دَ سوال تمهید، قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا. مکرر ذکرکړې شوې دې په دې تکرارکښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې اول اهباط په دې خبره باندې دَ دلالت دَپاره دې چې دا هبوط دارالمحن (دنیا) طرف دې په کوم کښې چې به دَ ژوند تیرولودَپاره منډې ترړې اوکوشش کولې کیږی او په خپل مینځ کښې به دَ یوبل دښمنان وی اودا هبوط به دَ یومحدود وخت دَپاره وی او په دویم هبوط کښې دې طرف ته اشاره ده چې دَدې عارضی قیام په دوران کښې هغه به دَ شرعی تکالیفوهم مکلف وی دَدې نه معلومه شوه چې دوه ځل هبوط ونیلو مقصدجدا جدا دې.

**سوال**:- دواړه مقصدونه ئې په یوهبوط سره ولې متعلق نه کړل؟

**جواب**:- داسې کولې شو مګر په مینځ کښې فَتَلَقّٰی آدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ جمله معترضه راغله په دې

وجه ئې هبوط مکرر راوړلو چې د ثاني مقصد ثاني سره اود اول مقصد د اول سره متصل شي د دې مقصد طرف ته اشاره کولو د پاره مفسر علام لیَعْطَفَ علیه اضافه اوفرمائیله دلته د عطف نه مراد اصطلاحي عطف نه دې بلکه اتصال مراد دې.

**قوله** فَإِمَّا فاء دترتیب مابعدعلی ماقبل د پاره ده. فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ إِمَّا په اصل کښې إِنْ مَا وو. انْ شرطيه اومَا زائده دې ﴿ فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ ﴾ جمله شرطيه جزائيه کيدو سره د إن شرطيه جواب واقع دې.

**[اياتوله: ٤٠-٤٢]**

{يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ} أَوْلَاد يَعْقُوب {اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ} أَيْ عَلَى آبَائِكُمْ مِنَ الْإِنْجَاء مِنْ فِرْعَوْن وَفَلْق الْبَحْر وَتَظْلِيل الْغَمَام وَغَيْر ذَلِكَ بِأَنْ تَشْكُرُوهَا بِطَاعَتِي {وَأَوْفُوا بِعَهْدِي} الَّذِي عَهِدْته إِلَيْكُمْ مِنَ الْإِيمَان بِمُحَمَّدٍ {أُوفِ بِعَهْدِكُمْ} الَّذِي عَهِدْت إِلَيْكُمْ مِنَ الثَّوَاب عَلَيْهِ بدخول الجنة {وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ} خَافُونِ فِي تَرْك الْوَفَاء بِهِ دُون غَيْرِي {وَآمِنُوا بِمَا أَنْزَلْتُ} مِنَ الْقُرْآن {مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ} مِنَ التَّوْرَاة بِمُوَافَقَتِهِ لَهُ فِي التَّوْحِيد وَالنُّبُوَّة {وَلَا تَكُونُوا أَوَّلَ كَافِرٍ بِهِ} مِنْ أَهْل الْكِتَاب لِأَنَّ خَلْفكُمْ تَبَع لَكُمْ فَإِثْمهمْ عَلَيْكُمْ {وَلَا تَشْتَرُوا} تَسْتَبْدِلُوا {بِآيَاتِي} الَّتِي فِي كِتَابكُمْ مِنْ نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {ثَمَنًا قَلِيلًا} عِوَضًا يَسِيرًا مِنَ الدُّنْيَا أَيْ لَا تَكْتُمُوهَا خَوْف فَوَات مَا تَأْخُذُونَهُ مِنْ سَفِلَتكُمْ {وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ} خَافُونِ فِي ذَلِكَ دون غيري {وَلَا تَلْبِسُوا} تخلطوا {الْحَقَّ} الَّذِي أَنْزَلْت عَلَيْكُمْ {بِالْبَاطِلِ} الَّذِي تَفْتَرُونَهُ {وَ} لَا {تَكْتُمُوا الْحَقَّ} نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ} أَنَّهُ الْحَق

**ترجمه:** - اې بني اسرائيلو ! د يعقوب عليه السلام اولاد زما هغه نعمتونه يادکړئ کوم چې ما تاسو ته درکړې دی يعنې ستاسو پلارانو او نيکونو ته مثلاً د فرعون نه خلاصې ورکول او درياب لره شلول او اوريځې د سورې د پاره چت جوړول وغيره وغيره. په دې توګه چې زما اطاعت اوکړئ او زما د نعمتونو شکريه اداکړئ او تاسو زما عهدپوره کړئ کوم چې ما تاسو نه اخستې وو اوهغه په محمد ﷺ باندې د ايمان راوړلو متعلق دې. زه به ستاسو عهدپوره کړم کوم چې تاسوسره مې کړې دې يعنې په ايمان راوړو باندې په جنت کښې داخلول او ثواب به درکوم. اوهم زما نه ويرېږئ يعنې په وعده ماتولو کښې زمانه ويرېږئ نه چې زما نه علاوه د بل چانه ويرېږئ او په دې قرآن پاک باندې ايمان راوړئ کوم چې ما ستاسو د کتابونو يعنې تورات د تصديق د پاره نازل کړې دې. په توحيد او نبوت کښې د دې (قرآن او د دې (تورات) د موافق کيدو وجې نه تاسو اهل کتابونه اول منکرمه جوړيږئ ځکه چې ستاسو نه پس راتلونکې به ستاسو اتباع کوي نو د هغوی ګناه به هم ستاسو په سر وي اوزما دا آياتونه کوم چې ستاسو په کتاب کښې دی مثلاً د محمد ﷺ صفات په

سپک قیمت باندې مه خرڅه وئی یعنی په معمولی دنیاوی بضاعت سره ئی مه بدلوئی اوهم زما نه ویریږئی یعنی په دې معامله کښې هم زمانه ویرېږئی نه چې زما نه علاوه دَ بل چانه اوحق کوم چې ما ستاسو طرف ته نازل کړې دې باطل سره کوم چې تاسو دَ ځان نه جوړ وئی مه ګډوډ کوئی او مه حق پټه وئی یعنی دَ محمد ﷺ صفت چې تاسو ته خپله دَ هغې علم دې چې هغه (رسول) په حقه دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** يٰبَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ، یعنی دَ یعقوب علیه السلام اولاد، اسرائیل عربی لفظ دې که عجمی په دې کښې اختلاف دې صحیح دادې چې عجمی دې اوهم دغه وجه ده چې دَ عُجمه او دَ علم کیدو دَ وجې نه غیرمنصرف دې. اسرائیل مرکب اضافی دې اسرا په معنی دَ عبد، ایل په معنی د الله، یعنی عبدالله یا صفوة الله (دَ الله تعالی غوره) او اسرائیل دَ حضرت یعقوب علیه السلام بن اسحاق علیه السلام لقب دې.

**قوله** بان تشکروها، بطاعتی دَدې تعلق د اُذْكُرُوْا سره دې. په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې اُذْكُرُوْا نعمتی نه مراد صرف ذکر اوشمیرنه دې بلکه دَهغه نعمتونو شکریه اداکول دی ګنې ذکراوشمیرخوهرسړې کوی تردې چې کافر اومشرك ئی هم کوی.

**قوله** علی آبائکم، دَدې اضافه مقصد دَ یوسوال مقدرجواب دې.

**سوال:-** دَ اَنْعَمْتُ علیکم، مخاطب دَ حضورپاك دَ زمانې یهودیان دی اودَ اَنْعَمْتُ علیکم تفسیرکښې چې کوم انعامات شمیرکړې شوی دی په هغې کښې یوهم دَ حضورپاك په زمانه کښې موجود یهودیانو باندې نه دې شوې بیا دَحضورپاك دَ زمانې یهودیان مخاطب کولو سره انعمت علیکم وئیل څنګه صحیح دی؟

**جواب:-** عبارت په حذف د مضاف سره دې ای انعمتُ علی آبائکم، لهذا اوس هیڅ اشکال پاتې نه شو.

قوله. اوفوا: تاسو پورا کړئی، دا ایفاء د (افعال) نه جمع مذکر امر حاضر ده.

**قوله** اُوْفِ زه به پوره کړم، ایفاء نه مضارع واحدمتکلم دې.

**قوله** اَوْفُوْا بِعَهْدِیْٓ اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ تاسو زما عهدپوره کړئی زه به ستاسو عهدپوره کړم.

**سوال.** په دې آیت کښې دَ بنی اسرائیلو نه دَ هغه عهد دَ پوره کولو مطالبه کړې شوې ده کوم چې بنی اسرائیلو نه دې کړې بلکه اَوْفُوْا بِعَهْدِیْٓ نه معلومیږی چې عهدالله تعالی کړې دې، دَ بنی اسرائیلو نه دَ عهد پوره کولو مطالبه کول، دا خودَ غیرفاعل نه دَ ایفاء مطالبه کول دی کوم چې صحیح نه دې؟

**جواب:** كوم عهد چې د معاهد (فاعل) په فعل باندې معلق وی نو مفعول يعنى (فريق ثانى) دَ طرف نه معلق عليه پوره كولو ته وفاء عهدوئيلې شى او فاعل معاهد دَ (الله) عهد جنت كښې داخلول دى كوم چې معلق دى. دَ بنى اسرائيلو په ايمان راوړو باندې او بنى اسرائيلو ايمان معلق عليه (شرط) دې لهذا دَ معلق پوره كولو دَ پاره دَ معلق عليه دَ وفاء مطالبه كول صحيح دى. إنَّ العَهْدَ المعلق على فعل المعاهد يكونَ الوفاءُ مِنَ المفعول بالاتيان بالمعلق عليه ومن الفاعل بالاتيان بالمعلق فالمراد بِعَهْدِ اللهِ إيّا هم بالايمان والعمل الصالح، فيصح طلب الوفاء منهم بالاتيان. (ترويح الارواح)

**قوله:** اَلَّذِيْنَ عَهِدْتُهُ اِلَيكُم، په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چې دواړو ځايونو كښې عهد مصدر مضاف الى الفاعل دى اودَغه خلقو رددې څوك چې وائى اول مضاف الى الفاعل دې او ثانى مضاف الى المفعول دې اودَې رد وجه داده چې اضافت الى الفاعل اكثر واقع دې او راجح دې. لهذا تركومې چې څوك صارف موجود نه وى ترك كولې پورې به نه شى اودلته څوك موجود نه دې.

**قوله:** دونَ غيرى، دا دَغه حصر طرف ته اشاره ده كوم چې اِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ كښې تقديم مفعول نه مستفاد دې.

**قوله:** من اهل الكتاب، دَدې اضافه مقصد هم دَ يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** دادې چې دَ حضور پاك بعثت په مكه كښې شوې او دَ ټولونه وړاندې دَ نبوت دعوىٰ هم حضور پاك په مكه كښې كړې ده، دَ كومې چې دَمكې كافرانو انكار اوكړو نو په دې اعتبار سره اول منكرين كفار مكه دى نه چې دمدينې يهود.

**جواب:**-قوله: تستبدلوا، دَ تَشْتَرُوا تفسير په تَسْتَبْدِلُوْا سره دكولو مقصد دادې خبرې طرف ته اشاره كول دى چې دلته اشتراء په حقيقى معنى كښې ممكن نه ده ځكه چې دا باء په ثمن باندې داخليږى دلته په آياتى باندې داخل ده. لهذا آياتى به ثمن وى او ثمنا به مبهم شى يعنى آيات وركولو سره ثمن مه اخلئ اودا حقيقةً متعذره ده لهذا د اشتراء نه مجازًا استبدال مراد دې.

**[اياتونه: ۴۲-۴۶]**

{وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ} صَلُّوا مَعَ الْمُصَلِّينَ مُحَمَّد وَأَصْحَابه وَنَزَلَ فِي عُلَمَائِهِمْ وَكَانُوا يَقُولُونَ لِأَقْرِبَائِهِمْ الْمُسْلِمِينَ اُثْبُتُوا عَلَى دِين مُحَمَّد فَإِنَّهُ حَقّ {أَتَأْمُرُونَ النَّاس بِالْبِرِّ} بِالْإِيمَانِ بِمُحَمَّدٍ {وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ} تَتْرُكُونَهَا فَلَا تَأْمُرُونَهَا بِهِ {وَأَنْتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَاب} التَّوْرَاة وَفِيهَا الْوَعِيد عَلَى مُخَالَفَة الْقَوْل الْعَمَل {أَفَلَا تَعْقِلُونَ} سُوء فِعْلكُمْ فَتَرْجِعُونَ فَجُمْلَة النِّسْيَان محل الاستفهام الإنكاري

{واستعينوا} اطلبوا المعونه عن أمُورِكُمْ {بِالصَّبْرِ} الْحَبْس لِلنَّفْسِ عَلَي مَا تَكْرَه {والصلاة} افردها بالذكر تعظيما؟ لشانه وَفِي الْحَدِيث كَانَ صَلَّي اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمْ إذا حز به أمر بادَرَ إلَي الصَّلَاة وَقِيلَ الْخِطَاب لِلْيَهُودِ لَمَّا عَاقَهُمْ عَنْ الْإِيمَان الشَّرَه وَحُبّ الرِّيَاسَة فَأُمِرُوا بِالصَّبْرِ وَهُوَ الصَّوْم لِأَنَّهُ يَكْسِر الشَّهْوَة وَالصَّلَاة لِأَنَّهَا تُورِث الْخُشُوع وَتَنْفِي الْكِبْر {وَإِنَّهَا} أيْ الصَّلَاة {لَكَبِيرَةٌ} ثَقِيلَة {إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ} السَّاكِنِينَ إلَي الطَّاعَة {الذين يظنون} يوقنون {أنهم ملاقوا رَبِّهِمْ} بِالْبَعْثِ {وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ} فِي الْآخِرَة فيجازيهم

**ترجمه:**- اومونځ قائم کوئی او زکوة ورکوئی او رکوع کونکوسره رکوع کوئی. مونځ کونکوسره (يعنی) د محمد ﷺ اودهغه ملګرو سره مونځ کوئی او (آئنده) آیت د یهودو دعلماؤ باره کښې نازل شوې چې خپلو رشته دارانوته به ئی وئیل په دین محمد ﷺ باندې قائم اوسیږئی ځکه چې دا حق دین دې. ایا تاسو خلقوته د نیکئ (یعنی) محمد ﷺ باندې دَ ایمان حکم کوئی او پخپله ئی هیره وئی چې خپل ځان ته دَ ایمان حکم نه کوئی سره دَدې چې تاسوکتاب تورات لولئ او په هغې کښې په قول اوفعل کښې مخالفت باندې وعید دې. آیا تاسو په خپله دې غلطه طریقه باندې نه پوهیږئی؟ چې (دا دَ قول اوفعل تضاد نه) منع شئی جمله نسیان (یعنی تنسون الخ) دَاستفهام انکاری محل دې او په خپلو معاملاتو کښې صبراو صلوة سره مدد طلب کوئی. نفس چې کوم ځیز ناخوښه کوی دَهغې په کولوباندې نفس مجبوره کولوته صبر وائی صرف دَ مونځ ذکر دَدې دَ شان دَعظمت د وجې نه دې.

او په حدیث شریف کښې دی چې کله به حضورپاك ته دَ پریشانئی څه خبره مخې ته شوه نو دَ مانځه طرف ته به ئی سبقت کولو اووئیلې شوی دی چې خطاب یهودو ته دې کله چې هغوی حرص او حب جاه دَ ایمان راوړلونه منع کړل نوهغوی ته دَ صبر چې روژه ده حکم ورکړې شو چې هغه شهوت ماتونکې ده او مونځ، ځکه چې مونځ خشوع پیداکوی اوتکبرختموی او مونځ یقینًا سخت دې مګر خشوع اختیارونکو باندې (سخت نه دې) یعنی دَ اطاعت طرف ته مائل کیدونکو باندې څوک چې دَدې خبرې یقین لری چې دَمرګ نه پس ژوندی کیدل دی او خپل رب سره ملاویدونکی دی اوهغوی له په آخرت کښې رب ته تلل دی نوهغه به دوی ته بدله ورکوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** صَلُّوامع المصلين، د واركعوامع الراكعين تفسير ئې صلوامع المصلين سره كولو كښې اشاره اوكره چې جزء وئيلو سره مراد كل دې اودَ ركوع تخصيص دَدې دَپاره چې دَ وړاندينو امتونو په مونځونو كښې ركوع نه وه مطلب دادې چې تاسو هغه مونځ كوئى كوم كښې

چې رکوع هم وی او مع الراکعین سره اشاره چې مونځ په جمع سره کوئ. خطاب چونکه یهودو ته دې په دې وجه هغوی ته وئیلې شی چې تاسو داسې مونځ کوئی په کوم کښې چې رکوع هم وی او په جمع سره هم وی. چونکه د یهودو په مونځ کښې سجده خو وه لیکن رکوع نه وه. په دې وجه د رکوع والا مونځ محمد ﷺ سره د کولو حکم ورکړې شوې دې. مطلب دادې چې تاسو په محمد ﷺ باندې ایمان راوړئ او د هغوی په شان مونځونه کوئ.

**قوله**: فجملة النسيان محل الاستفهام الانكاري، مطلب دادې چې د انکار تعلق د تنسون انفسکم سره دې نه چې تأمرون الناس سره ځکه چې امر بالبر خو امر مندوب و مطلوب دې

**قوله**: أفردهَا بالذكر، دا د یو سوال مقدر جواب دې سوال دادې چې صرف هم مونځ ولې ذکر کړې شو؟ جواب دادې چې د دې د عظمت شان د وجې نه دا په خاص توګه ذکر کړې دې.

**[ایاتونه: ٤٧-٥٤]**

{يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ} بالشُّكْرِ عَلَيْهَا بِطَاعَتِي {وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ} أَيْ آبَاءَكُمْ {عَلَى الْعَالَمِينَ} عَالِمِي زَمَانِهِمْ {واتقوا} خافوا {يوماً لَا تَجْزِي} فِيهِ {نَفْسٌ عَنْ نَفْسٍ شَيْئًا}؟ وهو يوم القيامة {وَلَا يُقْبَلُ} بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ {مِنْهَا شَفَاعَةٌ} أَيْ لَيْسَ لَهَا شَفَاعَة فَتُقْبَل {فَمَا لَنَا مِنْ شَافعين} {ولا يؤخذ منها عَدْلٌ} فِدَاء {وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ} يُمْنَعُونَ مِنْ عذاب الله {وَ} اذْكُرُوا {إِذْ نَجَّيْنَاكُمْ} أَيْ آبَاءَكُمْ وَالْخِطَاب بِهِ وَبِمَا بَعْده لِلْمَوْجُودِينَ فِي زَمَن نَبِيّنَا بِمَا أَنْعَمَ اللّه عَلَى آبَائِهِمْ تَذْكِيرًا؟ لَهُمْ بِنِعْمَةِ اللّه تَعَالَى لِيُؤْمِنُوا {مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ} يُذِيقُونَكُمْ {سُوءَ الْعَذَابِ} أَشَدّه وَالْجُمْلَة حَال مِنْ ضَمِير نَجَّيْنَاكُمْ {يُذَبِّحُونَ} بَيَان لِمَا قَبْله {أَبْنَاءَكُمْ} الْمَوْلُودِينَ {وَيَسْتَحْيُونَ} يَسْتَبْقُونَ {نِسَاءَكُمْ} لِقَوْلِ بَعْض الْكَهَنَة لَهُ إِنَّ مَوْلُودًا يُولَد فِي بَنِي إِسْرَائِيل يَكُون سَبَبًا؟ لِذَهَابِ مُلْكك {وَفِي ذَلِكُمْ} الْعَذَاب أَوْ الْإِنْجَاء {بَلَاءٌ} ابْتِلَاء أَوْ إِنْعَام {مِنْ رَبِّكُمْ عَظِيمٌ} {وَ} اذْكُرُوا {إِذْ فَرَقْنَا} فَلَقْنَا {بِكُمْ} بِسَبَبِكُمْ {الْبَحْرَ} حَتَّى دَخَلْتُمُوهُ هَارِبِينَ مِنْ عَدُوّكُمْ {فَأَنْجَيْنَاكُمْ} مِنَ الْغَرَق {وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ} قَوْمه مَعَهُ {وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ} إِلَى انْطِبَاق الْبَحْر عَلَيْهِمْ {وَإِذْ وَاعَدْنَا} بِأَلِفٍ وَدُونهَا {مُوسَى أَرْبَعِينَ لَيْلَةً} نُعْطِيه عِنْد انْقِضَائِهَا التَّوْرَاة لِتَعْمَلُوا بِهَا {ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ} الَّذِي صَاغَهُ لَكُمْ السَّامِرِيّ إِلَهًا {مِنْ بَعْدِهِ} أَيْ بَعْد ذَهَابه إِلَى مِيعَادنَا {وَأَنْتُمْ ظَالِمُونَ} بِاتِّخَاذِهِ لِوَضْعِكُمْ الْعِبَادَة فِي غَيْر محلها {ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ} مَحَوْنَا ذُنُوبكُمْ {مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ} الِاتِّخَاذ {لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} نِعْمَتنَا عَلَيْكُمْ {وَإِذْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ} التَّوْرَاة {وَالْفُرْقَانَ} عَطْف تَفْسِير أَيْ الْفَارِق بَيْن الْحَقّ وَالْبَاطِل وَالْحَلَال وَالْحَرَام {لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ} بِهِ مِنَ الضَّلَال {وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ} الَّذِينَ عَبَدُوا الْعِجْل {يَا قَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ} إِلَهًا {فَتُوبُوا إِلَى بَارِئِكُمْ} خَالِقكُمْ مِنْ عِبَادَته {فَاقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ} أَيْ لِيَقْتُل الْبَرِيء مِنْكُمْ الْمُجْرِم {ذَلِكُمْ} الْقَتْل {خَيْرٌ لَكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ} فَوَفَّقَكُمْ لِفِعْلِ ذَلِكَ وَأَرْسَلَ عَلَيْكُمْ سَحَابَة سَوْدَاء لِئَلَّا يُبْصِر بَعْضكُمْ بَعْضًا؟ فَيَرْحَمهُ حَتَّى قَتَل

مِنْكُمْ نَحْوَ سَبْعِينَ أَلْفًا؟ {فَتَابَ عَلَيْكُمْ} قَبِلَ تَوْبَتَكُمْ {إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ}

**ترجمه:-** اې دَ یعقوب علیه السلام اولاده زما هغه نعمت یادکړئ کوم چې ما تاسو ته درکړې وو یعنی په هغه نعمتونو باندې شکرګزارئ په ذریعه اطاعت کولوسره اوما تاسو ته یعنی ستاسو پلارانوته په دنیاوالا باندې (یعنی) دَهغه زمانې په دنیاوالوباندې فضیلت ورکړې وو اودَهغه ورځ نه ویریږئ په کومه ورځ چې به څوك دَ چا په هیڅ کارنه شي راتلې اوهغه دَ قیامت ورځ ده. اونه به دَ چادَ طرف نه سفارش قبلولې شي. (تُقْبَلُ) یاء او تاء سره دې یعنی دَهغې دَپاره به سفارش نه کیږی چې قبول به کړې شي لکه چې فما لنا من شافعین نه معلومیږی اونه به څوك څه فدیه اخستوسره پریښودې شي اونه به دَهغوی مددکیږی چې هغوی دَ الله تعالی دَعذاب نه بچ کړې شي اوهغه وخت یادکړئ کوم وخت چې مونږ تاسو ته یعنی ستاسو پلارانو ته اوداخطاب هغوی ته اودَهغوی نه پس په ذریعه دهغه (یهودیانو) دې کوم چې ستاسو په زمانه کښې موجود وو دَهغه انعاماتو هغوی ته خبرورکولې شي کوم چې دَهغوی پلارانوته ورکړې شوی وو. دَالله تعالی نعمتونه وریادولودَپاره چې ایمان راوړی. دآل فرعون د (غلامئ) نه ئې خلاصې درکړو چې تاسو به ئې په دیرخراب عذاب سره تکلیف کولې یعنی دیرسخت عذاب او جمله د نَجَّیْنٰكُمْ ضمیرنه حال دې. ستاسو (نوی) پیدا شوی هلکان به ئې ذبح کول. یُذَبِّحُوْنَ دَماقبل نه بدل دې اوستاسو لونړه به ئې ژوندئ پریښودې. بعض کاهنانو فرعون ته دَ دې ویناکولودَ وجې چې بنی اسرائیلوکښې به یوهلك پیداکیږی چې ستادَحکومت دَ زوال سبب به جوړیږی او دغه عذاب یا خلاصې ورکولوکښې ستاسو دَ رب دَ طرف نه لوئی ازمیښت یا انعام دې. او یادکړئ هغه وخت چې مونږستاسودَپاره دریاب شلولې وو تردې چې تاسو دَ خپل دښمن نه په تیښته په هغې کښې داخل شوئی او تاسو له ئې دَ غرقیدلونه خلاصې درکړو اوآل فرعون اودَ هغه قوم سره دَ فرعون مونږ غرق کړو او تاسو په هغوی باندې دَ دریاب یوځائی کیدل لیدلې وو. او کله چې مونږ موسی علیه السلام سره دَ څلویښتو ورځو وعده اوکړه (وٰعَدْنَا) کښې الف او بغیردَ الف دواړه قراتونه دی چې مونږ به دَ دغه مودې پوره کیدو باندې تورات درکوو. دې دَپاره چې تاسو په هغې باندې عمل اوکړئ بیا تاسو هغه سخې خپل معبود جوړکړو کوم چې ستاسو دَ پاره سامری جوړکړې وو. دَ موسی علیه السلام زمونږ دَ وعدې مقام ته دَ تللونه پس اوتاسو دَ هغه معبود جوړولو دَوجې نه ظالمان جوړشوئی. د عبادت په غیرمحل کښې ساتلودَ وجې نه بیا مونږ تاسو معاف کړئ یعنی ستاسوګناهونه مومعاف کړل دَ سخی معبود جوړولونه پس دې دَ پاره چې تاسو په خپل ځان باندې زمونږ دَ نعمتونو شکر اداکړئ اوکله چې مونږ موسی علیه السلام ته کتاب تورات اوفرقان ورکړو داعطف تفسیری دې

يعني حق اوباطل اودَ حلال اوحرام په مينځ کښې فرق کونکې دې دَپاره چې تاسو دَدې په ذريعه دَ گمراهئ نه هدايت حاصل کړئ اوکله چې موسى عليه السلام دَ خپل قوم ته چې دَ سخي عبادت ئې کړې وو اوفرمائيل اې زما قومه تاسو سخې خپل معبود جوړ کړو په خپل ځان باندې مو ظلم کړې دې. لهذا تاسو خپل خالق ته دَهغه سخي دَعبادت نه توبه اوکړئ. لهذا تاسو خپل مينځ کښې يوبل قتل کړئ يعني په تاسو کښې خراب مجرم قتل کړئ دا قتل کول ستاسو دَپاره بهتر دى ستاسو دَ پيدا کونکى په نيز نو الله تعالى تاسو ته دَدې توفيق درکړو او په تاسو باندې ئى تورې اوريخې راؤليږلې ې دې دَپاره چې په تاسو کښې بعضې بعضو اونه ليدلې شى چې په هغه باندې ترس اوخورى. تردې چې په تاسو کښې قتل کړې شوى اويا زره کسان وو، نو الله تعالى ستاسو توبه قبوله کړه بيشکه هغه توبه قبلونکې او رحم کونکې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** عَالَمِيْ زَمَانِهِمْ دَدې اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال:** عَالَمْ ماسوادَ الله تعالى ته وائى دَ بنى اسرائيلو په ماسوى د الله باندې دَ فضيلت نه لازم راځى چې امت محمديه ﷺ باندې هم فضيلت حاصل وى حالانکه امت محمديه ﷺ په ټولو امتونو کښې غوره امت دې.

**جواب:** - دَعالم نه په هغه زمانه کښې موجو دين مراد دې نه چې مطلق موجو دين.

**قوله:** عَدْلٌ په معنى دَعوض، بدله، معاوضه، انصاف، فديه، عِدل په کسره دَ عين سره په معنى دَمثل، ابوعمر اووئيل چې فتحه اوکسره سره يوشان معنى ده.

**قوله:** وَلَاهُمْ يُنْصَرُوْنَ دا دَ يوسوال جواب دې.

**سوال:** هُمْ ضمير دَجمع مذکر دې نفس طرف ته راجع دې حالانکه نفس مفرد دې.

قوله: نفس، د نکره لاندې النفى د داخليدو په وجه عموم باندې دلالت کوى . او ددې په وجه په نفس کښې د جمعيت معنى پيدا شوې ده.

**جواب:** - نَفْس دَ عِبَادْ تاويل دې.

**قوله:** يَسُوْمُوْنَكُمْ دا د سَوْم (ن) نه مضارع جمع مذکرغائب صيغه ده هغوى تاسو ته تکليف درکوى، مجبوره کوى دې.

**قوله:** بَيَان لِمَا قَبْلَهُ يعنى يُذَبِّحُوْنَ بعضې ماقبل يعنى يسومونکم بيان دې ځکه چې متعدد او مختلف قسم تکليفونو نه دلته صرف دَ ذبح ذکر دې.

**قوله:** يَسْتَحْيُوْنَ اِسْتِحيَاء (استفعال) نه جمع مذکرغائب مضارع هغه ژوندى پريږدى.

تَمْتَرُوْنَ اصل کښې تَمْتَرِيُوْنَ دَ دوو یاګانو سره وو رومبې یاء عین کلمه او دویمه لام کلمه په رومبې یاء باندې کسره دشوارکیدو دَ وجې نه کسره حذف شوه. دَدې نه پس د یاء اوحاء په مینځ کښې التقاء دَ ساکنینو اوشوه دَ کوم دَ وجې نه چې یاء حذف کړې شوه اواوتیلې شوش دی چې تخفیفًا یاء ثانیه حذف کړې شوه او رومبې یاء ته دَ واؤ په مناسبت سره ضمه ورکړې شوې ده. جینکونه دَ مایؤل په اعتبارسره نساء سره تعبیرکړې شوې دی.

**قوله** وفي ذلكم، خبرمقدم دې. بَلَاۤءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ مبتداء مؤخردې.

**قوله** اَلسَّامِرِيُّ، دَ سامری اصل نوم موسیٰ دې دا سړې ولدالزنا وو دَ هغه مور دَ شرم اوحیاء دَ وجې نه هغه دَ یوغر په غارکښې راوړې وو اودَبدنامئی دَوجې نه ئې هم په غارکښې پریخودې وو. حضرت جبرائیل عليه السلام دَده پالنه کړې وه.

فموسى الذى ربّاه جبريل كافر وموسى الذى ربّاه فرعون مرسل

**[ایاتونه: ۵۵ - ۵۹]**

{وَإِذْ قُلْتُمْ} وَقَدْ خَرَجْتُمْ مَعَ مُوسَى لِتَعْتَذِرُوا إِلَى اللّٰهِ مِنْ عِبَادَةِ الْعِجْلِ وَسَمِعْتُمْ كَلَامَه {يَا مُوسَى لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ حَتَّى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً} عِيَانًا {فَأَخَذَتْكُمُ الصَّاعِقَةُ} الصَّيْحَة فَمُتُّمْ {وأنتم تنظرون} ما حل بكم {ثم بعثناكم} احييناكم {من بعد موتكم لعلكم تشكرون} نِعْمَتَنَا بِذٰلِكَ {وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ} سَتَرْنَاكُمْ بِالسَّحَابِ الرَّقِيقِ مِنْ حَرِّ الشَّمْسِ فِي التِّيهِ {وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ} فِيهِ {الْمَنَّ وَالسَّلْوَى} هُمَا التَّرَنْجَبِينُ وَالطَّيْرُ السُّمَانَي بِتَخْفِيفِ الْمِيمِ وَالْقَصْرِ وَقُلْنَا {كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ} وَلَا تَدَّخِرُوا فَكَفَرُوا النِّعْمَةَ وَادَّخَرُوا فَقُطِعَ عَنْهُمْ {وَمَا ظَلَمُونَا} بِذٰلِكَ {وَلٰكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ} لِأَنَّ وَبَالَه عَلَيْهِمْ {وَإِذْ قُلْنَا} لَهُمْ بَعْدَ خُرُوجِهِمْ مِنَ التِّيهِ {ادْخُلُوا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ} بَيْتَ الْمَقْدِسِ أَوْ أَرِيحَا {فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا} وَاسِعًا لَا حَجْرَ فِيهِ {وَادْخُلُوا الْبَابَ} أَيْ بَابَهَا {سُجَّدًا} مُنْحَنِينَ {وَقُولُوا} مَسْأَلَتُنَا {حِطَّةٌ} أَيْ أَنْ تَحُطَّ عَنَّا خَطَايَانَا {نَغْفِرْ} وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ مَبْنِيًّا لِلْمَفْعُولِ فِيهِمَا {لَكُمْ خَطَايَاكُمْ وَسَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ} بِالطَّاعَةِ ثَوَابًا {فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا} مِنْهُمْ {قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ} فَقَالُوا حَبَّةٌ فِي شَعْرَةٍ وَدَخَلُوا يَزْحَفُونَ عَلَى أَسْتَاهِهِمْ {فَأَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا} فِيهِ وَضْعُ الظَّاهِرِ مَوْضِعَ الْمُضْمَرِ مُبَالَغَةً فِي تَقْبِيحِ شَأْنِهِمْ {رِجْزًا} عَذَابًا طَاعُونًا {مِنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ} بِسَبَبِ فِسْقِهِمْ أَيْ خُرُوجِهِمْ عَنِ الطَّاعَةِ فَهَلَكَ مِنْهُمْ فِي سَاعَةٍ سَبْعُونَ أَلْفًا أَوْ أَقَلُّ

**ترجمه**:- (یاد کړئ) چې کله تاسو موسیٰ عليه السلام ته ونیلې وو (کوم وخت) چې تاسو موسیٰ عليه السلام سره دَ سخی دَعبادت دَ عذر خواهئی دَپاره دَالله تعالیٰ طرف ته وتلې وئی اوتاسو دَ هغه کلام اوریدلې وو. اې موسیٰ عليه السلام مونږ به هیڅ کله ستادَ خبرې یقین اونه کړو ترکومې چې مونږ په

ښکاره په خپلو سترگو الله تعالى اونه وينو نو تاسو دَ بجلۍ گړزا گيرکړئ دَ څه په وجه چې تاسو مړه شوئ. او څه چې په تاسو باندې تيرشو هغه تاسو ليدل. بيا مونږ تاسو ستاسو دَ مرگ نه پس ژوندي کړئ دې دَپاره چې تاسو دَ دغه احسان شکرگذاري اوکړئ او مونږ په تاسو باندې دَ اوريځې سورې اوکړو. يعنى مقام تيه کښې د رقيق (نرئ) اوريځو په ذريعه دَ نمر دَ گرمئ نه حفاظت اوکړو او په هغه مقام تيه کښې ستاسو دَ پاره من اوسلوىٰ درکړل او هغه ترنجبين او مرزان وو. دَ ميم په تخفيف او الف مقصوره سره اومونږ تاسو ته اووئيل چې کوم پاک څيزونه مونږ تاسو ته درکړي دي هغه خورئ او ذخيره مه کوئ مگر هغوى دَ نعمت ناشکري اوکړه او ذخيره کول ئې شروع کړه دَ څه په وجه چې هغه څيزونه بند شو. او (ستاسو مشرانو) دَ دغه ذخيره اندوزئ په ذريعه هغوى په مونږ باندې ظلم اونه کړو بلکه پخپله هغوى په خپلو ځانونو باندې ظلم اوکړو ځکه چې دَهغې وبال او نقصان هم په هغوى باندې پريوتونکې دې. او کله چې مونږ هغوى ته دَ مقام تيه نه دَ وتلونه پس وئيلې وو چې په دغه کلي بيت المقدس يا اريحا کښې داخل شئ او په هغې کښې چې څه غوارئ اودَ چرته نه غوارئ په کولاؤ او آسانه سره خورئ په دې کښې هيڅ پابندى نشته مگر دَ دغه کلي په دروازه کښې (په عاجزئ سره) په ټيټه ټيټه داخليږئ او وايئ چې زمونږ درخواست دَ معافئ دې يعنى زمونږ خطاگانې معاف کړئ مونږ به ستاسو خطاگانې معاف کړو او په يوقرا ءت کښې په ياء او تاء سره دې او دواړه صيغې د مجهول سره مونږ به نيکانو خلقو ته نور هم ورکوو دَ طاعت په سبب دَ ثواب خو چې کومه خبره هغوى ته خودلې شوې وه ظالمانو هغه په بله خبره کښې بدله کړه او حَبَّةٌ فى شعرةٍ ئې اووئيل دَتوبې دانې سره او په خپلو کناتو باندې راښکلو سره داخل شو آخرکار مونږ ظلم کونکو باندې، په دې کښې دَ ضمير په ځائى اسم ظاهر راوړلې شوې دې دَهغوى په تقبيح شان کښې مبالغه کولو دَپاره دَ آسمان نه دَ طاعون عذاب نازل کړو دَهغوى دَ فسق دَ وجې نه يعنى دَهغوى دَ اطاعت نه دَانحراف کولو دَ وجې نه. چنانچې هم هغه وخت په هغوى کښې اويا زره يا (څه) کم هلاک شو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ:

**سوال:** مؤمن به څه څيز دې؟

**جواب:** صاحب کشاف وئيلى دى چې مؤمن به دادې چې هم الله تعالى تاسره خبرې کوى اودا چې هم الله تعالى تاته تورات درکړې دې. اومحى السنه وئيلى دى چې مؤمن به دَالله تعالى نبى دې.

**سوال:** نُؤمِنُ، متعدی بنفسه دی نو دَدې په صله کښې لام څنګه دی؟

**جواب:** لام په معنی دَ اجل دی. اَیْ لَا نُؤمِنُ لِاَجَلِكَ یعنی صرف ستا په وینا کولو سره به ایمان نه راوړو ترکومې پورې چې مونږ په خپلو سترګو باندې الله اونه ګورو.

**قوله:** عیانا، د جَهْرَةً تفسیر په عیانًا سره کولو کښې دَ یو سوال مقدر جواب مقصود دی.

**سوال:** جَهْرَةً، د جَهَرْتُ بالقراءة مصدر دی. دَ کوم تعلق چې صوت یعنی آواز سره دی نو جَهْرَةً دَ رؤیة په معنی کښې د استعمالولو څه وجه ده؟

**جواب:** جَهْرَ، دَ رؤیة په معنی کښې مجاز دی مناسبت په دواړو کښې ظهور تام دی.

**قوله:** صَاعِقَة، دَ بجلئ ګرز، ګرزاری.

**قوله.** فَثُمَّ دَ فَتُبْتُمْ اضافه مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دی چې دَ ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ عطف په مقدر باندې دی لهذا اوس دا اعتراض نه شی کیدې چې بعث خو بعد الموت کیږی اودَ اخذ صاعقه دَپاره مرګ لازم نه دی، دَجواب خلاصه داده چې دَ صاعقه سره دَهغوئ مرګ واقع شو.

**قوله:** اَلْغَمَام، اَلسَّحَابُ الرقیق الابیض. یعنی نرمه سپینه وریځ.

**قوله:** تیه، دشام اود مصر په مینځ کښې دَ یو وادئ نوم دی دکوم وسعت چې نهه فرسخه دی.

**قوله:** مَنّ دَ یو قسم شبنمی خوږې شیرې په شکل کښې څیزوو چې دَ شپې به په پانړو باندې راجمع کیدو. مفسر علام دا په ترنجبین سره تعبیر کړې دی.

**قوله:** سَلْوٰی دا یو قسم مرغئی ده چې دکونترې نه وړه او دَ چرچڼرې نه لویه وی په اردو کښې هغې ته بټیر وائی اودې ته لَوَی او فارسی کښې ورته بیودنه وائی. قاموس کښې دی چې دَدې واحد سَلواةٌ دی. اخفش نه نقل دی چې دَدې واحدنه دی اوریدلې شوې (لغات القرآن)

**قوله:** سُمانی، دَ سین په ضمه او الف مقصوره سره دَدې جمع سمانات راځی. (ترویح الارواح)

**قوله:** منحنین، په دې کښې اشاره ده چې سجداً حال دی، ای متواضعین

**قوله:** مسالتنا حِطَّةٌ په دې کښې اشاره ده چې حِطَّةٌ دمبتداء محذوف خبر دی او حِطَّةٌ کلمه د استغفار ده او په دې کښې د حذف هم ضرورت نشته.

**سوال:** حِطَّةٌ لره دَ قولوا مقوله ولې اونه ګرځوله حالانکه هم دغه ظاهر دی.

**جواب:** ځکه چې دَ قول مقوله جمله وی او حِطّةٌ مفرد دې دَدې اعتراض نه دَ بچ کیدو دَپاره مَسٔالتنا دَمبتداء محذوف حِطّةٌ خبر گرځولې دې.

**قوله:** يَزْحَفُوْنَ على استاهِهِم، اى يمشون على أدبارهم، يعنى په کناتو باندې رابنکونکې.

اَسْتَاهٌ جمع سَتْهٍ، سرین.

**قوله:** بسبب فسقهم، دې کښې اشاره ده چې بما کښې باء سببيه ده اوما مصدريه دې.

**[اياتونه: ٦٠ - ٦١]**

{وَ} اذكر {إِذِ اسْتَسْقَى مُوسَى} أَيْ طَلَبَ السُّقْيَا {لِقَوْمِهِ} وَقَدْ عَطِشُوا فِي التِّيه {فَقُلْنَا اضْرِبْ بِعَصَاكَ الْحَجَرَ} وَهُوَ الَّذِي فَرَّ بِثَوْبِهِ خَفِيف مُرَبَّع كَرَأْسِ الرَّجُل رُخَام أَوْ كَذَّان فَضَرَبَهُ {فَانْفَجَرَتْ} انْشَقَّتْ وَسَالَتْ {مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا} بِعَدَدِ الْأَسْبَاط {قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ} سِبْط مِنْهُمْ {مَشْرَبَهُمْ} مَوْضِع شُرْبهمْ فَلَا يَشْرَكهُمْ فِيهِ غَيْرهمْ وَقُلْنَا لَهُمْ {كُلُوا وَاشْرَبُوا مِنْ رِزْقِ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ} حَال مُؤَكِّدَة لِعَامِلِهَا مِنْ عَثِيَ بِكَسْرِ الْمُثَلَّثَة أَفْسَدَ {وَإِذْ قُلْتُمْ يَا مُوسَى لَنْ نَصْبِرَ عَلَى طَعَامٍ} اي نوع {وَاحِدٍ} وَهُوَ الْمَنّ وَالسَّلْوَى {فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا} شَيْئًا؟ {مِمَّا تُنْبِتُ الْأَرْضُ مِنْ} لِلْبَيَانِ {بَقْلِهَا وَقِثَّائِهَا وَفُومِهَا} حِنْطَتهَا {وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا قَالَ} لَهُمْ مُوسَى {أَتَسْتَبْدِلُونَ الَّذِي هُوَ أَدْنَى} أَخَسّ {بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ} أَشْرَف أَتَأْخُذُونَهُ بَدَله وَالْهَمْزَة لِلْإِنْكَارِ فَأَبَوْا أَنْ يَرْجِعُوا فَدَعَا اللَّه تَعَالَى فَقَالَ تَعَالَى {اهْبِطُوا} انْزِلُوا {مِصْرًا} مِنَ الْأَمْصَار {فَإِنَّ لَكُمْ} فِيهِ {مَا سَأَلْتُمْ} مِنَ النَّبَات {وَضُرِبَتْ} جُعِلَتْ {عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ} الذُّلّ وَالْهَوَان {وَالْمَسْكَنَةُ} أَيْ أَثَر الْفَقْر مِنَ السُّكُون وَالْخِزْي فَهِيَ لَازِمَة لَهُمْ وَإِنْ كَانُوا أَغْنِيَاء لُزُوم الدِّرْهَم الْمَضْرُوب لِسِكَّتِهِ {وَبَاءُوا} رَجَعُوا {بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ ذَلِكَ} أَيْ الضَّرْب وَالْغَضَب {بِأَنَّهُمْ} أَيْ بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ} كَزَكَرِيَّا وَيَحْيَى {بِغَيْرِ الْحَقِّ} أَيْ ظُلْمًا {ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ} يَتَجَاوَزُونَ الْحَدّ فِي الْمَعَاصِي وَكَرَّرَهُ لِلتَّأْكِيدِ

**ترجمه:** اوهغه وخت یاد کړه کوم وخت چې موسی علیه السلام خپل قوم دَپاره دَ اوبو دعا اوغوښتله په داسې حال کښې چې هغه په مقام تیه کښې تږی شو نوموږ موسی علیه السلام ته حکم اوکړو چې خپله همسا (فلانکې) کاڼی باندې اووهه اودا هم هغه کاڼې وو چې دَ موسی علیه السلام کپړې ئې اخستې وې اوتختیدلې وو (او) هغه کاڼې سپک خلورګوټه دَ سړی دَ سرپه شان سپین رنګې نرم وو. حضرت موسی علیه السلام هغه په همسا باندې اووهلو نوهغه اوشلیدو او دَ قبیلود شمیر مطابق دَهغه کاڼی نه دولس چینې جاری شوې. او دَهغه هرې یوې قبیلې خپله خپله چینه اوپیژندله (یعنی) دَ خپلو اوبو ځائی اوپیژندلو دې دَپاره چې په هغې کښې بل څوک شریک نه شی اوموږ هغوی ته اووئیل چې دَالله تعالی درکړې شوې رزق خورئی او په ملک کښې

فساد کولوسره مه گرځئ. (مفسدين) دَ خپل عامل نه حال موکده دي عَثیَ ثاء مثلثه مکسوره نه ماخوذ ده په معنی د أفسَدَ دي. اوهغه وخت یاد کړئ کوم وخت چې تاسو (موسیٰ ﷺ ته) وئیلي وو چې اې موسی ﷺ مونږ به په یوقسم خوراک باندې هیڅ کله اکتفاء اونه کړو چې هغه من او سلویٰ دی. لهذا ته دَ خپل رب نه دعا اوغواړه چې زمونږ دَپاره دَ زمکې نه راتوکیدونکی څیزونونه څه څیزپیداکړی په مما کښې منْ بیانیه دي. (مثلاً) ساګ سبزی بادرنګ غنم مسور پیاز وغیره نو موسی ﷺ هغوی ته اوفرمائیل آیا تاسودَ اوچتې درجې څیز دَ ښکته درجې والا څیزپه بدل کښې اخستل غواړئ یعنی دَ اعلی په بدله کښې ادنٰی اخستل غواړئ. او همزه دَ انکاردَپاره دي مګر هغوی دَ (خپلې مطالبې نه) منع کیدو نه انکار اوکړو. موسیٰ ﷺ الله تعالی نه دعا اوغوښتله نو الله تعالی اوفرمائیل (ښه ده)په ښارونوکښې یوښار ته لاړشئ ساګ وغیره څه چې تاسو غواړئ ملاؤ به شي. (تردې چه) په هغوی باندې ذلت خواری محتاجی یعنی دَ محتاجئی (قلبی) اثر فقر او ذلت مسلط کړې شو دَ کوم دَ وجې نه چې (قلبی) محتاجی په هغوی لازمه شوه سره دَدې چې هغوی به مالداران ولې نه وی لکه څنګه چې دَ تکسلی سکې دَپاره تهپه لازمه وی اودَ الله تعالی غضب ئې واخستو واپس شول اودَ ذلت مسلط کیدل اودَ الله تعالی غضب اخستل واپس کیدل دا څکه اوشو چې هغوی دَ الله تعالی دَآیاتونو انکارکولو. او نبیان به ئې ناحق په ظلم سره قتل کول. لکه زکریا ﷺ او یحییٰ ﷺ دا څکه اوشو چې هغه خلقو نافرمانی کوله او په ګناه کښې به دَحد نه زیاتیدل. (اسم اشاره) دَ تاکید دَپاره مکرر راوړې ده.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اِسْتَسْقٰی طَلَبُ السُّقیاء (استفعال) ماضی واحد مذکر غائب اوبهٔ غوښتل دَ اوبو دَپاره دعا کول، اِضْرِب بِعَصَاكَ الحجر، د ضربٌ، عام اومعروف معنی وهل او ضرب لګول دی. دَ ضَرَبَ معنی دَ تګ په هغه وخت کښې راځی کله چې دَ دې صله فی راځی. لهذا کومو حضراتو چې په غرباندې دَتللو ترجمه کړې ده (لکه چې سرسیداحمدخان کړې ده) نودا ترجمه چې څنګه دَ لغت او زبان دَ قواعدو خلاف ده دغه شان دَ تاریخ هم بالکل مخالف ده.

**قوله**: اَلحَجَرَ کیدې شی چې یوخاص کاڼې مراد وی لکه څنګه چې دَ مفسرعلام هم دغه رائې ده نو په دې صورت کښې به الف لام دَعهد دَپاره وی اودا هم احتمال دې چې یومعین کاڼې مراد نه وی په دې صورت کښې به الف لام دَ جنس وی دَ معجزې دَپاره دا زیات مناسب دی.

**قوله**: فَضَرَبَهٗ، دَدې په مقدرمنلو کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې فانفجرت کښې فاء فصیحه ده او انفجرت په محذوف باندې مرتب دي. اِنْفَجَرَتْ انفجار نه مشتق دې دَدې معنی دَ

شليدلو او بهيدلو ده.

**قوله**: كُلُّ أُنَاسٍ دَ كل نه كل افرادي مراد دى بالنسبة الى الاسباط نه چې كل مجموعي.

**قوله**: تَعْثَوْا دا دَ عَثَا يَعْثُوا (ن) او عثِيَ يَعْثَىٰ (س) نه نهى دَ جمع مذكرحاضر صيغه ده. يعنى تاسو فساد مه خورونئ.

**قوله**: حالٌ مؤكدةٌ لعاملها دا دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: حال په ذوالحال كښې په معنى زائده ( دزيات په معنى) باندې دلالت كوى چې دلته مفقود دې ځكه چې كومه معنى دَعَثِيٌّ ده هم هغه معنى دَ مفسدين ده.

**جواب**: دَمعنى زياتوالې په حال منتقلة كښې ضرورى وى نه چې په مؤكده كښې اودا حال مؤكده دې.

**قوله**: موضع شرب، د مَشْرَبٌ تفسير موضع شرب سره كولوكښې اشاره اوكړه چې المشرب ظرف دې نه چې مصدر ميمى ځكه چې دَمصدرپه صورت كښې ئې معنى صحيح نه ده. كمالايخفى.

**قوله**: نوعٌ منه دَدې جملې دَ اضافې مقصد دَ يو اشكال جواب دې.

**اشكال**: دَ بنى اسرائيلو خوراكونه دوه وو مَنْ او سلوىٰ نوالله تعالى على طعام واحدٍ ولې اوفرمائيل؟

**جواب**: دَ وحدت نه مراد وحدت نوعى دې نه چې فردي اودا دَتعدد منافى نه دې ځكه چې په عرف كښې وئيلې شى چې خوراك ډير مزيدار وو سره دَدې چې مختلف قسم خوراكونه وى.

**قوله**: شيئًا په مقدر منلوكښې اشاره ده چې من تبعيضيه ده، نه چې بيانيه او روستونې مِنْ بيانيه دى. شيئًا، چې دَ يُخْرِجْ مفعول به دې. مقدر منلوسره دَ يو اشكال جواب وركړې دې.

**اشكال**: دوه حرف جر چې دَ يوې معنې وى بغيردَعطف ديوفعل سره متعلق كول صحيح نه دى لكه چې مِمَّا تنبتُ او من بقلها كښې دواړه يُخْرِجْ لنا سره متعلق دې.

**جواب**: دواړه مِنْ په يوه معنى كښې نه دى رومبې تبعيضيه دې او دويم بيانيه.

**قوله**: بقلها، دا دَ مانه د حرف جر په اعاده سره بدل دې. بَقْلٌ دَ دې جمع بقول ده. هر هغه نبات ته وائى په كوم كښې چې تنانه وى قِثَّاءٌ بادرنګ واحد قِثَّاءة.

**قوله**: فومٌ غنم اوړه هره هغه غله دَ كومې نه چې روټئ جوړيدې شى. عدس مسور، بَصَلٌ پياز.

**قوله**: باءُو، بَوْءٌ سره ماضي جمع مذكر غائب هغه واپس شو، او هم دَدي نه دي بآءَ البآءاى رَجَعَ الى المنزل.

**قوله**: من الامصار،أىْ بلدٍكان من الشام دلته دَمصرنه مراد يو مخصوص ښارنه دي اونه معروف ښارمصردي مطلب دا چې دَ شام دَملك كوم يوكلي ته هم لاړشي دَمِصرًا تنوين تنكير هم دي طرف ته اشاره كوي.

**قوله**: جُعِلَتْ، د ضُرِبَتْ تفسير ئې په جُعِلَتْ سره كولوكښې اشاره اوكړه چې په دې كښې استعاره تبعيه په معنى دَلزوم ده اودا دَ دوى دَ ذليل كيدو دَ طرف ته اشاره ده.

**قوله**: المسكنه،محتاجي.

**قوله**: اثرالفقر، أثر مضاف محذوف منلوسره اشاره اوكړه چې نفس فقر مراد نه دي بلكه لازم فقر كوم چې ذلت دي مراد دي. ګنى په هغوئ كښې ډير خلق غنيان هم وو او نن هم دي مګر دَغنا تعلق دَمال اودولت سره نه دي بلكه قلب سره دي كه قلبي غنا حاصله نه وي نو ددې مصرعې مصداق به وي. *آنانکہ غنی ترند محتاج ترند*

**قوله**: ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا، ذلك مشار اليه ضرب ذلت او غضب دي. سوال پيدا شوې دي چې مشار اليه دوه دي او اسم اشاره مفرد دي.

**جواب**: مشاراليه مذكورپه معنى كښې دي لهذا هيڅ اشكال نشته.

**[ايا تونه:٦٢-٦٦]**

{إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا} بالأنبياء مِن قَبل {وَالَّذِينَ هَادُوا} هُمُ اليَهود {وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ} طَائِفَة مِنَ اليهود أَوِ النَّصارى {مَنْ آمَنَ} مِنهُمْ {بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} فِي زَمَن نَبِيّنَا {وَعَمِلَ صَالِحًا} بِشَرِيعَتِهِ {فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ} أيْ ثَواب أعمَالِهِمْ {عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} رُوعِيَ فِي ضَمِير آمَنَ وَعَمِل لَفظ مَنْ وفيما بعده معناه {وَ} اذْكُرْ {إِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ} عَهدَكُمْ بِالعَمَلِ بِمَا فِي التَّوْرَاة {وَ} قَدْ {رَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ} الجَبَل اقتَلَعنَاهُ مِن اصله عَلَيكُمْ لَمَّا أبَيْتُمْ قَبُولَهَا وَقُلْنَا {خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ} بِجِدٍّ وَاجتِهاد {وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ} بِالعَمَلِ بِهِ {لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ} النَّار أوِ المَعَاصِي {ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ} أعرَضْتُمْ {مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ} المِيثاق عَنِ الطَّاعَة {فَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ} لَكُمْ بِالتَّوبَةِ أوْ تأخِير العَذَاب {لَكُنْتُمْ مِنَ الْخَاسِرِينَ} الهالكين {وَلَقَدْ} لام قَسَم {عَلِمْتُمُ} عَرَفتُمْ {الَّذِينَ اعْتَدَوْا} تجاوزوا الحد {مِنْكُمْ فِي السَّبْتِ} بِصَيدِ السَّمَك وَقَدْ نَهَيْنَاهُمْ عَنهُ وَهُمْ أهل أيْلَة {فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ} مُبعَدِينَ فَكَانُوا وَهَلَكُوا بَعد ثَلاثَة أيّام {فَجَعَلْنَاهَا} أيْ تِلكَ العُقُوبَة {نَكَالًا} عِبرَة مَانِعَة مِنِ ارتِكَاب مِثل مَا عَمِلُوا {لِمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا} أيْ لِلأُمَمِ الَّتِي فِي زَمَانِهَا وَبَعدَهَا {وَمَوْعِظَةً لِلْمُتَّقِينَ} اللهَ وَخُصُّوا بِالذِّكْرِ لِأنَّهُمُ المُنتَفِعُونَ بِخِلافِ غَيرِهِمْ

**ترجمه**: بیشکه هغه خلق چې په سابقه انبیاء کرامو علیهم السلام باندې ایمان راوړو (یعنی مسلمانان) یهود نصاری او صابي (اوصابی) هم د یهودو اونصاری یوه فرقه ده په دوی کښې چې څوک هم په الله اوپه ورځ د قیامت د نبی په زمانه کښې ایمان راوړی اوډهغوی د شریعت مطابق نیک عمل کوی دهغوی اجر یعنی دهغوی داعمالو ثواب د هغوی رب سره دې اودهغوی دپاره به نه څه ویره وی اونه غم، د آمَنَ او عَمِلَ په ضمیرکښې د مَنْ لفظ رعایت دې اودې په مابعد کښې مَنْ دمعنی رعایت دې اوهغه وخت یادکړه کله چې مونږ تاسو نه د تورات په احکامو باندې دعمل کولو عهد اخستې وو کوم وخت چې مونږ په تاسو باندې کوه طور راؤچت کړو (یعنی) د بیخ نه راویستلو او په تاسو باندې زوړند کړو کوم وخت چې تاسو د تورات د قبلولونه انکارکړې وو اومونږ وئیلی وو چې کوم کتاب مونږ تاسو ته درکړې دا کلک اونیسئی یعنی په کوشش اومحنت سره اوچې کوم احکام په دې کښې درج دی په هغې باندې عمل کولو په ذریعه هغه یاد ساتئی دې دپاره چې تاسو د اور (دوزخ) یا ګناه نه بچ شئی (مګر) بیا تاسو د دغه عهد د طاعت نه واوړیدئی. بیاهم که چرې په تاسو باندې دتوبې اود عذاب د تاخیرپه ذریعه دالله تعالی فضل او رحمت نه وو شوې نوتاسو به په نقصانیانو (یعنی) دهلاکیدونکونه کیدئی اویقیناً تاسو دهغه خلقو باره کښې پوهیږئی چا چې په تاسو کښې دهفتې د ورځې باره کښې دکبانو ښکار کولو سره د حد نه تجاوز اوکړو. حالانکه مونږ هغوی ددې نه منع کړی وو او هغوی د ایله اوسیدونکی وو. نومونږ دهغوی دپاره حکم اوکړو چې ذلیل او شړلې شوې بیزوګان جوړ شئی نوهغوی ټول بیزوګان شو. او درې ورځې پس هلاك شو. نومونږ دا سزا موجوده او راتلونکی کسانو یعنی دهغوی او هغوی پسې شاته خلقو دپاره (سامان) عبرت یعنی د هغوی په طرز عمل کولونه منع کیدونکی جوړکړل. اود الله تعالی ویره لرونکودپاره نصیحت جوړکړو او د متقینو د تخصیص وجه داده چې هم دغه خلق ددې نه استفاده کوی په خلاف د هغوی نه علاوه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**. هَادُوْا، ای دَخَلُوْا فِی الْيَهُوْدِيَّةِ، هَادُوْا ماضی جمع مذکر غائب معروف، یهودی مذهب نې اختیارکړو. (ن) هُوْدًا توبه کول یهودی کیدل، د سخی د عبادت نه توبه کولود وجې یهودیان یادیدل، هُوْدٌ د یهودیانو جماعت، الیهود که چرې عربی دې نو هَادَ نه ماخوذ دې په معنی د تاب، چونکه دغه خلقو دخپلو ځانونو په قتل کولو سره د سخی د عبادت نه توبه کړې وه په دې وجه دا خلق یهودیان یادیدل اوکه چرې عجمی وی نو په دې صورت کښې دحضرت یعقوب علیه السلام مشر خوئی یهوذا طرف ته به نسبت شی د تعریب په وخت ذال په دال سره بدل کړې شو کوم چې د معربین عام عادت دې.

**قوله**: النصارى، دا دَ نَصْرَان جمع ده په دې کښې ياء نسبتي ضرور استعماليږي. ونيلې شي منع کيدل، نصراني، إمرأة نصرانية، دَنصارى وجه تسميه خويا داده چې هغوى ونيلى وو نحن انصارالله يا نَصْرَان نومې يا ناصره نومې کلي طرف ته نسبت کولوسره نصراني يادېدل. (اعراب القرآن، لغات القرآن)

**قوله**: اَلصّٰبِـِٕيْنَ دا دَ صابی جمع ده او صَبَاُلانٌ نه ماخوذ دې چې دَ دين نه خارج شی دَ بعضې مفسرينو داخيال دې چې صابی دَ ستورو عبادت کونکو ته وائی. ابواسحاق صابی کاتب شاعر تعلق هم دَهغه قوم نه وو. دَبعض مفسرينو خيال دې چې دې خلقو دَهردين او عقيدې نه څه نا څه اخستې وو. دغه شان دا جدا جدا شو مفسرعلام طائفة من اليهودوالنصارى ونيلوسره دې طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: فى زمن نبينا دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ يواشکال جواب دې.

**انشکال**: پورته اوفرمائيلې شو اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا او بيا اوفرمائيلې شو اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ دَ دوارو مفهوم هم يو دې نودَدې تخصيص بعدالتعميم څه ضرورت دې؟

**جواب**:- دَ دوارو مصداق جدا جدا دې دَ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مصداق هغه خلق دى چې په زمانه فترت (وقفه) کښې ايمان راوړو لکه ورقه بن نوفل بحيرا راهب، سلمان فارسی رضی الله عنه وغيره په دوى کښې بعضو دَحضورپاك زمانه هم ليدلې اوبعضې دَ حضورپاك دَ بعثت نه وړاندې وفات شوى وو هم ددې طرف ته اشاره کولودَپاره علامه سيوطی رحمه الله بالانبياءمن قبل فرمائيلی او مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ نه هغه خلق مراد دى چې دَ حضورپاك په زمانه کښې ئى هم په حضورپاك باندې ايمان راوړې. دَدې نه معلومه شوه چې دَ دوارو په مصداق کښې مغايرت دې لهذا دَ تکرار اشکال ختم شو. اوهم دَدغې مغايرت دَ بيان دَپاره دَ بل آيت په تشريح کښې فى زمن نبينا اوفرمائيلې شو.

**سوال**: مَنْ اٰمَنَ او مَنْ عَمِلَ کښې دَضميرمفرد مرجع مَنْ دې او فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ کښې هم ضمير جمع مرجع هم مَنْ دې کوم چې صحيح نه دې.

**جواب**: مفسرعلام رُوْعِىَ فى ضميرالخ اضافه کولوسره هم دَدې سوال جواب ورکړې دې مطلب دادې چې په اول کښې دَمَنْ دَ لفظ رعايت دې اوپه دويم مَنْ کښې معنى رعايت دې. داخبره ياد ساتئى چې دَ مَنْ لفظ په اعتبارسره مفرد او دَمعنى په اعتبارسره جمع دې.

**قوله**: وَقَدْ رَفَعْنَا: قَدْ مقدر منلوسره اشاره اوکړې شوه چې واؤ حاليه دې نه چې عاطفه اورَفَعْنَا دَ قَدْتقدير سره اَخَذْنَاهُمْ نه حال دې نه چې معطوف. ځکه چې دَامام شافعی رحمه الله په

نیز معطوف علیه او معطوف کښې ترتیب ضروری دې حالانکه رفع طور مقدم دې او اخذ میثاق مؤخر.

**قوله**: بالعمل، بالعمل اضافه کولوسره اشاره اوکړه چې دَ ژبې ذکر کافی نه دې بلکه مقصد عمل دې مطلب دادې چې نعمتونه شمیرل مقصد نه دې عمل مقصد دې.

**قوله**: النار والمعاصی، دې کښې اشاره ده چې د تَتَّقُوْنَ مفعول النار یا المعاصی محذوف دې دا تنزیل المتعدی بمنزلة اللازم دَ قبیل نه نه دې.

**قوله**: نکال جمع انکال بیرئی ته وائی لازم دَ منع په توګه باندې عذاب او منع کښې استعمالیږی.

**[ایاتونه: ۶۷ - ۷۱]**

{وَ} اذْكُرْ {إِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ} وَقَدْ قُتِلَ لَهُمْ قَتِيل لَا يُدْرَي قَاتِله وَسَأَلُوهُ أَنْ يَدْعُو الله أَنْ يُبَيِّنهُ لَهُمْ فَدَعَاهُ {إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً قَالُوا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا} مَهْزُوءًا؟ بِنَا حَيْثُ تُجِيبنَا بِمِثْلِ ذَلِكَ {قَالَ أَعُوذُ} أَمْتَنِع {بِاللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ} المستهزئين فلما عَلِمُوا أَنَّهُ عَزْمَ {قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا هِيَ} أَيْ مَا سِنّهَا {قَالَ} مُوسَى {إِنَّهُ} أَيْ اللَّه {يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَا فَارِضٌ} مُسِنَّة {وَلَا بِكْرٌ} صَغِيرَة {عَوَانٌ} نِصْف {بَيْنَ ذَلِكَ} الْمَذْكُور مِنْ السِّنِينَ {فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ} بِهِ مِنْ ذَبْحهَا {قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا لَوْنُهَا قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَوْنُهَا} شَدِيد الصُّفْرَة {تَسُرُّ النَّاظِرِينَ} إلَيْهَا بِحُسْنِهَا أَيْ تُعْجِبهُمْ {قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا هِيَ} أَسَائِمَة أَمْ عَامِلَة {إِنَّ الْبَقَرَ} أَيْ جِنْسه الْمَنْعُوت بِمَا ذُكِرَ {تَشَابَهَ عَلَيْنَا} لِكَثْرَتِهِ فلم نهتد إلي المقصود {وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَمُهْتَدُونَ} إلَيْهَا وَفِي الْحَدِيث لَوْ لَمْ يَسْتَثْنُوا لَمَا بُيِّنَتْ لَهُمْ لآخر الأبد {قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَا ذَلُولٌ} غَيْر مُذَلَّلَة بِالْعَمَلِ {تُثِيرُ الْأَرْضَ} تُقَلِّبهَا لِلزِّرَاعَةِ وَالْجُمْلَة صِفَة ذَلُول دَاخِلَة فِي النَّفْي {وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ} الْأَرْض الْمُهَيَّأَة لِلزِّرَاعَةِ {مُسَلَّمَةٌ} مِنْ العيوب وآثار العمل {لَا شِيَةَ} لَوْن {فِيهَا} غَيْر لَوْنهَا {قَالُوا الْآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ} نَطَقْت بِالْبَيَانِ التَّامّ فَطَلَبُوهَا فَوَجَدُوهَا عِنْد الْفَتَى الْبَارّ بِأُمِّهِ فَاشْتَرَوْهَا بِمِلْءِ مَسْكهَا ذَهَبًا؟ {فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ} لِغَلَاءِ ثَمَنهَا وَفِي الْحَدِيث لَوْ ذَبَحُوا أَيّ بَقَرَة كَانَتْ لَأَجْزَأَتْهُمْ وَلَكِنْ شَدَّدُوا عَلَى أَنْفُسهمْ فَشَدَّدَ اللَّه عَلَيْهِمْ

**ترجمه**:- او هغه وخت یاد کړه کله چې موسی علیه السلام خپل قوم ته اووئیل او دَ هغوی نه څوک سړې قتل شوې وو او دَهغه دَ قاتل پته نه لګیده. هغه خلقو حضرت موسیٰ علیه السلام ته درخواست اوکړو چې تاسو دَالله تعالی نه دعا اوغواړئی چې هغه قاتل ښکاره شی حضرت موسیٰ علیه السلام دعا اوغوښتله (او ونی وئیل) الله تعالی تاسو ته دَ یوې غوا دَ ذبح حکم درکوی نو هغوی اوئیل ولې ته مونږ پورې ټوقې کوې یعنی زمونږ مسخرې جوړه وې چې داقسم جواب راکوئی؟ (حضرت موسیٰ علیه السلام) اووئیل زه دَالله تعالی پناه غواړم چې دَ جاهلانو په شان خبرې

اوکرم (یعنی) ته قوکونکو کښې شمیرشم. کله چې هغوی پوهه شو چې هغه حقیقت وائي (ټوقې نه کوی) نووې وئیل تاسو زمونږ دپاره دَ خپل پروردگار نه دعا اوکړه چې هغه مونږ ته دَ دغه (غوا) باره کښې څه (تفصیل) اوښائی چې دَهغې عمر څه وی؟ (موسیٰ ﷺ) اوفرمائیل چې الله تعالی فرمائی چې هغه به نه بوډئی وی او نه بچې (بلکه) دَ درمیانه عمر وی لهذا (دَ ذبح) کوم حکم چې تاسو ته درکولې شی هغه اوکړئی. بیا ئی اووئیل دَ خپل رب نه دا نور تپوس اوکړه چې دَهغې رنګ څنګه به وی؟ (حضرت موسی ﷺ) اوفرمائیل چې الله تعالی فرمائی چې هغه دَ ډیر شوخ رنګ زیړه وی کتونکوته دَهغې دَ خوبیانو دَ وجې نه یعنی (ناظرین) په حیرانتیاکښې واچوی هغوی بیا اووئیل چې خپل رب نه صفاصفا تپوس اوکړه چې مونږته اوښائی څنګه (غوا) مطلوب ده؟ په ځنګل کښې څریدونکې به وی که ساتلې شوې (کورنئی) بیشکه دَ مذکوره صفاتو دَ غوا په تعیین کښې زمونږ شک پیداشوې دَدې صفت (جنس) غواګانې په کثرت سره کیدو دَ وجې په کوم سره چې مونږ مقصد ته رسیدې نه شو (موسیٰ ﷺ) اوفرمائیل هغه وائی چې داسې غوادې وی چې دَ هغې نه خدمت نه وی اخستې شوې په کارکښې استعمال شوې نه وی نه په زمکه اړولو کښې استعمال شوې وی چې زمکه دَ زمیندارئی دَپاره اړولې را اړولې شی او تیول (تثیر الارض، ذلول) صفت دې کوم چې دَنفی لاندې داخل دی او نه دَپټی اوبه خور کړې وی یعنی هغه زمکه کومه چې دَ فصل دَپاره تیاره کړې شوې وی دَعیبونو او دَ کږدَ نښاناتو نه صحیح سالمه وی او په دې کښې دَهغې دَ (اصلي) رنګ نه علاوه هیڅ داغ نه وی نووئی وئیل چې اوس تا صحیح پته اوخودله یعنی پوره وضاحت دې اوکړو. نوهغوی دَدې لټون شروع کړو نوهغه ئی یوځوان سره اولیدله چې دَخپلې مور حکم منونکې وو دې خلقو دغه غوا دَهغې د څرمن دَ سرو زرو نه دَ ډکولو په عوض واخستله بیاهغوی دا ذبح کړه ګنی هغوی دَ دې دومره قیمتی کیدو دَ وجې داسې کونکی نه معلومیدل. په حدیث شریف کښې دی چې که هغوی کومه یوه غوا هم ذبح کړې وه نو دَهغوی دَپاره به کافی کیدله لیکن هغوی پخپله په خپل ځان باندې سختی اوکړه نوالله تعالی هم په هغوی باندې سختی اوکړه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** بَقَرَةٌ د بَقَرَة اطلاق سره دَدې چې په نر او ماده دواړو باندې کیږی مګر دلته ترې نه ماده مراد ده. بَقَرَةٌ بَقَرٌ نه مشتق دې دَ کوم معنی چې شلول دی چونکه دا زمکه اړه وی په دې وجه دې ته بقرة وائی.

**قوله** مَهْزُوًّا، هُزُوًا، تفسیر مَهْزُوًّا سره کولو کښې اشاره اوکړه چې هُزُوًا مصدر په معنی د اسم مفعول دې.

**قوله**: مَا لِنَهَا، مَاهِيَ تفسير په مالونها سره كولو كښې اشاره اوكړه چې مَا اګرچې ماهيت نه دَ سوال كولو دَپاره راځي مګر دا قاعده كليه نه ده بلكه اكثريه ده.

**قوله**: فَارِضٌ، بوډئ.

**سوال**: فارض، د بقرة صفت دې لهذا فارضة، كيدل پكاردي.

**جواب**: مفسر علام فارض تفسير مسنة سره كولو كښې اشاره كړې ده چې دا مسنة نوم دې نه چې د بقره صفت فارض، فَرَضٌ نه اسم فاعل دې دَدې معنى خيرل شلول او ارتول دى. دلته فارض نه هغه غوا يا غوټې مراد دې چې خپله ځوانى ئې تيره كړې وى بوډا والى ته رسيدلې وى يا دَ بوډا والى دَ وجې نه دَهغې غاښونه وتلې وى.

**قوله**: عَوَانٌ، متوسط درميانه عمر جمع عُوْنٌ تخفيفًا دَ واؤ ضمه حذف كړې شوې ده.

**قوله**: فَاقِعٌ تيز زيړ دَ تاكيد په توګه دَتيززيړ دَپاره راوړلې شى. أصفر فاقعٌ اودَ تيز تور دَپاره وئيلې شى. أَسْوَدُ حَالِكٌ اودَ تيز سپين دَپاره په تاكيدى توګه راوړلې شى. ابيض يقق او دَ تيز سور دَپاره په تاكيدى توګه سره وئيلې شى احمر قانى اودَ شين دَ پاره اخضر ناضِرٌ (لغات القرآن درويش)

**قوله**: لَا ذَلُولٌ، اى لَا مُذَلَّلَ لِلحراثَةِ يعنى كومه چې دَزميندارئ په كار روزګار كښې نه وى استعمال كړې شوې.

**قوله**. غَيرمُذَلَّلَةٍ، بالعمل دَدې اضافه نه دَمفسرعلام مقصد دَ يو سوال جواب دې

**سوال**: لَا ذَلُولٌ دَ بَقَرة صفت دې حالانكه حرف نه صفت واقع كيدې شى اودَ صفت جزء لهذا د لَا ذَلُوْلٌ صفت واقع كيدل صحيح نه دى.

**جواب**: لا په معنى د غَيْرٌ دې لهذا اوس هيڅ اشكال نشته. (ترويح الارواح)

**قوله**: الجملة صفة ذلول يعنى (تثير الارض) ذَلُوْلٌ صفت دې او د لا لاندې داخل دې اى لا تثير الارض.

**قوله**: شية داغ، نشان دَ يو رنګ په خاروى كښې دَ بل رنګ داغ، شِيَة په اصل كښې وشية وو واؤ حذف كړې شو لكه چې عِدَة او زِنَة كښې اوحذف شوې واؤ په عوض آخره كښې هَا لاحق كړې ده جمع شِيَاتٌ.

**قوله**: مَسْكها، مسكٌ څرمن جمع مُسُوكٌ.

**[اياتونه: ٧٢ - ٧٧]**

{وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادَّارَأْتُمْ} فِيهِ إدْغَام الدَّال فِي التَّاء أَيْ تَخَاصَمْتُمْ وَتَدَافَعْتُمْ {فِيهَا وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ} مُظْهِر {مَا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ} مِنْ أمرها وَهَذَا اعْتِرَاض وَهُوَ أَوَّل الْقِصَّة {فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ} أَيْ الْقَتِيل {بِبَعْضِهَا} فَضُرِبَ بِلِسَانِهَا أَوْ عَجْب ذَنَبهَا فَحَيِيَ وَقَالَ قَتَلَنِي فُلَان وَفُلَان لِابْنَيْ عَمّه وَمَاتَ فَحُرِمَا الْمِيرَاث وَقُتِلَا قَالَ تعالي {كَذَلِكَ} الْإِحْيَاء {يُحْيِي اللّٰهُ الْمَوْتَى وَيُرِيكُمْ آيَاته} دَلَائِل قُدْرَته {لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ} تَتَدَبَّرُونَ فَتَعْلَمُونَ أَنَّ الْقَادِر عَلَى إحْيَاء نَفْس وَاحِدَة قَادِر عَلَى إحْيَاء نُفُوس كَثِيرَة فَتُؤْمِنُونَ {ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ} أَيّهَا الْيَهُود صَلُبَتْ عَنْ قَبُول الْحَقّ {مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ} الْمَذْكُور مِنْ إحْيَاء الْقَتِيل وَمَا قَبْله مِنْ الْآيَات {فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ} فِي الْقَسْوَة {أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً} مِنْهَا {وَإِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْأَنْهَارُ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ} فِيهِ إدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الشِّين {فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاءُ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ} يَنْزِل مِنْ عُلُوّ إلَى أَسْفَل {مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ} وَقُلُوبكُمْ لَا تَتَأَثَّر وَلَا تَلِين وَلَا تَخْشَع {وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ} وَإِنَّمَا يُؤَخِّركُمْ لِوَقْتِكُمْ وَفِي قِرَاءَة بالتحتانية وَفِيهِ الْتِفَات عَنْ الْخِطَاب {أفتطمعون} ايها المؤمنون {أَنْ يُؤْمِنُوا لَكُمْ} أَيْ الْيَهُود {وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ} طَائِفَة {مِنْهُمْ} أَحْبَارهمْ {يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللّٰهِ} فِي التَّوْرَاة {ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ} يُغَيِّرُونَهُ {مِنْ بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ} فَهِمُوهُ {وَهُمْ يَعْلَمُونَ} أَنَّهُمْ مُفْتَرُونَ وَالْهَمْزَة لِلْإِنْكَارِ أَيْ لَا تَطْمَعُوا فَلَهُمْ سَابِقَة بالكفر {وإذا لقوا} أي منافقوا اليهود {الذين آمنوا قالوا آمنا} بان محمد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيّ وَهُوَ الْمُبَشَّر بِهِ فِي كِتَابنَا {وَإِذَا خَلَا} رَجَعَ {بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ قَالُوا} أَيْ رُؤَسَاؤُهُمْ الَّذِينَ لَمْ يُنَافِقُوا لِمَنْ نَافَقَ {أَتُحَدِّثُونَهُمْ} أَيْ الْمُؤْمِنِينَ {بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ} أَيْ عَرَّفَكُمْ فِي التَّوْرَاة مِنْ نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لِيُحَاجُّوكُمْ} لِيُخَاصِمُوكُمْ وَاللَّام لِلصَّيْرُورَةِ {بِهِ عِنْدَ رَبِّكُمْ} فِي الْآخِرَة وَيُقِيمُوا عَلَيْكُمْ الْحُجَّة فِي تَرْك اتِّبَاعه مَعَ عِلْمكُمْ بِصِدْقِهِ {أَفَلَا تَعْقِلُونَ} أَنَّهُمْ يُحَاجُّونَكُمْ إذَا حَدَّثْتُمُوهُمْ فَتَنْتَهُوا قَالَ تَعَالَى {أَوَلَا يَعْلَمُونَ} الِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ وَالْوَاو الدَّاخِلَة عَلَيْهَا لِلْعَطْفِ {أَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ} مَا يُخْفُونَ وَمَا يُظْهِرُونَ مِنْ ذَلِكَ وَغَيْره فَيَرْعَوُوا عَنْ ذَلِكَ

**ترجمه:** اوهغه واقعه ياده كړئ كوم وخت چې تاسو يوسړي قتل كړي وو بيا تاسو په دغه (معامله) كښې جنګ جګړې كولې. (إدَّارَأْتُمْ) اصل (يعنى تَدَارَأْتُمْ) كښې دَ تاء په دال كښې ادغام دې يعنى جګړه كونكى وو او په يوبل باندې مو الزام لګولو. اوكومه خبره چې تاسو پټول غوښتل الله تعالى دَهغې ښكاره كونكې وو داجمله معترضه ده، دا دَ قصې دَ شروع حصه ده. (او په تلاوت كښې مؤخرده) نوموږ حكم اوكړو چې دې مقتول سره د (مذبوحه) غوا څه حصه اولګوئى نودَ غوا ژبه يا دَ لكئ دَ بيخ حصه مقتول سره اولګولې شوه نوهغه (مقتول) ژوندې راپاسيدو او وئې خودل چې زما دَتره خامنونه فلانكى فلانكى زه قتل كړې يم او (دومره ويناكولوسره زر)مړشو نودواړه دَميراث نه محروم كړې شو اوقتل كړې

شو. الله تعالی فرمائی چې دې (ژوندې کولو) په شان به الله تعالی مړی ژوندی کوی او تاسو ته به دَ خپل قدرت نمونې او ښائی دې دَپاره چې تاسو پوهه شئی او غوروفکر او کړئی او په دې خبره باندې پوهه شئی چې کوم ذات دَ یوسړی په راژوندی کولو باندې قادر دې هغه دَ ډیرکسانو په راژوندی کولو باندې هم قادر دې. پس تاسو ایمان راوړئی یا دَ دغه مذکور یعنی مقتول ژوندی کولو او دَدې نه وړاندې ذکرشوې معجزې کتلونه پس اې یهودیانو دَحق قبلولو نه ستاسو زړونه سخت شو او هغه دَ زړه په سختوالی کښې دَ کاڼړی په شان دی. یادَدې نه هم زیات سخت دی. او بیشکه په کاڼړو کښې خو بعضې داسې هم دی دَکوموَ نه چې چینې راوځی او په دې کښې بعضې داسې دی چې او شلیږی (تَشَقَّقُ) دَ تاء ادغام دې په شین کښې چې دَهغې نه او به راوځی او بعضې په دې کښې داسې دی چې دَالله تعالی دَ ویرې نه دَ پورته نه ښکته رارغړیږی. (مګر) ستاسو زړه خو نه متاثرکیږی او نه نرمیږی او نه ویریږی او دا څه چې تاسو کوئی الله تعالی دَهغې نه بې خبره نه دې او بیشکه هغه تاسو ته دَ یو وخت دَپاره مهلت درکوی او په یوقراءت کښې (یعملون) یاء تحتانیه سره دې او په دې کښې دَحاضرنه (غائب طرف ته) التفات دې. اې مسلمانانو! آیا اوس هم تاسو توقع لرئی چې یهود به ستاسو په ویناکولوسره ایمان راوړی؟ حالانکه په هغوی کښې یو فریق چې هغه دَ هغوی دَعلماؤ دې په تورات کښې دَ الله تعالی کلام اوری او دَ پوهیدلو نه پس هغه بدلوی حالانکه هغوی پیژنی چې افترا کوی. (اَفَتَطمعون) کښې همزه دَ انکاردې یعنی تاسو توقع مه ساتئی ځکه چې کفر دَهغوی سابقه خصلت دې او منافق یهودیان کله چې مسلمانانو سره ملاویږی نو وائی مونږ په دې خبره چې محمد ﷺ (دَ الله تعالی) نبی دې ایمان مو راوړلې دې او زمونږ په کتاب کښې دَهغه زیرې ورکړې شوې دې او کله چې خپل مینځ کښې ځان له ملاویږی نو دَهغوی سرداران چې منافقان دی منافقانو ته وائی آیا تاسو دې (مسلمانانو) ته هغه خبرې ښایئی کومې چې الله تعالی تاسو ته ښکاره کړی دی. یعنی دَ محمد ﷺ هغه صفات چې تاسو ته په تورات کښې خودلی شوی دی دې دَپاره چې په تاسو باندې دَدې په ذریعه په آخرت کښې ستاسو دَ رب په وړاندې حجت قائم کړی یعنی تاسو سره مخاصمت جګړه او کړی او لام دَ صیرورت دَپاره دې او (محمد ﷺ) په ترک اتباع باندې هغه ربښتونې (نبی) پیژندلو باوجود حجت قایم کړی ولې دا خلق نه پوهیږی استفهام دَتقریر دَپاره او په دې چې کوم واؤ داخل دې هغه دَعطف دَپاره دې چې الله تعالی هره خبره پیژنی کومې چې دوی پټه وی او ښکاره کوی دَهغه خبرونه. اودَدې نه علاوه نه په دې وجه دَدې پټولو نه منع شئی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** اِدَّارَءْتُمْ په وزن اِفَّاعَلْتُمْ ماده دَرْءٌ ده په معنی ده جګړه کول او دفع کولو سره اِدَّارَءْتُمْ تَدَارَاءتُمْ (تفاعل) نه ماضی جمع مذکر حاضر، تاسو په یوبل باندې الزام واچولو

إِدَّارَءْتُمْ په اصل کښې په وزن تفاعَلْتُمْ وو دَتاء او دال قریب المخرج کیدو دَ وجې نه تاء په دال سره بدله کړې شوه بیادَ دال په دال کښې ادغام اوکړې شو دَ کوم دَ وجې نه چې ابتداء بالسکون لازم راغله. دا دشواری لرې کولودپاره همزه وصل شروع کښې راوړلې دې نو إِدَّارَءْتُمْ شو.

**قوله** فِيْهَا، ای فی واقعة قتل النفس.

**قوله** هذا اعتراض، یعنی وَاللهُ مُخْرِجٌ مَّاكُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ دَ معطوف اومعطوف علیه په مینځ کښې جمله معترضه ده.

**قوله** مِنْ اَمْرِهَا دې کښې اشاره ده چې تَكْتُمُوْنَ مفعول محذوف دې

**قوله** مَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ کښې مَا موصوله ده او تکتمون جمله کیدوسره صله ده عائد محذوف دې تقدیری عبارت دادې الّذی تکتمونهٗ من امر القتل.

**قوله** هو اول القصة، یعنی اِدَّارَئْتُمْ سره دَاول قصې بیان دې او په سابقه رکوع کښې چې کوم بیان اوشو هغه دَدې نه پس حصه ده سره دَدې چې په تلاوت کښې مقدم دې ددې تقدیم اوتاخیر مقصد دَ یهودیانو قبائح یوځائی بیانول دی.

**قوله** كَذٰلِكَ يُحْيِ اللهُ الْمَوْتٰى داجمله هم په کلام مسلسل کښې معترضه ده اوددې مخاطب غیریهود دی ځکه چې دا یهود منکرین بعث نه وو.

**قوله** ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ

**سوال** ثُمَّ په تراخی زمان باندې دلالت کوی اودلته تراخی فی الزمان نشته ځکه چې دَ یهودو قلبی شقاوت هغه وخت موجود وو، نه دا چې روستو پیداشوې، لهذا دَ ثُمَّ استعمال په محل نه معلومیږی.

**جواب** دلته ثُمَّ استعمال مجازاً د استبعاد معنی کښې دې یعنی دومره ډیر دلائل کتلو اوریدلو نه پس دَ یوعاقل بالغ نه شقاوت قلبی لرې خبره ده.

**قوله** اَوْاَشَدُّ قَسْوَةً، اَو په معنی دَ بَلْ دې مګر ابوحیان اَوْ دَتوزیع دَپاره اخستې دې یعنی دَ زړونو قسمونه بیانولو دَپاره.

**قوله** مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ دا دَ استبعاد نور تاکید دې یعنی چې کوم مفهوم دَ ثُمَّ دې هم هغه دَ مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ دې.

**قوله** اَفَتَطْمَعُوْنَ، دا طمعٌ نه مضارع جمع مذکر حاضر دې. همزه استفهام انکاری دې یعنی آیا تاسو توقع لرئی چې هغوی به ستاسو خبره اومنی؟ یعنی تاسو له توقع نه دی

ساتل پکار. اَفَتَطْمَعُوْنَ، اصل کښې فَاَتَطْمَعُوْنَ، دَ فاء په تقديم سره وو همزه استفهام چونکه صدارت د کلام غواړي په دې وجه همزه په فاء باندې مقدم کړې شو اَفَتَطْمَعُوْنَ شو. دا دَ جمهورو مذهب دې. زمخشري رحمه الله وئيلې دي چې همزه په محذوف باندې داخل دې اوفاء عاطفه ده اومعطوف عليه محذوف دې تقديري عبارت داسې دې اَتَسْمَعُوْنَ كلامَهُمْ وتعرفون اَحْوَالَهُمْ فَتَطْمَعُوْنَ اَنْ يؤمنوا لكم.

**فائده:** همزه استفهام، حروف عطف کښې صرف په دريو باندې داخليږي، واؤ، فاء، ثم.

**قوله** اَنْ يُّؤْمِنُوْا لَكُمْ: **سوال:** دَ يؤمنوا صله لام نه راځي بلکه باء راځي او دلته لام استعمال شوې دې.

**جواب:** يؤمنوا ينقادُوا معنى ته مشتمل دې لهذا لام صله راوړل صحيح دي يعنې آيا ستاسو توقع ده چې دوی به ستاسو خبره اومني.

**قوله:** فَلَهُمْ سابقة بالكفر، يعنې دَ دوی خودَ کفر اوانکار زوړعادت دې ځکه چې يهوديانو خو په تورات کښې تحريف کولو سره دَمحمد ﷺ دَ انکارکولو نه وړاندې کفرکړې دې لکه چې کفر اوانکارد دوی زوړ عادت دې لهذا دَدوی ايمان راوړل ډيره لرې خبره ده.

**قوله:** اِذَا خَلَا رَجَعَ، د خَلَا تفسير رَجَعَ سره کولوسره دَدې اعتراض جواب ورکړې شو چې خَلَا، صله الى نه راځي حالانکه اِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ کښې دَخلا صله الى استعمال شوې.

**جواب:** خَلَا، رَجَعَ معنې ته متضمن دې دَدې دَ وجې نه دَدې صله الى راوړل صحيح دي.

**قوله:** واللام للصيرورة لِيُحَآجُّوْكُمْ، کښې لام دَتعليل نه دې بلکه دَ صيرورت يا د عاقبت دې ځکه چې احتجاج دَهغوی غرض اومقصدنه دې. يُحَآجُّوْكُمْ مضارع جمع مذکرغائب دې يعنې انجام کار هغوی تاسوسره حجت بازي اوکړي. لِيُحَآجُّوْكُمْ، اَنْ مقدره دَ وجې نه منصوب دې دَدې دَپاره چې لام صيرورت نه پس اَنْ جوازًا مقدرکيږي. لِيُحَآجُّوْكُمْ، تحدثونهم سره متعلق دې نه چې دَ فتح الله سره.

**[ايات توله: ۷۸-۸۲]**

{وَمِنْهُمْ} اي اليهود {اُمِّيُّوْنَ} عوام {لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتَابَ} التوراة {اِلَّا} لكن {اَمَانِيَّ} اكاذيب تلقوها من رؤسائهم فاعتمدوها {وَاِنْ} ما {هُمْ} في جحد نبوة النبي وغيره مما يختلقونه {اِلَّا يَظُنُّوْنَ} ظنا؟ ولا علم لهم {فَوَيْلٌ} شدة عذاب {لِلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتَابَ بِاَيْدِيْهِمْ} اي مختلقا؟ من عندهم {ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا} من الدنيا وهم اليهود غيروا صفة النبي في التوراة وآية

{فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ} مِنَ الْمُخْتَلَقِ {وَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا الرَّجْم وَغَيْرِهِمَا وَكَتَبُوهَا عَلَى خِلَافِ مَا أُنْزِلَ
{يَكْسِبُونَ} مِنَ الرُّشَا جَمْع رِشْوَة {وَقَالُوا} لَمَّا وَعَدَهُمُ النَّبِيّ النَّار {لَن تَمَسَّنَا} تُصِيبَنَا {النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا
مَّعْدُودَةً} قَلِيلَة أَرْبَعِين يَوْمًا؟ مُدَّة عِبَادَة آبَائِهِمُ الْعِجْل ثُمَّ تَزُول {قُلْ} لهم يا محمد {أَتَّخَذْتُمْ} حذفت
منه هَمْزَة الْوَصْل اسْتِغْنَاء بِهَمْزَةِ الِاسْتِفْهَام {عِندَ اللَّهِ عَهْدًا؟} مِيثَاقًا؟ مِنْهُ بِذَلِكَ {فَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ}
به ام لا {أَمْ} بَلْ {تقولون على الله ما لا تعلمون} {بَلَىٰ} تَمَسُّكُمْ وَتُخَلَّدُونَ فِيهَا {مَن كَسَبَ سَيِّئَةً}
شِرْكًا {وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَته} بِالْإِفْرَادِ وَالْجَمْع أَيِ اسْتَوْلَتْ عَلَيْهِ وَأَحْدَقَتْ بِهِ مِنْ كُلِّ جَانِب بِأَنْ مَاتَ
مُشْرِكًا {فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ} روعي فيه معنى من {والذين آمنوا وعملوا الصالحات
أولئك أصحاب الجنة هم فيها خالدون}

**ترجمه**: او په دې يهودو كښې بعضې ناخوانده هم دي چې دكتاب يعنى تورات علم نه لرى ليكن دَ زړه دَخوشحالولو خبرې كومې چې هغوى دَ خپلو سردارانونه اوريدلى دى هم په هغې باندې يقين اوكړو اوهغوى ستاد نبوت نه دَ انكار باره كښې كوم چې هغوى دَ خان نه جوړ وى صرف په وهم اوگمان باندې قايم دى او هغوى سره (ددې) هيڅ سند نشته. لهذا دَهغوى دَپاره هلاكت او سخت عذاب دې (څكه) چې هغوى دَخپل ځان نه تصنيف كوى (يعنى) پخپله ئې ايجاد كوى او بيا وائى چې دا (ليكل) دَ الله تعالى دَ طرف نه راغلى دى دې دَپاره چې دَ دې په بدله كښې (دَدنيا) لږه شان فائده حاصله كړى اودا يهوديان دى چې په تورات كښې ئې ستا ذكرشوى صفات بدل كړل او دَ رجم آيت وغيره (هم) او دَ نازل كړې شوى برعكس ئې اوليكل نودَداسې خلقو دَپاره بربادى ده چې دَ خپل ځان نه ليكلو دَوجې نه هغوى دَ خان نه جوړ كړل اودَ هغوى دَ رشوت دا گټه هم موجب هلاكت ده اوهغوى كله چې دا نبى ﷺ دَ دوزخ دَ اور نه ويره وى نو وائى چې مونږ سره اور چرې هم نه شى لگيدې مگر دَ شمير يو څو ورځې يعنى څلويښت ورځې چې دَهغوى دَ پلارانو نيكونو دَ سخى دَ عبادت موده ده بيا به ختم شى. اې محمد ﷺ تاسو دَدوى نه پوښتنه اوكړئى چې تاسو دَ الله تعالى نه دَدې څه عهد اخستې دې؟ (اَتَّخَذْتُمْ) دَهمزه استفهام دَ وجې نه همزه دَ وصل نه مستغنى شو دَ كوم دَ وجې نه چې همزه وصل حذف كړې شو دَ كوم چې هغوى خلاف ورزى نه شى كولې (داسې هيڅ كله نه ده) بلكه حقيقت خودا دې چې تاسو په الله تعالى باندې دَ داسې خبرې بهتان لگوئى دَ كوم متعلق چې پخپله تاسو ته علم نشته. آخر تاسو پورې به دَ دوزخ اور ولې نه لگى؟ (خامخا) به درپورې لگى او په هغې كښې به هميشه پراته ئې. څوك هم چې بدى اوشرك گټى او هغه دَ ده خطاكارو راگيركړې وى (خَطِيْئَةٌ) افراد او جمع سره دې يعنى (بدى) په ده غالب راغله او دې ئې دَ هر طرف نه راگيركړو په داسې حالت كښې چې په شرك كښې مړشو نوهغه دوزخى دې او هميشه به په دوزخ كښې وى. (اولئك او هم او خلدون وغيره كښې) دَ مَنْ دَمعنى

رعایت کړې شوې دې او کوم خلق چې ایمان راوړی او نیک عمل کوی هم هغه جنتیان دی او هغه به (جنت) کښې همیشه دپاره وی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: عَوَام، أُمِّيُّوْن تفسیر یې عوام سره کول دَ یو سوال مقدر جواب طرف ته اشاره کړې ده

**سوال**: عربو کښې أُمِّيُّوْن وئیلې شی نو دَ قوم عرب طرف ته ذهن وراندې کیږی بل أُمَّةُ الأُمِيَة، هم دَعربو باره کښې وئیلې شی.

**جواب**: دَجواب ماحمل دادې چې دلته أُمِّيُّوْن نه عوام یهود مراد دی چې دَ احبار یهود بالمقابل دی کوم ته چې عوام وئیلې شی. بل دَدې شبه هم جواب اوشو چې دَ منهم نه مراد یهود دی او أُمِّيُّوْن نه معلومیږی چې عرب دی کله چې دَ أُمِّيُّوْن تفسیر ئې په عوام سره اوکړو نو دا تضاد هم ختم شو.

**قوله**: اَلْاَمَانِي، اَمَانِي، دَ اُمْنِيَّةٌ جمع ده په معنی دَتمنا، بې اصل خیالات، دا منی یمنی، مَنًّا معنی مقدر کولو نه ماخوذ دې.

**قوله**: بِأَيْدِيْهِمْ دا دَ یکتبون تاکید دې ځکه چې کتابت هم په لاس سره کیږی لکه چې ولاطائر یطیر بجناحیه کښې یطیر بجناحیه دطائر تاکید دې.

**قوله**: فَوَيْلٌ لَّهُمْ دَ یو سوال جواب دې.

**سوال**: وَيْلٌ مبتداء او لَهُمْ دَدې خبر دې حالانکه وَيْلٌ نکره دې او دَ نکره مبتداء واقع کیدل صحیح نه دی.

**جواب**: وَيْلٌ په اصل کښې کلمه دَ بددعاده دا په اصل کښې هَلَكْتُ وَيْلًا وو لکه سَلَّمْتُ سَلَامًا فعل حذف کولو سره نصب نه دَ رفع طرف ته عدول اوکړو دې دَپاره چې په دوام او ثبات باندې دلالت اوکړی.

**[ایاتونه: ۸۲-۸۴]**

{وَ} اذْكُرْ {إِذْ أَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْ إِسْرَآئِيْلَ} فِي التَّوْرَاة وَقُلْنَا {لَا تَعْبُدُوْنَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {إِلَّا اللهَ} خَبَر بِمَعْنَي النَّهْي وَقُرِئَ لَا تعبدوا {وَ} أَحْسِنُوا {بِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا} بِرًّا {وَذِي الْقُرْبَىٰ} الْقَرَابَة عَطْف عَلَي الْوَالِدَيْنِ {وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِيْنِ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ} قَوْلًا {حُسْنًا} مِنَ الْأَمْر بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْي عَنِ الْمُنْكَر وَالصِّدْق فِي شَأْن مُحَمَّد وَالرِّفْق بِهِمْ وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الْحَاء وَسُكُوْن السِّيْن مَصْدَر وُصِفَ بِهِ مُبَالَغَة {وَأَقِيْمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ} فَقَبِلْتُمْ ذَلِكَ {ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ} أَعْرَضْتُمْ عَنِ الْوَفَاء بِهِ فِيْهِ الْتِفَات عَنِ الْغَيْبَة وَالْمُرَاد آبَاؤُهُمْ {إِلَّا قَلِيْلًا مِّنْكُمْ وَأَنْتُمْ مُّعْرِضُوْنَ} عَنْهُ كَآبَائِكُمْ {وَإِذْ أَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ} وَقُلْنَا {لَا تَسْفِكُوْنَ

دِمَاءَكُمْ} تُرِيقُونَهَا بِقَتْلِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا {وَلَا تُخْرِجُونَ أَنْفُسَكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ} لَا يُخْرِجُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا مِنْ دَارِهِ {ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ} قَبِلْتُمْ ذٰلِكَ الْمِيثَاقَ {وَأَنْتُمْ تَشْهَدُونَ} عَلَى أَنْفُسِكُمْ

**ترجمه**:- او يادكړه (هغه وخت) كله چې مونږ په تورات كښې د بنى اسرائيلونه پوخ عهد اخستې وو او وئيلې وو چې د الله تعالى نه سوا د چابندګى مه كوئې (تعبدون) كښې ياء اوتاء دواړه دى (لا تعبدون) خبر په معنى د نهى دې. اولا تعبدوا هم لوستلې شوې دې او والدينوسره او خپلوانوسره القربى په معنى د قرابت ده او ذى القربى عطف والدين باندې دې او يتيمانو اومسكينانو سره ښه سلوک كوئې او خلقو ته ښې خبرې كوئى يعنى امر بالمعروف اونهى عن المنكر (كوئى) او د محمد ﷺ په شان كښې (بيان صفات باره كښې) رښتيا وايئ اوخلقو سره د نرمئى رويه اختيار روئ او په يو قرات كښې (حُسْنًا) د حاء په ضمه سره او د سين په سكون سره دې كوم چې مصدر دې په توګه د مبالغې وصف راوړلې شوې دې او د مونځ پابندى كوئ او زكوة اداكوئ تاسو دا خبره قبوله كړې وه خوبيا هم تاسو د عهد د پوره كولونه واوړيدئى په دې كښې د غيبت نه (خطاب) طرف ته التفات دې او مراد د دوى پلاران اونيكونه دى. مګرپه تاسوې كښې ديرلږ (په عهدباندې قائم پاتې شو) اوتاسو هم د دغه عهد نه د خپلو پلارنو په شان اوختلې يئې او (بيا لږ شان ياد كړئى) كله چې مونږ تاسو نه پوخ عهد اخستې وو او مونږ وئيلى وو چې خپل مينځ كښې قتل كولوسره وينې مه تويوئې او مه يوبل د كورنه بې كوره كوئې يعنى څوک د هغه د كورنه مه اوباسى اوتاسو د دغه عهد اقرار كړې وو او تاسو پخپله په خپل ځان باندې ګواه يئې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ميثاق، عهدوپيمان (جمع) مَوَاثِيْق وَمَوَاثِق، وَمَيَاثِق بعضې مفسرينود لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ معنى أَمَرْنَا بِذَالِكَ كړې ده (يعنى د حكم وركولو) د پاره دې. (ابن قتيبه) يعنى مونږ بنى اسرائيلو ته حكم وركړو ميثاق، د أَخَذْنَا مفعول به دې.

**قوله**: بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ، بَنِيْ په اصل كښې بَنِيْنَ وو دا ملحق بجمع مذكرسالم دې. مضاف اليه كيدو د وجې نه حالت جرى كښې ياء نون سره دې نون د اضافت د وجې نه ساقط شو اسرائيل د عجمه او علم كيدو د وجې نه غيرمنصرف دې د دې فتحه نيابة عن الكسره دې.

**سوال**: د مفسرعلام لفظ قُلْنَا اضافه كولونه څه مقصد دې؟

**جواب**: كلام د ماقبل يعنى وَإِذْ أَخَذْنَا سره مربوط كول دى په دې توګه چې په دواړو ځايونوكښې د جمع متكلم صيغه شى ګنى كلام واحدكښې د مخاطب واحد د پاره د غائب او حاضر صيغې استعمال لازم راځى. د دې د پاره چې بنى اسرائيل اسم ظاهر دې

او اسم ظاهرد غائب په حکم کښې وی ددې نه پس لاتَعْبُدُوْنَ دې. ددې مخاطب هم بنی اسرائیل دی اودا د حاضر صیغه ده دغه شان په کلام واحد کښې د شی واحد دپاره خطاب بالغائب او خطاب بالحاضر لازم راځی. ددې نه د بچ کیدلو دپاره مفسرعلام قُلْنَا اضافه اوکړه دې دپاره چې اَخَذْنَا او د قلنا کښې مطابقت اوشی.

**فائده**: دا التفات من الغیبة الی الخطاب د قلنا محذوف نه منلو په صورت کښې لازم راځی اوکه چرې قلنا محذوف اومنلې شی لکه چې مفسرعلام منلې دې نو په دغه صورت کښې به التفات من الغیبة الی الخطاب نه شی ځکه چې په قلنا سره به جمله مستانفه شی.

**قوله**: خبرٌبمعنی النهی، یعنی لاتَعْبُدُوْنَ مضارع منفی دجمع مذکر حاضرکیدو دوجې جمله خبریه ده هم دغه وجه ده چې ددې نون اعرابی ساقط نه شو مګر دمعنې په اعتبارسره جمله انشائیه ده اومعنی کښې د لاتعبدوا دې.

**سوال**: نهی د مضارع منفی په صورت کښې ذکرکولو څه فائده ده؟

**جواب**:- صراحةً دنهی نه کنایه نهی اولی ده ځکه چې نهی په صورت د مضارع منفی سره دا مفهوم راوځی لکه چې د حکم تعمیل شوې دې دهغې خبر ورکولې شی.

وهو ابلغ من صریح الامر والنهی کانّهٗ سورع الی الامتثال، (کشاف) دحضرت ابی او عبدالله بن مسعود ﷺ په قراءت کښې لاتَعْبُدُوْا هم په دې دلالت کوی چې مضارع منفی په معنی د نهی دې بل وَقُوْلُوْا، واقیموا، وآتوا، په لاتعبدون باندې عطف هم په دې دلالت کوی چې لاتَعْبُدُوْنَ، د لاتعبدوا په معنی کښې دې.

**قوله**: وَاَحْسِنُوْا. **سوال**: احسنوامقدر منلو څه فائده ده؟

**جواب**: ددې تقدیر مقصد ددې اعتراض جواب ورکول دی چې بالوالدین کوم چې جار مجرور دې عطف، په لاتَعْبُدُوْنَ باندې دې کوم چې د جار مجرور په غیر جارمجرور باندې عطف دې، کوم چې صحیح نه دې. کله چې اَحْسِنُوْا محذوف اومنلې شو نودا اعتراض ختم شو. مفسرعلام د اَحْسِنُوْا د امرصیغه مقدرمنلوسره دې خبرې طرف ته هم اشاره کړې ده چې عطف د لاتَعْبُدُوْنَ په معنی باندې دې نه چې په لفظ باندې.

**قوله**: قَبِلْتُمْ، د تَوَلَّیْتُمْ اضافه کولوسره ئې اشاره اوکړه چې د تَوَلَّیْتُمْ عطف، په مقدرباندې دې نه چې په اَقِیْمُوْا باندې لکه چې متبادر دې نو لهذا د عطف الخبر علی الانشاء اعتراض ختم شو.

**قوله**: بِرًّا، د اِحْسَانًا تفسیر بِرًّا سره کولوکښې اشاره اوکړه چې احسان نه مطلق حسن سلوک مراد دې که قولاً وی یا فعلاً اویا عملاً نه چې صرف مالی لکه چې د احسانًا نه معلومیږی.

**قوله**: ذي القربیٰ، دَ قربیٰ تفسیر القرابة سره کولو کښې اشاره او کړه چې قربیٰ د رُجعیٰ، په شان مصدر دې نه چې جمع.

**قوله**: اليتامىٰ: دا دَ اليتيم جمع ده معرف باللام دې په انسانانو کښې دَ پلار دَ مړکيدو سره او په څناورو کښې دَ مور په مړکيدو سره بچې يتيم کيږي. (صاوي)

[اياتونه: ۸۵-۸٦]

{ثُمَّ أَنْتُمْ} يَا {هَؤُلَاءِ تَقْتُلُونَ أَنْفُسَكُمْ} بِقَتْلِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا {وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِنْكُمْ مِنْ دِيَارِهِمْ تَظَّاهَرُونَ} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الظَّاء وَفِي قِرَاءَة بِالتَّخْفِيفِ عَلَى حَذْفهَا تَتَعَاوَنُونَ {عَلَيْهِمْ بِالْإِثْمِ} بِالْمَعْصِيَةِ {وَالْعُدْوَانِ} الظُّلْم {وَإِنْ يَأْتُوكُمْ أُسَارَى} وفي قراءة اسري {تفدوهم} وفي قراءة {تفادوهم} تُنْقِذُوهُمْ مِنَ الْأَسْر بِالْمَالِ أَوْ غَيْره وَهُوَ مِمَّا عُهِدَ إِلَيْهِمْ {وَهُوَ} أَيْ الشَّأْن {مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ} مُتَّصِل بِقَوْلِهِ وَتُخْرِجُونَ وَالْجُمْلَة بَيْنهمَا اعْتِرَاض أَيْ كَمَا حَرُمَ تَرْك الْفِدَاء وَكَانَتْ قُرَيْظَة حَالَفُوا الْأَوْس وَالنَّضِير الْخَزْرَج فَكَانَ كُلّ فَرِيق يُقَاتِل مَعَ حُلَفَائِهِ وَيُخَرِّب دِيَارهمْ وَيُخْرِجهُمْ فَإِذَا أُسِرُوا فَدَوْهُمْ وَكَانُوا إِذَا سُئِلُوا لِمَ تُقَاتِلُونَهُمْ وَتَفْدُونَهُمْ قَالُوا أُمِرْنَا بِالْفِدَاءِ فَيُقَال فَلِمَ تقاتلونهم فيقولون حياء أن تستذل حلفاؤنا قال تعالى {أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ} وَهُوَ الْفِدَاء {وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ} وَهُوَ تَرْك الْقَتْل وَالْإِخْرَاج وَالْمُظَاهَرَة {فَمَا جَزَاءُ من يفعل ذلك منكم إِلَّا خِزْيٌ} هَوَان وَذُلّ {فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} وَقَدْ خُزُوا بِقَتْلِ قُرَيْظَة وَنَفْي النَّضِير إِلَى الشَّام وَضَرْب الْجِزْيَة {وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَى أشد العذاب وما الله بغافل عما يعملون} بالياء والتاء {أُولَئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ} بِأَنْ آثَرُوهَا عَلَيْهَا {فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ} يُمْنَعُونَ مِنْهُ

**ترجمه**: بیا چې څنګه تاسو ئې مخامخ ئې چې هم خپل رونړه بنده ګان قتل کوې يعنی خپل مينځ کښې وينې تويوئې اوهم خپل مينځ کښې يوفريق دَ کورنه اوباسئې او دَهغوئ خلاف (دَپردو) په ظلم اوزياتی سره مدد کوئې. (تَظَّاهَرُوْنَ) کښې دَ تاء په اصل کښې په ظاء کښې ادغام شوې دې او په يو قراءت کښې تخفيف سره دې تاء حذف کولو سره د (تَظَاهَرُوْنَ) معنی کښې د تَتَعَاوَنونَ دې. او که چرې هغوی ګرفتارشی تاسو له راشی او په يو قراءت کښې اسریٰ دې نو تاسوهغوی ته فديه ورکوئې خلاصوئې او په يو قراءت کښې تُفْدُوْهُمْ دې يعنی تاسو هغوی دَ قيد نه مال وغيره ورکولو سره خلاصوئې (يعنی دَ قيدی په قيدی سره بدلون کول) دا هم دَ هغه احکامو نه دی دَ کوم چې دَهغوی نه عهد اخستې شوې. حالانکه خبره داده چې دَدوی اخراج دَ سرنه په تاسو حرام دې. د (هُوَمُحَرَّمٌ) تعلق د تخرجون سره دې او (وَاِنْ يَّاْتُوكُم الخ) متعلق او دَمتعلق په مينځ کښې جمله معترضه ده لکه څنګه چې دَ فديه ترک کول حرام دی (هغه شان قتل او اخراج هم حرام دې) او (بنو) قريظه دَ اوْس حليف وو او (بنو) نضير دَ خزرج او

هرفريق دَ خپل حليف سره به ملاؤ شو جنګونه به ئې کول. او (دَ فريق مخالف) کورونه به ئې ورانول اوهغوی به ئې دَ خپلو کورونو نه ويستل اوکله چې به هغوی قيديان شو نو فديه ورکولوسره به ئې راخلاصول. اوکله چې به دَهغوی نه پوښتنه کيدله چې تاسو دوی سره جنګونه ولې کوئې او بيا فديه ورکولوسره هغوی راخلاصوئې نوهغوی به جواب ورکولو چې په دې خبره باندې شرم محسوس کوو چې زمونږ حليف ذليل اوګنړلې شي.

الله تعالى فرمائي نوآيا تاسو دَكتاب په يوه حصه باندې ايمان راوړئې او هغه دَ فديه حکم دې او دَ دويمې حصې نه انکارکوئې چې هغه قتل او اخراج او (دَ پردو) تعاون ترک کول دی نوپه تاسو کښې چې کوم خلق داسې کوی دَهغوی سزا دَدې نه علاوه بل څه ده چې هغوی به دَ دنياپه ژوندکښې ذليل او خوارېږی؟ چنانچې (بنو) قريظه دَ قتل سره او (بنو) نظير دَ جلاوطنئى سره او جزيه عائدکولوسره ذليل شو او په آخرت کښې به دَ سخت عذاب طرف ته راګرځولې شي. الله تعالى دَهغوی دَ حرکتونو نه بې خبر نه دې (تعملون) ياء او تاء سره اودا هغه خلق دی چې آخرت ئې خرڅ کړو او دنيائى واخسته په دې توګه ئې دنيا له په آخرت باندې ترجيح ورکړه. لهذا دَهغوی په سزاکښې به هيڅ تخفيف يعنى کمې نه کيږی اونه به دَهغوی امدادکيږی يعنى هغوی به دَ عذاب نه نشي بچ کولې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ثُمَّ اَنْتُمْ يا هٰؤلَاءِ، ثُمَّ حرف عطف تراخى دَپاره دې. اَنْتُمْ، مبتداء تَقْتُلُوْنَ الخ جمله کيدو سره دَ مبتداء خبر دې هٰؤُلَاءَ اسم اشاره منادى محلاً منصوب يا حرف ندا محذوف كما ذهب اليه المفسر، اوداهم کيدې شی چې هٰؤُلَاءِ، محلاً منصوب على الذم يعنى د فعل محذوف اَمْدَ وجې نه.

**قوله:** تَظٰهَرُوْنَ فعل مضارع جمع مذکر حاضر، جمله کيدو سره محلاً دَ حال کيدو دَ وجې نه منصوب دی په معنى د متعاونين عَلَيْهِمْ.

**قوله:** في الاصل، اى بعد قلبها ظاءً، تاء ثانيه حذف کولو سره..

**قوله:** مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ، مُحَرَّمٌ د خپل متعلق عليكم سره ملاؤ شو خبرمقدم، اِخْرَاجُهُمْ په ترکيب اضافى مبتداء مؤخر، مبتداء باخبر جمله کيدوسره خبرشو د هو مبتداء دَ هُوَ ماقبل کښې چونکه مرجع مذکورنه دې. په دې وجه دا ضميرشان ګرځولې دې.

**قوله:** متصل بقوله: وَتُخْرِجُوْنَ، دَدې اتصال نه مراد تعلق الحال مع ذوالحال دې اودَ حال او ذوالحال په مينځ کښې وَاِنْ يَاتُوكُم أسرى تفادوهم، جمله معترضه ده او په يوقراءت کښې اَسْرٰى ده چې اَسِيْرٌ جمع ده لکه چې جَرْحٰى دَ جَرِيْح جمع ده او اُسَارٰى، دَ اَسْرٰى جمع ده. لکه چې دَ سُکَارٰى جمع سَکْرٰى ده په دې اعتبارسره اُسارٰى جمع الجمع ده نه چې د اَسير مفرد جمع لهذا دا شبه ختمه شوه چې د فَعِيْلٌ جمع دَ فُعَالٰى په وزن باندې نه راځى.

**[ایاتونه: ۸۷-۹۰]**

{وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ} التَّوْرَاة {وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهِ بِالرُّسُلِ} أَيْ أَتْبَعْنَاهُمْ رَسُولًا فِي إِثْرِ رَسُولٍ {وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ} الْمُعْجِزَات كَإِحْيَاءِ الْمَوْتَى وَإِبْرَاءِ الْأَكْمَهِ وَالْأَبْرَصِ {وَأَيَّدْنَاهُ} قَوَّيْنَاهُ {بِرُوحِ الْقُدُسِ} مِنْ إِضَافَةِ الْمَوْصُوفِ إِلَى الصِّفَةِ أَيْ الرُّوحِ الْمُقَدَّسَةِ جِبْرِيل لِطَهَارَتِهِ يَسِير مَعَهُ حَيْثُ سَارَ فَلَمْ تَسْتَقِيمُوا {أَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَى} تُحِبّ {أَنْفُسُكُمُ} مِنَ الْحَقِّ {اسْتَكْبَرْتُمْ} تَكَبَّرْتُمْ عَنِ اتِّبَاعِهِ جَوَابُ كُلَّمَا وَهُوَ مَحَلُّ الِاسْتِفْهَامِ وَالْمُرَادُ بِهِ التَّوْبِيخ {فَفَرِيقًا} مِنْهُمْ {كَذَّبْتُمْ} كَعِيسَى {وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ} الْمُضَارِعُ لِحِكَايَةِ الْحَالِ الْمَاضِيَةِ أَيْ قَتَلْتُمْ كَزَكَرِيَّا ويحيى {وَقَالُوا} لِلنَّبِيِّ اسْتِهْزَاءً {قُلُوبُنَا غُلْفٌ} جَمْعُ أَغْلَفَ أَيْ مُغَشَّاةٌ بِأَغْطِيَةٍ فَلَا تَعِي مَا تَقُولُ قال تعالى {بَلْ} لِلْإِضْرَابِ {لَعَنَهُمُ اللَّهُ} أَبْعَدَهُمْ مِنْ رَحْمَتِهِ وَخَذَلَهُمْ عَنِ الْقَبُولِ {بِكُفْرِهِمْ} وَلَيْسَ عَدَمُ قَبُولِهِمْ لِخَلَلٍ فِي قُلُوبِهِمْ {فَقَلِيلًا مَا يُؤْمِنُونَ} مَا زَائِدَةٌ لِتَأْكِيدِ الْقِلَّةِ أَيْ إِيمَانُهُمْ قَلِيلٌ جِدًّا {وَلَمَّا جَاءَهُمْ كِتَابٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَهُمْ} مِنَ التَّوْرَاةِ هُوَ الْقُرْآن {وَكَانُوا مِنْ قَبْلُ} قبل مجيئه {يستفتحون} يستنصرون {عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا} يَقُولُونَ اللَّهُمَّ انْصُرْنَا عَلَيْهِمْ بِالنَّبِيِّ الْمَبْعُوثِ آخِرَ الزَّمَانِ {فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوا} مِنَ الْحَقِّ وَهُوَ بَعْثَةُ النَّبِيِّ {كَفَرُوا بِهِ} حَسَدًا وَخَوْفًا عَلَى الرِّيَاسَةِ وَجَوَابُ لَمَّا الْأُولَى دَلَّ عَلَيْهِ جَوَابُ الثَّانِيَةِ {فلعنة الله على الكافرين} {بئسما اشتروا} باعوا {به أنفسهم} اي حظها من الثواب وما نكرة بمعنى شيئا تميزا لفاعل بئس والمخصوص بالذم {أَنْ يَكْفُرُوا} أَيْ كُفْرُهُمْ {بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ} مِنَ الْقُرْآنِ {بَغْيًا} مَفْعُولٌ لَهُ لِيَكْفُرُوا أَيْ حَسَدًا عَلَى {أَنْ يُنَزِّلَ اللَّهُ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ {مِنْ فَضْلِهِ} الْوَحْي {عَلَى مَنْ يَشَاءُ} لِلرِّسَالَةِ {من عباده فباؤوا} رَجَعُوا {بِغَضَبٍ} مِنَ اللَّهِ بِكُفْرِهِمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ وَالتَّنْكِيرُ لِلتَّعْظِيمِ {عَلَى غَضَبٍ} اسْتَحَقُّوهُ مِنْ قَبْلُ بِتَضْيِيعِ التَّوْرَاةِ وَالْكُفْرِ بِعِيسَى {وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ مُهِينٌ} ذو إهانة

**ترجمه**:- او مونږ موسی ﷺ ته کتاب تورات ورکړو او دَهغې نه پسپرله پسې یو بل پسې رسولان اولیګل او عیسی بن مریم ﷺ ته ښکاره معجزات ورکړل مثلاً مړی ژوندی کول، دَ مورنه راندهٔ پیدا شوی بیناکول، او ابرص مرض والا تیک کول، او پاک روح (یعنی جبرائیل ﷺ) په ذریعه مونږ دَ هغهٔ تائیداوکړو (روح القدس) کښې اضافت موصوف الی الصفت دې. ای الروح المقدسة (قدس اووئیل) دَهغه (نافرمانئ نه) پاك کیدو دَ وجې نه (دَهغه تائید په دې توګه اوکړو چه) چرته به هغه تلو نوحضرت جبرائیل ﷺ به هم ورسره وو بیا هم دا خلق په نیغه لار رانغلل (لیکن) ولې داخبره نه ده چې کله هم تاسو له یورسول هغه څیز (یعنی حق) راوړلو کوم چې ستاسو ناخوښه کیدو نوتاسو دَهغه دَ اتباع نه تکبراوکړو. (استَکبرتُم دَ کلّما جواب دې اوهم دغه محل استفهام دې او (استفهام) مقصد توبیخ دې نو په هغوی کښې دَ بعضو تاسو تکذیب اوکړو لکه چې حضرت عیسی ﷺ اوبعضې موقتل کړل لکه

حضرت زکریا علیه السلام اوحضرت یحیی علیه السلام اودَ (ماضی په ځائی)مضارع حکایت حال ماضیه دَپاره دې یعنی تاسو قتل کړل او نبی ته مو تمسخرًا اوونیل زمونږ په زړونوباندې پردې دی. غُلفٌ، دَ اَغلَف جمع ده یعنی په پردوکښې پټ دی لهذا دا تاسو چې وایئې دا محفوظ کوئی نه، الله تعالی فرمائی نه خبره داسې نه ده بلکه (په اصل کښې خبره داده) چې دَهغوی دکفر دَ وجې نه الله تعالی هغوی دَخپل رحمت نه لرې کړل اودَحق قبلولونه ئې محروم کړل. بَلْ، د اضراب دَپاره دې او دَدوی (حق) نه قبولول دَ څه قلبی (دماغی خلل) دَ وجې نه نه وو، پس هغوی په ډیروکمو خبروباندې یقین لري. مَا تاکید قلت دَپاره زائده ده. یعنی دَهغوی ایمان په ډیرو کموخبرو باندې دې. او اوس چې کله هغوی له دَ الله تعالی کتاب (قرآن) څوک چې دَدې کتاب کوم چې دوی سره موجود دې (یعنی) دَ تورات تصدیق کوی راغلو حالانکه دَدې دَ راتلونه وړاندې (دَدې په ذریعه) په کافرانو باندې دَ فتح اونصر دعاکوله او وئیل به ئې چې اې الله ته مونږ په کافرانوباندې دَ نبی آخرالزمان په وسیله غلبه راکړې نوچې ترکومې دَغه حق کوم چې هغوئ پیژندل اوهغه دَنبی ﷺ بعثت دې هغوی لرُه راغلو نود حسد اوزوال دَ ریاست دَ ویرې نه ئې انکاراوکړو کیناستل او اول دَ لَمَّا په جواب باندې دَ دویم لَمَّا جواب دلالت کوی دَالله تعالی غضب دې وی په کافرانوباندې ډیر خراب دې هغه شئ دَکوم په عوض چې هغوی خپل ځان یعنی دَ خپلې حصې اجر(او ثواب) خرڅ کړو اومَا، نکره په معنی شیئًا دَبِئس فاعل نه تمیزدې اومخصوص بالذم، اَنْ یَّکْفُرُوْا دې یعنی دَ سرکشئ دَ وجې نه دَدغه قرآن نه انکار دې کوم چې الله تعالی نازل کړې، بَغْیًا،دَلِیَکْفُرُوْا مفعول له دې یعنی صرف دَدې حسددَ وجې نه چې الله تعالی خپل فضل (یعنی) وحی دَ خپلو بندیګانوی په هغه باندې چالره ئې چې دَ رسالت دَپاره خوښ کړې دَ نازل کړو (یُنَزِّل) کښې دَ (زاء) تخفیف اوتشدید دواړه قراءتونه دی نوهغه دَ نازل کړې شوی دَ انکاردَ وجې دَالله تعالی غضب دَپاسه غضب واخستو واپس شو (بِغَضَبٍ) د تنکیرشدت بیانولودَپاره دې. (یعنی) دَ غضب خو هغوی تورات ضائع کولو او دَحضرت عیسیٰ علیه السلام دَ انکارکولودَ وجې نه اول مستحق شوی وو اودَ کافرانو دَپاره دَ ذلت نه ډک عذاب دې یعنی رسوا کونکې عذاب دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** قَفَّیْنَا ماضی جمع متکلم (تفعیل) تَقْفِیَةٌ شاته لیګل، قَفیٰ دوه مفعوله غواړی په عام توګه دَدې په مفعولوباندې حرف جر نه داخلیږی لکه قَفَّیْتُ زیدًا عمرًا ما زید عمرپسې شاته اولیګلو اوکله په دویم مفعول باندې 'ب' داخلیږی په قرآن مجیدکښې دَدې استعمال دې لکه هم په دې آیت کښې دی ﴿ وَقَفَّیْنَا مِنْ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ﴾ مونږ هغوئی پسې روستو پرله پسې رسولان اولیګل.

**قوله**: مَرْيَمَ دا سریانی لفظ دې دَدې معنی ده خادمه نوکره په انګریزی کښې دَدې تلفظ میری (Mery) راځی.

**حضرت مریم او دَ هغې نسب** دَحضرت مریم دَ مور نوم حَنّه او دَ پلار نوم ئې عمران وو. نسب ئې داسې دې مریم بنت عمران بن ماتان. دَحضرت مریم نبی کیدل مختلف فیه دی دَاهل سنت عقیده ده چې هیڅ یوه ښځه نبی نه شی کیدې خو دَ ورو وکوالی نه دَ هغې صاحب کرامت ولیه کیدو کښې شبه نه وه هم په وړوکوالی کښې دَ الله تعالی دَ طرف نه بې موسمه میوې هغې ته رالیګلې کیدې (لغات قرآن) دَوفات کال دَ مسیحی روایتونو مطابق ۴۸ ق، م دې.

دَ تاریخی اختلاف باوجود صحیح فیصله داده چې هغې کله هم نکاح نه ده کړې په دې وجه هغې ته مریم عذراء وئیلې شی (ناواده کړې) دَهغې دَ خیټې نه حضرت عیسی علیه السلام بغیردَ پلار نه پیدا شو. وئیلې شی چې یوسف نجار سره دَهغې نسبت شوې وو نکاح اورخصتی نه شوې. (لغات القرآن)

**عیسی علیه السلام دَ بنی اسرائیلو دَ انبیاء دَ سلسلې خاتم دې**: عیسی علیه السلام عجمی لفظ دې په سریانی کښې یسوع وئیلې شی. دَ کوم معنی چې مبارک ده. عیسی علیه السلام دَ بنی اسرائیلو دَ انبیاء کرامو دَ سلسلې خاتم دې سنه عیسوی هم دَهغوی په نوم باندې جاری شوې. دَهغوی نه پس صرف نبوت محمدی شوې دَ شام په ملك کښې علاقه ارض ګلیل کښې دَ کلی نوم ناصره دې دَهغوی مادری وطن هم هغه دې او ولادت ئې دَ بیت المقدس په یوکوټ کښې شوې. دَ ۳۳ کالو په عمرکښې هغوی دَ جمهور امت دَ عقیدې مطابق اودَ مسیحی عقیدې مطابق درې ورځې دپاره وفات شوې او آسمان ته اوچت کړې شوې. دَهغوی دَ آسمانی رفع نه انکار صرف بعضو جدید فرقوکړې دې. (ماجدی، ملخصًا)

**قوله**: رُوْحُ الْقُدُسِ دا دَ حضرت جبرائیل علیه السلام مشهور لقب دې. په مسیحی اصطلاح کښې دَ اقانیم ثلثه نه اقنوم ثالث دې.

**قوله**: وَلَقَدْ اٰتَیْنَا واوْ حرف عطف دې دَ لام قسم محذوف په جواب باندې داخل دې قد حرف تحقیق دې.

**قوله**: بِطَهَارَتِهٖ دا دَ القدس (طاهر کیدو علت دې.

**قوله**: یَسِیْرُ معه حیث سَار، اَیَّدْنَاهُ تفسیر دې.

**قوله**: فلم تَسْتَقِیْمُوْا داجمله هم مقصود کلام دې یعنی دَ مذکوره هرڅه کیدو نه پس هم هغوی په نیغه لار رانغلل. بل په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چې اَفَکُلَّمَا په مقدرباندې

عطف دي. تقديري عبارت دادي فَلَمْ تَسْتَقِيمُوْا فَاسْتَكْبَرْتُمْ أَفَكُلَّمَا جاءكم رسول الخ، دَمعطوف اومعطوف عليه په مينځ کښې همزه دَ استفهام دَ توبيخ دَپاره دې. (لغات القرآن)

**قوله**: تَهْوَى،مضارع واحد مؤنث غائب هغه ارزوكوى (س) هَوَى دَ خواهش طرف ته دَ نفس مائل كيدل. (لغات القران)

**قوله**: مِنَ الْحَقِّ دا دَ مَا بيان دې.

**قوله**: تَكَبَّرْتُمْ. اِسْتَكْبَرْتُمْ تفسير تكبرتم سره كولوكښې اشاره اوكړه چې (سين، تاء) زائده دى نه چې دَ طلب دَپاره.

**قوله**: جَوَابِ كُلَّمَا، كُلَّمَا متضمن په معنى د شرط دې. اِسْتَكْبَرْتُمْ دَدې جواب دې اومحل استفهام هم دغه جواب دې. اودا استفهام توبيخى دې ځکه چې دَ الله تعالى دَپاره استفهام دَ سوال دپاره ممكن نه دې يعنى چې كله هم تاسو له رسول راغلې دې نوهغه شان بيا تاسو تكبر كړې.

**قوله**: فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ، فريقا كذبتم مفعول مقدم دې اودَ كذبتم عطف اِسْتَكْبَرْتُمْ باندې دې دغه شان فريقًا تقتلون دې.

**قوله**: المضارع لحكاية الحال الماضية په دې اعتبارسره دَ دې اضافه مقصد دَيو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ كښې دَمضارع صيغه استعمال شوې ده چې په زمانه دَحال دلالت كوى دَدې مطلب دادې چې يهودو به دَ دغه آيت دَ نزول په وخت كښې هم انبياء كرام قتل كول حالانكه دا د واقعې خلاف دى.

**جواب**: دَ تيرې شوې واقعه دَ منظركشئى په توګه دَمضارع صيغه استعمال كړې شوې ده لكه چې دَقتل انبياء دا واقعه فى الحال دَ سترګو په وړاندې كيږى هم دې ته حكايت حال ماضيه وائى.

**قوله**: غُلْفٌ. دا دَأَغْلَفُ جمع ده غيرمختون ته وئيلې شى. اى لاتعى ولاتفهم مفسرعلام هم دا معنى مراد اخستې ده. بعضې حضراتو وئيلې چې غلف دغلاف جمع ده. معنى به ئې دا شى چې زمونږ زړونه د علم خزانې دموسوى معارف نه ډك دى او مونږ ته دَ يونوى تعليم دَ قبولول ضرورت نشته. هِىَ جمع غلاف اى هى أوعية العلم. (راغب)

**قوله**: فَقَلِيْلًا دا دَ ايمانًا موصوف محذوف صفت كيدو دَ وجې نه منصوب دې.

**قوله**: قَبْلَ مَجِيْئِهٖ په دې كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې قَبْلُ مضاف اليه محذوف

معنوی کیدو دَ وجې مبنی برضمه دې.

**قوله**: باعُوا، اِشۡتَرَوۡا تفسیر ئې په باعُوا سره کولوکښې اشاره ده چې اشْترىٰ دَ اضداد نه دې دَدې معنی بیع او شراع دواړه راځی.

**قوله**: مِنَ الحَقِّ، دَ مَا بیان دې مِنَ الحق سره. دَ مَا تفسیر کولوسره دَ یواعتراض دَ جواب طرف ته اشاره اوکړه.

اعتراض: لره چې یهودیانو دَ نبی آخرالزمان په توګه پیژندلو هغه دَ حضورپاك ﷺ ذات مبارك وو لکه چې دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ ﴾ بیا دلته حضورپاك ﷺ په لفظ مَا سره ولې تعبیرکړو؟

**جواب**: دې نه مراد حق دې نه چې دَ حضورپاك مخصوص ذات او دَ هغوی په حقه رسول کیدل دَمعجزاتو او په تورات کښې ذکرشوو علاماتو نه ښکاره وو.

**قوله**: حَسَدًا دا دَهغه سوال جواب دې چې کفر جهل دَ وجې نه کیدې شی کله چې هغوی نبی پاك اودَهغه نبوت په ښه توګه سره پیژندلو نو بیا کفر ولې اوشو.

**جواب**: دا کفر اوانکار دَ عدم معرفت دَ وجې نه نه دې شوې بلکه دَحسد او قومی تعصب دَ وجې نه شوې دې.

**قوله**: دَلَّ عَلَيۡهِ جَوَابُ الثَّانِيَةِ، وَهُوَ قوله كفروابه، مطلب دادې چې كفروابه، د لَمَّا ثانیه جواب دې اوهم دَدې دَ دلالت دَ وجې نه د لَمَّا اولی جواب محذوف دې. تقدیری عبارت داسې دې وَلَمَّا جَاءَهُمۡ كِتَابٌ مِّنۡ عِنۡدِ اللهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمۡ كَفَرُوا بِهِ، په دې سره دَ مبرد رد هم مقصودې دَ مبرد وینا ده چې كَفَرُوا بِهِ، د لَمَّا، اولی جواب دې او ثانی لَمَّا دَ طویل کلام دَ وجې نه دَ تکرار په توګه راوړلې شوې دې. لهذا دې ته دَ جواب ضرورت نشته. دَ رد وجه داده چې که چرې لَمَّا مکرر اومنلې شی نوهغه به صرف دَ تاکید دَپاره وی اوذَتاکید نه تاسیس اولی دې او وكانوامِن قبلُ الخ تقدیر قد سره جمله حالیه ده.

**قوله**: بِئۡسَمَا کښې مَا په بئس کښې ضمیر مستتر هُوَ سره تمیز دې تقدیری عبارت دادې بئس الشئ شیئًا اواشتروا، دَ مَا صفت دې او أَنۡ يكفروا مخصوص بالذم دې.

**قوله**: ذُوۡاِهَانَةٍ په دې کښې اشاره ده چې دَ اهانت اسناد دَ عذاب طرف ته مجازًا دې. دَ دې دَپاره چې عذاب ذلیل نه وی بلکه صاحب عذاب (معذب) ذلیل کیږی لهذا عذاب به د مهين نه وی بلکه صاحب عذاب (معذَب) مهين وی.

**قوله**: مُهِيۡنٌ، مُهۡيِنٌ په اصل کښې مُهۡوِنٌ، دَ واؤ کسره نقل کولوسره هاء ته ورکړه واؤساکن ماقبل مکسور یاء سره بدل شو نو مُهِيۡنٌ شو.

[اياتونه: ٩١-٩٦]

{وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ} الْقُرآن وَغَيْره {قَالُوا نُؤْمِنُ بِمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا} اي التوراة قال تعالي {وَيَكْفُرُونَ} الْوَاو لِلْحَالِ {بِمَا وَرَاءَهُ} سِوَاهُ أَوْ بَعْده مِنَ الْقُرْآن {وَهُوَ الْحَقُّ} حَال {مُصَدِّقًا} حَال ثَانِيَة مُؤَكِّدَة {لِمَا مَعَهُمْ قُلْ} لَهُمْ {فَلِمَ تَقْتُلُونَ} أَيْ قَتَلْتُمْ {أَنْبِيَاءَ اللَّهِ مِنْ قَبْلُ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} بِالتَّوْرَاةِ وَقَدْ نُهِيتُمْ فِيهَا عَنْ قَتْلهمْ وَالْخِطَاب لِلْمَوْجُودِينَ مِنْ زَمَن نَبِيّنَا بِمَا فَعَلَ آبَاؤُهُمْ لِرِضَاهُمْ بِهِ {وَلَقَدْ جَاءَكُمْ مُوسَى بِالْبَيِّنَاتِ} بِالْمُعْجِزَاتِ كَالْعَصَا وَالْيَد وَفَلْق الْبَحْر {ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ} إلَهًا {مِنْ بَعْدِهِ} مِنْ بَعْد ذَهَابه إلَي الْمِيقَات {وَأَنْتُمْ ظَالِمُونَ} باتخاذه {وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ} عَلَي الْعَمَل بِمَا فِي التَّوْرَاة {و} قَدْ {رَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ} الْجَبَل حِين امْتَنَعْتُمْ مِنْ قَبُولهَا لِيَسْقُط عَلَيْكُمْ وَقُلْنَا {خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ} بِجِدّ وَاجْتِهَاد {وَاسْمَعُوا} مَا تُؤْمَرُونَ بِهِ سَمَاع قَبُول {قَالُوا سَمِعْنَا} قَوْلك {وَعَصَيْنَا} أَمْرك {وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ} أَيْ خَالَطَ حُبُّهُ قُلُوبَهُمْ كَمَا يُخَالِط الشَّرَاب {بِكُفْرِهِمْ قُلْ} لَهُمْ {بِئْسَمَا} شَيْئًا {يَأْمُرُكُمْ بِهِ إِيمَانُكُمْ} بِالتَّوْرَاةِ عِبَادَة الْعِجْل {إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} بِهَا كَمَا زَعَمْتُمْ الْمَعْنَي لَسْتُمْ بِمُؤْمِنِينَ لِأَنَّ الإيمان لم يَأْمُر بِعِبَادَةِ الْعِجْل وَالْمُرَاد آبَاؤُهُمْ أَيْ فَكَذَلِكَ أَنْتُمْ لَسْتُمْ بِمُؤْمِنِينَ بِالتَّوْرَاةِ وَقَدْ كَذَّبْتُمْ مُحَمَّدًا وَالْإِيمَان بِهَا لا يَأْمُر بِتَكْذِيبِهِ {قُلْ} لَهُمْ {إِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ} أَيْ الْجَنَّة {عِنْدَ اللَّهِ خَالِصَةً} خَاصَّة {مِنْ دُونِ النَّاسِ} كَمَا زَعَمْتُمْ {فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} تَعَلَّقَ بِتَمَنَّوْا الشَّرْطَانِ عَلَي أَنَّ الْأَوَّل قَيْد فِي الثَّانِي أَيْ إنْ صَدَقْتُمْ فِي زَعْمكُمْ أَنَّهَا لَكُمْ وَمَنْ كَانَتْ لَهُ يُؤْثِرهَا وَالْمُوَصِّل إلَيْهَا الْمَوْت فتمنوه {وَلَنْ يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ} مِنْ كُفْرهمْ بِالنَّبِيِّ الْمُسْتَلْزِم لِكَذِبِهِمْ {وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ} الكافرين فيجازيهم {وَلَتَجِدَنَّهُمْ} لَام قَسَم {أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَى حَيَاةٍ و} احرص {مِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا} الْمُنْكِرِينَ لِلْبَعْثِ عَلَيْهَا لِعِلْمِهِمْ بِأَنَّ مَصِيرهمْ النَّار دُون الْمُشْرِكِينَ لِإِنْكَارِهِمْ لَهُ {يَوَدُّ} يَتَمَنَّي {أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ} لَوْ مَصْدَرِيَّة بِمَعْنَي أَنْ وَهِيَ بِصِلَتِهَا فِي تَأْوِيل مَصْدَر مَفْعُول يَوَدّ {وَمَا هُوَ} أَيْ أَحَدهمْ {بِمُزَحْزِحِهِ} مُبْعِده {مِنَ الْعَذَابِ} النَّار {أَنْ يُعَمَّرَ} فَاعِل مُزَحْزِحه أَيْ تَعْمِيره {وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يعملون} بالياء والتاء فيجازيهم

**ترجمه**:- او كله چې هغوى ته وئيلې شى چې كوم قرآن وغيره (انجيل) الله تعالى نازل كړې دې په هغې باندې ايمان راوړئ نو وائى كوم چې په مونږ باندې نازل كړې شوې دې يعنى تورات نومونږ په هغې باندې ايمان لرو الله تعالى اوفرمائيل او واؤ حاليه دې څومره چې دَدې نه علاوه دې دَهغې نه پس دې (اوهغه) قرآن دې دَهغې نه انكاركوى حالانكه هغه حق هم دې (جمله) حاليه ده او دَدې (تورات) تصديق كونكې دې كوم چې هغوى سره دې. (مصدقاً) حال ثانى دې دَ تاكيد دَپاره تاسو دَهغوى نه معلومه كړئ كه چرې ستاسو په تورات باندې ايمان وى نو سابقه انبياء كرام تاسو ولې قتل كړل؟ حالانكه تاسو په تورات كښې دَهغوى دَ قتل كولو نه منع كړې شوى وئ. خطاب هغه (يهودو) ته دې كوم چې دَ رسول الله ﷺ په زمانه

کښې موجود وو. په دې وجه چې دَهغوی پلاران (اونیکونو) څه کړی وو دوی په هغې راضي دی. موسی علیه السلام تاسو له ښکاره معجزات راوړل لکه همسا یدبیضاء اودَ دریاب دوه ټکړې کیدل، خوبیاهم تاسو دَ موسی علیه السلام میقات (کوه طور) ته په تللوباندې سخې خپل معبود جوړکړو اوتاسو دَ سخی معبودجوړولوسره ظالمان شوئی اوکله چې مونږ ستاسو نه دَ تورات په احکامو دَعمل کولووعده واخسته اومونږ په تاسو باندې کوه طور مسلط کړو دې دَپاره چې په تاسوباندې راګذارکړې شي. کله چې تاسو دَ تورات دَ قبلولونه منع شوئی اومونږ اووئیل چې زمونږ درکړې شوې څیز(تورات) په مضبوطوالئ او کوشش سره اونیسئ اودَ کومې خبرې چې تاسو ته حکم درکولې شی هغه دَ قبولیت په نیت سره واؤرئی نوهغوی اووئیل چې مونږ ستا خبره واؤریده او مونږ ستا خبره نه منو اودَهغوی په زړونوکښې دَهغوی دکفردَ وجې نه سخې راغلې وو یعنی دَ سخی محبت دَهغوی په زړونوکښې داسې ورننوتلې وو لکه څنګه چې شراب په (بدن کښې) ورننوځی. تاسوهغوی ته اووایئی ستاسو توریت باندې ایمان چې دَ کوم سخی عبادت حکم درکوی هغه ډیر خراب څیزدې. که چرې تاسو په تورات باندې ایمان لرئی لکه څنګه چې ستاسو دعویٰ ده مطلب دادې چې ستاسو په تورات باندې هم ایمان نشته څکه چې په تورات باندې ایمان لرل دَ سخی دَ عبادت حکم نه ورکوی. اود (کُمْ) مخاطب دَهغوی پلاران (نیکونه) دی یعنی دغه شان خو ستاسو هم په تورات باندې ایمان نشته اوتاسو دَمحمد ﷺ تکذیب کړې دې او په تورات باندې ایمان لرل دَ حضورپاك دَ تکذیب اجازت نه ورکوی. تاسو ﷺ هغوی ته اووایئی چې که چرې دَآخرت په کور یعنی جنت دَ الله تعالی په نیز صرف ستاسو دَپاره وی په خاص توګه دَ نورو خلقونه علاوه لکه څنګه چې ستاسو دعویٰ ده (نو بیا) دَ مرګ غوښتنه اوکړئی که چرې تاسو په خپله دعویٰ کښې رښتونی یئی. دَ مرګ ارزوسره دوه شرطونه متعلق دی په دې طریقه چې اول دَدویم دَپاره قید دې یعنی که چرې تاسو په دغه دعوی کښې رښتونی ئې چې دار آخرت (جنت) صرف ستاسودَپاره دې اودَ چادَ پاره چې آخرت وی نوهغه دې ته ترجیح ورکوی اودَهغې دَ رسیدو ذریعه مرګ دې لهذا تاسو دَدې تمنا اوکړئی خوهغوی دَ خپلو کړو دَ وجې نه چې هغه دَحضورپاك ﷺ نه انکاردې اودَمرګ خواهش نه کول دَهغوی تکذیب ته مستلزم دې. هیڅ کله به دَ مرګ تمنا اونه کړی اوالله تعالی ظالمان او کافران ښه پیژنی لهذا هغوی له به سزا ورکوی بلکه دَ ټولو نه زیات دَ دنیادَ ژوند حارصان به تاسو هم دوی اوموملی چې (دا خلق دَ ژوند په حرص کښې) دَمشرکانو اومنکرانودَ بعث نه هم زیات وراندې دی. (لَتَجِدَنَّهُمْ) کښې لام قسمیه دې څکه چې دوی (یهودو) ته داخبره معلومه ده چې دَدوی ځائی دوزخ دې په خلاف دَ مشرکانو چې هغوی دَ بعث بعد الموت هډو قائل نه دی او په دوی کښې هرسړې داغواړی چې دَ هغه عمر زر کاله وی. لَوْ مصدریه دې دَآنْ په معنی

کښې دي او ﺩ ﻟَﻮْ خپلې صله سره ﺩمصدر په تاويل کيدو سره ﺩ يَوَدُّ مفعول دي. ﺩ عمردا اوږدوالي هم هغوی ﺩ عذاب نه نه شی بچ کولې. اَنْ يُّعَمَّرَ ﺩ مُزَحْزِحِه فاعل دي. (يعنی اَنْ يُّعَمَّرَ ﺩ تعميرپه معنی کښې دي الله تعالی ﺩهغوی کارونه ښه وينی يعملون ياء او تاء سره دي يعنی هغوی ته به بدله ورکوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وَرَآءَ دا ظرف مکان دي، دا ﺩخلف په معنی کښې زيات او ﺩ آمام په معنی کښې کم استعماليږی. دا ﺩ اضداد نه دي او دسوی او بَعْدُ په معنی کښې هم مستعمل دي مفسرعلام ﺩ بعد معنی مراد اخستي ده.

**قوله:** وَهُوَالْحَقُّ دا د مَا نه حال دي.

**قوله:** مُصَدِّقًا حالٌ ثانية مؤكِّدَةٌ دا ﺩ ماقبل جملې ﺩ تاکيد ﺩپاره دي څکه چې حق هم صادق وی لکه چې زيدٌ اَبوكَ عَطُوفًا، کښې عطوفًا ﺩ ماقبل ﺩ تاکيد ﺩپاره دي ﺩ حال ثانيه مطلب دادي چې د تاکيد په اعتبار حال ثانی دي ګنی دا حال ثالث دي څکه چې اول ويكفرون دي.

**قوله.** تَقْتُلُوْنَ ﺩ مضارع تفسير په ماضی سره کولوکښې اشاره ده چې ﺩ انبياء کرامو قتل ﺩ آيت ﺩ نزول ﺩ زمانې په اعتبار سره په زمانه ماضی کښې واقع شوې دي او په دې باندې قرينه (مِنْ قَبْلُ) ده.

**قوله:** بِمَا فَعَلَ اٰبَآءُهُمْ، په دې کښې اشاره ده چې په تَقْتُلُوْنَ کښې اسناد مجازی دې څکه چې ﺩ انبياء قاتلان ﺩهغوی پلاران اونيکونه وو نه چې هغوی.

**قوله:** رضاهم دا ﺩ مجاز د علاقې بيان دي اوهغه ملابست دي چونکه موجوده يهوديان ﺩ خپلو پلارانو په کړو قتلونوباندې راضی وو په دې وجه ﺩ قتل نسبت ﺩهغوی طرف ته اوکړې شو.

**قوله:** بالمعجزات، د بَيِّنَات تفسيرپه معجزات سره کولوکښې په هغه خلقو باندې رد مقصود دې چې ﺩ بينات نه تورات مراد اخلی څکه چې تورات واحد دې او بينات جمع ده.

**قوله:** اِلٰهًا په دې تقديرکښې اشاره ده چې ﺩ اِتَّخَذَ مفعول ثانی محذوف دې اودا اِتخذتُ سَيفًا اى صنعته نه ماخوذ نه دې چې مفعول وغواړی څکه چې اتخاذعجل ﺩ سامری نه صادرشوې وو نه چې ﺩ بنی اسرائيلونه هم دا مضمون ﺩ سوال اوجواب په شکل کښې هم بيانولې شی.

**سوال:** اِنَّمَا دَمحذوف منلو ضرورت ولې پيښ شو؟

**جواب:** اتخاذ دَ ابتداء صنعت په معنی کښې هم استعماليږی لکه اِتخذتُ سيفاً، ای صَنَعْتُهٗ مفعول ثانی نه ذکرکولوسره دې معنې طرف ته ذهن اوړيدې شو په دغه صورت کښې به مطلب ور صَنَعتم بابی اسرائيل عجلاً حالانکه دَ عجل سازئی عمل دَ سامری نه صادر شوې وو نه چې دَ بنی اسرائيلونه.

**قوله:** بعد ذهابه په دې کښې دَ مضاف دَ حذف طرف ته اشاره ده. په دې صورت کښې د مِن بعد تعلق د مضاف محذوف سره به وی نه چې اتخاذ سره. دا په هغه حضراتو باندې ردهم دې کومو چې بعد ذهابه په ځائی مجيئه محذوف سنلې دې ګنی لازم به راځی چې دَ موسیٰ عليه السلام په موجودګئی کښې دَ سخی جوړول شوی وو کوم چې غلط دی.

**قوله:** عَلَى العَمَلِ بِمَا فِى التَّوْرَاةِ په دې کښې اشاره ده چې اخذ ميثاق نه هغه عمومی ميثاق مرا نه دې چې په ازل کښې دَ ټولو اولادآدم نه دَ الست بربکم په صورت کښې اخستې شوې وو.

**قوله:** وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمْ، قد مقدر منلوسره اشاره اوکړه چې دَ ماضی حال جوړيدل صحيح دی که چرې قد مقدر اومنلې شی دَ ماضی نه حال جوړيدودَپاره نودَ قَد کيدل ضروری دی که لفظًا وی او که تقديراً.

**قوله:** حُبُّهٗ قلوبَهُمْ په دې کښې اشاره ده چې العجل نه وړاندې حب مضاف محذوف دې ځکه چې سخې په زړه کښې نه شی راتلې. مضاف حذف کولوسره مبالغةً مضاف اليه دَدې په ځائی کړې شوې دې.

**قوله:** عِبَادَةُ العِجْلِ دا مخصوص بالذم مقدر دې.

**قوله:** كذلك انتم لستم بمؤمنين، دَ دې عبارت دَ اضافه مقصد دَ يوسوال مقدر جواب ورکول دی.

**سوال:** دَ آباءو دَ جنايت دَ وجې نه ابناء نه مواخذه نه شی کيدې لهذا دَ حضورپاك په زمانه کښې په موجودينو دَهغوی دَ پلارانو دَ فعل مذمت په څه وجه سره دې؟

**جواب:** ظاهر ده چې دَحضورپاك په زمانه کښې يهود دَخپلو اسلافو په فعل باندې راضی وو اوهغې سره متفق وو نه چې خپيمانه شرمنده ځکه چې په ګناه باندې راضی کيدل او دې سره متفق کيدل هم ګناه ده.

**قوله:** ای الجنة دَ دار آخرت تفسير په جنت سره دَ کولو مقصد دادې چې دار آخرت عام دې

په کوم کښې چې دوزخ او جنت شامل دی او دې خلقو به خپل ځان صرف دَجنت مستحق ګڼړلو.

**قوله**: كما زعمتم، اى بقولك، لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ الاَّ مَنْ كَانَ هُوْدًا.

**قوله**: تَعَلَّقَ بِتَمَنِّيهِ الشرطان الخ. ښکاره داده چې تعلق تمنيه بالشرطين او وئيلې شی په دې کښې قلب دې دا دَهغه اعتراض جواب دې چې دَجزاء واحد تعلق په دوو شرطونو دَ عطف نه بغير جائزده او دلته هم دغه لازم راځی.

**جواب**: دَ جواب حاصل دادې چې دَ جزاء واحد تعلق دوو شرطونوسره نه دې بلکه هم يو شرط سره دې ځکه چې اول شرط دَ ثانی دَپاره قيد دې مستقل شرط نه دې.

**فائده**: داده چې کله دوه شرطونه جمع شی او دَهغې جواب په مينځ کښې وی نو اول شرط به دَ ثانی دَپاره قيد وی په دې توګه اول به دَ ثانی معنی دَپاره متمم شی او جواب به دَ ثانی وی تقدير ايت به داسې شی اِنْ کُنْتُمْ صادقين فی زعمکم اَنَّ الدَّارَ الاخرة لکم خالصة فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اودا هم وئيلی شوی دی چې فتمنوا الموت دَ ثانی جواب دې او دَ اول جواب محذوف دې په کوم چې دَ اول جواب دلالت کوی.

**قوله**: المستلزم لكذبهم دا دَشکل اول نتيجه ده اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الاخرة، مقدم دې. فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ تالی دې اولَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا نقيض تالی دې. دَ نقيض تالی عدم د مقدم عدم ته مستلزم وی اومقدم دارآخرت دَخپل ځان دَپاره خاص کول دی. لهذا دَ دار آخرت دَ تخصيص دعویٰ معدوم شوه. اودا دَ نقيض تالی دَعدم دَ وجې نه لازم راغله او د المستلزم لكذبهم هم دغه مطلب دې يعنی دَ يهودو دَ مرګ تمنا نه کول دَخپل ځان دَپاره دارآخرت دَتخصيص دعویٰ کذب ته مستلزم ده.

**قوله**: لام قسم، په دې کښې اشاره ده چې دَ وَلَتَجِدَنَّهُمْ عطف په لَنْ يَّتَمَنَّوْهُ باندې دې اودا عدم تمنا دَ مرګ تاکيد دې نه چې جمله معترضه لکه چې وئيلې شوی دی دَدې دَپاره چې په دې صورت کښې به لام دَ تاکيد هيڅ فائده نه ورکوی.

**قوله**: يتمنى، د يَوَدُّ تفسير په يتمنیٰ سره کول دَدې سوال جواب ورکول مقصود دې چې وِداد په موجوده څيزونو کښې کولې شی نه چې په معدوم کښې، اودَ عمردَ اوږدوالی تمنا دَمعدومات نه ده.

**جواب**: دَ جواب حاصل دادې چې دَ وِداد دَتمنا په معنی کښې دې اوتمنا دَ معدوم او موجود دواړو کيدې شی.

**قوله**: مُزَحْزِحِهِ اسم فاعل واحد مذکر لرې کونکې مصدر زَحزحَةٌ په وزن دَ فَعْلَلَةٌ لرې کول ثلاثی مجرد زَحْزَحًا، ون لرې کول.

[ایاتونه: ۹۷-۱۰۱]

وسال بن صوريا النبيّ أوْ عُمَر عَمَّنْ يَأتِي بِالْوَحْيِ مِنَ الْمَلَائِكَة فَقَالَ جِبْرِيل فَقَالَ هُوَ عَدُوّنَا يَأتِي بِالْعَذَاب وَلَوْ كَانَ مِيكَائِيل لَآمَنَّا لِأَنَّهُ يَأتِي بِالْخِصْبِ وَالسِّلْم فَنَزَلَ {قُلْ} لَهُمْ {مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيل} فَلْيَمُتْ غَيْظًا {فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ} أيْ الْقُرْآن {عَلَى قَلْبِك بِإِذْنِ} بِأمْرِ {اللّه مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ} قَبْله مِنَ الْكُتُب {وَهُدًى} مِنَ الضَّلَالَة {وَبُشْرَى} بالجنة {للمؤمنين} {مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِلّهِ وَمَلَائِكَته وَرُسُله وَجِبْرِيل} بكسر الجيم وفتحها بلا همز وَبِهِ بِيَاءٍ وَدُونِهَا {وَمِيكَال} عُطِفَ عَلَى الْمَلَائِكَة من الْخَاصّ عَلَى الْعَامّ وَفِي قِرَاءَة مِيكَائِيل بِهَمْزَةٍ وَيَاء وَفِي أُخْرَى بِلَا يَاء {فَإِنَّ اللّه عَدُوّ لِلْكَافِرِينَ} أَوْقَعَه مَوْقِع لَهُمْ بَيَانًا لِحَالِهِمْ {وَلَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْك} يَا مُحَمَّد {آيَات بَيِّنَات} اي واضحات حال ردا لقول بن صُورِيَا لِلنَّبِيّ مَا جِئْتنَا بِشَيْءٍ {وَمَا يَكْفُر بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ} كفروا بها {أَوَكُلَّمَا عَاهَدُوا} اللّه {عَهْدًا} عَلَى الْإِيمَان بِالنَّبِيّ إِنْ خَرَجَ أَوْ النَّبِيّ أَنْ لَا يُعَاوِنُوا عَلَيْهِ الْمُشْرِكِينَ {نَبَذَهُ} طَرَحَهُ {فَرِيق مِنْهُمْ} بِنَقْضِهِ جَوَاب كُلَّمَا وَهُوَ مَحَلّ الِاسْتِفْهَام الْإِنْكَارِيّ {بَلْ} لِلِانْتِقَالِ {أَكْثَرهمْ لَا يُؤْمِنُونَ} {وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُول مِنْ عِنْد اللّه} مُحَمَّد صَلَّى اللّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مُصَدِّق لِمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيق مِنْ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَاب كِتَاب اللّه} أَيْ التَّوْرَاة {وَرَاء ظُهُورهمْ} أَيْ لَمْ يعلموا بِمَا فِيهَا مِنَ الْإِيمَان بِالرَّسُولِ وَغَيْره {كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ} مَا فِيهَا مِنْ أَنَّهُ نَبِيّ حق أو أنها كتاب الله

**ترجمه:** ابن صوريا دَ نبی ﷺ يا حضرت عمر ﷛ نه سوال اوکړوچې کومه فرښته وحی راوړی راځی؟ جواب ورکړې شو جبرائيل ﷤ نوهغه اووئيل چې هغه خوزمونږ دښمن دې ځکه چې هغه عذاب راوړی اوراځی که چرې (وحي راوړونکې) فرښته ميکائيل دې نومونږ به ايمان راوړلې ځکه چې هغه خوشحالی او سلامتی راوړی نودا آيت نازل شو. ته دوی ته اووايه څوک چې دَ جبرائيل دښمن وی هغه له پکاردی چې دَغصې نه مړشي. بيشکه هم دې (جبرائيل) خو قرآن دَ الله تعالى په حکم باندې ستاسو په زړونو باندې نازل کړې دې. کوم (قرآن) چې دَ سابقه کتابونو تصديق کونکې دې اومؤمنانو ته دَ هدايت لار خودونکې او دَ جنت زيرې ويرونکې دې اوڅوک هم چې دَ الله تعالى دَ هغه دَ فرښتو اودَهغه دَ رسولانو اودَ جبرائيل، جبرائيل دَ جيم په کسره او فتحه سره دې بغيردَهمزه او سره دَهمزه او دَ ياء نه بغير اوسره دَ ياء دې اودَ ميکائل دښمن وی دَدې عطف په ملائکه باندې عطف خاص على العام په توګه دې. او په يوقراءت کښې ميکائيل همزه او ياء سره دې او په دويم کښې بغيردَ ياء نه نودَ داسې کافرانو دښمن پخپله هم الله تعالى دې. (لفظ کافرين دَ هُمْ ضمير په ځائې دَهغوی (دَکفرحالت) بيانولودَپاره راوړلې شوې دې او اې محمد ﷺ يقينًا مونږ په تاباندې روښانه دليلونه نازل کړی دی. (بينات) آيات نه حال دې دا دَ ابن صوريا دَ هغه خبرې جواب دې چې تا مونږ له څه شئ نه دې راوړې دَ کوم انکار چې دَ فاسقانونه علاوه بل څوک نه کوی

(صرف) هم فاسق دَدي انكار كوي. دغه خلقو په نبي باندې ايمان راوړلو باره كښې كه چرې هغه ظاهر وي اوبيائي هم الله تعالى سره وعده اوكړه يا نبي سره ئي وعده اوكړه چې دهغې خلاف به دَمشركانو امدادنه كوي نو په هغوي كښې يوفريق دغه عهد مات كړو شاته ئي اوغورزولو (نَّبَذَهُ) دَكلما جواب دې. اوهم دغه دَ استفهام انكاري محل دې بلكه بَلْ دَ انتقال (اضطراب) دَپاره دې په دوي كښې اكثر ايمان نه لري اوكله چې دوي له دَ دوي دَ كتاب تصديق كونكې رسول (محمد ﷺ) دَ الله تعالى دَ طرف نه راغلو نودَدې اهل كتابونه يوفريق دَ الله تعالى كتاب تورات شاته اوغورزولو يعني په هغې كښې چې په رسول باندې دَ ايمان راوړلو وغيره احكام وو په هغې باندې ئي عمل اونه كړو لكه چې هغوي داخبره چې دا نبي په حقه دې اويا دا دَالله تعالى كتاب دې هډو پيژني نه.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ابن صوريا عبدالله بن صوريا ،دَ فدك اوسيدونكې دَ يويهودي عالم نوم دې (روح البيان)

**قوله**: جبرائيل، جِبْرِيل ﷺ دَالله تعالى دَ يومقرب فرښتې نوم دې. دَ جبرئيل په تلفظ كښې ديارلس لغات دي خو په هغې كښې زيات تر شاذ دي:

① جِبْرِيل دَ جيم زير سره ② جَبْرِيْل دَ جيم زبر سره ③ جَبْرَيِيل، په وزن دَ خَنْدَرِير

④ جَبْرَئِيل دَ همزه نه پس ياء نشته ⑤ جَبْرَئِلّ لام مشدد ⑥ جبرائِل

⑦ جَبْرَال ⑧ جَبْرَيِلْ ⑨ جِبْرَئِيلْ

⑩ جَبْرَيِن ⑪ جِبْرِيْلَ ⑫ جبرائين (لغات القرآن)

جِبْرِيْل په معنى د عبدالله، دَ خدائي بنده، جبر بنده او ايل الله، دا عجمي لفظ دې دَ عجمه اوعلم كيدودَ وجې نه غيرمنصرف دې. او ميكائيل په معنى دَ عبيدالله دې.

**قوله**: فَلْيَمُتْ غَيْظًا دا جمله محذوف منلومقصد داخودل دي چې مَنْ كَانَ كښې مَنْ شرطيه دې، فَلْيَمُتْ دَدې جزاء محذوف دې.

**قوله**: فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ دا علت جزاء ده نه چې جزاء ځكه چې جزاء كله جمله وي نو په هغې كښې دَ عائد كيدل ضروري وي كوم چې موجودنه دې.

**قوله**: اي القرآن دَنَزَّلَهُ دَ ضميرباره كښې چونكه احتمال وو چې دَ جبرائيل طرف ته راجع وي مګردا دَمعنې په اعتبار سره صحيح نه ده. ځكه چې القرآن وئيلوسره مرجع متعين كړې شوه سره دَدې چې په ماقبل كښې قرآن ذكرنه دې خودَ المشهور كالمذكور قاعدې سره اضمار قبل الذكر لازم نه راځي.

**قوله:** أَوْقَعَهُ مَوْقِعَ لَهُمْ، بَيَانًا لِحَالِهِمْ، يعنى عَدُوٌّ لِلْكَافِرِينَ وئيلو په ځائی عَدُوٌّ لَهُمْ وئيل کافی وو ځکه چې دَدې ذکرورانديې تيرشوې دې خودَهغوئ عادت شنيعه او خصلت قبيحه بيانول مقصود وو چې دَ ملائکودَ دښمنئی دَ وجې نه داکافرشوی وو په دې وجه دَ ضميرپه ځائی اسم ظاهر راوړلې شو.

**قوله:** رَدٌّ لقول ابن صوريا الخ دَ دې عبارت دَ اضافه مقصد معطوف عليه کوم چې مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ دې او معطوف کوم چې وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ دې په مينځ کښې جمله معترضه راوړلو نکته بيانول دی.

**قوله:** أَوِالنَّبِي، دَدې عطف په الله باندې دې اودَ دې مقصد دويم تفسيرطرف ته اشاره کول دی يعنی يهودو الله تعالى سره عهدکړې وو چې کله دَ نبی آخرزمان ظهورکيږی نو مونږ به په هغه باندې ايمان راوړو يا مطلب دادې چې رسول الله ﷺ سره ئی عهدکړې وو چې دَهغوی خلاف به دَ مشرکانوسره تعاون نه کوو.

**قوله:** أَوَكُلَّمَا همزه استفهام انکاری دې واؤعاطفه دې معطوف عليه محذوف دې دَدې تقدير دادې أكفروا بآيات الله البينات وكُلَّمَا، ظرف زمان متضمن لمعنى شرط.

**قوله:** نَبَذَ فَرِيقٌ، جمله کيدوسره جواب شرط، كتابَ الله، د نَبَذَ مفعول اول او وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ، مفعول ثانی دې ځکه چې نَبَذَ جَعَلَ معنې لره متضمن دې اودَ استفهام انکاری محل هم دغه دې يعنی هغوی لره دَ الله تعالى اودَهغه دَ رسول ﷺ عهد شاته غورزول نه وو پکار.

**[ ايا تونه: ۱۰۲-۱۰۳ ]**

{واتبعوا} عطف علي نبذ {ما تتلوا} أيْ تَلَتْ {الشَّيَاطِينَ عَلَى} عَهْد {مُلْكِ سُلَيْمَانَ} مِنَ السِّحْر وَكَانَتْ دَفَنَتْهُ تَحْت كُرْسِيِّه لَمَّا نُزِعَ مُلْكه أوْ كَانَتْ تَسْتَرِق السَّمْع وَتَضُمّ إلَيْهِ أكَاذِيب وَتُلْقِيه إلَي الْكَهَنَة فَيُدَوِّنُونَهُ وَفَشَا ذَلِكَ وَشَاعَ أنَّ الْجِنّ تَعْلَم الْغَيْب فَجَمَعَ سُلَيْمَان الْكُتُب وَدَفَنَهَا فَلَمَّا مَاتَ دَلَّتْ الشَّيَاطِين عَلَيْهَا النَّاس فَاسْتَخْرَجُوهَا فَوَجَدُوا فِيهَا السِّحْر فَقَالُوا إنَّمَا مَلَكَكُمْ بِهَذَا فَتَعَلَّمُوهُ فَرَفَضُوا كُتُب أنْبِيَائِهِمْ قَالَ تَعَالَي تَبْرِئَة لِسُلَيْمَان وَرَدًّا عَلَي الْيَهُود فِي قَوْلهمْ أنْظُرُوا إلَي مُحَمَّد يَذْكُر سُلَيْمَان فِي الْأنْبِيَاء وَمَا كَانَ إلَّا سَاحِرًا {وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ} أيْ لَمْ يَعْمَل السِّحْر لِأنَّهُ كُفْر {وَلَكِنَّ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف {الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ} الْجُمْلَة حَال مِنْ ضَمِير كَفَرُوا {وَ} يُعَلِّمُونَهُم {مَا أُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ} أيْ ألْهَمَاهُ مِنَ السِّحْر وَقُرِئَ بِكَسْرِ اللَّام الْكَائِنَيْنِ {بِبَابِلَ} بَلَد فِي سَوَاد الْعِرَاق {هَارُوتَ وَمَارُوتَ} بدل او عطف بيان للملكين قال بن عَبَّاس هُمَا سَاحِرَانِ كَانَا يُعَلِّمَانِ السِّحْر وَقِيلَ مَلَكَانِ أُنْزِلَا لِتَعْلِيمِهِ ابْتِلَاء مِنَ الله لِلنَّاسِ {وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ} زَائِدَة {أَحَدٍ حَتَّى يَقُولَا} لَهُ نُصْحًا {إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ} بَلِيَّة مِنَ الله إلَي النَّاس لِيَمْتَحِنَهُمْ بِتَعْلِيمِهِ فَمَنْ تَعَلَّمَهُ كَفَرَ وَمَنْ تَرَكَهُ فَهُوَ مُؤْمِن {فَلَا تَكْفُرْ} بِتَعَلُّمِهِ فَإِنْ أبَي إلَّا التَّعْلِيم عَلَّمَاهُ

{فَيَتَعَلَّمُونَ منهما ما يفرقون به بين المرء وزوجه} بِأَنْ يُبَغِّض كُلًّا إلَى الآخَر {وَمَا هُمْ} أي السَّحَرَة {بِضَارِّينَ بِهِ} بِالسِّحْرِ {مِنْ} زَائِدَة {أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ} فِي الآخِرَة {وَلَا يَنْفَعُهُمْ} وَهُوَ السِّحْر {وَلَقَدْ} لَام قَسَم {عَلِمُوا} أي اليَهُود {لَمَنْ} لَام ابْتِدَاء مُعَلِّقَة لِمَا قَبْلَهَا وَمَنْ مَوْصُولَة {اشْتَرَاهُ} اخْتَارَهُ أَوْ اسْتَبْدَلَهُ بِكِتَابِ اللّٰه {مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ} نَصِيب فِي الْجَنَّة {وَلَبِئْسَ مَا} شَيْئًا {شَرَوْا} بَاعُوا {بِهِ أَنْفُسَهُمْ} أي الشَّارِينَ أي حَظَّهَا مِنَ الآخِرَة إنْ تَعَلَّمُوهُ حَيْثُ أَوْجَبَ لَهُمُ النَّار {لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ} حَقِيقَة مَا يَصِيرُونَ إلَيْهِ مِنَ الْعَذَاب مَا تَعَلَّمُوهُ {وَلَوْ أَنَّهُمْ} أي اليَهُود {آمَنُوا} بِالنَّبِيِّ وَالْقُرْآن {وَاتَّقَوْا} عِقَاب اللّٰه بِتَرْكِ مَعَاصِيه كَالسِّحْرِ وَجَوَاب لَوْ مَحْذُوف أي لَأُثِيبُوا دَلَّ عَلَيْهِ {لَمَثُوبَةٌ} ثَوَاب وَهُوَ مُبْتَدَأ وَاللَّام فِيهِ لِلْقَسَم {مِنْ عِنْدِ اللَّهِ خَيْرٌ} خَبَره مِمَّا شَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ {لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ} أَنَّهُ خَيْر لَمَا آثَرُوهُ عَلَيْه

---

**ترجمه**: اوورپسې اولګيدل (يهود) دَ (اِتَّبَعُوْا) عطف په تَمَلّٰ باندې دې هغه (سحر) کوم چې به شيطانانودَ حضرت سليمان عليه السلام دَ بادشاهئ په زمانه کښې خودلو. کله چې دَ سليمان عليه السلام حکومت ختم شو نودَسحر (کتابونه) شيطانانودَ حضرت سليمان عليه السلام دَ کرسئ لاندې خښ کړی وو يا هغې پسې اولګيدل کوم چې به شيطانانو په غلاباندې اوريدل او په هغې کښې به ئې (دَ خپل طرف نه) دروغ ملاوول اوکاهنانوته به ئې خودل او هغه به ئې مُدَوَّن کول اودَدې خبرې مشهورتيااوشوه. بل دا مشهورشو چې جنات غيب پيژنی نو سليمان عليه السلام (دَ جادو) کتابونه راجمع کړل او خښ ئې کړل. کله چې دَ سليمان عليه السلام انتقال اوشو نو شيطانانوهغه خلقو ته په ګوته کړل نوخلقو هغه رااوويستل نو په هغې کښې ئې جادو اوموندلو نورونې وئيل چې (سليمان عليه السلام) په تاسو باندې هم دَدې جادو په ذريعه په تاسو حکومت کولو نوهغه خلقو دا جادو زده کړواودَ خپلو انبياء کرامو کتابونه ئې يوطرف ته کړل. الله تعالی دَ حضرت سليمان عليه السلام براءت کولوسره اودَ يهوديانو دا خبره ردکولوسره چې محمد صلی الله عليه وسلم ته اوګورئی سليمان عليه السلام په انبياء کښې شميری حالانکه هغه خو صرف يوجادوګروو ونې فرمائيل چې سليمان عليه السلام کفرنه دې کړې يعنی دَ جادو عمل ئې نه دې کړې ځکه چې دَ (جادوعمل) کفردې لکِنَّ تشديداوتخفيف سره ليکن شيطانانو کفراوکړو چې خلقو ته به ئې جادو خودلو. جمله (يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحر) دَ کفروا دَ ضميرنه حال دې او (شيطانان) هغوی ته به دوی علم سحر هم خودلو. او کوم چې په هغه دوو فرښتو باندې نازل کړې شوی وو چې (ښار) دَ بابل کښې اوسيدلې او مَلَکَيْن دَ لام په کسره سره هم لوستلې شوې دې بابل دَ عراق په مينځ کښې يوښاردې. (دَ دغه فرښتونومونه) هاروت اوماروت وو. دادَ ملکين نه بدل ياعطف بيان دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائيلی دی هغه دواړه جادوګروو اوپخپله به ئې جادو خودلو او نوروئيلی شوی دی چې دوه فرښتې

وې چې دَ جادو دَ تعليم دَپاره دَ الله تعالى دَ طرف نه دَ خلقو دَ ازميښت په توګه راليګلې
شوې وې او هغه دواړو به (جادو) چاته نه خودلو مِن زائده دې مګر نصيحة به ئې دا وئيل چې
مونږ دَ الله تعالى دَ طرف نه (دَ خلقو) ازميښت يو دې دَپاره چې جادو ورته اوښائى او
ازميښت ئې اوکړو. لهذا چاچې جادو زده کړو هغه کفراوکړو اوڅوك چې دَ زده کولونه
منع شو هغه مؤمن دې. لهذادې زده کولوسره کفر مه کوئى بيا هم که هغوى په زده
کولوباندې زور کوى نو هغوى ته اوښايئى. بيابه خلقو دغه علم زده کولو دَ کوم په ذريعه چې به
ئې دَ ښځې اوخاوند په مينځ کښې جدائى کوله په دې توګه چې په خپل مينځ کښې به ئې
بغض ساتلو اودا جادو کونکى دَدغه (جادو) په ذريعه چاته دَالله تعالى دَ حکم (او) ارادې نه
بغير نقصان نه شو رسولې اودې خلقو به هغه څيز زده کولو چې هغوى ته په آخرت کښې نقصان
اورسوى اونفع ورنه رسوى اوهغه جادو دې. او يقينًا دا يهوديان لَقَدْ کښې لام قسميه
دې ښه پوهيږى چاچې دا جادو اختيارکړو يائى په کتاب الله باندې بدل کړو دَهغه په آخرت
کښې به جنت کښې هيڅ حصه نشته. لَمَنْ کښې لام ابتدائيه دې چې دَ خپل ماقبل دَ عمل نه
مانع دې اومَنْ موصوله دې او يقينًا چې دَکوم څيز په عوض کښې چې هغوى خپل ځانونه خرڅ
کړل هغه ډير خراب څيز دې يعنى خرڅونکى دى. (نفسونه) يعنى دَهغوى دَ آخرت حصې ته
(خراب دې) دَهغې زده کړه ځکه چې دې زده کړې دَهغوى دَ پاره جهنم واجب کړو. يا که
چرې دې خلقو ته دَ دغې عذاب حقيقت معلوم وې دَ کوم طرف ته چې دوى روان دى نو دا
به ئې نه زده کولو اوکه چرې دې يهوديانو په نبى او قرآن باندې ايمان راوړلې وې او ګناه
ئې پريخودې وې او دَ الله تعالى نه ويريدل مثلاً (ترك) جادو ئې کولې نو دَالله تعالى دَ طرف نه
به دوى ته بهترين ثواب ملاويدلو. دَلَوْجواب محذوف دې او هغه لَأَثِيبُوا دې په کوم چې لَمَثُوبَةٌ
(په معنى ثواب) دلالت کوى اوهغه مبتداء ده او په دې کښې لام قسميه دې دَهغې نه کوم
چې هغوى دَخپل ځان دَ پاره اخستې دې. که چرې هغوى ته داخبره معلومه وه چې دا بهتردى
نو جادو له به ئې په اجر اوثواب باندې ترجيح نه ورکوله.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وَاتَّبَعُوا واؤ عاطفه دې. اِتَّبَعُوا (اِتِّبَاعٌ) دَ (افتعال) نه ماضى جمع مذکرغائب دې هغوى
اتباع اوکړه هغوى وروسته شو. دَدې عطف په نَبَذَ باندې دې. اِتَّبَعُوا کښې ضمير کوم چې دَ
فريق طرف ته راجع دې هغه دَدې فاعل دې. مَا موصوله دَ اِتَّبَعُوا مفعول دې. تتلوا الشيطين
فعل فاعل سره ملاؤشو جمله شوه صله.

**سوال:** تَتْلُوا دَمضارع صيغه ده چې په حال باندې دلالت کوى حالانکه دَ آيت دَ نزول په
وخت شيطانانو تلاوت نه کولو. ځکه چې دَ حضورپاك دَ بعثت نه پس دَ شيطانانو آسمان

نه په تلو باندې پابندی لګیدلې وه؟

**جواب:** دَ مضارع صیغه دَ حکایت حال ماضیه په توګه استعمال شوې ده لکه چې هغه معامله دغه وخت دَ سترګو په وړاندې کیدله. دَدې جواب طرف ته علامه سیوطی رحمه الله دَ تتلوا تفسیر ئې په تلت سره کولو کښې اشاره کړې ده.

**قوله:** اَوْ کَانَتْ تَسْتَرِقُ السَّمْعَ الخ، اَوْ دَ تنویع دَپاره دې. دَدې عطف په معنوی توګه باندې من السحر باندې دې او تَتْلُوْا لاندې دې اوداد اختلاف طرف ته اشاره ده یعنی شیطانانو به خلقوته جادو لوستلو اورولو. یا کومې خبرې چې به شیطانانو آسمان ته تللوسره په غلا اوریدلې هغه به ئې لوستلې اورولې به ئې.

**قوله:** علی عَهْدِسلیمان، ای فی عهدسلیمان، علی په معنی دَ فی او دا هم احتمال دې چې تتلوا په معنی د تَتَقَوَّلُ (افتراء کول) وی نوبیا به علی په خپل حال باندې وی څکه چې د تَقَوَّلَ صله علی راځی په دې صورت کښې به متعلق محذوف وی. دَدې تقدیری عبارت به داسې وی. وَاتَّبَعُوْا مَا تَتَقَوَّلُهُ الشیطینُ علی الله زَمَنَ ملكِ سلیمان او مِنَ السحر، دَ مَا بیان دې عائدبه محذوف وی تقدیر به شی تتلوهٗ.

**قوله:** لَمْ یَعْمَلِ السِّحْرَ دَدې عبارت دَ اضافه مقصد داخودل دی چې صرف دَ سحر تعلیم کفر نه دې بلکه عمل بالسحر کفر دې.

**قوله:** وَیُعَلِّمُوْنَهُمْ مَا اُنْزِلَ عَلَی الْمَلَکَیْنِ یُعَلِّمُوْنَ محذوف منلوسره ئې اشاره اوکړه چې مَا موصوله دې دَدې عطف په اَلسِّحْرَ باندې دې اودا عطف خاص علی العام دَ قبیل نه دې. لهذا د عطف الشئ علی نفسه اعتراض هم ختم شو.

**قوله:** ای اُلْهِمَاهُ، دا دَ اُنزل تفسیر دې. دَدې خبرې طرف ته اشاره ده چې د اُنزل نه دَ وحی دَ انزال طریقه مراد نه ده په کوم سره چې عظمت معلوم شی بلکه مطلقًا خودل مراد دی.

**قوله:** بِبَابِلَ، باء په معنی دَ فی ده بابل دَ یوعظیم الشان ښار نوم دې چې پخوانئی زمانه کښې دَ دریائې فرات دواړو طرفوته واقع وو فرات به دَدې په مینځ کښې تیریدو. نن هم دَهغې کنډرې موجود دی دَ دې عرض البلد شمالی ۳۲ درجې دقیقه ۴۱ ثانیه او طول البلد ۴۴ درجې ۲۳ دقیقه ۴۰ ثانیه دې. دا دَ ډیرې مودې پورې دَ عراق دارالخلافه وه اود بخت نصر دَ زمانې پورې دَ یوډیر لوئی شان اوشوکت ښار وو. دَ ۵۳۸ قبل مسیح نه پس په دې باندې داسې تباهی راغله چې دَهمیشه همیشه دَپاره دَدې خاتمه اوشوه. بابل په سحر اوساحرئی کښې ډیرمشهوردې دا دَعجمه اوعلم کیدودَ وجې نه غیرمنصرف دې.

اخفش رحمه الله وئیلی دی چې د تانیث او علمیت دَ وجې نه غیرمنصرف دې. (لغات القرآن

**قوله**: هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ، دا دَ دوو فرښتو نومونه دی علمیت او عجمه کیدودَ وجې نه غیرمنصرف دی. بعضې مفسرینو دَ دویم قرا‌ت په وجه هغوی ته انسانان وئیلی مګر راجح اول قول دې.

**قوله**: لام ابتداء مُعَلِّقَةٌ لِمَا قَبْلَهَا مِنَ العمل، لَمَنْ کښې لام ابتدائیه دې دا په مبتداء باندې داخلیږی خو که چرته په ماضی داخلیږی یا په مضارع باندې داخلیږی نو قد لفظًا یا معنًا ضروری وی. البته کوم کسان چې لام ابتداء لام قسم ګرځوي دَهغویٔ په نیز دَ لام ابتداء تصور نشته. (روح المعانی) لَمَنْ کښې لام ابتداء خپل ماقبل عَلِمُوا دَعمل نه منع کړې دې ځکه چې دَ عمل په صورت کښې دَ لام ابتداء صدارت به باطل شی.

**قوله**: حَظَّهَا، په دې کښې دَ حذف مضاف طرف ته اشاره ده. حَظَّهُمْ ای حَظَّ اَنْفُسِهِمْ.

**قوله**: اَنْ تَعَلَّمُوْهُ، مفسرعلام داجمله مقدرمنلوسره اشاره اوکړه چې مخصوص بالذم په تاویل د مصدرکیدو سره محذوف دې لهذا دا اعتراض ختم شو چې مَا په معنی شیئًا کیدودَ وجې نه نکره ده دَکوم دَ وجې نه چې مخصوص بالذم نه شی واقع کیدې ځکه چې دَ مخصوص معرفه کیدل ضروری وی. دَدې جواب ورکړې شو چې مَا د شیئًا په معنی کښې کیدوسره په بئس کښې مستتر، د هُوَ ضمیر فاعل تمیزدې او مخصوص بالذم، اَنْ تَعَلَّمُوْا محذوف دې.

**قوله**: حَقِيْقَةَ مَا يَصِيْرُوْنَ اِلَيْهِ الخ، دَدې عبارت د اضافې مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: په سابق کښې وَلَقَدْ عَلِمُوْا نه معلومیږی چې هغوی ته علم دې او لوکانوایعلمون نه معلومیږی چې هغوی ته علم نشته. په دواړو کښې تضاد معلومیږی؟

**جواب**: یعنی دَالله تعالی عذاب پیژنی مګر دَ عذاب حقیقت او دَ هغې سختی نه پیژنی. لهذا اوس هیڅ تنافی نشته هم ددې سوال دَ جواب دَپاره مفسرعلام د حقیقة ما یصیرون اضافه کړې ده.

**قوله**: مَا تَعَلَّمُوْهُ دا دَ لوکانوا یعلمون جواب محذوف دې.

**قوله**: جَوَابُ لَوْ محذوف دا هم دَ یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دَ لَوْدَ جواب فعل ماضی کیدل ضروری دی او دلته لَمَثُوْبَةٌ جمله اسمیه جواب واقع کیږی کوم چې صحیح نه دې.

**جواب**: دَ لَوْجواب لمثوبة نه دې بلکه جواب محذوف دې او هغه لأثيبوا دې او په دې حذف

باندې لَمَثُوبَةٌ دلالت کوي.

**قوله**: لَمَا آثَرُوهُ، دا د لوکانوایَعْلَمُوْنَ جواب محذوف دي. (والله اعلم بالصواب)

**[ایاتونه: ۱۰٤-۱۰۸]**

{يَاأيهاالَّذِينَ آمَنُوالَاتَقُولُوا} لِلنَّبِيّ {رَاعِنَا} أمْر مِنَ الْمُرَاعَاة وَكَانُوا يَقُولُونَ لَهُ ذَلِكَ وَهِيَ بِلُغَةِ الْيَهُود سَبّ مِنَ الرُّعُونَة فَسُرُّوا بِذَلِكَ وَخَاطَبُوا بِهَا النَّبِيّ فَنُهِيَ الْمُؤْمِنُونَ عَنْهَا {وَقُولُوا} بَدَلهَا {انْظُرْنَا} أيْ انْظُرْ إلَيْنَا {وَاسْمَعُوا} مَا تُؤْمَرُونَ بِهِ سَمَاع قَبُول {وَلِلْكَافِرِينَ عَذَاب أَلِيم} مُؤْلِم هُوَ النَّار {مَا يَوَدّ الَّذِينَ كَفَرُوامِنْ أَهْل الْكِتَاب وَلَا الْمُشْرِكِينَ} مِنَ الْعَرَب عُطِفَ عَلَي أَهْل الْكِتَاب وَمِنْ لِلْبَيَانِ {أَنْ يُنَزَّل عَلَيْكُمْ مِنْ} زَائِدَة {خَيْر} وَحْي {مِنْ رَبّكُمْ} حَسَدًا لَكُمْ {وَاللَّه يَخْتَصّ بِرَحْمَتِهِ} نُبُوَّته {من يشاءوالله ذوالفضل العظيم} وَلَمَّا طَعَنَ الْكُفَّار فِي النَّسْخ وَقَالُوا إنَّ مُحَمَّدًا يَأْمُر أَصْحَابه الْيَوْم بِأَمْرٍ وَيَنْهَى عَنْهُ غَدًا نَزَلَ {مَا} شَرْطِيَّة {نَنْسَخ مِنْ آيَة} أَيْ نُزِلْ حُكْمهَا إمَّا مَعَ لَفْظهَا أَوْ لَا وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ النُّون مِنْ أَنْسَخ اي نامرك او جبريل بنسخها {أوننسأها} نُؤَخِّرهَا فَلَا نُنْزِل حُكْمهَا وَنَرْفَع تِلَاوَتهَا أَوْ نُؤَخِّرهَا فِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ وَفِي قِرَاءَة بِلَا هَمْز مِنَ النِّسْيَان أَيْ نُنْسِكهَا أَيْ نَمْحُهَا مِنْ قَلْبك وَجَوَاب الشَّرْط {نَأْتِ بِخَيْرٍ مِنْهَا} أَنْفَع لِلْعِبَادِ فِي السُّهُولَة أَوْ كَثْرَة الْأَجْر {أَوْ مِثْلهَا} فِي التَّكْلِيف وَالثَّوَاب {أَلَمْ تَعْلَم أَنَّ اللَّه عَلَى كُلّ شَيْء قَدِير} وَمِنْهُ النَّسْخ وَالتَّبْدِيل وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ {أَلَمْ تَعْلَم أَنَّ اللَّه لَهُ مُلْك السَّمَاوَات وَالْأَرْض} يَفْعَل مَا يَشَاء {وَمَا لَكُمْ مِنْ دُون اللَّه} أَيْ غَيْره {مِنْ} زَائِدَة {وَلِيّ} يَحْفَظكُمْ {وَلَا نَصِير} يَمْنَع عَنْكُمْ عَذَابه إنْ أَتَاكُمْ وَنَزَلَ لَمَّا سَأَلَهُ أَهْل مَكَّة أَنْ يوسعها ويجعل الصفا ذهبا {أم} بل أ {تُرِيدُونَ أَنْ تَسْأَلُوا رَسُولكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَى} أَيْ سَأَلَهُ قَوْمه {مِنْ قَبْل} مِنْ قَوْلهمْ أَرِنَا اللَّه جَهْرَة وَغَيْر ذَلِكَ {وَمَنْ يَتَبَدَّل الْكُفْر بِالْإِيمَانِ} أَيْ يَأْخُذهُ بَدَله بِتَرْكِ النَّظَر فِي الْآيَات وَاقْتِرَاح غَيْرهَا {فَقَدْ ضَلَّ سَوَاء السَّبِيل} أَخْطَأَ الطَّرِيق الْحَقّ وَالسَّوَاء فِي الْأَصْل الوسط

**ترجمه**: اې د ایمان والو! تاسو نبي ته راعنا مه وایئ (رَاعِنَا) د مُرَاعَاةٌ نه د امر صیغه ده. صحابه کرامو ﷺ به رسول الله ﷺ ته دالفظ وئیلو اودا (لفظ) د یهودو په ژبه کنځل دی. د رَعُوْلَة نه مشتق دی یهودیان به په دې سره خوشحالیدل او پخپله به ئې په دې کلمه سره (رسول الله ﷺ) ته خطاب کولو. مؤمنان د دې کلمې د وئیلو نه منع کړې شو او د دې په ځائې انظرنا وایئ یعنې زمونږ خیال ساتئې او په توجو سره اورئې د کومې خبرې حکم چې درکړې شي د عمل په نیت سره اود کافرانو د پاره دردناک عذاب دې تکلیف ورکونکي اوهغه اور دې. دې خلقو چاچې د حسد د وجې نه (د حق دعوت قبلولونه) انکار او کړو، که اهل کتاب وي او که مشرکان د عربو داخبره نه خوښوي چې تاسو لره ستاسو د رب د طرف نه څه خیر (مثلاً) وحی نازل شي. (ولا المشرکین عطف) په اهل الکتاب باندې دې او

مِن بیانیه دي. (مِن خَیرٍ) کښې مِنْ زائده دي او الله تعالی چاته چې غواړي خپل رحمت (یعنی نبوت دپاره خاص کوی او الله تعالی دَ ډیرلوئی فضل والا دې. اوکله چې کافرانو په نسخ کښې پیغور اوکړو او وئې وئیل چې محمد ﷺ خپلو ملګروته نن د یوې خبرې حکم ورکوی نو بله ورځ ئې دَهغې نه منع کوی. نو دا آیت نازل شو مونږچې کوم آیت منسوخ کړو یعنی دَهغې حکم ختم کړو ماشرطیه دي یا خو سره دَ لفظ (یعنی تلاوت اوحکم دواړه) یابغیردَ لفظ (صرف حکم) او په یوقراءت کښې نُنسِخ، اَلنَّسخ سره دَ نون په ضمه سره دې. یعنی تاسوته یا جبرئیل ته دَدې نسخ حکم ورکوی یادا مؤخر کړو نومونږ دَهغې حکم ختم (منسوخ) کوو نه اودَ هغې تلاوت اوچتوو یا هغه په لوح محفوظ کښې مؤخر (موقوف) کوو. او په یوقراءت کښې بغیردَ همزه دي (نُنسِهَا) دَ نسیان نه مشتق دې. او دا به مونږ ستادَ زړه نه ختم کړو او جواب شرط، نَأتِ بِخَیرٍ مِنهَا دي نو مونږ دَهغې نه بهتر راوړو. (یعنی) کوم چې دَ بندیګانو دَپاره (عملاً) دَ سهولت په اعتبار سره یا دَ کثرت اجر په اعتبارسره زیات نفع ورکونکې وی یا په تکلیف او اجرکښې هم دَدې برابر وی. آیا تاسو نه پوهیږئ چې الله تعالی په هرڅیز باندې قادر دې. هم دَدې نه نسخ اوتبدیل هم دي او استفهام دَتقریردپاره دې آیا تاسو نه پیژنئ چې دَ زمکې او آسمان فرمانروائی هم دَالله تعالی دَپاره دې په دې کښې چې کوم (تصرف) غواړی اودَ الله تعالی نه سوا نه ستا څوک مولی شته چې ستاسو حفاظت اوکړی اونه مددګار، چې تاسونه عذاب منع کړې شی. که چرې په تاسو راشی (مِنْ غَیرِه) کښې من زائده دي او چې کله اهل مکه دَ حضورپاك نه دا سوال اوکړو چې (غرونه اخوا کړه) او مکه کښې وسعت اوکړه اودَ صفا(غر) دَ سرو زرو جوړکړه نودا آیت نازل شو چې تاسو دَ خپل رسول نه داسې سوال کول غواړئې لکه چې سابق کښې دَحضرت موسی علیه السلام نه کړې شوې دې یعنی دَهغه قوم دَهغوی نه سوال اوکړو مثلاً دَهغوی دا سوال چې مونږ ته الله تعالی په خپلو سترګو اوښایه وغیره (واؤرئې) چاچې ایمان په کفربدل کړو یعنی ایمان ئې پریخودو کفرئې اختیارکړو په واضحه آیاتونوکښې غور اوفکر پریخودو اودَ هغه آیاتونو نه دَ علاوه په کوشش کښې لګیاشو نوهغوی دَ نیغې لارنه واوښتل یعنی دَحق لار نه خطا شو او سَوَاءَ په اصل کښې وسط د شئ ته وائی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لَا تَقُولُوا رَاعِنَا، راعِ، مُرَاعَاةٌ (مفاعلة) نه دَ امر واحد مذکرحاضر صیغه ده نَا ضمیر مفعول دي زمونږ خیال اوساتئ، مونږ سره رعایت اوکړئ. په عبرانی ژبه کښې راعن بې وقوف ته وائی دا دَ رعونت نه مشتق دي دَ کوم معنی چې حمق ده الف دَ ندا دي اې بې وقوف، راعی ګډبه ته هم وائی یهودو به دَ تحقیر او استهزاء په توګه ژبې له زور ورکړو

او کله به ئې رَاعِنَا وئيل نو رَاعِيْنَا به کيدلو دکوم معنی چې زمونږ ګڼبه ده.

**قوله**: أَنْظُرْإِلَيْنَا، مفسرعلام دَ أنظرنا تفسيرپه أُنظر إِلَيْنَا سره کولوکښې دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چې کلام په حذف سره دې په دې سره دَ اعتراض جواب هم اوشو چې أُنظر لازم دې اودلته متعدی استعمال شوې دې ځکه چې نَا دَ دې مفعول ذکرکړې شوې دې او په هغه خلقو باندې هم رد اوشو چې أُنظر دَ انتظرنا په معنی کښې اخلی. (ترويح الارواح)

**قوله**. مَاتُؤْمَرُوْنَ په دا دَ حذف مفعول طرف ته اشاره ده.

**قوله**: مَايَوَدُّ مَا نافيه يَوَدُّمَوَدَّةٌنه جمع مذکرغائب مجزوم، تمنا به کوی خواهش به کوی.

**قوله**: من العرب من العرب دَ اضافه مقصد يواعتراض رفع کول دی.

**اعتراض**: اهل الکتاب هم مشرکان وو په هغوی باندې دَ ولاالمشرکين عطف اوکړې شو دا عطف الشئ على نفسه دې.

**جواب**: دَ مشرکين نه غيراهل کتاب مشرکان مراد دی کوم چې عرب دی.

**قوله**: ان ينزل: دا ديود معفول دې.

**قوله**: مَاشرطية مَا دَ ننسخ مفعول مقدم دې او شرطيه نه چې موصوله دَدې په صله کښې دَ ضمير ضرورت وی.

**قوله**: نُزِلَ حُکْمهَادا دَ من آية صفت دې.

**قوله**: إِمَّا مَعَ لَفْظِهَا أَوْلاَيعنی کله صرف حکم منسوخ کيږی اوتلاوت باقی پاتې کيږی او کله حکم او تلاوت دواړه منسوخ کولې شی.

**قوله**: اوجبرئيل دَ جبرائيل عطف تَأْمُرَکُمْ په کاف باندې دې يعنی مونږ دَ نسخ حکم حضورپاك ته يا جبرئيل عليه السلام ته کوو. (ترويح الارواح)

**قوله**: نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ، نَنْسَخْ جمع متکلم مضارع مجزوم (ف) نَسْخًا ورانول، ختمول.

**قوله**: نُنْسِهَا دا إِنْسَاءٌ (افعال) نه جمع متکلم مضارع ده، هَا مفعول به دی، اصل کښې نُنْسِيهَا مونږ هغه هيره وو.

**قوله**: وفی قراءة بلاهمزدې نه معلوميږی چې دَ مفسرعلام په وړاندې دَ قرآن کريم چې کومه نسخه ده هغه نَنْسَأْهَا سره دَ همزه والا ده هم په دې وجه ئې اوفرمائيل بلاهمز، زمونږ مخې ته چې کومه نسخه ده او دلته زمونږ په اطرافوکښې هم دغه نسخه رائج ده اوهغه هم بلاهمزه والا ده. نَنْسَأْهَا دا نَسْأٌنه ماخوذ دې دَدې معنی ده مؤخرکول، وئيلې شی نَسَأَ اللهُ فِیْ أَجَلِه الله تعالی دَهغه عمر روستوکړو، يعنی عمرئې زيات کړو دا دَهمزه والا دَ

قراءت تفسیر دې. (لغات القران)

**قوله**: أَوْنُنْسِكَهَا كه چرې نُنْسِهَا دَ نسيان نه وى نو متعدى به يو مفعول ته شى يعنى مونږ دا هيره وو اوكه دَ إِنْسَاءٌ نه ماخوذ وى نو متعدى په دو مفعولو وى. ځكه چې انساء متعدى بدو مفعول دې يو مفعول نُنْسِكَهَا كښې ضمير خطاب كاف دې. او دويم مفعول هَا ضمير دې كوم چې دَ آيت طرف ته راجع دې. مونږ تاته هغه آيت هيره وو مفسرعلام وَنَمْحُهَا مِنْ قَلْبِكَ اضافه كولوسره هم دې معنى طرف ته اشاره كړې ده.

**فائده**: كه چرې مفسرعلام في قراءة بلاهمز په ځائې وفى قراءة بضم النون والسين ونيلى وې نو مراد به زيات واضحه كيدو ځكه چې دَمفسرعلام په عبارت كښې دَ يوبل قراءت هم احتمال دې كوم چې فاسد دې اوهغه تَنْسَهَا بفتح النون والسين دې. دا صورت لفظًا اومعنًا دواړه شان فاسد دې. لفظًا خو په دې وجه چې دا قراءت منقول نه دې معنًا داسې چې دا د الله تعالى نه د صدور نسيان مقتضى دې.

**قوله**: مِنَ النِّسْيَانِ بهتر به وې چې من الانساء ئې ونيلې وې ځكه چې دَ رباعى مصدر كوم چې زير بحث دې إِنْسَاءٌ دې نه چې نسيان. (جمل)

**[اياتونه: ۱۰۹-۱۱۲]**

{وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ} مَصْدَرِيَّة {يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا} مَفْعُول لَهُ كَائِنًا {مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ} أَيْ حَمَلَتْهُمْ عَلَيْهِ أَنْفُسهمْ الْخَبِيثَة {مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ} فِي التَّوْرَاة {الْحَقّ} فِي شَأْن النَّبِيّ {فَاعْفُوا} عَنْهُمْ أَيْ اُتْرُكُوهُمْ {وَاصْفَحُوا} أَعْرِضُوا فَلَا تُجَازُوهُمْ {حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ} فِيهِمْ مِنْ الْقِتَال {إِن الله على كل شيء قدير} {وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنْفُسِكُمْ مِنْ خَيْرٍ} طَاعَة كَصِلَةٍ وَصَدَقَة {تَجِدُوهُ} أَيْ ثَوَابه {عِنْدَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ {وَقَالُوا لَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ كَانَ هُودًا} جَمْع هَائِد {أَوْ نَصَارَى} قَالَ ذَلِكَ يَهُود الْمَدِينَة وَنَصَارَى نَجْرَان لَمَّا تَنَاظَرُوا بَيْن يَدَيْ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْ قَالَ الْيَهُود لَنْ يَدْخُلهَا إِلَّا الْيَهُود وَقَالَ النَّصَارَى لَنْ يَدْخُلهَا إِلَّا النَّصَارَى {تِلْكَ} الْقَوْلَة {أَمَانِيُّهُمْ} شَهَوَاتهمْ الْبَاطِلَة {قُلْ} لَهُمْ {هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ} حُجَّتكُمْ عَلَى ذَلِكَ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِيهِ {بَلَى} يَدْخُل الْجَنَّة غَيْرهمْ {مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ} أَيْ انْقَادَ لِأَمْرِهِ وَخَصَّ الْوَجْه لِأَنَّهُ أَشْرَف الْأَعْضَاء فَغَيْره أَوْلَى {وَهُوَ مُحْسِنٌ} مُوَحِّد {فَلَهُ أَجْرُهُ عِنْدَ رَبِّهِ} أَيْ ثَوَاب عَمَله الْجَنَّة {وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَة

**ترجمه**: او په اهل كتابو كښې اكثر داغواړى لَوْمصدريه دې چې په څه شان باندې تاسو دَ ايمان نه كفر طرف ته راؤګرځوى. دَ هغه حسد دَ وجې نه كوم چې پخپله هم دَهغوى دَ طرف نه دې. حَسَدًا

مفعول له دې. (يعنى بغير د څه وجې) په حسد باندې دَهغوى خبيث نفس تيار كړى دى دَدې باوجود چې په تورات كښې دَ نبى په بابت په هغوى حق ښكاره شوې دې (دَدې باوجود) ته دَعفو اومعافئى نه كاراخله او سترګې ترې اړه وه اودَهغوى نه بدله مه اخله. ترهغه وخته پورې چې هغوى سره دَ جنګ كولو حكم پخپله دَالله تعالى دَ طرف نه راشى بيشكه هغه په هرڅيزباندې قادردې. مونځ قائمه وئى او زكوة وركوئى اودَخپل ځان دَپاره چې كومه نيكى مثلاً مونځ صدقه تاسو وړاندې اوليګئى نو تاسو به هغه يعنى دَهغې اجرالله تعالى سره بيامومئى. څه چې تاسو كوئى هغه دَالله تعالى په نظركښې دى هغه به دَدې تاسو ته اجر دركوى. دَهغوى وينا ده چې جنت دَ يهودو اونصارى نه علاوه به هيڅوک نه ځى. هُود. دَ هَائِد جمع ده. دا خبره دَ مدينې يهودويانو اودَ نجران نصارىٰ هغه وخت اوكړه كله چې دغه دواړو فريقو دَرسول الله ﷺ په وړاندې مناظره اوكړه. يهودو اووئيل دَ يهودونه علاوه به بل څوك جنت ته نه ځى او نصارىٰ اووئيل دَ نصارىٰ نه علاوه به بل څوك جنت ته نه ځى. دا خبرې دَ هغوى ارزوګانې دى. (يعنى باطل خواهشات دى) تاسو هغوى ته اووايئى چې په دې خبره باندې خپل دليل پيش كړئى كه چرې تاسو په دې دعوىٰ كښې رښتونى يئې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وَدَّ ماضى واحدمذكر غائب (س) مصدر وَدًّمَوَدَّةً غوښتنه، ارزوكول.

**قوله:** لَوْمَصْدَرِيَّة لَوْ حرف مصدرى دې كله چې دَ فعل نه پس واقع كيږى نو دَ تمنى په معنى كښې استعماليږى. تقديرى عبارت دادې وَدَّكَثِيْرٌرَدَّكُم الخ رَدَّ چونكه دَ صَيَّرَ په معنى كښې دې دوو مفعولونو ته نصب وركوى، مفعول اول كُم دې او ثانى كُفَّارًا دې.

**قوله:** كَائِنًا مِن عِنْدِاَنْفُسِهِمْ مفسر علام كَائِنًا مقدرمنلو سره اشاره اوكړه چې مِنْ عِنْدِاَنْفُسِهِمْ د كَائِنًا محذوف متعلق كيدوسره دَحَسَدًا صفت دې.

**قوله:** مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ، مِنْ بعدِ د وَدَّ سره متعلق دې. اومَا مصدريه دى اى بَعْدَتَبيُّنِ الحقِ لَهُمْ.

**قوله:** هُوْدٌجمع هَائِدٍ، هَائِد په معنى د تائب ابتداءً به هغه سړى ته هائد وئيلې كيدو چا چې دَ سخى دَ عبادت نه توبه كړې وه. روستو دَ پوره قوم دَپاره دَ علم په توګه استعماليدو. په دې كښې دَ يواعتراض دَ جواب طرف ته هم اشاره ده.

**اعتراض:** مَنْ كَانَ هودًا، كَانَ كښې ضمير مفرد دكان اسم او هُوْدًا دَ كَان خبردې كوم چې جمع دې حالانكه په اسم اوخبر كښې مطابقت ضرورى دې.

**جواب:** دَ كَان اسم مفرد راوړلوكښې لفظ د مَنْ رعايت كړې شوې دې او هُوْدًا جمع راوړلوكښې دَ مَنْ دَ معنې رعايت كړې شوې دې په دَې كښې هيڅ قباحت نشته.

**[اياتوله: ۱۱۳-۱۱۶]**

{وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ} مُعْتَدٍّ بِهِ وَكَفَرَتْ بِعِيسَى {وَقَالَتِ النَّصَارَىٰ لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلَىٰ شَيْءٍ} مُعْتَدٍّ بِهِ وَكَفَرَتْ بِمُوسَى {وَهُمْ} أَيِ الْفَرِيقَانِ {يَتْلُونَ الْكِتَابَ} الْمُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ وَفِي كِتَابِ الْيَهُودِ تَصْدِيقُ عِيسَى وَفِي كِتَابِ النَّصَارَى تَصْدِيقُ مُوسَى وَالْجُمْلَةُ حَالٌ {كَذَٰلِكَ} كَمَا قَالَ هَؤُلَاءِ {قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ} أَيِ الْمُشْرِكُونَ مِنَ الْعَرَبِ وَغَيْرِهِمْ {مِثْلَ قَوْلِهِمْ} بَيَانٌ لِمَعْنَى ذَٰلِكَ أَيْ قَالُوا لِكُلِّ ذِي دِينٍ لَيْسُوا عَلَى شَيْءٍ {فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ} مِنْ أَمْرِ الدِّينِ فَيُدْخِلُ الْمُحِقَّ الْجَنَّةَ وَالْمُبْطِلَ النَّارَ {وَمَنْ أَظْلَمُ} أَيْ لَا أَحَدَ أَظْلَمُ {مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ} بِالصَّلَاةِ وَالتَّسْبِيحِ {وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَا} بِالْهَدْمِ أَوِ التَّعْطِيلِ نَزَلَتْ إِخْبَارًا عَنِ الرُّومِ الَّذِينَ خَرَّبُوا بَيْتَ الْمَقْدِسِ أَوْ فِي الْمُشْرِكِينَ لَمَّا صَدُّوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ عَنِ الْبَيْتِ {أُولَٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ} خَبَرٌ بِمَعْنَى الْأَمْرِ أَيْ أَخِيفُوهُمْ بِالْجِهَادِ فَلَا يَدْخُلُهَا أَحَدٌ آمِنًا {لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ} هَوَانٌ بِالْقَتْلِ وَالسَّبْيِ وَالْجِزْيَةِ {وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ} هُوَ النَّارُ وَنَزَلَ لَمَّا طَعَنَ الْيَهُودُ فِي نَسْخِ الْقِبْلَةِ أَوْ فِي صَلَاةِ النَّافِلَةِ عَلَى الرَّاحِلَةِ فِي السَّفَرِ حَيْثُمَا تَوَجَّهَتْ {وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ} أَيِ الْأَرْضُ كُلُّهَا لِأَنَّهُمَا نَاحِيَتَاهَا {فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا} وُجُوهَكُمْ فِي الصَّلَاةِ بِأَمْرِهِ {فَثَمَّ} هُنَاكَ {وَجْهُ اللَّهِ} قِبْلَتُهُ الَّتِي رَضِيَهَا {إِنَّ اللَّهَ وَاسِعٌ} يَسَعُ فَضْلُهُ كُلَّ شَيْءٍ {عَلِيمٌ} بِتَدْبِيرِ خَلْقِهِ {وَقَالُوا} بِوَاوٍ وَبِدُونِهَا الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى وَمَنْ زَعَمَ أَنَّ الْمَلَائِكَةَ بَنَاتُ اللَّهِ {اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا} قَالَ تَعَالَى {سُبْحَانَهُ} تَنْزِيهًا لَهُ عَنْهُ {بَلْ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} مِلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا وَالْمِلْكِيَّةُ تُنَافِي الْوِلَادَةَ وَعَبَّرَ بِمَا تَغْلِيبًا لِمَا لَا يَعْقِلُ {كُلٌّ لَهُ قَانِتُونَ} مُطِيعُونَ كُلٌّ بِمَا يُرَادُ مِنْهُ وَفِيهِ تَغْلِيبُ الْعَاقِلِ

**ترجمه:** يهوديان وائي نصارى سره هيڅ نشته يعنى هيڅ معتدبه څيزنشته، اودَ حضرت عيسىٰ علیہ السلام دَ (نبوت) منكر دى. او نصارى وائي چې يهوديانوسره هيڅ نشته يعنى هيڅ معتدبه څيزنشته. اودَ حضرت موسىٰ علیہ السلام دَ (نبوت) منكردى. حالانكه دا دواړه فريقه كتاب لولى اودَ يهودو كتاب (تورات) كښې دَ عيسىٰ علیہ السلام (دَنبوت) تصديق موجود دې اودَ نصارىٰ كتاب (انجيل) كښې دَ موسىٰ علیہ السلام دَ (نبوت) تصديق موجود دې. او جمله (وَهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتَابَ) حال دادې اولكه څنګه خبره چې دا (دواړه) فريق كوى دغه شان خبره بې علم خلق هم كوى يعنى مشركين عرب وغيره. (مِثْلَ قَوْلِهِمْ) د ذلك دَمعنى بيان دې يعنى دغه (مشركانو) دَ (آسمانى) دين والونه دَ هريوباره كښې وئيلي چې هغوى سره هيڅ نشته. دَ قيامت په ورځ به الله تعالى دَ دين په معامله كښې دَهغوى دَاختلاف فيصله كوى. په داسې توګه چې اهل حق به جنت ته او اهل باطل به دوزخ كښې داخلوى. اودَدې نه زيات به لوئى ظالم څوك وى؟ يعنى دَهغوى نه زيات لوئى ظالمان څوك نشته چې دَالله تعالى په جماتونو(دَ

عبادت ځايونو) کښې دَ الله تعالی دَ نوم مونځ او تسبيح نه منع کړی اودَ هدم اوتعطيل په ، ذريعه دَهغې ورانولوپسې لګيدلې وی. (دا آيت) دَ هغه روميانو خبر ورکولوپاره کښې نازل شو کومو چې بيت المقدس وران کړو يادَ مشرکانو باره کښې نازل شوې چې حضورپاك ﷺ ئې دَ(صلح) حديبيه په کال دَ بيت الله نه منع کړلو. هغوی له خو پکاردی چې په دې کښې خو قدم هم کښې نه ايږدی مګر په ويره سره، خبر په معنی دَ امر دې يعنی هغوی دَ جهاد په ذريعه (داسې) اوويره وئې چې څوك په دې کښې بې ويرې داخل نه شی. دَهغه خلقو دَپاره په دنياکښې رسوائی ده. دَ قتل قيد اوجزيئې په ذريعه اودَ هغوی دَپاره په آخرت کښې لوئی عذاب دې (او) هغه اور دې او (راتلونکې آيت) هغه وخت نازل شو کله چې يهوديانو دَ تحويل قبله باره کښې، يا په سفرکښې په سورلئ باندې کوم طرف ته چې دَ سورلئ رخ وی دَ نفل مونځ کولوباره کښې پيغور اوکړو، مشرق اومغرب ټول هم دَ الله تعالی دَپاره دی يعنی پوره زمکه، ځکه چې دواړه (مشرق او مغرب) هم دَ زمکې دوه غاړې دی تاسو دَهغه په حکم باندې په مونځ کښې چې کوم طرف ته هم مخ کړئی هم هغه طرف ته دَ الله تعالی مخ دې يعنی دَهغه قبله ده چې دَهغه خوښه ده. بيشکه الله تعالی دَ ډير وسعت والا دې چې دَهغه فضل هرشئ باندې حاوی دې اودَ خپل مخلوق دَ تدبير نه واقف دې (وقالوا کښې) دَ واؤ او بغير واؤ دواړه صورتونه دی او يهوديان، نصاری او هغه خلقودَپاره چې دَ الله تعالی دَپاره دَ لونړو کيدو عقيده لری وينا ده چې دَالله تعالی اولاد شته. الله تعالی دَ اولاد نه خپله پاکی بيانولو سره اوفرمائيل هغه پاك دې (دَاولادنه) بلکه چې څه په آسمانونوکښې دی اوڅه په زمکوکښې دی هغه هم دَهغه دی يعنی هم دَ هغه ملك دې او هم دَهغه مخلوق دې اوهم دَهغه مملوك دې او ولادت دَ ملکيت منافی دې او غير ذوی العقول ته غلبه ورکولوسره په مَا سره تعبير کړو ټول په ټول دَهغه حکم منونکی دی يعنی هرشئ دَدې مقصددَپاره دَ هغه تابع فرمان دې کوم چې هغې نه مطلوب دې او په هغې کښې ذوی العقول ته غلبه ده.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ، كذلِكَ اى مِثْلَ ذلكَ الَّذِىْ سَمِعْتَ په کاف په محل دَ نصب کښې دې يا خودَدې دَپاره چې مصدردَمحذوف صفت دې کوم چې دَافاده حصر دَپاره مقدم کړې شوې دې. اى قولاً مِثْلَ ذٰلِكَ القول بِعَيْنِه لَا قَوْلاً مغايراً له.

**قوله**: وغيرُهم، غيرُهم رفع سره دَدې عطف په مشرکون باندې دې نه چې په عرب باندې يعنی دَ مشرکينونه علاوه دَ نورو کافرانوهم دغه وينا وه.

**قوله**: بَيَانٌ لمعنى ذٰلِكَ يعنى مثلَ قولهم، كذلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ بدل دې.

**قوله**: لَيْسُوْا، دَ لَيْسُوْا جمع ضمير دَ كل طرف ته په اعتبارد معنى راجع دي.

**قوله**: وَمَنْ اَظْلَمُ، مَنْ مبتداء محلاً مرفوع دي. اَظْلَمُ اسم تفضيل دَدې خبردې. استفهام انكارى دي اى لا احدٌ اَظْلَمُ منه.

**سوال**: دلته په قدرتي توګه يو سوال پيدا كيږي هغه دا چې فَمَنْ اَظْلَمُ كلمه په قرآن كښې باربار راغلې ده مثلاً وَمِنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ افْتَرٰى، وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ، فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللهِ، وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ په دې كښې دهريو تقاضا دَ حصر ده چې په دې كښې ذكرشوى نه لوئى ظالم نشته نو بيا دوئم فريق دَ هغه بل نه څنګه لوئى ظالم كيدې شى؟ يعنى اظلميت سره چې كله يوفريق متصف شو نو اوس دويم فريق دَ اظلميت صفت سره متصف كول څنګه صحيح دى؟

**جواب**: هريودَخپلې صلې دَمعنې په اعتبارسره خاص دې. مثلاً كَأَنَّهٗ قَالَ لَا اَحَدَ مِنَ الْمَانِعِيْنَ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ ولا احدٌ مِنَ الْمُفْتَرِيْنَ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللهِ، ولا احدٌ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ وعلى اللهِ على هذا القياس.

**قوله**: مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ، مَسٰجِدَ اللهِ، دمَنَعَ مفعول اول دې او اَنْ يُّذْكَرَ په تاويل د مصدر كيدو سره مفعول ثانى دې. مَسَاجِد دَ مسجدَ جمع ده، دَ سجدې كولوځائى، دَ قاعدې مطابق، مَفْعَلُ په وزن باندې مَسْجَدُ كيدل پكاروو څكه چې دَ كوم مضارع مرفوع العين وى دَهغې ظرف مكان مَفْعَلُ په وزن باندې راځى. دلته خلاف قياس دَ جيم په كسره سره دې.

سوال: مَسَاجِدَ جمع ولې راوړې شوې دې؟ اومراد بيت المقدس دې څكه چې بيت المقدس ته رومى بادشاه بخت نصر مجوسى منهدم كړې وو، يا مراد مسجد حرام دې چې مشركان دَ مكې حضورپاك ﷺ دَ صلح حديبيه په كال دَ عمرې نه منع كړې وو.

جواب: مذكوره دواړه مساجد چونكه ټولو نه اهم او بابركت وى، ددې نه منع كول يا دا ويرانول ګويا داسې دى لكه چې ټول مساجد څوك ويران كړى.

سوال: مَنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ كښې د مَنَعَ نسبت مساجد طرف ته كړې شوې دې حالانكه حقيقت كښې داممنوع خلق دى.

جواب: دَ مانعين فعل چونكه مسجدسره متعلق وو مثلاً په جماتونو كښې ګندګى وغيره اچول يا دا منهدم كول دَدې دَپاره دَ منع نسبت مساجد طرف ته كړې شوې دې.

**قوله**: اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ په دې كښې دَ اعراب په اعتبارسره څلور صورتونه ممكن دى.

① مَنَعَ مفعول ثانى دې كما تقول مَنَعْتُهٗ كذا ② مَنَعَ مفعول له دې، اى مَنَعَ كَرَاهَةَ اَنْ يُّذْكَرَ بِاَمْنَهٖ

دخول مساجدالله ③ د مَسَاجِدَالله نه بدل الاشتمال دي، اى مَنَعَ ذِكْرَاسمه فِيْهَا ④ حذف حرف جر دَوجې نه منصوب دې، اى مَنَعَ مَسَاجِدَالله مِن اَنْ يُذْكَرَ.

**قوله**: بالهدم أو التعطيل، هدم نه دَ بيت المقدس طرف ته اشاره ده دَدې د وجې چې دا بخت نصر مجوسى وران كړې وۀ اود تعطيل نه مسجد حرام طرف ته اشاره ده ځكه چې دَمكې مشركانو حضورپاك ﷺ منع كړې وو لكه چې مسجدحرام معطل او وران كړې شوې وو، أوْ د تنويع دَپاره دې نه چې دَ ترديد دَپاره.

**قوله**: فِيْ خَرَابِهَا ابوالبقاء وئيلى دى چې خَرَاب اسم مصدر په معنى د تخريب دې. خپل مفعول طرف ته مضاف دې لكه چې سَلَام په معنى تسليم، او بعضې حضراتووئيلى دى چې دَخَرِبَ مصدردې كوم چې خَرِبَ بالمكان نه مشتق دې. يعنى دا نى بغيردَ خيال ساتلو پريخودو دې دَپاره چې هغه پخپله ويرانه ويجاړ شى.

**قوله**: خبر بمعنى الامر يعنى دا جمله لفظًا خبريه او معنىً انشائيه ده. ددې اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: ان لَا يَدْخُلُوْهَا اِلَّا خَآئِفِيْنَ كښې خبر وركړې شوې دې چې تخريب كار په بيت المقدس كښې په ويره سره داخل شو حالانكه هغوى خو ډير بې ويرې په بيت المقدس كښې داخل شوى وو او دَ يوكال نه هم زيات قابض پاتې شو او البته مسلمانان په بيت المقدس كښې دَ الله تعالى نه په ويره سره دَ سلطان صلاح الدين په زمانه كښې داخل شو.

**جواب**: دادې چې داخبر په معنى دَ امردې يعنىٰ دوئ ته حكم وركولې شى چې بيت المقدس كښې دَ الله تعالى په ويره سره داخل شئى. (جمل) خودا جواب خوښ كړې شوې نه دې ځكه چې په دې كښې تعبير په كان سره دې. بيضاوى وئيلى دى چې دَدې آيت مقصد جمات كښې دَ داخليدو اجازت وركولونه منع ده. (معناه النهى عن تمكينهم من الدخول فى المسجد) (جمل)

**قوله**: اخيفوهم بالجهاد يعنى مونږ ته الله تعالى حكم راكړې دې چې مسجد حرام او بيت المقدس كښې ددوئ داخليدل په ذريعه دَ جهاد منع كړئى. (صاوى) اوداهم كيدې شى چې لفظًا اومعنىً جمله خبريه وى اومطلب دا وى چې الله تعالى دَرسول الله ﷺ اودَ حضرت عمر ﷺ په زمانه كښې د پيښيدونكوحالاتو خبر وركړې وى. (هو اقرب) (صاوى)

**قوله**: مُطِيْعُوْنَ كُلٌّ بِمَا يُرَادُ مِنْهُ يعنى دَ مخلوق هريوكس دَدې مقصود تابع دې كوم چې د هغه نه مطلوب دې. بِمَا كښې باء په معنى دَ لام ده.

[ایاتونه: ۱۱۷ - ۱۲۱]

{بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} مُوجِدهمْ لَا عَلَى مِثَال سَبَقَ {وَإِذَا قَضَى} أَرَادَ {أَمْرًا} أَيْ إِيجَاده {فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ} أَيْ فَهُوَ يَكُون وَفِي قِرَاءَة بِالنَّصْبِ جَوَابًا لِلْأَمْرِ {وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ} أَيْ كُفَّار مَكَّة لِلنَّبِيِّ {لَوْلَا} هَلَّا {يُكَلِّمُنَا اللَّهُ} بِأَنَّك رَسُوله {أَوْ تَأْتِينَا آيَةٌ} مِمَّا اقْتَرَحْنَاهُ عَلَى صِدْقك {كَذَلِكَ} كَمَا قَالَ هَؤُلَاءِ {قَالَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ} مِنْ كُفَّار الْأُمَم الْمَاضِيَة لِأَنْبِيَائِهِمْ {مِثْلَ قَوْلِهِمْ} مِنْ التَّعَنُّت وَطَلَب الْآيَات {تَشَابَهَتْ قُلُوبُهُمْ} فِي الْكُفْر وَالْعِنَاد فِيهِ تَسْلِيَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {قَدْ بَيَّنَّا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ} يَعْلَمُونَ أَنَّهَا آيَات فَيُؤْمِنُونَ فَاقْتِرَاح آية مَعَهَا تعنت {إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ} يَا مُحَمَّد {بِالْحَقِّ} بِالْهُدَى {بَشِيرًا} مَنْ أَجَابَ إِلَيْهِ بِالْجَنَّةِ {وَنَذِيرًا} مَنْ لَمْ يُجِبْ إِلَيْهِ بِالنَّارِ {وَلَا تُسْأَلُ عَنْ أَصْحَابِ الْجَحِيمِ} النَّار أَيْ الْكُفَّار مَا لَهُمْ لَمْ يُؤْمِنُوا إِنَّمَا عَلَيْك الْبَلَاغ وَفِي قِرَاءَة بِجَزْمِ تسال نهيا {وَلَنْ تَرْضَى عَنْكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَى حَتَّى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ} دِينهمْ {قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ} أَيْ الْإِسْلَام {هُوَ الْهُدَى} وَمَا عَدَاهُ ضَلَال {وَلَئِنْ} لَام قَسَم {اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ} الَّتِي يَدْعُونَك إِلَيْهَا فَرْضًا {بَعْدَ الَّذِي جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ} الْوَحْي مِنْ اللَّه {مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ من ولي} بحفظك {ولا نصير} يمنعك منه {والذين آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ} مُبْتَدَأ {يَتْلُونَهُ حَقَّ تِلَاوَتِهِ} أَيْ يقرؤونه كَمَا أُنْزِلَ وَالْجُمْلَة حَال وَحَقّ نُصِبَ عَلَى الْمَصْدَر وَالْخَبَر {أُولَئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ} نَزَلَتْ فِي جَمَاعَة قَدِمُوا مِنْ الْحَبَشَة وَأَسْلَمُوا {وَمَنْ يَكْفُرْ بِهِ} أَيْ بِالْكِتَابِ الْمُؤْتَى بِأَنْ يُحَرِّفهُ {فَأُولَئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ} لِمَصِيرِهِمْ إِلَى النَّار الْمُؤَبَّدَة عَلَيْهِمْ

**ترجمه:** هغه دَ آسمانونو اوزمکې بغیردَ سابقه نمونې پیداکونکې دې. او کله چې دَ څه څیزدَ کولو اراده کوی نوبس دَهغې دَ پاره دا حکم کوی چې اوشه نوهغه کیږي او په یوقراءت کښې (یکون) جواب امر کیدودَ وجې نه منصوب دې. نادان (جتې) یعنی دَمکې کافرانو په نبی ﷺ ته وئیل چې الله تعالی پخپله مونږته ولې نه وائی چې ته دَالله تعالی رسول یئی یا ستا په صداقت باندې چې مونږ کومه نښه تجویزکړو مونږ له ولې نه راځی؟ دغه شان یعنی لکه څنګه چې وائی دَدوی نه وړاندې سابقه امتونوکافرانو هم خپلو نبیانوته دَدې په شان خبرې کړې وې یعنی سرکشی اودَ معجزاتو غوښتنه، په کفر اوعنادکښې دَهغوی زړونه یوشان دی. په دې کښې نبی ﷺ ته تسلی ده. دَ یقین راوړونکودَپاره خومونږ صفا صفا نشانې بیان کړې دی چې څوک پیژنی چې دا معجزات دی نو په دې باندې ایمان راوړی. بیا دغه نښو نښانوسره دَ نورو معجزاتو مطالبه کول سرکشی ده. بیشکه اې محمد ﷺ مونږ ته هدایت سره دَ جنت زیرې اوروونکې جوړکړې لیګلې یئې هغه ته چې چا ستا دعوت قبول کړو او هغه سړې لره دَ دوزخ نه ویریونکې جوړ کړې لیګلې یئی چاچې ستادعوت قبول نه کړو. دوزخیانو یعنی کافرانوباره کښې به تانه پوښتنه نه شی کولې چې هغوی ایمان ولې نه دې راوړې؟

ستا ذمه واری خو صرف رسول دی او په یو قراءت کښې تُسْئَلْ جزم سره دې دَنهی کیدو دَ وجې نه او یهودیان اونصاری به هیڅ کله تانه راضی نه شی. ترکومې چې ته دَهغوی دین اونه منې. ته ورته اووایه چې دَ اللّٰه تعالی هدایت یعنی هم اسلام (صحیح) لار ده اودَ دې نه علاوه ټوله گمراهی ده. او قسم دې لام قسمیه دې تاسو له دَ وحی علم راتللونه پس که چرې بالفرض تادَهغوی خواهشات اومنل دکوم طرف ته چې هغوی تاته دعوت درکوی نو اللّٰه تعالی سره به نه ستا څوک ولی وی چې ستا حفاظت اوکړې شی اونه به څوک امدادی وی چې تا بچ کړې شی. کومو خلقو ته چې مونږ کتاب ورکړو (الذین اتینهم الکتاب) مبتداء ده. (او) هغه دَهغې دَدې تلاوت حق سره یعنی چې څنګه نازل کړې شوې دې هم هغه شان لولی. دا جمله حال ده او حق مصدر کیدو دَ وجې نه منصوب دې. او خبر (أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ به دې) هم دغه دی هغه خلق چې په دې باندې ایمان لری (دا آیت) دَ هغه جماعت باره کښې نازل شوې دې چې دَ حبشه نه راغلې وو او اسلام ئې قبول کړې وو او څوک چې دَدې عطا کړې شوی کتاب منکر دی په داسې توګه چې په دې کښې تحریف کوی نو هم هغه تاوانیان دی دَهغوی دَ همیشه والا اور طرف ته دَ ورګرځیدو دَوجې نه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: بَدِيعُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ، بَدِيعٌ په وزن دَ فَعِيْلٌ په معنی دَ مُبْدِعٌ بغیردَ مخکښې نمونې اوماده نه پیدا کونکې، بَدِيعُ السَّمٰوَاتِ وَالأرضِ ای هُوَ بدیع السموات بَدِيعُ دَ اسماء حسنٰی نه دې.

**قوله**: وَإِذَا قَضَى، أَرَادَ مفسرعلام دَ قضی تفسیر په أَرَادَ سره کولوکښې دَ یوسوال جواب ورکړې دې.

**سوال**: قَضٰی معنی اتمام شئ دې که هغه قولاً وی لکه وَقَضٰى رَبُّكَ یا فعلاً لکه فَقَضٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ اودَ اتمام شئ نه پس دَدې دَپاره دَ کن وئیلو ضرورت باقی نه پاتې کیږی بلکه صحیح هم نه دې ځکه چې دې سره تحصیل حاصل لازم راځی کوم چې ممنوع دی اودَ مکون واحددَپاره دوه کون یا دا اووایئ چې دَموجود واحددَپاره دَدوو وجودو کیدل لازم راځی ځکه چې دَ مخاطب جوړیدودَپاره موجود کیدل ضروری دی ګنی معدوم ته به خطاب کول لازم شی کوم چې جائزنه دې اودَ دویم کن وئیلو نه پس به موجود شی ګنی امر به بې کاره شی.

**جواب**: دَ جواب حاصل دا دې چې قَضٰی په معنی د أَرَادَ دې مجازًا.

**سوال**: فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ دَدې نه معلومیږی چې کله اللّٰه تعالی دَ یومعدوم لره وجودکښې دَ راوستو اراده کوی نوهغې ته کن وائی دکوم په وجه چې هغه معدوم موجود شئ په دې سره معدوم ته مخاطب کول لازم راځی؟

**جواب:** دَالله تعالى په اراده سره هغه معدوم دَ موجود په حکم کښې کيږي لهذا خطاب کول صحيح دى بل كُنْ فَيَكُوْنُ نه مقصد سرعت دې نه چې ايجاد.

**قوله:** فهويكونُ دَ دې جملې دَ اضافه فائده دَ يوسوال جواب دې.

**سوال:** مضارع چې کله دَ فاء نه پس واقع وى اودَدې ماقبل امر يا نهى وى نو په دې باندې نصب واجب دې حالانکه دلته فيكونُ باندې رفع ده دَدې څه وجه ده؟

**جواب:** دَحذف مبتداء دَ وجې نه دا جمله اسميه ده تقديرعبارت فَهُوَيكونُ دې جمله اسميه كيدو سره جواب دَ امردَ وجې نه په محل دَ نصب كښې دې. په دې كښې دې خبرې طرف ته هم اشاره ده چې فيكون جمله مستانفه ده اوهودَ مبتداء محذوف خبردې او په يوقراءت كښې فيكون نصب سره هم دې په دې صورت كښې دَ فاء سببيه نه پس أن به مقدر منلې شى.

**قوله:** أي كفـارمكـة.

**سوال:** اَلَّذِيْنَ لَايَعْلَمُوْنَ تفسير دَمكې كافرانوسره كول صحيح نه دى ځكه چې دا صورت مدنى دې.

**جواب:** بعضې حضراتو داجواب وركړې دې چې پوره سورت مدنى دې خودا آيت مكى دې مګردا جواب بعيد دې.

**دويم جواب:** دا كيدې شى چې مذكوره سوال دَ مكې كافرانو دَ مدينې دَ يهودو په معرفت دَ رسول الله ﷺ نه كړى وى.

**قوله:** وَفِي قراءة بجزم تُسْئَلْ نهيًا يعنى په يوقراءت كښې د لَاتُسْئَلُ په ځائى لَاتَسْئَلْ دې يعنى تاسو دَ دوزخيانو باره كښې هيڅ تپوس مه كوئى دَهغوى به ډير خراب حال وى.

**قوله:** وَحَقَّ نُصِبَ على المصدرية حَقَّ تلاوته مصدردَ محذوف صفت كيدو دَ وجې نه منصوب دې. تقديرعبارت داسې دې يتلونه تلاوةً حقًا صفت مقدم كړې شو اودَ موصوف طرف ته اضافت اوكړې شو.

**[ايات نمبر: ۱۲۲ - ۱۲۶]**

{يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ} تَقَدَّمَ مِثْله {واتقوا} خافوا {يوما لاتجزى} تُغْنِي {نَفْسٌ عَنْ نَفْسٍ} فِيهِ {شَيْئًا وَلَا يقبل منها عدل} فداء {ولا ينفعها شَفَاعَةٌ وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ} يُمْنَعُونَ مِنْ عَذَاب الله {وَ} اُذْكُرْ {إِذْ ابْتَلَى} اخْتَبَرَ {إِبْرَاهِيمَ} وَفِي قِرَاءَة إبْرَاهَام {رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ} بِأَوَامِر وَنَوَاهٍ كَلَّفَهُ بِهَا قِيلَ هِيَ مَنَاسِك الْحَجّ وَقِيلَ الْمَضْمَضَة وَالِاسْتِنْشَاق وَالسِّوَاك وَقَصّ الشَّارِب وَفَرْق الشَّعْر وَقَلْم الْأَظْفَار ونتف الإبط وحلق العانة والختان والاستنجاء {فَأَتَمَّهُنَّ} أَدَّاهُنَّ تَامَّات

{قَالَ} تَعَالَى لَهُ {إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا} قُدْوَة فِي الدِّين {قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِي} أَوْلَادِي اجْعَلْ أَئِمَّة {قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي} بِالْإِمَامَةِ {الظَّالِمِينَ} الْكَافِرِينَ مِنْهُمْ دَلَّ عَلَى أَنَّهُ يَنَال غَيْر الظَّالِم {وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ} الْكَعْبَة {مَثَابَةً لِلنَّاسِ} مَرْجِعًا يَثُوبُونَ إِلَيْهِ مِنْ كُلّ جَانِب {وَأَمْنًا} مَأْمَنًا لَهُمْ مِنَ الظُّلْم وَالْإِغَارَات الْوَاقِعَة فِي غَيْره كَانَ الرَّجُل يَلْقَى قَاتِل أَبِيهِ فِيهِ فَلَا يهيجه {واتخذوا} ايها الناس {مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ} هُوَ الْحَجَر الَّذِي قَامَ عَلَيْهِ عِنْد بِنَاء الْبَيْت {مُصَلًّى} مَكَان صَلَاة بان تصلوا خلفه ركعتي الطواف وفي قراءة بفتح الخاء خبر {وَعَهِدْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ} امرناهما {أَنْ} اي بِأَنْ {طَهِّرَا بَيْتِيَ} مِنَ الْأَوْثَان {لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ} الْمُقِيمِينَ فِيهِ {وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ} جَمْع رَاكِع وَسَاجِد المصلين {وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَذَا} الْمَكَان {بَلَدًا آمِنًا} ذَا أَمْن وَقَدْ أَجَابَ اللّٰه دُعَاءَهُ فَجَعَلَهُ حَرَمًا لَا يُسْفَك فِيهِ دَم إِنْسَان وَلَا يُظْلَم فِيهِ أَحَد وَلَا يُصَاد صَيْده وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهُ {وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرَاتِ} وَقَدْ فَعَلَ بِنَقْلِ الطَّائِف مِنَ الشَّام إِلَيْهِ وَكَانَ أَقْفَر لَا زَرْع فِيهِ وَلَا مَاء {مَنْ آمَنَ مِنْهُمْ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} بَدَل مِنْ أَهْله وَخَصَّهُمْ بِالدُّعَاءِ لَهُمْ مُوَافَقَة لِقَوْلِهِ لَا يَنَال عَهْدِي الظَّالِمِينَ {قَالَ} تَعَالَى {وَ} أَرْزُقُ {مَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف فِي الدُّنْيَا بِالرِّزْقِ {قَلِيلًا} مُدَّة حَيَاته {ثُمَّ أَضْطَرُّهُ} أُلْجِئهُ فِي الْآخِرَة {إِلَى عَذَابِ النَّارِ} فَلَا يَجِد عَنْهَا مَحِيصًا {وَبِئْسَ الْمَصِيرُ} الْمَرْجِع هِيَ

**ترجمه**: اې بنی اسرائیلو زما هغه نعمت یاد کړئ کوم چې ما تاسو ته درکړې وو او ما تاسو ته دَ دنیا په قومونو فضیلت درکړې وو. دَدې په شان آیت وړاندې تیرشوې دې او دَهغه ورځ نه اووېرېږئ په کومه ورځ چې به هیڅوک دَچا په کار نه راځي او نه به څه فدیه قبلولې شی او نه څه سفارش به چا ته څه فائده ورکوی او نه به (مجرمانو) ته دَچرته نه څه امداد رسیږی چې هغوی دَالله تعالی دَ عذاب نه بچ کړې شي او یاد کړئ کوم وخت چې حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَ هغه رب په یوڅوخبرو سره ازمیښت کړو او په یوقراءت کښې ابراهام دې (او هغه خبرې) دَ کومو چې هغه مکلف جوړ کړو اوامر او نواهی وې. وئیلې شوی دی چې هغه مناسك حج وو او نور وئیلی شوی دی چې هغه غرغرې کول، پوزه کښې اوبه اچول مسواك کول او بریت کټ کول او دَ سر په ویښتو کښې لاروېستل نوکونه پرې کول دَ ترخونو ویښته راوېستل او دَ نامه لاندې ویښته صفا کول سنت کول او په اوبو سره استنجاء کول وو. نو (حضرت ابراهیم علیه السلام) دا خبرې په مکمل توګه سره اداکړې (نو) الله تعالی هغه ته اوفرمائیل چې زه به تا په دین کښې دَ خلقو پیشوا جوړوم. ابراهیم علیه السلام عرض اوکړو زما په اولاد کښې هم پیشوا جوړ کړه. الله تعالی جواب ورکړو چې دَ پیشوائې زما وعده دَهغوی نه ظالمانو کافرانو سره نه ده دې نه معلومه شوه چې څوك ظالمان ندی دهغو سره وعده ده او دا چې مونږ دا کور کعبه دَ خلقو دَ پاره مرجع (مرکز) جوړ کړو. دَهر طرف نه خلق دَدې طرف ته رجوع کوی او دَ ظلم نه او دَ بل ځائی تباهی کولو سره دَامن ځائی جوړ کړو. سړې به په بیت الله کښې دَ پلار

قاتل سره ملاویدلو مګر (دَپلار قاتل) به هغه (دَ قاتل په قتل) باندې نه تیارولو او اې خلقو تاسو مقام ابراهیم دَ مانځه ځائی جوړکړئی اوهغه هم دغه کاڼړې دې چې دَبیت الله دَ آبادئی په وخت به (حضرت ابراهیم علیه السلام) اودریدلو. مصلی په معنی دَ جائې نماز په داسې توګه چې دې نه شاته دَ طواف دوه رکعته مونځ اوکړئی او په یوقراءت کښې اِتَّخَذُوْا دَ خاء فتح سره دې اومونږ حضرت ابراهیم علیه السلام ته او حضرت اسماعیل علیه السلام ته حکم ورکړو چې زما کور دَ طواف کونکو او اعتکاف کونکودَپاره دَبتانونه پاک اوساتئی یعنی په دې کښې د قیام کونکودَپاره، رکوع اوسجده کونکودَپاره (یعنی) مونځ کونکو دَپاره رُکّع راکع او السجود دَ ساجد جمع ده او ابراهیم علیه السلام اووئیل اې پروردګار ته دا ځائی دَ امن والا جوړکړه او الله تعالی دَهغه دعاقبوله کړه او دائی محترم جوړکړو چې نه په دې کښې دَ انسان وینه تویولې شی او نه په دې کښې په چاباندې ظلم کیږی اونه په دې کښې ښکار کولې شی او نه دَدې ازغې ویستلې شی اودَدې اوسیدونکوته دَ میوو رزق ورکړې نودَ طائف خطه ئی دَ شام دَ ملك نه منتقل کولوسره هم داسې اوکړه حالانکه هغه شاړه بې اوبو اوبې ګیا زمکه وه دَهغوی دَپاره څوک چې په الله تعالی باندې ایمان راوړی او په یوم آخرت باندې مَنْ آمَنَ، اهله بدل دې اودا دَدعادَپاره خاص کول دَدې وجې نه دی چې دا لاینال عهدی الظلمین سره موافق دې الله تعالی اوفرمائیل اوڅوک چې کفرکوی هغوی ته به هم په یوه اندازه یعنی دَهغوی دَ ژوند په اندازه نفع رسوم او بیا به په آخرت کښې هغوی په زور دوزخ ته اوړم اوهغوی به دغه قید نه خلاصې بیامومی او هغه (دوزخ) ډیرخراب ځائی دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ، فِيْهِ، لَا تَجْزِی نَفْسٌ عن نفسٍ جمله کیدوسره دَ يَوْمًا صفت دې اوصفت چې کله جمله وی نو عائد ضروری وی. دَ فِيْهِ اضافه دَ عائدمحذوف کیدو طرف ته اشاره ده واذکر اذابتلی ابراهیم کښې یو قراءت ابراهام هم دې ابراهیم په سریانی ژبه کښې أبٌ رحيمٌ ته وائی یعنی مشفق اومهربان پلار، دلته اذکر محذوف منلوسره اشاره اوکړه چې إِذْ، د اذکر فعل محذوف معمول دې نه چې دَ ابتلی. دا په هغه خلقو باندې رد دې چې وائی إِذْ، دَ اِبْتَلٰی معمول دې ځکه چې په دې کښې دَمعمول په عامل باندې مقدم کیدل لازم راځی.

**قوله**: قَالَ اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا دا جمله مستانفه ده اودَ یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دادې چې کله ابراهیم علیه السلام ټول اوامراو نواهی په ښه طریقه سره سرته اورسول نو څه چل اوشو؟

**جواب**: کښې اوفرمائیل زه به تا دَ خلقو دینی پیشوا جوړوم.

**قوله**: قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ عطف په تاویل دَ بعضودَ جاعِلُكَ په کاف باندې لکه چې مِنْ تبعیضیه دلالت کوی.

**سوال**: په ضمیرمتصل باندې بغیردَاعاده ضمیر یا د فصل عطف صحیح نه دې لهذا دَ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ عطف په کاف ضمیر باندې څنګه صحیح دې؟

**جواب**: په جَاعِلُكَ کښې دَ جاعِل، کاف طرف ته اضافت لفظیه دې اودَ انفصال په درجه کښې دې لهذا عطف صحیح شو.

**سوال**: په دې عطف کښې دَ یودَ مقوله دَ بل په مقوله باندې عطف لازم راځی څکه چې اِنِّيْ جَاعِلُكَ دَ الله تعالی مقوله ده او مِنْ ذُرِّيَّتِيْ دَحضرت ابراهیم عليه السلام مقوله ده؟

**جواب**: دَ یودَ مقوله دَ بل په مقوله باندې عطف جائزدې لکه چې ستا وینا وَزَيْدًا هغه چا په جواب کښې وئیل چې څوك تاته اووائی ساکرمُكَ نو ته ورته اووائې وزَيْدًا یعنی دَ زید هم اکرام اوکړه، دې ته عطف تلقین وائی لکه دَ سلام په جواب کښې وعلیکم السلام وئیل دا هم دَ یومقوله دَ بل مقوله باندې دَعطف دَ قبیل نه دې. په کوم کښې چې هیڅ قباحت نشته حاصل دا چې خبر په معنی دَ طلب دې. (ترویح الارواح)

**قوله**: الكعبة، د اَلْبَيْت تفسیر ئې په الكعبة سره کولوکښې اشاره اوکړه چې په البيت کښې الف لام دَ عهد دې اودا دَ اسماء مغالبه نه دې لکه الثريا مطلق ستوری ته وائی اوس دَ یومخصوص ستوری نوم شوې دې دغه شان البيت کله چې مطلق وئیلې شی نو هم بيت الله ترې مراد وی.

**قوله**: مَثَابَةً، ثابَ يثوبُ نه ظرف مکان دې دَ واپس کیدو ځائی، مرجع مرکز، دَ ثوبًا معنی ده اصلی حالت طرف ته واپس کیدل، هاء په دې کښې دَ مبالغه دَپاره ده لکه علامة ونسابة کښې چې دې.

**قوله**: مَامَنًا لَهُمْ دا مصدر میمی په معنی د ظرف مکان دې موضع امن، اَمْنًا دَ مَامَنًا په معنی کښې اخستلودَ وجې نه دَ اَمْنًا په البيت باندې حمل هم صحیح شو ګنی دَ مصدرحمل په ذات باندې لازم راتللو.

**قوله**: وَاتَّخِذُوا دَدې عطف په جَعَلْنَا باندې دې اودادَ قول محذوف مقوله ده ای قلنا لهم اتخذوا من مقام ابراهیم مصلی.

**قوله**: بفتح الخاء خبرٌ دَدي عطف هم جَعَلْنَا باندي دي دا بيان دَ حال دپاره دي يعنى خلق داخپله مصلى جوړكړه.

**قوله**: اَمَرْنَاهُمَا، عَهِدْنَا تفسير اَمَرْنَا سره كول دَ يوسوال جواب وركول مقصوددي.

**سوال**: د عَهِدَ صله چې كله اِلیٰ راځي نودَدي معنى دَتوصية وى كوم چې دَ ذات بارى تعالى دپاره مناسب نه ده؟

**جواب**: عَهِدْنَا په معنى د اَمَرْنَا دي لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله**: بِأَنَّ په دې كښې اشاره ده چې اَنْ مصدريه دي نه چې تفسيريه، دا فعل امر باندې بيان ماموربه دپاره داخل دي.

**[اياتونه:۱۲۷ - ۱۲۹]**

{وَ} اُذْكُرْ {إِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيمُ الْقَوَاعِدَ} الْأُسُس أَوْ الْجُدُر {مِنَ الْبَيْتِ} يَبْنِيه مُتَعَلِّق بِيَرْفَعُ {وَإِسْمَاعِيلُ} عُطِفَ عَلَى إِبْرَاهِيم يَقُولَانِ {رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا} بِنَاءَنَا {إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ} لِلْقَوْلِ {الْعَلِيمُ} بالفعل {ربنا واجعلنا مسلمين} منقادين {لك و} اجعل {من ذريتنا} أَوْلَادنَا {أُمَّةً} جَمَاعَة {مُسْلِمَةً لَكَ} وَمِنْ لِلتَّبْعِيضِ وَأَتَى بِهِ لِتَقَدُّمِ قَوْله لَا يَنَال عَهْدِي الظَّالِمِينَ {وَأَرِنَا} عَلِّمْنَا {مَنَاسِكَنَا} شَرَائِع عِبَادَتنَا أَوْ حَجّنَا {وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ} سَأَلَاهُ التَّوْبَة مَعَ عِصْمَتهمَا تَوَاضُعًا وَتَعْلِيمًا لِذُرِّيَّتِهِمَا {رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ} أَيْ أَهْل الْبَيْت {رَسُولًا مِنْهُمْ} مِنْ أَنْفُسهمْ وَقَدْ أَجَابَ اللّٰه دُعَاءَهُ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ} الْقُرْآن {وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ} الْقُرْآن {وَالْحِكْمَةَ} أَيْ مَا فِيهِ مِنْ الْأَحْكَام {وَيُزَكِّيهِمْ} يُطَهِّرهُمْ مِنْ الشِّرْك {إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ} الْغَالِب {الْحَكِيمُ} فِي صُنْعه

**ترجمه**: اويادكړه چې كوم وخت ابراهيم (عليه السلام) او اسماعيل (عليه السلام) دَ دې كور بنيادونه يا ديوالونه اوچتول يعنى دَدې تعمير ئې كولو. مِنَ الْبَيْتِ، دَ يَرْفَعُ متعلق دي. او د اِسْمَاعِيْلُ عطف په اِبْرَاهِيْمُ باندې دي. دواړو به دعا كوله اې زمونږ پروردگاره ته زمونږ دَ طرف نه دا تعمير قبول كړه ته خبرې اوريدونكې او په كارونو باندې پوهيدونكې ئې. اې زمونږ پروردګار ته مونږ دواړوه خپل حكم منونكى جوړكړه او زمونږ دَ نسل نه يو داسې امت راوچت كړه كوم چې ستا تابعدار وى او مِنْ تبعيضيه دي او سابق كښې لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ راتلو دَ وجې نه مِنْ تبعيضيه راوړلې دي او ته مونږ ته دَخپل عبادت طريقه اوښايه يعنى زمونږ دَ عبادت احكام يا مونږ ته زمونږ دَ حج طريقه اوښايه او زمونږ كمزورئى معاف كړه بيشكه ته ډير معافى كونكې ئې. دَ دواړو معصوم كيدو نه باوجود دَ توبه سوال كول تواضعًا اودَ خپل اولاد دَتعليم دپاره وو. اې پروردګاره په دوى كښې يعنى اهل بيت كښې يو داسې رسول مبعوث كړه نو الله تعالى دَ حضرت محمد ﷺ په شكل كښې دَهغوى دعا قبوله كړه چې هغوى ته ستا

قرآني آياتونه اوښائي او هغوئ ته كتاب قرآن او حكمت په كوم كښې چې احكام وي اوښايئ او هغوئ دَ شرك نه پاک كړئي يقيناً ته غلبه والا او په خپل صنعت كښې حكمت والا ئې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: عطف علىٰ ابراهيم دا عبارت د يو شبه لرې كونكې دې چې واسمعيل جمله مستانفه ده دَدې دَپاره كه چرې دَ اسماعيل په ابراهيم باندې عطف كيدو نو اسماعيل به ئې دَ القَوَاعِدَ مفعول نه مقدم كړې وو.

**جواب**: اسماعيل ئې په دې وجه روستو كړې دې چې حضرت اسماعيل عليه السلام په حقيقت كښې باني نه دې بلكه معاون دې باني خو حضرت ابراهيم عليه السلام دې. خو په تعمير اوجوړولو كښې دَحضرت اسماعيل عليه السلام هم حصه ده په دې وجه په اصل باني باندې دَ معاون عطف اوكړې شو.

**قوله**: يَقُوْلَانِ، يقولان دَ اضافه مقصد دَ يو سوال جواب دې.

**سوال**: رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِبْرَاهِيْمَ واسماعيل نه حال واقع دې حالانكه حال واقع كيدل صحيح نه دي ځكه چې رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا دعا كيدو دَ وجې نه جمله انشائيه ده او جمله انشائيه حال نه شي واقع كيدې.

**جواب**: دَ جواب حاصل دَادې چې دَدې نه وړاندې يقولان محذوف دې دَ كوم دَ وجې نه چې دا جمله خبريه شوه لهذا حال واقع كيدل صحيح شو. يقولان مقدر منلو دويمه وجه داده كه چرې يقولان مقدر اونه منلې شي نو په خطاب واحد كښې به شئ واحد بغيردَ عطف نه غائب او متكلم كيدل لازم راځي ځكه چې يَرْفَعُ ابراهيمُ القواعد الخ غائب دې او رَبَّنَا تَقَبَّلْ الخ متكلم دې او كله چې يقولان مقدر اومنلې شي نو دواړه جملې غائب شوې.

**قوله**: وَمِنْ للتبعيض، وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَا كښې من تبعيضيه گرځولو وجه داده چې پورته الله تعالىٰ فرمائيلې وو لَايَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ دَ دې مطلب دادې چې دَ امامت وعده پوره اولاد سره نه ده بلكه صرف دَهغوى سره ده چې مومن وي او صالح وي. كه چرې مِن تبعيضيه اونه منلې شي نو لَايَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ او من ذريتنا كښې به تعارض وي ځكه چې دَ من ذريتنا مطلب دې بغيردَ استثناء پوره ذريت دَپاره ئې دَ امامت دعا اوفرمائيله.

**سوال**: من ذريتنا كښې من تبعيضيه اخستلو په صورت كښې په دعا كښې بخل لازميږي يعنې دَ ټولو دَپاره ئې دعا اونه كړه بلكه دَ بعضو دَپاره ئې دعا اوكړه.

**جواب**: مِن ابتدائيه اخستل چونكه په ماقبل كښې مذكور د لَايَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ

معارض او منافي دي په دې وجه ئې مِن تبعيضيه اخستې دې.

**سوال**: أَرِنَا دا دَ رأى نه ماخوذ دې چې دوو مفعولونو ته متعدى دې اوكله چې دَ باب افعال نه راوړلې شو نودريو مفعولونو نه متعدى كيږي حالانكه دلته صرف هم دوه مفعولونه ذكر دي يو نَا او بل مَنَاسِكَ.

**جواب**: أَرَى په معنى د عَلِمَ وأَبْصَرَ دې. چې په يومفعول متعدى دې دَ باب افعال نه دَ راتلو دَ وجې په دوو مفعولو متعدى شو.

**قوله**: سَأَلاهُ التوبة الخ دا هم دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: دادې چې دَ حضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت اسماعيل عليه السلام دَ توبه دَ قبليدو درخواست كول دَ هغوى دَ معصوميت خلاف دي حالانكه نبي معصوم وي.

**جواب**: تواضعًا او تعليمًا للامة ئې دَ توبه درخواست اوكړو.

**قوله**: اهلُ البيت دَ دې جملې دَ اضافه مقصد دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دادې چې وابْعَثْ فِيهِم كښې هم ضمير ذريةٌ طرف ته راجع دې حالانكه ذريةٌ مؤنث دې لهذا فِيهَا كيدل پكار وو؟

**جواب**: ذريةٌ نه مراد اهل البيت دي كوم چې د ذريةٌ نه مفهوم دې لهذا اوس هيڅ اعتراض پاتې نه شو.

**[اياتونه: ۱۳۰-۱۳۶]**

{وَمَنْ} أَيْ لَا {يَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ} فَيَتْرُكهَا {إِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَه} جَهِلَ أَنَّهَا مَخْلُوقَة لِلّٰهِ يَجِب عَلَيْهَا عِبَادَته أَوْ اسْتَخَفَّ بِهَا وَامْتَهَنَهَا {وَلَقَدِ اصْطَفَيْنَاهُ} اخْتَرْنَاهُ {فِي الدُّنْيَا} بِالرِّسَالَةِ وَالْخُلَّة {وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ} الَّذِينَ لَهُمْ الدَّرَجَات الْعُلَى وَاذْكُرْ {إِذْ قَالَ لَهُ رَبُّه أَسْلِمْ} انْقَدْ لِلّٰهِ. وَأَخْلِصْ لَهُ دِينك {قَالَ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ} {وَوَصَّى} وَفِي قِرَاءَة أَوْصَى {بِهَا} بِالْمِلَّةِ {إِبْرَاهِيمُ بَنِيهِ وَيَعْقُوبُ} بَنِيهِ قَالَ {يَا بَنِيَّ إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفَى لَكُمُ الدِّينَ} دِين الْإِسْلَام {فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ} نَهْي عَنْ تَرْك الْإِسْلَام وَأَمَرَ بِالثَّبَاتِ عَلَيْهِ إِلَى مُصَادَفَة الْمَوْت وَلَمَّا قَالَ الْيَهُود لِلنَّبِيِّ أَلَسْت تَعْلَم أَنَّ يَعْقُوب يَوْم مَاتَ أَوْصَى بَنِيهِ بِالْيَهُودِيَّةِ نَزَلَ {أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَاءَ} حُضُورًا {إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ إِذْ} بَدَل مِنْ إِذْ قَبْله {قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِنْ بَعْدِي} بَعْد مَوْتِي {قَالُوا نَعْبُدُ إِلٰهَكَ وَإِلٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ} عَدّ إِسْمَاعِيل مِنْ الْآبَاء تَغْلِيب وَلِأَنَّ الْعَمّ بِمَنْزِلَةِ الْأَب {إِلٰهًا وَاحِدًا} بَدَل مِنْ إِلٰهك {وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ} وَأَمْ بِمَعْنَى هَمْزَة الْإِنْكَار أَيْ لَمْ تَحْضُرُوهُ وَقْت مَوْته فَكَيْفَ تَنْسُبُونَ إِلَيْهِ مَا لَا يَلِيق بِهِ {تِلْكَ} مُبْتَدَأ وَالْإِشَارَة إِلَى إِبْرَاهِيم وَيَعْقُوب وَبَنِيهِمَا وَأُنِّثَ لِتَأْنِيثِ خَبَره {أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ} سَلَفَتْ {لَهَا مَا كَسَبَتْ} مِنْ الْعَمَل أَيْ

جَزَاؤُهُ اسْتِئْنَاف {وَلَكُمْ} الْخِطَاب لِلْيَهُودِ {مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ} كَمَا لَا يُسْأَلُونَ عَنْ عَمَلِكُمْ وَالْجُمْلَة تَأْكِيد لِمَا قَبْلَهَا {وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تَهْتَدُوا} أَوْ لِلتَّفْصِيلِ وَقَائِل الْأَوَّل يَهُود الْمَدِينَة وَالثَّانِي نَصَارَى نَجْرَان {قُلْ} لَهُمْ {بَلْ} نَتَّبِع {مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا} حَال مِنْ إِبْرَاهِيم مَائِلًا عَنْ الْأَدْيَان كُلّهَا إِلَى الدِّين الْقَيِّم {وما كان من المشركين} {قُولُوا} خِطَاب لِلْمُؤْمِنِينَ {آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا} مِنْ الْقُرْآن {وَمَا أُنْزِلَ إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ} مِنْ الصُّحُف الْعَشْر {وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ} اولاده {وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ} مِنْ التَّوْرَاة {وَعِيسَىٰ} مِنْ الْإِنْجِيل {وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِنْ رَبِّهِمْ} مِنْ الْكُتُب وَالْآيَات {لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ} فَنُؤْمِن بِبَعْضٍ وَنَكْفُر بِبَعْضٍ كَالْيَهُودِ وَالنَّصَارَى {ونحن له مسلمون}

**ترجمه**: او څوک دی؟ یعنی هیڅوک نشته چې بې رغبتی اوکړی دَ ملت ابراهیمی نه چې دا پرېږدیٔ مګر هم هغه څوک چاچې خپل ځان بې وقوف جوړکړو (یعنی چې صرف بې وقوف وی)(او) دَدې خبرې نه بې خبر وی چې هغه دَ الله تعالی مخلوق دې اودا چې په ده باندې دَا لله تعالی عبادت واجب دې. یا دامعنی ده چې هغه دَخپل نفس تحقیرکړې دې اودائی ذلیل کړې دې. مونږ خو هغه په دنیاکښې هم دَ رسالت او دوستئی دَپاره خوښ کړې دې او بیشکه هغه به په آخرت کښې هم په هغه صالحینوکښې وی دَ چادَپاره چې اوچتې مرتبې دی. اوهغه وخت یادکړه کوم وخت چې دَهغه رب هغه ته اووئیل چې سرتسلیم ښکته کړه یعنی دَ الله تعالی حکم منونکې شه اوخپل دین دَهغه دَپاره خالص کړه نوهغه زر اووئیل ما دَ رب العالمین په مخکښې سرتسلیم ښکته کړو او هم په هغه طریقه ابراهیم علیه السلام خپلو ځامنوته هدایت کړې او په یوقراءت کښې اَوْصیٰ دې او یعقوب علیه السلام (هم) خپلو ځامنوته هم دَدې وصیت اوکړو. وئی وئیل اې زما بچو الله تعالی ستاسو دَپاره هم دغه دین اسلام خوښ کړې دې لهذا تر مرګه پورې هم مسلمانان اوسیږئی دَ ترك اسلام نه ئی منع کړل او تر مرګه پورې په دې باندې دَ ثابت قدم اوسېدو حکم ئی ورکړو. اوکله چې یهودو نبی علیه السلام ته اووئیل ایا تاته دا معلومه نه ده چې یعقوب علیه السلام دَخپل مرګ په ورځ خپل اولاد ته ته دَ یهودیت وصیت کړې وو. (نودا آیت) نازل شو آیا تاسو هغه وخت موجود وئی کوم وخت چې یعقوب علیه السلام (دَدې دنیانه) رخصت کیدلو. دا اذْ سابقه اِذْ نه بدل دې دې (یعقوب علیه السلام) دَ (مرګ په وخت) دَخپلو بچونه تپوس اوکړو تاسو به زما نه پس یعنی زما دَ مرګ نه پس دَ چابندګی کوئی؟ جواب ئی ورکړو چې هم دَ هغه یوخدائی بندګی به کووکوم چې ستاسو دَ پلارانو ابراهیم اسماعیل او اسحاق علیهم السلام معبود دې او اسماعیل علیه السلام په آباء کښې شمیرل تغلیبًا دی او دَدې دَپاره هم چې تره په منزله دَ پلار وی. اِلٰهًا وَاحِدًا، اِلٰهَكَ نه بدل دې. او مونږ دَهغه حکم منونکی یو. او اَمْ په معنی دَ همزه انکاری دې. یعنی تاسو دَ یعقوب علیه السلام دَ مرګ په وخت کښې موجودنه وئی نوتاسو دَهغه طرف ته دَداسې خبرې نسبت ولې کوئی کومه چې دَ هغه دَ شان سره

برابر نه ده؟ هغه یو جماعت وو چې تیر شو. تلك مبتداء او اشاره ابراهیم علیه السلام او یعقوب علیه السلام او دَهغوی دَ خامنو طرف ته ده. او (تلك) دَ خبر مؤنث کیدو دَ وجې نه مؤنث راوړلې شوې دې کوم اعمال چې هغوی کړی دی دَهغوی دَپاره دی یعنی دَهغې بدله دَ هغوی دَپاره ده. دا (جمله) مستانفه ده او کوم چې تاسو کوئی دَهغې بدله به تاسو ته ملاویږی. خطاب یهودیانو ته دې. دَهغوی دَاعمالو په باره کښې به تاسو نه سوال نه شی کولې لکه څنګه چې به دَهغوی نه ستاسو دَاعمالو باره کښې سوال نه شی کولې. جمله دَماقبل تاکید دې. یهودیان وائی یهودی شئ نو هدایت به درته ملاؤ شی. نصاریٰ وائی نصاری شئ هدایت به درته ملاؤ شی. اَوْ دَ تفصیل دَپاره دې دَ اول (قول) قائل دَمدینې یهودیان دی او دَ دویم (قول) قائل دَ نجران نصاریٰ دی. تاسو دوی ته اووایئ چې مونږ خو به دَ ملت ابراهیمی اتباع کوو په کوم کښې چې دَ څه کوګوالی نوم نشته (حنیفاً) دَ ابراهیم نه حال دې او حال دادې چې هغه ټول دینونو (باطله) نه دَ مستقیم دین طرف ته مائل کیدونکی دی. او ابراهیم علیه السلام دَ مشرکانو نه نه وو. او وایه دا مؤمنانو ته خطاب دې مونږ خو په الله تعالی باندې ایمان راوړلې دې او کوم چې زمونږ طرف ته نازل کړې شوی دی قرآن (په هغې باندې ایمان راوړې) او په هغه لسو صحیفو باندې ایمان لرو کوم چې په ابراهیم علیه السلام باندې نازل شوی او په اسماعیل علیه السلام او حضرت اسحاق علیه السلام او حضرت یعقوب علیه السلام باندې او دَهغوی په اولاد باندې نازل شوی او کوم چې ورکړې شوې حضرت موسی علیه السلام ته یعنی تورات او حضرت عیسی علیه السلام ته یعنی انجیل او کوم کتابونه او آیاتونه چې هغوی ته ورکړې شوی دَهغوی دَ رب دَ طرف نه (ایمان لرو) په دې توګه چې مونږ په هغوی کښې دَهیڅ قسم جدا والئ نه کوو دَ یهودیانو نصرانیانو په شان چې په بعضو باندې ایمان راوړو او دَ بعضو نه انکار کوو. مونږ خو دَالله تعالی تابعداریو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** وَمَنْ ای لایرغَبُ مَن استفهام انکاری مبتداء دې. یَرْغَبُ خبر، په دې کښې ضمیر دې کوم چې دَ مَنْ طرف ته راجع دې.

**قوله:** دین اسلام دې کښې اشاره ده چې الدِّین کښې الف لام دَ عهد دې او دلیل ئې فَلَاتَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ دی.

**قوله:** نهی عَن ترك الاسلام په دې سره دَ یو سوال جواب مقصود دې.

**سوال:** فَلَاتَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ کښې په ظاهرُ دَ مرګ نه نهی معلومیږی کوم چې دَ بنده په اختیار کښې نه دې.

**جواب:** دَمرګ نه نهی نه ده بلکه دَ ترك اسلام نه نهی ده څکه چې کله په مقید باندې نفی

داخليږي نو دقيد نفي کيږي. دَدې دپاره سره دَدې چې نهي هم په مرګ باندې داخل ده او مدخول هم نهي مقصود عن النهي وي مګر مدخول نهي اختياري نه ده په دې وجه دَ قيد نهي مراد ده.

**قوله** اَمَرَ بالثبات عليه دَدې عبارت نه دافائده ده چې نفس ايمان خو هغوی ته حاصل وو لهذا دَهغې دَحصول هيڅ مطلب نشته بلکه په اسلام باندې هميشه والې مراددې.

**قوله** بمنزلة الاب، اَلعَمُّ صِنوُ اَبِيهِ (الحديث)

**قوله** والجملة تاكيد لما قبله: دا د تکرار د فائدې بيان دې.

**قوله** كُونُوا هُودًا اَوْ نَصَارٰى اَوْ دَ تنويع مقال دَپاره دی نه چې دَ تخيير دَپاره. ځکه چې هره يو د ډله دَبلې ډلې تکفير کوی.

**قوله** قائل الاول اليهود دَاضافه مقصد يو اعتراض لرې کول دی.

**اعتراض** كونوا هودًا او نصارٰى کښې تناقض دې دَالله تعالٰى د قول ليست اليهود على شئ الخ سره

**جواب** دَ جواب ماحصل دادې چې دَدواړو قائل مختلف دی لهذا هيڅ تناقض نشته

**قوله** حال من ابراهيم يعنی حنيفًا ابراهيم نه حال دې حالانکه دَ مضاف اليه نه حال واقع کيدل صحيح نه دی دَدې وجې چې دَ اصل مضاف په ځائی ساتل صحيح وی نو دَ مضاف اليه نه هم حال واقع کيدل صحيح کيږي دلته هم داسې دی په دې وجه ابراهيم دَملت په ځائی کيخودو نه پس هم مطلب صحيح پاتې کيږي.

**[ اياتونه: ۱۳۷ - ۱۴۱ ]**

{فَإِنْ آمَنُوا} أيِ الْيَهُود والنَّصَارَى {بِمِثْلِ} مِثْل زَائِدَة {مَا آمَنْتُمْ بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوْا وَإِنْ تَوَلَّوْا} عَنِ الْإِيمَان بِهِ {فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ} خِلَاف مَعَكُمْ {فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ} يَا مُحَمَّد شِقَاقهمْ {وَهُوَ السَّمِيعُ} لِأَقْوَالِهِمْ {الْعَلِيمُ} بِأَحْوَالِهِمْ وَقَدْ كَفَاهُ إِيَّاهُمْ بِقَتْلِ قُرَيْظَة وَنَفْي النَّضِير وَضَرْب الْجِزْيَة عَلَيْهِمْ {صِبْغَةَ اللَّهِ} مَصْدَر مُؤَكِّد لِآمَنَّا وَنَصْبُهُ بِفِعْلٍ مُقَدَّر أَيْ صَبَغَنَا اللَّه وَالْمُرَاد بِهَا دِينه الَّذِي فَطَرَ النَّاس عَلَيْهِ لِظُهُورِ أَثَره عَلَى صَاحِبه كَالصَّبْغِ فِي الثَّوْب {وَمَنْ} أَيْ لَا أَحَد {أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً} تَمْيِيز {وَنَحْنُ لَهُ عَابِدُونَ} قَالَ الْيَهُود لِلْمُسْلِمِينَ نَحْنُ أَهْل الْكِتَاب الْأَوَّل وَقِبْلَتنَا أَقْدَم وَلَمْ تَكُنْ الْأَنْبِيَاء مِنَ الْعَرَب وَلَوْ كَانَ مُحَمَّد نَبِيًّا لَكَانَ مِنَّا فَنَزَلَ {قُلْ} لَهُمْ {أَتُحَاجُّونَنَا} تُخَاصِمُونَنَا {فِي اللَّهِ} أَنِ اصْطَفَى نَبِيًّا مِنَ الْعَرَب {وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ} فَلَهُ أَنْ يَصْطَفِي مَنْ يَشَاء {وَلَنَا أَعْمَالُنَا} نُجَازَى بِهَا {وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ} تُجَازَوْنَ بِهَا فَلَا يَبْعُد أَنْ يَكُون فِي أَعْمَالنَا مَا نَسْتَحِقّ بِهِ الْإِكْرَام {وَنَحْنُ لَهُ مُخْلِصُونَ} الدِّين وَالْعَمَل دُونكُمْ فَنَحْنُ أَوْلَى بِالِاصْطِفَاءِ وَالْهَمْزَة لِلْإِنْكَارِ وَالْجُمَل الثَّلَاث أَحْوَال {أَمْ} بَلْ أ {تَقُولُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {إِنَّ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطَ كَانُوا هُودًا أَوْ نَصَارَى قُلْ} لَهُمْ {أَأَنْتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللَّهُ} أَيِ اللَّه أَعْلَم وَقَدْ بَرَّ

منهما إبراهيم بقوله {مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا} والمذكورون معه تبع له {وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ} أخفي عن الناس {شَهَادَةً عِنْدَهُ} كائنة {مِنَ اللَّهِ} أي لا أحد أظلم منه وهم اليهود كتموا شهادة الله في التوراة لإبراهيم بالحنيفية {وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ} تهديد لهم {تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ} تقدم مثله

**ترجمه**: اوس كه چرې هغوی یعنی یهود او نصاری دغه شان ایمان راوړی څنګه چې تاسو ایمان راوړې دې نو هدایت یافته به شی (لفظ) مثل زائده دې او كه چرې هغوی په دې باندې دایمان راوړلو نه مخ واړه وی نو هغوی په ښکاره اختلاف کښې دی یعنی ستاسو په مخالفت کښې دی. لهذا تسلي ساته اې محمد ﷺ دهغوی په دښمنئ کښې به ډیر زر الله تعالی ستاسو کفایت اوکړی دهغوی خبرې ښه اوریدونکې او دهغوی حالات پیژندونکې دې. او الله تعالی دهغوی دپاره کافي شو. بني قریظه قتل کول او بنی نضیر جلاوطن کولو سره په هغوی باندې جزیه لګولو سره دالله تعالی رنګ اختیارکړئی (صبغة الله) مصدر دې د آمَنَّا دتاکید دپاره دې او ددې نصب د فعل مقدر دوجې نه دې. ای صَبَغَنَا اللهُ صبغةً او دې نه مراد دالله تعالی هغه دین دې په کوم چې هغه انسانان پیدا کړل د دین اثر په دیندارو باندې ښکاره کیدلو د وجې نه لکه چې د رنګ (اثر) په کپړه باندې ښکاره کیږی او د الله تعالی د رنګ نه به د چا رنګ ښه وی؟ صیغه د تمییز ده مونږ خود هغه بندګی کونکې یو (کله) چې یهودو مسلمانانو ته اووئیل چې مونږ اول اهل کتاب یو او زمونږ قبله د ټولو نه اولنې قبله ده او په عربو کښې انبیاء نه دی پیدا شوی که محمد ﷺ نبې وې نو هم زمونږ نه به وې نو راتلونکې آیت نازل شو. تاسو هغوی ته اووایئ آیا تاسو مونږ سره دالله تعالی باره کښې جګړې کوئی. په دې وجه چې هغه د عربو نه نبی منتخب کړو حالانکه هغه زمونږ هم رب دې او ستاسو هم رب دې. هغه ته اختیار دې چې په خپلو بندیګانو کښې څوك غواړی منتخب کړی زمونږ دپاره زمونږ اعمال دی د کوم چې به مونږ ته بدله راکولې شی او ستاسو دپاره ستاسو اعمال دی د کوم چې به تاسو له بدله درکولې شی. لهذا دا خبره لرې نه ده چې زمونږ په اعمالو کښې داسې څیز وی د کوم د وجې نه چې مونږ د اکرام حقدار یو مونږ خو هم ددې دپاره دین او عمل خالص کړې دې نه چې تاسو لهذا د انتخاب د پاره مونږ زیات غوره یو. او (اَتُحَآجُّوْنَنَا) کښې همزه استفهام انکاری دې او دریواړه جملې حال دی آیا تاسو وایئ (یقولون) یاء او تاء سره دې ابراهیم اسماعیل اسحاق او یعقوب علیهم السلام او دهغوی اولاد یهود او نصاری وو هغوی ته اووایه تاسو زیات پوهیږئی که الله تعالی؟ یعنی الله تعالی زیات پوهیدونکې دې. او الله تعالی د حضرت ابراهیم علیه السلام د یهودیت او نصرانیت دواړو نه براءت اوفرمائیلو. په خپل قول مَا كَانَ ابراهيمُ يهوديًّا ولا نصرانيًّا سره او هغوی سره

چې کوم حضرات ذکردی نو دَ (ابراهیم ﷺ) تابع دی اودَهغه نه به لوئی ظالم څوک وی؟ چاچې دَ الله تعالی په نیز ثابت شوې شهادت دَخلقو نه پټ کړې وی یعنی دَهغوی نه بل لوئی ظالم نشته اوهغه یهود دی چې هغوی په تورات کښې دَ ابراهیم ﷺ حنفی کیدو شهادت پټ کړو او الله تعالی ستاسو دَ کارونو نه غافل نه دې. دا یوه ډله وه چې تیره شوه. کوم چې هغوی کړی دَهغوی دَپاره دی او څه چې تاسو اوکړه ستاسو دَپاره دی تاسو نه به دَ هغوی دَاعمالو باره کښې سوال نه کیږی هم داسې آیت پورته تیرشوې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: مِثْلِ زائدة دَدې اضافه مقصد دَ یواعتراض جواب دې. اعتراض دادې چې مسلمانانو په الله باندې ایمان راوړې دې اوس یهود اونصاریٰ ته وئیلی شی چې که چرې هغوی دهغه په مثل باندې ایمان راوړی په کوم چې مسلمانانو ایمان راوړې دې نو دَدې نه خو دَالله تعالی مثل کیدل لازم راځی حالانکه دَالله تعالی څوك مثل نشته.

**جواب**: لفظ مثل زائده دې دَدې جواب شهادت هغه قراءت هم ورکوی په کوم کښې چې بمثل ماآمَنْتُمْ په ځائی بِمَاآمَنْتُمْ بِه دې. (ترويح)

**قوله**: مؤكِّدَ لِآمَنَّا، صبغةَ دَ فعل مقدر مصدردې او آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا أُنْزِلَ الخ دَ مضمون دَ تاکید دَپاره دی ځکه چې په مذکوره جمله کښې دَ بل مضمون هډو احتمال نشته په دې وجه دَدې عامل حذف کړې شوې دې. صبغة الله په اصل کښې صَبَغَنَا اللهُ صِبْغَةً وو په صِبْغَةَ اللهِ کښې حرف عطف ترك کولو طرف ته اشاره اوکړه چې صَبَغَنَا الله او دَ آمَنَّا مدلول هم یودې دَ کوم نه چې دَتاکید مفهوم ښکاره دې.

**قوله**: دونکم کښې اشاره ده چې نحن له مخلصون کښې دَمسند الیه تقدیم دَحصر دَپاره دې.

**قوله**: والهمزة للانكار یعنی أَتُحَاجُّوْنَ کښې همزه دَ انکار دَپاره دې په دې سره دَدې جواب اوشو چې استفهام دَالله تعالی دَ شان مناسب نه دې.

**قوله**: والجُمَلُ الثَّلٰثُ احوال دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ یواعتراض جواب دې.

**اعتراض**: په واؤ کښې اصل عطف دې لهذا په مذکوره دریوارو جملو کښې به واؤ عاطفه وی او معطوف علیه أَتُحَاجُّوْنَ دې کوم چې جمله انشائیه ده اودا دریواره جملې خبریه دی لهذا دَ جمله خبریه عطف انشائیه باندې لازم راځی کوم چې صحیح نه دې.

**جواب**: واؤ دَعطف دَپاره په هغه ځائی کښې اصل وی چرته چې دَعطف نه څه مانع نه وی اودلته مانع موجود دې اوهغه دَجملې خبریه په جمله انشائیه باندې دَ عطف لازم راتلل دی لهذا دلته واؤ عاطفه نه دې بلکه حالیه دې.

## پاره نمبر - ۲ [سيقول]

### [آيا تونه: ۱٤۲ - ۱٤۳]

{سيقول السفهاء} الجهال {مِنَ النَّاس} اليهود والمشركين {مَا وَلَّاهُمْ} أيّ شيء صرف النبيّ صلّي الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالمُؤمِنِينَ {عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا} علي استقبالها في الصلاة وهي بيت المقدس والإتيان بالسين الدّالّة علي الاستقبال من الإخبار بالغيب {قُل لِّلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ} أيّ الجهات كلّها فيأمر بالتوجه إلي أيّ جهة شاء لا اعتراض عليه {يَهْدِي مَن يَشَاءُ} هدايته {إِلَى صِرَاطٍ} طريق {مُّسْتَقِيمٍ} دين الإسلام أيْ ومنهم أنتم دلّ علي هذا {وَكَذَلِكَ} كما هديناكم إليه {جَعَلْنَاكُمْ} يا أمّة محمّد {أُمَّةً وَسَطًا} خيارًا عدولا {لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ} يوم القيامة أنّ رسلهم بلغتهم {وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا} أنّه بلّغكم {وَمَا جَعَلْنَا} صيّرنا {الْقِبْلَةَ} لك الآن الجهة {الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا} أوّلا وهي الكعبة وكان صلّي الله عليه وسلّم يصلّي إليها فلمّا هاجر أُمِرَ باستقبال بيت المقدس تألّفا لليهود فصلّي إليه ستة أو سبعة عشر شهرا ثمّ حوّل {إِلَّا لِنَعْلَمَ} علم ظهور {مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ} فيصدّقه {مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَى عَقِبَيْهِ} أيْ يرجع إلي الكفر شكًّا في الدين وظنًّا أنّ النّبيّ صلّي الله عليه وسلّم في حيرة من أمره وقد ارتدّ لذلك جماعة {وَإِن} مخففة من الثقيلة واسمها محذوف أيْ وإنّها {كَانَتْ} أيْ التولية إليها {لَكَبِيرَةً} شاقّة علي النّاس {إِلَّا عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ} منهم {وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ} أيْ صلاتكم إلي بيت المقدس بل يثيبكم عليه لأنّ سبب نزولها السّؤال عمّن مات قبل التحويل {إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ} المؤمنين {لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ} في عدم إضاعة أعمالهم والرأفة شدّة الرحمة وقدّم الأبلغ للفاصلة

**ترجمه**: كم عقل جاهل خلق يعني يهود او مشركين به ډير زر اووائي چې څه څيز اوګرځول هغوى؟ يعنى نبى او مومنانولره دَهغه قبلې نه په كومه چې هغوى وو يعنى په مونځ كښې تراوسه پورې چې دَ كومې قبلې طرف ته مخ كولو اوهغه بيت المقدس دې اود سين استقبال راوړل دَ اخبار بالغيب دَ قبيل نه دې او اووايه چې دَمشرق اومغرب مالک هم الله دې يعنى ټول طرفونه هم دَهغه ملك دې لهذا هغه ته حق دې چې كوم طرف ته غواړى دَ مخ كولو حكم وركړى په دې باندې چاته دَاعتراض حق نشته هغه چې چا ته هدايت وركول غواړى هغه ته نيغه (يعنى) دَ دين اسلام لار ښائى او په هغوى كښې (اې مؤمنانو) تاسو هم يئې چاته چې ئې نيغه لارخودلې ده. اومونږهم دغه شان څنګه چې تاسو ته نيغه لار خودلې ده اې امت محمد ﷺ تاسو دَ خير امت يعنى معتدل امت (هم) جوړ كړئى دې دپاره چې تاسو دَ قيامت په ورځ په خلقو باندې ګواه شئى په دې خبره چې دَهغوى رسولانوهغوى ته پيغام رسولې وو او رسول ستاسودپاره ګواه وى چې هغه تاسو ته پيغام رسولې دې. دَ قبلې په كوم طرف چې اول تاسو وئى او رسول الله ﷺ به دَ كعبې طرف ته مخ كولوسره مونځ

کولو خو چې کله هغوی هجرت اوکړو نوډیهودیانوډ زړه ساتنې دپاره د بیت المقدس طرف ته د مخ کولو حکم ورکړې شو نوحضورپاك دهغې طرف ته مخ کولوسره شپاړلس یا اوولس میاشتې مونځ اوکړو بیا (داحکم) بدل کړې شودا مونږ صرف ددې دپاره مقررکړې وو دې چې مونږ علم ظهور په توګه باندې ښکاره کړو چې د رسول څوک اتباع کوی؟ (یعنی) ددې تصدیق کوی اوڅوك دی چې اولټه تاویږی؟ یعنی په دین کښې شك کولوسره اودا ګمان کولو سره چې نبی د قبلې په معامله کښې ګډوډ شوې دې. او هم په دې وجه یوډله مرتدشوه لکه چې د قبلې د بدلون دا کار ګران دې یعنی په خلقو باندې سخت دې إِنْ مخففة عن المثقلة دې اوددې اسم محذوف دې (دراصل) وَإِنَّهَا وو مګر ددوې نه چاته چې الله تعالی هدایت ورکړې دې (هغوی دپاره هیڅ ګران نه دې) الله تعالی به ستاسو ایمان نه ضائع کوی یعنی د بیت المقدس طرف ته اداکړې شوی مونځونه به (نه ضائع کوی) بلکه په هغې به تاسو له اجر درکوی ځکه چې ددې د نزول سبب دهغه خلقو باره کښې سوال وو چې د قبلې د تحویل کیدو نه وړاندې مړه شوی. الله تعالی مؤمنانوسره شفقت اومهربانی کونکې دې دهغوی اعمال به نه ضائع کوی او رأفة شدتِ رحمت ته وائی ابلغ (یعنی رؤف) د فاصله د رعایت د وجې نه مقدم کړې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** سُفَهَاءُ (واحد) سَفِيْهٌ بیوقوف، نادان، کم عقل، جاهل، (س)

**قوله:** مَا وَلّٰهُمْ، مَا استفهامیه مبتداء وَلّٰهُمْ خبر وَلّٰى تَوْلِيَةٌ (تفعیل) شاکول، مخ اړول.

**قوله:** مِنَ النَّاسِ، سُفَهَاء نه حال کیدو د وجې نه محل کښې د نصب دې عامل سیقول دې. دا حال مبینه دې یعنی د نورو نه ممتاز او جدا کولودپاره ځکه چې سفاهت سره چې څنګه انسان متصف وی غیر انسان هم متصف کیږی تردې چې غیرحیوان هم متصف کیږی. دځر بیوقوفی خو د هرچا په ژبه عام ده د جماد طرف ته هم د سفه نسبت کولې شی بَقْلَةُ الحمقاء بې وقوف دانه، خرفه ته وائی. خرفه یوه دانه ده چې د دوائی په توګه هم استعمالیږی. دې ته بې وقوف وئیلو وجه داده چې دا په اوبوباندې تیریدو سره هم راټوکیږی خو د سیلاب د بهیدو په وخت د بې چینئی کیفیت وی. په داسې حال کښې د دې تیغ او ګل راویستل بې وقوفی نه ده نوځه دی؟ دا داسې ده لکه چې یومسافر په سفرکښې خپل کور جوړول شروع کړی اوخرف(س،ك) خَرَفًا د بوډاوالی د وجې نه د عقل فاسد کیدلو ته هم وائی.

**قوله:** قِبلة په وزن د جِلسة بیان د حالت دپاره دې لکه جلستُ جِلسةَ القاری، کښې د قاری په

شان کیناستو قِبْلَةً داستقبال حالت ته وائی دَ شریعت په عرف کښې دَ قبلې طرف ته مخ کولو ته وائی. قبلة، د جعلنا مفعول اول دې او التی کنت عَلَیهَا تقدیر موصوف سره مفعول ثاني دې. تقدیر دادې الجهة التی کنت علیها.

**قوله**: علی عقِبَیْهِ دَدې واحد عقبْ پوندې ته وائی مراد انقلاب علی عقبیه دَ حق نه باطل طرف ته واپس کیدل، مرتد کیدل دی.

**قوله**: لأنَّ سبب نُزُولِهَا السوال الخ دَدې عبارت مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: دَایمان تفسیر ئی په صلوة سره ولې اوکړو؟

**جواب**: دَ یهودو دَ طرف نه چې چونکه سوال هم دَ مانځه باره کښې وو په دې وجه ئی دَ ایمان تفسیر په صلوة سره کړې دې.

**قوله**: وقُدّم الابلغ للفاصلة دا دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: په عام توګه ترقی دَ ادنٰی نه اعلیٰ ته کیږی نه چې بالعکس لکه چې وائی عالم نحریرٌ نحریرٌ عالم نشی وئیلې هم دَدې قاعدې لاندې دلته رحیمٌ رؤفٌ وئیل پکار وو.

**جواب**: دَ فواصل رعایت دَپاره پوره قرآن کښې داسې کړې شوی دی سره دَدې چې دَ رحیم په مقابله کښې رؤف کښې شدت رحمت دې.

**[ایاتونه: ١٤٤ - ١٤٧]**

{قَدْ} لِلتَّحْقِيقِ {نَرَي تَقَلُّبَ} تَصَرُّف {وَجْهِكَ فِي} جِهَة {السَّمَاءِ} مُتَطَلِّعًا إِلَي الْوَحْيِ وَمُتَشَوِّقًا لِلْأَمْرِ بِاسْتِقْبَالِ الْكَعْبَة وَكَانَ يَوَدّ ذَلِكَ لِأَنَّهَا قِبْلَة إِبْرَاهِيم وَلِأَنَّهُ أَدْعَي إِلَي إِسْلَام الْعَرَب {فَلَنُوَلِّيَنَّكَ} نُحَوِّلَنَّك {قِبْلَةً تَرْضَاهَا} تُحِبّهَا {فَوَلِّ وَجْهَكَ} اسْتَقْبِلْ فِي الصَّلَاة {شَطْرَ} نَحْو {الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} أَيْ الْكَعْبَة {وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ} خِطَاب لِلْأُمَّةِ {فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ} فِي الصَّلَاة {شَطْرَهُ وَإِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ} أَيْ التَّوَلِّي إِلَي الْكَعْبَة {الْحَقُّ} الثَّابِت {مِنْ رَبِّهِمْ} لِمَا فِي كُتُبهمْ مِنْ نَعْت النَّبِيّ صَلَّي اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَنَّهُ يَتَحَوَّل إِلَيْهَا {وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تعملون} بِالتَّاءِ أَيّهَا الْمُؤْمِنُونَ مِنْ امْتِثَال أَمْره وَبِالْيَاءِ أَيْ الْيَهُود مِنْ إِنْكَار أَمْر الْقِبْلَة {وَلَئِنْ} لَام الْقَسَم {أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ بِكُلِّ آيَةٍ} عَلَي صِدْقك فِي أَمْر الْقِبْلَة {مَا تَبِعُوا} أَيْ لَا يَتْبَعُونَ {قِبْلَتَكَ} عِنَادًا {وَمَا أَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ} قَطْع لِطَمَعِهِ فِي إِسْلَامهمْ وَطَمَعهمْ فِي عَوْده إِلَيْهَا {وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ} أَيْ الْيَهُود قِبْلَة النَّصَارَي وَبِالْعَكْسِ {وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ} الَّتِي يَدْعُونَك إِلَيْهَا {مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ} الْوَحْي {إِنَّكَ إِذًا} إِنْ اتَّبَعْتهمْ فَرْضًا {لمن الظالمين} {الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ} أَيْ مُحَمَّدًا {كَمَا يعرفون أبناءهم} بنعته في كتبهم قال ابن سَلَام لَقَدْ عَرَفْته حِين رَأَيْته كَمَا أَعْرِف ابني ومعرفتي لمحمد أَشَدّ {وَإِنَّ فَرِيقًا مِنْهُمْ لَيَكْتُمُونَ الْحَقَّ} نَعْته

{وَهُمْ يَعْلَمُونَ} هَذَا الَّذِي أَنت عَلَيْهِ {الْحَقُّ} كَائِنًا {مِنْ رَبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ} الشَّاكِّينَ فِيهِ أَيْ مِنْ هَذَا النَّوْعِ فَهُوَ أَبْلَغُ مِنْ أَنْ لَا تَمْتَرِ.

**ترجمه:** قَدْ دَ تحقیق دَپاره دې مونږ ستا مخ دَ آسمان طرف ته دَ وحی په غوښتلو او استقبال کعبه په شوق کښې بار بار پورته کتونکې ګورو. او رسول ﷺ به (کعبه) دَ دې دَپاره خوښوله چې (کعبه) دَحضرت ابراهیم علیه السلام قبله وه او دَدې دَپاره هم چې کعبه قبله ګرځول عرب دَ اسلام طرف ته راغوښتلو کښې ډیر مؤثر (اپیل کونکې) وو. نو مونږ تاسو هم دغه قبلې طرف ته راګرځوو کومه چې ته خوښه وې. ته خپل مخ په مانځه کښې مسجد حرام یعنی کعبه طرف ته اوګرځوه او (اې مسلمانانو) تاسو چې چرته هم یئې دا امت ته خطاب دې. دَخپل مخونه (رخ) په مانځه کښې هم دې طرف ته کړئی. اهل کتاب و ته قطعی علم دې چې کعبه طرف ته مخ کول دَهغوی دَ رب دَ طرف نه قطعی حق دې ځکه چې دَهغوی په کتابونو کښې دَمحمد دَ صفاتو باره کښې دا موجود دې چې هغه به په (مانځه کښې) دَ کعبې طرف ته مخ کوی او الله تعالی دَهغوی دَ اعمالونه بې خبرنه دې. یاء او تاء سره اې مومنانو امتثال امر وغیره کوم چې تاسو کوئی او یهودیان چې دَ قبلې دَحکم نه انکار کوی (الله تعالی دَهغوی نه غافل نه دې) او اګرچې حضور پاک ﷺ تاسو لېنْ کښې لام قسمیه دې دَقبله په معامله کښې په خپل صداقت باندې ټول دلیلونه پیش کړئی نو بیا هم هغوئ دَ دښمنئی دَ وجې نه ستاسو دَ قبلې منونکی نه دی او نه تاسو دَهغوی دَ قبلې پیروی کونکی یئې. دا دَهغوی دَ اسلام باره کښې دَحضور پاک ﷺ امید منقطع کول دی. او دَ حضور پاک ﷺ باره کښې دَهغوی دَقبلې طرف ته دَ واپس کیدلو امید منقطع کول دی او نه دا یهود او نصاریٰ په خپل مینځ کښې دَ یوبل دَ قبلې اتباع کونکی دی یعنی نه دَ یهود او نصاریٰ او نه برعکس او که چرې حضور پاک ﷺ دَعلم راتلونه باوجود دَهغوی خواهشاتو پسې اولګی دَ کوم طرف ته چې هغوئ دعوت ورکوی. (یعنی) فرض کړه که تاسو دَهغوی اتباع اوکړئی نو تاسو به یقینًا دَ ظالمانو نه شئی چا ته چې مونږ کتاب ورکړې دې هغوی خو محمد ﷺ داسې پیژنی لکه څوک چې خپل ځامن پیژنی. دَهغوی په کتاب کښې دَ حضور پاک صفات موجود کیدو دَ وجې، عبدالله بن سلام او وئیل کله چې حضور پاک ما اولیدلو نو ما هغوی داسې اوپیژندل لکه څنګه چې خپل خوئی پیژنم بلکه دَ محمد ﷺ پیژندګلو دَدې نه هم زیاته ده. (رواه البخاری) بیشکه په دوی کښې یو جماعت دَحضور پاک صفات پټه وی سره دَدې چې هغوی ښه پیژندو چې دا (طریقه) په کومه چې رسول الله ﷺ دې حق ده او دَهغه دَ رب دَ طرف نه ده. واوْرئی تاسو دَ شک کونکو نه مه کیږئی یعنی دَ شک کونکو دَ قسم نه مه کیږئی فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ (طرز خطاب) کښې دَ لَا تَمْتَرِنه ډیر بلیغ دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** قَدْ دَ تحقیق دَپاره دي کما صرح المفسر العلام اودَ بعضو په نیز دَ تکثیردَپاره دي اودا کثرت دَحضور ﷺ پاك په نسبت دي یعنی دَ حضورپاك نظر په کثرت سره دَ آسمان طرف ته اوچتیدونکي وینی دلته دَقَدْ تقلیل ځکه چې نه شي کیدي چې تقلب دَدي نفی کوی دَدي دَپاره تقلب دَ کثرت تقاضه کوی.

**قوله** نُوَلِّیَنَّكَ مضارع جمع متکلم بانون تاکید ثقیله، مصدر تَوْلِیَةٌ کاف ضمیر مفعول دي مونږ به تا ضرور واپس راګرځوو. دي نه مراد دَ قبلې تحویل دي کوم چې غزوه بدر نه دوه میاشتې وړاندې په میاشت دَ رجب کښې په روایت دَ براء بن عازب ﷺ دَ زوال آفتاب نه پس دَمازیګر په مانځه کښې اوشو. دَ حضرت مجاهد ﷺ دَ قول نه معلومیږی چې هغه وخت حضورپاك صحابه کرامو ته دَ بنی سلمه په جمات کښې دَ ماسپښین مونځ ورکولو.

**قوله** اَیُّهَاالمؤمنون الخ دا د تعلون په صورت کښې دي.

**قوله** تَطَعُّ طمعه فی اسلامهم وطمعهم فی عودها الیها په دي کښې لف اونشر مرتب دي.

**قوله** الیهود قبلة النصاری وبالعکس دَ یهودو قبله صخرة البیت المقدس وو اودَ نصاریٰ قبله د صخره دَ مشرق طرف ته.

**قوله**: فرضًا دَدي اضافه مقصد دَ یوسوال جواب دي.

**سوال** لَئِنْ اَتَیْتَ کښې اِن استعمال شوي دي کوم چې دَ غیریقینی څیزونودَپاره استعمالیږی حالانکه دَرسول الله ﷺ دَ هغوی دَ قبلې اتباع نه کول اودَهغوی دَ حضورپاك دَ قبلې اتباع نه کول یقینی وو.

**جواب** علی سبیل الفرض تسلیم کولوسره دَ اِنْ استعمال شوي دي.

**قوله** هذا الذی انت علیه الحق هذا اسم اشاره ده الذی انت علیه موصول صله سره ملاؤشو مشار الیه جمله شوه مبتداء او الحق دَدي خبر.

**قوله** الممترین، اِمترَاءٌ (افتعال) نه اسم فاعل جمع مذکر، دَدي واحد اَلْمُمْتَرِی په شك کښې پریوتونکې، شك کونکې.

**قوله**: مِن هذا النوع یعنی ته دَ شکیانونه مه کیږه ځکه چې چې بعضې وخت انسان شك نه کوی مګر شکی کیږی خوداسې نه وی چې شك کوی او شکی کیږی نه یعنی دَ شکی دَپاره شك لازم نه دي مګر دَ شك دَ پاره شکی کیدل لازم دی. (والله اعلم بالصواب)

**قوله**: ابلغ من لاتمترّ دادَ یواعتراض جواب دي او اعتراض دادي چې دَ ایجاز قاعده دَدي

خبري مقتضی ده چې لاَتَمْتَرْ اوونيلې شی اختصار ترك كولوسره اطناب ولې اختيار كړې شوې دې؟

**جواب:** دلته اطناب بې فائدې نه دې ځكه چې اطناب دَ اختصار نه ابلغ دې. ځكه چې فَلاَ تَمْتَرْ دَ مستقبل په زمانه كښې دَحدوث امتراء نه منع دې ځكه چې دا فعل مضارع دې او متربن حدوث امتراء او بقاء امتراء دَدواړو نه منع دې دَدې دَاسم كيدو دَ وجې نه.

**[اياتونه:١٤٨-١٥٢]**

{وَلِكُلٍّ} مِنَ الْأُمَمِ {وِجْهَةٌ} قِبْلَة {هُوَمُوَلِّيهَا} وَجْهَهُ فِي صَلَاته وَفِي قِرَاءَة مَوْلَاهَا {فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ} بَادِرُوا إِلَى الطَّاعَات وَقَبُولهَا {أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا} يَجْمَعكُمْ يَوْم الْقِيَامَة فَيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ {إِن الله على كل شيء قدير} {وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ} لِسَفَرٍ {فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء تَقَدَّمَ مِثْله وَكَرَّرَهُ لِبَيَانِ تَسَاوِي حُكْم السَّفَر وَغَيْره {وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ} كَرَّرَهُ لِلتَّأْكِيدِ {لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ} الْيَهُود أَوْ الْمُشْرِكِينَ {عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ} أَيْ مُجَادَلَة فِي التَّوَلِّي إِلَى غَيْره لِتَنْتَفِي مُجَادَلَتهمْ لَكُمْ مِنْ قَوْل الْيَهُود يَجْحَد دِيننَا وَيَتْبَع قِبْلَتنَا وَقَوْل الْمُشْرِكِينَ يَدَّعِي مِلَّة إِبْرَاهِيم وَيُخَالِف قِبْلَته {إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ} بِالْعِنَادِ فَإِنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا تَحَوَّلَ إِلَيْهَا إِلَّا مَيْلًا إِلَى دِين آبَائِهِ وَالِاسْتِثْنَاء مُتَّصِل وَالْمَعْنَى لَا يَكُون لِأَحَدٍ عَلَيْكُمْ كَلَام إِلَّا كَلَام هَؤُلَاءِ {فَلَا تَخْشَوْهُمْ} تَخَافُوا جِدَالهمْ فِي التَّوَلِّي إِلَيْهَا {وَاخْشَوْنِي} بِامْتِثَالِ أَمْرِي {وَلِأُتِمَّ} عُطِفَ عَلَى لِئَلَّا يَكُون {نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ} بِالْهِدَايَةِ إِلَى مَعَالِم دِينكُمْ {وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ} إِلَى الْحَقّ {كما أرسلنا} متعلق باتم اي إتمام كَإِتْمَامِهَا بِإِرْسَالِنَا {فِيكُمْ رَسُولًا مِنْكُمْ} مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا} الْقُرْآن {وَيُزَكِّيكُمْ} يُطَهِّركُمْ مِنَ الشِّرْك {وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ} الْقُرْآن {وَالْحِكْمَةَ} مَا فِيهِ مِنَ الْأَحْكَام {ويعلمكم ما لم تكونوا تعلمون} {فَاذْكُرُونِي} بِالصَّلَاةِ وَالتَّسْبِيح وَنَحْوه {أَذْكُرْكُمْ} قِيلَ مَعْنَاهُ أُجَازِيكُمْ وَفِي الْحَدِيث عَنِ اللَّه مَنْ ذَكَرَنِي فِي نَفْسه ذَكَرْته فِي نَفْسِي وَمَنْ ذَكَرَنِي فِي مَلَأ ذَكَرْته فِي مَلَأ خَيْر مِنْ مَلَئِهِ {وَاشْكُرُوا لِي} نِعْمَتِي بِالطَّاعَةِ {وَلَا تَكْفُرُونِ} بالمعصية

**ترجمه:** دَهر امت دَپاره يوه قبله ده دَكومې طرف ته چې هغوی په خپل عبادت كښې مخ كوی او په يو قراءت كښې مُوَلَّاهَا دې (دَ كوم طرف ته چې راګرځولې شوې دې) دَ نيكو طرف ته وړاندې والې كوئی يعنی طاعات او دَدې دَقبليدو طرف ته تندی كوئی تاسو چرته هم چې يئې الله تعالی به تاسو راجمع كوی (يعنی) دَ قيامت په ورځ به مو راجمع كوی او ستاسو دَاعمالو بدله به دركولې شی. الله تعالی په هرڅيز باندې قادردې (اې محمد ﷺ) ته دَ كوم ځائی نه هم چې سفرشروع كړې (په مونځ كښې) مخ دَ مسجد حرام طرف ته كړه هم دغه ستا دَ رب فيصله ده او الله تعالی ستاسو دَاعمالونه بې خبره نه دې تاء او ياء سره هم دَدې په شان آيت تيرشوې دې

په سفر او حضر کښې دَ حکم یوشان والی دَ بیانولو دَپاره (آیت) مکرر ذکر کړې شوې دې او (اې مسلمانانو تاسو هم) چې د کوم ځائی نه سفر شروع کړئی خپل مخ دَ مسجد حرام طرف ته کوئی دَ تاکید دَپاره مکرر ذکر کړې شوې دی دې دَپاره چې خلق (یعنی) یهودیانو او مشرکانو ستاسو سره څه جګړه پاتې نه شی. (دَهغوی) دَ قبلې طرف ته دَمخ کولو دَ مخالفت د وجې نه یعنی دې دَپاره چې تاسو سره دَهغوی حجت بازی کول ختم شی په دې خبره کښې چې یهودیان وائی چې (محمد) زمونږ دَ دین نه خو انکار کوی مګر زمونږ دَ قبلې (بیت المقدس) اتباع کوی او دَ مشرکانو وینا داده چې محمد دَملت ابراهیمی خو دعویٰ کوی خو دَهغه دَ قبلې مخالفت کوی. سوا دَهغه خلقونه چا چې په دوی کښې دَ وجې دَ عناد ظلم اوکړو. دَهغوی وینا ده چې دکعبې طرف ته مخ کول صرف دَخپلو پلارانو د دین طرف ته رغبت دَ وجې نه کړې دې او (الا الذین) کښې استثناء متصل ده او معنی داده چې په تاسو به دَ چاهیڅ اعتراض پاتې نه شی. مګر (ظالمان) خلق لهذا تاسو دَ کعبې طرف ته مخ کولو کښې دَهغوی دَ جګړې کولو نه مه ویریږئی. زما حکم په ځائی راوړلو سره مانه ویریږئی دې دَپاره چې زه ستاسو دَ دین دَاحکامو طرف ته لارخودنه کولو سره په تاسو باندې خپل نعمت پوره کړم. او دَدې دَپاره چې تاسو دَحق طرف ته هدایت بیامومئی لکه څنګه چې مونږ هم ستاسو نه یو رسول (محمد ﷺ) دراولیګلو (كَمَا أَرْسَلْنَا) أُتِمَّ سره متعلق دې یعنی په داسې شان دَ نعمت تکمیل کولو سره لکه څنګه چې مونږ هم ستاسو نه رسول لیګلو سره نعمت پوره کړو چې تاسو ته زمونږ قرآنی آیاتونه لولی. او تاسو دَ شرک نه پاکوی او تاسو ته دکتاب یعنی قرآن او حکمت دربښائی په کوم کښې چې احکام دی او تاسو ته هغه څیز دراوښائی دکوم نه چې تاسو ناخبره وئی. لهذا تاسو دَ مونځ او تسبیح په ذریعه زما ذکر کوئی زه به تاسو یادوم. وئیلې شوی دی چې دَدې معنی ده زه به تاسو ته بدله درکوم او په حدیث قدسی کښې دی کوم سړې چې ما په خپل زړه کښې یادوی زه هغه په خپل زړه کښې یادوم او څوک چې ما په ګڼره کښې یادوی نوزه هغه دَ هغه دَ ګڼرې نه په بهتره ګڼره کښې یادوم او زما دَنعمتونو دَ طاعت په ذریعه شکر اداکړئی او دَ ګناه په ذریعه ناشکری مه کوئی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ مفسرعلام مِنَ الْأُمَمِ محذوف منلو سره حذف مضاف الیه طرف ته اشاره کړې ده حذف دَ مضاف په شان دَ مضاف الیه مثال هم عام دې. لِكُلٍّ ای لِكُلِّ أُمَّةٍ یعنی دَ هردین او مذهب والو دَپاره که دین حق وی او که باطل یو مرکزی رخ وی کوم ته چې دَهغوی قبله وئیلی شی.

**قوله:** هُوَ مُوَلِّيهَا هو نه فریق مراد دې کوم چې دَ أُمَمِ مفهوم دې دَکُلٌّ په مناسبت سره هو

راوړلې شوې دې که مفسرعلام دَ امرٌ په ځائې فریق سره تعبیرکولې نوزیات به واضح وې. (صاوی)

**قوله**: مُوَلِّيهَا مُوَلِّيْ اسم فاعل دې هَا مفعول اول دې. وَجهَهُ مفعول ثانی دې کوم چې مفسرعلام ښکاره کړې دې. وفی قراءة مُوَلاهَا په صیغه دَ اسم مفعول دَدې نائب فاعل مفعول اول دې.

**قوله**: قِبْلَةٌ مفسرعلام دَ وِجْهَةٌ تفسیرپه قبلَةٌ سره کولوکښې دَ دوو اعتراضونو جواب ورکړې دې. ① وِجْهَةٌ مصدردې په معنی د توجه، په دې صورت کښې معنی صحیح نه ده ځکه چې مقصود دا نه دې چې دَ هرامت دَپاره توجو ده بلکه مراد متوجه الیه دې یعنی دَ چاطرف ته چې توجو اوکړې شی. د قِبْلَة اضافه کولوسره ئې جواب ورکړې چې معنی مصدری مراد نه ده مراد ظرف مکان دې کوم ته چې قبله وئیلې شی. ② دَ قیاس تقاضادا ده چې جِهَةٌ وی ځکه چې تا دَ واؤ په عوض کښې ده لکه چې په عِدَةٌ کښې چې دا په اصل وِعْدُوو، واؤحذف کړې شو او آخرکښې دَ تاء اضافه اوکړې شوه نو جِهَةٌ شو. وِجْهَةٌ کښې عوض اومعوض دواړو جمع کیدل لازم راځی.

**جواب**: وِجْهَةٌ سره دَدې چې په اصل کښې مصدردې خودَ متوجه الیه په نوم شوې دې اوهغه قبله ده په دې کښې واؤ باقی ساتل شاذ نه دی. (ترویح الا رواح)

**قوله**: الیهوداوالمشرکین دې کښې اشاره ده چې په للناس کښې لام دَ عهد دې.

**قوله**: أي مُجَادَلَة، د حُجَّةٌ تفسیر ئې په مجادلة سره کولوکښې اشاره اوکړه چې دلته دَ حجة نه دلیل او برهان مراد نه دې ځکه چې هغوی سره څه حجة او برهان نه وو بلکه منازعة او مجادلةبالباطل مراد دې.

**قوله**: من قول الیهودالخ دادَ مجادلة بیان دې یعنی یهود دې ویناکولوسره مجادله کوی اومشرکان دې وینا کولوسره کوی.

**قوله**: الی غَیْرِه، غیره ضمیر تَوَلِّيْ ظرف ته راجع دې مطلب دادې چې اې مسلمانانو مونږ تاسو ته دَ کعبې طرف ته مخ کولودَدې دَپاره حکم درکړې دې چې په مخ کولو کښې جګړه ختمه شی.

**قوله**: الإستثناءمتصل ځکه ده چې مستثنٰی منه هم ظالمین دی.

.......

**[ایاتونه: ۱۵۳ - ۱۵۸]**

{يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا} عَلَي الْآخِرَة {بِالصَّبْرِ} عَلَي الطَّاعَة وَالْبَلَاء {وَالصَّلَاة} خَصَّهَا بِالذِّكْرِ لِتَكَرُّرِهَا وَعِظَمِهَا {إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصَّابِرِينَ} بِالْعَوْنِ {وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللّٰه} هُمْ {أَمْوَات بَلْ} هُمْ {أَحْيَاء} أَرْوَاحهمْ فِي حَوَاصِل طُيُور خُضْر تَسْرَح فِي الْجَنَّة حَيْثُ شَاءَتْ لِحَدِيثٍ بِذٰلِكَ {وَلٰكِنْ لَا تَشْعُرُونَ} تعلمون ما فيه {وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْف} لِلْعَدُوّ {وَالْجُوع} الْقَحْط {وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَال} بِالْهَلَاكِ {وَالْأَنْفُس} بِالْقَتْلِ وَالْمَوْت وَالْأَمْرَاض {وَالثَّمَرَات} بِالْجَوَائِحِ أَيْ لَنَخْتَبِرَنَّكُم فَنَنْظُر أَتَصْبِرُونَ أَمْ لَا {وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ} عَلَي الْبَلَاء بِالْجَنَّةِ هُمْ {الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَة} بَلَاء {قَالُوا إِنَّا لِلّٰهِ} مِلْكًا وَعَبِيدًا يَفْعَل بِنَا مَا يَشَاء {وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ} فِي الْآخِرَة فَيُجَازِينَا وَفِي الْحَدِيث مَنْ اسْتَرْجَعَ عِنْد الْمُصِيبَة أَجَرَهُ اللّٰه فِيهَا وَأَخْلَفَ اللّٰه عَلَيْهِ خَيْرًا وَفِيهِ أَنَّ مِصْبَاح النَّبِيّ صَلَّي اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِئَ فَاسْتَرْجَعَ فَقَالَتْ عَائِشَة إِنَّمَا هٰذَا مِصْبَاح فَقَالَ كُلّ مَا أَسَاءَ الْمُؤْمِن فَهُوَ مُصِيبَة رَوَاهُ أَبُو دَاوُد فِي مَرَاسِيله {أُولٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَات} مَغْفِرَة {مِنْ رَبِّهِمْ وَرَحْمَة} نعمة {وَأُولٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ} إِلَي الصَّوَاب {إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَة} جَبَلَانِ بِمَكَّة {مِنْ شَعَائِرِ اللّٰه} أَعْلَام دِينه جَمْع شَعِيرَة {فَمَنْ حَجَّ الْبَيْت أَوِ اعْتَمَرَ} أَيْ تَلَبَّسَ بِالْحَجِّ أَوْ الْعُمْرَة وَأَصْلهمَا الْقَصْد وَالزِّيَارَة {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ} إِثْم عَلَيْهِ {أَنْ يَطَّوَّف} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الطَّاء {بِهِمَا} بِأَنْ يَسْعَي بَيْنهمَا سَبْعًا نَزَلَتْ لَمَّا كَرِهَ الْمُسْلِمُونَ ذٰلِكَ لِأَنَّ أَهْل الْجَاهِلِيَّة كَانُوا يَطُوفُونَ بِهِمَا وَعَلَيْهِمَا صنمان يمسحونهما وعن بن عَبَّاس أَنَّ السَّعْي غَيْر فَرْض لِمَا أَفَادَهُ رَفْع الْإِثْم مِنَ التَّخْيِير وَقَالَ الشَّافِعِيّ وَغَيْره رُكْن وَبَيَّنَ صَلَّي اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرِيضَته بِقَوْلِهِ إِنَّ اللّٰه كَتَبَ عَلَيْكُمْ السَّعْي رَوَاهُ الْبيهقي وغيره وقال ابدأوا بِمَا بَدَأَ اللّٰه بِهِ يَعْنِي الصَّفَا رَوَاهُ مُسْلِم {وَمَنْ تَطَوَّعَ} وَفِي قِرَاءَة بِالتَّحْتِيَّةِ وَتَشْدِيد الطَّاء مَجْزُومًا وَفِيهِ إِدْغَام التَّاء فِيهَا {خَيْرًا} أَيْ بِخَيْرٍ أَيْ عَمِلَ مَا لَمْ يَجِب عَلَيْهِ مِنْ طَوَاف وَغَيْره {فَإِنَّ اللّٰه شَاكِر} لِعَمَلِهِ بِالْإِثَابَةِ عَلَيْهِ {عَلِيم} بِهِ

---

**ترجمه**: اې ایمان والو په طاعت او مصیبت باندې صبر او په مانځه سره دَ آخرت دَپاره امداد غواړئ. دَ مونځ ذکر باربار راتلل اودَدې عظمت شان دَ وجې په خاص توګه مکرر ذکر کړې دې. بیشکه الله تعالی صبرکونکوته دَامداد په ذریعه ملګرتیاورکوی اودَ الله تعالی دَ لارې شهیدانوته مړه مه وایئ هغوی ژوندی دی دَهغوی روحونه دَ شنو مارغانو په شکلونوکښې په جنت کښې ګرځې چې غواړې ګرځی. دَ دې مضمون دَ حدیث دَ وجې نه لیکن په کوم کیفیت کښې چې هغوی دی تاسو په هغې نه پوهیږئ او مونږ تاسو ته دَ دښمن نه دَ ویرې او دَ قحط او اولږې دَ ویرې اودَ مال دَضایع کیدو په ذریعه نقصان بل په ځانونوکښې دَ قتل مرضونو او مرګ په ذریعه ضرور ازمیښت کوو. او په میوو کښې دَ بیمارو دَ نقصان په ذریعه تاسو ضرور ازمیښت کوو دې دَ پاره چې مونږ اوګورو چې تاسو صبرکوئ که نه.

په مصیبت کښې صبرکونکوته دَ جنت زیرې ورکړه. دا هغه خلق دی چې کوم وخت په دوی څه مصیبت راځی نو وائی چې مونږ دَ ملکیت او عبدیت په اعتبارسره دَ الله یو هغه ته اختیاردې چې زمونږ سره څه کول غواړی کولې شی او مونږ په آخرت کښې هم دَهغه طرف ته ورتلونکی یو نو هغه به مونږ ته بدله راکوی. په حدیث شریف کښې دی چې یو ځل دَ رسول الله ﷺ ډیوه مړه شوه نو حضورپاک اناللہ اوونیل حضرت عائشه ﷺ اوفرمائیل (یارسول الله) داخو صرف ډیوه ده نوحضورپاک اوفرمائیل هرهغه څیز چې مومن ته تکلیف اورسوی هغه مصیبت دې اودا ابوداؤد ﷫ په خپل مراسیل کښې ذکرکړی دی.
همدغه هغه خلق دی په چا باندې چې به دَ خپل رب دَ طرف نه مغفرت او نوازشات وی او هم دغه شان خلق دَ نیغې لارې طرف ته هدایت بیاموندونکی دی. یقیناً صفا اومروه دوه غرونه دَ الله تعالی نشانې دی یعنی دَهغه دَ دین نښې دی. شَعَآئِرُ دَ شَعِيْرَةٌ جمع ده نو چې چا دَ بیت الله حج اوکړو یا ئی عمره اوکړه یعنی دَ حج او عمرې احرام ئی اوتړلو اودَ حج اصلی معنی اراده او زیارت دې نودَهغه دَپاره په صفا اومروه کښې دَ سعی کولو هیڅ گناه نشته. يَطَّوَّفَ کښې په اصل کښې دَ تاء په طاء کښې ادغام دې په داسې توگه چې دَ صفا اومروه په مینځ کښې اود ځله سعی اوکړی. دا آیت هغه وخت نازل شو کوم وخت چې مسلمانانو دَ صفا اومروه سعی ناخوښه اوگنړله ځکه چې دَجاهلیت خلقو به دې نه طواف کولو او په دې باندې دوه بتان وو اودې له به ئی لاس وراوړلو. اودَ حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چې سعی فرض نه ده ځکه چې رفع اثم سره تخییر مستفاد کیږی اما شافعی ﷫ وغیره فرمائیلی دی چې (سعی) رکن دې. اورسول الله ﷺ خپل قول اِنَّ اللهَ کَتَبَ عَلَيْكُمُ السَّعْيَ سره دَدې وجوب بیان فرمائیلې دې. (رواه بیهقی وغیره) او فرمائیلی دی دَ کوم څیز نه چې الله تعالی شروع فرمائیلې ده تاسو هم دَهغې نه شروع اوکړئ یعنی دَ صفا نه (رواه مسلم) او کوم سړې چې په اختیاری توگه (څه) کارخیر اوکړی یعنی طواف وغیره یعنی څه داسې دَخیرکاراوکړی چې په هغه باندې واجب نه وی نوالله تعالی دَهغې اجر ورکولوسره دَهغه عمل قدردان دې دَهغه نه خبردې. تَطَوَّعَ کښې یوقراءت یاء تحتانیه او دَ طاء تشدید سره مجزوم دې اودَدې دَ تاء په طاء کښې ادغام دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: بِالْعَوْنِ، بِالْعَوْنِ وئیلو سره ئې اشاره اوکړه چې عَوْن نه نصرت خاصه مراد دې ځکه چې عمومی معیت خودَالله تعالی هرشئ سره دې لهذا په دې کښې صابرین دَپاره څه فضیلت نشته. مفسرعلام بِالْعَوْنِ وئیلو سره هم دا شبه لرې کړې ده. دَدې دفع کرلوحاصل دادې چې معیت دوه قسمه وی اودَدې نه دا معیت متقین ومحسنین وصابرین

سره خاص دي. په دې کښې دَ صبر او صلوة په ذريعه سره دَ امربالاستعانت علت هم شته صلوة دَ صبر نه اولى دي لهذا مصلين سره به معيت خاصه بطريق اولى وى.

**قوله**: في الحواصل، حَوَاصِلُ، دَ حَوْصِلَةٌ جمع ده په فارسى کښې سنگدان چرګ ته وائى او په اردو کښې دَدې ترجمه ده لرى.

**قوله**: لحديث بذلك. (المسلم والمشكوة)

**قوله**: بالجوائح دا دَ جائحةٌ جمع ده دَ ميوو بيمارئى يا چينجى ته وائى.

**قوله**: هُمْ أَمْوَات، هُمْ محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چې أَمْوَات د مبتداء محذوف خبر دې. ځکه چې أَمْوَات مقوله ده او مقوله هم جمله وى.

**قوله**: بَلْ هُمْ أَحْيَاءٌ مفسر علام دَ هُمْ اضافه کولو سره اشاره کړې ده چې دَ أَحْيَاءٌ عطف په أَمْوَات باندې عطف مفرد على المفرد نه دې چې لاتقُولوا دَ لاندې وى او معنى وى بل قولوا أَحْيَاءٌ او نه په هُمْ أَمْوَات باندې عطف دې چې عطف جمله على الجمله وى ځکه چې دا دَ قول لاندې نه دې بلکه دا په جمله تقولوا باندې معطوف دې دَدې جملې په ذريعه دَ نهى نه دَ اخبار طرف ته اضراب دې. ځکه چې مقصد هغوئ دَپاره اثبات د حيات دې نه دا چې ده ته حکم ورکولې شى چې تاسو دهغوئ په شان کښې أَنَّهُمْ أَحْيَاءٌ اووايئ.

**قوله**: مَا هُمْ فِيهِ، تَشْعُرُوْنَ په معنى د تعلمون مفعول به دې.

**قوله**: مُصِيْبَةٌ دا إِصَابَةٌ دَ (افعال) نه اسم فاعل مؤنث دې تکليف رسونکې، مُصيبَة په اصل کښې دَ صفت صيغه ده او دَ کثرت استعمال دَ وجې نه دَدې موصوف محذوف دې. مثلاً رَمْيَةٌ مُصيبة په نښه باندې لګيدونکې غشى ويشتل، لکه چې دَ کثرت استعمال دَ وجې نه مويز منقّى تخم راويستونکې مويز. دَمنقّى معنى ده تخم صاف کړې شوې، مويز په داروګانو کښې هم تخم ويستلو سره استعمالولې شى لکه چې تخم راويستل لازم دى لهذا موصوف حذف کولو سره صفت دَ هغې په ځائى کړې شو او صرف منقّى ورته اووئيلې شو.

**قوله**: نِعْمَة، دَرحمَة تفسير په نعمة سره کولو کښې اشاره اوکړه چې دَ رحمة لازم معنى مراد ده او هغه دې نعمت، ځکه چې دَ رحمة اصلى معنى دَ زړه نرى کيدل دى کوم چې دَالله تعالى دَ ذات دَپاره متصور نه دى.

**قوله**: مجزومًا يعنى دَ ياء په صورت کښې يَطَّوَّعْ جزم عين سره دې دَ مجزومًا دَ اضافه مقصد يو وهم لرې کول دى. وهم دا دې لکه څنګه چې تَطَوَّعْ په صورت کښې عين دَ فتحه

سره دي لهذا دَ ياء په صورت کښې هم به دَعين فتحه سره وی حالانکه دَ ياء په صورت کښې به مضارع وی او مضارع بغيردَ ناصب منصوب کيدې نه شی. په خلاف دَ تاء په صورت کښې چې دَ ماضی صيغه ده اودَ مجزوم کيدو دَ وجې نه جزاء وی.

**[اياتونه:١٥٩-١٦٣]**

وَنَزَلَ فِي الْيَهُود {إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ} النَّاس {مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ} كَآيَةِ الرَّجْم وَنَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مِنْ بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ} التَّوْرَاة {أُولَٰئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ} يُبْعِدهُمْ مِنْ رَحْمَته {وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ} الْمَلَائِكَة وَالْمُؤْمِنُونَ أَوْ كُلّ شَيْء بِالدُّعَاءِ عليهم باللعنة {إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا} رَجَعُوا عَنْ ذَلِكَ {وَأَصْلَحُوا} عَمَلهمْ {وَبَيَّنُوا} مَا كَتَمُوا {فَأُولَٰئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ} أَقْبَل تَوْبَتهمْ {وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ} بِالْمُؤْمِنِينَ {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ} حَال {أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ} أَيْ هُمْ مُسْتَحِقُّونَ ذَلِكَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة وَالنَّاس قِيلَ عَامّ وَقِيلَ الْمُؤْمِنُونَ {خَالِدِينَ فِيهَا} أَيْ اللَّعْنَة وَالنَّار الْمَدْلُول بِهَا عَلَيْهَا {لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ} طَرْفَة عَيْن {وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ} يُمْهَلُونَ لِتَوْبَةٍ أَوْ لِمَعْذِرَةٍ وَنَزَلَ لَمَّا قَالُوا صِفْ لَنَا رَبّك {وَإِلَٰهُكُمْ} الْمُسْتَحِقّ لِلْعِبَادَةِ مِنْكُمْ {إِلَٰهٌ وَاحِدٌ} لَا نَظِير له لا في ذَاته وَلَا فِي صِفَاته {لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ} هُوَ {الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ}

**ترجمه:** اودَيهود وباره کښې ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ ﴾ (الاية) نازل شو بيشکه هغه خلق کوم چې زمونږ نازل شوی دليلونواوهدايت مثلاً آيت رجم اودَ محمد ﷺ صفات پټوی سره دَدې چې مونږ دَ دغه خلقودَپاره په تورات کښې بيان کړی دی هم دغه هغه خلق دی په چاچې الله تعالی لعنت کوی يعنی دَخپل رحمت نه ئې لرې ساتی او لعنت کونکی لعنت کوی (اوهغه) فرښتې اومؤمنان دی ياهرشئ چې دَهغوی دَپاره دَ لعنت بددعاکوی. مګرهغه خلق چاچې توبه اوکړه يعنې دَ دغه حرکت نه منع شو اودَخپلو اعمالو اصلاح ئې اوکړه اوکوم چې هغوی پټ کړی وو هغه ئې ښکاره کړل دا هغه خلق دی دَ چاتوبه چې زه قبلوم او زه ډير معافی کونکې يم او په مؤمنانو باندې رحم کونکې يم. بيشکه هغه خلق چاچې کفراوکړو او هم دکفرپه حالت کښې مړه شو هم دغه هغه خلق دی په چاچې دَ الله تعالی دَ فرښتو اودَ ټولو خلقو لعنت دې يعنی داخلق په دنيا اوآخرت کښې دَلعنت مستحق دی. د النَّاس باره کښې وئيلی شوی دی چې دې نه عام خلق مراد دی او دا هم وئيلې شوی دی چې مؤمنان ترې مراد دی. په لعنت کښې يا په اور کښې کوم چې دَ لعنت مدلول دې هميشه به وی. (لهذا اضمارقبل الذکربه لازم نه راځی) اونه به دَهغوی په عذاب کښې دَ سترګو دَ رپ په اندازه کمې کولې شی اونه به هغوی ته دَتوبې او معذرت مهلت ورکولې شی. اوکله چې (مشرکانو) اووئيل ته زمونږ دَ پاره دَ رب صفت بيان کړه نودا آيت نازل شو ﴿ وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴾ ستاسو خدائې چې ستاسودَ عبادت مستحق دې هم يوخدائې دې په ذات

او صفات كښې څوك دَهغه برابر نشته دَهغه نه علاوه بل يوخدائي نشته هم هغه رحمن او رحيم دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله** وَنَزَلَ فِي اليهودِ په دې كښې اشاره ده چې اِنَّ الَّذِيْنَ كښې موصول دَعهد دَپاره دې (كما قال صاحب الكشاف) او من البينت كښې الف لام هم دَعهد دې ځكه چې دا آيت دَيهود درباره كښې نازل كړې شوې دې او فى الكتاب دَدې قرينه ده ځكه چې دَ كتاب نه تورات مراد دې.

**قوله**: الناس دا دَ يَكْتُمُوْنَ مفعول ثانى دې او البينت نه احكام مراددى لكه چې مفسرعلام ښكاره كړې ده يعنى رجم وغيره اودَ هدى نه مراد دَ رسول الله ﷺ صفات دى كوم چې دَحضورپاك دَاتباع طرف ته لارخودنه كونكى دى. لهذا هدى په معنى دَ هَادِ دې دَ مبالغه په توګه هادِئى هدًى سره تعبيركړې دې.

**قوله**: اَللّٰعِنُوْنَ دَ واؤ اونون سره جمع راوړلوكښې اشاره ده چې دَلعنت كونكونه ذوى العقول مراد دى.

**قوله** اَوْكُلّ شيْءٍ دې كښې اشاره ده چې اَللّٰعِنُوْنَ كښې الف لام دَ استغراق دَپاره دې.

**قوله** اى اَللَّعْنَةُ اوالنار دَدې عبارت مقصد د فِيْهَا مرجع كښې احتمال بيانول دى يعنى هميشه به او سيږى په لعنت كښې يا په اُوركښې.

**قوله** المدلول بها عليها دادَ يوسوال مقدرجواب دې.

**سوال**. د فِيْهَا مرجع النار نه شى كيدې ځكه چې په ماقبل كښې دَدې ذكر نشته لهذا اضمار قبل الذكر به لازم راځى؟

**جواب**: النار سره دَدې چې صراحةً مذكورنه دې خو ضمنًا مذكوردې ځكه چې چې النار، دَ اللّعنة مدلول دې يعنى چې كوم سړې هميشه دَ لعنت مستحق كيږى دَهغه دَپاره نار لازم دې.

**[اياتونه: ۱۶٤ - ۱٦٧]**

---

وطَلَبُوا آية علي ذلك فنزلت {إن في خلق السماوات والأرض} وما فيهما مِنَ الْعَجَائِب {وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ} بِالذَّهَابِ وَالْمَجِيء وَالزِّيَادَة وَالنُّقْصَان {وَالْفُلْكِ} السُّفُن {الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ} وَلَا تَرْسُب مُوقَرَة {بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ} مِنَ التِّجَارَات وَالْحَمْل {وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ} مَطَر {فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ} بِالنَّبَاتِ {بَعْدَ مَوْتِهَا} يُبْسهَا {وَبَثَّ} فَرَّقَ وَنَشَرَ بِهِ {فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ} لِأَنَّهُمْ يَنْمُونَ بِالْخِصْبِ الْكَائِن عَنْهُ {وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ} تَقْلِيبهَا جُنُوبًا وَشِمَالًا حَارَّة وَبَارِدَة {وَالسَّحَابِ} الْغَيْم

{الْمُسَخَّرِ} الْمُذَلَّل بِأَمْرِ اللّٰه تَعَالَي يَسِير إِلَي حَيْثُ شَاءَ اللّٰه {بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ} بِلَا عَلَاقَة {لَآيَاتٍ} دَالَّات عَلَي وَحْدَانِيَّته تَعَالَي {لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ} يَتَدَبَّرُونَ {وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللّٰهِ} أَيْ غَيْرِه {أَنْدَادًا} أَصْنَامًا {يُحِبُّونَهُمْ} بِالتَّعْظِيم وَالْخُضُوع {كَحُبِّ اللّٰهِ} أَيْ كَحُبِّهِمْ لَهُ {وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلّٰهِ} مِنْ حُبِّهِمْ لِلْأَنْدَادِ لِأَنَّهُمْ لَا يَعْدِلُونَ عَنْهُ بِحَالٍ مَا وَالْكُفَّار يَعْدِلُونَ فِي الشِّدَّة إِلَي اللّٰه {وَلَوْ يَرَى} تُبْصِر يَا مُحَمَّد {الَّذِينَ ظَلَمُوا} بِاتِّخَاذِ الْأَنْدَاد {إِذْ يَرَوْنَ} بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمفعُول يُبْصِرُونَ {الْعَذَابَ} لَرَأَيْت أَمْرًا عَظِيمًا وَإِذْ بِمَعْنَي إِذَا {أَنَّ} أَيْ لِأَنَّ {الْقُوَّةَ} الْقُدْرَة وَالْغَلَبَة {لِلّٰهِ جَمِيعًا} حَال {وَأَنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ} وَفِي قِرَاءَة تَرَي وَالْفَاعِل ضَمِير السَّامِع وَقِيلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا فَهِيَ بِمَعْنَي يَعْلَم وَأَنَّ وَمَا بَعْدهَا سَدَّتْ مَسَدّ الْمَفْعُولَيْنِ وَجَوَاب لَوْ مَحْذُوف وَالْمَعْنَي لَوْ عَلِمُوا فِي الدُّنْيَا شِدَّة عَذَاب اللّٰه وَأَنَّ الْقُدْرَة لِلّٰهِ وَحْده وَقْت مُعَايَنَتهمْ لَهُ وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة لَمَا اتَّخَذُوا مِنْ دُونه أَنْدَادًا {إِذْ} بَدَل مِنْ إِذْ قَبْله {تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا} أَيْ الرُّؤَسَاء {مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا} أَيْ أَنْكَرُوا إِضْلَالهمْ {وَ} قَدْ {رَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ} عُطِفَ عَلَي تَبَرَّأَ {بِهِمُ} عَنْهُمْ {الْأَسْبَابُ} الْوُصَل الَّتِي كَانَتْ بَيْنهمْ فِي الدُّنْيَا مِنَ الْأَرْحَام والمودة {وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً} رجعة إلي الدنيا {فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ} أَيْ الْمَتْبُوعِينَ {كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا} اليوم ولو للتمني ونتبرأ جوابه {كَذَٰلِكَ} أَيْ كَمَا أَرَاهُمْ شِدَّة عَذَابه وَتَبَرَّأَ بَعْضهمْ مِنْ بَعْض {يُرِيهِمُ اللّٰهُ أَعْمَالَهُمُ} السَّيِّئَة {حَسَرَاتٍ} حَال نَدَامَات {عَلَيْهِمْ وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ} بَعْد دُخُولهَا

---

**ترجمه** او مشرکانو چې کله په دې باندې دَ دلیل مطالبه اوکړه نو دا آیت نازل شو ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ نازل شو بیشکه دَ آسمانونو او زمکې په جوړخ کښې اودَهغې په عجائباتو کښې اودَ شپې ورځې تلوراتلو او زیاتیدواو کمیدو په ذریعه تغیرکښې او په هغه کشتوکښې چې په دریابونوکښې دَخلقو دَ گټې سامانونه دَ تجارت او بوجونه اوړی گرځي. اودَ دروندوالی باوجود ډوبیږی نه او په هغه اوبوکښې کومې چې دَ آسمان نه دَ باران په شکل کښې الله تعالی راوره وی بیا په دې اوبو سره دَ برتو په ذریعه مره یعنی اوچې زمکه راژوندئی کړه په دې کښې ئې هرقسم ځناور خواره کړل ځکه چې دَهغوی لوئیدل په دغه شینکی سره کیږی کوم په اوبوباندې راپیدکیږی. او هواګانې شمالاً او جنوبًا او په گرمو اویخو کښې بدلیدلو کښې او په هغه اوریځو کښې چې دَ الله تعالی دَ حکم تابع دی (او) دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې بغیردَ څه ترون نه زوړند دی (او) کوم طرف ته چې الله تعالی غواړی هغه طرف ته ځی په هغې کښې دَ عقلمندودَپاره ځوک چې غور اوفکر کوی دَ الله تعالی دَ یووالی نښې دی. او څه خلق داسې هم دی چې غیرالله (یعنی) بتان (دَ الله) سره برابر گرځوی دَ تعظیم اوعاجزئی په ذریعه هغوی سره دَ

داسې تعلق معامله کوی لکه څنګه چې الله تعالى سره ساتى او ايمان والا دَ الله تعالى په محبت کښې دير سخت وى دَهغوى دَ شرکاؤ دَ محبت په مقابله کښې، ځکه چې هغوى په يوحال کښې هم دَ الله تعالى نه واپس نه ګرځى او کافران دَ مصيبت په وخت (خپل شريك کړې شوى شريکان پريږدى) اودَ الله تعالى طرف ته مائل کيږى. او اې محمد ﷺ که چرې ته دا خلق اووينې چاچې شريك ګرځولى دى اوظلم ئې کړې دې کله چې هغوى عذاب اوګورى (يَرَوْنَ) معروف اومجهول دواړه دى نوتاسو به يوامر عظيم (خطرناك منظر) اوګورى او اِذْ په معنى دَ اِذَا دې ځکه چې پوره قدرت او غلبه هم دَ الله تعالى دَپاره ده. (جَمِيعًا) کَائِنَةً (مقدر) نه حال دې اوالله تعالى دَ سخت عذاب والا دې او يوقراءت کښې يَرَى تحتانيه سره دې او وئيلې شوى دى چې دَ يرى فاعل دَمخاطب ضميردې او نور وئيلې شوى دى چې اَلَّذِيْنَ ظَلَمُوا دې او يَرَى په معنى دَ يعلم دې او اَنَّ او دَدې مابعد دَ دوو مفعولونو په ځائى دې او دَ لَوْجواب محذوف دې او معنى دا ده چې که چرې دې خلقوته په دنياکښې معلومه شى. دَ قيامت په ورځ دَهغوى عذاب ليدلووخت کښې دَالله تعالى وحده قدرت اودَعذاب سختى نو هغوئ هيڅ چاله هم شريك اونه ګرځوى. اِذْ، سابقه اِذْ سره بدل دې اوپيشوا يعنى سرداران به دَ خپلو ماتحتانونه دَ بې تعلقئى اظهارکوى يعنى دَهغوى دَ ګمراه کولودَ الزام نه به انکارکوى حالانکه عذاب به (په خپلو سترګو) ګورى او ټولې رشتې او تعلقات به ختم شى يعنى هغه تعلقات کوم چې دَهغوى په مينځ کښې دَخپلولئ او دوستئى په دنياکښې وو (ختم به شى) دَتَقَطَّعَتْ عطف په تَبَرَّأَ باندې دې او ماتحت خلق به وائى افسوس چې مونږ ته دَ دنيادَ واپسئى موقع ملاؤشى نومونږ به هم دَ دغه متبوعينو نه هم دغه شان اظهاردَ لاتعلقئى اوکړو څنګه چې نن هغوى زمونږ سره دَ لاتعلقئى اظهارکړې دې. او لَوْ دَ تمنى دَپاره دې فَنَتَبَرَّأَ جواب تمنى دې دغه شان خودنه دَهغوى دَ عذاب سختوالى او دَبعضو دَ بعضې نه دَ ويزارئى اظهاربشائى الله تعالى به هغوى ته دَخرابو اعمالو حال دا چې په هغوى باندې خپيماتتيا شروع شى اوهغوئ دَ داخليدونه پس دَ اُور نه وتونکى نه دى. حَسَرٰتٍ په معنى ندامات، هُم ضميرنه حال دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: وَطَلَبُوا اٰيَةً عَلٰى ذٰلِكَ دَ مشرکانودَ طرف نه دَ الله تعالى دَ صفاتو دَ مطالبه په جواب کښې کله چې الله تعالى ﴿ وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ﴾ الخ لوفرمائيل نو مشرکانودَقرآن په دې دعوئ باندې دَ دليل مطالبه اوکړه نوالله تعالى دَدليل په توګه ﴿ اِنَّ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ (الاية) نازل کړو اِنَّ حرف مشبه بالفعل ناصب دې ﴿ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ الخ کَائِنَةٌ متعلق کيدو سره دَ اِنَّ خبرمقدم دې او ﴿ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴾ دَدې اسم مؤخر دې.

**قوله**: فُلْكِ الَّتِی تجری فُلْکٌ چې کله مفرد وی نومذکردې اوکه چرې جمع وی نو جمع مکسر کیدو دَ وجې نه مؤنث دې. دلته فُلْکِ مؤنث دې او قرینه الَّتِی تجری دَدې صفت دې

**سوال**: جمع مکسر مفرد کښې تغیرکولوسره جوړولې شی لکه رَجُلٌ نه رِجَالٌ مگر دلته مفرد اوجمع دواړه هم په یووزن باندې دی په جمع کښې هیڅ تغیراونه شو نوبیا دا جمع مکسر څنګه شوه؟

**جواب**: په دې کښې تغیرمعنوی شوې دې څکه چې کله فُلْکٌ قُفْلٌ په وزن باندې وی نو مفرد وی اوکله چې دَ اُسُدٌ په وزن باندې وی نوجمع وی.

**قوله**: من التجارات دې کښې اشاره ده چې بِمَا یَنْفَعُ کښې ما موصوله دی ای تجری فی البحر بالذی ینفع الناس او بعضو مَا ته مصدریه هم وئیلې دی. ای تجری فی البحر نفع الناس.

**قوله**: بِلاَ عِلاَقَةٍ دَ عین کسره سره محسوس رابطه لکه دَ تورې سر اودَ عین فتحه سره معنوی یعنی غیرمحسوس رابطه لکه دَ عشق اومحبت رابطه یا دَحسد اوعداوت تعلق.

**قوله**: تَبْصُرُ مفسرعلام یَرَی تفسیرپه تَبْصُرُ سره کولوکښې اشاره اوکړه چې دَ یَرَی نه رویت بصری مراد دې نه چې قلبی څکه چې دَ رویت قلبی دَپاره به دَ دواړو مفعولونو ضرورت وی کوم چې موجودنه دی.

**قوله**: اِذْ په معنی اِذَا دا دَدوو سوالونو جواب دې.

**سوال**: ① لَوْاو اِذْماضی باندې داخلیږی نه چې په مضارع باندې دلته په مضارع باندې داخل دې دَ دې څه وجه ده؟

**جواب**: اِذْ یَرَوْنَ العذابَ کښې دَ رویت وقوع چونکه یقینی ده لهذا په مضارع باندې اِذْ داخل کړې شو دې دَپاره چې په تاویل دَ ماضی کیدوسره یقینی وقوع کیدو باندې دلالت اوکړی.

**سوال**: ② نوبیا دَمضارع په ځائی دَ ماضی صیغه راوړل پکاروو دې دَپاره چې حقیقةً په یقینی الوقوع باندې ئې دلالت کړې وې.

**جواب**: چونکه رویت په حقیقت کښې مستقبل کښې یعنی دَ قیامت په ورځ به وی دَدې دَپاره دَمضارع صیغه راوړلوسره اشاره اوکړه.

**قوله**: لِاَنَّ دا جواب شرط دَمحذوف علت دې.

**قوله**: فِیْ یَرَیٰ په بمعنی یَعْلَمُ یَرَی دَ یَعْلَمُ په معنی کښې څکه اخستې دې چې دَ ظالمانو دَالله تعالی دَعذاب سختوالې په دنیاکښې دَ سر په سترګو کتل ممکن نه دی څکه چې

دَ عذاب تحقق به آخرت كښې وى. لهذا دَ رويت نه رويت قلبى مراد دې يعنى يَرٰى دَ يَعْلَمُ په معنى كښې دې.

**قوله**: وفى مُعَايِنَتِهِم دا دَ ﴿ أَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ﴾ ظرف دې.

**قوله**: وَقَدْ، قد محذوف منلو كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې واؤ حاليه دې او قد راوا العذابَ، الذينَ اتُّبِعُوا او الذين اتَّبَعُوْا دَ دواړو د ضميرنه حال دې اى رَائِين لكه لَقِيْتُ زيدًا راكِبَين اوچونكه ماضى بغيردَ قد حال واقع كيدې نه شى اوقد كه لفظًا وى اوكه تقديرًا لهذا دلته ئى قد مقدر منلې دې.

**قوله**: لَوللتَّمَنِّى، لَوْدَ تمنى دَپاره دې او فَنَتَبَرَّأَ دَدې جواب دې دلته دوه سوالونه پيدا كيږى.

**سوال**: ① دَ لو جواب لام سره كيږى نه چې فاء سره، حالانكه دلته فَنَتَبَرَّأَ فاء سره دې.

**سوال**: ② فَنَتَبَرَّأَ دمنصوب كيدو څه وجه ده؟ ځكه چې ناصب نه لفظًا شته دې اونه تقديرًا.

**جواب**: مفسرعلام لو للتمنى وئيلوسره دَ دواړو اعتراضونو جواب وركړې دې. دَ جواب حاصل دادې چې ذكر شوې دواړه خبرې دَ لَوْ شرطيه دَپاره ضرورى دى اودا لَوْ تمنيه دې. لو تمنيه نه پس إن مقدركيدودَ وجې نه جواب تمنى منصوب كيږى (كما لايخفى على من له دراية فى علم النحو)

[ايا تونه:١٦٨-١٧٣]

ونزل فيمن حرم السوائب ونحوها {يأيها النَّاس كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْض حَلَالًا} حَال {طَيِّبًا} صِفَة مُؤَكِّدَة أَيْ مُسْتَلَذًّا {وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَات} طُرُق {الشَّيْطَان} أَيْ تَزْيِينه {إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوّ مُبِين} بَيِّن الْعَدَاوَة{إِنَّمَا يَأْمُرُكُمْ بِالسُّوءِ} الْإِثْم {وَالْفَحْشَاء} الْقَبِيح شَرْعًا {وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّه مَا لَا تَعْلَمُونَ} مِنْ تَحْرِيم مَا لَمْ يُحَرَّم وَغَيْره{وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ} أَيْ الْكُفَّار {اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّه} مِنْ التَّوْحِيد وَتَحْلِيل الطَّيِّبَات {قَالُوا} لَا {بَلْ نَتَّبِع مَا أَلْفَيْنَا} وَجَدْنَا {عَلَيْهِ آبَاءَنَا} مِنْ عِبَادَة الْأَصْنَام وَتَحْرِيم السَّوَائِب وَالْبَحَائِر قال تعالي {أَ} يتبعونهم {ولو كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا} مِنْ أمر الدين {ولا يهتدون} إلي الحق والهمزة للإنكار {وَمَثَل} صِفَة {الَّذِينَ كَفَرُوا} وَمَنْ يَدْعُوهُمْ إلَى الْهُدَى {كَمَثَلِ الَّذِي يَنْعِق} يُصَوِّت {بِمَا لَا يَسْمَع إلَّا دُعَاء وَنِدَاء} أَيْ صَوْتًا وَلَا يَفْهَم مَعْنَاهُ أَيْ فِي سَمَاع الْمَوْعِظَة وَعَدَم تَدَبُّرهَا كَالْبَهَائِمِ تَسْمَع صَوْت رَاعِيهَا وَلَا تَفْهَمهُ هُمْ {صُمّ بُكْم عُمْي فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ} الموعظة {يأيها الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَات} حَلَالَات {مَا رَزَقْنَاكُمْ وَاشْكُرُوا لِلَّهِ} عَلَى مَا أَحَلَّ لَكُمْ {إن كنتم إياه تعبدون} {إنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ الْمَيْتَة} أَيْ أَكْلهَا إذْ الْكَلَام فِيهِ وَكَذَا مَا بَعْدهَا وَهِيَ مَا لم يذك شرعا وألحق به بالسُّنَّة مَا أُبِينَ مِنْ حَيّ وَخَصَّ مِنْهَا السَّمَك وَالْجَرَاد {وَالدَّم} أَيْ الْمَسْفُوح كَمَا فِي الْأَنْعَام {وَلَحْم الْخِنْزِير} خَصَّ اللَّحْم لِأَنَّهُ مُعْظَم الْمَقْصُود وَغَيْره

تبع له {وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ} أَيْ ذُبِحَ عَلَى اسْم غَيْرِه وَالْإِهْلَال رَفْع الصَّوْت وَكَانُوا يَرْفَعُونَهُ عِنْد الذَّبْح لِآلِهَتِهِمْ {فَمَنْ اُضْطُرَّ} أَيْ أَلْجَأَتْهُ الضَّرُورَة إلَى أَكْل شَيْء مِمَّا ذُكِرَ فَأَكَلَهُ {غَيْر بَاغٍ} خَارِج عَلَى الْمُسْلِمِينَ {وَلَا عَادٍ} مُتَعَدٍّ عَلَيْهِمْ بِقَطْعِ الطَّرِيق {فَلَا إثْم عَلَيْهِ} فِي أَكْله {إنَّ اللَّه غَفُور} لِأَوْلِيَائِهِ {رَحِيم} بِأَهْلِ طَاعَته حَيْثُ وَسَّعَ لَهُمْ فِي ذَلِكَ وَخَرَجَ الْبَاغِي وَالْعَادِي وَيُلْحَق بِهِمَا كُلّ عَاصٍ بِسَفَرِهِ كَالْآبِقِ وَالْمَكَّاس فَلَا يَحِلّ لَهُمْ أَكْل شَيْء مِنْ ذَلِكَ مَا لَمْ يَتُوبُوا وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ

**ترجمه**. او (دا آيت) دَهغه خلقو باره کښې نازل شوې دې چاچې دَ سوائب وغيره (دَبتانو په نوم ياندې آزادکړې شوې څناور) حرام کړې وو. **خلقوا په زمکه کښې چې کوم پاک او حلال څيزونه دی هغه خورئ** (څکئ) طَيِّبًا، دحَلَالاً صفت مؤکده دې. يا په معنی د مُتَلَذِّذ دې. (يعنی مرغوب اوخوښ کړې شوې) **اودَ شيطان په نقش قدم باندې** (يعنی طريقه) باندې **مه ځئ** يعنی دَهغه په ښائسته کړې شوې لار باندې هغه ستاسو ښکاره دښمن دې يعنی دَهغه دښمنی بالکل واضحه ده **هغه تاسوته صرف دَ ګناه اوفحش** يعنی شرعاً دَ قبيح خبرې حکم کوی **او دَدې خبرې حکم کوی چې تاسو دَ الله تعالی باره کښې هغه خبرې اوکړئ کومې چې تاسو نه پيژنئ** يعنی کوم څيزونه چې حرام کړې شوی نه دی هغه حرام کول وغيره. **اوکله چې** کافرانوته او وئيلې شی الله تعالی چې دَ توحيد او پاکيزه څيزونو حلت نازل کړې دې دَهغې اتباع اوکړئ نوهغوی وائی چې نه، **بلکه مونږ خو به دَهغې اتباع کوو په څه چې مونږ خپل پلاران** (نيکونه) **موندلي** (پيدا کړی) دی هغه دَ بتانو بندګی ده اوهغه سوائب اوبحائرحرام کول دی. الله تعالی فرمائی **آيا** دوی به دَهغوئ اتباع کوی؟ **سره دَدې چې دَهغوی پلاران** او نيکونه دَ دين په معامله کښې **په هيڅ نه پوهيدل او نه** دَحق طرف ته روان وو. او همزه دَ انکار دَپاره ده **اودَ کافرانو مثال** اودَهغه خلقو چې هغوی دَ هدايت طرف ته راغواړی **دَهغه سړی په شان دې چې هغه چا ته آواز ورکوی چې دَ چغو سورو نه علاوه بل هيڅ نه** اوری يعنی آواز چې دَهغې په معنی نه پوهيږی مطلب دا چې (دا کافران) په نصيحت اوريدو او په هغې باندې غور کولو کښې دَ څناورو په شان دی چې دَ خپل څرونکی آواز خو اوری مګر په هغې پوهيږی نه. **هغه کاڼه ګونګيان او ړانده دی چې په نصيحت نه پوهيږی**. **اې دَ ايمان والوا کوم حلال څيزونه چې مونږ تاسو ته درکړی دی دَهغې نه خورئ څکئ او** کوم څيزونه چې ستاسو دَپاره حلال کړې دی **په هغې باندې دَالله تعالی شکر کوئ که چرته تاسو هم دَهغه بندګی کونکی. او کوم څيزونه چې ستاسو دَپاره حرام کړې شوی دی** (په هغې کښې يو) **مرداره** ده يعنی دَهغې خوراك حرام دې ځکه چې خبرې اترې هم دَ خوراك باره کښې دی اودغه شان دَدې نه پس ذکر شوی (څيزونو خوراك هم حرام دې) اوهغه مرداره ده کوم چې په شرعی طريقه سره ذبح شوې نه وی او په حکم دَحديث په مرداره کښې هغه ټکړه هم

شامل کړې شوې ده چې دَ ژوندي ځاروي نه پرې کړې شوې وي او دَ مردارې نه کب او ملخ مستثنٰی کړې شوي دي او بهيدونکې وينه ده لکه چې په سورت انعام کښې دی او دَ خنزير غوښه (حرام کړې شوې د ه) او (حرمت دَ پاره) ئې دَغوښې تخصيص دَدې دَپاره کړې شوي دي چې (خوراك) کښې هم دغه لوئې مقصد دې. نور ځيزونه (مثلاً رګ پټې وغيره) دَدې تابع دی او هغه ځناور (هم حرام دي) په کوم چې دَ غيرالله نوم اخستې شوې وی يعنی دَ غيرالله په نوم باندې ذبح کړې شوې وی (اهْلال) آواز اوچتولوته وائی او مشرکانو به دَ ذبح په وخت دَخپلو معبودانو نوم په اوچت آواز سره اخستلو. نوکه چرې څوک مجبورشي يعنی ضرورت هغه دَ دغه مذکوره ځيزونو په خوړلو مجبورکړې وی حال داوی چې هغه باغی نه وی يعنی دَ مسلمانانو خلاف بغاوت کونکې نه وی اونه دَ لارې شوکولو وغيره په ذريعه په مسلمانانو باندې ظلم کونکې وی نودَ داسې سړی دَپاره دَ هغې په خوړلو کښې هيڅ ګناه نشته. بيشکه الله تعالی بخښونکې دې په خپلو دوستانو باندې مهربان دې او په اطاعت کونکو باندې چې هغوی ته په دې معامله کښې ئې وسعت (آسانی) ورکړه او باغی او ظالم دَ دې حکم نه بهر شو او (باغی او ظالم) سره هر هغه سړې شامل دې چې دَ ګناه په سفرکښې وی لکه تختيدلې غلام او په ظلم سره مال وصول کونکې. دَداسې خلقو دَپاره دَ ذکرشوی ځيزونونه دَ يوځيز خوړل حلال نه دی ترکوم وخته پورې چې توبه اونه کړی. او دَ امام شافعی رحمه الله هم دغه مذهب دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: يَاَيُّهَا النَّاسُ كُلُوْا مِمَّا فِي الْاَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا دَدې آيت مخاطب دَمکې مشرکان دی. دَ سورت مدنی کيدو دَ وجې نه، اودَسورت نزول اګرچې مدنی دې ليکن چې نزول مدنی وی او خطاب اهل مکه ته وی نو په دې کښې هيڅ تعارض نشته.

**قوله**: حال يعنی حلالًا، مِمَّا فی الارض نه حال دې. دکُلُوا مفعول به نه دې لکه چې بعضې حضراتو ونيلی دی ځکه چې په دې صورت کښې مِمَّا فِي الارضِ، حلالًا سره صفت يا حال وی او دَ صفت تقديم په موصوف باندې اودَحال تقديم په ذوالحال باندې خلاف ظاهردې. لکه بعضې حضراتو حلالًا دکُلُوامفعول به هم ګرځولې دې. او مِمَّا فی الارضِ دَ حلالًا نه حال مقدم ګرځولې دې. دَ ذوالحال نکره کيدو دَ وجې نه حال مقدم کړې شوې دې.

**قوله**: السَّوائب دا دَسَائِبَةٌ جمع ده هغه اوښې ته وائی کومه چې دَ بت وغيره په نوم باندې بريخودلې شی او تعظيمًا دَهغې نه دَ څه قسم فائده نه شی اخستلې.

**قوله**: ونحوهـا نحونه بَحَائِر وغيره مراد دی. بحيره هغه ځناورته وائی کوم چې دَ غيرالله په نوم باندې آزاد کړې شوې وی او دَعلامت په توګه دَهغې غوږ ځيرلې شوې وی.

**قوله**: طَيِّبًا، صفة مؤكدة دَدې اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: كله چې دَحلالاً نه شرعًا پاكيزه څيز مراد وى نوبيا دَدې نه پس طيبًا لره د ذكر كولو څه فائده ده؟ ځكه چې كوم څيز شرعًا حلال وى هغه پاك هم وى.

**جواب**: دَ جواب خلاصه داده چې طيبًا صفت مؤكده دې نه چې احترازيه.

**قوله**: اومُسْتَلَذًّا دَ مفعول صيغې سره يعنى كوم څيز چې مرغوب او خوښ كړې شوې وى په هغه صورت كښې دَطيبًا صفت مقيدوى دَ كوم نه چې ناخوښه مثلاً تريخ او بې خونده څيزونه خارج شى. مُسْتَلَذًّا به صفت مخصصه په هغه صورت كښې وى كله چې اَوْ سره وى او بعضې نسخو كښې وَمُسْتَلَذًّا واؤ سره دې. په دې صورت كښې به طيبًا صفت مؤكده وى يعنى دَ نفس مؤمن مرغوب شئ.

**قوله**: اى تَزْيِينَهُ په دې كښې دَ حذف مضاف طرف ته اشاره ده اودَ تزئين نه شيطانى وسوسې مراد دى.

**قوله**: يأمركم بالسُّوء دا دَ إِنَّهُ لكم عدوٌّ مُبين دَپاره دَعلت په شان دې يعنى هغه ستاسو دښمن دَدې وجه دې چې هغه تاسو ته دَ خرابو او فحش خبرو حكم كوى. السُّوء هر هغه عمل ته وائى په كوم سره چې الله تعالى ناراض شى كه هغه عمل لونى وى اوكه وړوكې اودَ اَلْفَحْشَاء نه مراد كبيره ګناه ده. لكه چې داعطف خاص على العام دَ قبيل نه دې مګر دَ مفسرعلام دَ كلام نه دواړو كښې تساوى مستفاد كيږى.

**قوله**: مِن تحريم مَا لَم يُحَرَّمْ الخ دا په مالاتعلمون كښې دَما بيان دې.

**قوله**: أَيَتَّبِعُوْنَهُم په دې كښې اشاره ده چې همزه فعل مقدرباندې داخل ده. او وَلَوْكَانَ فعل مقدر مفعول نه حال دې. تقديرى عبارت دادې أَيَتَّبِعُوْنَهُم فى حال فرضهم غير عاقلين ولا مهتدين همزه انكارى دَتعجب دَپاره ده مفسرعلام أَيَتَّبِعُوْنَهُم كښې همزه نه پس فعل مقدر منلوسره دَ يوسوال جواب طرف ته اشاره كړې ده.

**سوال**: اَوَلَوْكَانَ كښې لَوْ شرطيه دې لهذا دَدې دَپاره جواب شرط كيدل ضرورى دى حالانكه دلته جواب شرط موجود نه دې.

**جواب**: لَوْ باندې چې كوم واؤ داخل دې هغه حاليه دې لهذا لَوْ ته په دې صورت كښې دَجواب ضرورت نشته. ځكه چې شرط هغه وخت حال واقع كيږى كله چې دَهغې نه دَ شرطيت معنى سلب كولې شى. دَدې وجه چې جمله مقدمه محذوفه په صورت كښې په لَوْ كښې معنى دَ شرطيت باقى نه پاتې كيږى لهذا دې ته دَ جواب هم ضرورت نه وى. (ترويح الارواح)

**قوله**: صفة يعنى مثل په معنى د صفت دې نه چې په معنى د مشابه، دا دَ يواعتراض جواب دې

**اعتراض**: كَمَثَلِ الَّذِيْ يَنْعِقُ كښې دكاف تشبيه ضرورت نشته ځكه چې دَمثل ذكركولونه پس كاف تشبيه بلاوجه تكرار دې.

**جواب**: رومبې مثل معنى دَ تشبيه نه ده بلكه دَدې معنى دَ صفت ده لهذا اوس هيڅ تكرار نشته.

**قوله**: النعق والنعيق، صوت الراعي بالغنم، دَ ګډبه چيلئ شړل.

**قوله**: وَمَنْ يَدْعُوهم اِلَى الهُدٰى دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: په آيت كښې كافرانوته ناعق (شپونكى) سره تشبيه وركړې ده ځكه چې دَ آيت ترجمه داده اودكافرانو مثال دَهغه ناعق (شپونكى دې) چې خاروو ته چغې وهى حالانكه واقعه داسې نه ده ځكه چې ناعق داعى (دَ هداياتوطرف ته رابلونكې رسول يا مسلمان دې) اوكفار منعوق مدعو (مثل بهائم) دې.

**جواب**: دلته معطوف محذوف دې اوهغه مَنْ يَدْعُوهم اِلَى الهُدٰى دې. لهذا كافرانو او دَ هغوى داعى ته شپونكى او بهائم سره تشبيه وركړې شوې ده يعنى كفار اودَهغوى داعى مشبه دې او بهائم اودَهغې شپونړكې مشبه به دى لكه چې دا تشبيه مركب بالمركب ده. په كوم كښې چې د يوې مجموعې دَ بلې مجموعې سره تشبيه وركولې شى لهذا اوس هيڅ اشكال نشته.

**سوال**: كه چرې دَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا نه وړاندې مضاف محذوف اومنلې شى لكه چې قاضى وغيره مضاف محذوف منلې دې. تقديرى عبارت به داسې شى مَثَلُ داعِي الَّذِيْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِيْنَ ينعِقُ اوس به مطلب داسې شى چې دَ داعى مثال دَناعق (شپونړكى) په شان دې يعنى داعى ته په ناعق سره تشبيه وركړې شوې ده او په دې كښې هيڅ حرج نشته.

**جواب**: مطلب خو صحيح كيږى مګر په داسې صورت كښې تشبيه داعى (دَمسلمان يارسول) حالت بيانولودَپاره وى نه چې مدعو حالت بيانولودَپاره حالانكه مقصود دَ دواړو حالت بيانول دى او اهم د مدعو (كفارو) حالت بيانول دى لكه چې پخپله مفسر علام دې خبرې طرف ته خپل قول هم في سماع الموعظة الخ سره اشاره كړې ده. (دَنور تفصيل دَپاره تفسير مظهرى ج ۱ ص ۱۴۷ طرف ته رجوع اوكړئ)

[ایاتونه: ۱۷۴ - ۱۷۶]

{إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ} الْمُشْتَمِل عَلَى نَعْت مُحَمَّد صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ الْيَهُود {وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا} مِنَ الدُّنْيَا يَأْخُذُونَهُ بَدَله مِنْ سَفَلَتهمْ فَلَا يُظْهِرُونَهُ خَوْف فَوْته عَلَيْهِمْ {أُولَئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ} لِأَنَّهَا مَآلهمْ {وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ} غَضَبًا عَلَيْهِمْ {وَلَا يُزَكِّيهِمْ} يُطَهِّرهُمْ مِنْ دَنَس الذُّنُوب {وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم هُوَ النَّار {أُولَئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَى} أَخَذُوهَا بَدَله فِي الدُّنْيَا {وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ} الْمُعَدَّة لَهُمْ فِي الْآخِرَة لَوْ لَمْ يَكْتُمُوا {فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ} أَيْ مَا أَشَدَّ صَبْرهمْ وَهُوَ تَعَجُّب لِلْمُؤْمِنِينَ مِنِ ارْتِكَابهمْ مُوجِبَاتهَا مِنْ غَيْر مُبَالَاة وَإِلَّا فَأَيّ صَبْر لَهُمْ {ذَلِكَ} الَّذِي ذُكِرَ مِنْ أَكْلهمْ النَّار وَمَا بَعْده {بِأَنَّ} بِسَبَبِ أَنَّ {اللَّهَ نَزَّلَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ} مُتَعَلِّق بِنَزَّلَ فَاخْتَلَفُوا فِيهِ حَيْثُ آمَنُوا بِبَعْضِهِ وَكَفَرُوا بِبَعْضِهِ بِكَتْمِهِ {وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِي الْكِتَابِ} بِذَلِكَ وَهُمْ الْيَهُود وَقِيلَ الْمُشْرِكُونَ فِي الْقُرْآن حَيْثُ قَالَ بَعْضهمْ شِعْر وَبَعْضهمْ سِحْر وَبَعْضهمْ كَهَانَة {لَفِي شِقَاقٍ} خِلَاف {بَعِيدٍ} عَن الْحَقّ

**ترجمه**: بیشکه چې هغه خلق کوم چې پټوی دا کتاب (تورات) کوم چې الله تعالی نازل کړې دې اودَمحمد ﷺ په صفاتو باندې مشتمل دې (اوپټونکی) یهود دی اودَهغې په عوض دنیاوی لږه شان فائده اخلی او دَ پټولو په بدله کښې دَ خپلو عوامونه معمولی شان قیمت وصول کوی. اودَغه معمولی شان قیمت دَ فوت کیدو دَ ویرې دَ رسول الله ﷺ صفات نه ښکارد کوی. هم دغه هغه خلق دی چې په خپلو خیټوکښې اور دکوی ځکه چې دوزخ دَدوی انجام دې او الله تعالی به په هغوی باندې دَ قیامت په ورځ دَغصه کیدو دَ وجې هغوی سره خبرې نه کوی. او نه به هغوی دَ ګناهونو دَ ګندګئی نه پاکوی. اودَهغوی دَپاره دردناک عذاب دې اوهغه اور دې. اَلِیْمٌ په معنی دَ مولِمٌ دې. هم دغه هغه خلق دی چاچې دَ هدایت په بدله کښې ګمراهی اخستې ده یعنی په دنیاکښې دَهدایت په ځائی ګمراهی اخستې ده او عذاب ئې دَ بخښنې په عوض کښې اخستې دې. (یعنی) هغه مغفرت چې دَهغوی دَپاره تیارکړې شوې وو که هغوی کتمان یعنی پټول نه ووکړې، نودا خلق په څومره اندازه باندې په اور صبرکونکی دی. (یعنی) څومره سخت دې صبردَهغوی او دَلاپرواهئی نه په موجباتو د اوردَجهنم ارتکاب کولو باندې مسلمانانو ته تعجب ورکول دی ګنی دَهغوی صبر څه دې؟ اودا دَ اور خوراك دَهغې نه پس په دې سبب سره دې چې الله تعالی کتاب (تورات) په حق سره نازل کړې دې (بالحق) نَزَّلَ سره متعلق دې نو په هغې کښې هغوی اختلاف اوکړو په داسې طریقه چې په څه حصه ئې ایمان راوړو اودَڅه حصې نه ئې انکار اوکړو هغه ئې پټه کړه او کومو خلقو چې په کتاب کښې په ذکرشوې طریقه باندې اختلاف اوکړو بیشکه هغه هم یهودیان دی او

وئيلې شوی دی چې په قرآن کښې اختلاف کونکی مشرکان دی په داسې طريقه چې په هغوی کښې بعضو وئيلی چې (قرآن) شعردې او بعضو وئيلی چې جادو دې او بعضو وئيلی کهانت دې بیشکه داخلق په اختلاف کښې دَ (حق نه) ډیر لرې دی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: مِنَ الْكِتَابِ دا دَ ضميرمحذوف نه حال دې، تقديری عبارت داسې دې مَا أَنْزَلَهُ اللهُ كَائِنًا مِنَ الْكِتَابِ.

**قوله**: مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ، فِي بُطُونِهِمْ دَ اضافه مقصد دَ مجاز احتمال دفع کول دی ځکه چې اکل مجازًا دَ غصب په معنی کښې هم استعماليږی. وئيلی شی أَكَلَ فُلَانٌ أَرْضِي فلانکی سړی زما زمکه اوخوړله يعنی غصب ئې کړله لکه چې طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ کښې هم بِجَنَاحَيْهِ اضافه دَ مجاز احتمال دفع کولو دَپاره دې که دَ اکل نار نه په جهنم کښې اکل نار مراد دې نو دَ نار حقيقی معنی به مرادوی يعنی درحقيقت به اور خوری اوکه چرته په دنياکښې اکل نار مراد وی نومجازًا به نار مراد وی يعنی دَ نار سبب به مراد وی. ځکه چې دَ رشوت مال به دَ دوزخ دَ اور سبب وی. اوکه دَ نار نه بالقوه نار مراد وی نو په دنياکښې هم دَ نار حقيقی معنی مراد کيدې شی لکه چې ماچس بالقوه اور وی. مفسرعلام لِأَنَّهَا مَآلُهُمْ اضافه کولوسره دَ مجازی معنی طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ دا دَ تعجب صيغه ده ای مَا أَصْبَرَهم على اعمال اهل النار او دَ تعجب نه مراد تعجيب يعنی په تعجب کښې اچول دی. اوتعجب دَ بنديگانو په نسبت دې ځکه چې دَ تعجب منشا دَ سبب نه ناواقفيت دې تعجب وائی انفعال النفس مما خفي سببه يعنی تعجب نوم دې دَ داسې څيز منفعل کيدو دَ کوم سبب چې پټ وی اودا دَ شان باری دَپاره محال دې. او بعضې حضراتو مَا أَصْبَرَهُمْ کښې ما استفهاميه دَپاره دَ توبيخ وئيلې ده ای ای شيئ أَصْبَرَهم على عمل النار. (فتح القدير ملخصًا)

[اياتوله: ۱۷۷ - ۱۷۹]

{لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ} فِي الصَّلَاةِ {قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ} نَزَلَ رَدًّا عَلَى الْيَهُود والنصارى حين زَعَمُوا ذَلِكَ {وَلَكِنَّ الْبِرَّ} أَيْ ذَا الْبِرّ وَقُرِئَ بِفَتْحِ الْبَاء أَيْ الْبَارّ {مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ} أَيْ الْكُتُب {وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَى} مَعَ {حُبِّهِ} لَهُ {ذوى القربى} القرابة {واليتامى والمساكين وبن السَّبِيلِ} الْمُسَافِر {وَالسَّائِلِينَ} الطَّالِبِينَ {وَفِي} فَكّ {الرِّقَابِ} الْمُكَاتَبِينَ وَالْأَسْرَى {وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ} الْمَفْرُوضَة وَمَا قَبْله فِي التَّطَوُّع {وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا} اللَّه أَوْ النَّاس {وَالصَّابِرِينَ} نُصِبَ عَلَى الْمَدْح {فِي الْبَأْسَاءِ} شِدَّة الْفَقْر {وَالضَّرَّاءِ} الْمَرَض {وَحِينَ الْبَأْسِ}

وَقْت شِدَّة الْقِتَال فِي سَبِيل الله {أُولَئِكَ} الْمَوْصُوفُونَ بِمَا ذُكِرَ {الَّذِينَ صَدَقُوا} فِي إِيمَانهمْ أَوْ ادِّعَاء الْبِرّ {وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ} الله {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ} فُرِضَ {عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ} الْمُمَاثَلَة {فِي الْقَتْلَى} وَصْفًا وَفِعْلًا {الْحُرُّ} يُقْتَل {بِالْحُرِّ} وَلَا يُقْتَل بِالْعَبْدِ {وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنْثَى بِالْأُنْثَى} وَبَيَّنَتْ السُّنَّة أَنَّ الذَّكَر يُقْتَل بِهَا وَأَنَّهُ تُعْتَبَر الْمُمَاثَلَة فِي الدِّين فَلَا يُقْتَل مُسْلِم وَلَوْ عَبْدًا بِكَافِرٍ وَلَوْ حُرًّا {فَمَنْ عُفِيَ لَهُ} مِنْ الْقَاتِلِينَ {مِنْ} دَم {أَخِيهِ} الْمَقْتُول {شَيْءٌ} بِأَنْ تَرَكَ الْقِصَاص مِنْهُ وَتَنْكِير شَيْء يُفِيد سُقُوط الْقِصَاص بِالْعَفْوِ عَنْ بَعْضه وَمِنْ بَعْض الْوَرَثَة وَفِي ذِكْر أَخِيهِ تَعَطُّف دَاعٍ إِلَى الْعَفْو وَإِيذَان بِأَنَّ الْقَتْل لَا يَقْطَع أُخُوَّة الْإِيمَان وَمَنْ مُبْتَدَأ شَرْطِيَّة أَوْ مَوْصُولَة وَالْخَبَر {فَاتِّبَاعٌ} أَيْ فِعْل الْعَافِي اتِّبَاع لِلْقَاتِلِ {بِالْمَعْرُوفِ} بِأَنْ يُطَالِبهُ بِالدِّيَةِ بِلَا عُنْف وَتَرْتِيب الِاتِّبَاع عَلَى الْعَفْو يُفِيد أَنَّ الْوَاجِب أَحَدهمَا وَهُوَ أَحَد قَوْلَيْ الشَّافِعِيّ وَالثَّانِي الْوَاجِب الْقِصَاص وَالدِّيَة بَدَل عَنْهُ فَلَوْ عَفَا وَلَمْ يُسَمِّهَا فَلَا شَيْء وَرَجَحَ {وَ} عَلَى الْقَاتِل {أَدَاءٌ} الدِّيَة {إِلَيْهِ} أَيْ الْعَافِي وَهُوَ الْوَارِث {بِإِحْسَانٍ} بِلَا مَطْل وَلَا بَخْس {ذَلِكَ} الْحُكْم الْمَذْكُور مِنْ جَوَاز الْقِصَاص وَالْعَفْو عَنْهُ عَلَى الدِّيَة {تَخْفِيفٌ} تَسْهِيل {مِنْ رَبِّكُمْ} عَلَيْكُمْ {وَرَحْمَةٌ} بِكُمْ حَيْثُ وَسَّعَ فِي ذَلِكَ وَلَمْ يُحَتِّم وَاحِدًا مِنْهُمَا كَمَا حَتَّمَ عَلَى الْيَهُود الْقِصَاص وَعَلَى النَّصَارَى الدِّيَة {فَمَنِ اعْتَدَى} ظَلَمَ الْقَاتِل بِأَنْ قَتَلَهُ {بَعْدَ ذَلِكَ} أَيْ الْعَفْو {فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم فِي الْآخِرَة بِالنَّارِ أَوْ فِي الدنيا بالقتل {وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ} أَيْ بَقَاء عَظِيم {يَا أُولِي الْأَلْبَابِ} ذَوِي الْعُقُول لِأَنَّ الْقَاتِل إِذَا عَلِمَ أَنَّهُ يُقْتَل ارْتَدَعَ فَأَحْيَا نَفْسه وَمَنْ أَرَادَ قَتْله فَشُرِعَ {لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ} الْقَتْل مخافة القود

**ترجمه:** تولې ښيګړې په مانځه کښې مشرق او مغرب طرف ته مخ کولو کښې نه د ی. دا آيت دَ يهودو او نصاریٰ په رد کښې نازل شوې دې ځکه چې هغوی هم دا قسم عقيدې لرلې بلکه ښه يعنی نيک هغه سړې دې چې په الله تعالی باندې او په ورځ دَ آخرت باندې او په فرښتو باندې او (آسمانی) کتابونو باندې ايمان لرونکې وی او دَ البِرّ په ځائی باندې البارّ هم لوستلې شوې دې. او څوک چې دَ مال سره دَ محبت لرلو باوجود خپلوانو ته يتيمانو ته مسکينانو ته مسافرو ته او سوال کونکو ته ورکړی او مکاتبو ته او دَ قيديانو په آزادولو کښې خرچ کړی دَ مونځ پابندی او کړی او فرض زکوة ورکړی ماقبل (کښې ذکر شوې زکوة) نه نفلی صدقه مراد ده (او نيک هغه خلق دی) چې څوک الله تعالی سره يا خلقو سره عهد کوی نو پوره کوئی. الصّابرينَ منصوب بالمدح دې او تنګی (يعنی) په سخت حاجت او تکليف کښې يعنی بيمارئی کښې او دَ الله تعالی په لار کښې دَ سخت جنګ په وخت صبر کونکی دی. دا خلق يعنی دَ مذکوره صفاتو حاملين په خپل ايمان او دَ نيکئ په دعویٰ کولو کښې رښتونی دی. او هم دغه خلق دَ الله تعالی نه ويريدونکی دی. اې ايمان والو په تاسو باندې دَ قتل شوو باره کښې وصفًا فعلاً مماثلت (برابری) فرض کړې شوې ده. آزاد به دَ آزاد په بدله کښې قتل کولې شی او دَ غلام په عوض به (آزاد) نه شی قتل کولې او غلام دَ غلام په عوض کښې او ښځه دَ ښځې په عوض کښې (قتل

کړئی) او په سنت کښې بیان کړې شوی دی چې سړی به د ښځو په عوض کښې قتل کولې شی او دا چې په دین کښې به د مماثلت اعتبار کولې شی لهذا مسلمان سره دَدې چې غلام وی د کافر په عوض اګرچې آزاد وی نشی به قتل کولې. او که د قاتلینو نه څوک دَخپل مقتول رور دَ وینې معافی ورکړی په داسې طریقه چې دَهغه نه قصاص معاف کړې شی اودَ شئ تنکیردَ بعضې وارثانو دَ طرف نه دَ قصاص مطالبه اودَ بعضو دَ طرف نه دَ قصاص معافئی په صورت کښې دَ قصاص دَ ساقط کیدو فائده ورکوی. او دَ رور ذکر کولو کښې دَمعافئی داعی شفقت دې او دَدې خبرې اعلان دې چې قتل اخوة ایمانی نه قطع کوی او مَنْ مبتداء دې شرطیه دې یا موصوله او فاتباع خبر دې نودَمعاف کونکی قاتل په معروف طریقه باندې تعاقب (مطالبه) کول دی په داسې طریقه چې دَ سختئی نه بغیر (نرمئی سره) مطالبه اوکړی او په معافئی باندې اتباع مرتب کول دَدې خبرې فائده ورکوی چې دې دواړو نه یو واجب دې. اودا دَ امام شافعی رحمه الله دَ دوو اقوالونه یو قول دې اودویم قول دادې چې واجب قصاص دې. اودیت دَدې بدل دې. نوکه دَمقتول وارث معاف کړو اودَ دیت تذکره ئی اونه کړه نودَمقتول دَ وارثانودَپاره هیڅ نشته او هم دغه قول راجح ګرځولې شوې دې او په قاتل باندې معافی کونکې یعنی وارث له دیت په ښه طریقه رسول دی. په داسې توګه چې بغیردَ کمی او ټال مټول نه ئی اورسوی. دا حکم (یعنی) دَ قصاص جواز اودَ دیت په عوض دَ قصاص معافی ستاسو دَ رب دَ طرف نه آسانی او رحمت دې ځکه چې په دې کښې وسعت کړې شوې دې او (په متعین توګه) په دې دواړو کښې یو واجب نه دې لکه چې په یهودو باندې (صرف) قصاص واجب کړې شوې وواو په نصاریٰ باندې (صرف) دیت واجب کړې شوې وو. بیا چاچې په قاتل باندې زیاتې اوکړو په داسې طریقه چې دَمعاف کولو نه پس ئی هغه قتل کړو نودَهغه دَپاره آخرت کښې دَ اور دردناک عذاب دې یا په دنیا کښې قتل دې. اې عقل مندو ستاسو دَپاره په قصاص کښې ژوندون دې یعنی بقاء عظیم دې ځکه چې قاتل ته کله داعلم اوشی چې هغه به هم قتل کولې شی نو هغه به (قتل) نه منع شی نو هغه په خپله خپل ځان بچ کړو اودَ چا دَ قتل اراده ئی چې کړې وه هغه هم. لهذا ستاسو دَپاره قانون قصاص مشروع کړې شوې دې دې دَپاره چې تاسو دَ قصاص دَ ویرې نه دَ قتل نه بچ شئی

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: لَیْسَ الْبِرَّ. لَیْسَ ماضی جامد فعل ناقص دې دَدې مضارع مستعمل نه ده ځکه چې لَیْسَ سره دَدې چې دَ ماضی صیغه ده خودَدې معنی نفی للحال دَپاره دې. لَیْسَ په اصل کښې لَیِسَ په وزن دَ فَعِلَ وو که چرې دَ لَیْسَ دَپاره یاء ساکنه دَ لَیْتَ په شان لازم نه وې نو په

لَیْسَ کښې یاء ساکن ماقبل مفتوح کیدو دَوجې نه یاء الف سره بدلیدله نو لَاسَ به کیدلو.

**قوله**: البِرَّ بالنصب، البِرَّ د لَیْسَ خبر مقدم کیدودَوجې نه منصوب دې. او اَنْ تُوَلُّوْا په تاویل مصدر کیدوسره دَ لَیْسَ اسم مؤخر دې اوبعضو قراء البِرُّ اسم لیس ګرځولوسره مرفوع هم لوستلې دې.

**قوله**: اَنْ تُوَلُّوْا تاسو مخ کړئ تَوْلِیَةٌ نه مضارع جمع مذکر حاضر، نون اعرابی عامل ناصب دَ اَنْ دَ وجې نه پریوتلې دې دا دَ اضدادنه دې دَدې معنی مخ کول اومخ اړول دَ دواړو دَپاره راځی.

**قوله**: لَیْسَ البِرَّ باندې سورت بقره نصف شو نصف اول اصول دین اوبنی اسرائیلو په بیان باندې مشتمل دې اودَنصف ثانی غالبه حصه احکام فرعیه تفصیلیه سره متعلق دی.

**قوله**: فی الصلوٰة، فی الصلوٰة سره مقید کولو مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دی چې خارج صلوٰة کوم طرف ته هم مخ کول دَ چا په نیز مطلوب اومحمود نه دی.

**قوله**: ردًّا علی الیهود والنصاری.

**تنبیه**: دا تردید دَ نصاریٰ باره کښې خو صحیح دې ځکه چې هغوی په عبادت کښې مشرق طرف ته مخ کوی خو دَ یهودو باره کښې صحیح نه دې ځکه چې یهودیان په عبادت کښې دَ بیت المقدس طرف ته مخ کوی نه چې دَمغرب طرف ته. او بیت المقدس په مدینه کښې دَ شمال طرف ته دې نه چې دَ مغرب طرف ته (فیه مافیه) لهذا که دَ یهودو اونصاریٰ تخصیص نه کولوسره مطلق طرف مراد واخستلې شی نو په دې طریقه به په عبادت کښې هیڅ طرف مقصود اومطلوب نه شی اصل مطلوب امتثال امردې. بار بار تحویل قبله کولو کښې هم دې طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: ذَا البِرِّ وقُرِءَ دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: لکِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ کښې دَ مصدر حمل په ذات کیږی کوم چې صحیح نه دې ځکه چې ددې ترجمه داده نیکی هغه ده چې په الله باندې ایمان راوړی. حالانکه دا صحیح نه ده دَدې دوه جوابونه ورکړې دی.

**جواب**: ① دا چې دَمصدر ماقبل ذو محذوف اومنلې شی ای ذَا البِرِّ دغه شان به مصدر اسم فاعل جوړشی او ترجمه به داسې شی نیکئ والا (یعنی) نیک هغه دې چې په الله باندې ایمان راوړی.

**جواب**: ② ئی دا ورکړې دې چې بِرٌّ مصدر بَارٌّ دَ اسم فاعل په معنی کښې دې په دې

صورت کښې د حمل مصدر على الذات اعتراض به هم ختم شي بعضو حضراتو يودريم جواب ورکړې دې دَدې ماحصل دادې چې مصدر دَ خبرپه طرف کښې محذوف اومنلې شي او تقديرعبارت به داشي لٰكِنَّ الْبِرَّ بِرُّ مَنْ اٰمَنَ په دې صورت کښې هم څه اعتراض باقي نه پاتې کيږي.

**قوله**: وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى مع حُبِّهٖ لَهٗ، على په معنى د مع دې ځکه چې دلته دَ استعلاء معنى صحيح نه ده.

**قوله**: حُبِّهٖ لَهٗ، لهٗ په ضمير کښې درې احتماله دي: ① چې دَ مال طرف ته راجع وي يعني دَ مال حاجت او ضرورت نه باوجود دَالله تعالى په لارکښې مال خرچ کوي. ② دَالله تعالى طرف ته راجع وي يعني دَالله تعالى دَ محبت دَ وجې نه دَالله تعالى په لارکښې مال خرچ کوي. ③ آتَى نه چې کوم دَ اِيتان مفهوم دې هغه طرف ته راجع وي يعني دَالله تعالى په لارکښې ورکول محبوب ګنړلوسره حاجت مندو ته ورکوي.

**قوله**: عَلٰى حُبِّهٖ، دَحال کيدودَ وجې نه منصوب دې اوذوالحال دَ آتى ضميردې. (اى آتى المال حال محبته له)

**قوله**: القربى، مصدردې نه خودَ قريبٌ جمع ده اونه دَ اَقْرَبُ مؤنث دې اودَدې قرينه دَ ذوا اضافت دې که چرې قربٰى دَ قريب جمع يا دَ اقرب مؤنث وي نودَ ذو اضافت به صحيح نه شي.

**قوله**. والموفون بعهدهم ددې عطف په مَنْ اٰمَنَ باندې دې.

**قوله**: نصب على المدح دَدې عبارت مقصد دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: وَالصّٰبِرِيْنَ رفع سره کيدل پکاروو ځکه چې دا په الموفون باندې عطف دې.

**جواب**: دَ جواب حاصل دادې چې الموفون باندې عطف تقاضه اګرچې داده چې الصّٰبرونَ رفع سره وي ليکن نصب ورکړې شو دې دَپاره چې مقصد بدرجه اتم مکمل وي. لهذا دَ اَمْدَحُ مقدر دَ وجې نه الصابرينَ منصوب دې. اختصار پريخودوسره دَ اطناب اختيارولو وجه داده چې دا مقام مقام مدح دې او کله چې په مقام مدح کښې صفات کثيره ذکر کولې شي نوښه طريقه داده چې دَدې اعراب مختلف وي ځکه چې دَاعرابونو اختلاف په انواع متعدده باندې دلالت کوي او اتحاد فى الاعراب په نوع واحدباندې دلالت کوي. لهذا کله چې په اعراب کښې اختلاف وي نو مقصد به حمد اومدح په طريقه اکمل پوره کيږي لکه چې والصابرون صفت مقطوعه عن الموصوف دې او موصوف الموفون دې اودَ صفت قطع په موصوف سره جائزده. لکه چې دَالله تعالى قول وامرأته حَمَّالَةَ الْحَطَبِ کښې دې.

**قوله**: اُولٰئِكَ مبتداء الَّذِيْنَ صَدَقُوا جمله كيدو سره دَ مبتداء خبر اول، اُولٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ جمله كيدو سره خبرثاني، دا جمله مستانفه هم ښكاري.

**قوله**: اَلْقَتْلٰى دَ قتيل جمع ده په معنى د مقتول.

**قوله**: وَصْفًا وفعلاً دَ مماثلت فى الوصف مطلب دادې چې دَ حر او عبد تفاوت نه وى اودَ مماثلت فى الفعل مطلب دادې چې په كومه طريقه اوكومه آله سره مقتول قتل كړې شوې دې قاتل به هم هغه شان قصاصًا قتل كړې شي. كه په سوزولو سره ئې قتل كړې دې نو قاتل به هم سوزولو سره قتل كولې شي او كه په اوبو كښې ډوبولو سره قتل كړې وى نو قاتل به هم په اوبو كښې ډوبولو سره قتل كولې شي على هذا القياس.

**قوله**: المماثلة دې لفظ سره دا شبه لرې كړې شود چې دَ قصاص صله فى نه راځى خودلته صله فى استعمال شوې ده.

**جواب**: قصاص دَ مماثلت معنى ته متضمن دې دَدې دَپاره فى صله راوړل صحيح دى.

**قوله**: تنكير شئ يُفيدُ سقوطَ القصاص الخ يعنى په شئ كښې دَ فاعل معنى كيدو دَ وجې اصل تعريف دې خو نكره راوړلو سره ئې اشاره اوكړه چې كه يو وارث معاف كړو نو قصاص به ساقط شي.

**قوله**: وايذان بأن القتل لا يقطعُ اخوةَ الايمان په دې سره په معتزله باندې رد كول مقصود دې. قتل ناحق چونكه كبيره گناه ده چې انسان دَمعتزله په نيز دَاسلام نه خارج كړى او په كافر او مسلمان كښې هيڅ اخوة نه وى مگر مِنْ دَمِ اخيه وئيلو سره اشاره اوكړه چې قتل ناحق سره دَدې چې كبيره گناه ده مگر دَ اسلام نه نه خارج كوى گني دې ته به ئې اخ نه وئيل.

**قوله**: وَمَنْ مبتداء دې كه شرطيه وى اوكه موصوله او فَاتِّبَاعٌ بالمعروفِ دَدې خبر دې جواب شرط كيدو دَ وجې فاء داخل ده مطلب دادې كه دَ مقتول وارثانو دَ قاتل نه قصاص معاف كړو او په ديت باندې رضا شو نو قاتل ته داهدايت دې چې ديت دې په ښه طريقه سره اداكړى بې وجې دې ټال مټول نه كوى. بل طرف ته معاف كونكو وارثانو ته دا هدايت دې چې دَ ديت وصول كولو دَپاره دې قاتل پسې نه لگى بلكه په نرمئى او آسانئى سره دې تقاضاكوى دا دې نه گنړى چې مونږ معاف كړې نو په قاتل باندې مو لوئى احسان كړې دې ځكه چې دَ دې اجر به الله تعالى وركوى.

**قوله**: فَعَلَى العَافِي مفسرعلام مذكوره عبارت محذوف منلو سره دَ يو اعتراض جواب وركړې دې.

**اعتراض**: مَنْ شرطیه یا موصوله دَ جواب شرط ړومبی صورت کښې او دَ صله په دریم صورت کښې جمله کیدل ضروری دی ځکه چې صله په حکم کښې دَ جزاء وی.

**جواب**: دَ جواب حاصل دادې چې فاتباع هم جمله ده ځکه چې اتباع مبتداء ده اودَدې خبر عَلَى العَافِي خبر مقدم دې. تقدیری عبارت دادې فَعَلَى العَافِي اتباع بالمعروف.

**قوله**: وترتیب الاتباع علی العفو الخ دَدې عبارت مقصد دا خودل دی چې دیت دَ قصاص بدل یا تابع نه دې بلکه مستقل واجب دی چې په قرآن کریم کښې اتباع یعنی دَ دیت مطالبه عفو قصاص باندې مرتب کړې دې یعنی اول درجه دَ قصاص ده که قصاص په څه وجه ساقط شی نو دیت به پخپله واجب شی. دَدې نه معلومه شوه چې قصاص دَ دیت بدل نه دې که قصاص معاف شی نو دیت به هم پخپله معاف شی. بلکه په دې دواړو کښې یو واجب دې او مقدم قصاص دې. دَ امام شافعی رحمه الله دا قول اول دې که صرف قصاص واجب وې او دیت دَدې بدل وې لکه چې دَامام شافعی رحمه الله قول ثانی دې نو بې دَ عوض یا مطلقًا قصاص معاف کولو سره به دیت بغیر دَ ذکر نه واجب کیدو حالانکه دیت بغیر دَ ذکر کولو نه واجب کیږی.

**قوله**: والثانی الواجب القصاص والدية بدل عنه دا دَ امام شافعی رحمه الله دَ قول ثانی بیان دې دَدې خلاصه داده چې واجب قصاص دې او دیت دَدې بدل دې که دَمقتول وارثانو قصاص معاف کړو اودَ دیت څه ذکر ئې اونه کړو نو دیت به هم پخپله معاف شی اوهم دغه قول راجح دې ځکه چې تعیین سره دَ قصاص په وجوب باندې نصوص موجود دی.

**قوله**: وعلی القاتل، دا عبارت محذوف منلو مقصد سابق اعتراض لرې کول دی. دَوَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ عطف چونکه په فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ باندې دې لهذا کوم اعتراض چې هلته کیدلو هم هغه دلته کیږی. اعتراض او دَ جواب تقریر وړاندې تیرشوې دې اوګورئی.

**قوله**. الحکم المذکور دَدې عبارت مقصد هم دَ یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: ذلك اسم اشاره واحد دې حالانکه دَ دې مشار الیه درې دی: ① جواز قصاص ② العفو عنه ③ دیت.

**جواب**: دَ جواب خلاصه داده چې دَ ذلك مرجع الحکم المذکور دې په کوم کښې چې دا دریواړه احکام راځی.

**قوله**: عذابٌ الیمٌ مؤلَم، مؤلِمٌ کښې دَ لام فتحه او کسره دواړه جائزدی په فتحه کښې مبالغه زیاته ده.

**[ایاتونه: ۱۸۰-۱۸۲]**

{كُتِبَ} فُرِضَ {عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ} أَيْ أَسْبَابه {إِنْ تَرَكَ خَيْرًا} مَالًا {الْوَصِيَّةُ} مَرْفُوع بِكُتِبَ وَمُتَعَلِّق بِإِذَا إِنْ كَانَتْ ظَرْفِيَّة وَدَالّ عَلَى جَوَابهَا إِنْ كَانَتْ شَرْطِيَّة وَجَوَاب إِنْ أَيْ فَلْيُوصِ {لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ} بِالْعَدْلِ بِأَنْ لَا يَزِيد عَلَى الثُّلُث وَلَا يُفَضِّل الْغَنِيّ {حَقًّا} مَصْدَر مُؤَكِّد لِمَضْمُونِ الْجُمْلَة قَبْله {عَلَى الْمُتَّقِينَ} اللّٰه وَهٰذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ الْمِيرَاث وَبِحَدِيثِ لَا وَصِيَّة لِوَارِثٍ رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ {فَمَنْ بَدَّلَهُ} أَيْ الْإِيصَاء مِنْ شَاهِد وَوَصِيّ {بعد ما سمعه} علمه {فإنما إثمه} اي الإيصاء الْمُبَدَّل {عَلَى الَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُ} فِيهِ إِقَامَة الظَّاهِر مَقَام الْمُضْمَر {إِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ} لِقَوْلِ الْمُوصِي {عَلِيمٌ} بِفِعْلِ الْوَصِيّ فَمُجَازٍ عَلَيْهِ {فَمَنْ خَافَ مِنْ مُوصٍ} مُخَفَّفًا وَمُثَقَّلًا {جَنَفًا} مَيْلًا عَنْ الْحَقّ خطأ {أَوْ إِثْمًا} بِأَنْ تَعَمَّدَ ذَلِكَ بِالزِّيَادَةِ عَلَى الثُّلُث أَوْ تَخْصِيص غَنِيّ مثلا {فأصلح بينهم} بين الوصي وَالْمُوصَى لَهُ بِالْأَمْرِ بِالْعَدْلِ {فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ} في ذلك {إن الله غفور رحيم}

**ترجمه:** په تاسو باندې فرض کړې شوې دی چې کله په تاسو کښې چا ته دَ مرګ وخت نیزدې راشی یعنی دَ مرګ علامات ښکاره شی که هغه چرې څه مال پرېږدی نو دَ والدینو او خپلوانو دَپاره دې وصیت اوکړی (الْوَصِيَّةُ) كُتِبَ نائب فاعل کیدو دَوجې مرفوع دې او إِذَا سره متعلق دې. که چرې إِذَا ظرفیه دې او دال علی الجزاء دې. که چرې اذا شرطیه دې نو دَ إِنَّ جواب محذوف دې او هغه فَلْيُوصِ دې. انصاف سره په دې طریقه چې دَ یوثلث نه زیات وصیت اونه کړی اومالدارته ترجیح ورنه کړی دا حق دې دَ الله تعالی نه ویریدونکو باندې (حَقًّا) دَ خپل سابقه جملې دَمضمون دَپاره مصدر مؤکد دې اودا دَ (وصیت حکم) په آیت دمیراث او لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ سره منسوخ دې. (رواه الترمذی) لهٰذا کوم سړی چې دا (یعنی) ایصاء بدل کړو دَعلم کیدونه پس که ګواه وی یا پخپله وصی نو دَ وصیت دَ بدلون ګناه به په هغه خلقو باندې وی څوک چې په دې کښې بدلون کوی او په دې کښې دَاسم ضمیر په ځائې اسم ظاهر دې بیشکه الله تعالی دَ وصیت کونکی خبره (وصیت) اوریدونکې او دَ وصی دَفعل نه خبردې نو هغه په دې باندې بدله ورکونکې دې. اوس که چرې دَ وصیت کونکی دَ طرف نه دَ پوهې یا ناپوهې په طریقه سره اندیښنه وی (مُوَصٍّ) مخفف اومشدد دواړه دی په داسې توګه چې دَ ثلث نه زیاتی (وصیت) اراده اوکړی یا مثلاً دَ مالدار تخصیص اوکړی نو دَ انصاف حکم ورکولوسره دَهغوی دَپاره یعنی دَ موصی او موصی له په مینځ کښې (څوك سړې) صلح اوکړی نو په دې کښې هیڅ ګناه نشته بیشکه چې الله تعالی بخښونکې اومهربان دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** كُتِبَ اى فُرِضَ دَ کتابت اصل معنی دَ لیکلوده مګر دَعلی په قرینه سره کوم چې په

الزام باندې دلالت کوی دَفرض معنی اخستې شوې ده لکه چې كُتِبَ عليكم القصاص کښې وئيلی شوی دی.

**قوله**: اي اسبابُهُ مفسرعلام مضاف محذوف منلوسره دَ يوسوال مقدر جواب ورکړې دې.

**سوال**: په ايت کښې وئيلی شوی دی چې کله دَ يوسړی مرگ رانيزدې شی نو په هغه باندې وصيت کول فرض دی حالانکه دا ممکن نه دی ځکه چې دَمرگ دَ حاضرئی په وخت سړې مری.

**جواب**: دَمرگ نه دَمرگ علامات مراد دی يا مجازًا قرب ئی حضور سره تعبير کړې دې.

**قوله**: اَحَدَكُمُ دې سره فرض عين طرف ته اشاره ده يعنی قانون ميراث نازليدونه وړاندې وصيت کول فرض وو.

**قوله**: مرفوعٌ بكُتِبَ دادَهغه خلقو دَقول رد طرف ته اشاره ده کومو چې وئيلی دی چې الوَصِيَّةُ مبتداء ده او للوالدين دَ دې خبردې. دَدې قول دَ قائلينو دليل دادې چې که الوَصِيَّةُ دَكُتِبَ نائب فاعل کيدو دَ وجې مرفوع وی نو كُتِبَ خو كُتِبَتْ مؤنث کيدل پکار وو.

**جواب**: که دَفعل اوفاعل په مينځ کښې فاصله واقع وی نو په فعل اوفاعل کښې مطابقت ضروری نه پاتې کيږی.

**قوله**: اِنْ تَرَكَ، د اِنْ حرف شرط جواب باره کښې اختلاف دې چې څه دی؟ اخفش رحمه الله دَدې دوه صورتونه بيان کړی دی. جواب شرط الوَصِيَّةُ دې تقديری عبارت به داسې شی اِنْ تَرَكَ خيرًا فَالوَصيةُ واجبَةٌ مگر په دې به دااعتراض کيږی چې جزاء کله جمله اسميه وی نو په دې باندې فاء راوړل ضروری کيږی حالانکه دلته فاء نشته او حذف بغيردَ ضرورت نه جائزنه دې. دويم صورت دادې چې دَ شرط نه وړاندې جواب شرط محذوف اومنلې شی، تقديری عبارت به داشیٔ ای كُتِبَ الوصيةُ للوَالِدَين وَالاَقرَبِين اِنْ تَرَكَ خيرًا لهذا بهتر هم دغه دی چې الوصية دَكتبَ نائب فاعل اومنلې شی اودَ دواړو شرطونودَپاره جزاء محذوف اومنلې شی لکه چې مفسرعلام وئيلی دی. اودَ عدم مطابقت بعضې حضراتو دا جواب ورکړې دې چې الوَصِيَّةُ په معنی دَ ايصاءُ دې او بعض نورو حضراتو دا جواب ورکړې دې چې کله فاعل مؤنث مجازی وی نوفعل مذکر اومؤنث دواړه راوړل جائزدی. که اذا دَ ظرفيت محض دَپاره وی نو دَ الوَصِيَّةُ ظرف به شی اوکه چرې متضمن وی په معنی دَ شرط لره نو دال به علی جواب الشرط شی اودَ دواړو شرطونو جواب به محذوف وی.

(كما صرّح المفسر عليه الرحمة)

**قوله**: ومتعلق باذا په دې اضافه سره دَدې حضراتو دَ قول تضعيف مقصوددې چاچې وئيلى دى چې اذا،كُتِبَ سره متعلق دې نه چې الوصيةُ سره. دَدې قائلينو حضراتو دليل دادې چې الوصيةُ اسم كيدو دَ وجې نه عامل ضعيف دې لهذا په خپل معمول مقدم كښې عمل نه شى كولې. دَ ضعف وجه داده چې اذا ماضى دَ مستقبل په معنى كښې كوى او كُتِبَ فعل ماضى دې چې په تيره شوې زمانه باندې دلالت كوى او زمانه دَ مستقبل د ماضى ظرف كيدې نه شى او بعضې حضراتو دا اعتراض كړې دې چې الوصيةُ دَ اسم عامل ضعيف كيدو دَ وجې نه په خپل ماقبل كښې عمل نه شى كولې. دَدې جواب دادې چې الوصيةُ اسم مصدر دې نه چې اسم جامد اوتحقيق دادې چې اسم مصدر ظرف مقدم كښې عمل كولې شى څکه چې په ظرف كښې دَعمل كولودپاره دَ فعل بوئى كافى دې او په اسم مصدر كښې دَ فعل بوئى وى.

**قوله**: وَدَالٌ على جوابِهَا ان كانت شرطيةً.

**سوال**: مفسرعلام دال على الجزاء وئيلې دې دائى ولې نه دى وئيلى چې الوصيةُ جزاء دې؟

**جواب**: دادې چې دَ جزاء دَپاره جمله كيدل شرط دې او الوصيةُ جمله نه ده څکه پخپله الوصيةُ جزاء نه شى جوړيدې.

**قوله**: وَجواب اِن محذوف، محذوف دَ جواب صفت دې مطلب دادې چې الوصيةُ دَ اذا په جواب محذوف باندې دال دې. كه چرې اذا شرطيه وى اودَ اِنْ جواب په محذوف باندې هم دال دې او هغه فليُوصِ دې.

**قوله**: حقًا مصدرٌ مؤكِدٌ لمضمون الجملة قبلَهُ، حقًا دَ سابقه جملې دَ مضمون تاكيد دې. دَ سابقه جملې نه مراد كُتِبَ عَلَيۡكُمۡ دې اودَ كُتِبَ عَلَيۡكُمۡ مضمون دې حُقَّ عَلَيۡكُمۡ لهذا حَقًا دَدې تاكيد دې اوتقديرى عبارت دادې حُقَّ عليكم حقًا څنګه چې مفعول بغيرلفظ سابق مضمون دَ جملې تاكيد كوى هم دغه شان حقًا هم مضمون دَ جملې تاكيد كوى. او سابقه جمله كښې حقَّ عليكم نه علاوه احتمال نشته.

**قوله**: بآيةِ الميراثِ دَ ميراث دَ آيت نه مراد دَالله تعالى قول يُوصِيكُمُ اللّٰهُ فِيٓ اَوۡلَادِكُمۡ لِلذَّكَرِ مِثۡلُ حَظِّ الۡاُنۡثَيَيۡنِ دې. يعنى د آيت دَ وصيت حكم منسوخ دې او تلاوت ئې باقى دې.

**قوله**: اى الايصاء دَدې عبارت مقصد دَ يواعتراض جواب دې.

**اعتراض**: بَدَّلَهُ ضمير الوَصية طرف ته راجع دې كوم چې مؤنث دې لهذا په ضمير اومرجع كښې مطابقت نشته.

**جواب**: الوصية نه چې كوم ايصاء مفهوم دې ددې طرف ته ضمير راجع دې لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله**: إِقَامَةُ الظَّاهِرِ مقام المضمر يعنى فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَيْهِمْ وئيل كافى وو مگر د ضمير په ځائې اسم راوړلو كښې علت د اثم طرف ته اشاره ده يعنى د ګناهګار كيدو د وجې نه د شاهد يا وصى وصيت كښې بدلون كول دى.

**قوله**: مَيلاً عن الحق خطأ. جَنَفُ لغت كښې مطلقًا تيتيدو او مائل كيدو ته وائى دلته د حق نه بغير ارادې واپس كيدل مراد دى ځكه چې د دې په مقابله كښې بالاثم راغلې دې اثم وائى په قصد او په اراده د حق نه واپس ګرځيدو ته.

[اياتونه: ۱۸۳-۱۸۶]

{يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ} فُرِضَ {عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ} مِنَ الأُمَمِ {لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ} الْمَعَاصِي فَإِنَّهُ يَكْسِرُ الشَّهْوَةَ الَّتِي هِيَ مَبدؤها {أَيَّامًا} نُصِبَ بِالصِّيَامِ أَوْ يَصُومُوا مُقَدَّرًا {مَعْدُودَاتٍ} أَيْ قَلَائِلَ أَوْ مُؤَقَّتَاتٍ بِعَدَدٍ مَعْلُومٍ وَهِيَ رَمَضَانُ كَمَا سَيَأْتِي وَقَلَّلَهُ تَسْهِيلًا عَلَى الْمُكَلَّفِينَ {فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ} حِينَ شُهُوده {مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ} أَيْ مُسَافِرًا سَفَرَ الْقَصْرِ وَأَجْهَدَهُ الصَّوْمُ فِي الْحَالَيْنِ فَأَفْطَرَ {فَعِدَّةٌ} فَعَلَيْهِ عِدَّةُ مَا أَفْطَرَ {مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ} يَصُومُهَا بَدَله {وَعَلَى الَّذِينَ} لَا {يُطِيقُونَهُ} لِكِبَرٍ أَوْ مَرَضٍ لَا يُرْجَى بُرْؤُهُ {فِدْيَةٌ} هِيَ {طَعَامُ مِسْكِينٍ} أَيْ قَدْرُ مَا يَأْكُلُهُ فِي يَوْمه وَهُوَ مُدّ مِنْ غَالِبِ قُوتِ الْبَلَدِ لِكُلِّ يَوْمٍ وَفِي قِرَاءَةٍ بِإِضَافَةِ فِدْيَةٍ وَهِيَ لِلْبَيَانِ وَقِيلَ لَا غَيْر مُقَدَّرَة وَكَانُوا مُخَيَّرِينَ فِي صَدْرِ الْإِسْلَامِ بَيْنَ الصَّوْمِ وَالْفِدْيَةِ ثُمَّ نُسِخَ بِتَعْيِينِ الصَّوْمِ بِقَوْلِهِ مَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ قال بن عَبَّاس إِلَّا الْحَامِل وَالْمُرْضِع إِذَا أَفْطَرَتَا خَوْفًا عَلَى الْوَلَدِ فَإِنَّهَا بَاقِيَةٌ بِلَا نَسْخٍ فِي حَقِّهِمَا {فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا} بِالزِّيَادَةِ عَلَى الْقَدْرِ الْمَذْكُورِ فِي الْفِدْيَةِ {فَهُوَ} أَيْ التَّطَوُّع {خَيْرٌ لَهُ وَأَنْ تَصُومُوا} مُبْتَدَأ خَبَره {خَيْرٌ لَكُمْ} ومن الْإِفْطَار وَالْفِدْيَة {إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ} أَنَّهُ خَيْر لَكُمْ فَالْمَعْلُومُ تِلْكَ الْأَيَّام {شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ} مِنَ اللَّوْحِ الْمَحْفُوظِ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ مِنْهُ {هُدًى} حَال هَادِيًا مِنَ الضَّلَالَةِ {لِلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ} آيَات وَاضِحَات {مِنَ الْهُدَى} بِمَا يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ مِنَ الْأَحْكَامِ {وَ} من {الْفُرْقَانِ} مِمَّا يُفَرِّقُ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ {فَمَنْ شَهِدَ} حَضَرَ {مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ} تَقَدَّمَ مِثْله وَكُرِّرَ لِئَلَّا يُتَوَهَّم نَسْخه بِتَعْمِيمِ مَنْ شَهِدَ {يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ} وَلِذَا أَبَاحَ لَكُمْ الْفِطْرَ فِي الْمَرَضِ وَالسَّفَرِ لِكَوْنِ ذَلِكَ فِي مَعْنَى الْعِلَّة أَيْضًا لِلْأَمْرِ بِالصَّوْمِ عُطِفَ عَلَيْهِ {وَلِتُكْمِلُوا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ {الْعِدَّةَ} أَيْ عِدَّة صَوْم رَمَضَان {وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ} عِنْد إِكْمَالهَا {عَلَى مَا هَدَاكُمْ} أَرْشَدَكُمْ لِمَعَالِم دِينه {وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} اللَّه على ذلك وَسَأَلَ جَمَاعَة النَّبِيّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقَرِيبٌ رَبّنَا فَنُنَاجِيه أَمْ بَعِيد فَنُنَادِيه فَنَزَلَ {وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ} مِنْهُمْ بعلمي فاخبرهم بذلك

{أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ} بِإِنَالَتِهِ مَا سَأَلَ {فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي} دُعَائِي بِالطَّاعَةِ {وَلْيُؤْمِنُوا} يداوموا على الإيمان {بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ} يَهْتَدُونَ

**ترجمه:** اې دَ ایمان والوپه تاسو باندې داسې روژه ساتل فرض کړې شوی دی څنګه چې تاسو نه وړاندې امتونو باندې فرض کړې شوې وې دې دَپاره چې تاسودګناه نه بچ شئی بیشکه روژه شهوت ختمه وی چې دَ معصیت سرچشمه ده (أَيَّامًا) صِيَامًا دَ وجې نه یا يَصُومُوا مقدر دَ وجې نه منصوب دی چې دَ شمیریوڅو ورځې دی دَ کوم شمیرچې معلوم دې اوهغه دَ رمضان روژې دی لکه چې ډیر زر به راشی دَرمضان دَمیاشت روژې په مکلفینوباندې دَ سهولت دَپاره کمې ګرځولې شوی دی نو په تاسوکښې چې څوک دَ رمضان دَ میاشت په راتلوسره بیمار یا مسافروی یعنی دَ سفرقصردَ مسافت مسافروی او په دواړو صورتونوکښې هغه ته دَ روژې دَ وجې نه مشقت اوچتول وی نوهغه روژه ماتولې شی په هغه باندې دَ پریخودې شوو روژو دَشمیر برابر روژې په نورو ورځوکښې دغه شمیرپوره کول لازم دی. چې دَهغې په بدله کښې روژې اوساتی اوکوم خلق چې دَ ډیربوډاوالی دَوجې نه یا دَداسې بیمارئی دَ وجې نه دَ صحت یاب کیدو امید نه لری هغوی دې روژه نه ساتی په هغوی باندې ندیه واجب ده. (او) هغه دَ یومسکین خوراك دې یعنی په دومره اندازه چې دَ یوې روژې خوراك وی اوهغه په اندازه دَ یومُد دې دَ روزمره عام دَ ښارخوراك نه او په یوقراءت کښې دَ فدیه اضافت سره دې اودا اضافت بیانیه دې او وئیلې شوی دی چې لاَ مقدر نه دې او دَاسلام په شروع کښې روژه او فدیه کښې اختیاررو بیا دَالله تعالی قول ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾ په ذریعه اختیار منسوخ کړې شو. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائیلی دی دَحامله اومرضعه (پئی ورکونکې ښځه) اختیار منسوخ نه دې خوچې دَخپل بچی باره کښې دَ (نقصان) اندیښنه وی دَ څه دَ وجې نه چې فدیه دَدې دواړو په حق کښې بغیرنسخ باقی وی. بیاچې کوم سړې دَ فدیه په مقدارمذکورکښې په خپله خوښه اضافه اوکړی نودا پخپله خوشئی باندې اضافه کول دَ ده دَپاره بهتردی. او ستاسو روژه ساتل دَ افطار او فدیه نه ستاسو دَ پاره بهترده. إِنْ تَصُومُوا مبتداء او خَيْرٌ لَّكُمْ دَدې خبر دې. که چرې تاسو ګڼړئی چې روژه ساتل ستاسو دَپاره بهتردی نو تاسو دَدغه ورځو روژې اوساتئی. دَ رمضان میاشت هغه میاشت ده په کومه کښې چې دَ لوح محفوظ نه دَ دنیادَ آسمان طرف ته په لیلة القدرکښې قرآن نازل کړې شو حال دادې چې هغهٔ دَخلقودَپاره دَ ګمراهئی نه هدایت کونکې دې اودَهدایت ښکاره نښې دی چې دَحق یعنی احکاموطرف ته لار خودنه کوی اودَ حق اوباطل په مینځ کښې فرق کوی نو په تاسوکښې چې کوم سړې هم دَ رمضان میاشت کښې وی نوهغهٔ له روژه ساتل پکاردی اوکوم سړې چې بیمار یا مسافروی نو په نورو ورځوکښې دې

شمیرپوره کړی. دَدې په شان حکم وړاندې هم تیرشوې دې اوداحکم مکرررااوړلې شوې دې چې دَ فَمَنْ شَهِدَ عموم نه (حکم قضا) دَمنسوخ کیدو وهم نه وی. الله تعالی تاسو سره نرمئی معامله کول غواړی دَ سختئی نه څکه په حالت دَ بیمارئی اوسفر کښې افطار مباح اوګرځولو. اودَ يُرِيْدُاللهُ الخ هم دَ روژې امر (یعنی فَلْيَصُمْهُ) دَ علت معنی کښې کیدو وجې نه دَ وَلِتُكْمِلُوا الخ په يُرِيْدُاللهُ الخ عطف کړې شوې دې. وَلِتُكْمِلُوا الخ تخفیف او تشدید سره، اودې دَپاره چې تاسو دَ رمضان روژو شمیرپوره کړئی اودَ روژو دَ پوره کولونه پس په دې خبره باندې چې هغه تاسو ته هدایت درکړې (یعنی) دَ خپل دین دَ احکامو طرفته لار خودنه فرمائیلې. دَ الله تعالی لوئی بیانوئی دې دَپاره چې تاسو په دې هدایت باندې دَ الله تعالی شکرادا کړئ اوڅه خلقو دَالله تعالی دَ نبی ﷺ نه سوال اوکړو چې زمونږ پروردګار نیزدې دې چې هغه سره پټې خبرې اوکړو یا لرې دې چې هغه ته په زوره آواز اوکړو نو آیت نازل شو چې کله زما بندیګان زما باره کښې سوال کوی (نو واقعه داده) چې زه هغوی سره زما دَ علم په اعتبار بیشکه نیزدې یم ته هغوی ته داخبره اوښایه چې دَ هردعاکونکی دعا دَهغه مطلوب عطا کولو سره قبلوم په دې وجه خلقو ته هم پکاردی چې اطاعت کولو سره زما خبره اومنی او په ما باندې ایمان اولری (یعنی) په ایمان باندې قائم اودائم پاتې شی دې دَپاره چې نیغه لار اوموی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: الصِّيَام (ن) صَوْمًا وصِيَامًا لغت کښې مطلقًا منع کیدل، دَ شریعت په اصطلاح کښې دَ خوراک څښاك اوجماع نه دَ روژې په نیت سره دَ صبح صادق نه دَ نمر دوبیدو پورې.

**قوله**: د مِنَ الْأُمَمِ اضافه اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ عموم ښکاره کولودَپاره اودَهغه خلقو تردید دې چې اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ نه نصارىٰ مراد اخلی. الصيام مصدر دې په معنی روژه ساتل.

**قوله**: المعاصی اضافه کولوسره اشاره اوکړه چې دَ تتقون نه لغوی معنی مراد ده او المعاصی دَدې مفعول به دې.

**قوله**: نُصِبَ بِالصِّيَامِ اَوْيَصُوْمُوْا مُقَدَّرًا، دَ تقدیرنه د اَيَّامًا منصوب کیدو دواړو صورتونو طرف ته اشاره ده یوخودا دی چې اَيَّامًا، الصِّيَام مذکوردَ وجې نه منصوب دې. مګر په دې باندې دا اعتراض دې چې دَ عامل اومعمول په مینځ کښې كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ فصل بالاجنبی دې لهذا الصِّيَام عامل کیدې نه شی. دَدې جواب دادې چې علامه رضی رحمه الله وئیلی دی که چرې معمول ظرف وی نود فصل بالاجنبی باوجود عمل صحیح دې او دویم صورت دادې چې صُوْمُوا مقدر اومنلې شی په دې صورت کښې هیڅ اشکال نشته.

**قوله**: اي قلائل، دَ معدُودَاتٍ تفسیر قلائل سره کولوکښې اشاره اوکړه چې معدودات نه

مراد قليل مقدار دې ځکه چې عرب قليل ته کوم چې د څلويښتونه کم وی معدود سره اوکثير موزون سره تعبيرکوی. قليل مال ته وئيلی شی يُعَدُّعدًا او کثير ته يُصَبُّ صَبًّا وائی. ای يُوْزَنُ وَزْنًا.

**قوله**: ای موقتاتٍ بعددٍ ای محدوداتٍ بعدد داد قلالی تفسير دې معنی ده د شميرورځې.

**قوله**: قَلَّلَهُ تَسْهِيلاً على المكلفين د رمضان د مياشت روژې اگر چې فی نفسه کثير دی مگر په نفسياتی توگه متاثرکولو دپاره د تشجيع په توگه قلت سره تعبيرکړې دی دې دپاره چې د مکلفين دپاره د روژې اداکولو کښې سهولت او آسانی وی.

**قوله**: حين شهودِه يعنی درمضان د راتلووخت کښې بيماروی يا مسافرپه دې کښې احتراز دې ددې صورت نه چې په حالت سفرکښې يا حالت مرض کښې چې روژه شروع شی.

**قوله**: ای مسافِرًاسفرالقصر دې کښې شرعی سفرطرف ته اشاره ده.

**قوله**: اَجْهَدَهُ الصومُ فی الحالين فَاَفْطَرَای فی حالة المرض والسفر په دوارو صورتونوکښې د افطار د اجازت دپاره د مشقت شرط امام شافعی رحمه الله د قول مطابق دې. د احنافو په نيزپه سفرکښې دمشقت شرط نشته که سفر په آرام سره هم وی خوبياهم د افطار اجازت دې. په مرض کښې د افطاردپاره دکوشش اومشقت شرط دې ځکه چې په بعضو مرضونوکښې روژه فائده منده وی نه چې مضر، په خلاف د سفرچې هم نفس سفر د مشقت په ځائی منلې شوې دې.

**قوله**: هُدًى حال دې په معنی د هادِيًا نه چې د القرآن صفت ځکه چې هدًى نکره او القرآن معرفه دې.

**قوله**: وَكَرَّرَهُ لِئَلاَّيُتَوَهَّمَ نسخه بتعميم مَن شَهِدَ ددې اضافه مقصد د يوسوال جواب دې.

**سوال**: دمذکوره آيت مکرر راوړلو څه وجه ده؟

**جواب**: د الله تعالی قول ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾ نه معلوميږی چې د رمضان د مياشت د روژې نه هيڅ مستثنٰی نشته که مريض وی اوکه مسافر، مرضعه وی که حامله، حالانکه د اولو دوو نه علاوه ټول مستثنٰی دی که مقيم وی که صحت مند ځکه چې فَمَنْ شَهِدَ په عموم باندې دلالت کوی هم داد وهم لرې کولودپاره دا آيت مکرر راوړلې شوې دې.

**قوله**: ولِتُكْمِلُوا ذلك فی معنی العلة ايضًا للامر بالصوم عُطِفَ عليه ولتكملوا ددې عبارت د اضافه مقصديواعتراض لرې کول دی.

**اعتراض**: د اعتراض حاصل دادې چې يُرِيْدُاللهُ بِكُمُ الْيُسْرَ الخ فعدةمن ايامٍ اخر جمله فعليه ده او

په دې باندې وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ عطف دې اودا جمله انشائيه ده او دَ جملې انشائيه په جمله خبريه باندې عطف صحيح نه دې.

**جواب:** دَ جواب حاصل دادې چې معطوف عليه يعنى يُرِيدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ الخ دَ علت په معنى كښې دې او وَلِتُكْمِلُوا هم دَ علت په معنى كښې دې لهذا دَ علت په علت باندې عطف صحيح دې.

**قوله:** وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰكُمْ امر بالقضاء علت ثالثه دې.

[اياتونه: ۱۸۷-۱۸۸]

{أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ} بِمَعْنَي الْإِفْضَاء {إِلَىٰ نِسَائِكُمْ} بِالْجِمَاعِ نَزَلَ نَسْخًا لِمَا كَانَ فِي صَدْرِ الْإِسْلَام عَلَي تَحْرِيمِه وَتَحْرِيمِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ بَعْدَ الْعِشَاء {هُنَّ لِبَاسٌ لَكُمْ وَأَنْتُمْ لِبَاسٌ لَهُنَّ} كِنَايَةٌ عَنْ تَعَانُقِهِمَا أَوْ احْتِيَاجِ كُلٍّ مِنْهُمَا إِلَي صَاحِبِه {عَلِمَ اللّٰهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُونَ} تَخُونُونَ {أَنْفُسَكُمْ} بِالْجِمَاعِ لَيْلَةَ الصِّيَام وَقَعَ ذَلِكَ لِعُمَرَ وَغَيْرِه وَاعْتَذَرُوا إِلَي النَّبِيِّ صَلَّي اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَتَابَ عَلَيْكُمْ} قَبْلَ تَوْبَتِكُمْ {وَعَفَا عَنْكُمْ فَالْآنَ} إِذْ أُحِلَّ لَكُمْ {بَاشِرُوهُنَّ} جَامِعُوهُنَّ {وَابْتَغُوا} اُطْلُبُوا {مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ} أَيْ أَبَاحَهُ مِنَ الْجِمَاعِ أَوْ قَدَّرَه مِنَ الْوَلَد {وَكُلُوا وَاشْرَبُوا} اللَّيْلَ كُلَّه {حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ} يَظْهَرَ {لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ} أَيِ الصَّادِق بَيَانٌ لِلْخَيْطِ الْأَبْيَض وَبَيَانُ الْأَسْوَد مَحْذُوفٌ أَيْ مِنَ اللَّيْل شَبَّهَ مَا يَبْدُو مِنَ الْبَيَاض وَمَا يَمْتَدُّ مَعَهُ مِنَ الْغَبَش بِخَيْطَيْنِ أَبْيَض وَأَسْوَد فِي الْإِمْتِدَاد {ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ} مِنَ الْفَجْرِ {إِلَى اللَّيْلِ} أَيْ إِلَي دُخُولِه بِغُرُوبِ الشَّمْس {وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ} أَيْ نِسَاءَكُمْ {وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ} مُقِيمُونَ بِنِيَّةِ الاعتكاف {فِي الْمَسَاجِدِ} متعلق بعاكفون نَهْي لِمَنْ كَانَ يَخْرُجُ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَيُجَامِعُ امْرَأَتَه وَيَعُود {تِلْكَ} الْأَحْكَامُ الْمَذْكُورَة {حُدُودُ اللّٰهِ} حَدَّهَا لِعِبَادِهِ لِيَقِفُوا عِنْدَهَا {فَلَا تَقْرَبُوهَا} أَبْلَغُ مِنْ لَا تَعْتَدُوهَا الْمُعَبَّرِ بِهِ فِي آيَةٍ أُخْرَي {كَذَٰلِكَ} كَمَا بَيَّنَ لَكُمْ مَا ذُكِرَ {يُبَيِّنُ اللّٰهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ} مَحَارِمَه {وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ} أَيْ يَأْكُلُ بَعْضُكُمْ مَالَ بَعْض {بِالْبَاطِلِ} الْحَرَامِ شَرْعًا كَالسَّرِقَةِ وَالْغَصْب {وَ} لَا {تُدْلُوا} تُلْقُوا {بِهَا} أَيْ بِحُكُومَتِهَا أَوْ بِالْأَمْوَالِ رِشْوَةً {إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا} بِالتَّحَاكُم {فَرِيقًا} طَائِفَةً {مِنْ أَمْوَالِ النَّاسِ} مُتَلَبِّسِينَ {بِالْإِثْمِ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ} أَنَّكُمْ مُبْطِلُونَ

**ترجمه:** اوحلال كړې شوې دى ستاسو دَپاره دَ روژو په شپو كښې ستاسو ښځوسره دَجماع په توګه بې حجابه كيدل دا حكم په شروع د اسلام كښې د ښځوسره جماع اودَ ماسخوتن نه پس دَخوراك څښاك حرمت منسوخ كولو دَپاره نازل شو. هغوى ستاسو لباس دې اوتاسو دَهغوى لباس. دا كنايه ده په خپل مينځ كښې معانقه نه يا دَ يوبل حاجتمند كيدو سره، الله تعالى ته معلومه ده چې تاسو دَ روژې په شپه جماع كولوسره هم خپل ځان سره خيانت كوئى. دا واقعه حضرت عمر ﷛ وغيره او ددوئ نه علاوه نوروته پيښه شوې وه او هغه خلقو دَ

حضور پاک نه معذرت غوښتې وو نوهغه ستاسو توبه قبوله کړه اوتاسو ئې معاف کړئې نو اوس چې ستاسو دپاره حلال کړې شوې دی نوهغوی سره مباشرت کولې شئې او هغه (اولاد) طلب کولې شئې کوم چې ستاسو دپاره الله تعالی مقدرکړې دې یعنی جماع نې جائزکړه یا ولد مقدرطلب کول نې جائزکړل او د شپې په هره حصه کښې خوراک څښاک کولې شئې ترهغه وخته پورې چې د سحر یعنی صبح صادق سپین مزې د تور مزی نه جدا شی (مِنَ الفجر) د الخیط الابیض بیان دې اود اسود بیان محذوف دې (اوهغه من اللیل دې) ښکاره کیدونکې سپینوالې اوهغه تیاره کومه چې دې سره ترلې وی د سپین او تور دوو مزو سره په اوږدوالی کښې تشبیه ورکړې ده. یا د صبح صادق نه ترشپې پورې روژه پوره کړئې یعنی دنمر ډوبیدو سره د شپې داخلیدو پورې، او خپلو بیبیانوسره مباشرت مه کوئې کوم وخت چې تاسو د اعتکاف په نیت سره په جماتونوکښې مقیم یئې فی المساجد د عاکفون سره متعلق دې دا ممانعت دهغه سړی دپاره دې چې (جمات کښې) معتکف کیدود وجې نه د جمات نه وتلې وی او خپلې بی بی سره کور والې کولونه پس بیا راغلې وی. دا مذکوره احکام د الله تعالی حدود دی کوم چې الله تعالی دخپلو بندیگانودپاره مقرر فرمائیلی دی. لهذا دې نه نیزدې کیږئې هم مه. دا تعبیرد لاتعتدوها نه زیات بلیغ دې. کوم چې په دویم آیت کښې تعبیرکړې شوې دې بالکل هم دغه شان چې ستاسو دپاره مذکوره (احکام) بیان کړې شو. الله تعالی خپل آیاتونه دخلقو دپاره بیانوی چې د حرام کړې شوی څیزونونه بچ شی اوتاسو خلق د یوبل مال په ناحقه طریقه سره مه خورئې یعنی باطل طریقه باندې د یوبل مال مه خورئې یعنی په هغه طریقه چې شرعًا حرام وی مثلاً غلا غصب وغیره او مه رسوئې مال یعنی مالی خصومت حکامو له یعنی مالی جګړې حاکمانوله مه رسوئی یا مال د رشوت په توګه حکام ته مه رسوئی دې دپاره چې اوخورئې تاسو مرافعه الی الحکام کولوسره د خلقو د مال یوه حصه په ګناه سره ککړ کول سره ددې چې تاسو پوهیږئې چې تاسو په ناحقه یئې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ، الرَّفث هغه خبرې اترې کومې چې د ښځې او سړی په مینځ کښې د جماع په وخت کیږی او بل وخت ناخوښه کولې شی. د رفث اود جماع په مینځ کښې عمومًا د لزوم کیدود وجې نه رفث ونیلوسره جماع مراد اخستې ده. (اعراب القرآن) رَفَثَ يَرْفُثُ (ن) رَفَثًا فحش خبرې کول.

**سوال:** د رفث صله فی یا باء راځی دلته الی استعمال شوې دی؟

**جواب:** رفث چونکه د افضاء په معنی د مشتمل دې لهذا صله الی راوړل صحیح دی لکه چې مفسرعلام دې ته اشاره کړې ده.

**قوله**: لَيْلَةَ الصِّيَامِ ظاهرخوهم دغه ده چې لَيْلَةَ دَ أُحِلَّ دَ وجې نه منصوب دې لکه چې ډيرو مفسرينوهم دا وئيلي دي مګر په دې صورت کښې دا شبه کيږي چې حلت خودَهغه وخت نه وړاندې ثابت وو. دَدې ترکيب نه معلوميږي چې حلت هم دغه وخت اوشو.

**سوال**: الرفث کوم چې بعد کښې مذکوردې هغه دَ لَيْلَةُ ناصب کيدې شي؟

**جواب**: الرفث چونکه مصدر عامل ضعيف دې کوم چې په خپل ماقبل کښې عمل نه شي کولې په دې وجه هغه عامل نه دې لهذا بهترهم دغه ده چې دَلَيْلَةً عامل محذوف اومنلې شي تقديري عبارت به داسې شي أَنْ تَرْفُثُوا لَيْلَةَ الصِّيَامِ.

**قوله**: تخونون، دَ تختانون تفسير په تخونون سره کول دَ يو اشکال جواب دې.

**اشکال**: تختانون دَ باب افتعال نه دې کوم چې لازم وي حالانکه دلته دَ انفسکم طرف ته متعدي دې.

**جواب**: مفسرعلام تختانون تفسيرپه تخونون سره کولوسره هم دَدې اشکال جواب ورکړې دې دَ جواب ماحصل دادې چې افتعال دمجرد په معنی کښې دې او باب افتعال دکثرت خيانت دَ ښکاره کولودَپاره اختيارکړې شوې دې

**قوله**: وَكُلُوا وَاشْرَبُوا دَدې عطف په بَاشِرُوهُنَّ باندې دې.

**قوله**: الغَبَش دَ شين اوباء فتحه سره په معنی دَ غلس بقية الليل يا دَ آخري شپې تياره.

**قوله**: الى دخوله بغروب الشمس دې کښې اشاره ده چې غايت په مغيا کښې داخل نه دې.

**قوله**: شُبِّهَ مَا يَبْدُوْا مِنَ البيَاض وَمَا يمتدُّ مَعَهُ دَدې عبارت داضافه کول مقصد دَ يو اشکال جواب دې.

**اشکال**: دادې چې صبح صادق ته په خيط الابيض سره تشبيه ورکړې شوې ده حالانکه دا تشبيه صبح کاذب سره زياته مشابه ده ځکه چې هغه دَ مزی په شکل کښې عموداً ممتد کيږي نه چې صبح صادق. صبح صادق خو عرضاً خور شوې وي په مذکوره عبارت سره دَدې اعتراض جواب ورکړې شوې دې.

**جواب**: خلاصه داده چې صبح صادق کله په شروع کښې ښکاره شي نودَ هغې پورتنئ غاړه دَ خيط ابيض په شان کيږي معلومه شوه چې تشبيه په شروع کښې ښکاره کيدونکې غاړې سره ده نه چې مينځ يا آخر سره. فافهم.

**قوله**: فلاتقربوهاَ ابلَغُ مِن لا تَعْتَدُوهَا، هُوَ ابْلَغُ الخ سره دَ دوو اشکالو جواب ورکول مقصوددي:

① **رومبې اشكال**: كومو احكاموته چې دَ نيزدې نه تللو حكم وركولې شى په هغې كښې بعضې واجب دى اوبعضې مباح او بعضې حرام نودَدې تولودَپاره دا ونيل چې دې ته نيزدې هم مه ځئى څنګه صحيح کيدې شى؟

② **دويم اشكال**: په دويم آيت كښې واردشوى دى ﴿ تِلْكَ حُدُوْدُاللهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ﴾ مطلب دادې چې دا دَالله تعالى حدود اواحكام دى دَدې نه مه وړاندې كيږئى (تجاوز مه كوئى) دَدې دواړو آياتونو په مفهوم كښې تضاد دې لهذا دَ جمع اوتوفيق به څه صورت وى؟

① **د رومبى اشكال جواب**: دَ الله تعالى احكام ته ئى په دې حدودو سره تشبيه وركړې ده چې دَ حق اوباطل په مينځ كښې حاجزدى. څوك چې په دې احكاموعمل كونكې وى هغه به دَ حق اداكونكې وى اوڅوك چې دَدې مخالفت كوى هغه به په باطل كښې واقع وى. لهذا دې ته د نيزدې تللونه ئى منع اوفرمائيله دې دَپاره چې باطل له نيزدې لاړنه شى لكه چې قربان حدود نه نهى، دَقرب باطل نه نهى ده.

② **ددويم اشكال جواب**: فَلَاتَقْرَبُوْهَا او لَاتَعْتَدُوْهَا دَ دواړو مقصد باطل ته دَ نيزدې كيدونه منع كول دى. په لَاتَعْتَدُوْهَا كښې په صراحت سره منع كړې شوې ده او فَلَاتَقْرَبُوْهَا كښې دَ كنايه په توګه منع كړې شوې ده. او قاعده مشهوره ده چې الكناية ابلغ من التصريح.

**قوله**: اى لاياكل بعضكم مال بعض دَدې عبارت دَاضافه مقصديوه شبه لرې كول دى.

**شبه**: وَلَا تَأْكُلُوْا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ نه معلوميږى چې څوك دې خپل مال په باطل طريقه سره نه خورى حالانكه دَدې څه مفهوم نشته.

**جواب**: دا تقسيم دَ جمع على الجمع دَ قبيل نه نه دې لكه چې اِرْكَبُوْا دَ وابكم يعنى په تاسو كښې دې هريوپه خپل اس باندې سور شى بلكه داد لَاتَلْمِزُوْا اَنْفُسَكُمْ دَ قبيل نه دې. يعنى په خپل مينځ كښې په يوبل عيب مه لګوئى لكه چې دَ بينكم دَ لفظ نه هم دَدې معنى تائيد كيږى.

**قوله**: وَلَاتُدْلُوْابِهَا، لا مقدر منلوسره اشاره اوكړه چې دَدې عطف لاتاكلوا باندې دې. لهذا لكه څنګه چې لاتاكلوا مجزوم بالجازم دې ذغه شان تُدلوابها هم مجزوم بالجازم دې. فرق دادې چې دلته جازم مقدر دې اوهلته ظاهر دى تدلوا، إدلاءٌ نه ماخوذ دې. ادلا معنى : رسئى په ذريعه په كوهى كښې ډولچې زوړندول، اوس دَ وسيلې او ذريعې دَ معنى دَپاره مستعار اخستې شوې دې يعنى حكام له مالى خصومات اوړل په جائز طريقه سره دَ نورو دَمال خوړلو ذريعه مه جوړوئى اَوبالاموال رشوة دادَدې خبرې طرف ته اشاره ده چې دَ مال نه مالى رشوت مراد دې.

[ایاتونه: ۱۸۸ - ۱۹٤]

{يَسْأَلُونَكَ} يَا مُحَمَّد {عَنِ الْأَهِلَّةِ} جَمْع هِلَال لِمَ تَبْدُو دَقِيقَة ثُمَّ تَزِيد حَتَّى تَمْتَلِئ نُورًا ثُمَّ تَعُود كَمَا بَدَتْ وَلَا تَكُون عَلَى حَالَة وَاحِدَة كَالشَّمْسِ {قُلْ} لَهُمْ {هِيَ مَوَاقِيتُ} جَمْع مِيقَات {لِلنَّاسِ} يَعْلَمُونَ بِهَا أَوْقَات زَرْعهمْ وَمَتَاجِرهمْ وَعِدَد نِسَائِهِمْ وَصِيَامهمْ وَإِفْطَارهمْ {وَالْحَجِّ} عُطِفَ عَلَى النَّاس أَيْ يُعْلَم بِهَا وَقْته فَلَوْ اسْتَمَرَّتْ عَلَى حَالَة لَمْ يُعْرَف ذَلِكَ {وليس البر أن تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا} فِي الْإِحْرَام بِأَنْ تَنْقُبُوا فِيهَا نَقْبًا تَدْخُلُونَ مِنْهُ وَتَخْرُجُونَ وَتَتْرُكُوا الْبَاب وَكَانُوا يَفْعَلُونَ ذَلِكَ وَيَزْعُمُونَهُ بِرًّا {وَلَكِنَّ الْبِرَّ} أَيْ ذَا الْبِرّ {مَنِ اتَّقَى} اللَّه بِتَرْكِ مُخَالَفَته {وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا} فِي الْإِحْرَام {وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تَفُوزُونَ ولما صد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْبَيْت عَام الْحُدَيْبِيَة وَصَالَحَ الْكُفَّار عَلَى أَنْ يَعُود الْعَام الْقَابِل ويخلو لَهُ مَكَّة ثَلَاثَة أَيَّام وَتَجَهَّزَ لِعُمْرَةِ الْقَضَاء وَخَافُوا أَنْ لَا تَفِي قُرَيْش وَيُقَاتِلُوهُمْ وَكَرِهَ الْمُسْلِمُونَ قِتَالهمْ فِي الْحَرَم وَالْإِحْرَام وَالشَّهْر الْحَرَام نَزَلَ {وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ} أَيْ لِإِعْلَاءِ دِينه {الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ} الْكُفَّار {وَلَا تَعْتَدُوا} عَلَيْهِمْ بِالِابْتِدَاءِ بِالْقِتَالِ {إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ} الْمُتَجَاوِزِينَ مَا حَدّ لَهُمْ وَهَذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ بَرَاءَة أَوْ بِقَوْلِهِ {وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ} وَجَدْتُمُوهُمْ {وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ} أَيْ مِنْ مَكَّة وَقَدْ فُعِلَ بِهِمْ ذَلِكَ عَام الْفَتْح {وَالْفِتْنَةُ} الشِّرْك مِنْهُمْ {أَشَدُّ} أَعْظَم {مِنَ الْقَتْلِ} لَهُمْ فِي الْحَرَم أَوْ الْإِحْرَام الَّذِي اسْتَعْظَمْتُمُوهُ {وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} أَيْ فِي الْحَرَم {حَتَّى يُقَاتِلُوكُمْ} فِيهِ {فَاقْتُلُوهُمْ} فِيهِ وَفِي قِرَاءَة بِلَا أَلِف فِي الْأَفْعَال الثَّلَاثَة {كَذَلِكَ} الْقَتْل وَالْإِخْرَاج {جزاء الكافرين} {فَإِنِ انْتَهَوْا} عَنْ الْكُفْر وَأَسْلَمُوا {فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لَهُمْ {رَحِيمٌ} بِهِمْ {وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ} تُوجَد {فِتْنَةٌ} شِرْك {وَيَكُونَ الدِّينُ} الْعِبَادَة {لِلَّهِ} وَحْده لَا يُعْبَد سِوَاهُ {فَإِنِ انْتَهَوْا} عَنْ الشِّرْك فَلَا تَعْتَدُوا عَلَيْهِمْ دَلَّ عَلَى هَذَا {فَلَا عُدْوَانَ} اعْتِدَاء بِقَتْلٍ أَوْ غَيْره {إِلَّا عَلَى الظَّالِمِينَ} وَمَنْ انْتَهَى فَلَيْسَ بِظَالِمٍ فَلَا عُدْوَان عَلَيْهِ {الشَّهْرُ الْحَرَامُ} الْمُحَرَّم مُقَابَل {بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ} فَكُلَّمَا قاتلوكم فيه فقاتلوهم فِي مِثْله رَدّ لِاسْتِعْظَامِ الْمُسْلِمِينَ ذَلِكَ {وَالْحُرُمَاتُ} جَمْع حُرْمَة مَا يَجِب احْتِرَامه {قِصَاصٌ} أَيْ يُقْتَصّ بِمِثْلِهَا إذَا انْتُهِكَتْ {فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ} بِالْقِتَالِ فِي الْحَرَم أَوْ الْإِحْرَام أَوْ الشَّهْر الْحَرَام {فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ} سَمَّى مُقَابَلَته اعْتِدَاء لِشَبَهِهَا بِالْمُقَابَلِ بِهِ فِي الصُّورَة {وَاتَّقُوا اللَّهَ} فِي الِانْتِصَار وَتَرْك الِاعْتِدَاء {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ} بِالْعَوْنِ وَالنَّصْر

**ترجمه:** اې محمد ﷺ تانه دَ سپوږمئ دَ حالتونو باره کښې سوال کوي چې دا نرئ ولې ښکاره کيږي؟ (يعنې چې کله ښکاره کيږي نو نرئ وي) بيا غټيږي تردې چې پرق روښانه شي. بيا (دَ خپل مخکينۍ حالت طرف ته) راګرځي (يعنې کميدل شروع کوي) او هم هغه شان کيږي لکه چې دَ شروع راښکاره کيدو په وخت وه اودَ نمر په شان په يو حالت باندې نه پاتې کيږي. ته هغوی ته اووايه چې دا دَخلقو دَ وختونو دَ معلومولو دَپاره ذريعه ده مواقيت دَ

ميقات جمع ده يعنى خلق دَدې په ذريعه دَ فصل او تجارت وختونه معلوموى اودَ خپلو ښځو عدت او خپلې روژې (دَرمضان) او افطار (دَ شوال) وختونه معلوموى اودَ حج دَپاره (دَ پيژندګلو دَ وخت آله ده). دَدې عطف په الناس باندې دې يعنى دَ سپوږمئى په ذريعه دَ حج وخت معلوموى. كه چرې (سپوږمئى) په يوحالت پاتې كيده نوداخبرې نه شوې معلومېدې. او دَ احرام په حالت كښې دَ كورونو شانه راتلل څه نيكى نه ده چې تاسو دَ كورونو په (ديوالونو) كښې كنډر اوكړئى او تاسو په دغه كنډر كښې داخلېږئى او راوځئى او دَ دروازو نه (راوتل) پرېږدئى (مشركين عرب) به داسې كول او دا به ئى نيكى ګڼرله بلكه نيكى يعنى نيك هغه دې چې دَ الله تعالى مخالفت ترك كړى دَ الله تعالى نه اوويرېږى. په حالت دَ احرام كښې هم بغيردَ احرام په شان دَ كورو په دروازو كښې راتلل كوئى اودَ الله تعالى نه ويرېږئى دې دَپاره چې تاسو كامياب شئى اوكله چې رسول الله ﷺ دَ حديبيه په كال دَ بيت الله نه منع كړې شو او كافرانو په دې خبره باندې صلح اوكړه (چې حضورپاك ﷺ) به راتلونكى كال كښې راځى اوهغه (مشركان) به دَ درېو ورځودَپاره مكه خالى كوى او حضورپاك دَ عمرة القضاء دَپاره تيارى شروع كړه او مسلمانانوته دَدې خبرې ويره وه چې (چرته داسې نه وى قريش دَ خپلې وعدې) پابندى اونه كړى اومسلمانانوسره جنګ اوكړى او مسلمانان هغوى سره په حرم كښې او (حالت) دَ احرام كښې او په مياشت دَ حرام كښې جنګ كول ناخوښه كړى. او جنګ كوئى دَالله تعالى په لاركښې هغه كافرانو سره څوك چې تاسو سره قتال كوى دَهغوى دَ دين دَ اوچتوالى دَپاره او دَ جنګ شروع كولوسره په هغوى باندې ظلم مه كوئى بيشكه الله تعالى دَ مقررحدنه تجاوزكونكى نه خوښوى اودا حكم دَ سورت براءت آيت يا دَ الله تعالى دَ قول ﴿ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ﴾ سره منسوخ دې يعنى چرته چې تاسو هغوى اووينئى هم هلته ئى قتل كړئى اوهغوى اوباسئى دَ كوم ځائى نه چې هغوى تاسو ويستلې وئى يعنى دَ مكې نه. اودَ مكې دَ فتح په وخت هغوى سره هم دغه شان اوكړې شو. او فتنه يعنى شرك دَهغوى دَ قتل نه زيات سخت دې هغوى په حرم كښې دَ احرام په حالت كښې دَ قتل كولونه كوم چې تاسو عظيم ګڼرئى او مسجدحرام كښې يعنى په حرم كښې هغوى سره جنګ مه كوئى ترهغه وخته پورې چې هغوى تاسو سره پخپله هلته جنګ اونه كړى نوكه چرې هغوى په حرم كښې تاسوسره جنګ اوكړى نوتاسو هم په حرم كښې هغوى سره جنګ اوكړئى او په يوقراءت كښې درېواړه افعال بغيردَ الف دى. هم دغه قتل او دَ وطن نه ويستل دَ داسې كافرانو سزا ده نوكه هغوى دَ كفرنه منع شى اواسلام قبول كړى نوالله تعالى هغوى لره معاف كونكې دې تاسو هغوى سره جنګيږئى ترهغې چې فتنه دَ شرك باقى پاتې نه شى اوعبادت هم دَ يو الله تعالى كيږى اودَهغه نه سوا دَ بل چا بندګى نه وى نوكه هغوى دَ شرك نه منع شى نوپه هغوى باندې تاسو زياتې مه كوئى په

دې باندې حذف دَ جزاء فَلَاعُدْوَانَ دلالت کوی نودَقتل وغیره په ذریعه زیاتې دَ ظالمانو نه په علاوه باندې جائزنه دې اوڅوك چې منع شو هغه ظالم نه دې. لهذا په هغه باندې زیاتې کول هم نه دی پکار. ماه محترم عوض دې دَ ماه محترم لهذا څنګه چې هغوی تاسو سره په دې کښې جنګ اوکړو نوتاسو هم په دغه شان میاشت کښې هغوی سره جنګ کوئی اودا دَ مسلمانانو دا میاشت دَعظمت والا ګڼړلوباندې رد دې او په احترام کښې برابری ده.
حُرمَاتُ دَ حرمَة جمع ده معنی دَ کوم چې احترام واجب وی اودَ احترام لحاظ به برابرئی سره وی یعنی که بې حرمتی اوکړی نودَهغې په شان به بدله اخستې شی لهذا په حرم کښې یا په احرام کښې یا په میاشت محترم کښې دَ جنګ په ذریعه کوم سړې چې په تاسو باندې ظلم اوکړی نو تاسو هم په هغه باندې هم هغه هومره ظلم کولې شئی څومره چې هغه په تاسو باندې کړې دې. دَ ظلم بدل ته ظلم دَ مقابله په توګه وئیلې شوی دې. صورةً دَدغه زیاتی دَ خپل مقابل په شان کیدودَ وجې نه اودَ الله تعالی نه ویرېږئی په بدله اخستلوکښې او دَ زیاتی په پرېخودلوکښې او ښه پوهه شئی چې الله تعالی دَ امداد اونصرت په ذریعه پرهیزګارانو سره دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: جَمْعُ هِلَالٍ، اَهِلَّة، دَ هِلَالٌ جمع ده هلال دَدریمې شپې پورې سپوږمئی ته وائی. هلال ته هلال ځکه وائی چې دَ هلال معنی آواز اوچتول او شور کولو ده. نوې میاشت لیدو سره خلق شور کوی لکه څنګه چې زمونږ طرف ته د وړوکی اخترمیاشت لیدلوسره لوئی واړه شور کوی په دې وجه هغې ته هلال وائی.

**سوال**: هلال خو هم یووی نوبیاداَدَدې جمع ولې راوړلې شوې ده؟ .

**جواب**: یا خو دَدې دَپاره چې دَ روزانه سپوږمئی دَ خپل ماقبل دَ ورځې دَ سپوږمئی نه مختلف وی نولکه چې هغه دَ سابقه سپوږمئی نه غیرده په دې وجه مختلف سپوږمئی شوې په کوم چې دَ جمع اطلاق کول صحیح دی یا دَ هرې میاشتې سپوږمئی جدا وی په دې اعتبارسره هم متعدد سپوږمئی شوې لهذا دَ جمع اطلاق صحیح دې.

**سوال**: يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الاَهِلَّةِ کښې دَ سپوږئی دَ غټیدو کمیدو دَ علت باره کښې سوال کولې شی خو په جواب کښې دَدې حکمت او فائده بیان کړې شوې ده؟

**جواب**: په جواب کښې دَ سپوږمئی دَ غټیدو اوکمیدو علت بیانولوسره دې خبرې طرف ته اشاره کول مقصود دی چې سوال کونکی ته دَ سپوږمئی دَ غټیدو اوکمیدو حقیقت یا علت معلومولوپه ځائی دَهغې دَ حکمتونو او فائدو باره کښې سوال کول پکاروو کوم چې دَهغه دَکار او فائدې خبره ده. «کمافی المختصر المعانی»

**قوله** لِمَ تبدوا دقیقةً دا دَ دویم جواب طرف ته اشاره ده دَدې جواب حاصل دادې چې سوال هم دَ سپوږمئی دَ غټیدو او کمیدو باره کښې وو په سوال کښې مضاف محذوف دې تقدیری عبارت داسې دې يَسْئَلُوْنَكَ عن حکمة الاهلةِ په دې صورت کښې به جواب دَ سوال مطابق وی فلا اعتراض. دَدې جواب تائید دَدې روایت نه هم کیږی کوم چې ابن جریر رحمه الله دَ ابو العالیه نه روایت کړې دې قَالُوْا يَا رَسُوْلَ الله، لِمَ خُلِقَتِ الاَهِلَّةُ، فنزلت يَسْئلونَكَ عن الاَهِلَّةِ دا روایت دَ سپوږمئی دَ غټیدو او کمیدو دَ حکمت دَ سوال کولو باره کښې صریح دې.

**قوله**: جمعُ میقات، مَوَاقِيت د میقات اسم آله جمع ده دَ وخت دَ پيژند ګلو آله.

**قوله**: مَتَاجِرِهِمْ دا دَ مَتْجَر جمع ده مصدر دې نه چې ظرف مکان.

**قوله**: عِدَدَ نِسَائِهِمْ عِدَد، دَ عِدَّة جمع ده.

**قوله**: عَطْفٌ على النَّاس، د مفسر علام دَدې اضافه نه مقصد دَ بعض خلقو دا شك لرې کول دی چې دَ والحج عطف مَوَاقِيْتُ باندې دې حالانکه دا صحیح نه دی ځکه چې مَوَاقِيتُ حمل اَهِلَّة ضمیر هِيَ باندې دې ای الاَهِلَّةُ هِيَ المواقیتُ که چرې دَ الحج عطف په مواقیت باندې اوکړې شی نو دَدې حمل به هم دَ هِيَ په ضمیر باندې وی او تقدیری عبارت به داسې شی الاَهِلَّةُ هِيَ الحج، حالانکه دا معنی صحیح نه ده.

**قوله**: د فی الاحرام **سوال**: فی الاحرام دَ اضافه څه فائده ده؟

**جواب**: په اصل کښې دَ فی الاحرام دَ اضافه مقصد دَ یو سوال جواب دې.

**سوال**: په لَيْسَ البِرُّ بِأَن تأتوا البُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا کښې او په ماسبق لِلنَّاس کښې په ظاهره هیڅ جوړ او ربط نشته. دَ جواب حاصل دادې چې جوړ او ربط شته اوهغه دا چې مواقیت دَ حج اوقات دی او دَ احرام په حالت کښې دَ کور دَ شانه داخلیدل دَ هغوی په نیز دَ افعال حج نه دی لهذا ربط او تعلق ظاهر دې.

**قوله**: ای ذَالبِرُّ دَدې باره کښې سوال او جواب وړاندې تیر شوې دې او ګورئی.

**قوله**: بِآيةِ البراءة وَهِيَ فَإِذَا انسَلَخَ الاَشْهُرُ الحُرُمُ (الاية)

**قوله**: ای فی الحرم، د عِنْدَ المَسْجِدِ الحَرَامِ تفسیر په فی الحرام سره کولو کښې اشاره اوکړه چې جزء وئیلو سره کل یعنی مسجد حرام وئیلو سره پوره حرم مراد دې ځکه چې جنګ کول صرف په مسجد حرام کښې ممنوع نه دې بلکه په پوره حرم کښې منع دې.

**قوله**: بلاالف فی الافعال الثلث هغه درې افعال دادی لاتَقْتُلُوهم، يَقْتُلوكم، فإن قتلوكم.

**قوله**: توجَدُ، دَ تکون تفسیر توجَدُ سره کولو کښې اشاره اوکړه چې کان تامه دې.

**قوله:** سُمِّيَ مقابلته الخ سره دَ يوشبه جواب دی.

**شبه:** داده چې که دَ ظالم نه دَ ظلم بدله واخستې شى نو هغې ته ظلم نه شى وئيلې هغه خو دَ هغه حق دې حالانکه دلته بدله اخستل اعتداء سره تعبير کړې شوې ده.

**جواب:** صورةً يو شان کيدو دَوجې نه جزاء الاعتداء په اعتداء سره تعبير کړې شوې ده او جزاء السيئة سيئة دَ قبيل نه ده.

**[اياتونه: ۱۹۵-۱۹۶]**

{وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّه} طَاعَته بِالْجِهَادِ وَغَيْره {وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ} أَيْ أَنْفُسكُمْ وَالْبَاء زَائِدَة {إِلَى التَّهْلُكَة} الْهَلَاك بِالْإِمْسَاكِ عَنْ النَّفَقَة فِي الْجِهَاد أَوْ تَرْكه لِأَنَّهُ يُقَوِّي الْعَدُوّ عَلَيْكُمْ {وَأَحْسِنُوا} بِالنَّفَقَةِ وَغَيْرهَا {إِنَّ اللَّه يُحِبّ الْمُحْسِنِينَ} اي يثيبهم {وَأَتِمُّوا الْحَجّ وَالْعُمْرَة لِلَّهِ} أَدُّوهُمَا بِحُقُوقِهِمَا {فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ} مُنِعْتُمْ عَنْ إتْمَامهَا بِعَدُوٍّ {فَمَا اسْتَيْسَرَ} تَيَسَّرَ {مِنْ الْهَدْي} عَلَيْكُمْ وَهُوَ شَاة {وَلَا تحلقوا رؤوسكم} أَيْ لَا تَتَحَلَّلُوا {حَتَّى يَبْلُغ الْهَدْي} الْمَذْكُور {مَحِلّه} حَيْثُ يَحِلّ ذَبْحه وَهُوَ مَكَان الْإِحْصَار عِنْد الشَّافِعِيّ فَيُذْبَح فِيهِ بِنِيَّةِ التَّحَلُّل وَيُفَرَّق علي مساكينه ويحلق به يَحْصُل التَّحَلُّل {فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسه} كَقَمْلٍ وَصُدَاع فَحَلَقَ فِي الْإِحْرَام {فَفِدْيَة} عَلَيْهِ {مِنْ صِيَام} ثَلَاثَة أَيَّام {أَوْ صَدَقَة} بِثَلَاثَةِ أَصْوُع مِنْ غَالِب قُوت الْبَلَد عَلَى سِتَّة مَسَاكِين {أَوْ نُسُك} اي ذبح شاة او لِلتَّخْيِيرِ وَأُلْحِقَ بِهِ مَنْ حَلَقَ لِغَيْرِ عُذْر لِأَنَّهُ أَوْلَى بِالْكَفَّارَةِ وَكَذَا مَنْ اسْتَمْتَعَ بِغَيْرِ الْحَلْق كَالطِّيبِ وَاللُّبْس وَالدُّهْن لِعُذْرٍ أَوْ غَيْره {فَإِذَا أَمِنْتُمْ} الْعَدُوّ بِأَنْ ذَهَبَ أَوْ لَمْ يَكُنْ {فَمَنْ تَمَتَّعَ} اسْتَمْتَعَ {بِالْعُمْرَةِ} أَيْ بِسَبَبِ فَرَاغه مِنْهَا بِمَحْظُورَاتِ الْإِحْرَام {إِلَى الْحَجّ} أَيْ إِلَى الْإِحْرَام بِهِ بِأَنْ يَكُون أَحْرَمَ بِهَا فِي أَشْهُره {فَمَا اسْتَيْسَرَ} تَيَسَّرَ {مِنْ الْهَدْي} عَلَيْهِ وَهُوَ شَاة يَذْبَحهَا بَعْد الْإِحْرَام بِهِ وَالْأَفْضَل يَوْم النَّحْر {فَمَنْ لَمْ يَجِد} الْهَدْي لِفَقْدِهِ أَوْ فَقْد ثَمَنه {فَصِيَام} أَيْ فَعَلَيْهِ صِيَام {ثَلَاثَة أَيَّام فِي الْحَجّ} أَيْ فِي حَال الْإِحْرَام بِهِ فَيَجِب حِينَئِذٍ أَنْ يُحْرِم قَبْل السَّابِع مِنْ ذِي الْحِجَّة وَالْأَفْضَل قَبْل السَّادِس لِكَرَاهَةِ صَوْم يَوْم عَرَفَة وَلَا يَجُوز صَوْمهَا أَيَّام التَّشْرِيق عَلَى أَصَحّ قَوْلَيْ الشَّافِعِيّ {وَسَبْعَة إِذَا رَجَعْتُمْ} إِلَى وَطَنكُمْ مَكَّة أَوْ غَيْرهَا وَقِيلَ إِذَا فَرَغْتُمْ مِنْ أَعْمَال الْحَجّ وَفِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة {تِلْكَ عَشَرَة كَامِلَة} جُمْلَة تَأْكِيد لِمَا قَبْلهَا {ذَلِكَ} الْحُكْم الْمَذْكُور مِنْ وُجُوب الْهَدْي أَوْ الصِّيَام عَلَى مَنْ تَمَتَّعَ {لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْله حَاضِرِي الْمَسْجِد الْحَرَام} بِأَنْ لَمْ يَكُونُوا عَلَى دُون مَرْحَلَتَيْنِ من الحرم عِنْد الشَّافِعِيّ فَإِنْ كَانَ فَلَا دَم عَلَيْهِ وَلَا صِيَام وَإِنْ تَمَتَّعَ فَعَلَيْهِ ذَلِكَ وَهُوَ أَحَد وَجْهَيْنِ عِنْد الشَّافِعِيّ وَالثَّانِي لَا وَالْأَهْل كناية عن النفس والحق بالتمتع فِيمَا ذُكِرَ بِالسُّنَّةِ الْقَارِن وَهُوَ مَنْ أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ وَالْحَجّ مَعًا أَوْ يُدْخِل الْحَجّ عَلَيْهَا قَبْل الطَّوَاف {وَاتَّقُوا اللَّه} فِيمَا يَأْمُركُمْ بِهِ وَيَنْهَاكُمْ عَنْهُ {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّه شَدِيد الْعِقَاب} لِمَنْ خَالَفَهُ

ترجمه: او دَالله تعالی په لارکښې خرچ کوئی (یعنی) دَهغه په اطاعت کښې چې هغه جهاد وغیره دی اوتاسو په جهاد کښې دَخرچ کولونه بخل کولوسره او جهاد پریخودلوسره خپل ځان په هلاکت کښې مه اچوئی. ځکه چې دا (بخل او ترك) به دښمن په تاسو باندې بهادر کړی. (بِأَيْدِى) کښې باءِ زائده ده (دَ الله تعالی په لار کښې) دَ خرچ وغیره په ذریعه نیکی کوئی الله تعالی نیکئ کونکی خوښوی. یعنی هغوی ته اجر ورکوی اوحج او عمره دَالله تعالی دَپاره پوره کوئی یعنی دواړه دَهغې دَ حقوقو خیال ساتلوسره اداکوئی. پس که چرته دَحج اوعمرې نه (یعنی) دَدې دَ پوره کولونه د دښمن یا هم دَدې په شان بل څه څیزپه ذریعه تاسو منع کړې شئی نو چې کوم هدی (دَ قربانئی ځاروې) تاسو ته ملاوَشی اوهغه چیلئ ده اوخپل سرونه مه خروئی یعنی ځانونه مه حلال وی ترهغه وخته پورې چې هدی مذکوره خپل مقام ته اونه رسی چرته چې دَهغې ذبح کول جائز دی. هغه دَامام شافعی رحمه الله په نیزدَ احصار ځائی دې لهذا دَ حلالیدو په نیت سره دې هغه ځائی (هدی) ذبح کړې شی او دَدغه مقام په مسکینانوباندې دې (غوښه) تقسیم کړې شی اوسر دې اوخروی. دې سره به حلت حاصل شی. مګر کوم سړې چې په تاسو کښې مریض وی یادَهغه په سرکښې څه تکلیف وی مثلاً سپږې یا دَ سر درد نوهغه په حالت احرام کښې حلق کولې شی نو په هغه باندې فدیه واجب ده اوهغه درې ورځې روژې یا درې صاع مقامی عمومی خوراك په شپږو مسکینانو باندې صدقه کول دی یا قربانی کول دی یعنی چیلئ ذبح کول دی او دَ تخییر دَپاره دې او هم په دې حکم کښې به هغه سړې هم شامل وی چې بغیردَ څه عذر نه ئی حلق کړې وی ځکه چې دکافران دې د وجوب دَپاره دې زیات لائق دې هم دغه حکم دَهغه سړی هم دې چې دَ حلق نه علاوه نی څه استفاده کړې وی مثلاً خوشبوئی لګولې وی یا تیل ئی لګولې وی که دَ عذر دَ وجې نه وی اوکه بغیردَ عذر نه. بیاچې کله تاسو دَ دښمن نه په امن کښې شئی په داسې توګه چې دښمن لاړو یا هلاو وو نه نوکوم سړی چې دَتاسو نه عمره حج سره یوځائی کولوسره دَ ممنوعات احرام نه دَ حج په میاشت کښې دَ عمره احرام اوتړلو فائده ئی اوچته کړه دَ عمرې نه فارغ شو اودَدې سره دَحلال کیدو دَ وجې نو په ده باندې چې څه ورته ملاؤ شی قربانی واجب ده اوهغه یوه چیلئ ده چې دَ حج احرام تړلونه پس دې ذبح کړی او غوره ورځ یوم نحر یعنی دَ قربانئی ورځ ده. چاته چې هدی ملاؤنه شی دَ هدی نه موجود کیدودَ وجې یا دَهغې دَ قیمت نشتوالی دَ وجې نو په هغه باندې درې روژې دی دَ حج په ورځوکښې یعنی دحج دَ احرام په حالت کښې نو ضروری دی چې دَ اوومې ذی الحجه نه وړاندې (دحج) احرام دې اوتړی او غوره دَ شپږم ذی الحجه نه وړاندې دې. په یوم نحرکښې دَ حاجی دَپاره روژه ساتل مکروه دی او په ایام تشریق کښې دَ امام شافعی رحمه الله دَ زیات صحیح قول مطابق روژه جائزنه ده او اووه روژې هغه وخت کله چې خپل وطن ته واپس شی وطن که مکه

وي اوکه غیرمکه، او وئیلی شوی دی چې کله تاسو دَ ارکان حج نه فارغ شئی په دې کښې دَ غائب نه دَحاضرطرف ته التفات دې دا لس روځې پوره دی دا جمله دَ خپل ماقبل تاکید دې. دَ قربانئي یا روژو مذکوره حکم دَهغه سړی دپاره دې چې حج تمتع اوکړی یا دا رعایت دَهغه خلقو دَپاره دې چې دَهغوی کور وغیره جمات سره نیزدې نه وی دو مره چې دَحرم نه دَ دوو مرحلونه کم نه وی دا دَ امام شافعی رحمه الله په نیز دی اوکه چرته دَ دوو مرحلونه کم وی نو په هغه نه دم شته نه روژه سره دَدې چې حج تمتع اوکړی. او اهل ذکر کولوکښې دَ وطن جوړولو شرط طرف ته اشاره ده او دَتمتع نیت ئې کړې وی نو په هغه باندې مذکوره څیزونه (یعنی) قربانی واجب ده اودا زمونږ (یعنی شوافع) په نیزدی اود تمتع سره په مذکوره احکامو کښې دَ حدیث دَ وجې نه قارن هم ملاؤکړې شوې دې او قارن هغه دې چې دَ حج او عمرې احرام په یوځائی اوتړی یا حج په عمره باندې داخل کړی طواف عمره کولونه وړاندې (یعنی دَعمرې طواف شروع کولونه وړاندې دَ حج احرام اوتړی) او په دې څیزونو کښې دَالله تعالی نه ویرېږئی دَ کوم چې تاسو ته حکم درکولې شی او دکوم نه چې منع کولې شئی او پوهه شئی چې الله تعالی دَهغه خلاف کونکوته سخته سزا ورکونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله.** وَلَاتُلْقُوْا بِأَيْدِيْكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ، لَاتُلْقُوْا، إِلْقَاءٌ (افعال) نه صیغه نهی جمع مذکرحاضر، تاسومه اچوئی.

**سوال:** القاءمتعدی بنفسه دې حالانکه دلته الی سره متعدی کړې شوې دې؟

**جواب:** اِلْقَاءدَ انتهاءمعنی ته متضمن دې لهذا تعدیه بالی جائزده.

**قوله.** تَهْلُكَةٌ، (ض) دا خلاف قیاس دَ نادر مصادرو نه دې هلاکت کښې اچول. په قاموس کښې لام مثلث سره لیکلې دې التَّهْلُكَةُ چونکه دَ مصادر نادره نه دې دَدې دپاره اَلْهَلَاكَ مصدر مشهوردې دَدې وضاحت ئې اوکړو.

**قوله** : بِالنَّفَقَةِ،دا دَ یوسوال مقدرجواب دې، سوال دادې چې أَحْسِنُوْا دَ تفضلوا په معنی کښې دې کوم چې متعدی بالباء وی.

**قوله** : بالنفقة، ماسبق سره مربوط کولودپاره راوړلې شوې دې ځکه ئې دَ تَهْلُكَةُ تفسیر اِمْسَاك عن النفقة سره کړې دې نودلته دَ احسان تفسیر په انفاق فی سبیل الله سره کول مناسب دی دې دَپاره چې په دواړو کښې ربط پیداشی.

**قوله** : ای يُثِيْبُهُمْ، دَ يُحِبُّ تفسیر يثيبُ سره تفسیر باللازم دې ځکه چې دَ حبُ معنی میلان القلب دې چې دَ الله تعالی په حق کښې متصورنه دې. دا هم داسې دې لکه دَ رحمت تفسیر

احسان سره کوی کنی دَ رحمت معنی دَ رقةالقلب ده چې ذات باری تعالی کښې متصور نه دې.

**قوله** اَدُّوْهُمَا، په دې سره دَ حج اوعمرې دواړو طرف ته اشاره ده ځکه چې دَ امام شافعي رحمه الله په نیزدواړه واجب دی اوکه چرې لفظ اتمُّوا په ظاهری معنی باندې اوساتلې شی نومطلب به داشی چې دَ شروع کولو نه پس دا پوره کول واجب دی ځکه چې دَ احنافوپه نیز نفلی عبادت شروع کولوسره واجب کیږی.

**قوله** بِعَدُوِّدا دَ امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله دَ قول مطابق دې ځکه چې چې دَدې حضراتو په نیز احصارصرف دَ دښمن په ذریعه سره صحیح دې په خلاف دَ احنافو چې ددوئ په نزد دَ دښمن نه علاوه دَمرض وغیره سره هم احصار صحیح دې.

**قوله** عَلَيْكُمْ دَدې اضافه کولو مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: دادې چې فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ جواب شرط دې حالانکه دا جمله تامه نه ده اودَ جواب شرط دَپاره جمله کیدل شرط دې.

**جواب**: عَلَيْكُمْ محذوف منلوسره اشاره اوکړه چې ما دَمبتداء خبرمحذوف دې دې دَپاره چې مبتداء خپل خبرسره ملاؤ شی جمله کیدوسره دَ شرط جزاء واقع شی. تقدیری عبارت دادې فَعَلَيْكُمْ مَا اسْتَيْسَرْتُمْ.

**قوله** فَفِدْيَةٌ. فِدْيه مبتداء ده اوعليه دَ دې خبر محذوف دې.

**قوله**: مِنْ صِيَامٍ دا محذوف سره متعلق کیدوسره دَ فديةٌ صفت دې ای فِدْيَةٌ كائنةٌ من صيام.

**قوله**: بِأَنْ ذَهَبَ أَوْلَمْ يكن. دَدې عبارت دَاضافه مقصد، دَ أَمِنْتُمْ دواړو معنوطرف ته اشاره کول دی. اَمِنْتُمْ یا خودَ اَمَنَةٌ نه مشتق دې دَدې معنی زائل کیدل د ویرې ده یا دَ اَمْنٌ نه مشتق دې دَ دې معنی اَمِنَ یعنی دَ ویرې ضد دې. که چرې اَمِنْتُمْ دَ الأَمَنَةَ نه مشتق اومنلې شی نومعنی به وی فَاِذَازالَ عَنْكم خوف العدو نو په دې صورت کښې به دَداسې سړی حکم دَ چا احصار چې زائل شوې وی دَ عبارت النص په توګه به ثابت شی اوهم ددې نه دَهغه سړی حکم چې دَ اول نه په امن کښې وی دَ دلالت النص په توګه به مفهوم وی اوکه چرې اَمِنْتُمْ دَ الأَمْنِ نه مشتق وی نودَدې معنی به وی چې کوم وخت تاسو په امن او تسلئ کښې وئی. (ترويح الارواح)

**قوله**: نُسُكٍ دا دَ نَسِيكٌ جمع ده په معنی د قربانی او نُسُكٍ مصدرهم دې قربانی کول.

**قوله**: فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ، فاء رابطه ده دَ جواب شرط دَپاره، مَا اسم موصول مبتدا دَدې خبر محذوف دی، ای فعليه مَا اسْتَيْسَرَ، اِسْتَيْسَرَ صله، جمله کیدو سره جواب شرط دې.

**قوله**: بان لم یکونوا علی مرحلتین من الحرم عند الشافعی رحمه الله دَدې عبارت مقصد په متمتع باندې قرباني واجب کیدل اودَعدم وجوب قربانئی دواړه صورتونه بیانول دي.

دَدې خلاصه داده که چرې متمتع آفاقی وی نو په ده باندې دم دَتمتع واجب دې او امام شافعی رحمه الله په نیز آفاقی هغه دې چې دَ حرم نه کم نه کم دوو مرحلو دَ فاصله اوسیدونکې وی اوڅوك چې دَدې نه دَ کمې فاصله اوسیدونکې وی هغه دَ دوی په نیز حضری دې نو په ده باندې دم تمتع واجب نه دې او چې کله دم واجب نه دې نودَده نائب یعنی روژه هم واجب نه ده.

**قوله**: فی ذکر الاهل الخ دَدې عبارت مقصد دَ ﴿لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ تشریح ده مطلب دادې چې دم تمتع ساقط کیدودَپاره شرعی مقیم کیدل ضروری دی که یوسړی قبل اشهر الحرم په مکه کښې قیام خو کړې دې مګر وطن ئی نه دې جوړکړې یعنی دَ پنځلس ورځو دَ قیام اراده ئی نه ده کړې نودَدې سړی نه به دم تمتع نه ساقطیږی ځکه چې دَ اقامت شرعی دَ نیت نه بغیر هغه به هم آفاقی شمیرلې شی او په آفاقی باندې دم تمتع واجب وی.

**[ایاتونه: ۱۹۷-۲۰۲]**

{الْحَجُّ} وَقْته {أَشْهُرٌ مَعْلُومَاتٌ} شَوَّال وَذُو الْقَعْدَة وَعَشْر لَيَالٍ مِنْ ذِي الْحِجَّة وَقِيلَ كُلّه {فَمَنْ فَرَضَ} عَلَى نَفْسه {فِيهِنَّ الْحَجَّ} بِالْإِحْرَامِ بِهِ {فَلَا رَفَثَ} جِمَاع فِيهِ {وَلَا فُسُوقَ} مَعَاصٍ {وَلَا جِدَالَ} خِصَام {فِي الْحَجِّ} وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ الْأَوَّلَيْنِ وَالْمُرَاد فِي الثَّلَاثَة النَّهْي {وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ} كَصَدَقَةٍ {يَعْلَمْهُ اللَّهُ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ وَنَزَلَ فِي أَهْل الْيَمَن وَكَانُوا يَحُجُّونَ بِلَا زَاد فَيَكُونُونَ كَلًّا عَلَى النَّاس {وَتَزَوَّدُوا} مَا يُبَلِّغكُمْ لِسَفَرِكُمْ {فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى} مَا يُتَّقَى بِهِ سُؤَال النَّاس وَغَيْره {وَاتَّقُونِ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ} ذَوِي الْعُقُول {لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ} فِي {أَنْ تَبْتَغُوا} تَطْلُبُوا {فَضْلًا} رِزْقًا {مِنْ رَبِّكُمْ} بِالتِّجَارَةِ فِي الْحَجّ نَزَلَ رَدًّا لِكَرَاهَتِهِمْ ذَلِكَ {فَإِذَا أَفَضْتُمْ} دَفَعْتُمْ {مِنْ عَرَفَاتٍ} بَعْد الْوُقُوف بِهَا {فَاذْكُرُوا اللَّهَ} بَعْد الْمَبِيت بِمُزْدَلِفَةَ بِالتَّلْبِيَةِ وَالتَّهْلِيل وَالدُّعَاء {عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ} هُوَ جَبَل فِي آخِر الْمُزْدَلِفَة يُقَال لَهُ قُزَح وَفِي الْحَدِيث أَنَّهُ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ بِهِ يَذْكُر اللَّه وَيَدْعُو حَتَّى أَسْفَرَ جِدًّا رَوَاهُ مُسْلِم {وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ} لِمَعَالِم دِينه وَمَنَاسِك حَجّه وَالْكَاف لِلتَّعْلِيلِ {وَإِنْ} مُخَفَّفَة {كُنْتُمْ مِنْ قَبْلِهِ} قَبْل هُدَاهُ {لَمِنَ الضَّالِّينَ} {ثُمَّ أَفِيضُوا} يَا قُرَيْش {مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ} أَيْ مِنْ عَرَفَة بِأَنْ تَقِفُوا بِهَا مَعَهُمْ وَكَانُوا يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ تَرَفُّعًا عَنْ الْوُقُوف مَعَهُمْ وَثُمَّ لِلتَّرْتِيبِ فِي الذِّكْر {وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ} مِنْ ذُنُوبكُمْ {إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لِلْمُؤْمِنِينَ {رَحِيمٌ} بِهِمْ {فَإِذَا قَضَيْتُمْ} أَدَّيْتُمْ {مَنَاسِكَكُمْ} عِبَادَات حَجّكُمْ بِأَنْ رَمَيْتُمْ جَمْرَة الْعَقَبَة وَطُفْتُمْ وَاسْتَقْرَرْتُمْ بِمِنًى {فَاذْكُرُوا اللَّهَ} بِالتَّكْبِيرِ وَالثَّنَاء {كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ} كَمَا كُنْتُمْ تَذْكُرُونَهُمْ عِنْد

فَرَاغِ حَجِّكُمْ بِالْمُفَاخَرَةِ ﴿أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا﴾ مِنْ ذِكْرِكُمْ إِيَّاهُمْ وَنُصِبَ أَشَدَّ عَلَى الْحَالِ مِنْ ذِكْرِ الْمَنْصُوبِ بِاذْكُرُوا إِذْ لَوْ تَأَخَّرَ عَنْهُ لَكَانَ صِفَةً لَهُ ﴿فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا﴾ نَصِيبًا ﴿فِي الدُّنْيَا﴾ فَيُؤْتَاهُ فِيهَا ﴿وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ﴾ نصيب ﴿وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾ نِعْمَةً ﴿وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً﴾ هِيَ الْجَنَّةُ ﴿وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ بِعَدَمِ دُخُولِهَا وَهَذَا بَيَانٌ لِمَا كَانَ عَلَيْهِ الْمُشْرِكُونَ وَلِحَالِ الْمُؤْمِنِينَ وَالْقَصْدُ بِهِ الْحَثُّ عَلَى طَلَبِ خَيْرِ الدَّارَيْنِ كَمَا وَعَدَ بِالثَّوَابِ عَلَيْهِ بِقَوْلِهِ ﴿أُولَئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ﴾ ثواب ﴿مِ﴾ ن اجل ﴿مِمَّا كَسَبُوا﴾ عملوا من الْحَجِّ وَالدُّعَاءِ ﴿وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ يُحَاسِبُ الْخَلْقَ كُلَّهُمْ فِي قَدْرِ نِصْفِ نَهَارٍ مِنْ أَيَّامِ الدُّنْيَا لِحَدِيثٍ بِذَلِكَ ﴿وَاذْكُرُوا اللَّهَ﴾ بِالتَّكْبِيرِ عِنْدَ رَمْيِ الْجَمَرَاتِ ﴿فِي أَيَّامٍ مَعْدُودَاتٍ﴾ أَيْ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ الثَّلَاثَةِ ﴿فَمَنْ تَعَجَّلَ﴾ أَيِ اسْتَعْجَلَ بِالنَّفْرِ مِنْ مِنًى ﴿فِي يَوْمَيْنِ﴾ أَيْ فِي ثَانِي أَيَّامِ التَّشْرِيقِ بَعْدَ رَمْيِ جِمَارِهِ ﴿فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ﴾ بِالتَّعْجِيلِ ﴿وَمَنْ تَأَخَّرَ﴾ بِهَا حَتَّى بَاتَ لَيْلَةَ الثَّالِثِ وَرَمَى جِمَارَهُ ﴿فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ﴾ بِذَلِكَ أَيْ هُمْ مُخَيَّرُونَ فِي ذَلِكَ وَنَفْيُ الْإِثْمِ ﴿لِمَنِ اتَّقَى﴾ اللهَ فِي حَجِّهِ لِأَنَّهُ الْحَاجُّ فِي الْحَقِيقَةِ ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ فِي الْآخِرَةِ فَيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ

---

**ترجمه**: دَحج وخت مقررمیاشتې دی (اوهغه) دَ شوال، ذی القعده اود ذی الحجه لس شپې دی او ونیلی شوی دی چې دَ ذی الحجه پوره میاشت ده نوچې چا په دې میاشتوکښې دَ حج احرام اوتړلو په خپل ځان ئی حج لازم کړو نونه دَهغه دَ پاره (حالت) احرام کښې فحش خبرې د جماع جائزدی او نه دَ ګناه ارتکاب او نه په حج کښې جنګ جګړې دی او په یو قراءت کښې اول دواړه (رَفَثَ او فُسُوقَ) کښې فتحه ده یعنی (مبنی برفتحه) دی او (نفی) درېواړو صیغونه نهی مراد ده اوکوم چې هم تاسو کارخیرکوئی مثلاً صدقه الله تعالی دَهغې نه خبردې نوهغه به تاسو ته دَهغې صله درکړی اودَ اهل یمن باره کښې (راتلونکې آیت) نازل شو چې بغیرد لارې دَ توښې به ئی حج کولو چې دهغه دَ وجې نه به په خلقو بوج جوړیدل او دومره اندازه باندې دَ لارې توښه اخلئ چې ستاسو دَ سفردَپاره کافی وی بیشکه ښکلې توښه دَلارې دَ الله تعالی ویره ده دَ کوم دَ وجې نه چې دَ خلقو نه سوال وغیره مثلاً (غلا غصب وغیره) نه بچ شئی او اې دَعقل خاوندانو هم زما نه ویرېږئی ستاسو دَپاره په دې خبره کښې هیڅ خرابی نشته چې تاسو په حج کښې دَ تجارت په ذریعه دَخپل رب فضل (رزق) طلب کړئی. دَهغوی دَ رزق دَ طلب کولوناخوښئی دَ تردید دَپاره دا آیت نازل شوې اوکله چې تاسو دَ وقوف عرفه نه پس دَ عرفات نه واپس شئی نوپه مزدلفه کښې دَ شپې تیرولونه پس مشعر حرام سره دَ تلبیه تهلیل او دعا په ذریعه دَ الله تعالی ذکر کوئی (مشعرحرام) دَ مزدلفه په آخره کښې یوغردې هغې ته قزح وائی. په حدیث شریف کښې دی چې رسول الله ﷺ په دې ځائی کښې دَ الله تعالی ذکر سره قیام فرمائیلې او حضورپاك به دعاکوله تردې چې ښه رڼا شوه (رواه مسلم) اودَ الله تعالی ذکرکوئی چې هغه تاسو ته دَ دین اوحج دَ احکامو هدایت

درکړې او بیشکه تاسو إنْ مخففه دې دَهغه دَ هدایت نه وړاندې په ګمراهوکښې وئې. ای قریشو تاسو هم دَ هغه ځائې نه واپس شئ دَ کوم ځائې نه چې ټول خلق واپس کیږی یعنی دَعرفات نه، په داسې طریقه چې تاسو هم هغوی سره په هغه ځائې کښې قیام اوکړئې او قریشو به په نورو خلقو باندې دَ خان اوچت خودلو دَپاره په مزدلفه کښې قیام کولو. ثمَّ دَ ترتیب ذکری دَپاره دې دَالله تعالی نه دخپلو ګناهونو معافی اوغواړئې بیشکه الله تعالیٰ مؤمنان معاف کونکې دې په هغوی باندې رحم کونکې دې. کله چې تاسو دَخپل حج ارکان پوره کړئې په داسې توګه چې تاسو دَ جمره عقبه رمی اوکړئې او حلق اوکړئې او په منیٰ کښې قیام اوکړئې نو تکبیر او ثناء سره دَالله تعالی ذکر کوئې لکه څنګه چې به تاسو دَ خپلو پلارانو اونیکونو ذکر کولو یعنی څنګه چې دَ حج نه په فراغت سره دَفخر په توګه دَهغوی ذکر کولو بلکه دَهغوی دَ ذکر کولونه هم زیات. اَشَدَّ ذکرًانه حال کیدو دَ وجې منصوب دې چې دَ اذکروا دَ وجې نه منصوب دې څکه چې که چرې دَ (ذکرًا) نه روستو وې نو دَدې صفت به وو او په هغوی کښې بعض خلق خوداسې هم دی چې وائی ای زمونږ ربه ته مونږته زمونږ حصه هم په دنیاکښې راکړه نو هغوی ته هم په دنیاکښې ورکولې شی دَ داسې سړی دَپاره په آخرت کښې هیڅ حصه نشته. او په هغوی کښې بعض داسې دی چې وائی زمونږه ربه ته مونږ ته په دنیاکښې هم نعمت راکړه او په آخرت کښې هم د نیکئ بدله راکړه او هغه جنت دې او ته مونږ دَ اور دَعذاب نه بچ کړه په هغې کښې مو داخل نه کړې. دا دَ مشرکانو طریقه اودَ مؤمنانود حال بیان دې اودَدې مقصد په دواړه جهانه دَ خیر غوښتلو ترغیب ورکول دی. لکه چې په دې باندې (الله دَ) خپل قول اُولٰئِكَ لَهُمْ نَصِیبٌ سره وعده کړې ده هم دغه هغه خلق دی دَ چا دَپاره چې اجردې دَهغوی دَاعمالو چې هغوی دَ حج او دعا په ذریعه کړی. او الله تعالیٰ زر حساب پوره کونکې دې. دَ پوره مخلوق حساب دَ دنیا دَ ورځو په اعتبارسره به په نیمه ورځ کښې پوره کړی دَدې مضمون حدیث وارد کیدودَ وجې نه اودَ جمرات دَ رمی په وخت دَ تکبیر په ذریعه یوڅو ورځې یعنی دَ ایام تشریق په دریواړو ورځوکښې دَ الله تعالی ذکرکوئې اوچا چې تادی اوکړه یعنی دَ منیٰ نه په تلوکښې تادئی نه کار واخستو یعنی په ایام تشریق کښې د دویمې ورځې دَ رمی جمار کولونه پس نو دَدغه تادئی کولو په وجه په هغه باندې هیڅ ګناه نشته او چاچې تاخیر اوکړو تردې چې دریمه شپه ئې تیره کړه اودَهغه ورځ رمی جمار ئې اوکړو نو په دې کښې په هغه باندې څه ګناه نشته یعنی هغوی ته په دې کښې اختیارشته اوګناه نه کیدل دَهغه سړی دَپاره دی چې په خپل حج کښې دَ الله تعالی نه ویریږی څکه چې په حقیقت کښې هم هغه حاجی دې اودَالله تعالی نه اوویریږئې او پوهه شئې چې تاسو به په آخرت کښې هم دَهغه طرف ته رَاجمع کولې شئې اوهغه به تاسو ته ستاسو دَ اعمالو بدله درکوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله** الحج وقته.

**سوال** لفظ وَقْتُهُ اضافه دَ څه مقصد دپاره کړې شوې ده؟

**جواب** مضاف محذوف دې اى وقتُ الحج، دَ حج وخت، که چرې مضاف محذوف اونه منلې شى نودَ مصدر حمل په ذات باندې لازم راځى چې جائزنه دې ځکه چې تقديرى عبارت به داسې شى اَلحج اشهر حج مياشتې دى حالانکه مياشتې حج نه دې بلکه دَ حج دَ پاره وختونه دى مضاف محذوف منلوسره مذکوره اعتراض ختم شو.

**قوله** وقيل کلّهٗ دَ قيل قائل امام مالك رحمه الله دې ځکه چې دَ هغه په نيز دَ ذى الحجه پوره مياشت دَ حج په مياشتوکښې شامل ده.

**قوله** بالاحرام به.

**سوال** دَ بالاحرام به دَ اضافه څه فائده ده؟

**جواب** دا دَ ائمه دَاختلاف طرف ته اشاره ده دَ امام شافعى رحمه الله په نيز صرف نيت او احرام تړلوسره حج لازميږى مګر دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزتلبيه يا سوق الهدى سره لازميږى

**قوله** جِمَاعَ فِيْهِ، دَ جِمَاعَ اضافه خودَمعنى دَبيان دَپاره ده مګر دَ فيه دَاضافه څه مقصد دې؟

**جواب** لَارَفَثَ، د فَمَنْ فَرَضَ دَ شرط جزاء ده اودَ جزاء دَپاره جمله کېدل شرط دې حالانکه لَارَفَثَ جمله تامه نه ده ځکه چې لانفى جنس دې او رَفَثَ دَدې اسم دې او خبرئې نشته لهذا جمله ناقصه شوه. دَ رَفَثَ جمله تامه جوړولودَپاره فيه محذوف منل ضرورى دى دې دَپاره چې دَ جائزٌ وغيره متعلق کيدو سره لا نفى جنس خبر شى اولانفى جنس خپل اسم اوخبرسره ملاؤشى دَ شرط جزاء واقع شى

**قوله** وفى قراءة دَدې اضافه مقصد اختلاف قراءت بيانول دى ﴿ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ ﴾ کښې څلور قراءتونه کيدې شى مګر مفسرعلام دَ دوو طرف ته اشاره کړې ده. غالبًا دَ مفسرعلام مخې ته دَ قرآن کريم هغه نسخه ده په کوم کښې چې په دريواړو رفع ده. هم ځکه چې ئې فرمائيلى چې په يوقراءت کښې په ړومبودوو باندې فتحه ده او جِدَالَ باندې هم رفع ده هغه څلور قراءتونه دادى ① دَدريواړو نصب ② دَ دريواړو رفع ③ دَ ړومبو دوو رفع او دريم نصب ④ دَ ړومبو دوو نصب اودريم رفع.

**قوله** والمراد في الثلثة النهي دَدي اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دي.

**سوال** فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ دا دريواړه دَنفي صيغې دي په دې کښې خبرورکړې شوې دي چې په حج کښې نه دَ فحش خبرې وجودشته اونه دَ فسق اوجنګ جګړې حالانکه مشاهده ده چې دا دريواړه څيزونه په حج کښې واقع کيږئ حالانکه دَ الله تعالى په کلام کښې تخلف او کذب نه شي کيدې.

**جواب** دَنفي نه مراد نهي ده ځکه چې مقصد لاترفثوا، لاتفسقوا ولا تجادلوا دې. يعنى په حج کښې دغه ذکر شوي دريواړه کارونه مه کوئ.

**سوال** دَ نهي په نفي سره تعبيرکولو څه وجه ده؟

**جواب** په اصل کښې نفي کښې مبالغه مقصود ده او په دې خبره دلالت مقصود دې چې دغه ذکر شوي درويواړه کارونه په حج کښې هيڅ کله نه دي کول پکار.

**قوله تعالى** وَمَاتفعلوا.

**سوال** لَارَفَثَ، لاترفث په معنى کښې کيدو دَ وجې جمله انشائيه ده او وَمَاتَفْعَلُوْا جمله خبريه ده حالانکه دَ وَمَاتَفْعَلُوْا عطف په ولَارَفَثَ باندې دې اودا عطف خبر على الانشاء دَ قبيل نه دې کوم چې جائزنه دې؟

**جواب** مَاتَفْعَلُوْاپه تاويل کښې دَ امر دي اى اِفْعَلُوا لهذا اوس هيڅ اعتراض پاتې نه شو.

**قوله** والكاف للتعليل يعنى كماهداكم کښې کاف تشبه دَپاره نه دې بلکه تعليل دَپاره دې يعنى تاسودَالله تعالى ذکرځکه اوکړئ چې هغه تاسو ته دَ احکام دين هدايت درکړو

**قوله** وَاِنْ مخففة دا په هغه خلقو باندې رد دې چې اِنْ نافيه مني ځکه چې لَمِنَ الضَّالِّيْنَ کښې لام علامت دې دَدې خبرې چې اِنْ مخففه عن المثقلة دې ګنى نود لَمِنَ الضالين لام دَ الاَ په معنى کښې به اخستل وى کوم چې دَاصل خلاف دې.

**قوله** ثُمَّ للترتيب في الذكر دادَ يو اعتراض جواب دې.

**اعتراض** پورته دَ عرفات نه دَ روانيدو ذکر دې دَ الله تعالى قول ﴿ فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ ﴾ بيادَدې نه پس ﴿ ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ ﴾ کښې مزدلفه نه دَ روانيدو ذکر دې حالانکه ترتيب خارجى دَ دې برعکس دې ځکه چې اول دَ عرفات نه روانيدل کيږى دَهغې نه پس دَ مزدلفه نه کيږى.

**جواب** ثُمَّ ترتيب خارجى دَپاره نه دې بلکه دَترتيب ذکرى دَپاره دې.

قوله ونصبُ اَشَدَّ، على الحال دَدې اضافه مقصد دَاَشَدَّ دَنصب وجه بيانول دی.دَدې خلاصه داده چې اَشَدَّ ذِكْرًا، اذكروا مفعول مطلق نه حال كيدو دَ وجې نه منصوب دې اوكه چرې اَشَدَّ ذِكْرًا نه مؤخر كيدو نو دَصفت كيدو دَ وجې نه منصوب كيدو. موصوف نكره باندې چې كله صفت مقدم كيږی نو بيا هغه حال واقع كيږی هم دغه صورت دلته دې. والله اعلم بالصواب

**[اياتوله: ۲۰۴ - ۲۱۰]**

{وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا} وَلَا يُعْجِبُكَ فِي الْآخِرَةِ لِمُخَالَفَتِهِ لِاعْتِقَادِهِ {وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِيْ قَلْبِهٖ} أَنَّهُ مُوَافِقٌ لِقَوْلِهِ {وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ} شَدِيدُ الْخُصُومَةِ لَكَ وَلِأَتْبَاعِكَ لِعَدَاوَتِهِ لَكَ وَهُوَ الْأَخْنَسُ بْنُ شَرِيقٍ كَانَ مُنَافِقًا حُلْوَ الْكَلَامِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْلِفُ أَنَّهُ مُؤْمِنٌ بِهِ وَمُحِبٌّ لَهُ فَيُدْنِي مَجْلِسَهُ فَأَكْذَبَهُ اللّٰهُ فِي ذٰلِكَ وَمَرَّ بِزَرْعٍ وَحُمُرٍ لِبَعْضِ الْمُسْلِمِينَ فَأَحْرَقَهُ وَعَقَرَهَا لَيْلًا كَمَا قَالَ تَعَالَى {وَاِذَا تَوَلّٰى} انْصَرَفَ عَنْكَ {سَعٰى} مَشَى {فِي الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ} مِنْ جُمْلَةِ الْفَسَادِ {وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ} أَيْ لَا يَرْضَى بِهِ {وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ} فِي فِعْلِكَ {اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ} حَمَلَتْهُ الْأَنَفَةُ وَالْحَمِيَّةُ عَلَى الْعَمَلِ {بِالْاِثْمِ} الَّذِي أُمِرَ بِاتِّقَائِهِ {فَحَسْبُهٗ} كَافِيهِ {جَهَنَّمُ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ} الْفِرَاشُ هِيَ {وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ} يَبِيعُ {نَفْسَهُ} أَيْ يَبْذُلُهَا فِي طَاعَةِ اللّٰهِ {ابْتِغَاءَ} طَلَبَ {مَرْضَاتِ اللّٰهِ} رِضَاهُ وَهُوَ صُهَيْبٌ لَمَّا آذَاهُ الْمُشْرِكُونَ هَاجَرَ إِلَى الْمَدِينَةِ وَتَرَكَ لَهُمْ مَالَهُ {وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ} حَيْثُ أَرْشَدَهُمْ لِمَا فِيهِ رِضَاهُ وَنَزَلَ فِي عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ وَأَصْحَابِهِ لَمَّا عَظَّمُوا السَّبْتَ وَكَرِهُوا الْإِبِلَ بَعْدَ الْإِسْلَامِ {يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِي السِّلْمِ} بِفَتْحِ السِّينِ وَكَسْرِهَا الْإِسْلَامِ {كَآفَّةً} حَالٌ مِنَ السِّلْمِ أَيْ فِي جَمِيعِ شَرَائِعِهِ {وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ} طُرُقَ {الشَّيْطٰنِ} أَيْ تَزْيِينَهُ بِالتَّفْرِيقِ {اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ} بَيِّنُ الْعَدَاوَةِ {فَاِنْ زَلَلْتُمْ} مِلْتُمْ عَنِ الدُّخُولِ فِي جَمِيعِهِ {مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ} الْحُجَجُ الظَّاهِرَةُ عَلَى أَنَّهُ حَقٌّ {فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ} لَا يُعْجِزُهُ شَيْءٌ عَنِ انْتِقَامِهِ مِنْكُمْ {حَكِيْمٌ} فِي صُنْعِهِ {هَلْ} مَا {يَنْظُرُوْنَ} يَنْتَظِرُ التَّارِكُونَ الدُّخُولَ فِيهِ {اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ} أَيْ أَمْرُهُ كَقَوْلِهِ أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ أَيْ عَذَابُهُ {فِيْ ظُلَلٍ} جَمْعُ ظُلَّةٍ {مِّنَ الْغَمَامِ} السَّحَابِ {وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ الْاَمْرُ} تَمَّ أَمْرُ هَلَاكِهِمْ {وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ} بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَالْفَاعِلِ فِي الْآخِرَةِ فَيُجَازِي كُلًّا بِعَمَلِهِ

**ترجمه**:- او بعض خلق داسې هم دی چې دَ دنيا دَ ژوند باره كښې دَهغوی خبرې په تاسو ښه لگی او دَ آخرت باره كښې ښه نه لگی. دَ هغوی اعتقاد ستاسو دَاعتقاد دَخلاف كيدو دَ وجې او دَخپل زړه په خبرو باندې الله تعالىٰ گواه جوړوی چې څه دَهغه په زړه كښې دی هغه د ده دَ قول مطابق دی. حالانكه هغه يو زبردست جگړه كونكې دې يعنی تاسو سره او ستاسو متعبينو سره سخت خصومت لرونكې. تاسو سره خصومت لرلو دَ وجې نه او هغه اخنس بن شريق دې كوم چې منافق دې. او رسول الله ﷺ سره به نې ډيرې خوږې خبرې اترې كولې او

قسمونه به ئې خوړل چې هغه په رسول الله ﷺ باندې ايمان لري او رسول الله ﷺ سره محبت کوي. رسول الله ﷺ به هغه ځان سره نيزدې کينولو نو الله تعالى دَهغه په دعوى کښې تکذيب اوکړو. يوځل دَ مسلمانانو فصل او خرو سره تيريدو نو دَ شپې ئې فصل ته اور ورته کړو او دَخرو خپې ئې پرې کړې لکه څنګه چې الله تعالى اوفرمائيل او کله چې هغه واپس ځى يعنى ستاسو دَ مجلس نه ځى نو په زمکه کښې منډې ترړې وهى دې دَپاره چې په زمکه کښې فساد پيداکړى(دويمه ترجمه)(او کله چې ده ته اقتدار ملاؤ شى نودَهغه ټولې منډې ترړلې په زمکه کښې دَ فساد پيداکولودَپاره وى) او فصل اونسل برباده وى دا هم ټولې دَ فساد خبرې دى او الله تعالى فساد خورونکى نه خوښوى يعنى دَهغوئ نه راضى نه دې او کله چې هغه ته اوئيلې شى چې ته دَخپلو حرکتونوباره کښې دَالله تعالى نه اوويريږه نو هغه لره کبر او جهالت او تعصب په ګناه باندې تياره وى. دکوم ځيزنه چې هغه ته دَ بچ کيدودَپاره وئيلې شوى دى نودَهغې دَپاره جهنم کافى دې او هغه ډيرخراب ځائى دې يعنى هغه خراب دَ استوګنې ځائى دې اوځه داسې خلق هم دى چې دَالله تعالى دَ رضا اوخوشحالئ حاصلولودَپاره خپل ځان خرڅه وى يعنى دَ الله تعالى په اطاعت کښې هغه قربانوى او هغه صهيب رومى ﷺ دې کله چې مشرکانو تکليفونه ورکول نو مدينې ته ئې هجرت اوکړو او مشرکانوته ئې خپل ټول مال پريخودو او الله تعالى په خپلو بنديګانو باندې ډيرلوئى مهربانى کونکې دې خکه چې هغوى ته ئې دَدې خبرو لارخودنه اوکړه په کوموکښې چې دَهغوئ خوشحالى ده اوکله چې عبدالله بن سلام او دَهغه ملګرو دَاسلام قبلولونه پس دَ هفتې دَ ورځې دَ تعظيم اراده اوکړه او اوبښ اودَهغې پئى ناخوښه کړل نو آيت نازل شو اې ايمان والو په اسلام کښې پوره داخل شئى(السِلم) دَ سين فتحه او کسره سره په معنى د اسلام کافة دَ سلم نه حال دې يعنى دَهغه په پوره شريعت کښې (داخل شئى) اودَ شيطان دَ طريقو تابعدارى مه کوئى يعنى دَتفريق په ذريعه ځان خودلو بيشکه هغه ستاسو ښکاره دښمن دې يعنى دَهغه دښمنى بالکل ښکاره ده. نوکه چرې تاسو غلطى اوکړه يعنى په اسلام کښې په پوره توګه داخليدو نه تاسو اعراض اوکړو پس دَهغې نه چې تاسو له دَ اسلام دَ حق کيدو واضحه دلائل راغلل نوپوهه شئى چې الله تعالى غالب دې هغه لره دَ انتقام اخستونه هيڅ څوك نه شى عاجزکولې په خپل صنعت کښې حکيم دې. په پوره توګه په اسلام کښې نه داخليدونکى آيا صرف دَدې خبرې په انتظاردى چې هغوى له الله تعالى اودَهغه فرښتې يعنى دَهغه حکم راشى لکه چې دَالله تعالى قول ﴿ أَوْيَأْتِيَ أَمْرُرَبِّكَ، اي عذابُه ﴾ دَ اوريځو په سوروکښې ظلل دَ ظلّة جمع ده او کار ختم کړې شى يعنى دَهغوى دَهلاکت معامله انجام ته اورسى اوپه آخرت کښې ټول کارونه هم دَالله تعالى طرف ته واپس کيدونکى دى (ترجع) معروف اومجهول دواړه دى نوهغه به بدله ورکوى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله** وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُعْجِبُكَ دَ دي په عطف فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ باندي دي او وَمِنَ النَّاسِ د خپل متعلق محذوف د ملاويدوسره خبرمقدم دي. اووَمَنْ يُعْجِبُكَ مبتدا مؤخر دي.

**قوله** اَلَدُّ الْخِصَامِ، د لَدُّ نه اسم تفضيل دي سخت جګړي کونکي، خِصَامٌ دادَخَاصَمَ مصدردي زجاج وئيلی دی چي دَ خَصْمٌ جمع ده لکه چي دَ صَعْبٌ جمع صِعَابٌ ده اودَ ضَخْمٌ جمع ضِخَامٌ

**قوله** شَدِيدُ الْخُصُومَةِ مفسرعلام دَ اَلَدُّ تفسير په شَدِيدٌ سره کولوکښي اشاره اوکړه چي اَلَدُّ اسم تفضيل نه دي (کما في قول بعض الناس) ځکه چي دَدي مؤنث لَدَّاء او جمع لُدٌّ ده

**قوله** تَوَلّٰى ، اِنْصَرَفَ عَنْكَ د تَوَلّٰى، تفسير اِنْصَرَفَ سره کولوکښي اشاره اوکړه چي تَوَلّٰى په معنی اِنْصِرَاف دی نه چي په معنی د ولاية لکه چي وئيلی شوی دی. ځکه چي دَ آيت نزول اَخْنَسْ بن شَرِيْق باره کښي دي او هغه والی نه وو.

**قوله** مِنْ جُمْلَةِ الْفَسَادِ دا د مبتداء محذوف خبردي ای هُوَ مِنَ الْفَسَادِ دَدي جمله دَ اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دي.

**سوال** لِيُفْسِدَ فِيهَا عام دي په دي کښي دَهرقسم فساد شامل دي بيا دي نه پس وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ وئيلو څه ضرورت دي؟

**جواب** دا عطف دَخاص علی العام دَقبيل نه دي. مِنْ جُمْلَةِ الْفَسَادِ نه هم دَ دغه جواب طرف ته اشاره ده.

**قوله** حَالٌ مِنَ السِّلْمِ دا په هغه خلقو باندي رددي چاچي كَافَّةً مصدر دَمحذوف صفت وئيلی دی او تقديری عبارت ئی دا منلي دي ای اِدْخَالًا كَافَّةً. دَ رد وجه داده چي ابن هشام وئيلی دی چي كَافَّةً حال اونکره کيدلو دَپاره خاص دي.

**قوله** من السِّلْمِ. دادَدي رد دي چاچي وئيلی دی چي كَافَّةً، ادخلوا دَ ضميرنه حال دي ياخرځکه چي كَافَّةً مؤنث دي او سلم مذکردي يا ځکه چي سلم په معنی دَ اسلام اجزاء نه دی حالانکه دَ ذوالحال ذات الاجزاء کيدل ضروری دی دَ رومبی دليل جواب السِّلْم، حرب په شان مذکر او مؤنث دواړو دَپاره استعماليږی دَ دويم دليل جواب، دَ اسلام نه تول شرائع او احکام مراد دی او شرائع ذات الاجزاء دی لهذا سِلْم دكافة نه حال واقع کيدل صحيح دی. مفسرعلام خپل قول ای في جميع شرائعه سره هم دي جواب طرف ته اشاره کړي ده مذکوره آيت د عبدالله بن سلام اودَ هغه دَ ملګروباره کښي نازل شوي په اصحاب

کښې ثعلبه بن یامین او اسد سعید بن عمرو دا ټول حضرات یهودیان وو دوی روستو
بیا اسلام قبول کړو.

**قوله** ظُرُقٌ، خطوات تفسیر طُرُقْ سره کولو سره ئې دَدې اشکال جواب ورکړې دې چې د
شیطان قدم نه وي جواب دادې چې حال وئیلو سره محل مراد دې.

**قوله** ای اَمرهٗ دې کښې اشاره ده چې باتهم الله کښې اسناد مجازی دی.

**قوله** تزینه، ای تزیین الشیطان، المراد من التزیین وسوسته، کتحریم لحم الابل وتعظیم یوم السبت

**[ایاتونه: ۲۱۱ - ۲۱۴]**

{سَلْ} يَا مُحَمَّد {بَنِي إِسْرَائِيل} تَبْكِيتًا {كَمْ آتَيْنَاهُمْ} كَمْ اسْتِفْهَامِيَّة مُعَلِّقَة سَلْ عَنْ الْمَفْعُول الثَّانِي وَهِيَ ثَانِي مَفْعُول آتَيْنَا وَمُمَيِّزهَا {مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ} ظَاهِرَة كَفَلْقِ الْبَحْر وَإِنْزَال الْمَنّ وَالسَّلْوَى فَبَدَّلُوهَا كُفْرًا {وَمَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللَّهِ} أَيْ مَا أَنْعَمَ بِهِ عَلَيْهِ مِنْ الْآيَات لِأَنَّهَا سَبَب الْهِدَايَة {مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُ} كُفْرًا {فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ} لَهُ {زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا} مِنْ أَهْل مَكَّة {الْحَيَاةُ الدُّنْيَا} بِالتَّمْوِيهِ فَأَحَبُّوهَا {وَ} هُمْ {يَسْخَرُونَ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا} لِفَقْرِهِمْ كَبِلَالٍ وَعَمَّار وَصُهَيْب أَيْ يَسْتَهْزِءُونَ بِهِمْ وَيَتَعَالَوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْمَالِ {وَالَّذِينَ اتَّقَوْا} الشِّرْك وَهُمْ هَؤُلَاءِ {فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ} أَيْ رِزْقًا وَاسِعًا فِي الْآخِرَة أَوْ الدُّنْيَا بِأَنْ يَمْلِك الْمَسْخُور مِنْهُمْ أَمْوَال السَّاخِرِينَ وَرِقَابهمْ {كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً} عَلَى الْإِيمَان فَاخْتَلَفُوا بِأَنْ آمَنَ بَعْض وَكَفَرَ بَعْض {فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ} إلَيْهِمْ {مُبَشِّرِينَ} مَنْ آمَنَ بِالْجَنَّةِ {وَمُنْذِرِينَ} مَنْ كَفَرَ بِالنَّارِ {وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ} بِمَعْنَى الْكُتُب {بِالْحَقِّ} مُتَعَلِّق بِأَنْزَلَ {لِيَحْكُمَ} بِهِ {بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ} مِنْ الدِّين {وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ} أَيْ الدِّين {إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ} أَيْ الْكِتَاب فَآمَنَ بَعْض وَكَفَرَ بَعْض {مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ} الْحُجَج الظَّاهِرَة عَلَى التَّوْحِيد وَمِنْ مُتَعَلِّقَة بِاخْتَلَفَ وَهِيَ وَمَا بَعْدهَا مُقَدَّم عَلَى الِاسْتِثْنَاء فِي الْمَعْنَى {بَغْيًا} مِنْ الْكَافِرِينَ {بَيْنَهُمْ فَهَدَى اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنْ} لِلْبَيَانِ {الْحَقِّ بِإِذْنِهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَاللَّهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ} هِدَايَته {إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ} طَرِيق الْحَقّ ونزل في جهد أصاب المسلمين {أَمْ} بَلْ أ {حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا} لَمْ {يَأْتِكُمْ مَثَلُ} شِبْه مَا أَتَى {الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ} مِنْ الْمُؤْمِنِينَ مِنْ الْمِحَن فَتَصْبِرُوا كَمَا صَبَرُوا {مَسَّتْهُمُ} جُمْلَة مُسْتَأْنَفَة مُبَيِّنَة مَا قَبْلهَا {الْبَأْسَاءُ} شِدَّة الْفَقْر {وَالضَّرَّاءُ} الْمَرَض {وَزُلْزِلُوا} أُزْعِجُوا بِأَنْوَاعِ الْبَلَاء {حَتَّى يَقُولَ} بِالنَّصْبِ وَالرَّفْع أَيْ قَالَ {الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ} استبطاء للنصر لتناهي الشدة عليهم {مَتَى} يَأْتِي {نَصْرُ اللَّهِ} الَّذِي وُعِدْنَاهُ فَأُجِيبُوا مِنْ قِبَل اللَّه {أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ} إتيانه

**ترجمه** اې محمد ﷺ بنی اسرائیل لاجواب کولو دپاره پوښتنه اوکړه چې مونږ هغوی ته څنګه ښکاره نښې ورکړې دی مثلاً دَ دَ دریاب دوه ټکړې کیدل، او مَنْ وسَلْوٰی نازل کول مګر هغوی ددې نښانې (نعمتونو) بدله په ناشکرئی سره ورکړه. کَمْ استفهامیه دې چې دَ سَلْ

مفعول ثانی دې (اٰتَيْنٰهُمْ) کښې دَعمل کولو نه منع کونکې دې او دګمْ اٰتَيْنٰهُمْ مفعول ثانی دې (ممیزدې او مِنْ اٰيَةٍ دَدې تمیزدې. اوکوم سړې چې دَالله تعالی نعمتونه بدلوی په کفرسره یعنی هغه نعمتونه چې هغه ته دَ انعام په توګه دَ نښانو په شکل کښې ورکړې (اوهغه ایات نعمت ځکه چې دی)، چې هغه دَ هدایت سبب دې نو بیشکه الله تعالی دَ ډیرسخت عذاب والا دې. دکافرانو یعنی اهل مکه دَپاره دَ دنیاژوند ښائسته کولوسره کوم چې هغوی محبوب ګنړلې دې ښه ښائسته کړې دې اودا خلق ایمان والوپورې دَ غربت دَ وجې مسخرې کوی لکه په عمار بلال او صهیب به دوی مذاق کولو او په هغوی به نی مالی اوچتوالې خرڅلو حالانکه هغه خلق چې دَ شرك نه بچ شو اوهغه هم دغه (فقیران دی دَ قیامت په ورځ به دَهغوی نه اوچت وی او الله تعالی چاله چې غواړی بې حسابه روزی ورکوی یعنی په آخرت یا دنیاکښې وسیع رزق ورکوی په داسې طریقه چې کومو خلقو پورې توقې شوی دی هغوی به دَدوی دَ مالونو اودَ هغوی دَ ستونو مالکان جوړکړی(په حقیقت) کښې ایمان والا هم یوامت وو روستو مختلف شو په دې طریقه چې بعضو ایمان راوړو اوبعضو انکار اوکړو روستودَهغې نه چې هغوی له واضحه دلیلونه راغلی وو اودَ مِنْ بعد متعلق اختلف سره دې او مِنْ اودَدې مابعد دَمعنی په اعتبارسره په استثناء باندې مقدم دې اودا هرڅه صرف دَخپل مینځ دَ کفر اوعناد دَ وجې نه ئې اوکړه. بیا هم الله تعالی دَ ایمانو والو په کوم کښې چې هغوی اختلاف اوکړو په خپله رضاباندې لارخودنه اوکړه اوالله تعالی چې دَ چاهدایت غواړی په صراط مستقیم یعنی نیغې لارې ته هدایت ورته کوی اودَهغه مشقت باره کښې کوم چې مسلمانانوته اورسیدو (راتلونکې آیت) نازل شو. آیا تاسودا ګمان کړې ناست یئې چې جنت کښې به داخل شئې حالانکه تراوسه پورې په تاسو هغه حالات نه دی راغلی کوم حالات چې تاسو نه وړاندې ایمان والوباندې راغلی وو. لهذا تاسو هم هغه شان صبر اوکړئی ځکه چې صبر هغوی کړې وو هغوی سخت محتاج شو او بیماران شو. مَسَّتْهُمْ جمله مستانفه دَخپل ماقبل بیان دې په مختلف قسم ازمیښتونو سره ئې اوخوزول تردې چې دَهغه وخت رسول او هغه سره ایمان راوړونکی په نصرت کښې دَ تاخیر او په هغوی باندې دَ ډیرې سختئی دَ وجې دا وینا اوکړه چې دَالله تعالی امدادبه کله راځی؟ دَ کوم چې مونږ سره وعده کړې شوې ده (یقول) نصب او رفع سره دې نوهغوی ته دَ الله تعالی دَ طرف نه جواب ورکړې شو واورئې دَالله تعالی نصرت راتلل نیزدې دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** سَلْ ته سوال اوکړه (ف) نه امر واحدمذکرحاضر دَ سَلْ اصل اِسْئَلْ وو دَ همزه ثانیه حرکت نقل کولوسره خپل ماقبل سین ته ورکړو اوهمزه تخفیفًا حذف کړې شوه همزه

وصل چونکه ضرورةً راوړلې شوې وه دَ ضرورت نه پاتې کيدو دَ وجې نه ساقط کړې شوه. سَلْ شو خطاب رسول الله ﷺ ته دې.

**قوله**: تبکیتًا (تفعیل) لاجواب کول، چپ کول، شرمنده کول اودا استفهام دَ توبيخ دَپاره دې نه چې دا استفهام دَ سوال دَپاره دې.

**قوله**: مُعَلِّقَةٌ لِسَلْ مِنَ المفعول الثاني، يعنی کَمْ استفهام سَلْ مفعول ثانی کښې عمل کولو نه مانع دې او پخپله دَ مفعول ثانی په ځائی باندې دې دې دَپاره چې دَدې دَ کلام صدارت باقی پاتې شی.

**سوال**: سَلْ متعدی په يو مفعول دې دې ته دَ دويم مفعول هډو ضرورت نشته نوبيا سَلْ ته په مفعول ثانی کښې دَ عمل کولو نه بندولو څه مطلب دې؟

**جواب**: سوال چونکه سبب دَعلم وی او عَلِمَ دَ افعال قلوب نه دَ کيدو دَ وجې متعدی په دوو مفعولو دې. چونکه سوال سبب دې دَعلم اوعلم دَدې مسبب دې او بعض وخت سبب دَ مسبب په ځائی وی لهذا دلته هم سَئَلَ په ځائی دَ عَلِمَ کيدو دَ وجې نه متعدی په دوو مفعولو شو.

**ترکیب**: سَلْ فعل امر ضمير اَنتَ دَدې فاعل بنی اسرائيل د سَلْ مفعول اول دې کَمْ استفهاميه مميز، هُمْ د آتَيْنَا مفعول اول مِنْ آيَةٍ تميز کَمْ مُمَيِّزْ خپل تميز سره ملاويدو کښې دَ آتَيْنَا مفعول ثانی مقدم دې. اتينا خپل فاعل اومفعولونو سره ملاويدو کښې جمله قائمه شوه دَ سَلْ دَ مفعول ثانی او سَلْ خپل فاعل مفعول او قائمقام مفعول سره ملاويد کښې جمله انشائيه شوه.

**سوال**: سَلْ دَ دوو مفعولونو تقاضا کوی. يو دَهغې نه مسؤل عنه دې او دويم مسؤل، دلته مسؤل بنی اسرائيل دی او مسؤل عنه ذکر نه دې حالانکه دَمسؤل عنه بغير سوال نه هيڅ مطلب نه دې؟

**جواب**: لکه څنګه چې دَ مفعول ثانی نه مسؤل عنه ګڼړلې شی دَ قائمقام مفعول نه هم مسؤل عنه ګڼړلې شی لهذا کَمْ آتَيْنَا هم کوم چې دَ سَلْ مفعول ثانی په ځائی دې نه هم مسؤل عنه مفهوم کيږی. لهذا مسؤل عنه مستقل دَ ذکر کولو ضرورت نشته.

**قوله**: ومُمَيِّزُهَا مِنْ آيَةٍ دَدې اضافه مقصد دَ يو سوال مقدر جواب دې

**سوال**: کم استفهاميه په تميز باندې مِنْ نه استعماليږی اودَنحوی په کتابونو کښې چرته ذکر نه دی.

**جواب** دَ جواب حاصل دادې چې کم استفهامیه په تمیزباندې دَ مِن دخول هغه وخت منع دې چې کوم وخت دَ ممیز اوتمیز په مینځ کښې فصل نه وی خوکه ممیز اوتمیزپه مینځ کښې فعل متعدی فصل وی لکه چې دلته دَ آتَيْنَا فصل دې نو مِنْ راوړل واجب دی اودَدې جواب وجه دَ مفعول او تمیز په مینځ کښې فرق کول دی که چرې په تمیزباندې مِنْ نه وې نو په دغه امرکښې التباس کیدلو چې آيَةٍ دَ آتَيْنَا مفعول دې یادَ کم استفهامیه تمیزدې؟

**قوله** لِاَنَّهَا سَبَبُ الْهِدَايَةِ دَ هغه شبه جواب دې چې آیات ته نعمت ولې ونیلې شوې دې؟ جواب دادې چې آیات سبب دَ هدایت دی اوهدایت دَ ټولونه لوئی نعمت دې سبب ونیلوسره مسبب مراد اخستې شوې دې.

**قوله** كُفْرًا، كُفْرًا اضافه کولوسره اشاره اوکړه چې د يُبَدِّلْ مفعولِ ثانی محذوف دې

**قوله** شَدِيْدُ الْعِقَابِ لَهُ.

**سوال** لَهُ مقدر منلوڅه ضرورت دې؟

**جواب** مَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللهِ مبتداء دې او فَاِنَّ اللهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ جمله کیدو سره دَ مبتداء خبردې حالانکه خبرچې کله جمله وی نو په هغې کښې دَ یوعائدکیدل ضروری وی لَهُ مقدرمنلوسره عائددَ محذوف طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله** وَهُمْ يَسْخَرُوْنَ.

**سوال** هُمْ دَ اضافه څه فائده ده؟

**جواب** واؤحالیه دې نه چې عاطفه اودَ واؤ حالیه جمله اسمیه کیدل ضروری دی ځکه حې دَ هُمْ اضافه اوکړې شوه.

**سوال** واؤعاطفه منلوکښې څه قباحت دې که چرې واؤ عاطفه اومنلې شی نو دَ هُمْ محذوف منلوڅه ضرورت دې؟

**جواب** واؤ عاطفه منلوپه صورت کښې يَسْخَر دَمضارع په زُيِّنَ ماضی باندې به عطف لازم راشی چې په فصیح کلام کښې مستحسن نه دې.

**قوله** وَهِيَ وَمَابَعْدَهَا مقدم عَلَى الاستثناء معنی دَدې اضافه مقصد دَیومشهورسوال جواب دې.

**سوال** دَ یوحرف استثناء په ذریعه متعدد استثناء صحیح نه ده اودلته هم دغه صورت دې ځکه چې وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ مستثنٰی منه ده او اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ مستثنٰی اول ده او مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمْ مستثنٰی ثانی ده.

**جواب** دَ جواب حاصل دادې چې دا اعتراض به هغه وخت كيږي كله چې من بعد الغرد أُوتُوهُ متعلق كړې شي لكه دَ قريب كيدودَ وجې نه ظاهردې مگر دَ من بعد تعلق إختِلَف سره دې دَ كوم دَ وجې نه مِنۢ بَعْدِ الغرپه إِلَّا الَّذِيْنَ أُوتوه باندې مقدم دې لهذا من بعد په مستثنى كښې نه دې بلكه مستثنى منه كښې داخل دې هم دَدې جواب طرف ته مفسرعلام مِنۢ بعد الغ متعلقة بإختلف وئيلو سره اشاره اوكړه.

**قوله** معنىً دَدې لفظ اضافه مقصد داخودل دى چې مِنۢ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الغ دَ لفظونو په اعتبارسره اگرچې مؤخردې مگردَ معنى په اعتبارسره مقدم دې.

**قوله** بَغْيًا يا خود مفعول يا د حال كيدودَ وجې نه منصوب دې.

**قوله** بَيْنَهُمْ د بَغْيًا صفت دې يا حال دې.

**قوله**: اى قَالَ.

**سوال** مفسرعلام دَ يقولُ تفسير قَالَ سره كړې دې دَدې څه فائده ده؟

**جواب** دَدې مقصد دَ يقولُ دوارو قراءتونو طرف ته اشاره كول دى څكه چې قاعده داده چې كله دَحتّٰى نه پس مستقبل په معنى دَماضى وى نو په هغې كښې رفع اونصب كول دواړه جائز وى. دلته هم دغه صورت دې څكه چې نافع رحمه الله رفع او نورو حضراتو نصب لوستلې دې. حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ اصل كښې قَالَ الرسول دې حكايت دَ حال ماضيه په توگه ماضى مضارع سره تعبيركړې شوې دې لكه چې وئيلى شى مَرِضَ فلانٌ حتّٰى لا يَرجونَهُ فلانكې سړې بيمارشو دَهغه دَ بچ كيدو اميدنشته.

**قوله** مَتٰى يأتى نصرُالله. متى دَ ظرفيت دَ وجې نه منصوب دې او خبرمقدم كيدو دَ وجې نه په محل كښې دَ رفع دې او نصرالله مبتداء مؤخردې مفسرعلام يأتى، فعل محذوف منلوسره اشاره اوكړه چې نصرالله دَ فعل محذوف فاعل دې.

**[ايا تونه: ۲۱۵ - ۲۱٦]**

{يسألونك} يا محمد {ماذا ينفقون} اي الذين يُنفِقُونَهُ وَالسَّائِل عَمْرو بن الْجَمُوح وَكَانَ شَيْخًا ذَا مَال فَسَأَلَ صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمَّا يُنْفِق وَعَلَي مَنْ يُنْفِق {قُلْ} لَهُمْ {مَآ أَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ} بَيَان لِمَا شَامِل لِلْقَلِيلِ وَالْكَثِير وَفِيهِ بَيَان الْمُنْفِق الَّذِي هُوَ أَحَد شِقَّيْ السُّؤَال وَأَجَابَ عَنْ الْمَصْرِف الَّذِي هُوَ الشِّقّ الْآخَر بِقَوْلِهِ {فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِيْنَ وَالْيَتَامٰى والمساكين وبن السَّبِيل} أَيْ هُمْ أَوْلَي بِهِ {وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ} إنْفَاق أَوْ غَيْره {فَإِنَّ اللّٰهَ بِهِ عَلِيمٌ} فَمُجَازٍ عَلَيْهِ {كُتِبَ} فُرِضَ {عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ} لِلْكُفَّارِ {وَهُوَ كُرْهٌ} مكروه {لكم} طبعا لِمَشَقَّتِهِ {وَعَسٰى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَعَسٰى أَنْ تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ} لِمَيْلِ

النَّفس إلي الشَّهوَات الْمُوجِبَة لِهَلَاكِهَا وَنُفُورهَا عَنْ التَّكْلِيفَات الْمُوجِبَة لِسَعَادَتِهَا فَلَعَلَّ لَكُمْ فِي الْقِتَال وإِنْ كَرِهْتُمُوهُ خَيْرًا لِأَنَّ فِيهِ إمَّا الظَّفَر وَالْغَنِيمَة أَوْ الشَّهَادَة وَالْأَجْر وَفِي تَرْكه وَإِنْ أَحْبَبْتُمُوهُ شَرًّا لِأَنَّ فِيهِ الذُّلّ وَالْفَقْر وَحِرْمَان الْأَجْر {وَٱللَّهُ يَعْلَمُ} مَا هُوَ خَيْر لَكُمْ {وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ} ذَلِكَ فَبَادِرُوا إلَى مَا يَأْمُركُمْ بِهِ

**ترجمه**: اې محمد ﷺ تاسو نه خلق تپوس کوی چې څه خرچ کړی؟ مَاذَا په معنی د اَلَّذِیْ اوسائل عمرو بن جموح وو چې مالداره بوډا وو نوهغه دَ رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه چې څه خرچ کړی؟ **تاسو هغه ته جواب ورکړئی چې تاسو کوم مال هم خرچ کړې** (مِنْ خَيرٍ دَ مَا بيان دې چې قليل اوکثيرتولوته شامل دې او په دې کښې دَ خرچ کيدونکی څيزبيان دې چې دَ سوال دَ دوو حصونه يوه حصه ده اودَمصرف جواب ئی ورکړو په خپل قول فللوالدین سره کوم چې دَ سوال دویمه حصه ده (یعنی خپل) **والدين باندې، په خپلوانو يتيمانو مسکينانو او مسافرو باندې** (خرچ کړئی) دا خلق دَ خرچ زيات مستحق دی انفاق وغیره **کوم عمل دَ خيرچې هم تاسو کوئی الله تعالی دَ هغې نه خبردې** دَهغې **به تاسو ته صله** ملاویږی. **په تاسو باندې کافرانوسره جهاد کول فرض کړې شوی دی اوهغه ستاسو طبعًا ناخوښه دې** په هغې کښې دَ مشقت کيدو دَ وجې **نه اوکيدې شی چې يوڅيز ستاسو ناخوښوی او هم هغه ستاسو دَپاره بهتروی اوکيدې شی چې يوڅيز تاسوته خوښ وی اوهغه ستاسو دَپاره** خراب او هلاکونکې وی اودَ خواهشاتو دَ نفس طرف ته دَنفس ميلان کيدو دَ وجې، اودَ نفس دَ پارد نيك بختی واجب کونکی تکليفوته دَ نفس دَ نفرت کولودَ وجې، څکه چې کيدې شی چې په جهادکښې ستاسو دَپاره خيروی سره دَدې چې هغه تاسو ناخوښه اوګنړئی. په دې کښې ياخوفتح او مال غنيمت دې ياشهادت اواجردې. اودَ جهاد په ترك کولوکښې سره دَدې چې تاسو دا (دَ جهاد پريخودل) خوښ ګنړئی شر وی څکه چې په دې کښې ذلت فقر اودَ اجر نه محرومتيا ده ستاسو دَ پاره څه بهتردی؟ **الله تعالی پيژنی تاسو هغه نه پيژنئی** نوچې تاسو ته دَ څه حکم کوی هغې طرف ته وراندیوالې کوئی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: اَلَّذِیْ دې کښې اشاره ده چې ذا دلته موصول دې نه چې اسم اشاره، يعنی اَلَّذِیْ دَ إذاتفسير دې نه چې دَ مَاذَا.

**قوله**: وَعَلَى مَنْ يُنْفِقُ، دا عبارت مقدرمنلومقصددَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: دادې چې دَ الله تعالی جواب دَ عمروبن جموح دَ سوال مطابق نه دې څکه چې سوال وو څه خرچ کړو نه دا چې په چاباندې خرچ کړوحالانکه الله تعالی فَلِلْوَالِدَيْنِ ذکرکولوسره مصرف بيان کړې دې. خلاصه دا ده چې سوال دَ منفق وو او جواب منفق عليهم سره ورکړې شو؟

**جواب**: دَ جواب ماحصل دادې چې سوال دَ دوارو څيزونووو مګر په نظم آيت کښې دَ ايجاز اواختصار دَ وجې نه منفق ذکرنه کړې شو. په جواب باندې محمول کولوسره چې هم په جواب سره سوال په پوهه کښې راشي. مِنْ خَيْرٍ، دَمَا بيان دې کوم چې قليل اوکثيرته شامل دې او په دې کښې اشارةً د مُنْفَق بيان دې چې دَ سوال دَ دوو جزونو نه يودې او فللوالدين دَمصرف بيان دې کوم چې دَ سوال دَ دويم جز بيان دې. دَ سوال چې کوم جز صراحةً ذکر دې، دهغه جواب ئې ما انفقتم من خير سره اشارة ورکړې دې او دسوال چې کوم جزء محذوف دې يعنی علی من ينفق دهغه جواب صراحة مذکور دې يعنی فللوالدين الخ لهذا اوس هيڅ اشکال باقی پاتې نه شو، سوال اوجواب دواړه مطابق شو. دَ منفق اشارةً او منفق عليهم صراحة ذکرکولوکښې دې خبرې طرف ته هم اشاره ده چې دَ منفق باره کښې سوال هيڅ اهميت نه لری ځکه چې څه خرچ کړی اوڅومره خرچ کړی. دا دَ انسان په حالت او اختيار باندې موقوف وی البته دَمصرف پيژندل ضروری دی دې دَپاره چې خرچ کړې شوې مال بې مصرف او بې ځايه خرچ نه شی ګنی مال به ضائع او دَ اجر نه محروم کيدل به لازم راځی.

**قوله**: هُمْ اولی به، په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې مذکوره مصارف اولی او افضل ضرور دې مګر هم په دې کښې منحصرنه دې دَدې نه په علاوه باندې هم خرچ کولې شی دَدې نه معلومه شوه چې فللوالدين کښې لام دَ اختصاص نه دې.

**قوله**: طبعًا دا دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دَالله حکم خصوصًا چې فرض وی ناخوښه کول اومکروه ګڼړل کفردې.

**جواب**: طبعی کراهت موجب کفرنه دې ځکه چې دادَ انسان فطرت دې.

**قوله**: ذلك دادَ يعلمون مفعول دې.

**[اياتونه: ۲۱۷ - ۲۱۹]**

وارسل النبي أوّل سَرَايَاهُ وَعَلَيْهَا عَبْد الله بْن جَحْش فقاتلوا المشركين وقتلوا بن الحضرمي اخر يوم من جمادي الآخر وَالْتَبَسَ عَلَيْهِمْ بِرَجَبٍ فعَيَّرَهُمْ الْكُفَّار بِاسْتِحْلَالِهِ فَنَزَلَ {يَسْأَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ} الْمُحَرَّم {قِتَالٍ فِيهِ} بَدَل اشْتِمَال {قُلْ} لَهُمْ {قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ} عَظِيم وِزْرًا مُبْتَدَأ وَخَبَر {وَصَدٌّ} مُبْتَدَأ مَنْع لِلنَّاس {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دِينه {وَكُفْرٌ بِهِ} بِالله {وَصد عن الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} أَيْ مَكَّة {وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ} وَهُمْ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُؤْمِنُونَ وَخَبَر الْمُبْتَدَأ {أَكْبَرُ} أَعْظَم وِزْرًا {عِنْدَ اللَّهِ} مِنْ الْقِتَال فِيهِ {وَالْفِتْنَةُ} الشِّرْك مِنْكُمْ {أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ} لَكُمْ فِيهِ {وَلَا يَزَالُونَ} أَيْ الْكُفَّار {يُقَاتِلُونَكُمْ} أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ {حَتَّى} كَيْ {يَرُدُّوكُمْ عَنْ دِينِكُمْ} إلَى الْكُفْر {إِنِ اسْتَطَاعُوا وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَيَمُتْ

وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولَٰئِكَ حَبِطَتْ} بَطَلَتْ {أَعْمَالُهُمْ} الصَّالِحَة {فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ} فَلَا اعْتِدَاد بِهَا وَلَا ثَوَاب عَلَيْهَا وَالتَّقْيِيد بِالْمَوْتِ عَلَيْهِ يُفِيد أَنَّهُ لَوْ رَجَعَ إِلَي الْإِسْلَام لَمْ يَبْطُل عَمَله فَيُثَاب عَلَيْهِ وَلَا يُعِيدهُ كَالْحَجِّ مَثَلًا وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ {وأولئك أصحاب النار هم فيها خالدون} وَلَمَّا ظَنَّ السَّرِيَّة أَنَّهُمْ إِنْ سَلِمُوا مِنَ الْإِثْم فَلَا يَحْصُل لَهُمْ أَجْر نَزَلَ {إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا} فَارَقُوا أَوْطَانهمْ {وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ} لِإِعْلَاءِ دِينه {أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رحمت اللَّهِ} ثَوَابه {وَاللَّهُ غَفُورٌ} لِلْمُؤْمِنِينَ {رَحِيمٌ} بِهِمْ. {يسألونك عن الخمر والميسر} القمار ما حكمها {قُلْ} لَهُمْ {فِيهِمَا} أَيْ فِي تَعَاطِيهِمَا {إِثْمٌ كَبِيرٌ} عَظِيم وَفِي قِرَاءَة بِالْمُثَلَّثَةِ لِمَا يَحْصُل بِسَبَبِهِمَا مِنَ الْمُخَاصَمَة وَالْمُشَاتَمَة وَقَوْل الْفُحْش {وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ} بِاللَّذَّةِ وَالْفَرَح فِي الْخَمْر وَإِصَابَة الْمَال بِلَا كَدّ فِي الْمَيْسِر {وَإِثْمُهُمَا} أَيْ مَا يَنْشَأ عَنْهُمَا مِنَ الْمَفَاسِد {أَكْبَرُ} أَعْظَم {مِنْ نَفْعِهِمَا} وَلَمَّا نَزَلَتْ شَرِبَهَا قَوْم وَامْتَنَعَ عَنْهَا آخرون إِلَي أَنْ حَرَّمَتْهَا آيَة الْمَائِدَة {وَيَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ} أَيْ مَا قَدْره {قُلْ} أَنْفِقُوا {الْعَفْوَ} أَيْ الْفَاضِل عَنْ الْحَاجَة وَلَا تُنْفِقُوا مَا تَحْتَاجُونَ إِلَيْهِ وَتُضَيِّعُوا أَنْفُسكُمْ وَفِي قِرَاءَة بِالرَّفْعِ بِتَقْدِيرِ هُوَ {كَذَٰلِكَ} أَيْ كَمَا بُيِّنَ لَكُمْ مَا ذُكِرَ {يبين الله لكم الآيات لعلكم تتفكرون} {فِي} أَمْر {الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ} فَتَأْخُذُونَ بِالْأَصْلَحِ لَكُمْ فِيهِمَا

---

**ترجمه**: نبی کریم ﷺ خپل لښکر (جنګی یونټ) نه ړومبي سریه (یونټ) روان کړو او دهغې امیرئی عبدالله بن جحش ﷺ مقررکړو دغه خلقو مشرکانو سره جنګ اوکړو اود جمادی الاخر آخری ورځ ئی ابن حضر می قتل کړو. هغوی ته د جمادی الاخر دآخری ورځې درجب دړومبي ورځې شك پیداشو نو کافرانو د رجب د میاشت حلال ګنړلو پیغور اوکړو نو يَسْأَلُونَكَ نازل شو. خلق تاسو نه تپوس کوی چې ماه حرام (یعنی) د احترام په میاشت کښې جنګیدل څنګه دی؟ قِتَالٍ فِيهِ (عن الشهر الحرام) نه بدل الاشتمال دې. تاسو هغوی ته اوښایئ چې په دې کښې جنګ کول ډیر خراب دی (یعنی) د ګناه په اعتبارسره لوئی جرم دې (قتال فیه)د مبتداء خبردې اوخلق د الله تعالی د لار یعنی دین نه منع کول او الله تعالی سره کفرکول اومسجدحرام یعنی مکې نه بندول او اهل حرم د حرم نه ویستل اوهغه نبی کریم ﷺ اومؤمنان دی د الله تعالی په نیزډیره لویه ګناه ده. په دې کښې تر جنګ کولو نه. صَدٌّ مبتداء دی او اکبرعندالله ددې خبردې او فتنه (یعنی) ستاسوشرك کول ستاسو په دې کښې دقتل کولونه ډیر سخت دی. او اې مؤمنانو داکافران به تاسو سره جنګیږی ترهغه وخته پورې چې تاسو د خپل دین نه کفرطرف ته اوګرځوی که د دوی وس اوشی او تاسو نه چې څوك د خپل دین نه واوښتل اوهغه دکفرپه حالت کښې پاتې کیږی نو دهغه نیك اعمال به په دنیا او آخرت کښې ضائع شی نونه به د دغه اعمالو شمیرکیږی اونه به په هغې باندې اجر ملاویږی او هم په کفر باندې دمړه کیدلوقید دا فائده ده که چرې دا سړې د اسلام طرف ته واپس راوګرځید و

نوده عمل ضائع نه شو لهذا په هغې به ثواب ورکولې شي اوهغه به د دغه عمل سردوباره کول نه کوی لکه حج مثلاً امام شافعي رحمه الله هم دغه مذهب دې اوداسې تول خلق دوزخیان دی او همیشه به هم په دغه دوزخ کښې وی. اوکله چې د لښکریانودا ګمان پیداشو چې هغوی سره دَدې چې د ګناه نه بچ شو لیکن هغوی ته (د جهاد) اجر خو ملاؤنه شونو اِنَّ الَّذِیْنَ نازل شو بیشکه هغه خلق چې ایمان ئې راوړې او چاچې هجرت اوکړو یعنی خپل وطن ئې پریخودو اود دین د کلمې د اوچتولو دپاره دَالله تعالی په لارکښې جهاد اوکړو هم دغه هغه خلق دی چې دَ الله تعالی دَرحمت ثواب (په خائې) امیدواران دی اوالله تعالی مؤمنان معاف کونکې دې او په هغوی باندې رحم کونکې دې. تاسونه دَ شرابو او جوارئې یعنی دَدې دَ حکم باره کښې پوښتنه کوی دوی ته اوښایه چې دَ دغه دواړو په کولوکښې عظیمه ګناه ده او په یوقراءت کښې (کبیرٌ) ثاء مثلثه سره (یعنی) کثیرٌ دې څکه چې دَدې دواړو د وجې نه دښمنی کنځلې او فحش خبرې کولو نوبت راځی او (په دې کښې) دَخلقو دَپاره څه فائدې هم دی مثلاً خوند خوشحالی په شرابوکښې او بغیرد مشقت نه دَمال حاصلیدل په جوارئې کښې دی اودَدې ګناه یعنی دَدې دَمفاسد ګناه کومه چې (دَدې دواړو) نه پیدا کیږی ډیره لویه ده دَدې دَ ګټې نه.اوکله چې دا آیت نازل شو نو څه خلقو (شراب) څکل او څه (د څکلونه) منع شو. تردې چې دَ سورت مائده آیت دا دواړه حرام کړل. اوخلق تاسونه داهم تپوس کوی چې (دَالله تعالی په لارکښې) څه خرچ کړو؟یعنی دَهغې اندازه څه ده؟ تاسو ورته اووایئې چې کوم تاسونه زیاتی شی هغه خرچ کړئې اودکوم چې تاسو ته حاجت وی هغه مه خرچ کوئې (چې هغه خرچ کړئې) خپل ځان نه ضائع کړئې او په یوقراءت کښې (العَفوُ) رفع سره دې دَ هُوَ تقدیر سره داسې لکه څنګه چې ستاسو دَپاره مذکوره احکام بیان کړل الله تعالی ستاسو دَپاره صفا صفا احکام بیانوی دې دَپاره چې تاسو دَدنیا اوآخرت په معامله کښې غور اوکړئ نو بس هم هغه اختیارکړئې کوم چې ستاسو دَپاره په دنیا او آخرت کښې بهتروی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: ابن الحضرمی دَدوی اصل نوم عمربن عبدالله بن عباد حضرمی دې دَ حضرموت طرف ته منسوب دې.

**قوله**: سَرَایَا، دَ سَرِیَّةٌ جمع ده دَ لښکریوه حصه، په اصطلاح کښې سریه هغه لښکرته وائی په کوم کښې چې حضور پاك پخپله شرکت نه وی فرمائیلې او غزوه هغه لښکرته وائې په کوم کښې چې رسول الله ﷺ پخپله شرکت فرمائیلې وی. دَ غزوات او سرایا مجموعه اویا دی. سریه دَ پنځو کسانونه واخله ترڅلورو سوو پورې شمیر ته وائی دَدې نه زیات ته جند(لښکر) ته وائی. مفسرعلام دې سریه ته رومبې سریه وئیلې ده حالانکه مواهب

کښې دی چې دې نه وړاندې درې سرايا او څلور غزوات شوی وو. ړومبې سريه دَ هجرت په اووم کال دَ رمضان په مياشت کښې شوې وه دَ کومې امير چې حضورپاک خپل تره حضرت حمزه رضي الله عنه جوړکړې وو دَدغه سريه دَ کسانو شمير ديرش وو دې نه پس دويمه سريه سريۀ عبيدة بن الحارث رضي الله عنه ده دا دَ شوال په مياشت کښې پيښه شوې وه. دَ هجرت په اتمه مياشت دې کښې شپيته کسان شامل وو. دې نه پس دريمه سريه سريۀ سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه ده داد حجاز په يوه وادئی خرار کښې پيښه شوه دا ذی القعده کښې دَهجرت په نهمه مياشت کښې پيښه شوه دا سريه په شلوکسانو باندې مشتمل وه. دې نه پس څلور غزوات پيښ شوی اول غزوه ودان دويمه بواط دريمه غزوه ذوالعُشيره پيښه شوې او څلورمه غزوه بدر اولی ده دَ کومې نه پس چې سريۀ عبدالله بن جحش دَ رجب په آخرکښې دَ هجرت په اوولسمه مياشت پيښه شوه لهذا سريۀ عبدالله بن حجش ته اول سريه وئيلو کښې نظردې.

**تطبيق:** دَ تطبيق چې کوم صورت کيدې شی هغه دا چې په کومه سريه کښې چې دَ چاقتل شوې وی او مال غنيمت په لاس راغلې وو هغه هم دغه سريه ده. په دې اعتبارسره دې ته اوله سريه وئيلې شی ځکه چې دې نه وړاندې سرايا کښې نه څوك قتل شوی اونه دَ غنيمت مال په لاس راغلې. (جمل صاوی)

**قوله:** اِلتبس عَلَيۡهِمۡ بِرَجَبَ دَ جمادی الاخری آخری تاريخ ګنړلوسره مسلمانانو دَ خضرمی په قافله باندې شبخون وهلې وو. په دويمه ورځ چې کله سپوږمئی اوکتله نو په هغې کښې اشتباه اوشوه بعضو وئيل دا دَ پرونې ورځې سپوږمئی ده بعض اووئيل هم دَ نن ده که چرې دَ پرون وی نو قتال دَ رجب په ړومبی تاريخ کښې واقع شو چې محترم مياشت ده په دې وجه مسلمانان هم په شش وپنج کښې پريوتل. او دَمکې مشرکانو هم په دې باره کښې په مسلمانانوباندې پيغوررونه شروع کړل چې تاسو دا دَ احترام مياشت هم حلال کړه تردې چې دَمکې دَمشرکانو يووفد دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اودَ مسلمانانو شکايت ئی اوکړو اوهم دغه مسئله ئی معلومه کړه. نو دا آيت نازل شو يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ الشَّهۡرِ الۡحَرَامِ الخ.

**قوله:** المحرّم.

**سوال:** الحرام تفسير المحرم سره کولو کښې څه مصلحت دې؟

**جواب:** مقصد دَ يوسوال مقدر جواب ورکول دی.

**سوال:** دادې چې الشهر الحرام کښې دَمصدر حمل په ذات باندې لازم راځی کوم چې صحيح نه دې؟

**جواب**: دادې چې الحرام مصدر المحرّم دَمفعول په معنی کښې دې لهذا هیڅ اعتراض نشته یادا حمل مبالغة دې.

**قوله**: قتال فیه دا دَ الشهر الحرام نه بدل الاشتمال دې. ځکه چې الشهرالحرام دَاداء مقصود دَپاره ناکافی دې.

**سوال**: قتال فیه نکره دې او الشهرالحرام معرفه، او دنکره په معرفه سره بدل واقع کیدل درست نه دی.

**جواب**: نکره موصوفه بدل واقع کیدل صحیح دی تقدیر عبارت دادې قِتَال کَائِن فِیه.

**قوله**: مبتداءوخبرٌیعنی قتال فیه کبیرٌ دَ مبتداء خبر دې.

**سوال**: قتال نکره دې اودَ نکره مبتداء واقع کیدل صحیح نه دی.

**جواب**: نکره که چرته موصوفه وی نو مبتداء واقع کیدل صحیح دی دلته فیه، دَ قتال صفت دې تقدیری عبارت دادې قتال کَائِن فیه کبیر (فلااعتراض) بعض حضراتو قتالٌ فیه کبیرٌ: جمله موصوفه ګرځولوسره دَ قول مقوله ګرځولې ده مګو دا صحیح نه ده ځکه چې دَمقوله جمله کیدل ضروری دی او قتال فیه کبیرٌ جمله تامه نه ده دَدې جمله موصوفه واقع کیدل صحیح نه دی.

**قوله**: اَکبرُ، اعظم. **سوال**: اَکبرُ دَمتعدد خبر واقع دې حالانکه اَکبرمفرددې.

**جواب**: اَفعَلُ وزن واحد تثنیه جمع مذکراومؤنث ټولو کښې استعمالیږی.

**قوله**: وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُمِنَ الْقَتْلِ، اَلْفِتْنَةُ اَكبرُ، دَ مبتداء خبردې حالانکه په دې کښې مطابقت نشته دَ دې دوه جوابونه دی دَ یوطرف ته خو مفسرعلام اَلشِرك وئیلوسره اشاره کړې ده یعنی دَ فتنې نه مراد شرك دې لهذا مطابقت موجود دې. دویم جواب اَفعَلُ په وزن کښې مذکراومؤنث دواړه برابردی.

**قوله**: فلااعتدادَبِهَا، ولاثواب عَلَيْهَا، د فلااِعْتِدادَتعلق فی الدنیاسره دې یعنی هغه به نه دَمیراث مستحق وی اونه په مال غنیمت وغیره کښې دَ حصو اودَ ولاَ ثوابَ تعلق آخرت سره دې یعنی داسې سړی ته به په آخرت کښې هیڅ اجر نه ملاویږی.

**قوله**: وَعَلَيْهِ الشَّافعی، په دې دواړو مسئلوکښې امام شافعی رحمه الله سره دَ امام ابوحنیفه رحمه الله اختلاف دې یعنی که دَمرتدکیدونه پس دوباره په اسلام کښې داخل شونودَامام صاحب رحمه الله په نیزدَ ارتداد نه دَ وړاندې اعمالو به اوس هیڅ اجر او ثواب نه ملاویږی. (بیان القرآن ملخصًا)

**داختلاف نتیجه**: يوسړی مونځ اوکړو اوهغه مرتدشو او دغه وخت کښې لاوخت باقی دې چې بيائی اسلام قبول کړو نودَ امام صاحب په نيزپه هغه باندې دوباره مونځ کول لازم دی په خلاف دَامام شافعی رحمه الله.

**قوله**: في تعاطيهما، دې کښې اشاره ده چې دَ خمر اوميسر په ذات کښې ګناه نشته بلکه په کار راوستلو او استعمالولو کښې ګناه ده.

**قوله**: اي مـا ينشـأ عنهمـا من المفاسد، دې کښې اشاره ده چې اِثمهما کښې اضافت، اضافت مصدرالى السبب دَ قبيل نه دې نه چې اضافت الى الفاعل دَ قبيل نه کوم چې غالب دې.

**قوله**: اَىْ مَاقدره، دَدې اضافه مقصد دَ تکرار اعتراض لرې کول دی.

**دفع**: دَ دفع خلاصه داده چې په سابق کښې مذکور يَسْئَلُوْنَكَ مَاذَا يُنفِقُوْنَ کښې ذات نفق سره سوال وو اودلته مقدار منفق سره سوال دې. (فلاتكرارَ)

**قوله**: انفقوا دې کښې اشاره ده چې العَفْوَ دَ فعل محذوف دَ وجی نه منصوب دې.

**سوال**: خُو دَ مبتداء محذوف خبرګرځولو کښې څه نقصان دې اى هوالعَفْوُ.

**جواب**: په دې صورت کښې په سوال اوجواب کښې مطابقت نه پاتې کيږی ځکه چې سوال جمله فعليه دې او جواب جمله اسميه کيږی اوس دواړه جملې فعليه شوې.

**قوله**: كَمَا يُبَيِّنُ لكم، دې کښې اشاره ده چې كذلك کښې كاف فعل مؤخر يُبَيِّنُ دَ مصدر محذوف صفت کيدو دَ وجی نه محلاً منصوب دې اى تبييناً مثل هذا التبيين.

**[اياتونه: ۲۲۰ - ۲۲۱]**

{وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَى} وَمَا يَلْقَوْنَهُ مِنَ الْحَرَجِ فِي شَأْنِهِمْ فَإِنْ وَاكَلُوهُمْ يَأْثَمُوا وَإِنْ عَزَلُوا مَا لَهُمْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَصَنَعُوا لَهُمْ طَعَامًا وَحْدَهُمْ فَحَرَج {قُلْ إِصْلَاحٌ لَهُمْ} فِي اموالهم بتنميتها ومداخلتكم {خَيْرٌ} مِنْ تَرْكِ ذَلِكَ {وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ} أَيْ تخلِطوا نَفَقَتَكُمْ بِنَفَقَتِهِمْ {فَإِخْوَانُكُمْ} أَيْ فَهُمْ إِخْوَانُكُمْ فِي الدِّين وَمِنْ شأن الْأَخ أَنْ يُخَالِط أَخَاهُ أَيْ فَلَكُمْ ذَلِكَ {وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ} لِأَمْوَالِهِمْ بِمُخَالَطَتِهِ {مِنَ الْمُصْلِحِ} بِهَا فَيُجَازِي كُلًّا مِنْهُمَا {وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ} لَضَيَّقَ عَلَيْكُمْ بِتَحْرِيمِ الْمُخَالَطَة {إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ} غَالِب عَلَى أَمْره {حَكِيمٌ} فِي صُنْعه {وَلَا تَنْكِحُوا} تَتَزَوَّجُوا أَيُّهَا الْمُسْلِمُونَ {الْمُشْرِكَاتِ} أَيْ الْكَافِرَات {حَتَّى يُؤْمِنَّ وَلَأَمَةٌ مُؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكَةٍ} حُرَّة لِأَنَّ سَبَب نُزُولهَا الْعَيْب عَلَى مَنْ تَزَوَّجَ أَمَة وَتَرْغِيبه فِي نِكَاح حُرَّة مُشْرِكَة {وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ} لِجَمَالِهَا وَمَالهَا وَهَذَا مَخْصُوص بِغَيْرِ الْكِتَابِيَّات بِآيَةِ {وَالْمُحْصَنَات مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَاب} {وَلَا تُنْكِحُوا} تُزَوِّجُوا {الْمُشْرِكِينَ} أَيْ الْكُفَّار الْمُؤْمِنَات {حَتَّى يُؤْمِنُوا وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ

مُشْرِك وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ} لِمَالِهِ وَجَمَاله {أُولَٰئِكَ} أيْ أَهْل الشِّرْك {يَدْعُونَ إِلَى النَّار} بِدُعَائِهِمْ إلَي الْفِعْل الْمُوجِب لَهَا فَلَا تَلِيق مُنَاكَحَتهمْ {وَاللَّهُ يَدْعُو} عَلَي لِسَان رُسُله {إِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ} أيْ الْعَمَل الْمُوجِب لَهُمَا {بِإِذْنِهِ} بِإِرَادَتِهِ فَتَجِب إجَابَته بِتَزْوِيجِ أَوْلِيَائِهِ {وَيُبَيِّنُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ} يتعظون

**ترجمه**: د يتيمانانو اودَهغوى په معامله كښې راتلونكى حرج باره كښې تاسونه پوښتنه كوى كه چرې هغوى سره په يوځائى خوراك كوى نو گناهگاركيږى كه دَهغوى مالونه دَخپلو مالونونه جداكوى او ځان له دَهغوى خوراك تياره وى نودا هم گرانه ده. تاسو هغوى ته اووايئ چې دَهغوى ښيگړه دَهغوى په مال كښې زياتوالې او ستاسو يوځائى كيدل دهغوئ د پريخودو نه بهتردى چې كه چرې تاسو دَهغوى خرچې خپلې خرچې سره يوځائى كړئ نوهغوى ستاسو رونړه دى يعنى دينى رونړه دى اودَ رور دا شان كيدل پكاردى چې خپل رور دې ځان سره شامل كړى لهذا دا ستاسودَپاره جائزدى. الله تعالى دَ دغه يتيمانو مال خپل مال سره يوځائى كولوسره بدخواهى اوخيرخواهى كونكى (ښه) پيژنى لهذا دغه دوارو ته به بدله وركوى. اوكه چرې الله تعالى غوښتل نو شركت به ئې حرام گرځولوسره تاسو په سختئى كښې اچولئ. الله تعالى په خپل حكم كښې غالب اوخپل صنعت كښې باحكمت دې او اې مسلمانانو تاسو مشركانو ښځو يعنى كافرانو ښځوسره نكاح مه كوئى ترهغه وخته پورې چې ايمان راورى اويقيناً موَمنه وينځه دَ آزادې مشركې ښځې نه بهترده. ځكه چې (دَخلقو) په دغه سرې باندې گوتې اوچتول چاچې مؤمنې وينځې سره نكاح اوكړه او آزادې مشركې ښځې سره نكاح كښې رغبت كول دَدې آيت دَ نزول سبب دې سره دَدې چې (مشركه ښځه) تاسو ته دَهغې دَ مال اوحسن دَ وجې نه ښه معلوميږى او (نهى عن نكاح المشركات) مخصوص دې غيركتابيات سره دَ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اوتوا الكتاب دَ وجې نه اومشركانو (يعنى) كافرانوسره دَ مؤمنانوښځو نكاح مه كوئى ترهغه وخت چې دغه كافر ايمان راورى اويقيناً مؤمن غلام دَمشرك (آزاد) نه بهتردې سره دَدې چې هغه تاسو ته دَهغه دَ مال اوجمال دَ وجې نه ښه معلوميږى اودا مشركان دَ دوزخ دَ اور دعوت وركوى دَهغه اعمالو طرف ته دعوت وركوى چې دَدوزخ اور واجب كونكى دى. لهذا هغوى سره نكاح كول صحيح نه دى اوالله تعالى دَخپل رسول ﷺ په ژبه مباركه دَ جنت اومغفرت طرف ته په خپله اراده سره رابلى يعنى دَ داسې عمل طرف ته كوم چې دَ دغه دوارو دَپاره موجب دې لهذا دَهغه حكم قبلول واجب دى دَهغه اولياؤ(يعنى) مسلمانانوسره په نكاح كولو سره اوهغه خپل آياتونه دَ خلقو دَپاره بيانوى دې دَپاره چې خلق نصيحت حاصل كړى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: وَمَا يَلْقُوْلُهٗ دې كښې اشاره ده چې عبارت په حذف د مضاف سره دې ځكه چې سوال

دَ حال نه كيږي نه چې دَ ذات نه.

**قوله:** وَاكُلُوْهُمْ، اَكْلُوْ كښې يولغت همزه په واؤ سره بدلول واَكْلُوْا هم دې يعنې په يوځائې خوراك ښناك كول.

**قوله:** في اموالهم، دې كښې اشاره ده چې مالي اصلاح مراد ده نه چې غيرمالي، دې دَپاره چې جواب دَ سوال مطابق شي بل دَدې قرينه دَالله تعالى قول وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ هم دې.

**قوله:** مِن تركِ ذلك، دې كښې حذف د مفضل عليه طرف ته اشاره ده.

**قوله:** فَهُمْ اِخْوَانُكُمْ، په دې حذف كښې دې طرف ته اشاره ده چې فَاِخْوَانُكُمْ جزاء شرط ده اودَ جزاء جمله كيدل ضروري ځكه چې ددې هُمْ مبتداء محذوف منل ضروري دی.

**قوله:** اي فَلَكُمْ ذلِكَ دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال:** وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ شرط دې فَاِخْوَانُكُمْ دَ دې جزاء ده مګر دَ جزاء په شرط باندې ترتب صحيح نه دې ځكه چې شرط اوجزاء كښې هيڅ ربط نشته دې.

**جواب:** اصل جزاء محذوف دې دَ كوم طرف ته چې مفسرعلام فَلَكُمْ ذلك وئيلوسره اشاره كړې ده چې سبب جزاء ئې دَ جزاء قائم مقام كړې ده.

**[اياتونه: ۲۲۲-۲۲۵]**

{وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ} أَيِ الْحَيْض أَوْ مَكَانه مَاذَا يَفْعَل بِالنِّسَاءِ فِيهِ {قُلْ هُوَ أَذًى} قَذَر أَوْ مَحَلّه {فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ} اُتْرُكُوا وَطْأَهُنَّ {فِي الْمَحِيضِ} أَيْ وَقْته أَوْ مَكَانه {وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ} بِالْجِمَاعِ {حَتَّى يَطْهُرْنَ} بِسُكُونِ الطَّاء وَتَشْدِيدهَا وَالْهَاء وَفِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الطَّاء أَيْ يَغْتَسِلْنَ بَعْد انْقِطَاعه {فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ} بِالْجِمَاعِ {مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ} بِتَجَنُّبِهِ فِي الْحَيْض وَهُوَ الْقُبُل وَلَا تَعْدُوهُ إِلَى غَيْره {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ} يُثِيب وَيُكْرِم {التَّوَّابِينَ} مِنَ الذُّنُوب {وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ} مِنَ الْأَقْذَار {نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ} أَيْ مَحَلّ زَرْعكُمْ الْوَلَد {فَأْتُوا حَرْثَكُمْ} أَيْ مَحَلّه وَهُوَ الْقُبُل {أَنَّى} كَيْفَ {شِئْتُمْ} مِنْ قِيَام وَقُعُود وَاضْطِجَاع وَإِقْبَال وَإِدْبَار وَنَزَلَ رَدًّا لِقَوْلِ الْيَهُود مَنْ أَتَى امْرَأَته فِي قُبُلهَا أَيْ مِنْ جِهَة دُبُرهَا جَاءَ الْوَلَد أَحْوَل {وَقَدِّمُوا لِأَنْفُسِكُمْ} الْعَمَل الصَّالِح كَالتَّسْمِيَةِ عِنْد الْجِمَاع {وَاتَّقُوا اللَّهَ} فِي أَمْره وَنَهْيه {وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ مُلَاقُوهُ} بِالْبَعْثِ فَيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ {وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ} الَّذِينَ اتَّقَوْهُ بِالْجَنَّةِ {وَلَا تَجْعَلُوا اللَّهَ} أَيِ الْحَلِف بِهِ {عُرْضَةً} عِلَّة مَانِعَة {لِأَيْمَانِكُمْ} أَيْ نَصْبًا لَهَا بِأَنْ تُكْثِرُوا الْحَلِف بِهِ {أَنْ} لَا {تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا} فَتُكْرَه الْيَمِين عَلَى ذَلِكَ وَيُسَنّ فِيهِ الْحِنْث وَيُكَفِّر بِخِلَافِهَا عَلَى فِعْل الْبِرّ وَنَحْوه فَهِيَ طَاعَة {وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ} الْمَعْنَى لَا تَمْتَنِعُوا مِنْ فِعْل مَا ذُكِرَ مِنَ الْبِرّ وَنَحْوه إِذَا حَلَفْتُمْ عَلَيْهِ بَلْ ائْتُوهُ وَكَفِّرُوا لِأَنَّ سَبَب نُزُولهَا الِامْتِنَاع مِنْ ذَلِكَ {وَاللَّهُ سَمِيعٌ} لِأَقْوَالِكُمْ {عَلِيمٌ} بِأَحْوَالِكُمْ {لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ}

الْكَائِن {فِي أَيْمَانِكُمْ} وَهُوَ مَا يَسْبِق إِلَيْهِ اللِّسَان مِنْ غَيْر قَصْد الْحَلِف نَحْو وَاَللَّه وَبَلَى وَاَللَّه فَلَا إِثْم عَلَيْهِ وَلَا كَفَّارَة {وَلَكِنْ يُؤَاخِذكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبكُمْ} أَيْ قَصَدَتْهُ مِنْ الْأَيْمَان إِذَا حَنِثْتُمْ {وَاَللَّه غَفُور} لِمَا كَانَ مِنْ اللَّغْو {حَلِيم} بِتَأْخِيرِ الْعُقُوبَة عَنْ مُسْتَحِقّهَا

**ترجمه**: خلق تاسو نه دَ حيض (دَ حکم) باره کښې پوښتنه کوي يعني دَ حيض يا حائضه باره کښې چې په دې حالت کښې ښځوسره د(کورنی) تعلق څه حکم دې؟ تاسو ورته اووايئ چې حيض ګندګی ده يا دَ ګندګئ محل دې لهذا ښځې دَ حيض په حالت کښې يعني کوروالي يا محل حيض پريږدئ او دَ جماع دَپاره هغوی ته مه نيزدې کيږی تردې چې هغه پاکې اوصفا شي (يَطَّهِرن) دَ طاء سکون او تشديدسره اودَهاء تشديدسره دې او په دې کښې په اصل کښې دَتاء په طاء کښې ادغام دې يعني دَحيض اودريدونه پس غسل اوکړی بياچې کله پاکې صفا شی نوهغوی له د ورتللو (کوروالی) اجازت دې په هغه مقام کښې چرته چې الله تعالی تاسو په حيض کښې دَ وطی کولونه دَ اجتناب کولو حکم درکړې دې او هغه قُبُل دې اودَ قُبُل نه غير قبل (دُبُر) طرف ته تجاوز مه کوئی او الله تعالی دَ ګناهونونه توبه کونکوسره محبت کوی يعنی هغوی ته ثواب ورکوی اوقدرئی کوی اودګندګئی نه پاک اوصفا اوسيدونکی خوښه وی. ستاسو ښځې ستاسودَپاره پټی دی يعنی دَ بچودَحاصلولودَپاره ستاسودپاره په شان دَ پټی دی نوتاسو په خپل پټی يعنی دَ کر په ځائی کښې څنګه چې غوارئی راځئی په ولاړه په ناسته او په ملاسته اودَمخې طرف نه اويا دَ شاه طرف نه اوهغه محل دَ کرکيلې قُبُل دې. (دا آيت) دَ يهودودَدې قول دَ ردکولودَپاره نازل شوې کوم سړی چې خپلې ښځې سره دَهغې قبل کښې دَ شاه طرف نه وطی اوکړو نودَهغه به کاڼړې بچې پيداکيږی اودَخپل ځان دَ پاره نيك اعمال وړاندې اوليګئی (يعنی دَ خپل مستقبل فکر کوئی) مثلاً دَ جماع په وخت بسم الله لوستل وغيره اودَالله تعالی نه دَهغه په امر اونهی کښې ويريږئی او ښه پوهه شئی چې ستاسو به پس دَ مرګ نه دَ راژوندی کيدلونه روستو هغه سره ملاويدل وی نوهغه به ستاسو دَاعمالو تاسوته جزاء درکوی او (اې نبی ﷺ) مؤمنانوته خوشخبری ورکړه چې دَالله تعالی نه ويريږی دَ جنت زيری واوروه او تاسو دَالله تعالی (نوم) دَ قسمونو خوړلودَپاره نشانه مه جوړوئی چې دَهغه په کثرت سره قسمونه خوړئی چې دَ نيکئ تقوی او دَ خلقو په مينځ کښې دَ اصلاح کارونه به نه کوئی او په داسې خبرو باندې قسمونه خوړل مکروه دی اودا قسم قسمونه ماتول او کفاره اداکول سنت دی دَدې په خلاف دَ نيکئ کولو قسم خوړل طاعت دې. خلاصه دا چې دَ داسې قسم مذکوره کارونودکولونه منع کيږئی مه کله چې تاسو دَهغې (دَنه کولو) قسم خوړلې وی بلکه هغه کاراوکړئی اودَ (قسم) کفاره اداکړئی څکه چې دَدې (آيت) دَ نزول سبب دَ نيك کار نه منع

کیدل وو او الله تعالی ستاسو خبرې اوریدونکی او ستاسو په احوال باندې پوهیدونکې دې. الله تعالی ستاسو لغو (بې مقصد) قسمونو باندې مواخذه نه کوی او هغه داسې قسمونه دی چې بغیر د ارادې نه ستاسو د ژبونه اوځی لکه لاوالله، بلی والله نو په دې کښې نه ګناه شته او نه کفاره، مګر کوم قسمونه چې تاسو د ربښتونی زړه نه خورئی په هغې به تاسو ضرور راګیره وی. یعنی کوم قسمونه چې تاسو په یومقصد خوړلی دی کله چې تاسو حانث شئ، الله تعالی ستاسو لغوقسمونه معاف کونکې دې او د سزا د مستحق سزا روستوکولو د وجې نه بوج اوړونکې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: المَحِیْض، ظرف زمان (د حیض وخت) ظرف مکان (مقام حیض) مصدر (حیض راتلل یا په معنی د حیض، هغه فاسد وینه چې په مخصوص زمانه کښې او مخصوص حالت کښې د ځوانې صحتمندې غیرحامله ښځې د رحم نه اوځی) (لغات القرآن) المحیض هوالحیض، وهومصدرٌ یقال حضتِ المرأةُ حَیْضًا ومحیضًا فهی حَایِضٌ وحَائضةٌ. (فتح القدیر شوکانی)

**قوله**: الحیض اومکانه، دا د حیض د دوو تفسیرونو طرف ته اشاره ده، الحیض ونیلو سره اشاره او کړه چې محیض مصدر میمی دې د دې معنی ده سیلان الدم.

**قوله**: قذرٌ اومحله، دا د اذٰی دوه تفسیرونه دی اول تفسیر، د محیض د اول تفسیر په اعتبار سره دې او دویم د ثانی په اعتبار سره دې او په دې کښې لف اونشر مرتب دې.

**قوله**: بالجماع، دې کښې اشاره ده چې حالت حیض کښې جماع ممنوع ده نه چې مطلقًا قربان او میل ملاپ.

**قوله**: ویثیبُ ویکرمُ، دا د یحبُّ تفسیر باللازم دې ځکه چې د حُبّ معنی د زړه تعلق دې کوم چې د الله تعالی د شان سره مناسب نه دې.

**قوله**: وَاتَّقُوا اللهَ د دې عطف فأتوا حَرثکُمْ باندې دې او دا اشاره د عام بعد الخاص د قبیل نه ده.

**قوله**: بَشِّرْ، د دې عطف قُلْ هُوَ اَذًی باندې دې.

**قوله**: اَلَّذِیْنَ اتَّقَوْهُ المؤمنین د الذین اتقوا په قید سره مقید کولو سره ئې یو اشکال لرې کړې دې.

**اشکال**: دا دې چې سابق نه خطاب مؤمنانو ته راروان دې نو دلته بَشِّرْهُمْ وئیل کافی وو یعنی ضمیر کافی وو په اسم ظاهر راوړلو کښې څه مصلحت دې؟

**جواب**: سابق کښې مخاطب مطلق مؤمنان وو او دلته مؤمنان متقیان مراد دی لهذا ثانی غیرسابق دې په دې وجه د اسم ظاهر د صراحت کولو ضرورت پیښ شو.

**قوله**: عُرْضَةً، نشانه، مقصد چل هیله، لَاتَجْعَلُوا اللهَ عُرْضَةً لِأَيْمَانِكُمْ (الله تعالى دَ خپلو قسمونو دپاره بهانه مه جوړه وئی) په دې صورت کښې عرضة معنی بهانه ده دویم مطلب داکیدې شی چې دَمطلب ویستلو دپاره په خبره خبره قسمونه مه خورئی، ځکه چې په دې طریقه باندې دَالله تعالى دَعزت نوم به ستاسو دَ قسمونو نشانه جوړشی دَدې تفسیر په صورت کښې عُرضَة ترجمه نشانه شی مطلب دا چې په آیت مبارك کښې دَدواړو مطلبونو گنجائش شته. (لغات القرآن)

**قوله**: نُصُبًا، دا دَ نَصَبٌ جمع ده په معنی منصوب، نصب کړې شوې څیز، اى النصوب للرماة دَ غشو ویشتونکودَ پاره دَ یوڅیز نښه لګولوته وئیلې شی. جَعَلْتُهُ عُرضَةً للبيع، ما دا دَخرڅولودَپاره وړاندې کړو.

**قوله**: لِأَنَّ سبب نزولها، داد اَن لاتَبَرُّوا وتَتَّقُوا د حاصل معنى بيان دې بعض وئیلی دی چې لامحذوف نه منل بهتردی.

**قوله**: الكائن، دې کښې اشاره ده چې ظرف يعنی فى أيْمَانِكُمْ الكائن مقدر متعلق کیدو سره دَ اللغو صفت دې.

**قوله**: إذَاحَنِثْتُمْ دَدې عبارت دَ اضافه مقصد يو اعتراض لرې کول دی.

**اعتراض**: دادې چې قسم بالذات موجب المؤاخذه نه دې لهذا مطلقًا يمين باندې دَ مؤاخذه حکم لګولو څه مطلب دې؟

**جواب**: دَامام شافعی رحمه الله په نیز سره دَدې چې هم يمين موجب كفاره دې مګر دَ احنافو په نیز حانث کیدل موجب کفاره دی یعنی دَ احنافو په نیزيمين موجب كفاره نه دې بلکه حانث کیدل موجب کفاره دی.

**[اياتوله: ۲۲۶ - ۲۲۸]**

{لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ} أيْ يَحْلِفُونَ أنْ لا يُجَامِعُوهُنَّ {تَرَبُّصُ} انتِظَار {أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ فَإِنْ فَاءُوا} رَجَعُوا فِيهَا أوْ بَعْدَهَا عَنِ الْيَمِينِ اِلَي الْوَطْءِ {فَإِنَّ اللهَ غَفُورٌ} لَهُمْ مَا أتَوْهُ مِنْ ضَرَرِ الْمَرْأَةِ بِالْحَلِفِ {رَحِيمٌ} بِهِمْ {وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ} أيْ عَلَيْهِ بِأنْ لا يَفِيئُوا فَلْيُوقِعُوهُ {فَإِنَّ اللهَ سَمِيعٌ} لِقَوْلِهِمْ {عَلِيمٌ} بِعَزْمِهِمْ الْمَعْنَي لَيْسَ لَهُمْ بَعْدَ تَرَبُّصِ مَا ذُكِرَ إلَّا الْفَيْئَةُ أوْ الطَّلَاقُ {وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ} اي لينتظرن {بِأَنْفُسِهِنَّ} عَنِ النِّكَاحِ {ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ} تَمْضِي مِنْ حِينِ الطَّلَاقِ جَمْعُ قَرْءٍ بِفَتْحِ الْقَافِ وَهُوَ الطُّهْرُ أوْ الْحَيْضُ قَوْلَانِ وَهَذَا فِي الْمَدْخُولِ بهن اما غيرهن فلا عدة عليهم لِقَوْلِهِ {فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ} وَفِي غَيْرِ الْآيِسَةِ وَالصَّغِيرَةِ فَعِدَّتُهنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَالْحَوَامِلِ فَعِدَّتُهنَّ أنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ كَمَا فِي سُورَةِ الطَّلَاقِ وَالْإِمَاءِ فَعِدَّتُهنَّ قَرْءَانِ بِالسُّنَّةِ {وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ} مِنَ الْوَلَدِ وَالْحَيْضِ {إنْ

كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَبُعُولَتُهُنَّ} أَزْوَاجهنّ {أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ} بمراجعتهن ولو ابين {فِي ذَٰلِكَ} أيْ فِي زَمَن التَّرَبُّص {إِنْ أَرَادُوا إِصْلَاحًا} بَيْنهمَا لِإِضْرَارِ الْمَرْأَة وَهُوَ تَحْرِيض عَلَي قَصْده لَا شَرْط لِجَوَازِ الرَّجْعَة وَهَذَا فِي الطَّلَاق الرَّجْعِيّ وَأَحَقّ لَا تَفْضِيل فِيهِ إِذْ لو حَقّ لِغَيْرِهِمْ مِنْ نِكَاحهنّ فِي الْعِدَّة {وَلَهُنَّ} عَلَي الْأَزْوَاج {مِثْلُ الَّذِي} لَهُمْ {عَلَيْهِنَّ} مِنْ الْحُقُوق {بِالْمَعْرُوفِ} شَرْعًا مِنْ حُسْن الْعِشْرَة وَتَرْك الْإِضْرَار وَنَحْو ذَلِكَ {وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ} فَضِيلَة فِي الْحَقّ مِنْ وُجُوب طَاعَتهنّ لَهُمْ لِمَا سَاقُوهُ مِنْ الْمَهْر وَالْإِنْفَاق {وَاللَّهُ عَزِيزٌ} فِي مُلْكه {حَكِيمٌ} فِيمَا دَبَّرَهُ لِخَلْقِهِ

ترجمه: او کوم خلق چې د خپلو ښځو سره د ازدواجي تعلق نه ساتلو نه قسم اوکړي نو دوئ دپاره څلور میاشتې دانتظار موده ده، پس که په دې موده کښې یا ددې نه پس په وطی کولو سره د قسم نه رجوع اوکړي نو الله تعالی ددې ښځې دنقصان معاف کوونکې دې کوم چې دې ددې قسم په ذریعه رسول دې او په دې باندې رحم کوونکې دې او که دطلاق پخه اراده ئې وی او په دې وجه رجوع نه کوی نو بیا دې ورته طلاق ورکړي. الله تعالی ددوئ خبره آوریدونکې دې او ددوئ په اراده پوهه دې. مطلب دا چې د مذکوره (مودې) د انتظار نه پس ددوئ دپاره صرف درجوع کولو یا دطلاق ورکولو صورت دې. او مطلقه ښځې به خپل ځان د طلاق د وخت نه دریو حیضو پورې د نکاح کولو ځان بچ ساتی (قروء) د قرء جمع ده، د قاف فتحه سره، ددې معنی ده طهر یا حیض. دا دوه اقواله دی اودا حکم د مدخول بها ښځې دې لیکن که غیر مدخول بها وی نو د هغې دپاره هیڅ موده نشته دې. دالله تعالی د قول فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا په وجه سره (که تاسو وطی نه وی کړې نو په هغوئ باندې ستاسو دپاره هیڅ عدت نشته دې) او دا حکم د آئسه (یعنی) د حیض نه نا امیدې او صغیرې نه علاوه څکه چې دهغوئ عدت درې میاشتې دې او حامله ښځې، نو دهغوئ عدت وضع حمل دې، لکه څنکه چې سورة طلاق کښې دی او پاتې شوې ونیځې نو د هغوئ عدت دوه قروء (حیض یا طهر) دی د سنتو مطابق، اوددوئ دپاره حلال نه دی چې الله تعالی ددوئ په رحم کښې کوم بچې یا حیض پیدا کړې دې هغه پټ کړی، که دوئ په الله تعالی باندې او په ورځ د آخرت باندې ایمان لری او ددوئ خاوندان د انتظار په دې موده کښې دوئ ته د پورا حق ادا کولو حقدار دی اګر چې ښځې انکار اوکړي، که ددوئ په خپلو کښې داصلاح اراده وی ښځې ته د نقصان نه رسولو، او دا کلام (إِنْ أَرَادُوا إِصْلَاحًا) د اصلاح د رضامندئ دپاره دې، د رجعت د جواز دپاره شرط نه دې اودا (حق د رجعت) دطلاق رجعی په صورت کښې دې او لفظ (احق) کښې د تفصیل دوه معنا ګانې نه دی، په دې وجه ددوئ د خاوندانو نه علاوه بل چا ته دوئ سره د نکاح کولو حق نشته دې، اود ښځو هم په سړو باندې هم هغه شان حقوق دی لکه څنګه چې دسړو حقوق په ښځو باندې دی د شرعی دستور

مطابق، حسن سلوک، حسن معاشرت سره او نقصان رسول دې ترك كړي، البته سړو ته په حقوقو كښې ښځو باندې فضيلت حاصل دې. اور ښځو باندې د اطاعت وجوب دې، ځکه چې سړو ددوئ د مهر او نان نفقې ذمه داري اخستې ده، او الله تعالى زبردست دې خپل ملك كښې او حكمت والا دې په هغه ځيزونو كښې كوم چې هغه خپل مخلوق دپاره په طور د تدبير اختيار كړي دي.

**قوله**: يؤلون: د (ايلاءٌ) جمع مذكر غائب، څوك چې ښځو سره د صحبت نه كولو نه قسم اوكړي. الايلاء في اللغة اليمين والايلاء من المراة ان يقول الله والله لا اقربك اربعة اشهر فصاعدا.

**قوله**: ان لايجامعهن: دا عبارت ددې سوال جواب دې چې حلف په فعل سره كيږي ذات سره نه. دلته نسائهم باندې حلف دې او دا په ذات باندې دې.

جواب: عبارت د حذف مضاف سره دې، اى يحلفون ان لا يجامعهن، حذف د مضاف مقصد مالبغه دې، لكه څنګه چې په حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ كښې دي.

**قوله**: تَرَبُّص أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ: بتركيب اضافى مبتداء مؤخر، من نسائهم خبر مقدم.

سوال: د يؤلون صله على استعماليږي ليكن دلته من استعمال شوې دې.

جواب: د ايلاء بُعد معنى لره متضمن كيدو په وجه سره، من صله وركول درست دي، چونكه ايلاء كولو والا هم خپلې بى بى نه لرې اوسيږي لهذا ايلاء بمعنى بعد درست ده.

**قوله**: عليه: سوال: عليه مقدر منلو كښې څه فائده ده؟

جواب: دې خبرې طرف ته اشاره كول دي چې الطلاق د حذف جر په وجه سره منصوب دې، تقدير د عبارت دادې چې ان عزموا على الطلاق.

**قوله**: بفتح القاف:

سوال: قرء فتحه د قاف سره ولې خاص كړې شوې ده حالانكه ضمه د قاف هم په دې كښې يو لغت دې.

جواب: هر كله جمع قروء وى نو ددې واحد قرء بفتح القاف وى، چونكه جمع مذكور قروء ده ځكه دواحد د قاف په فتحه سره كيدل ضروري دي، كه ضمه د قاف سره وى نو ددې جمع اقراء راځي لكه د قفل جمع اقفال راځي.

**قوله**: هو الطهر والحيض: اول د امام شافعى رحمة الله عليه دې، دويم د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه دې او دريم د امام مالك رحمة الله عليه دې.

**قوله**: ان كن يؤمن بالله الخ: دا شرط دې او ددې جزاء فلايجترئن على ذلك، محذوف دې.

**قوله** بعولتهن: ددې ښځو خاوندان. بعولة د بعل جمع ده لکه څنګه چې فحولة د فحل جمع ده، تا زائده او امثله سماعی دی.

**قوله** احق لاتفضيل فيه: ددې عبارت ذِ اضافه کولو مقصد د یو اعتراض جواب دی اعتراض احق اسم تفضیل دی او اسم تفضیل د مفضل علیه تقاضا کوی حالانکه دلته مفضل علیه ممکن نه دې ځکه چې خاوند نه علاوه بل چاته د رجعت حق حاصل نه دې. د اعتراض ما حصل دادې چې احق اسم تفضیل نه معلومیږی چې خاوند د رجعت زیات حق لری او غیر خاوند کم حقدار دې. حالانکه د خاوند غیر دته د رجعت د حق سوال نشته دې

جواب: اسم تفضیل په معنی د اسم فاعل د ه. یعنی احق بمعنی حقیق ده. لهذا هیڅ اعتراض نشته دې، هم دا مطلب د مفسر علام قول اذلاحق لغيرهم في نكاحهن في العدة، نو ګویا چې دا د الشتاء ابرد من الصیف د قبیل نه دې.

**قوله** لما ساقوامن المهروالانفاق: د اثبوت د درجې د علت دې ځکه چې لذت مباشر او طلب ولد کښې دواړه برابر شریك دی او امور خانه داری په نظام کښې هم دواړه برابر دی، د خاوند په ذمه خارجی امور دی او د ښځې په ذمه داخلی، او مزید دا چې دخاوند په ذمه د نان نفقې اور مهر ذمه داری هم ده، ددې اضافی ذمه داری په وجه سړی ته په ښځه باندې ګویا چې یو فضیلت حاصل دې.

**[ایاتونه: ۲۲۹ - ۲۳۱]**

{الطَّلَاقُ} أَيِ التَّطْلِيقُ الَّذِي يُرَاجِعُ بَعْده {مَرَّتَانِ} أَيِ اثْنَتَانِ {فَإِمْسَاكٌ} أَيْ فَعَلَيْكُمْ إِمْسَاكهنَّ بَعْده بِأَنْ تُرَاجِعُوهُنَّ {بِمَعْرُوفٍ} مِنْ غَيْر ضِرَار {أَوْ تَسْرِيحٌ} أَيْ إِرْسَالهنَّ {بِإِحْسَانٍ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ} أَيُّهَا الْأَزْوَاج {أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ} مِنَ الْمُهُور {شَيْئًا} إِذَا طَلَّقْتُمُوهُنَّ {إِلَّا أَنْ يَخَافَا} اي الزوجان {أ} ن {لَا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ} أَيْ أَنْ لَا يَأْتِيَا بِمَا حَدَّهُ لَهُمَا مِنَ الْحُقُوق وَفِي قِرَاءَة يُخَافَا بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ فَأَنْ لَا يُقِيمَا بَدَل اشْتِمَال مِنَ الضَّمِير فِيهِ وَقُرِئَ بالفوقانية في الفعلين {فَإِنْ خِفْتُمْ أ} ن {لا يقيما حدود الله فلا جناح عليهما} {فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ} نَفْسهَا مِنَ الْمَال لِيُطَلِّقهَا أَيْ لَا حَرَج عَلَى الزَّوْج فِي أَخْذه وَلَا الزَّوْجَة فِي بَذْله {تِلْكَ} الْأَحْكَام الْمَذْكُورَة {حدود الله فلا تعتدوها ومن يتعد حدود الله فأولئك هم الظالمون} {فَإِنْ طَلَّقَهَا} الزَّوْج بَعْد الثِّنْتَيْنِ {فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ} بَعْد الطَّلْقَة الثَّالِثَة {حَتَّى تَنْكِحَ} تَتَزَوَّج {زَوْجًا غَيْرَهُ} وَيَطَأهَا كَمَا فِي الْحَدِيث رَوَاهُ الشَّيْخَانِ {فَإِنْ طَلَّقَهَا} أَيْ الزَّوْج الثَّانِي {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا} أَيْ الزَّوْجَة وَالزَّوْج الْأَوَّل {أَنْ يَتَرَاجَعَا} إِلَى النِّكَاح بَعْد انْقِضَاء الْعِدَّة {إِنْ ظَنَّا أَنْ يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ وَتِلْكَ} الْمَذْكُورَات

{حُدُود اللّٰه يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ} يتدبرون {وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ} قَارَبْنَ انْقِضَاء عِدَّتِهِنَّ {فَأَمْسِكُوهُنَّ} بِأَنْ تُرَاجِعُوهُنَّ {بِمَعْرُوفٍ} مِنْ غَيْر ضَرَر {أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ} أُتْرُكُوهُنَّ حَتَّي تَنْقَضِي عِدَّتهنّ {وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ} بِالرَّجْعَةِ {ضِرَارًا} مَفْعُول لِأَجْلِهِ {لِتَعْتَدُوا} عَلَيْهِنَّ بِالْإِلْجَاءِ إلَي الِافْتِدَاء وَالتَّطْلِيق وَتَطْوِيل الْحَبْس {وَمَنْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ} بِتَعْرِيضِهَا إلَي عَذَاب اللّٰه {وَلَا تَتَّخِذُوا آيَات اللّٰه هزوا} مهزوءا بها بمخالفتها {واذكروا نعمت اللّٰه عَلَيْكُمْ} بِالْإِسْلَامِ {وَمَا أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْكِتَاب} الْقُرْآن {وَالْحِكْمَة} مَا فِيهِ مِنَ الْأَحْكَام {يَعِظُكُمْ بِهِ} بِأَنْ تَشْكُرُوهَا بِالْعَمَلِ بِهِ {وَاتَّقُوا اللّٰه وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰه بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ} وَلَا يَخْفَي عَلَيْهِ شَيْء

**ترجمه:** داسې طلاق دَ كوم نه پس چې رجوع كولې شي دوه ځل دې يعنى دوه دى، بياخويا په معروف طريقه باندې ستاسو په ذمه حصارول دى پس دَهغې نه چې ورته رجوع اوكړئى يا په ښه طريقه سره هغه رخصت كول دى بغيردَ نقصان رسولو او اې خاوندانو! ستاسو دَپاره داخبره جائزنه ده كله چې تاسو هغوى ته طلاق وركړئى نوچې كوم مهر تاسو هغوى ته وركړې دې دَهغې نه څه واپس هم واخلئ البته دا صورت دَمستثنى دې چې ښځې اوخاوند ته دَاللّٰه تعالى په حدودكښې دَ قائم نه پاتې كيدو اندیښنه وى چې الله تعالى دَهغوى دَپاره كوم حدود مقرركړى دى هغه به ادا نه كړې شي او يوقراءت كښې (يَخَافَا، يُخَفَا) تاء سره هم لوستلې دې. كه چرې تاسو ته دا ويره وى چې هغه دواړه به دَاللّٰه تعالى په حدود قائم پاتې نه شى نودَهغه دواړو په مينځ كښې معامله فيصله كولو كښې دې ښځه دَخپل نفس مالى معاوضه وركړى دې دَپاره چې خاوند هغې ته طلاق وركړى نو په دې كښې هيڅ بدى نشته يعنى نه دَخاونددَپاره په دغه معاوضه اخستلو كښې څه حرج شته او نه دَښځې دَپاره دَدې په وركولو كښې، دا مذكوره احكام دَاللّٰه تعالى مقرركړې شوى حدوددى دې نه تجاوز مه كوئى اوكوم خلق چې دَاللّٰه تعالى دَ حدود نه تجاوز اوكړى هم هغه خلق ظالمان دى. بيا كه خاوند دَدوو طلاقونه پس طلاق وركړى نودَهغه دَپاره دَدريم طلاق نه پس هغه ښځه حلال نه ده إِلَّا چې هغه بل يوسړى سره نكاح اوكړى اوهغه (دويم خاوند) هغې سره كوروالې اوكړى لكه چې په حديث كښې وارد دى (رواه الشيخان) بيا كه دويم خاوند هغې ته طلاق وركړى نو په ښځه او اول خاوند باندې هيڅ حرج نشته چې دَعدت تيريدونه پس دوباره نكاح اوكړى، كه چرې دواړه داخيال اوكړى چې هغوى به دَاللّٰه تعالى حدود قائم اوساتى. دا مذكوره احكام دَاللّٰه تعالى مقرركړې شوى حدود دى، اللّٰه تعالى دا هغه خلقو دَپاره بيانوى چې پوهه لرى او غور اوفكر كوى. اوچې كله تاسو خپلو ښځوته طلاق وركړئى اوهغوى خپلې مودې ته اورسى يعنى دَهغوى عدت ختميدو ته نيزدې شى نو هغوى ته رجوع كولو سره په ښه طريقه بغيردَ نقصان رسولو هغه حصارې كړئى يا په عزت سره هغه رخصت كړئى يعنى هغه (په خپل حالت باندې) پريږدئى ترهغه وخته پورې چې دَهغې موده

پوره شی اود رجعت په ذریعه د تنګولو دپاره ئې مه حصاره وئی (ضرارًا) مفعول له دې چې هغه په فدیه (د خلع معاهده) یا خلع کولو باندې مجبورول او د حصارولو موده اوږدولو دپاره (مه حصاره وئی) او څوک چې داسې کوی نو هغه په حقیقت کښې هم پخپله په ځان ظلم اوکړو، د الله تعالی عذاب ته ئې ځان وړاندې کولو سره د الله تعالی آیاتونه لوبې توقې مه جوړه وئی یعنی د هغې مخالفت کولو سره هغې پورې توقې مه کوئی او په خپل ځان باندې د الله تعالی نعمت اسلام یاد ساتئی او دا کتاب (یعنی) قرآن او حکمت او په دې کښې چې کوم احکام دی یاد ساتئی کوم چې په تاسو نازل کړې شوی دی هغه تاسو ته د دې نصیحت کوی چې په دې باندې عمل کولو سره د هغه شکر اداکړئی او د الله تعالی نه ویریږئی او ښه پوهه شئی چې الله تعالی د هرې خبرې نه خبر دې د هغه نه هیڅ څیز پټ نه دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: التطلیق الّذِیْ، په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې الطلاق اسم مصدر، د تطلیق مصدر په معنی کښې دې، مطلب دادې چې الطلاق نه د خاوند فعل تطلیق مراد دې ځکه چې فعل طلاق هم متصف بالوحدة والتعدد وی نه چې هغه طلاق کوم چې د مرأة صفت وی د دې تائید او تَسْرِیْحٌ نه هم کیږی ځکه چې تَسْرِیْح هم د خاوند فعل دې.

**قوله**: فَعَلَیْکُمْ په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې اِمْسَاك، مبتداء ده او د دې خبر، فَعَلَیْکُمْ محذوف دې.

**سوال**: اِمْسَاك، نکره دې لهذا د دې مبتداء جوړیدل صحیح نه دی.

**جواب**: د اِمْسَاك صفت، بمعروف دې لهذا نکره چې کله موصوف بالصفت وی نو د هغه مبتداء جوړیدل صحیح وی.

**قوله**: ای اِلْثنتان. **سوال**: مَرَّتَانِ تفسیر اثنتان سره کولو کښې څه فائده ده؟

**جواب**: په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې مَرَّتَانِ سره د دې حقیقی معنی کومه چې تثنیه ده مراد ده. یعنی دوه طلاقونه نه چې مجازی معنی کوم چې تکرار دې. ګویا دا رد دې د هغه خلقو چاچې وئیلی دی چې مَرَّتَانِ دلته د تکرار په معنی کښې دې، د جواب حاصل دادې چې تکرار معنی مجازی ده او تثنیه حقیقی معنی ده او د مجازی معنی نه حقیقی معنی مراد اخستل اولی وی. دوه مجازی معنی مراد اخستونکو مقصد دا خودل دی چې یوځائی باندې دوه طلاقه ورکول صحیح نه دی بلکه په دوو ځلو کښې دوه طلاقونه کیدل پکاردی او کوم خلق چې مرتان د اثنتان (تثنیه) په معنی کښې اخلی د هغوی په نیز په یو لفظ سره دوه طلاقونه ورکول صحیح دی.

**قوله**: بَعْدَ التطليقةِ الثالثةِ په دې كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې بَعْدُ مبنى په ضم دې ځكه چې دَدې مضاف اليه محذوف دې او هغه بَعْدَ الطلقه الثالثةِ دې. لهذا دا اعتراض ختم شو چې دا دَحرف جر دَ وجې نه مجرور كيدل پكاردى.

**قوله**: تَتَزَوَّجُ، دَ تنكح تفسير تتزوج سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه چې تنكح، په معنى د عقدنكاح دى نه چې وطى وى نود سړى طرف ته نسبت به حقيقى وى مګردَ ښځې طرف ته دَ وطى نسبت مجازى وى.

**قوله**: يَطَأهَا په دې كښې په هغه خلقو رددې چې دَ حلاله دَپاره صرف عقدنكاح كافى ګڼړى لكه چې سعيدبن مسيب رحمه الله ځكه چې دا دَ حديث مشهورخلاف دى.

**[اياتونه: ۲۳۲ - ۲۳۵]**

{وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ} انقضت عِدَّتهنّ {فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ} خِطَاب لِلْأَوْلِيَاءِ أَيْ تَمْنَعُوهُنَّ مِنْ {أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ} الْمُطَلِّقِينَ لَهُنَّ لِأَنَّ سَبَب نُزُولهَا أَنَّ أُخْت مَعْقِل بْن يَسَار طَلَّقَهَا زَوْجهَا فَأَرَادَ أَنْ يُرَاجِعهَا فَمَنَعَهَا مَعْقِل بْن يَسَار كَمَا رَوَاهُ الْحَاكِم {إِذَا تَرَاضَوْا} أَيْ الْأَزْوَاج وَالنِّسَاء {بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوفِ} شَرْعًا {ذَلِكَ} النَّهْي عَنْ الْعَضْل {يُوعَظُ بِهِ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} لِأَنَّهُ الْمُنْتَفِع بِهِ {ذَلِكُمْ} أَيْ تَرْك الْعَضْل {أَزْكَى} خَيْر {لَكُمْ وَأَطْهَرُ} لَكُمْ وَلَهُمْ لِمَا يُخْشَى عَلَى الزَّوْجَيْنِ مِنْ الرِّيبَة بِسَبَبِ الْعَلَاقَة بَيْنهمَا {وَاللَّهُ يَعْلَمُ} مَا فِيهِ الْمَصْلَحَة {وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ} ذَلِكَ فَاتَّبِعُوا أَوَامِره {وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ} أَيْ لِيُرْضِعْنَ {أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ} عَامَيْنِ {كَامِلَيْنِ} صِفَة مُؤَكِّدَة ذَلِكَ {لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ} وَلَا زِيَادَة عَلَيْهِ {وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ} أَيْ الْأَب {رِزْقُهُنَّ} إِطْعَام الْوَالِدَات {وَكِسْوَتُهُنَّ} عَلَى الْإِرْضَاع إِذَا كُنَّ مُطَلَّقَات {بِالْمَعْرُوفِ} بِقَدْرِ طَاقَته {لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا} طَاقَتهَا {لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا} أَيْ بِسَبَبِهِ بِأَنْ تُكْرَه عَلَى إِرْضَاعه إِذَا امْتَنَعَتْ {وَلَا} يُضَارّ {مَوْلُودٌ لَهُ بِوَلَدِهِ} أَيْ بِسَبَبِهِ بِأَنْ يُكَلَّف فَوْق طَاقَته وَإِضَافَة الْوَلَد إِلَى كُلّ مِنْهُمَا فِي الْمَوْضِعَيْنِ لِلِاسْتِعْطَافِ {وَعَلَى الْوَارِثِ} أَيْ وَارِث الْأَب وَهُوَ الصَّبِيّ أَيْ عَلَى وَلِيّه فِي مَاله {مِثْلُ ذَلِكَ} الَّذِي عَلَى الْأَب لِلْوَالِدَةِ مِنْ الرِّزْق وَالْكِسْوَة {فَإِنْ أَرَادَا} أَيْ الْوَالِدَانِ {فِصَالًا} فِطَامًا لَهُ قَبْل الْحَوْلَيْنِ صَادِرًا {عَنْ تَرَاضٍ} اتِّفَاق {مِنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ} بَيْنهمَا لِتَظْهَر مَصْلَحَة الصَّبِيّ فِيهِ {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا} فِي ذَلِكَ {وَإِنْ أَرَدْتُمْ} خِطَاب لِلْآبَاءِ {أَنْ تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ} مَرَاضِع غَيْر الْوَالِدَات {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ} فِيهِ {إِذَا سَلَّمْتُمْ} إِلَيْهِنَّ {مَا آتَيْتُمْ} أَيْ أَرَدْتُمْ إِيتَاءَهُ لَهُنَّ مِنْ الْأُجْرَة {بِالْمَعْرُوفِ} بِالْجَمِيلِ كَطِيبِ النَّفْس {وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ} لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْء مِنْهُ {وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ} يَمُوتُونَ {مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ} يَتْرُكُونَ {أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ} أَيْ لِيَتَرَبَّصْنَ {بِأَنْفُسِهِنَّ} بَعْدهمْ عَنْ النِّكَاح {أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا} مِنْ اللَّيَالِي وَهَذَا فِي غَيْر الْحَوَامِل أَمَّا الْحَوَامِل فَعِدَّتهنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلهنَّ بِآيَةِ الطَّلَاق وَالْأَمَة عَلَى النِّصْف مِنْ ذَلِكَ بِالسُّنَّةِ {فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ}

انقضت مدة تربصهن {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ} أيها الأولياء {فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ} من التزين والتعرض للخطاب {بِالْمَعْرُوفِ} شرعا {وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ} عالم بباطنه كظاهره {وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ} لوحتم {بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ} المتوفي عنهن أزواجهن في العدة كقول الإنسان مثلا إنك لجميلة ومن يجد مثلك ورب راغب فيك {أَوْ أَكْنَنْتُمْ} أضمرتم {فِي أَنْفُسِكُمْ} من قصد نكاحهن {عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ} بالخطبة ولا تصبرون عنهن فأباح لكم التعريض {وَلَكِنْ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا} أي نكاحا {إِلَّا} لكن {أَنْ تَقُولُوا قَوْلًا مَعْرُوفًا} أي ما عرف شرعا من التعريض فلكم ذلك {وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ} أي على عقده {حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ} أي المكتوب من العدة {أَجَلَهُ} بأن ينتهي {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي أَنْفُسِكُمْ} من العزم وغيره {فَاحْذَرُوهُ} أن يعاقبكم إذا عزمتم {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لمن يحذره {حَلِيمٌ} بتأخير العقوبة عن مستحقها

**ترجمه:** اوکله چې تاسو خپلو ښځوته طلاق ورکړئ اوهغوی خپله موده پوره کړی (یعنی) دهغوی دَ عدت موده پوره شی نوتاسو هغوی دَ هغه خاوندانودَ نکاح نه مه بندوئ چاچې دهغوی ته طلاق ورکړې دې خطاب اولیاء ته دې ځکه چې دَدې آیت دَ نزول سبب دادې چې د معقل بن یسار خور جمیله بنت یسار ته دَهغې خاوند (بداح بن عاصم بن عدی) طلاق ورکړې وو بیا هغه دَ معقل بن یسار خور ته دَ رجوع کولواراده اوکړه نومعقل هغه منع کړو. (کما رواه الحاکم)

کله چې خاوند اوښځه دَ شرعی قانون مطابق راضی وی دا یعنی دَ منع کولونه دَ ممانعت نصیحت هغه سړی ته کولې شی چې په تاسو کښې په الله تعالی باندې اوپه ورځ دَ آخرت باندې ایمان لری ځکه چې (په اصل کښې) دې نه هم هغه سړې مستفید کیدې شی دا منع کولونه منع کیدل ستاسو اودَهغوی دَپاره ډیر ښکلې او صفاستره دی ځکه چې په زوجین باندې دَهغوی (سابقه) تعلق دَ وجې نه دَ تهمت ویره ده، دَدې مصلحت هم الله تعالی ښه پیژنی اوتاسو په دې نه پوهیږئ لهذا دَهغه حکم اتباع کوئ چې کوم پلار غواړی چې دَ هغه اولاد دې دَپوره مودې دَ رضاعت پورې پئی څکی نه دَدې نه زیات، نومیندې دې خپلو بچوته پوره دوه کاله پئی ورکوی، کاملین، د حولین صفت مؤکده دې. (دې صورت کښې) دَ ماشوم پلار په معروف طریقه باندې دَ گنجائش مطابق دَ بچی مورته دَ پئیوورکولو په عوض خوراک اوکپړې ورکول وی کله چې هغوی طلاق شوې وی مگرپه چاباندې دَ وسعت نه زیات بوج نه دی اچول پکار، نه دې مورته دَ بچی دَ وجې نه څه نقصان رسوی په داسې طریقه چې کله هغه پئی نه ورکول غواړی چې هغه په پئیو ورکولوباندې مجبوره کړی اونه دې پلار ته دَهغه دَ بچی دَ وجې نقصان ورکوی په داسې طریقه چې دَ وسعت نه زیات هغه مکلف جوړ کړی اودَ ولد اضافت دَ والدینو طرف ته په دواړو خایونو کښې دَ شفقت دَ طلب دَپاره دې او وارث

(یعنی) دَ پلار وارث باندې چې هغه دَ ده بچې دې یعنې دَ پلار په مالي وارث باندې هم دغه شان ذمه واري ده یعنی لکه څنګه چې په پلار باندې دَ مور دَپاره د خوراك اوکپړې ذمه واري وه (هم هغه شان ذمه واري دَ مړکیدونکی پلار په وارث ده) بیا که چرې دواړه (یعنې والدین دَ دوو کالونه وړاندې خپل مینځ کښې رضامندئی او مشوره سره چې په دې کښې دَ ماشوم مصلحت ښکاره وی بچی دَ پئیونه اړول غواړي نو په دې کښې په دې دواړو باندې هیڅ حرج نشته. اوکه چرې تاسو خطاب آباء ته دې خپل اولاد ته دَهغوی دَ میندو نه علاوه دَ پئیوورکونکو ښځونه پئی ورکول غواړئی نو په دې کښې ستاسو دَدواړو دَپاره هیڅ مضائقه نشته اوچې تاسو هغوی ته دَ رواج مطابق کوم اجرت ورکول غواړئی په خوشحاله زړه سره ئې ورکوئی دَالله تعالی نه ویرېږئی اودَدې خبرې یقین لرئی چې تاسو څه کوئی هغه دَالله تعالی په نظرکښې دی په دې کښې دَهغه نه هیڅ څیز پټ نه دې اوکوم خلق چې تاسو نه وفات شی یعنی انتقال شی اوشاته کونډه پرېږدی نوهغه دې خپل ځان دَ ده نه پس دَ نکاح نه څلور میاشتې اولس شپې بند اوساتی اودا حکم دَ غیرحامله ښځودَپاره دې پاتې شوې حامله ښځې نودَهغوی عدت وضع حمل دې دَ آیت طلاق په رڼاکښې اودَ وینځې عدت دَ سنت مطابق دَدې نیم دې بیاچې کله دَدوی عدت پوره شی یعنی کله چې دَهغوی دَ عدت موده ختمه شی نو اې اولیاء که هغه دَخپل ذات باره کښې څه دَ شرعی دستور مطابق کوی که هغه زړل سنګار وی یادَ رشتې باره کښې څه خبره وی نو په دې کښې په تاسو باندې هیڅ ګناه نشته الله تعالی ستاسو دَټولو دَ اعمالونه خبردې یعنې دَهغوی دَ ظاهر اوباطل نه واقف دې. کونډو ښځوسره دَهغوی دَعدت په زمانه کښې په اشاره (کنایه) سره دَ کوژدن خبرې کولو کښې ستاسودَپاره هیڅ ګناه نشته مثلاً دَ یوسړی داسې وینا کول ته ډیره ښکلې ئې اوستاپه شان به چاته ملاؤشی؟ (یعنې قسمت والا ته ملاویدې شي) اوستا غوښتونکی خو ډیردی (وغیره وغیره) یا تاسو دَهغوی سره دَنکاح اراده په خپل زړه کښې پټه اوساتئی دَالله تعالی په علم کښې دی چې تاسوبه دَهغې دَ کوژدن باره کښې تذکره ضرور کوئی اوتاسوبه دَدې باره کښې صبر اونه کړې شئی نوهغه ستاسو دَپاره اشارةً ظاهرول جائز کړی دی مګر (ګورئی) پټ عهداو پیمان مه کوئی که څه خبره کول وی نو دَ رواج مطابق ئې کوئی یعنې دَ شرعی قانون مطابق اشاره کولې شئی دا ستاسو دَپاره جائزدی اودَ نکاح کلکه اراده ترهغه وخته پورې مه کوئی ترکومې چې فرض کړې شوې عدت پوره نه شی، ښه پوهه شئی بیشکه الله تعالی ستاسو دَ زړونوحال یعنی کلکه او ناکلکه اراده ښه پیژنی لهذا دَهغه نه اوویریږئی که چرې تاسو کلکه اراده کوئی نو هغه به تاسو ته په دې باندې سزا درکوی اوپه دې خبره باندې هم ښه پوهه شئی چې بیشکه دَالله تعالی دَهغه ویریدونکې معاف کونکې برج اوچتونکې دې دَ عذاب دَمستحق نه د عذاب په روستو کولو سره.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: اِنْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ، د فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ تفسير په اِنْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ سره كولو كښې دې خبرې ته اشاره كول مقصود دى چې دلته دَ بلوغ حقيقى معنى مراد ده يعنى دَ ميعاد ختميدل، ځكه چې دَنكاح نه د منع كيدو سوال دَعدت ختميدونه هم پس پيدا كيږى په خلاف دَ سابقه آيت چې په هغې كښې دَ بلوغ مجازى معنى قُرب مراد دې لكه چې مفسرعلام دَ بَلَغْنَ معنى قَارَبْنَ سره كړې ده ځكه چې امساك فى النكاح هم هغه وخته پورې ممكن دې تركومې چې عدت ختم شوې نه وى دَعدت ختميدو نه پس امساك ممكن نه دې.

**قوله**: لَاتَعْضُلُوْهُنَّ،فعل نهى جمع مذكر حاضر، هُنَّ ضمير جمع مؤنث غائب، تاسو هغوى مه منع كوئى (ن) عَضْلاً په سختئى سره منع كول.

**قوله**: خِطَابٌ لِلْاَوْلِيَاءِ دَدې اضافه مقصد دَهغه خلقو ترديد دې چې وائى د لَا تَعْضُلُوْا، مخاطب طلاق وركونكى خاوندان گرځولې شوى دى يعنى طلاق وركونكو خاوندانو له پكار دى چې خپلې طلاقى شوې ښځې دَ نكاح نه نه بندوى، دَدې وجه داده چې په دې صورت كښې اَزْوَاجَهُنَّ معنى مجازى يعنى-مايؤل (كيدونكى) په اعتبار سره ازواج مراد به اخستل وى او كه چرې دَ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ مخاطب اولياء اوگرځولې شى نود اَزْوَاجَهُنَّ معنى حقيقى يعنى دَهغوى دَ سابقه خاوندانو سره نكاح كولو نه مه منع كوئى دلته دَ خاوندنه مراد به د ماكان په اعتبارسره وى اودا حقيقى معنى ده.

**قوله**: لِاَنَّ سَبَبَ نزولِهَا دادَدې خبرې دليل دې چې فَلَا تَعْضُلُوْا مخاطب اولياء دى نه چې سابقه خاوندان ځكه چې دَ سبب نزول نه معلوميږى چې منع كونكى هم اولياء وو.

**قوله**: مـافيه من المصلحة، دې كښې اشاره ده چې د يَعْلَمُ مفعول محذوف دې.

**قوله**: لِيُرْضِعْنَ،يُرْضِعْنَ سره اشاره اوكړه چې خبر په معنى دَامر دې اوداسې دَ مبالغه په توګه كړې شوې دى.

**قوله**: بعدهم، دَدې تقدير مقصد دَدې سوال جواب دې چې اَلَّذِيْنَ الخ مبتداء دې او يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ جمله كيدو سره دَدې خبردې، خبرچې كله جمله وى نودَعائد كيدل ضرورى وى دلته عائدنشته هم دَدې اشكال جواب ئى وركړې دې چې عائد محذوف دې او هغه بَعْدَهُمْ دې اى بعدالازواج.

**قوله**: مِنَ الليـالى.

**سوال**: من الليالى تخصيص دَ څه وجې نه شوې دې ځكه چې په عام توګه دَ ايام ذكركولې

شي خلورمياشتې اولس ورځې وئيلې شي نه چې خلورمياشتې او لس شپې.

**جواب:** د بعضې احكامو مثلاً حج، روژه، اخترونه اوعدت تعلق قمري تاريخونوسره دې اود قمري تاريخ شروع د شپې نه كيږي ورځ د شپې تابع وي لهذا د شپې په ضمن كښې ورځ پخپله شامل ده كه چرې د دې عكس وې نوقمري تاريخ به ناقص وو هم ځكه مفسرعلام د من الليالي د قيداضافه اوكړه اود شمير په اعتبارسره په اسلامي كيلنډر كښې ورځ د شپې تابع منلې شوې ده، بغيرد عرفه د ورځ نه چې د حكم په اعتبارسره شپه د ورځې تابع منلې شوې ده يعنى د نهم ذى الحجه نه پس راتلونكې شپه د وقوف عرفه په اعتبار سره د ورځې په حكم كښې ده.

**قوله:** أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا د عام كيدو د وجې نه هغه ښځې ته هم شامل دى د كومې خاوند چې وفات شوې وى په دې كښې حامله اوغيرحامله بله آزاده او وينځه ټولې داخل دى مګر د آيت طلاق د وجې نه حاملانې ښځې د دې نه خارج كړى دى. د طلاق آيت دادې: ﴿ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾ او وينځې د حديث، عِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ د وجې نه خارج شوې.

**قوله:** عَالِمٌ بِبَاطِنِهِ د دې اضافه مقصد د يو شبه تكرار لرې كول دى.

**شبه.** داده چې پورته آيت كښې فرمائيلى شوى دى﴿ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ اودلته اوفرمائيلې شو﴿ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ د دواړو هم يومفهوم دې چې په منزله د تكرار دې.

**جواب:** مفسرعلام په دواړو كښې فرق واضحه كولو د پاره بباطنه لفظ اضافه كړې ده.

**قوله:** لَوْ حُتْمٌ، دا تلويح نه ماخوذ دې د دې معنى د اشارې نه كار اخستل دى.

**[ايا تونه: ٢٣٦-٢٤٢]**

{لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ} وَفِي قِرَاءَةٍ {تُمَاسُّوهُنَّ} أَيْ تُجَامِعُوهُنَّ {أَوْ} لم {تفرضوا لهن فريضة} مهرا وَمَا مَصْدَرِيَّة ظَرْفِيَّة أَيْ لَا تَبِعَة عَلَيْكُمْ فِي الطَّلَاق زَمَن عَدَم الْمَسِيس وَالْفَرْض بإثم ولا مهر فطلقوهن {وَمَتِّعُوهُنَّ} أعطوهُنَّ مَا يَتَمَتَّعْنَ بِهِ {عَلَى الْمُوسِعِ} الْغَنِيّ مِنْكُمْ {قَدَره وَعَلَى الْمُقْتِرِ} الضَّيِّق الرِّزْق {قَدَره} يُفِيد أَنَّهُ لَا نَظَرَ إلَى قَدْر الزَّوْجَة {مَتَاعًا} تَمْتِيعًا {بِالْمَعْرُوفِ} شَرْعًا صِفَة مَتَاعًا {حقا} صفة ثانية او مصدرية مُؤَكِّدَة {عَلَى الْمُحْسِنِينَ} الْمُطِيعِينَ {وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ} يَجِب لَهُنَّ وَيَرْجِع لَكُمْ النِّصْف {إِلَّا} لَكِنْ {أَنْ يَعْفُونَ} أَيْ الزَّوْجَات فَيَتْرُكْنَهُ {أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ} وَهُوَ الزَّوْج فَيَتْرُك لَهَا الْكُلّ وعن ابن عَبَّاس الْوَلِيّ إذَا كَانَتْ مَحْجُورَة فَلَا حَرَج فِي ذَلِكَ {وَأَنْ تَعْفُوا} مُبْتَدَأ خَبَره {أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ} أَيْ أَنْ يَتَفَضَّل بَعْضكُمْ عَلَى بَعْض {إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ {حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ} الْخَمْس بِأَدَائِهَا فِي أَوْقَاتهَا {وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى} هِيَ الْعَصْر أَوْ الصُّبْح أَوْ الظُّهْر أَوْ غَيْرهَا

أقوال وأفردها بالذكر لفضلها {وَقُومُوا لِلَّهِ} في الصلاة {قَانِتِينَ} قيل مطيعين لقوله صلى الله عليه وسلم كل قنوت في القرآن فهو طاعة رواه أحمد وغيره وقيل ساكتين لحديث زيد بن أرقم كنا نتكلم في الصلاة حتى نزلت فأمرنا بالسكوت ونهينا عن الكلام رواه الشيخان {فَإِنْ خِفْتُمْ} من عدو أو سيل أو سبع {فَرِجَالًا} جمع راجل أي مشاة صلوا {أَوْ رُكْبَانًا} جمع راكب أي كيف أمكن مستقبلي القبلة أو غيرها ويومي بالركوع والسجود {فَإِذَا أَمِنْتُمْ} من الخوف {فَاذْكُرُوا اللَّهَ} أي صلوا {كَمَا عَلَّمَكُمْ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ} قبل تعليمه من فرائضها وحقوقها والكاف بمعنى مثل وما مصدرية أو موصولة {وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا} فليوصوا {وَصِيَّةً} وفي قراءة بالرفع أي عليهم {لِأَزْوَاجِهِمْ} وليعطوهن {مَتَاعًا} ما يتمتعن به من النفقة والكسوة {إِلَى} تمام {الْحَوْلِ} حال أي غير مخرجات من مسكنهن {فَإِنْ خَرَجْنَ} بأنفسهن {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ} يا أولياء الميت {فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ} شرعا كالتزين وترك الإحداد وقطع النفقة عنها {وَاللَّهُ عَزِيزٌ} في ملكه {حَكِيمٌ} في صنعه والوصية المذكورة منسوخة بآية الميراث وتربص الحول بآية أربعة أشهر وعشرا السابقة المتأخرة في النزول والسكنى ثابتة لها عند الشافعي رحمه الله {وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ} يعطينه {بِالْمَعْرُوفِ} بقدر الإمكان {حَقًّا} نصب بفعله المقدر {عَلَى الْمُتَّقِينَ} الله تعالى كرره ليعم الممسوسة أيضا إذ الآية السابقة في غيرها {كَذَلِكَ} كما يبين لكم ما ذكر {يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ} تتدبرون

---

**ترجمه:** اوترکوومې چې تاسو ښځوسره اونه لګئی او په يو قراءت کښې تُمَاسُّوهُنَّ دې، ای تُجَامِعُوهُنَّ (يعنی وړاندې دَدې نه چې تاسو هغې سره جماع اوکړې) اودَهغې مهرنه وی مقررکړې نوکه تاسو هغوئ ته طلاق ورکړې نو په تاسوباندې هيڅ حرج نشته، مَامصدريه ظرفيه دې يعنی دَ لاس نه لګولواو مهرنه مقررکولو په صورت کښې طلاق ورکولوکښې په تاسو باندې هيڅ مواخذه نشته اونه مهرواجب دې، که چرې هغې ته طلاق ورکړې نوهغوئ ته څه فائده اورسوئی يعنی هغې ته څه ورکړئی چې دَهغې نه څه فائده حاصله کړی اوتاسو نه په خوشحاله مالداره خلقوباندې دَخپل قدرت مطابق په غريبانانو او ناچاروباندې دَهغوی دَ وسعت مطابق فائده رسول دی. بالمعروف، د مَتَاعًا صفت (اول) دې داحق دې په خوش اخلاق خلقوباندې يعنی په طاعت کونکوباندې، حَقًّا، د مَتَاعًا، صفت ثانيه دې يامصدرمؤکددې او که چرې تاسو ښځوسره دَ لګيدونه وړاندې طلاق ورکړو اوتاسو دَهغوی دَپاره مهرمقررکړې وی نودَ مقررمهر نصف دَهغوی دَپاره واجب دې اونيم به تاسو ته واپس کيږی. اِلَّا دا چې که چرې ښځې ئې معاف کړی او پريږدی يا هغه سړې دَچا په لاس کښې چې دَ نيکاح واک دې معاف کړی اوهغه سړې خاونددې چې دَ ښځې دَپاره پوره مهرپريږدی او ابن عباس ﷺ نه نقل دی چې هغه سړې (دَ ښځې) ولی دې (کله چه ښځه په دې معامله کښې

معذوره وی نو په دې کښې هيڅ حرج نشته او که چرې تاسو ئې معاف کړئې نو دا دَ تقوی دَپاره
ډيره نيزدې خبره ده. أَن تَعْفُوا مبتداء دې او أَقْرَبُ لِلتقوى دَدې خبردې او په خپل مينځ کښې
معاملاتو کښې فياضی هيره نه کړئې يعنی يوبل سره دَ فياضئې نه کار اخلئې، بيشکه
تاسو چې څه کوئې هغه ټول دَ الله تعالی په نظر کښې دی نو هغه به تاسو ته دَدې بدله درکوی، دَ
پنځه وخته مونځونو هغه په خپلو وختونو کښې اداکولو سره حفاظت کوئې خاص کر دَ
مينځنې مونځ چې هغه دَ مازيګر مونځ دې لکه څنګه چې په حديث کښې دی (رواه
الشيخان) يا دَ سحر يا دَ ماسپښين مونځونه مراددی يا دَدې نه علاوه (بل څه مونځ مراد
دې) دا يوڅو اقوال دی او دَ مينځنې مونځ دَهغې دَ فضيلت دَ وجې نه په مستقل توګه
ذکر کړې دې او دَ الله تعالی دَپاره په مانځه کښې په ادب سره اودريږئې، ونيلی شوی دی چې
دَ اطاعت کونکو په شان (اودريږئې) دَ رسول الله ﷺ دَ ارشاد دَ وجی نه (لفظ) قنوت کوم
چې په قرآن کښې ذکر دې نه مراد اطاعت دې، احمد رحمه الله وغيره دا روايت کړې دې او
ونيلی شوی دی چې خاموشئې سره اودريدل مراد دی، دَ زيدبن ارقم رضی الله عنه حديث دَ وجې
نه اوفرمائيلې دی چې مونږ به په مانځه کښې خبرې کولې چې دا آيت نازل شو (کوم
کښې) مونږ ته دَخاموشئې اختيارولو حکم راکړې شو او دَ خبروکولو نه ئې منع کړو (رواه
الشيخان) او که چرې تاسو ته دَ دښمن، سيلاب يا دَ ځناور ويره وی نو که په زمکه پيدل ئې
رِجَالٌ دَ رَاجِلٌ جمع ده يا په سورلئ (څنګه چې ممکن وی) مونځ اوکړئې. رُكْبَانٌ دَ رَاكِبٌ
جمع ده (مطلب دا) څنګه چې ممکن وی که مستقبل قبله وی او که نه وی او دَ رکوع
اوسجدې دَپاره اشاره کوئې او کله چې تاسو دَ ويرې نه په امن کښې شئې نو بيا هغه شان مونځ
کوئې څنګه چې تاسو ته خودلی شوی دی. اګر چې دَ خودلو نه وړاندې تاسو دَدې حقوق او فرائض
نه پيژندل او کاف په معنی دَ مثل دې او مَا، موصوله يا مصدريه دې او په تاسو کښې هغه
خلق کوم چې وفات شی او ښځې پريږدی نو هغوی له پکار دی چې دَخپلو ښځو دَپاره وصيت اوکړی
او په يو قراءت کښې وصيةٌ رفع سره دې. ای وَصِيَّةٌ عَلَيْهِمْ او هغوی ته څه کار څيزور کړئې په کوم
سره چې هغوئ دَ پوره کال دَ هغه دَ مرګ دَ وخت نه په کوم کښې چې په هغې باندې (عدت
دَپاره) انتظارکول واجب دی فائده اوچته کړی مثلاً نفقه اولباس په داسې حال کښې چې
هغوی دَخپل قيام ګاه نه اونه ويستلې شی. (غَيْرَ إِخْرَاجٍ) حال دې که هغوئ پخپله اوځی نو ای دَ
دې مړی اولياؤ په تاسو هيڅ ګناه نشته چې هغوئ دَ (حول نه پس) دَ خپل ذات په معامله کښې دَ
شريعت دَ دستور مطابق چې څه اوکړی مثلاً سنګار، خفګان پريخودل او خپله نان نفقه
پخپله پريخودل، الله تعالی په خپل ملک کښې غالب دې او په خپل صنعت کښې باحکمت
دې او دا مذکوره وصيت دَ ميراث دَ آيت دَ وجې نه منسوخ دې. او دَ يو کال عدت په أَرْبَعَةَ

اشْهُرٍ وَّعَشْرًا سره منسوخ دي کوم چې په نزول کښې مؤخر دي. (سره دَدې چې په تلاوت کښې مقدم دي) اودَ ښځې دَپاره سُکنیٰ (دَ اوسيدو ځائې) دَ امام شافعي رحمه الله په نيزواجب دي او طلاق شوې ته څه دکار څيز کوم چې خاوند دَ رواج مطابق په اندازه دَ گنجائش ورکړی داحق دي دَ الله تعالى نه په ويريدونکوباندې (حَقًّا) دَفعل مقدر دَ وجې نه منصوب دې دائې مکرر راوړلې دي دې دَ پاره چې موطوئه ته هم شامل شي ځکه چې سابقه آيت غيرموطوئه باره کښې دې لکه څنګه چې په سابق کښې بيان کړې شوهم دغه شان الله تعالى خپل اياتونه په واضحه توګه باندې بيانوی دې دَپاره چې تاسو غوراوفکراوکړئ.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: اَوْلَمْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ مفسرعلام لَمْ مقدر منلوسره اشاره اوکړه چې دَ لَمْ مدخول تَمَسُّوْهُنَّ باندې معطوف کيدودَ وجې نه مجزوم دې او اَوْ په معنى د واؤ دې يعنى ترکومې چې مسيس او تفريض مهر اونه موندلې شي نو په طلاق کښې هيڅ حرج نشته، ځکه چې داخبره فيصله شوې ده چې اَوْکله په سياق نفى کښې واقع وی نودَعموم فائده ورکوی، بعض حضراتو وئيلى دی چې تَفْرِضُوْا دَ اَنْ مضمردَ وجې نه منصوب دې مگر داصحيح نه دی ځکه چې خلاف ظاهر ده او ځکه چې اَنْ مقدر منلې کيږی نو اَوْ په معنى دَ اِلَأَيا اِلى احتمال وی.

**قوله**: فَرِيْضَةً، فَرِيْضَةً په معنى مفروضه نه چې مصدر دې ځکه چې فَعِيْلَة په وزن باندې مصدر نادر دې فَرِيْضَةً د تَفْرِضُوْنَ مفعول کيدودَ وجې نه منصوب دې او مفروض نه مراد مهر دې. فَرِيْضَةً کښې تاء د وصفيت نه اسميت طرف ته منتقل کيدو وجې نه راغې.

**قوله**: مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ، کښې سوال پيداکيږی چې دَ مَسْ نسبت دَ سړی طرف ته کړې دې حالانکه مس دَ دواړو طرفونو نه کيږی اوکله دَ ښځې دَ طرف نه هم اقدام کيږی.

**جواب**: سړې چونکه په دې معامله کښې ډيرقوی دې اواکثرهم دَهغه دَ طرف نه اقدام کيږی په دې وجه ئې دَ سړی طرف ته دَ فعل نسبت کړې دې گنې حکم په دواړو صورتونو کښې هم يودې.

**قوله**: ما مصدرية ظرفية، اقرب دادی چې ما شرطيه په معنى دَ اِنْ دې نه چې مصدريه ظرفيه کماقال مفسرعلام رحمه الله ځکه چې دَ ظرفيت دَپاره يوځائې وی چرته چې امتداد ممکن وی لکه ﴿ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ ﴾ ځکه چې په خلودکښې يو قسم امتدا شته په خلاف ﴿ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ ﴾ کښې چې په طلاق کښې امتدا نشته.

**قوله**: اَي لَاتَبِعَةَ عَلَيْكُمْ، دَ لَاجُنَاحَ تفسیر لَاتبعة سره کولوسره اشاره اوکړه چې دَ جُنَاحَ نه مراد مطلق مؤاخذه ده نه چې صرف مؤاخذه اخروي یا صرف مؤاخذه دنیاوي. اول خو دا تخصیص بې دلیل دې بل دا که چرې دَ آخرت ګناه مراد واخستې شي نو په دې کښې نفي دَمهر شاملیدې نه شي هم دغه لفظ په نفي باندې په اتفاق سره دال دې. (ترویح الارواح)

**قوله**: والفرض، دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې اَوْتَفْرِضُوْالَهُنَّ، کښې اَوْ په معنی واؤ دې او طلاق ورکونکی خاوند باندې دَ مهر نه واجب کیدو تعلق عدم مسیس اوعدم فرض دواړو سره دې نه چې یوسره ځکه چې که مسیس اوموندلې شو نوپوره مهر به واجب شي اوکه چرې فرض مهر یعنی تعیین دَ مهر شوی وی نونصف مهر به واجب وی، دَ مهرعدم وجوب خو به هم په دې صورت کښې وی چې کله مسیس او تعیین دواړه معدوم وی.

**قوله**: فَطَلِّقُوْهُنَّ

**سوال**: مفسرعلام فَطَلِّقُوْهُنَّ دَ څه مقصد دَپاره محذوف منلې دې؟

**جواب**: که چرې فَطَلِّقُوْهُنَّ محذوف اومنلې شي نودَ مَتِّعُوْهُنَّ عطف به په تَفْرِضُوْا باندې وی او دا عطف به عطف د انشاء علی الخبر وی کوم چې مستحسن نه دې دَدې نه دَ بچ کیدو دَپاره مفسرعلام طلقوهُنّ مقدرمنلې دې، دې دَپاره چې عطف انساء علی الانشاء شي.

**قوله**: يُفِيْدُ اَنَّهُ لَانَظَرَ اِلَى الزَوْجَةِ، علی الموسع او علی المقتر چونکه دواړه دَ مذکر صیغې استعمال شوی دی په دې وجه دَدې نه دا خبره مستفاد کیږی چې په متعه کښې به دَ خاوند دَ حیثیت اعتبار کیږی نه چې دَ ښځې دَ حیثیت او دا دَ امام شافعي رحمه الله دَ دوو قولونه یو دې. امام مالک رحمه الله په نیزهم دغه مفتی به دې. (صاوی)

**قوله**: صفة مَتَاعًا، یعنی بالمعروف محذوف متعلق کیدوسره دَمَتَاعًا صفت اول دې دَدې عبارت مقصد دَ یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: مَتَاعًا، موصوف دې او حَقًّا دَدې صفت دې او په مینځ کښې بالمعروف فصل دې چې فصل بالاجنبی دې.

**جواب**: دا فصل بالاجنبی نه دې بلکه بالمعروف د مَتَاعًا صفت اول دې او حَقًّا مصدر موکِّد دې دَ جمله سابقه دَمضمون دَپاره دَدې عامل وجوبًا محذوف دې ای حَقَّ ذَالِكَ حَقًّا.

**قوله**: وَيُرْجِعُ لكم النصف.

**سوال**: مذکوره عبارت مقدر منلو څه وجه ده؟

**جواب**: اِلّا دَ استدراك دَپاره دې لکه چې مفسرعلام دَ الاّتفسیر لکِنَّ سره کولوکښې اشاره کړې ده حالانکه په ماقبل کښې دَ مستدرك منه جوړیدو صلاحیت نشته ځکه چې دَ نصف سقوط اودَهغه عفو دَهغه دَ استحقاق دَ جنس نه نه دې. ځکه چې تَرۡجِمُ لکم النِصۡفَ محذوف منل، دې دَپاره دی چې استدراك صحیح شي.

**قوله**: یجبُ لَهُنَّ، دَدې عبارت دَاضافه مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: فَنِصۡفُ مَا فَرَضۡتُمۡ، دَ شرط جزاء ده اوجمله ناقصه ده حالانکه دَ جزاء دَپاره جملې تامه کیدل ضروری دی.

**جواب**: مفسرعلام یَجِبُ لَهُنَّ مقدرمنلوسره جمله تامه کړه دې دَپاره چې دَدې جزاء جوړیدل صحیح شي.

**قوله**: یَعۡفُوۡنَ، عفو نه مضارع جمع مؤنث غائب، معاف کړی هغه ښځې.

**قوله**: عن ابن عباسؓ ﷺ، الولی، إذا کانت محجورةً، دَدې عبارت مقصد ﴿ اَلَّذِیۡ بِیَدِهٖ عُقۡدَةُ النِّکَاحِ ﴾ کښې اختلاف بیانول دی، اختلاف دادې چې ولی عفو څوك دې؟ خاوند یا دَښځې ولی؟ دَ امام ابوحنیفه ﷺ او بعض شوافعو مذهب دې چې مَن بیده عقدة النکاح نه مراد خاوند دې اودَ ابن عباس ﷺ په نیزدَ ښځې ولی مراد دې که چرې ښځه معذور یعنی نابالغ یا لیونئې وی نودَ امام ابوحنیفه ﷺ مذهب ته ترجیح ورکولودَپاره مفسرعلام وَهُوَ زوج فرمائیلې، قرینه دَدې اَقۡرَبُ لِلتقوی دې. ځکه چې دَ ښځې دَ معذوره کیدو په صورت کښې دَ ښځې دَ ولی مهرمعاف کول تقویٰ نه ده ځکه چې په دې کښې نقصان محض دې.

**[ایاتونه: ۲۴۳ - ۲۴۸]**

{اَلَمۡ تَرَ} اسۡتِفۡهَام تَعۡجِیب وَتَشۡوِیق إِلَي اسۡتِمَاع مَا بَعۡده أَيۡ یَنۡتَهِ عِلۡمك {إِلَی الَّذِیۡنَ خَرَجُوۡا مِنۡ دِیَارِهِمۡ وَهُمۡ اُلُوۡف} أَرۡبَعَة أَوۡ ثَمَانِیَة أَوۡ عَشَرَة أَوۡ ثَلَاثُونَ أَوۡ أَرۡبَعُونَ أَوۡ سَبۡعُونَ أَلۡفًا {حَذَرَ الۡمَوۡت} مَفۡعُول لَهُ وَهُمۡ قَوۡم مِنۡ بَنِي إِسۡرَائِیل وَقَعَ الطَّاعُون بِبِلَادِهِمۡ فَفَرُّوا {فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوۡتُوۡا} فَمَاتُوا {ثم أحیاهم} بعث ثَمَانِیَة أَیَّام أَوۡ أَکۡثَر بِدُعَاءِ نَبِیّهمۡ حِزۡقِیل بِکَسۡرِ الۡمُهۡمَلَة وَالۡقَاف وَسُکُون الزَّاي فَعَاشُوا دَهۡرًا عَلَیۡهِمۡ أَثَر الۡمَوۡت لَا یَلۡبَسُونَ ثَوۡبًا إِلَّا عَادَ کَالۡکَفَنِ وَاسۡتَمَرَّتۡ فِي أَسۡبَاطهمۡ {إِنَّ اللّٰهَ لَذُوۡ فَضۡلٍ عَلَی النَّاسِ} وَمِنۡهُ إِحۡیَاء هَؤُلَاءِ {وَلٰکِنَّ اَکۡثَرَ النَّاسِ} وَهُمۡ الۡکُفَّار {لَا یَشۡکُرُوۡنَ} وَالۡقَصۡد مِنۡ ذِکۡر خَبَر هَؤُلَاءِ تَشۡجِیع الۡمُؤۡمِنِینَ عَلَی الۡقِتَال وَلِذَا عَطَفَ عَلَیۡهِ {وَقَاتِلُوۡا فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ} أَيۡ لِإِعۡلَاءِ دِینه {وَاعۡلَمُوۡا اَنَّ اللّٰهَ سَمِیۡعٌ} لِأَقۡوَالِکُمۡ {عَلِیۡمٌ} بِأَحۡوَالِکُمۡ فمجازیکم {مَنۡ ذَا الَّذِیۡ یُقۡرِضُ اللّٰهَ} بِإِنۡفَاقِ مَاله فِي سَبِیل اللّٰه {قَرۡضًا حَسَنًا} بِأَنۡ یُنۡفِقهُ لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ عَنۡ طِیب قَلۡب {فَیُضٰعِفَهٗ} وَفِي قِرَاءَة فَیُضَعِّفهُ بِالتَّشۡدِیدِ {لَهٗۤ اَضۡعَافًا کَثِیۡرَةً} مِنۡ عَشۡر إِلَی أَکۡثَر

من سَبْعِمائَةٍ كَمَا سَيَأتِي {وَاللّٰهُ يَقْبِضُ} يُمْسِكُ الرِّزْق عَمَّنْ يَشَاء اِبْتِلاء {وَيَبْسُطُ} يُوَسِّعهُ لِمَنْ يَشَاء امْتِحَانًا {وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ} فِي الآخِرَة بِالْبَعْثِ فَيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ {ألم تر إلى الملأ} الجماعة {مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنْ بَعْدِ} مَوْت {مُوسَى} أي إلى قصتهم وخبرهم {إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَهُمُ} هو شمويل {ابعث} أقم {لَنَا مَلِكًا نُقَاتِلْ} مَعَهُ {فِي سَبِيلِ اللّٰهِ} تَنْتَظِم بِهِ كَلِمَتنَا وَنَرْجِع إِلَيْهِ {قَالَ} النَّبِيّ لَهُمْ {هَلْ عَسَيْتُمْ} بِالْفَتْحِ وَالْكَسْر {إن كتب عليكم القتال أ} ن {لَا تُقَاتِلُوا} خَبَر عَسَى وَالِاسْتِفْهَام لِتَقْرِيرِ التَّوَقُّع بِهَا {قالوا وما لنا أ} ن {لَا نُقَاتِلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا وَأَبْنَائِنَا} بِسَبْيِهِمْ وَقَتْلهمْ وَقَدْ فَعَلَ بِهِمْ ذَلِكَ قَوْم جَالُوت أَيْ لَا مَانِع لنا منه مع وجود مقتضيه قال تعالى {فلما كتب عليهم القتال تَوَلَّوْا} عَنْهُ وَجَبُنُوا {إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ} وَهُمْ الَّذِينَ عَبَرُوا النَّهَر مَعَ طَالُوت كَمَا سَيَأْتِي {وَاللّٰهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ} فَمُجَازِيهِمْ وَسَأَلَ النَّبِيّ إِرْسَال مَلِك فَأَجَابَهُ إِلَى إِرْسَال طَالُوت {وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا قَالُوا أَنَّى} كَيْفَ {يَكُونُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ} لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ سِبْط الْمَمْلَكَة وَلَا النُّبُوَّة وَكَانَ دَبَّاغًا أَوْ رَاعِيًا {وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِنَ الْمَالِ} يَسْتَعِين بِهَا عَلَى إِقَامَة الْمُلْك {قَالَ} النَّبِيّ لَهُمْ {إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفَاهُ} اخْتَارَهُ لِلْمُلْكِ {عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً} سَعَة {فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ} وَكَانَ أَعْلَم بَنِي إِسْرَائِيل يَوْمَئِذٍ وَأَجْمَلهمْ وَأَتَمّهمْ خَلْقًا {وَاللّٰهُ يُؤْتِي مُلْكَهُ مَنْ يَشَاءُ} إِيتَاءَهُ لَا اعْتِرَاض عَلَيْهِ {وَاللّٰهُ وَاسِعٌ} فَضْله {عَلِيمٌ} بِمَنْ هُوَ أَهْل لَهُ {وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ} لَمَّا طَلَبُوا مِنْهُ آيَة عَلَى مُلْكه {إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ} الصُّنْدُوق كَانَ فِيهِ صُوَر الْأَنْبِيَاء أَنْزَلَهُ عَلَى آدَم وَاسْتَمَرَّ إِلَيْهِمْ فَغَلَبَهُمْ الْعَمَالِقَة عَلَيْهِ وَأَخَذُوهُ وَكَانُوا يَسْتَفْتِحُونَ بِهِ عَلَى عَدُوّهمْ وَيُقَدِّمُونَهُ في القتال ويسكنون إليه كما قال تعالى {فِيهِ سَكِينَةٌ} طُمَأْنِينَة لِقُلُوبِكُمْ {مِنْ رَبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِمَّا تَرَكَ آلُ مُوسَى وَآلُ هَارُونَ} وَهِيَ نَعْلَا مُوسَى وَعَصَاهُ وَعِمَامَة هَارُون وَقَفِيز مِنْ الْمَنّ الَّذِي كَانَ يَنْزِل عَلَيْهِمْ وَرُضَاض مِنْ الْأَلْوَاح {تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ} حَال مِنْ فَاعِل يَأْتِيكُمْ {إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَةً لَكُمْ} عَلَى مُلْكه {إن كنتم مؤمنين} فَحَمَلَتْهُ الْمَلَائِكَة بَيْن السَّمَاء وَالْأَرْض وَهُمْ يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ حَتَّى وَضَعَتْهُ عِنْد طَالُوت فَأَقَرُّوا بِمُلْكِهِ وَتَسَارَعُوا إِلَى الْجِهَاد فَاخْتَارَ مِنْ شَبَابهمْ سَبْعِينَ أَلْفًا

**ترجمه:** آیاتاسو ته دَهغوی باره کښې معلومه نه ده استفهام د حیرانه کولو او دَ مابعدَ اوریدلو شوق ورکولو دَپاره دي یعني تاسو ته دَدې علم نشته چې دَ زرګونو په شمیر کښې دَ مرګ نه ویریدونکی دَ خپلو کورونونه وتلې ولاړوو دَهغوی شمیر څلور زره یا اته زه یا دولس زره یا دیرش زره یاځلویښت زره یا اویا زره وو (حَذَرَالْمَوْتِ) دَ خَرَجُوْامفعول له دې داد بنی اسرائیلو یوقوم وو دَ چا په ښاریو کښې چې طاعون پیداشوې وو نوهغوی اوتختیدل الله تعالی هغوی ته حکم ورکړو مړه شئی نوټول مړه شو. بیا اته ورځې یا دَدې نه زیاتو ورځونه پس دَهغوی نبی حزقیل عليه السلام په دعا سره (الله تعالی) هغوی راژوندی کړل، حاء مهمله اود قاف کسره سره او دَ زاء سکون سره نو هغه خلق دَ یوې زمانې پورې ژوندی وو لیکن

دَهغوی په (بدن باندې) دَمړوالی (زیړوالې) وغیره ښکاره وو، اوکوم لباس چې به ئې اغوستلو هغه به دکفن په شان کیدلو اودا صورت حال دَهغوی په نسل کښې دَ مودو پورې باقی وو. بیشکه الله تعالی په خلقو باندې دَ لوئی فضل والا دې اوهم په دې کښې هغه خلق ژوندی کول دی لیکن اکثر خلق ناشکره دی اوهغه کافران دی اودَ هغه خلقو قصه ذکرکولو مقصد دَمؤمنانو په جهادباندې همت زیاتول دی اوهم په دې وجه په دې باندې دَ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ عطف کړې شوې دې او جهادکوئی دَالله تعالی په لارکښې یعنی دَهغه دَ دین دَسرلوړئی دَپاره اوښه یاد ساتئی چې الله تعالی ستاسو خبرې ښه اوریدونکې او ستاسو په احوال پوهیدونکې دې نوهغه به تاسو ته دَدې بدله درکوی. او داسې څوک شته چې الله تعالی ته قرض حسنه ورکړی؟ چې خپل مال دَهغه په لارکښې خرچ کړی په داسې طریقه چې مال دَالله تعالی په لار کښې په خوشحاله زړه سره خرچ کړی. نو الله تعالی داسې سړی ته ښه ډیرزیات ورکوونکې دې دَ لس چنده نه واخله تر اووه سوو چنده نه زیات لکه چې عنقریب راتلونکی دی. او په یوقراءت کښې تشدید سره دې او الله تعالی چې دَ چاډپاره غواړی دَ اَزمیښت په توګه رزق بندولوسره تنګه وی اودَ چاډپاره چې غواړی دَامتحان په توګه په وسعت سره رزق ورکوی او په آخرت کښې دَ بعث په ذریعه تاسو به هم دَهغه طرف ته ورګرځولې شئی نوهغه په تاسو ته ستاسو دَاعمالو بدله درکوی. آیا تاسو دَ موسی عليه السلام دَ وفات نه پس دَ بنی اسرائیلو جماعت نه وو لیدلې؟ یعنی تاسو ته دَهغوی دَ قصې اوخبر علم نه دې شوې چې هغوی خپل پیغمبر ته چې شمویل وو او وئیل چې څوک زمونږ بادشاه جوړکړه چې مونږهغه سره دَ الله تعالی په لار کښې جهاد اوکړو دې دَپاره چې دَدې په ذریعه زمونږ خبره پخه شی اودَهغه طرف ته رجوع اوکړو. دَهغوی نبی هغوی ته اووئیل چرې داسې نه وی چې په تاسو جنګ فرض کړې شی او تاسو ئې اونه کړئی؟ عَسَيْتُمْ کښې دَ سین فتحه اوکسره سره (اَلَّا تُقَاتِلُوْا) دَعسیٰ خبردې اومتوقع استفهام دَ تقریر او تثبیت دَپاره دې وئی وئیل دا څنګه کیدې شی چې مونږ دَالله تعالی په لارکښې جنګ اونه کړو حالانکه مونږ د خپلو کورونه ویستلې شوی یو اوزمونږ دَ بچو نه جداکړې شوی یو دَهغوی دَ قتل اوقید کیدو دَ وجې نه، اودا معامله هغوی سره دَ جالوت قوم کړې وه مطلب دا چې مونږ دَهغه سره دَ جنګ کولونه هیڅ څیز منع کونکې نشته اودَ قتال مقتضی موجود دې بیا چې کله په هغوی باندې جهاد فرض کړې شو نو په هغوی کښې دَ یونه یو کم شمیر نه علاوه ټولو شاګړه اوتختیدل او بزدلی ئې اوخودله اوداهم هغه خلق وو څوک چې دَ طالوت په ملګرتیاکښې دَ نهرنه اوڅختلې وو لکه چې نیزدې راځی الله تعالی ظالمان پیژنی نو هغوی ته به سزا ورکوی چنانچې نبی (شمویل) دَالله تعالی نه دَ یو بادشاه مقررکولودرخواست اوکړو نوالله تعالی درخواست قبول کړو، او طالوت ئې بادشاه مقرر کړو نوهغوی ته دَهغوی نبی (شمویل) اووئیل الله تعالی

ستاسو بادشاه طالوت جوړکړې دې نو وئی وئیل چې دې به په مونږ باندې څنګه بادشاه وی دده نه خو مونږ زیات حقدار یو دَ بادشاهئی ځکه چې (یوخو) دې نه دَ شاهی خاندان نه دې اوند دَ نبوت دَ خاندان نه دې اوهغه دباغ (څرمن جوړونکې) یا ګډبه وو اوده ته خو مالی فراخی هم نه ده ورکړې شوې دَ کوم په ذریعه چې دَ سلطنت نظام قائم کړې شی، نو نبی هغوی ته اووئیل (واؤرئی) الله تعالی هم دې ستاسو بادشاه مقررکړې دې او ده ته ئی علمی او بدنی اوچتوالې هم ورکړې دې او په هغه زمانه کښې هغه په بنی اسرائیلو کښې لوئی عالم او په بدنی توګه ډیر ښائسته اومکمل وو. (خبره داده) چې الله تعالی څوک غواړی خپل ملک هغه ته ورکوی په دې باندې چاته دَ اعتراض حق نشته دَالله تعالی فضل ډیر وسیع دې اودَهغې نه ښه خبردې چې څوک دَدې اهل دې؟

کله چې (بنی اسرائیلو) دَ شمویل نبی نه دَهغه دَبادشاهت نشانی اوغوښتله نوئی فرمائیل دده بادشاهت نشانی داده چې تاسو له به هغه صندوق راشی په کوم کښې چې دَ انبیاء تصویرونه دی کوم چې الله تعالی په حضرت آدم علیه السلام باندې نازل کړې وو اوهغه صندوق دَهغه په نسل کښې باقی پاتې وو دَدې نه پس دَ عمالقه قوم په دې باندې غالب راغلو اوهغه صندوق ئی په زور واخستو اوهغوی به هم دَ دغه صندوق په ذریعه په دښمن باندې فتح حاصلوله لکه چې الله تعالی فرمائیلی دی په دې کښې ستاسو دَ زړونو دَپاره تسلی ده ستاسو دَ رب دَ طرف نه، اودَ آل موسی علیه السلام او آل هارون علیه السلام نه باقی پاتې ترکه ده یعنی کوم چې هغوی پریخودې وو هغه دَ حضرت موسی علیه السلام پنړې مبارکې وې اودَهغوی همسا وه اودَ هارون علیه السلام پټکې وو او یو قفیز مَنّ وو کوم چې په هغوی باندې (دآسمان نه نازلیدلو. اودَ تورات څه ټکړې وې کوم چې به فرښتو اوچت کړې وې تحمله، تَأْتِيَكُمْ فاعل نه حال دې بیشکه په دې کښې ستاسو دَپاره دَ هغه دَبادشاهت نشانی ده که ستاسو یقین وی. فرښتو دا دَ آسمان اوزمکې په مینځ کښې اوچت کړو اودې خلقو هغه کتلو تردې چې هغه ئی طالوت سره کیخودو نو ټولو دَهغه دَ بادشاهت اقرار اوکړو او جهاد ته وړاندې شو چنانچې هغه دَدوی دَ ځوانانو نه اویازره خوښ کړل.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: أَيْ لَمْ يَنْتَهِ.

**سوال**: دَ رؤیت علمیه صله إلی نه راځی رؤیت علمیه متعدی په دوو مفعولوسره وی حالانکه أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا کښې دَ رؤیت نه رؤیت علمیه مراد دې اودَدې په صله کښې الی واقع دې.

**جواب**: هم رؤیت علمیه مراد دې مګر دَ انتهاء معنې ته متضمن دې لهذا الی صله راوړل

صحیح دی او هم دَدې وجې نه دلته دا متعدی په دوو مفعولو سره نه دې مفسر علام رحمه الله ونیلو سره هم دې جواب طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله:** طاعون، طاعون یو مهلك وبائی مرض دې په کوم کښې چې غوټې راوځی خاص کر په ترخونو کښې، په دې مرض کښې انسان په یوڅو ورځو کښې مر کیږی بلادهم، دَ بلاد نه مراد ښار یا کلې دې کوم چې دَ واسطه په علاقه کښې وو او دَهغې نوم ذاوردان وو.

**قوله:** فَمَاتُوا دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې ثُمَّ اَحْيَاهُمْ عطف فَمَاتُوا مقدر باندې دې دکوم چې مقام متقاضی دې ځکه چې دَ اِحْیَاء دَپاره اول مرګ ضروری دې دَ ثُمَّ په ذریعه عطف کولو سره اشاره او کړه چې دَمرګ نه کافی ورځې پس هغوی ژوندی کړل.

**قوله:** حزقیل، حزقیل علیه السلام ته ذوالکفل هم وئیلې شی، دا دَحضرت موسیٰ علیه السلام دریم خلیفه دې.

**قوله:** مِنْهُ، ای من الفضل.

**قوله:** اَلَّا تُقَاتِلُوْا، خبر عَسَیٰ.

**ترکیب:** عَسَيْتُمْ حرف ترجی فعل ماضی، په دې کښې ضمیر کوم چې دَدې اسم دې اِنْ حرف شرط، كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ جمله کیدو سره شرط، فلاتبادرون الی القتال جواب شرط محذوف، شرط جزاء سره ملاؤ شو دَعَسَیٰ اسم او خبر په مینځ کښې جمله معترضه، اَلَّا تُقَاتِلُوا، دَعَسَیٰ خبر عَسَيْتُمْ خپل اسم او خبر سره ملاؤ شو دَ قَالَ مقوله ده.

**قوله:** رُضاض، بالضم دَتورات اجزاء، ټکړې.

**[ایاتونه: ۲۴۹ - ۲۵۲]**

{فَلَمَّا فَصَلَ} خَرَجَ {طَالُوتُ بِالْجُنُودِ} مِنْ بَيْتِ الْمَقْدِسِ وَكَانَ الْحَرّ شَدِيدًا وَطَلَبُوا مِنْهُ الْمَاء {قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُمْ} مُخْتَبِرُكُمْ {بِنَهَرٍ} لِيَظْهَر الْمُطِيع مِنْكُمْ وَالْعَاصِي وَهُوَ بَيْن الْأُرْدُنّ وَفِلَسْطِين {فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ} اي من ماءه {فَلَيْسَ مِنِّي} أَيْ مِنْ أَتْبَاعِي {وَمَنْ لَمْ يَطْعَمْهُ} يَذُقْهُ {فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً} بِالْفَتْحِ وَالضَّمّ {بِيَدِهِ} فَاكْتَفَى بِهَا وَلَمْ يَزِدْ عَلَيْهَا فَإِنَّهُ مِنِّي {فَشَرِبُوا مِنْهُ} لَمَّا وَافَوْهُ بِكَثْرَةٍ {إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ} فَاقْتَصَرُوا عَلَى الْغُرْفَة رُوِيَ أَنَّهَا كَفَتْهُمْ لِشُرْبِهِمْ وَدَوَابّهمْ وَكَانُوا ثَلَاثمِائَة وَبِضْعَة عَشَرَ رَجُلًا {فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ} وَهُمْ الَّذِينَ اقْتَصَرُوا عَلَى الْغُرْفَة {قَالُوا} أَيْ الَّذِينَ شَرِبُوا {لَا طَاقَةَ} قُوَّة {لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ} أَيْ بِقِتَالِهِمْ وَجَبُنُوا وَلَمْ يُجَاوِزُوهُ {قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ} يُوقِنُونَ {أَنَّهُمْ مُلَاقُو اللَّهِ} بِالْبَعْثِ وَهُمْ الَّذِينَ جَاوَزُوهُ {كَمْ} خَبَرِيَّة بِمَعْنَى كَثِير {مِنْ فِئَةٍ} جَمَاعَة {قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ} بِالْعَوْنِ وَالنَّصْر {وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ} أَيْ ظَهَرُوا لِقِتَالِهِمْ

وَتَصَافُوا {قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ} أَصْبِبْ {عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا} بِتَقْوِيَةِ قُلُوبِنَا عَلَى الْجِهَادِ {وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ} {فَهَزَمُوهُمْ} كَسَرُوهُمْ {بِإِذْنِ اللَّهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَقَتَلَ دَاوُدُ} وَكَانَ فِي عَسْكَرِ طَالُوتَ {جَالُوتَ وَآتَاهُ} أَيْ دَاوُدَ {اللَّهُ الْمُلْكَ} فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ {وَالْحِكْمَةَ} النُّبُوَّةَ بَعْدَ مَوْتِ شَمْوِيلَ وَطَالُوتَ وَلَمْ يَجْتَمِعَا لِأَحَدٍ قَبْلَهُ {وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ} كَصَنْعَةِ الدُّرُوعِ وَمَنْطِقِ الطَّيْرِ {وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ} بَدَلُ بَعْضٍ مِنَ النَّاسِ {بِبَعْضٍ لَفَسَدَتِ الْأَرْضُ} بِغَلَبَةِ الْمُشْرِكِينَ وَقَتْلِ الْمُسْلِمِينَ وَتَخْرِيبِ الْمَسَاجِدِ {وَلَكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ} فَدَفَعَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ {تِلْكَ} هَذِهِ الْآيَاتُ آيَاتُ اللَّهِ {نَتْلُوهَا} نَقُصُّهَا {عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّدُ {بِالْحَقِّ} بِالصِّدْقِ {وَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ} التَّأْكِيدُ بِإِنَّ وَغَيْرِهَا رَدٌّ لِقَوْلِ الْكُفَّارِ لَهُ لَسْتَ مُرْسَلًا

---

**ترجمه:** کله چې حضرت طالوت علیه السلام دَ بیت المقدس نه لښکر سره اووتلو نوهغه وخت سخته ګرمي وه لښکریانو دَ حضرت طالوت علیه السلام نه دَ اوبو مطالبه اوکړه نوحضرت طالوت علیه السلام اوفرمائیل الله تعالی به ستاسو په یونهرسره ازمیښت کوي دې دَپاره چې په تاسو کښې حکم منونکي اونامنونکي جدا شي اودا نهر دَ اردن اوفلسطین په مینځ کښې واقع دې چاچې دَدې نه اوبه اوڅکلې هغه زما په اتباع کونکو کښې نه دی اوڅوک چې دا اونه څکي هغه زمونږ دی، اِلاّ چې هغه په خپل لاس سره یوچونګ نیم واخلي غُرْفَة فتحه او ضمه سره دې یعنې چاچې په یوچونګ باندې صبر اوکړو اودَهغې نه زیاتې ئې اونه څکلې نوهغه زما دَ متبعینونه دې. کله چې نهر ته اورسیدل نو ښه ځان ئې خړوب کړو اوبه ئې اوڅکلې خو ډیرکم خلق وو چې په یوچونګ باندې ئې اکتفااوکړه او روایت کړې شوې دې چې دَهغوی اودَهغوی دَ څناورو (اسونو) دَ خړوبوالي دَپاره هم هغه یو چونګ کافي شوې، اودَهغوی شمیردَ دریوسورو لسو نه لږشان زیات وو. کله چې حضرت طالوت علیه السلام اودَهغه ملګري مؤمنان دَ دریاب نه پورې وتل اودا هم هغه وو چې په یوچونګ باندې ئې اکتفاکړې وه کومو خلقو چې ښه په خړوب کیدو سره څکلې وې وئې وئیل نن خو په مونږ کښې دَ جالوت اودَهغه دَ لښکردَ مقابله طاقت نشته یعنې هغوی سره دَ جنګ کولو، او بزدلي ئې اوخودله او نهر نه هم راوانوړیدل، اوهغه خلق کومو خلقو چې دَ مرګ نه پس ئې دَ الله تعالی په ملاقات باندې یقین لرلو هغوی اووئیل دا هم هغه خلق وو چې نهرنه راوُختې وو چې ډیر ځل داسې شوې دی کَمْ خبریه دکثرت په معنی کښې دې چې یووړوکې لښکر دَ الله تعالی په اراده سره په لوئې جماعت باندې غالب راغلی دی اوالله تعالی دَ خپل نصرت او امداد په ذریعه دَ صابرینو ملګرې دې اوکله چې دَهغوی جالوت اودَهغه لښکریانو سره مقابله اوشوه یعنې.هغوی سره په جنګ کښې مخامخ شو او صفونه ئې جوړکړل نوهغوی دعا اوغوښتله اې زمونږ پروردګارته مونږته صبر او استقامت رانصیب کړې او په جهاد باندې زمونږ زړونوته تقویت راکړې اوپه

کافرقوم باندې مونږ ته غلبه راکړې نوهغه خلقو دَ الله تعالى په مرضئى سره جالوتيانوته ماتې ورکړه يعنى هغوى ئې ختم کړل او داؤد ﷺ چې دَحضرت طالوت ﷺ په لښکرکښې شريك وو جالوت ئې قتل کړو او الله تعالى حضرت داؤد ﷺ ته دَ شمويل او طالوت دَ مرګ نه پس بادشاهت ورکړو او دَ نبوت حکمت (ئې ورکړو) اودَ داؤد ﷺ نه وړاندې په چاکښې بادشاهت او نبوت نه دې جمع شوې اوڅه ئې چې غوښتلو علم ئې ورکړو مثلاً دَزغرو جوړولو هنر اودَ مرغو په خبرو پوهيدل، که الله تعالى بعض خلق دَ بعض په ذريعه نه دفع کول بعضهم من الناس نه بدل البعض دې نو دَمشرکانو په غلبه سره به مسلمانان قتل کيدل او جماتونه ورانيدل او په زمکه کښې به فساد خوريدو ليکن الله تعالى په دنياوالوباندې دَ لوئى فضل والا دې چې بعض دَ بعضو په ذريعه دفع کوى دا دَ الله تعالى آياتونه دى کوم چې مونږ تاته اې محمد ﷺ صحيح صحيح اوړه وو په يقين سره ته دَ رسولانونه ئې دَاِنَّ وغيره په ذريعه تاکيد، دَ کافرانو دَ دې قول دَ رد کولو دَپاره دې چې حضور پاك ﷺ رسول نه دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله** فَصَلَ، اى اِنْفَصَلَ، لازم دې دَ فَصَلَ مفعول چونکه اکثر محذوف وى په دې وجه به منزله دَلازم شو. هم دغه وجه ده چې دَدې په مفعول (بالجنود) باندې باء داخل ده اوکه چرې متعدى اومنلې شى نودَدې مفعول به محذوف منلې شى، اى فَصَلَ العَسْکَرعن البلد فصولا.

**قوله** طالوت، دَ بنى اسرائيلو دَ اوچت اقبال او نيك بادشاه نوم دې. دَعلم اوعجمه دَ وجې نه غيرمنصرف دې.

**قوله** غرفة، دَ غين په ضمه سره په معنى د معروف، يوچونګ اوبه اودَ غين فتحه سره مصدر دپاره دَ مرّة دې.

**قوله** اى مِن مائه، داحذف دَ مضاف طرف ته اشاره ده ځکه چې دَنفس نهر نه دَ څکلوامکان نشته دې.

**قوله** لَمّاوافوه،من الموافات،اى رسيدن.

**قوله** بکثرة.

**سوال** بکثرةمقدر منلوڅه ضرورت پيښ شو؟

**جواب** که چرې بکثرة، محذوف اونه منلې شى نو اِلّاقليلاًمنهُ مستثنٰى به صحيح نه شى، ځکه چې په څکونکو کښې قليل هم شامل دى.

## پاره نمبر-۳ [تِلْكَ الرُّسُلُ]

### [اياتونه:۲۵۳]

{تِلْكَ} مُبْتَدأ {الرُّسُلُ} نَعت أوْ عَطف بَيَان وَالْخَبَر {فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ} بتخصيصه بمنقبة لَيْسَتْ لِغَيْرِهِ {مِنْهُمْ مَنْ كَلَّمَ اللَّهُ} كَمُوسَي {وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ} أيْ مُحَمَّد صَلَّي اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {دَرَجَاتٍ} عَلَي غَيْره بِعُمُومِ الدَّعْوَة وَخَتْم النُّبُوَّة وَتَفْضِيل أمَّته عَلَي سَائِر الْأمَم وَالْمُعْجِزَات المتكاثرات والخصائص العديدة {وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ وَأَيَّدْنَاهُ} قَوَّيْنَاهُ {بِرُوحِ الْقُدُسِ} جِبْرِيل يَسِير مَعَهُ حَيْثُ سَارَ {وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ} هَدَي النَّاس جَمِيعًا {مَا اقْتَتَلَ الَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ} بَعْد الرُّسُل أيْ أُمَمهمْ {مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ} لِاخْتِلَافِهِمْ وَتَضْلِيل بَعْضهمْ بَعْضًا {وَلَكِنِ اخْتَلَفُوا} لِمَشِيئَتِهِ ذَلِكَ {فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ} ثَبَتَ عَلَي إيمَانه {وَمِنْهُمْ مَنْ كَفَرَ} كَالنَّصَارَي بَعْد الْمَسِيح {وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا اقْتَتَلُوا} تَأْكِيد {وَلَكِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ} مِنْ توفيق من شاء وخذلان من شاء

**ترجمه:** دا حضرات مرسلين (جماعت) داسې دي چې مونږ بعضو ته په بعضو باندې فوقيت ورکړې دي، تِلْكَ موصوف، الرُّسُلُ صفت، موصوف په صفت مبتداء فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ دَدې خبر، په دوی کښې بعض په داسې منقبت سره خاص کول کوم چې نورو ته حاصل نه وو، په دوی کښې بعض داسې دی چې الله (بلاواسطه) هغوی سره خبرې کړې دی لکه حضرت موسیٰ علیه السلام او دَ هغوی نه بعض يعنی محمد ﷺ ته په درجها په نورو باندې فوقيت ورکړې (دَ جن او انس دَپاره دَهغوی) دَ دعوت عام کيدو دَ وجې نه او په هغوی باندې (سلسله) دَ نبوت ختميدو دَ وجې نه او دَحضورپاك امت ته په نورو امتونو باندې دَ فضيلت ورکولو دَ وجې نه اودَ معجزات کثيره دَ وجې نه او (دَنورو) ډيرو خصوصياتو دَ وجې نه او مونږ حضرت عيسی علیه السلام بن مريم ته ښکاره معجزې ورکړې او مونږ هغه ته د روح القدس (يعنی دَ جبرائيل علیه السلام) په ذريعه تقويت ورکړو چې (جبرائيل علیه السلام) به هغوی سره روان وو چرته چې به هغه تللو که الله تعالی ته دَ ټولو خلق هدايت منظور وې نوهغه خلق کوم چې دَ رسولانو نه پس شوی يعنی دَهغوی امتونه دَهغوی دَاختلاف اوبعض دَ بعضو په ذريعه دَګمراه کولو دَ وجې خپل مينځ کښې جنګ جګړې نه کولې، روستو دَهغې نه چې هغوی ته دلائل رسيدلې وو ليکن هغه خلقو دَ الله تعالی دَ ارادې په سبب خپل مينځ کښې مختلف شو نو په هغوی کښې بعض ايمان راوړو يعنی په خپل ايمان باندې قائم پاتې شو او بعض کافران شو لکه چې مسيح علیه السلام نه پس نصاری. اوکه چرې الله تعالی ته منظور وې نوهغوی به خپل مينځ کښې اختلاف نه کولو دا (دا ماقبل) تاکيدې دې ليکن الله تعالی چې څه غواړی هم هغه کوی، چاته چې غواړی (دَ خير) توفيق ورکوی اوځوك چې غواړی نو رسوا کوی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ كه دَ تِلْكَ مشارٌاليه جماعت انبياء مذكورين دي چې په إِنَّكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ كښې يا پوره سورت كښې ذكرشوي دي نو اَلرُّسُلُ باندې به الف لام دَ عهدوي، او كه جميع انبياء مراد وي نو الف لام به دَ استغراق وي.

**سوال:** تِلْكَ اسم اشاره دَ بعيد استعمالولو كښې څه مصلحت دې؟

**جواب:** ياخو دَبُعد زماني طرف ته اشاره كول مقصود دي يا بيادَ الله تعالى په نيزدَ مرتبودَ اوچتوالى طرف ته اشاره كول مقصود دي.

**قوله:** صفةٌ مفسرعلام اَلرُّسُلُ دَ تِلْكَ صفت ګرځولې دې او موصوف صفت سره ملاويدو كښې مبتداء دې دَ الرسل نه عطف بيان او بدل هم كيدې شي څكه چې په مشاراليه باندې كله الف لام داخليږى نودَدې صفت اوعطف بيان اوبدل دريواړه واقع كيدل صحيح كيږى.

**قوله:** فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ، تِلْكَ دَ مبتداء خبردې لكه چې مفسرعلام فرمائيلى دى.

**سوال:** اَلرُّسُلُ خبر اول او فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ خبر ثانى ګرځولو كښې څه قباحت دې؟

**جواب:** په خبر كښې اصل چونكه تنكيردې او اَلرُّسُلُ معرفه دې څكه الرُّسُلُ ئې خبر اونه ګرځولو.

**سوال:** دَ دَرَجَاتٍ منصوب كيدو څه وجه ده؟

**جواب:** ياخودَمصدرية دَ وجې نه منصوب دې څكه چې درجات رفعةً په معنى كښې دى اى رَفَعَ رفعةً يا رَفَعَ متعدى بالى يا بعلى يا بفى وو حرف جر حذف كړې شو چې دهغه دَ وجې نه منصوب بنزع الخافض شو.

**قوله:** بِمَنْقَبَةٍ دَميم فتحه سره مايُفتخربه (يعني مفاخره محاسن)

**قوله:** هَدَى الناس جميعًا دَدې عبارت دَ اضافه مقصد داخودل دى چې لَوشاء فعل متعدى دې اومفعول دَدې محذوف دې.

**سوال:** ظاهر او متبادر دا دې چې د مشئة مفعول هغه كيږى چې دَ جزاء نه مفهوم اومستفاد كيږى (كمافى كتب المعانى) لكه دَ الله تعالى قول لَوْشَاءَ اللهُ لَهَدَاكُمْ كښې دَدې تقدير لَوْشَاءَ اللهُ هِدَايَتَكُمْ لَهَدَاكُمْ دې مفعول دَ جزاء نه مستفاد كيدلو دَ وجې نه حذف كړې شوې دې اوهغه هدايتكم دې دَدې قاعدې په رڼا كښې تقديرى عبارت داكيدل پكاردى لَوْشَاءَ اللهُ

عدمَ القتال مَا اقْتَتَلُوْا مگر مفسرعلام د جزاء نه غيرمفهوم مفعول محذوف منلې دې کوم چې هَدَى الناس جميعا دي. معلوميږي چې مفسرعلام په مذکوره قاعده سره دې ځائې کښې متفق نه دې، په دې کښې څه نکته ده؟

**نکته جواب**: جزاء کوم چې مااقْتَتَلَ دې نه چې کوم مفعول مستفاد کيږي هغه عدم القتال دې او معدوم څيزسره مشيت او اراده نه متعلق کيږي بلکه دَ عدم دپاره اراده دَ وجود عدم تعلق کافي وي هم دَدې نکته په وړاندې مفسرعلام دَ جزاء نه مفهوم نه علاوه مفعول محذوف منلې دې.

**قوله**. بَعْدَالرُّسُلِ دَدې اضافه مقصد هُمْ ضمير مرجع وضاحت دې.

**قوله**: اى اممهم دا دَ الَّذِيْنَ تفسيردې.

**قوله**: مِنْ بعدِمَاجَاءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ، مِنْ بعدِهِمْ نه بدل دې.

**قوله** لِاخْتِلَافِهِمْ، دَدې تعلق اِقْتَتَلَ سره دې.

**قوله** ثَبَتَ على اِيْمَانِه، دَ آمَنَ تفسير ثَبَتَ سره کولوکښې اشاره اوکړه چې ايمان خودَ اختلاف نه وړاندې موجود وو دَ اختلاف نه پس په دې قائم پاتې شو.

**[اياتونه: ۲٥٤ - ۲٥۷]**

{يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا أَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ} زكاته {مِنْ قَبْلِ أَنْ يَّأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ} فِداء {فِيْهِ وَلَا خُلَّةٌ} صَدَاقة تَنفع {وَلَا شَفَاعَةٌ} بغير إذنه وَهُوَ يَوْم القِيَامَة وَفِي قِرَاءَة بِرَفْعِ الثَّلَاثَة {وَالْكٰفِرُوْنَ} بِاللهِ أَوْ بِمَا فُرِضَ عَلَيْهِمْ {هُمُ الظّٰلِمُوْنَ} لِوَضْعِهِمْ أمر الله في غير محله {اَللهُ لَا إِلٰهَ} أَيْ لَا مَعْبُود بِحَقٍّ فِي الْوُجُود {إِلَّا هُوَ الْحَيُّ} الدَّائِم بِالْبَقَاءِ {الْقَيُّوْمُ} الْمُبَالِغ فِي الْقِيَام بِتَدْبِيرِ خَلقه {لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ} نُعَاس {وَلَا نَوْمٌ لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا {مَنْ ذَا الَّذِيْ} أَيْ لَا أَحَد {يَشْفَعُ عِنْدَهٗ إِلَّا بِإِذْنِهٖ} لَهُ فِيهَا {يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ} أَيْ الْخَلْق {وَمَا خَلْفَهُمْ} أَيْ مِنْ أَمر الدُّنْيَا وَالْآخِرَة {وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖ} أَيْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا مِنْ مَعْلُومَاته {إِلَّا بِمَا شَاءَ} أَنْ يُعْلِمهُمْ بِهِ مِنْهَا بِإِخْبَارِ الرُّسُل {وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ} قِيل أَحَاطَ عِلْمه بِهِمَا وَقِيل الْكُرْسِيّ نَفْسه مُشْتَمِل عَلَيْهِمَا لِعَظَمَتِهِ لِحَدِيثِ مَا السَّمَاوَات السَّبْع فِي الْكُرْسِيّ إِلَّا كَدَرَاهِم سَبْعَة أُلْقِيَتْ فِي تُرس {وَلَا يَؤُدُهُ} يُثقله {حِفْظُهُمَا} أَيْ السماوات وَالْأَرْض {وَهُوَ الْعَلِيُّ} فَوْق خَلْقه بِالْقَهْرِ {الْعَظِيْمُ} الكبير {لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ} عَلَى الدُّخُول فِيهِ {قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ} أَيْ ظَهَرَ بِالْآيَاتِ الْبَيِّنَات أَنَّ الْإِيمَان رُشْد وَالْكُفْر غَيّ نَزَلَتْ فِيمَنْ كَانَ لَهُ مِنْ الْأَنْصَار أَوْلَاد أَرَادَ أَنْ يُكْرِههُمْ عَلَى الْإِسْلَام {فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ} الشَّيْطَان أَوْ الْأَصْنَام وَهُوَ يُطْلَق عَلَى الْمُفْرَد وَالْجَمْع {وَيُؤْمِنْ بِاللهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ} تَمَسَّكَ {بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى} بِالْعَقْدِ الْمُحْكَم {لَا انْفِصَامَ}

انقطاع {لَهَا وَاللّٰهُ سَمِيعٌ} لِمَا يُقَال {عَلِيمٌ} بِمَا يفعل {اللّٰهُ وَلِيُّ} نَاصِر {الَّذِينَ آمَنُوا يُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ} الكُفْر {إِلَى النُّورِ} الإِيمَان {وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَوْلِيَاؤُهُمُ الطَّاغُوتُ يُخْرِجُونَهُمْ مِنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمَاتِ} ذِكْرَ الإِخْرَاج أَمَّا فِي مُقَابَلَة قَوْله يُخْرِجهُمْ مِنَ الظُّلُمَات أَوْ فِي كُلّ مَنْ آمَنَ بِالنَّبِيِّ قَبْل بَعْثه مِنَ الْيَهُود ثُمَّ كَفَرَ بِهِ {أُولٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ}

**ترجمه:** اې دَ ایمان والوا کوم څه چې مونږ تاسوته دریخښلی دی دَهغې نه خرچ کوئی (یعنی) دَهغې زکوة اداکوئی، وړاندې دَهغې نه چې هغه ورځ راځی په کوم کښې چې به نه څه خرڅول کیږی اونه څه اخستل، اونه نفع ورکونکې دوستی اونه دَهغه دَا جازت نه بغیر شفاعت. اوهغه دَ قیامت ورځ ده، او په یوقراءت کښې دریواړه یعنی بَيْعٌ، خُلَّةٌ اوشَفَاعَةٌ رفع سره دي اودَالله تعالی منکریا دَهغه (احکام) نه منکرکوم چې په هغه باندې فرض کړې دی هم ذغه خو ظالمان دی دَهغوی دَالله تعالی حکم غیرمحل کښې دَ کیخودودَ وجې نه الله تعالی هغه دَ همیشه ژوندئی هستی ده چې دَهغه نه علاوه بل هیڅوک حقیقی معبودنشته چې (ټول کائنات) ئې تابوکړې دې، قیوم هغه ذات دې چې دَخپل مخلوق دَ قیام په تدبیرکښې مبالغه کونکې دې نه په هغه پرکالې راځی اونه هغه اوده کیږی، په زمکه او آسمان کښې چې څه دی دَ بادشاهت په اعتبارسره اودَ حکومت په اعتبارسره اودَ مملوك کیدو په اعتبارسره ټول هم دَهغه دی څوك دې چې دَهغه په حضورکښې دَ شفاعت دَپاره دَهغه دَ اجازت نه بغیر سفارش اووکړې شی؟ یعنی هیڅوك نشته څه چې دَمخلوق مخې ته دی هغه دا هم پیژنی او دَدنیا اوآخرت چې کومه خبره دَهغه نه غائبه ده (هغې نه هم خبردې) اوهغوئ دَدې معلومات نه دَ یوڅیزهم (علمی) احاطه نه شی کولې یعنی دَهغه په معلوماتوکښې دَهیچا ادراك نه شی کیدلې سوادَ هغې څیزنه کوم چې هغه دَدې نه خپلو رسولانو ته خبروراوکړی خودل غواړی دَهغه حاکمانه اقتدار آسمانونه او زمکې احاطه کړی دی، وئیلی شوی دی چې دَهغه علم دادواړه احاطه کړی دی، وئیلې شوی دی چې دَهغه بادشاهت احاطه کړی دی اونور وئیلی شوی دی چې بعینه کرسی دَخپل عظمت دَ وجې نه په دواړو باندې مشتمل ده. دَدې حدیث په رڼاکښې دَ اووه واړو آسمانونو حیثیت دکرسئی په مقابله کښې صرف داسې دې لکه چې اووه درهم په یو ډهال کښې کیخودې شوی وی. او په هغه باندې دَ زمکې اوآسمان نګرانی کول لږ شان هم سخت نه دی اوهغه عالی شان او عظیم الشان دې یعنی په خپل مخلوق باندې دَ قوت په ذریعه غالب دې، په دین کښې دَ داخلیدلوپه معامله کښې هیڅ سختی نشته هدایت دَ ګمراهئی نه بالکل جدا شوې دې، یعنی دَ واضحه آیاتونو په ذریعه دا خبره ښکاره شوې ده چې ایمان هدایت دې اوکفرګمراهی ده (مذکوره آیت) دَهغه انصاری باره کښې نازل شوې دې دکوم چې بچی ووهغه غوښتل چې بچی دَاسلام راوړلو

دپاره مجبور کړی، او س چې څوک دَ طاغوت انکار کولو سره (طاغوت) شیطان یا اصنام یعنې بتان دی (دَ طاغوت) اطلاق مفرد او جمع باندې کیږی او چې په الله تعالی باندې ئې ایمان راوړو نو هغه دَعقد محکم په ذریعه ئې داسې مضبوط حلقه اونیوله چې هیڅ کله ماتیدونکې نه ده، کومه خبره چې کولې شی الله تعالی دَهغې اوریدونکې دې اوکوم کارچې کولې شی په هغې باندې پوهیږی، الله تعالی دَهغه خلقو امدادی دې چاچې ایمان راوړې هغه دَ کفردَ تیارونه ویستلوسره دَ ایمان دَ رڼرا طرف ته راولی اوکوموخلقو چې کفراوکړو دَهغوی حمایتی طاغوت دې هغه دَ رڼرا نه ویستلوسره دَتیارو طرف ته اوړی. دَدې اخراج ذکر یا خو دَدې قول يخرجهم من الظلمات دَمقابلې په توګه راوړلې دې یادَ هرهغه یهودی باره کښې چې دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت نه وړاندې په حضورپاك ایمان راوړلې وو بیائی دَ حضورپاك نه انکار اوکړو. هم دغه اورته تلونکې خلق دی چرته چې به دوی دَهمیشه دپاره پراته وی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: زکوته، دې کلمه سره ئې اشاره اوکړه چې دَ انفاق نه مراد واجب انفاق دې اوراتلونکې وعید ددې قرینه ده ځکه چې په غیرواجب باندې وعیدنه کیږی.

**قوله**: فِداء. فدیه ئې بیع سره تعبیرکړې ده ځکه چې فداء،اشتراء النفس من الهلاکة ته وائی. فدیه هغه قیمت کوم چې قیدی دَ خلاصیدو په عوض اداکوی، سبب وئیلوسره مسبب مراد اخستې شوې دې ځکه چې نفس بیع د خلاصی عن العذاب فائده نه ورکوی بلکه فدیه دَ خلاصی فائده ورکوی.

**قوله**: تنفعُ،لفظ تنفعُ اضافه کولوسره اوخودل چې مطلق دَ دوستئ نفی نه ده بلکه دَنافع دوستئ نفی ده.

**قوله**: إذنه دَدې اضافه مقصد دَیوسوال جواب دې.

**سوال**: دَ شفاعت نفی علی سبیل الاستغراق څنګه صحیح ده؟ دَ احادیثو نه خو دَ انبیاء کرامو علیهم السلام شفاعت دَ قیامت په ورځ ثابت دې.

**جواب**: دلته سره دَدې چې دَ مطلق شفاعت نفی ده مګر یو بل آیت دا مطلق مقید کړې دې، آیت دادې ﴿ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا ﴾ وفی قراءة برفع الثلاثة په دریواړوکښې د لا نفی جنس دَاسم کیدودَ وجې اصل فتحه ده، لکه چې ابن کثیر رحمه الله او ابوعمرو رحمه الله په قراءت کښې دَاصل مطابق هم فتحه ده مګردَدې نه علاوه قراءت کښې رفع ده، دَ رفع وجه داده چې دراصل دا عبارت دَ یوسوال جواب دې اوسوال دادې هَلْ فِيهِ بَيْعٌ أَوْخُلَّةٌ أَوْ شَفَاعَةٌ؟ جواب دادې لَا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ، په سوال اوجواب کښې مطابقت

پيدا کولو دپاره جواب ته هم رفع ورکړې شوه، بعض حضراتو داجواب ورکړې دې چې لا نفي جنس مکرر کيدودَ جې نه مهمل ګرځولې شوې اوبَيْعٌ مبتداء کيدو دَ وجې نه مرفوع ده مګر دلته به يو سوال وی چې بَيْعٌ، خُلَّةٌ او شَفَاعَةٌ نکره دی دَدې مبتداء جوړيدل صحيح نه دی.

**جواب**: نکره تحت النفی واقع کيدو دَ وجې نه دَدې مبتداء جوړيدل صحيح شو. (اعراب القرآن للدرويش)

**قوله**: لَاتَأْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ دادَ صفات سلبيه نه دی د سِنَةٌ تعلق سترګو سره دې اودادَ انبياء کرامو خوب دې اودَ نوم تعلق دَ قلب سره وی دا فترة طبعيه دې چې په هرځناور باندې جبراً شروع کيږی.

**قوله**: لامعبود بحق الخ دې کښې اشاره ده چې اِلٰهٌ نه مراد معبودحقيقی دې نه چې مطلق معبود ځکه چې معبود مطلق غيرحقيقی ډيردی ګنی دَ مطلق معبود په نفی سره به کذب باری لازم راشی حالانکه اِللہ تعالی دَدې نه وراء الوراء دې. تعالی الله عن ذالك علوًا کبيرًا مګر په دې صورت کښې به داسوال وی چې کله اِلٰهٌ نه مراد حقيقی معبود دې کوم چې واحد دې نوبيا دَدې نه اِلَّاهُوَ په ذريعه استثناء صحيح نه وی ځکه چې دا استثناء الشئ عن نفسه به وی.

**جواب**: دَ معبودبالحق مفهوم چونکه کلی دې لهذا په دې سره په تصورکښې مستثنٰی منه متعدد کيدو دَ وجې نه به استثناء صحيح وی.

**قوله**: في الوجود په دې سره دَدې خبرې طرف ته اشاره ده چې دَ لا خبرمحذوف دې اوهغه في الوجود دې.

**قوله**: مُلکًا وخَلقًا الخ په دې سره ئی اشاره اوکړه چې دَ لَهٗ لام دَ نفع دپاره نه دې لکه چې په عام توګه کيږی ځکه چې الله تعالی دَ اشياء نه دَ نفع محتاج نه دې.

**قوله**: فيها أی في الشفاعة.

**قوله**: من معلوماته دې کښې اشاره ده چې دَعلم نه مراد معلومات دی ځکه چې علم صفت بسط دې په کوم کښې چې تجزّی نه شی کيدې البته په معلومات کښې تجزّی کيدې شی

**قوله**: تُرِيْن، بالضم، ډهال.

**قوله**: تَمَسَّكَ، دَ اِسْتَمْسَكَ تفسير تمسّك سره کولو کښې اشاره اوکړه چې استمسك کښې سين زائده دې.

**قوله** ذكر الاخراج الخ دَ مفسرعلام مقصدَ دې اضافه نه دَ يوسوال مقدر جواب دې. سوال دادې چې كافران خو په رنړاكښې وونه نودَهغوى دَ رنړادَ طرف نه تيارو ته راويستو څه مطلب دې؟ مفسرعلام دَدې دوه جوابونه وركړى دى اول دا چې دَ مقابله په توګه ئى دَ اخراج ذكركړې دې يعنى دَمؤمنانودَپاره چونكه دَ اخراج لفظ استعمال كړې شوې دې نودَ كافرانودَپاره ئى هم دَ اخراج لفظ استعمال كړې دې دې ته دَ بلاغت په اصطلاح كښې صفت مقابله وائى. دا اطعموا الى جبة وقميصًا دَ قبيل نه دې. دَ دويم جواب حاصل دادې چې دَ يهودااونصارى نه هغه خلق مراد دى چې دَ خپلو كتابونو دَ بشارت په رنړاكښې په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړې وو مګر دَحضورپاك دَ بعثت نه پس هغوى دَ ضددَ وجې نه دې نه واوختل لكه چې دَ رنړا نه تيارو ته لاړل.

**قوله** اَلْخُلَّةُ، په ضمه دَ خاء: المودة والصداقة (دوستى)

**قوله** القَيُّومُ، قائم نه دَ مبالغه صيغه ده، مَنْ قامَ بالامر، منتظم، مدبر پخپله قائم پاتې كيدونكې بل قائمونكې، قيوم اصل كښې قَيْوُوْمٌ په وزن دَ فَيْعُوْلٌ وو، واؤ او ياء جمع شو رومبې ساكن واؤ په ياء سره بدل كړو او دَ ياء په ياء كښې ادغام اوكړو، قيوم شو.

**قوله** السِّنَةُ دَ سين كسره سره، مايتقدم من الفتور والاسترخاء مع بقاء الشعور، دَ خوب نه وړاندې غفلت په كوم كښې چې شعور اواحساس باقى پاتې وې هم دې ته نعاس وئيلې شى دا نوم الانبياء يادېږى.

**قوله** الكرسى، معروف دې په دې كښې ياء نسبتى نشته اصلى ده عرف دارجه كښې، مايجلس عليه ته وائى، دَدې اصل معنى دَ بعض څيز بعض سره تركيب وركول دى هم دَدې نه كراسة دې څكه چې په دې كښې هم بعض پاڼې بعضوسره ملا وولوسره ترتيب وركولې شى، وئيلى كيږى تكرّس فلان الحطبَ فلانكى لرګى جمع كړل.

**قوله** يَؤُدهُ، اَدَ، يَؤُدُ اَوْدًا (ن) نه مضارع واحد مذكرغائب بوج اچول، درنول، ستړې كول.

**[اياتونه: ۲۵۸-۲٦۰]**

{اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِىْ حَآجَّ} جادل {إبراهيم فى ربه} ل {اَنْ اٰتٰهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ} أي حَمَلَهُ بَطَره بنعمة الله على ذلك وهو النمروذ {إِذْ} بَدَل مِنْ حَاجَّ {قَالَ اِبْرٰهِيْمُ} لَمَّا قَالَ لَهُ مَنْ رَبّكَ الّذِي تَدْعُونَا إِلَيْهِ {رَبِّىَ الَّذِىْ يُحْىٖ وَيُمِيْتُ} اَيْ يَخْلُق الْحَيَاة وَالْمَوْت فِي الأَجْسَاد {قَالَ} هُوَ {اَنَا اُحْىٖ وَاُمِيْتُ} بِالْقَتْلِ وَالْعَفْو عَنْهُ بِدَعَا بِرَجُلَيْنِ فَقَتَلَ أَحدهمَا وَتَرَكَ الآخر فَلَمَّا رَآهُ غَبِيًّا {قَالَ اِبْرٰهِيْمُ} مُنْتَقِلًا إِلَى حُجَّة أَوْضَح مِنْهَا {فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِىْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ بِهَا} أنت {مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِىْ كَفَرَ} تَحَيَّرَ وَدُهِشَ {وَاللّٰهُ

{لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ} بِالْكُفْرِ إِلَي مَحَجَّة الِاحْتِجَاج {أَوْ} رَأَيْت {كَالَّذِي} الْكَاف زَائِدَة {مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ} هِيَ بَيْت الْمَقْدِس رَاكِبًا عَلَي حِمَار وَمَعَهُ سَلَّة تِين وَقَدَح عَصِير وَهُوَ عُزَيْر {وَهِيَ خَاوِيَةٌ} سَاقِطَة {عَلَى عُرُوشِهَا} سُقُوطهَا لَمَّا خَرَّبَهَا بُخْتُنَصَّرَ {قَالَ أَنَّى} كَيْفَ {يُحْيِي هَذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا} اسْتِعْظَامًا لِقُدْرَتِهِ تَعَالَي {فَأَمَاتَهُ اللَّهُ} وَأَلْبَثَهُ {مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ} أَحْيَاهُ لِيُرِيَهُ كَيْفِيَّة ذَلِكَ {قَالَ} تَعَالَي لَهُ {كَمْ لَبِثْتَ} مَكَثْت هُنَا {قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ} لِأَنَّهُ نَامَ أَوَّل النَّهَار فَقُبِضَ وَأُحْيِي عِنْد الْغُرُوب فَظَنَّ أَنَّهُ يَوْم النَّوْم {قَالَ بَلْ لَبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ إِلَى طَعَامِكَ} التِّين {وَشَرَابِكَ} الْعَصِير {لَمْ يَتَسَنَّهْ} لَمْ يَتَغَيَّر مَعَ طُول الزَّمَان وَالْهَاء قِيلَ أَصْل مِنْ سَانَهْت وَقِيلَ لِلسَّكْتِ مِنْ سَانَيْت وَفِي قِرَاءَة بِحَذْفِهَا {وَانْظُرْ إِلَى حِمَارِكَ} كَيْفَ هُوَ فَرَآهُ مَيِّتًا وَعِظَامه بِيض تَلُوح فَعَلْنَا ذَلِكَ لِتَعْلَم {وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً} عَلَي الْبَعْث {لِلنَّاسِ وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ} مِنْ حِمَارك {كَيْفَ نُنْشِزُهَا} نُحْيِيهَا بِضَمِّ النُّون وَقُرِئَ بِفَتْحِهَا مِنْ أَنْشَرَ وَنَشَرَ لُغَتَانِ وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّهَا وَالزَّاي نُحَرِّكهَا وَنَرْفَعهَا {ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا} فَنَظَرَ إِلَيْهِ وَقَدْ تَرَكَّبَتْ وَكُسِيَتْ لَحْمًا وَنُفِخَ فِيهِ الرُّوح وَنَهَقَ {فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ} ذَلِكَ بِالْمُشَاهَدَةِ {قَالَ أَعْلَمُ} عِلْم مُشَاهَدَة {أَنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَفِي قِرَاءَة اعْلَمْ أَمْر مِنَ اللَّه لَهُ {وَ} اُذْكُرْ {إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى قَالَ} تَعَالَي لَهُ {أَوَلَمْ تُؤْمِنْ} بِقُدْرَتِي عَلَي الْإِحْيَاء سَأَلَهُ مَعَ عِلْمه بِإِيمَانِهِ بِذَلِكَ لِيُجِيبَهُ بِمَا سَأَلَ فَيَعْلَم السَّامِعُونَ غَرَضه {قَالَ بَلَى} آمَنْت {وَلَكِنْ} سَأَلْتُك {لِيَطْمَئِنَّ} يَسْكُن {قَلْبِي} بِالْمُعَايَنَةِ الْمَضْمُومَة إِلَي الِاسْتِدْلَال {قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ} بِكَسْرِ الصَّاد وَضَمِّهَا أَمِلْهُنَّ إِلَيْك وَقَطِّعْهُنَّ وَاخْلِطْ لَحْمهنَّ وَرِيشهنَّ {ثُمَّ اجْعَلْ عَلَى كُلِّ جَبَلٍ} مِنْ جِبَال أَرْضك {مِنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ} إِلَيْك {يَأْتِينَكَ سَعْيًا} سَرِيعًا {وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ} لَا يُعْجِزهُ شَيْء {حَكِيمٌ} فِي صُنْعه فَأَخَذَ طَاوُوسًا وَنَسْرًا وَغُرَابًا وَدِيكًا وَفَعَلَ بِهِنَّ مَا ذُكِرَ وَأَمْسَكَ رُؤُوسهنَّ عِنْده وَدَعَاهُنَّ فَتَطَايَرَتْ الْأَجْزَاء إِلَي بَعْضهَا حَتَّي تَكَامَلَتْ ثُمَّ أَقْبَلَتْ إِلَي رُؤُوسهَا

**ترجمه:** آيا تاسو دَهغه سړي په حال نظر نه دې کړې چې حضرت ابراهيم عليه السلام سره ئې دَهغه دَ رب باره کښې مباحثه کړې وه؟ په دې سبب سره چې الله تعالى هغه ته بادشاهي ورکړې وه، دَ الله تعالى په نعمتونو باندې کبر کولو او دې سرکشئ په (مباحثه) باندې تيار کړې وو او هغه نمرود وو، هغه وخت چې ابراهيم عليه السلام دَ هغه دَ دې قول جواب کښې چې ستا رب څوک دې؟ دکوم طرف ته چې دعوت کوې؟ وئيلي وو زما رب خو هم هغه دې چې ژوندى کول کوى او مړه کول کوى يعنى مرګ او ژوند په بدنونو کښې پيدا کوى، هغه او وئيل ژوند او مرګ خو په قتل او معافئ کښې زه (هم) ورکوم او هغه دوه سړي راؤغوښتل په هغوى کښې ئې يو قتل کړو او دويم ئې پريخودو. کله چې (حضرت ابراهيم عليه السلام) هغه بې وقوف او ګنړلو نو دَدې نه هم زيات واضحه حجت طرف ته منتقل کيدو سره ابراهيم عليه السلام او فرمائيل (ښه ده) الله تعالى نمر دَ مشرق نه راخيژه وى ته ئې دَ مغرب نه راؤخيژه وه او وه ښايه. په دې باندې هغه کافر حيران پاتې

شو (یعنی) حیران او تردد کښې پاتې شو الله تعالی دکفر په ذریعه ظلم کونکو ته دَ استدلال لار نه ښائی، یا (بیا) آیا دهغه سړی (په حال) نظر دی اوکړو؟ کاف زائد دې. چې په یوکلی باندې چې هغه کلې بیت المقدس وو په خر سور تیریدلو اوهغه سره دَ انځرانو یوه ټوکرئ وه اودَ انګورو دَ شیرې یوه پیاله وه او هغه حضرت عزیر علیه السلام وو اوهغه کلې په خپلو چتونو باندې پرمخې پریوتلې وو. ځکه چې دا بخت نصر بربادکړې وو. نوهغه اوویل چې داکلی (والا) به دَهغوی دَمرګ نه پس الله تعالی څنګه راژوندی کوی؟ (حضرت عزیر علیه السلام) داخبره دَالله تعالی قدرت عظیم ګنړلو سره (دَتعجب په توګه) اوکړه نو الله تعالی هغه ته مرګ ورکړو او سل کالوپورې ئی پریخودو بیائی هغه راژوندې کړو دې دَپاره چې هغه ته دَ راژوندی کولو کیفیت اوښائی، الله تعالی دَهغه نه تپوس اوکړو نو (په داسې حالت کښې) څومره موده پروت وې نوهغه اووئیل چې یوه ورځ یا دَدې څه حصه پروت ووم ځکه چې هغه دَ سحروخت کښې اوده شوې وو اودَهغه روح قبض کړې شو اودَ نمر دَ ډوبیدو په وخت ئی راژوندې کړو نوهغه دا ګنړل چې دا دَنمر ډوبیدل هم دَ اوده کیدو دَ ورځې دی. ارشاد اوشو (نه) بلکه ته سل کاله پورې وې اوس ته خپل انځرانو او دَ انګورو شربت ته ګوره چې هغه دَ اوږدې زمانې باوجود خراب شوې نه دې، وئیلی شوی دی چې (یَتَسَنَّه) کښې (ها) اصلی ده، سَانَهْتُ نه مشتق دې اووئیلی شوی دی چې دَ وقف دې دَ سَانَيْتُ نه ماخوذ دې او په یوقراءت کښې حذف ها سره دې، اوخپل خر ته دې هم اوګوره چې دَهغه څه حال دې هغه ئی مړ اولیدلوچې دَهغه هډوکی سپین پړقیدونکی دی مونږ دا په دې وجه سره اوکړل چې تاته دَ (مشاهده) په توګه معلومه شی اودې دَپاره چې مونږ تادَ خلقو دَپاره په بعثت فی القیامة باندې نشانی جوړه کړو او ته دَ خپل خر هډوکوته ګوره چې مونږ دا څنګه ژوندې کوو اوچته وو. (نُنْشِزُهَا) دَ نون په ضمه او نون په فتحه هم لوستلې شوې دې. دَ اَنْشَزَ او نَشَزَنه دوه لغته دی او په یوقراءت کښې ضمه او نون او زاء سره دې یعنی دې ته حرکت ورکوو او اوچته وو. بیا په دې باندې غوښه ورخیژه وو نو (حضرت عزیر علیه السلام) دغه هډوکی اوکتل چې هغه په خپل مینځ کښې یوځائی شو او په هغې باندې غوښه وراوخیژولې شوه او په هغې کښې روح پوک رهلې شو او هغه آواز شروع کړو بیا چې کله هغه داهرڅه دَ مشاهده په توګه سره ښکاره شو نو (حضرت عزیر علیه السلام) اووئیل چې ماته (مشاهدې سره) یقینی علم حاصل شو، چې بیشکه الله تعالی په هرڅیز باندې قادر دې او په یوقراءت کښې اِعْلَمْ په صیغه دَامر دې (یعنی) دَ الله تعالی دَ طرف نه هغه ته کتلو سره دَعلم مشاهده حاصلولو حکم اوشو، اوهغه واقعه یاده کړه کوم وخت چې حضرت ابراهیم علیه السلام عرض اوکړو اې زما پروردګار ماته اوښایه چې ته مړی څنګه راژوندی کوې؟ هغه ته الله تعالی اوفرمائیل ولې ستا زما په قدرت دَ راژوندی کولو

يقين نشته؟ الله تعالى دَحضرت ابراهيم عليه السلام نه سوال اوكړو سره دَدې چې الله تعالى ته دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ ايمان علم وو دې دَپاره چې حضرت ابراهيم عليه السلام دَدې سوال جواب وركړى او اوريدونكوته دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ سوال مقصد معلوم شى، حضرت ابراهيم عليه السلام عرض اوكړو يقين خو مې شته مگر ماتانه سوال اوكړو چې په مشاهده سره استدلال سره زما زړه تسلى اوكړى، ارشاد اوشو څلور مرغئى واخله هغه ټكړې كړه بيا هغه خپل طرف ته اوخوزوه دَ صاد كسره اوضمه سره يعنى هغه خپل طرف ته مائل كړه اودَهغې ټكړې كولوسره دَهغوى غوښه او بنړې گډې ودې كړه بيا دَخپلې علاقې په هرغرياندې دَهغې نه لږلږشان كيږده بيا هغې ته خپل طرف نه آواز وركړه ستاطرف ته به په تادئى سره راځى او پوهه شه چې الله تعالى غالب دې هغه هيڅ څيز عاجزكولې نه شى او په خپل صنعت كښې دَ حكمتونو والا دې. نو (حضرت ابراهيم عليه السلام) يو طاؤس يو تپوس يو كارغه او يو چرگ واخستلو اوهغې سره ئې مذكوره معامله اوكړه اودَهغې سرونه ئې خپل ځان سره كيخودل، بيائى هغې ته آواز وركړو نو بعض اجزاء دَ بعضو طرف ته راوالوتل تردې چې مكمل مرغئى شوې او بيا هغه دَ خپلو سرونو طرف ته متوجه شو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: جَادَلَ، حَاجَّ تفسير جَادَلَ سره كولوكښې اوخودل چې حَاجَّ په معنى د غَلَبَ فى الحجة نه دې لكه چې حديث كښې واردشوى دى فَحَجَّ آدمُ موسىٰ آدم عليه السلام په موسىٰ عليه السلام غالب راغلو. ځكه چې نمرود په حجت كښې په ابراهيم عليه السلام باندې غالب نه وو راغلې.

**قوله**: أَيْ حَمَلَهُ الخ، په دې كښې اشاره ده چې دَ نمرود د حجت كولو سبب اعطاء ملك وو، أَنْ آتَاهُ اللهُ الملك حذف لام سره مفعول لِاَجَله دې اى لِاَنْ آتاه الله الملك.

**قوله**: نُمْرُوذُ بن كنعان، نُمْرُوذ، د نون او ذال معجمه ضمه سره (ترويح الارواح) دا ولدالزنا وو دَ ټولو نه اول تاج مكلل په خپل سر هم ده كيخودې وو او دَ مخ دَ زمكې مالك شو، بل ده دَ ربوبيت دعوىٰ اوكړه په دنياكښې څلور داسې بادشاهان تيرشوى دى كوم چې په مخ دَ زمكې مالكان شوى دى په هغوى كښې دوه مسلمانان سليمان عليه السلام او ذوالقرنين عليه السلام دى او دوه كافران دى نمروذ او بخت نصر.

**قوله**: بَطَره، بَطَر معنى كبركول اودَحد نه زياتيدل، بې ځايه فخر كول.

**قوله**: إِذْ، بدل من حَاجَّ دادَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: اذ ظرفيه فعل نه بدل واقع كيدل صحيح نه دى؟

**جواب**: حذف فعل مثل جَادَلَ يا خَاصَمَ نه بدل كل دې اذ ظرفيه طرف ته دَ بدليت نسبت

دَ فعل قائمقام كيدودَ وجې نه دې.

**قوله**: اى يخلق الحياةَ والموتَ په دې عبارت كښې دَنمروذ اعتراض فاسد كيدو طرف ته اشاره ده ځكه چې يُحي ويُميت نه مطلب په اجسام كښې مرګ او ژوند پيدا كول دى كوم چې دَ نمروذ نه ممكن نه وو.

**قوله**: تحيّرَ ودَهِشَ، او بُهتَ، هغه افعال نه دى كوم چې مبنى بلمفعول استعماليږى خو په معنى كښې مبنى للفاعل وى، دَ بُهِتَ تفسير تحيّرَ او دَهِشَ سره كولو كښې ئې دې طرف ته اشاره كړې ده.

**قوله**: المحجة دَميم فتحه سره، ارته لار، فراخه لار.

**قوله**: منتقلاً إلى حجة اوضح منها، دَدې اضافه مقصد دَيو سوال جواب دې.

**سوال**: دادې چې دَ يو دليل نه بل دليل ته اوختل په دوو وجوهاتو سره كيږى اول دا چې په اول دليل كښې فساد اونقص وى حالانكه دَنبى نه داممكن نه دى. دويم دا چې كه په دليل كښې څه شك شبه وى اوهغه واضحه نه كړى نو دا هم صحيح نه دى.

**جواب**: دا انتقال، مِنْ دَليلٍ إلى دليلٍ آخرنه نه دې بلكه دَ دليل خفى نه دليل جلى طرف ته انتقال دې.

**قوله**: أوْكَالَّذى، رأيتَ دَ اضافه مقصد دَ يو سوال جواب دې.

**سوال**: دَ أوْكَالَّذى عطف كَالَّذِىْ حَاجَّ باندې صحيح نه دې ځكه چې كوم عامل دَ معطوف عليه وى هم هغه دَ معطوف هم وى دَ معطوف عليه عامل إلى، دې دَدې مطلب دا شو چې د كَالَّذِى عامل دى هم الى وى حالانكه په كاف باندې دَالى دخول جائزنه دې كاف كه اسميه وى اوكه حرفيه وى.

**جواب**: داعطف مفرد على المفردنه دې بلكه عطف جمله على الجمله دې اوكالذى نه وراندې أرَأيتَ محذوف دې لكه چې مفسرعلام ښكاره كړې دې.

**قوله**: بُختَ نصّر، بخت معنى ابن او نصر دَ يوبت نوم دې دَبخت نصر معنى ده ابن الصنم، دَدې دَ تسميه وجه داده كوم وخت چې دې پيداشوې وو نودَده مور دې د نصر بت سره خواكې اچولې وودَ څه دَوجې نه چې دَده نوم بخت نصر يعنى ابن الصنم مشهور شو. (صاوى)

**قوله**. لَمْ يَتَسَنَّه، اى لم يَتَغَيَّرْ (تَفَعُّل) نه مضارع واحد مذكر غائب، ډيره موده تيريدو نه پس خراب نه شو حمزه او كسائى د هاء هاء سكته ګرځولو سره په حالت وصل كښې حذف ضرورى ګرځولې دې دَهغه په نيز اصل لفظ يَتَسَنَّ دې دَ كوم اصل چې يَتَسَنَّى وو په

حالت جزم کښې الف ساقط شو يَتَسَنَّ شو، دَدې قول مطابق دابه سَنَةٌ نه ماخوذ وي دَ کوم اصل چې سَنْوَةٌ دې. ابوعمرو وئيلى دى تَسَنّى دَ (تفعل) اصل تَسَنُّنٌ وو اودَ تَسَنُّنْ معنى ده تغيّر هم دَدې مادې نه حَمَاٍمَّسْنُوْنٍ دې. بعض نور حضراتو دَ هاء اصل کيدو قائل دى کوم چې وقف اووصل دواړو حالتونوکښې باقى پاتې کيږى په دې قول باندې هم سَنَةٌ نه ماخوذ کيږى مګر دَسَنَة اصل سَنْهَةٌ وو ځکه چې دَدې تصغير سُنَيْهَة راځى.

**سوال**: لمريَتَسَنَّه،مفرد راوړلې شوې دې حالانکه دَدې نه مراد طعام او شراب دى لهذا تثنيه راوړل پکاروو؟

**جواب**: طعام او شراب په منزله دَخوراك، په حکم کښې مفرد دې په دې وجه يَتَسَنَّهُ مفرد راوړلې شوې دې.

**قوله**: فَعَلْنَا ذالكَ لِتَعْلَمَ.

**سوال**: وَلِنَجْعَلَكَ کښې واؤ ځنګه راغلې دې؟ که چرې عاطفه دې نو دَدې معطوف عليه کوم دې؟ حالانکه په ماقبل کښې څه معطوف عليه داسې نشته چې د دې په هغه دې باندې عطف صحيح وى.

**جواب**: بعض حضراتو واؤ ته استينافيه وئيلې دې اولام دَمحذوف متعلق دې، تقديرى عبارت دادې فَعَلْنَا ذلك لِنَجْعَلَكَ اٰيةً للنَاس، لِنَجْعَلَكَ اصل کښې لانْ نَجْعَلَكَ دې جار خپل مصدر تاويلى مجرور سره ملاويدلو سره دَ فعل محذوف متعلق دې.

**دويم جواب**: کومو حضراتو چې واؤ عاطفه منلې دې نوهغوى په فعل محذوف باندې عطف کړې دې لکه چې مفسر علام لِتَعْلَمَ معطوف عليه مقدر منلې دې اوهغه معطوف عليه يوبل فعل مقدرسره کوم چې ماسبق نه مفهوم دې سره متعلق دې اوهغه فَعَلْنَا دې، تقديرى عبارت دادې فَعَلْنَا ذٰلِكَ لِتَعْلَمَ قدرتنا على إحياء الموتى.

**قوله**: نُنْشِزُهَا، دَ نون ضمه او راء مهمله سره إنشار (افعال) نه جمع متکلم، مونږ ځنګه ژوندى کولوسره اوچته وو اودَ راء مهمله په صورت کښې دَنون فتحه سره (ن) سره هم لوستلې شوې دې. او په يوقراءت کښې دَنون ضمه او زاء معجمه سره دې اى نُحَرِّكُهَا ونرفعُها، يعنى ځنګه حرکت ورکوؤ او اوچته وئى مجازى معنى مونږ ځنګه راژوندى کوى. حضرت عزير عليه السلام ته دَ ژوند مشاهده کولونه وراندې استدلالى علم حاصل وو او دَمشاهده نه پس علم المشاهده حاصل شو لهذا دواړه خبرې صحيح دى.

**قوله**. فَيَعْلَمُ السَّامِعُوْنَ، حضرت ابراهيم عليه السلام نه دَ سوال کولو وجه دَ عدم يقين او عدم

ایمان نه وه بلکه مقصد دا وو چې سامعین ته معلومه شی چې دحضرت ابراهیم علیه السلام دَ سوال مقصد دَ زړه تسلی حاصلول وو نه چې نفس علم، دې دپاره چې علم الوحی سره علم المشاهده بلکه دَ نور اطمینان سبب جوړشی، لهذا داوهم ختم شو چې سره دَدې چې الله تعالی ته دحضرت ابراهیم علیه السلام دَ ایمان علم وو نو بیا اَوَلَمْ تُؤْمِنْ ونیلو سره الله تعالی ولې سوال اوکړو؟

## [ایاتونه: ۲۶۱ - ۲۶۶]

{مَثَل} صِفَة نَفَقَات {الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّه} أَيْ طَاعَته {كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ} فكذلك نفقاتهم تضاعف لسبعمائة ضِعْف {وَاللَّهُ يُضَاعِفُ} أَكْثَر مِنْ ذَلِكَ {لِمَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ} فَضْله {عَلِيمٌ} بِمَنْ يَسْتَحِقّ المضاعفة {الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ لا يتبعون ما أنفقوا مَنًّا} عَلَى الْمُنْفَق عَلَيْهِ بِقَوْلِهِمْ مَثَلًا قَدْ احسنت إليه وجبرت حاله {وَلَا أَذًى} لَهُ بِذِكْرِ ذَلِكَ إلَى مَنْ لَا يُحِبّ وُقُوفه عَلَيْهِ وَنَحْوه {لَهُمْ أَجْرُهُمْ} ثَوَاب إنْفَاقهمْ {عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَة {قَوْلٌ مَعْرُوفٌ} كَلَام حَسَن وَرَدّ عَلَى السَّائِل جميل {ومغفرة} لَهُ فِي إلْحَاحه {خَيْرٌ مِنْ صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا أَذًى} بِالْمَنِّ وَتَعْيِير لَهُ بِالسُّؤَالِ {وَاللَّهُ غَنِيٌّ} عَنْ صَدَقَة الْعِبَاد {حَلِيمٌ} بِتَأْخِيرِ الْعُقُوبَة عَنْ المان والمؤذي {يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ} أَيْ أُجُورهَا {بالمن والأذى} إبطالا {كَالَّذِي} أَيْ كَإِبْطَالِ نَفَقَة الَّذِي {يُنْفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ} مُرَائِيًا لَهُمْ {وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} هُوَ الْمُنَافِق {فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ} حَجَر أَمْلَس {عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ} مَطَر شَدِيد {فَتَرَكَهُ صَلْدًا} صُلْبًا أَمْلَس لَا شَيْء عَلَيْهِ {لَا يَقْدِرُونَ} اسْتِئْنَاف لِبَيَانِ مَثَل الْمُنَافِق الْمُنْفِق رِئَاء النَّاس وَجَمْع الضَّمِير بِاعْتِبَارِ مَعْنَى الَّذِي {عَلَى شَيْءٍ مِمَّا كَسَبُوا} عَمِلُوا أَيْ لَا يَجِدُونَ لَهُ ثَوَابًا فِي الْآخِرَة كَمَا لَا يُوجَد عَلَى الصَّفْوَان شَيْء مِنْ التُّرَاب الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ لِإِذْهَابِ الْمَطَر لَهُ {والله لا يهدى القوم الكافرين} {وَمَثَلُ} نَفَقَات {الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ} طَلَب {مرضاة اللَّهِ وَتَثْبِيتًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ} أَيْ تَحْقِيقًا لِلثَّوَابِ عليه بخلاف المنافقين الذين لا يرجون لِإِنْكَارِهِمْ لَهُ وَمِنْ ابْتِدَائِيَّة {كَمَثَلِ جَنَّةٍ} بُسْتَان {بِرَبْوَةٍ} بِضَمِّ الرَّاء وَفَتْحهَا مَكَان مُرْتَفِع مُسْتَوٍ {أَصَابَهَا وَابِلٌ فَآتَتْ} أَعْطَتْ {أُكُلَهَا} بِضَمِّ الْكَاف وَسُكُونهَا ثَمَرهَا {ضِعْفَيْنِ} مِثْلَيْ مَا يُثْمِر غَيْرهَا {فَإِنْ لَمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ} مَطَر خَفِيف يُصِيبهَا وَيَكْفِيهَا لِارْتِفَاعِهَا الْمَعْنَى تُثْمِر وَتَزْكُو كَثُرَ الْمَطَر أَمْ قَلَّ فَكَذَلِكَ نَفَقَات مَنْ ذُكِرَ تَزْكُو عِنْد الله كَثُرَتْ أَمْ قَلَّتْ {وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ {أَيَوَدُّ} أَيُحِبّ {أَحَدُكُمْ أَنْ تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ} بُسْتَان {مِنْ نَخِيلٍ وَأَعْنَابٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأنهار له فيها} ثمر {من كل الثمرات} وَقَدْ {أَصَابَهُ الْكِبَرُ} فَضَعُفَ مِنْ الْكِبَر عَنْ الْكَسْب {وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ} أَوْلَاد صِغَار لَا يقدرون عليه {فأصابها إعصار} ريح شديدة فيها {فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ} فَفَقَدَهَا أَحْوَج مَا كَانَ إلَيْهَا وَبَقِيَ هُوَ وَأَوْلَاده عَجَزَة مُتَحَيِّرِينَ لَا حِيلَة لَهُمْ وَهَذَا تَمْثِيل لِنَفَقَةِ الْمُرَائِي وَالْمَانّ فِي ذَهَابهَا وَعَدَم نَفْعهَا

أخرج مَا يَكُون إلَيْهَا فِي الْآخِرَة وَالِاسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي وَعَنْ ابن عَبَّاس هُوَ الرَّجُل عَمِلَ بِالطَّاعَاتِ ثُمَّ بَعَثَ لَهُ الشَّيْطَان فَعَمِلَ بِالْمَعَاصِي حَتَّى أَحْرَقَ أَعْمَاله {كَذَٰلِكَ} كَمَا بَيَّنَ مَا ذُكِرَ {يُبَيِّنُ اللّٰه لكم الآيات لعلكم تتفكرون} فتعتبرون

**ترجمه**. کوم خلق چې خپل مال دَالله تعالى په لاركښې يعنى دَهغه په اطاعت كښې خرچ كوى دَهغوى دَمال مثال داسې دې لكه يوه دانه چې دَهغې نه اووه پلى راوټوكيږى او په هرپلى كښې سل دانې وى دغه شان دَهغوى (دَالله په لار) كښې خرچ كړې شوې مال اووه سوه چنده زياتيږى او الله تعالى چاته چې غواړى دَدې نه هم زيات وركوى اودَ الله تعالى فضل دير وسيع دې (او) هغه دَدې خبرې نه خبرهم دې چې دَزياتوالى څوك مستحق دې؟ كوم خلق چې دَالله تعالى په لاركښې مال خرچ كوى بيادَ خرچ كولونه پس ئى چې په چاباندې خرچ كړې دې مثلاً دې وينا كولوسره احسان نه كوى چې ما ده سره احسان كړې دې او ما دَ ده (خراب) حالت ښه كړې دې اونه ده ته څه تكليف رسوى دَ دغه احسان دَ هغه سرى په وړاندې تذكره كولوسره دَ كوم واقف كيدل چې دغه سړې نه خوښوى (على هذا القياس) دَهغوى اجر اوبدله دَهغوى رب سره ده يعنى دَهغوى دَ خرچ ثواب اونه به په هغوى باندې څه ويره وى اونه به هغوى غمگين كيږى. اويوه خوږه خبره (ښه خبره) او سائل ته ښه جواب وركول اودَهغه اصرار په خاطركښې نه راوستل دَهغه خيرات نه بهتر دې كوم پسې چې شاته احسان كولوسره او په سوال كولوباندې شرمنده كولوسره تكليف رسولې كيږى او الله تعالى دَ بنديګانودَ صدقې نه بې نيازه دې او احسان كونكې او تكليف رسونكې سزا مؤخركولوسره بوج اوچتونكې دې اې ايمان والوتاسو خپل صدقات يعنى دَهغې ثواب احسان كولوسره اوتكليف رسولوسره دَهغه سړى په شان مه ضائع كوئى. يعنى دَ هغه سړى دَ صدقې ضائع كولو په شان چې خپل مال دَخلقو دَ خودلودَپاره خرچ كوى او په الله تعالى اودَ آخرت په ورځ ايمان نه لرى حال دادې چې دغه منافق دې. دَدې مثال دَهغه مښين كاڼرى په شان دې په كوم چې خاوره پرته وى. او په هغې په زوره باران اوشى اوهغه بالكل صفا كړى او چې په هغې باندې هيڅ باقى پاتې نه شى. (داسې خلق) به هيڅ هم حاصل نه كړې شى دَ خپلې ګټې (صدقات) نه، داجمله مستانفه ده دَ رياكارئى په توګه خرچ كونكى منافق مثال بيانولودَپاره. او (لايقدرون) جمع راوړلې شوې دې دَ اَلَّذِىْ معنې رعايت كولوسره. يعنى په آخرت كښې به دَنيك عمل ثواب نه حاصلوى لكه څنګه چې په منين كاڼرى باندې دَ خاورې نه هيڅ باقى نه پاتې كيږى كوم چې په هغې باندې وو، دَ باران دغه خاوره بهيولودَ وجې. او الله تعالى كافرانوته دَ هدايت لار نه ښائى او دَهغه خلقو دپاره (دَالله په لاركښې) دَخرچ كولو مثال چې خپل مال صرف دَالله تعالى دَ رضادَپاره دَ زړه په پوره تسلې (قرار) سره خرچ كوى يعنى په هغې باندې دَ ثواب حاصلولودَپاره، په

خلاف د منافقانو چې هغوی د ثواب توقع نه لري د هغوی د ثواب د منکر کیدو د وجې نه او مِنْ ابتدائیه دې دَهغه باغ دې چې په اوچت ځائی باندې وی (رُبْوَةٍ) کښې د راء ضمه او فتحه سره هغه ځائی چې مرتفع اومستوی وی او په هغې باندې په زوره باران شوې وی د کوم په وجه سره چې هغه (باغ) د نورو باغونو د میوې ورکولو په مقابله کښې دبل میوه ورکړې وی. أُكُلَهَا کښې کاف ضمه اوسکون سره. (مراد) دَهغې میوه ده اوکه چرې په هغې باندې په زوره باران شوې هم نه وی نو معمولی ورله هم کافی دې. یعنی که په هغې باندې معمولی باران هم اوشی نو دَهغې په اوچت ځائی کښې د کیدو د وجې هم هغه کافی کیږی. مطلب دا چې په هغې کښې میوې راځی او لوئیږی که باران زیات وی اوکه کم. دغه شان دَمذکورینو صدقات دَالله تعالی په نیز زیاتیږی او غتیږی که هغه صدقات ډیر وی اوکه کم. او څه چې تاسو کوئی هغه دَ الله تعالی په نظر کښې دی لهذا هغه به تاسو ته دَ هغې بدله درکوی. آیا په تاسو کښې څوک دا خوښوی چې دَهغه یو باغ دَ کهجورو وی او یو دَ انګورو دَ کوم نه لاندې چې نهرونه بهیږی اودَهغه دَپاره په دغه باغ کښې نورې هم هرقسم میوې وی او دَ هغه بوډاوالی راغلې وی د کوم دَ وجې نه چې هغه په ګټه کولو کښې کمزورې وی. اودَ هغه کمزوې ماشومان بچی وی چې ګټه نه شی کولې. په دغه باغ باندې یوه غولئ راشی (یعنی) سخته سیلئ او په هغې کښې اور وی د کوم دَ وجې نه چې هغه (باغ) اوسوزی پس هغه نه په داسې وخت کښې هغه باغ لاړو چې په آخره کښې هغه دَدې ډیرزیات محتاج وو. اوهغه اودَهغه بچی عاجز او حیران پاتې شوې وی چې دَهغوی دَپاره (دَ وخت تیرولو) بل هیڅ صورت نه وی. دا دَ ریاکار او احسان کونکی مثال دې دَدې په ضائع کیدو کښې اودَدې په نفع نه رسولو کښې په داسې وخت کښې چې (هغه ریاکار) په آخرت کښې دَدې (ثواب) سخت محتاج وی. او استفهام دَ نفی په معنی کښې دې اودَ حضرت ابن عباس رضی الله عنه نقل دی چې دادَ هغه سړی مثال دې چاچې نیك اعمال کړی وی. بیا په هغه باندې شیطان مسلط کړې شی نوهغه دګناه کارونه شروع کړل تردې چې هغه خپل اعمال غرق (ضائع) کړل. الله تعالی ستاسو دَپاره هم دغه شان څنګه چې بیان کړې شو ښکاره نشانې بیانوی دې دَپاره چې تاسو په هغې کښې غور اوفکر اوکړئی او عبرت حاصل کړئی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: مَثَلُ مضاف الَّذِيْنَ موصول. يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ الله جمله کیدو سره صله، اوصله موصول سره ملاؤ شوه دَمَثَلُ مضاف الیه، مضاف مضاف الیه سره ملاؤشو مبتداء (كَمَثَلِ حَبَّةٍ) حَبَّةٍ موصوف دې أنبتت الخ جمله کیدوسره صفت دې. موصوف صفت سره ملاؤشودَمحذوف متعلق کیدوسره دَ مبتداء خبر دې. مفسرعلام صفة اضافه کولو سره اوخودل چې مثل په معنی د مثال نه دې بلکه په معنی دَ صفت دې.

**سوال**: دنفقات داضافه څه مقصد دې؟

**جواب**: اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ مشبه دي او کاف حرف تشبيه دي او مثل حبة الخ مشبه به دي په مشبه او مشبه به کښې موافقت نه کيدو د وجې نه تشبيه صحيح نه ده ځکه چې مشبه به (اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ) د قبيل د حيوانات نه دي او مشبه (حبة) د قبيل د جمادات نه دي لهذا تشبيه مناسب نه ده. ددې دوه جوابونه کيدې شي يودا چې دمشبه طرف کښې حذف اومنلې شی لکه چې مفسرعلام لفظ نفقات محذوف منلې دې، اوس تقديری عبارت به داوی، مَثل نفقة الذين ينفقون کمثل حَبَّةٍ اَنْبَتت الخ. دويم جواب دادې چې مشبه به طرف کښې حذف اومنلې شی په دې صورت کښې به تقدير عبارت داوی مثل اَلَّذِينَ ينفقون اَمْوَالَهُمْ الخ کمثل زارع حبَّةٍ.

**قوله**: اکثرمِن ذلك په دې حذف سره ئې اشاره اوکړه چې يُضعِفُ مفعول محذوف دې.

**سوال**: مضاعفت خود ماقبل نه مفهوم کيږی دوباره ذکرکولو سره تکرار معلوميږی ددې څه فائده ده؟

**جواب**: اکثرمِن ذلك اضافه کولو سره ئې ددې سوال جواب ورکړې دې يعنی دماسبق نه چې کوم مفهوم کيږی دهغې نه به هم زيات الله تعالى ورکوی.

**قوله**: قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ، موصوف صفت سره ملاؤشو معطوف عليه او مغفرة معطوف، معطوف معطوف عليه سره ملاويدو سره مبتداء خَيْرٌمِنْ صدقة الخ خبر.

**سوال**: خَيْرٌ نکره دې ددې مبتداء جوړيدل څنګه صحيح دی؟

**جواب**: چونکه ددې معطوف عليه معرفه دې دکوم د وجې نه چې دمعطوف مبتداء جوړيدل صحيح شو.

**سوال**: معطوف عليه قَوْلٌ دې کوم چې نکره دې ددې پخپله مبتداء جوړيدل صحيح نه دی؟

**جواب**: کله چې نکره موصوفه بالصفت وی نوددې مبتداء جوړيدل صحيح کيږی. قَوْلٌ موصوف معروف صفت دې لهذا ددې مبتداء واقع کيدل صحيح شو.

**قوله** ای اُجُوْرَهَا.

**سوال**: اُجور مضاف محذوف منلو څه فائده ده؟

**جواب**: نفس صدقة يعنی د صدقې مال باطل کيدلو څه مفهوم نشته ځکه چې احسان کولو او تکليف رسولو سره د صدقې مال ضائع او باطل کيږی نه بلکه ددې اجر او ثواب ضائع کيږی. هم دا شك لرې کولو دپاره اُجُوْرَهَا اضافه کړې ده.

**قوله**: جمع الضمير باعتبار معنى الذى داهم دَ يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: د يُنفِقُون ضمير، اَلَّذِى ينفقُ طرف ته راجع دې كوم چې مفرد دې او يُنفِقُونَ كښې ضمير دَ جمع دې.

**جواب**: اَلَّذِى سره دَدې چې دَ لفظ په اعتبار سره مفردې مگر دَمعنى په اعتبار سره جمع دې، كما فى قول الشاعر:

وَان الَّذِىْ حَانَتْ بِفلج دِمَاؤهم هُمُ القوم كُلُّ القوم

فلج، بصره كښې دَ يو مقام نوم دې هغه سړې دَ چا وينه چې په مقام فلج كښې ضائع شوه په حقيقت كښې هم هغه دَ پوره قوم قائمقام وو، مقام استشهاد، هُمْ ضمير دې چې دَ اَلَّذِى طرف ته راجع دې.

**قوله**: نفقات دلته هم دَ حذف مضاف دَ وجې مشبه اومشبه به كښې موافقت پيداكول دى كمامرّ قريبًا.

**قوله**: اَعْطَتْ، دَ اٰتَتْ تفسير اعطت سره كولو كښې اشاره كړې ده چې اٰتت ايتاءٌ نه دې نه چې اِتيان نه

**[اياتونه: ٢٦٧ - ٢٧٣]**

---

{يأيها الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا} أي زكُّوا {مِنْ طَيِّبَات} جياد {ماكسبتم} من المال {ومم} ن طيات {ما أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْأَرْض} مِنَ الْحُبُوب وَالثِّمَار {وَلَا تَيَمَّمُوا} تَقْصِدُوا {الْخَبِيث} الرَّدِيء {مِنْهُ} أَيْ من المذكور {تنفقون} هـ فِي الزَّكَاة حَال مِنْ ضَمِير تَيَمَّمُوا {وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ} أَيْ الْخَبِيث لَوْ أَعْطَيْتُمُوهُ فِي حُقُوقكُمْ {إِلَّا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ} بِالتَّسَاهُلِ وَغَضّ الْبَصَر فَكَيْفَ تُؤَدُّونَ مِنْهُ حَقّ اللّه {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّه غَنِيّ} عَنْ نَفَقَاتكُمْ {حَمِيد} مَحْمُود عَلَي كل حال {الشَّيْطَان يَعِدكُمْ الْفَقْر} يُخَوِّفكُمْ بِهِ إِنْ تَصَدَّقْتُمْ فَتُمْسِكُوا {وَيَأْمُركُمْ بِالْفَحْشَاءِ} الْبُخْل وَمَنْع الزَّكَاة {وَاللّه يَعِدكُمْ} عَلَي الْإِنْفَاق {مَغْفِرَة مِنْهُ} لِذُنُوبِكُمْ {وَفَضْلًا} رزقا خلفا منه {والله وَاسِع} فَضْله {عَلِيم} بِالْمُنْفِقِ {يُؤْتِي الْحِكْمَة} أَيْ الْعِلْم النَّافِع الْمُؤَدِّي إِلَي الْعَمَل {مَنْ يَشَاء وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَة فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا} لِمَصِيرِهِ إِلَي السَّعَادَة الْأَبَدِيَّة {وَمَا يَذَّكَّر} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الذَّال يتعظ {إِلَّا أُولُوا الْأَلْبَاب} أَصْحَاب الْعُقُول {وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَة} أَدَّيْتُمْ مِنْ زَكَاة أَوْ صَدَقَة {أَوْ نَذَرْتُمْ مِنْ نَذْر} فَوَفَيْتُمْ بِهِ {فَإِنَّ اللّه يَعْلَمهُ} فَيُجَازِيكُمْ عَلَيْهِ {وَمَا لِلظَّالِمِينَ} بِمَنْعِ الزَّكَاة وَالنَّذْر أَوْ بِوَضْعِ الْإِنْفَاق فِي غَيْر مَحَلّه مِنْ مَعَاصِي اللّه {مِنْ أَنْصَار} مَانِعِينَ لَهُمْ مِنْ عَذَابه {إِنْ تُبْدُوا} تُظْهِرُوا {الصَّدَقَات} أَيْ النَّوَافِل {فَنِعِمَّا هِيَ} اي نعم شيئا إبداؤه {وَإِنْ تُخْفُوهَا} تُسِرُّوهَا {وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاء فَهُوَ خَيْر لَكُمْ} مِنْ إِبْدَائِهَا وَإِيتَائِهَا الْأَغْنِيَاء أَمَّا صَدَقَة الْفَرْض فَالْأَفْضَل إِظْهَارهَا لِيُقْتَدَي بِهِ وَلِئَلَّا يُتَّهَم وَإِيتَاؤُهَا الْفُقَرَاء مُتَعَيِّن {وَيُكَفِّر} بِالْيَاءِ وَالنُّون مَجْزُومًا بِالْعَطْفِ عَلَي مَحَلّ فَهُوَ وَمَرْفُوعًا عَلَي الِاسْتِئْنَاف

عنكم من} بعض {سيآتكم والله بما تعملون خبير} عالم بباطنه كظاهره لا يخفى عليه شيء منه ولما منع صلى الله عليه وسلم من التصدق على المشركين ليسلموا نزل {ليس عليك هداهم} أي الناس إلى الدخول في الإسلام إنما عليك البلاغ {ولكن الله يهدي من يشاء} هدايته إلى الدخول فيه {وما تنفقوا من خير} مال {فلأنفسكم} لأن ثوابه لها {وما تنفقون إلا ابتغاء وجه الله} أي ثوابه لا غيره من أعراض الدنيا خبر بمعنى النهي {وما تنفقوا من خير يوف إليكم} جزاؤه {وأنتم لا تظلمون} تنقصون منه شيئا والجملتان تأكيد للأولى {للفقراء} خبر مبتدا محذوف أي الصدقات {الذين أحصروا في سبيل الله} أي حبسوا أنفسهم على الجهاد نزلت في أهل الصفة وهم أربعمائة من المهاجرين أرصدوا لتعلم القرآن والخروج مع السرايا {لا يستطيعون ضربا} سفرا {في الأرض} للتجارة والمعاش لشغلهم عنه بالجهاد {يحسبهم الجاهل} بحالهم {أغنياء من التعفف} أي لتعففهم عن السؤال وتركه {تعرفهم} يا مخاطب {بسيماهم} علامتهم من التواضع وأثر الجهد {لا يسألون الناس} شيئا فيلحفون {إلحافا} أي لا سؤال لهم أصلا فلا يقع منهم إلحاف وهو الإلحاح {وما تنفقوا من خير فإن الله به عليم} فمجاز عليه

**ترجمه**: اې ايمان والوکوم مال چې تاسو ګټلې دې دَهغې نه ښکلې څيزونه خرچ کوئی زکوة ورکوئی اودَدې نه هم ښکلې څيزونه کوم چې مونږ ستاسو دَپاره دَ زمکې نه پيدا کړی دی. (مثلاً) غله او ميوې اودَ مذکوره څيزونونه دَ خراب څيزاراده هم مه کوئی چې دَهغې نه په زکوة کښې خرچ کړئی. تنفقون، تهموا دَضمير نه حال دې، حالانکه تاسو پخپله هم دَدغه خراب څيز اخستونکی نه يئې که دغه څيزونه ستاسو په حقوقوکښې درکړې شی مګرکه نرمی او چشم پوشی کولوسره تاسو په خيال کښې رانه ولئ نوبياتاسو په خراب څيزسره دَ الله تعالی حق څنګه اداکوئی اوپوهه شئی چې الله تعالی ستاسو دَ خرچې نه بې نيازاو په هرحال کښې ډيروصفاتومالک دې. شيطان تاسو دَ محتاجئی نه ويره وی (يعنی) که تاسو صدقه کوئی نو محتاج به شئی پس تاسو خرچ مه کوئی اوتاسو ته دَ بخل او زکوة نه ورکولو حکم کوی او الله تعالی په خرچ کونکوباندې دَخپل طرف نه ستاسو ګناه معاف کولو او دغه (خرچ کړې شوې) په عوض دَ رزق وعده کوی او الله تعالی دَ خپل فضل په معامله کښې ډير ارت مټ اوخرچ کونکی نه خبردې. هغه چاله چې غواړی حکمت يعنی داسې علم نافع چې عمل پورې رسونکې وی ورکوی اوچاته چې حکمت ملاؤشو هغه ته دَلوئی خير يوڅيز ملاؤشو دَدغه ابدی سعادت دَرسيدو دَ وجې نه. اونصيحت خو هم عقل مندخلق قبلوی اوتاسو چې څه هم خرچ کوئی (يعنی) صدقه اوزکوة اداکوئی يا کوم يو نذر چې هم منئی هغه پوره کوئی. يقيناً الله تعالی هغه پيژنی او هغه به تاسو ته دَهغې بدله درکوی. او زکوة بندول او نذر پوره کول يا دَ الله تعالی په معصيت کښې بې محل خرچ کولوسره به دَ ظلم کونکوهيڅوک حامی نه وی. (يعنی) دَهغه دَعذاب نه هغوی څوك هم بچ کونکی نشته. که چرې تاسو نفلی

صدقات ښکاره کوئی نو بیاهم ښه خبره ده یعنی دَدې ښکاره کول ښه خبره ده اوکه چرې تاسو دا په پټه اوساتئی او فقیرانوته ئې ورکړئی نودَهغې ښکاره کول او مالدارانوته دَ ورکولونه ستاسو په حق کښې بهتر ده. لیکن فرض صدقه چې دَهغې ښکاره کول غوره دی دې دَپاره چې خلق دَ هغې اقتداء اوکړی دې دَپاره چې دا سړې په محل تهمت کښې پاتې نه شي اودَده فقیرانوته ورکول متعین دی او الله تعالی به ستاسو څه ګناهونه هم لرې کړی. یُکَفِّرْ، دَ یا، او نون سره مجزوم اولوستلې شی نو فَهُوَ په محل باندې به عطف شی اوکه مرفوع اولوستلې شی نومستانفه کیدودَ وجې نه به مرفوع شی. اوتاسوچې څه هم کوئی الله تعالی دَهغې نه خبر دې، یعنی دَهغې دَباطن نه داسې خبرې دې لکه څنګه چې دَ ظاهرنه. دَهغه نه دَهغه هیڅ څیز پټ نه دې. اوکله چې رسول الله ﷺ په مشرکانو باندې صدقه کول منع کړل دې دَپاره چې هغوی اسلام قبول کړی نوبیادا آیت نازل شو ﴿ لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ ﴾ دَهغوی هدایت یعنی په اسلام کښې داخلول ستا په ذمه نه دې، ستا ذمه واری خو صرف رسول دی بلکه الله تعالی چې په اسلام کښې دَ چا داخلیدلو هدایت ورکول غواړی هدایت ورکوی اوتاسو چې دَمال نه څه هم خرچ کوئی هم خپل ځان دَپاره کوئی څکه چې دَدې اجر هم ستاسو دَپاره دې او تاسو هم دَالله تعالی دَ رضاحاصلولو دَپاره خرچ کوئی یعنی دَهغه دَ ثواب دَپاره نه چې په دنیاکښې دَڅه غرض دَ پاره، خبر په معنی دَ نهی دې او دَمال نه چې تاسو څه هم خرچ کوئی تاسو ته به دَهغې پوره پوره بدله درکولې شی په تاسو به لږ شان هم زیاتې نه شی کولې چې دَهغه په اجرکښې څه کمی اوکړې شی. دا دواړه جملې دَ ړومبې جملې تاکیددې. دَصدقات (اصل) مستحق هغه فقیران دی (لِلْفُقَرَاءِ) مبتداء دَ محذوف خبر دې څوک چې دَالله تعالی په لارکښې راګیرشو یعنی چاچې خپل ځان په جهاد کښې راګیر کړې دې (او راتلونکې آیت) دَ اصحاب صفه ﷺ باره کښې نازل شو او هغه دَ مهاجرینونه څلور سوه وو چې دَ قرآن تعلیم اودَ لښکر سره وتلوکښې تیار اوسیدل هغوی په جهادکښې دَمشغول کیدو دَ وجې نه (طلب) معاش او تجارت دَپاره سفرنه شوکولې، دَهغوی دَ حال نه ناخبره خلقو به هغوی غنیان ګنړل. دَسوال نه دَهغوی احتیاط کول اودَ ترک سوال کولودَ وجې نه به هغوی لرد مخاطب دَهغوی دَ تواضع اودَ مشقت دَ اثر دَ علامت نه پیژنې، هغوی خلقو پورې اینختلوسره دَ څه څیز سوال نه کوی یعنی هغوی بالکل سوال نه کوی، لهذا په اینختلوسره سوال کول هم دَهغوی دَ طرف نه نه کیږی اودَالحاف معنی اصرار ده اوتاسوچې دَمال نه څه هم خرچ کوئی الله تعالی هغه ښه پیژنی نوهغه به تاسو ته دَهغې بدله درکوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: الجیاد، دَطَيِّبٰت تفسیر الجیادسره کولوکښې اشاره اوکړه چې دَ طَيِّبٰت معنی حلال

نه ده کومه چې اکثر استعمالیږی بلکه دلته ښکلې معنی ده کوم چې دَ ردی په معنی کښې استعمالیږی.

**قوله**: تغمضوا، مضارع جمع مذکر حاضر، سترګې پټول، دلته مجازی معنی، معافی کول چشم پوشی کول مراددی.

**قوله**: البخل، دَ فحشاء تفسیر په بخل سره کولوکښې اشاره اوکړه چې دلته فحشاء په مشهوره معنی چې زنا ده مراد نه دې.

**قوله**: مجزومًا بالعطف علی محلِّ فَهُوَ ومرفوعًا علی الاستیناف. دَدې عبارت مقصد دَ یُکَفِّرُ اعراب خودل دی، که دا مجزوم به اولوستلې شی نو مجزوم دَ فَهُوَ محل باندې عطف کیدو دَ وجې نه وی ځکه چې فَهُوَ، جواب شرط کیدودَ وجې نه مجزوم دې او که چرې مرفوع اولوستلې شی نومرفوع جمله مستانفه کیدودَ وجې نه به وی شرط سره به دَدې هیڅ تعلق نه وی.

**قوله**: ای الناس، دې کښې اشاره ده چې هُدٰهم ضمیر الناس طرف ته راجع دې سره دَدې چې هغه په ماقبل کښې صراحةً مذکورنه وی مګرد مضمون کلام نه مفهوم دې دَ فقراء طرف ته راجع نه دې لکه چې په ظاهره معلومیږی ځکه چې په دې صورت کښې معنی صحیح نه پاتې کیږی.

**قوله**: الی الدخول فی الاسلام، دَدې اضافه نه دَ یوسوال جواب ورکول مقصوددی.

**سوال**: دَ رسول الله ﷺ نه دَ هدایت دَ نفی څه مقصددې سره دَدې چې دَ رسول الله ﷺ بعثت هم دَهدایت دَپاره دې.

**جواب**: دَ نفی هدایت نه مراد ایصال الی المطلوب نفی ده نه چې دَ اراءة الطریق.

**قوله**: خبر بمعنی النهی دادَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللهِ کښې خبرورکړې شوې دې چې تاسو هم دَ الله تعالی دَرضادَپاره خرچ کوئی حالانکه ډیرخلق دَ ریاء او ځان خودلودَپاره هم خرچ کوی. په دې کښې کذب باری لازم راځی.

**جواب**: دا دې چې خبر په معنی دَ نهی دې چې تاسو دَغیررضادَپاره مه خرچ کوئی.

**قوله**: لتعففهم دې کښې اشاره ده چې مِنَ التعفف، کښې مِنْ تعلیلیه دې نه چې تبعیضیه. لَا یَسْئَلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا، هغوی په اصرار سره سوال نه کوی، په دې کښې دَ فن بیان یوصنعت دې کوم ته چې نفی الشئ بإیجابه وائی په دې کښې په ظاهره دَ یوشئ نفی او بل

شئ اثبات وی مگر په حقیقت کښې دَدواړو نفی مقصود وی. په مذکوره آیت کښې په ظاهره د الحاف (اصرار) نفی ده، دَ نفس سوال نفی نه ده مگر مقصود کلام دَ مطلقاً نفی ده یعنی په ظاهره دَ قید نفی ده مگر په باطن کښې دَقید اومقیددواړو نفی ده.

**[ایاتونه:۲۷٤ - ۲۸۱]**

{الذين ينفقون أموالهم بالليل والنهار سرا وعلانية فلهم أجرهم عند ربهم ولا خوف عليهم ولا هم يحزنون} {الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا} أيْ يَأْخُذُونَهُ وَهُوَ الزِّيَادَة فِي الْمُعَامَلَة بِالنُّقُودِ وَالْمَطْعُومَات فِي الْقَدْر أو الأَجَل {لَا يَقُومُونَ} مِنْ قُبُورهمْ {إِلَّا} قِيَامًا {كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ} يَصْرَعهُ {الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ} الْجُنُون مُتَعَلِّق بِيَقُومُونَ {ذَٰلِكَ} الَّذِي نَزَلَ بِهِمْ {بِأَنَّهُمْ} بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {قَالُوا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا} فِي الْجَوَاز وَهَذَا مِنْ عَكْس التَّشْبِيه مُبَالَغَة فَقَالَ تَعَالَى رَدًّا عَلَيْهِمْ {وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا فَمَنْ جَاءَهُ} بَلَغَهُ {مَوْعِظَةٌ} وَعْظ {مِنْ رَبِّهِ فَانْتَهَى} عَنْ أَكْله {فَلَهُ مَا سَلَفَ} قَبْل النَّهْي أَيْ لَا يُسْتَرَدّ مِنْهُ {وَأَمْرُهُ} فِي الْعَفْو عَنْهُ {إِلَى اللَّهِ وَمَنْ عَادَ} إلَى أَكْله مُشَبِّهًا لَهُ بِالْبَيْعِ فِي الْحِلّ {فأولئك أصحاب النار هم فيها خالدون} {يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا} يُنْقِصهُ وَيُذْهِب بَرَكَته {وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ} يَزِيدهَا وَيُنَمِّيهَا وَيُضَاعِف ثَوَابهَا {وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ} بِتَحْلِيلِ الرِّبَا {أَثِيمٍ} فَاجِر بِأَكْلِهِ أي يعاقبه {إن الذين آمنوا وعملوا الصالحات وأقاموا الصلاة وآتوا الزكاة لهم أجرهم عند ربهم ولا خوف عليهم ولا هم يحزنون} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا} اُتْرُكُوا {مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} صَادِقِينَ فِي إيمَانكُمْ فَإِنَّ مِنْ شَأْن الْمُؤْمِن امْتِثَال أَمْر اللَّه تَعَالَى نَزَلَتْ لَمَّا طَالَبَ بَعْض الصَّحَابَة بَعْد النَّهْي بِرِبًا كَانَ لَهُمْ مِنْ قَبْل {فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا} مَا أُمِرْتُمْ بِهِ {فَأْذَنُوا} اعْلَمُوا {بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ} لَكُمْ فِيهِ تهديد شديد لهم لما نَزَلَتْ قَالُوا لَا بُدّ لَنَا بِحَرْبِهِ {وَإِنْ تُبْتُمْ} رجعتم عنه {فَلَكُمْ رُءُوسُ} أُصُول {أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ} بِزِيَادَةٍ {وَلَا تُظْلَمُونَ} بنقص {وَإِنْ كَانَ} وَقَعَ غَرِيم {ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ} لَهُ أَيْ عَلَيْكُمْ تَأْخِيره {إِلَى مَيْسَرَةٍ} بِفَتْحِ السِّين وَضَمّهَا أَيْ وَقْت يُسْر {وَأَنْ تَصَدَّقُوا} بِالتَّشْدِيدِ عَلَى إدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الصَّاد وَبِالتَّخْفِيفِ عَلَى حَذْفهَا أَيْ تَتَصَدَّقُوا عَلَى الْمُعْسِر بِالْإِبْرَاءِ {خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ} أَنَّهُ خَيْر فَافْعَلُوهُ وَفِي الْحَدِيث مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا أَوْ وَضَعَ عَنْهُ أَظَلَّهُ اللَّه فِي ظِلّه يَوْم لَا ظِلّ إلَّا ظِلّه رَوَاهُ مُسْلِم {وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ} بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ تُرَدُّونَ وَلِلْفَاعِلِ تَصِيرُونَ {فِيهِ إِلَى اللَّهِ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {ثُمَّ تُوَفَّى} فِيهِ {كُلُّ نَفْسٍ} جَزَاء {مَا كَسَبَتْ} عَمِلَتْ مِنْ خَيْر وَشَرّ {وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ} بنقص حسنة أو زيادة سيئة

**ترجمه:** کوم خلق چې خپل مال دَ شپې ورځې پټ او ښکاره خرچ کوی نودَداسې خلقودَپاره دَهغوی پروردگار سره اجر دې نه دَهغوی دَپاره څه ویره ده اونه به څه خفگان وی اوکوم خلق چې سود خوری یعنی سود اخلی اوهغوی په معاملاتو کښې دَ نقدو زیاتوالی او دَ ماکولات په مقدار او سوده کښې زیاتې کوی هغه خلق به دَ قبرونونه نه شی اودریدې مگر دَهغه سری په شان کوم چې

شیطان راغونډکړی او خبطی ئی جوړکړی. (یعنی) څوک چې شیطان راسملوی دهغه د
لیونتوب کیدو دوجې نه (مِنَ الْمَسِّ) د یقومون متعلق دې دهغوی داحالت به په دې وجه
وی چې هغوی وئیلی وو چې بیع خو په جواز کښې هم د سود په شان ده او دا د مبالغه د پاره اولټه
تشبیه ده، ددې جواب ورکولوسره الله تعالی اوفرمائیل الله تعالی بیع حلال او سودحرام
کړې دې بیا چاله چې دهغه د پروردګار نصیحت راورسیدو اوهغه د سود خوړلونه منع شو
نودممانعت نه وړاندې چې څه شوی دی هغه دهغه دی (یعنی) دهغه نه به واپس نه شی
اخستې اودهغه دمعاف کولومعامله هم الله تعالی سره ده اوکوم سړې چې د سود
خوړلوطرف ته راوګرځی سود په حلالوالی کښې د بیع په شان اوګڼړی هم دغه خلق
دوزخیان دی. او په هغې کښې به داخلق همیشه دپاره پراته وی، اوالله تعالی سود ختمه وی یعنی
داکمه وی اوددې برکت ختمه وی اوصدقات کښې اضافه کوی (یعنی) هغې ته وده ورکوی
اود دې اجر دوه چنده کوی او الله تعالی سود حلال ګرځونکې اوکفرکونکې او
سودخوری کونکې ګناهګار (فاجر) نه خوښه وی. بیشکه کوموخلقو چې ایمان راوړې اونیک
عمل کوی اود مانځه پابندی کوی او زکوٰة ورکوی دهغوی اجردهغوی پروردګارسره دی نه به په
هغوی باندې څه ویره وی اونه څه غم. اې دایمان والو دالله تعالی نه اوویریږئی او څه چې د سود نه
باقی دی هغه پریږدئی که چرې تاسو مؤمنان یئې (یعنی) که تاسو په خپل ایمان کښې رښتونی
یئې ځکه چې د مؤمن شان دالله تعالی حکم په ځائی راوړل دی (وړاندې) آیت هغه وخت
نازل شو کوم وخت چې بعض صحابه کرامو ﷺ د سوددممانعت نه پس د سابقه سود
مطالبه اوکړه، که چرې تاسو داسې اونه کړل نو خبرشئی د الله تعالی اودهغه د رسول ﷺ د طرف
نه تاسو ته د جنګ اعلان دې. په دې کښې دهغوی دپاره سخته درږه که ده او کله چې دا
آیت نازل شو نو (صحابه کرامو) اووئیل په مونږ کښې هغوی سره د جنګ طاقت نشته،
اوکه چرې تاسو توبه اوکړئی یعنی دې نه منع شئی نو (رأس المال) د اصل سرمایه تاسو ته حق
دې مه تاسو زیاتې کولوسره ظلم کوئی اومه کمې کولوسره دې په تاسو ظلم اوکړې شی، اوکه چرې
قرضدارې تنګ دست وی نو دهغه د وسعت پورې دهغه دپاره مهلت دې (یعنی وصول کول
مؤخرکول دی) (مَيْسَرَةٍ) د سین فتحه او ضمه سره، یعنی دهغه دخوشحالئ پورې اوکه چرې
تاسو ئی معاف کړئی (تَصَدَّقُوْا) تشدید سره تاء په صاد کښې ادغام کول او تخفیف سره تاء
حذف کول یعنی تنګ دست ته قرض معاف کړئی او بری ئې کړئی. نوستاسود پاره بهترده
که چرې تاسو پوهیږئی چې بهترده نو داسې اوکړئی، په حدیث شریف کښې دی چاچې
تنګ دست ته مهلت ورکړو یا ئی هغه ته خپل قرض معاف کړو نوالله تعالی به هغه په
خپل سوری کښې ساتی په کومه ورځ چې به دهغه د سوری نه علاوه بل سورې نه وی
(رواه مسلم) اود هغه ورځې نه اوویریږئی په کومه ورځ چې تاسو دالله تعالی طرف ته واپس

کرځولې شي دَ مجهول صيغې سره، معنى واپس کولې به شي او دَ معروف صيغې سره، يعنى تاسو به واپس کيږئى هغه دَ قيامت ورځ ده، يا په هغه ورځ به هرسړى ته دَهغه دَ عمل کوم چې هغه کړې وى ښه يا بد پوره پوره بدله ورکولې شى. او دَهغوى په نيکواعمالو کښې کمې کولو سره يا په ګناه کښې زياتوالې کولو سره په هغوى ظلم نه شى کولې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: اى بِاَخْذِهٖ په دې اضافه کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې اکل (خوراك) نه مراد صرف هم خوراك نه دې بلکه مطلقاً اخستل دى که خورى اوکه لباس جوړه وى يا جمع کولو سره ئى ايږدى يا چرته په بل کارکښې استعمال کړى مګر خوړل چونکه دَ اهمو مصارفو نه دى په دې وجه ئى صرف دَ خوراك ذکرکړې دې.

**قوله**: المطعومات، دا قيد مفسرعلام دَ امام شافعى رحمه الله دَ مذهب مطابق لګولې دې ځکه چې دَ ربوا دَ پاره دَهغوى په نيزدَ قبيل مطعومات يا ثمنيات کيدل ضرورى دى. دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په قدر اوجنس کښې اتحادکافى دې دَ قبيل مطعوم نه کيدل ضرورى نه دى.

**قوله**: فى القدر اوالاجل دا المعامله نه بدل دې دَ قدر تعلق ربوا فضل سره دې اودا اتحادبه دَ جنس په صورت کښې وى اودَ الاجل تعلق اتحادسره دې، که چرې جنس مختلف وى او قدرکښې اتحادوى نو تفاضل جائزدې او قرض به ناجائزوى.

**قوله**: من قبورهم مفسرعلام مِن قبورهم قيدلګولو سره دَدې شبه جواب وزکړو چې په دنياکښې مونږ ګورو چې څومره سود خواره دى مګر دَهغوى په قيام اوقعودکښې دَ څه قسم خبط اوعدم توازن نه وى داخودَ واقعه نه خلاف معلوميږى حالانکه په کلام بارى تعالى کښې کذب نه شى کيدې.

**جواب**: دَ قيام نه مراد په روزمحشر دَخپل قبرنه اودريدل دى نه چې په دنياکښې اودريدل دى، هم دَدې شبه دَ جواب دَپاره دَمِن قبورهم دَ قيد اضافه کړې ده.

**قوله**: قِيَامًا.

**سوال**: دَ لفظ قيام دَ اضافه څه فائده ده؟

**جواب**: دا دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دادې چې اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ کښې حرف استثناء حرف (کاف) باندې داخل دې حالانکه دَحرف استثناء په حرف باندې داخليدل صحيح نه دى. ما که موصوله وى اوکه مصدريه.

**جواب**: مستثنى محذوف ده او هغه قيامًا ده لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله**. يَتَخَبَّطُهُ (تفعّل) نه مضارع واحد مذكر غائب ﺉ ضمير مفعول دا پاكل جوړ وى دَ خبط اصل معنى په غير متوازن طريقه باندې تګ، كخبط العشواء بې طريقې تلونكې اوښه دا هغه وخت ونيلې شى كله چې څوك په غير متوازن طريقه سره روان شى.

**قوله**. من الجنون دا اَلْمَسّ تفسير دې.

**قوله**: من عكس التشبيه الخ عكس ځكه دې چې كلام په ربوا كښې دې نه چې بيع كښې لهذا ربوا يعنى سود ته د بيع سره تشبيه وركول پكار وو نه چې بيع له د ربوا سره، داسې دَ مبالغه په توګه كړى دى ځكه چې جواز ربوا دَهغوى په نيز اصل وو هم په دې باندې ئى بيع قياس كړه.

**قوله**. وعظ، دَ موعظة تفسير وعظ سره كولو كښې اشاره اوكړه چې موعظة مصدر ميمى دې نه چې ظرف.

**قوله**: عنه، اى عن: كل الربوا.

**قوله**: الى اكله مشبهًا له بِالْبَيْعِ فِى الحِلِّ په دې عبارت سره دَ يو سوال جواب مقصود دې.

**سوال**: دادې چې دَ آيت نه دا مفهوم كيږى چې كه چرې څوك سرې دَ ممانعت نه پس د اكل ربوا اعاده او ارتكاب اوكړى نو هغه به په دائمى توګه باندې دوزخ ته ځى كومه چې دَ معتزله نظريه ده.

**جواب**: خلاصه داده چې دائمى په دوزخ كښې داخله به په هغه صورت كښې وى چې ربوا دَ بيع په شان حلال ګنړى او استعمالوى.

**قوله**: يُعَاقِبَهُ، دادَ لَايُحِبُّ تفسير دې.،

**قوله**. بِحَرْبٍ، دَحرب تنكير تعظيم او شدت باندې دلالت كوى بل دَ الله تعالى اودَهغه دَ رسول ﷺ طرف ته نسبت سره د دې په شدت يعنى سختوالى كښې نوره اضافه شوې ده.

**قوله**. لايَدَىٍ لَنَا، اى لا طاقة لنا.

**قوله**. وَقَعَ غَرِيمٌ سره دې خبرې ته اشاره ده چې كان تامه دې دَدې دَخبر ضرورت نشته، يعنى كانَ په معنى د وَقَعَ دې.

**قوله**. اى عَلَيْكُمْ تاخيره، فَنَظِرَةٌ مبتداء ده دَدې خبر عَلَيْكُمْ تَاخِيْرَهُ محذوف دې، دَخبر دَحذف ضرورت په دې وجه پيښ شو چې فَنَظِرة جمله كيدو سره جواب شرط واقع شى، تاخيره اضافه كولو سره اشاره اوكړه چې نَظِرة، انظار نه دې چې په معنى دَ مهلت دې نه چې دَ نظر نه په معنى دَ رؤيت.

**قوله**. وقت يسره دې سره اشاره اوكړه چې مَيْسرة، ظرف دې مصدر ميمى نه دې.

[آیاتونه: ۲۸۲-۲۸۳]

{يٰأيها الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ} تَعَامَلْتُمْ {بِدَيْنٍ} كَسَلَمٍ وقرض {إلى أجل مسمى} معلوم {فَاكْتُبُوهُ} استيثاقا ودفعا للنزاع {وَلْيَكْتُبْ} كِتَاب الدَّيْن {بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ} بالحق في كتابته لا يزيد في المال والأجل ولا ينقص {وَلَا يَأْبَ} يمتنع {كَاتِبٌ} من {أَنْ يَكْتُبَ} إذا دُعِيَ إليها {كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ} أي فضله بالكتابة فلا يبخل بها والكاف متعلقة بيأب {فَلْيَكْتُبْ} تأكيد {وَلْيُمْلِلِ} يُمِل الكاتب {الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ} الدَّيْن لأنه المشهود عليه فيقر ليعلم ما عليه {وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ} في إملائه {وَلَا يَبْخَسْ} ينقص {مِنْهُ} أي الحق {شَيْئًا فَإِنْ كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا} مبذرا {أَوْ ضَعِيفًا} عن الإملاء لصغر أو كبر {أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ هُوَ} لخرس أو جهل باللغة أو نحو ذلك {فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ} متولي أمره من والد ووصي وقيم ومترجم {بِالْعَدْلِ وَاسْتَشْهِدُوا} أشهدوا على الدين {شَهِيدَيْنِ} شاهدين {مِنْ رِجَالِكُمْ} أي بالغي المسلمين الأحرار {فَإِنْ لَمْ يَكُونَا} أي الشهيدان {رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ} يشهدون {مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ} لدينه وعدالته وتعدد النساء لأجل {أَنْ تَضِلَّ} تنسى {إِحْدَاهُمَا} الشهادة لنقص عقلهن وضبطهن {فَتُذَكِّرَ} بالتخفيف والتشديد {إِحْدَاهُمَا} الذاكرة {الْأُخْرَى} الناسية وجملة الإذكار محل العلة أي لتذكر إن ضلت ودخلت على الضلال لأنه سببه وفي قراءة بكسر أن شرطية ورفع تذكر استئناف جوابه {وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا} زائدة {دُعُوا} إلى تحمل الشهادة وأدائها {وَلَا تَسْأَمُوا} تملوا من {أَنْ تَكْتُبُوهُ} أي ما شهدتم عليه من الحق لكثرة وقوع ذلك {صَغِيرًا} كان {أَوْ كَبِيرًا} قليلا أو كثيرا {إِلَى أَجَلِهِ} وقت حلوله حال من الهاء في تكتبوه {ذَلِكُمْ} أي الكتب {أَقْسَطُ} أعدل {عِنْدَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ} أي أعون على إقامتها لأنه يذكرها {وَأَدْنَى} أقرب إلى {أ} ن {لَا تَرْتَابُوا} تشكوا في قدر الحق والأجل {إِلَّا أَنْ تَكُونَ} تقع {تِجَارَةً حَاضِرَةً} وفي قراءة بالنصب فتكون ناقصة واسمها ضمير التجارة {تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ} أي تقبضونها ولا أجل فيها {فليس عليكم جناح} في {أ} ن {لا تكتبوها} والمراد بها المتجر فيه {وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ} عليه فإنه أدفع للاختلاف وهذا وما قبله أمر ندب {وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَلَا شَهِيدٌ} صاحب الحق ومن عليه بتحريف أو امتناع من الشهادة أو الكتابة ولا يضرهما صاحب الحق بتكليفهما ما لا يليق في الكتابة والشهادة {وَإِنْ تَفْعَلُوا} ما نهيتم عنه {فَإِنَّهُ فُسُوقٌ} خروج عن الطاعة لا حق {بِكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ} في أمره ونهيه {وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ} مصالح أموركم حال مقدرة أو مستأنف {والله بكل شيء عليم} {وَإِنْ كُنْتُمْ عَلَى سَفَرٍ} أي مسافرين وتداينتم {ولم تجدوا كاتبا فرهن} وفي قراءة فرهان جمع رهن {مقبوضة} تستوثقون بها وبينت السنة جواز الرهن في الحضر ووجود الكاتب فالتقييد بما ذكر لأن التوثيق فيه أشد وأفاد قوله مقبوضة اشتراط القبض في الرهن والاكتفاء به من المرتهن ووكيله {فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا} أي الدائن المدين على حقه فلم يرتهن {فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ} أي المدين {أَمَانَتَهُ} دينه {وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ} في أدائه {وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ} إذا دعيتم لإقامتها {وَمَنْ

يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ} خُصَّ بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُ مَحَلُّ الشَّهَادَةِ وَلِأَنَّهُ إِذَا أَثِمَ تَبِعَهُ غَيْرُه فَيُعَاقَب عَلَيْهِ مُعَاقَبَة الآثِمِين
{وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ} لا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْء مِنْهُ

**ترجمه**: اې دَايمان والو كوم وخت چې تاسو دَ پور مثلاً بيع سلم او قرض معامله دَ يوې مودې معلومې پورې كوئى نو هغه دَ دستاويز په توګه دَ جګړې ختمولو دَپاره ليكئ او ستاسو په مينځ كښې دَقرض (تحرير) ليكونكى ته پكار دى چې په حق (اوانصاف) سره اوليكى په مال اوموده كښې دې نه زياتې كوى اونه كمې. اوليكونكى له دَ ليكلونه انكارنه دى كول پكار كوم وخت چې هغه ته دَ ليكلودَپاره اووئيلې شى، لكه څنګه چې الله تعالى هغه ته ليكل خودلى دى. يعنى دَ كتابت په ذريعه هغه ته فضيلت وركړې شوې دې لهٰذا په ليكلو كښې بخيلى مه كوئى. اوكاف، دَ يَأبَ سره متعلق دې پكاردى چې هغه دې اوليكى. داتاكيددې او په چا باندې چې حق دې (يعنى) قرض دارى له پكاردى چې په كاتب باندې اوليكى. څكه چې هغه مشهودعليه دې نواقراردې اوكړى دې دَپاره چې معلومه شى چې په هغه باندې څه واجب دى؟ اوكاتب له دَ ليكلو په وخت دَخپل رب الله تعالى نه ويريدل پكاردى اودَحق نه دې هيڅ هم نه كمه وى. فرض كړه كه مديون كم عقل فضول خرچ وى يا دَ وړوكوالى يا دَ بوډاوالى دَ وجې نه (بدنى توګه) باندې ضعيف وى، يا ګونګا وى يا په ژبه نه پوهيږى يادَ څه بل څه وجې نه په ليكلوباندې قادرنه وى نودَهغه كارنده له پكار دى چې تيک تيک دې اوليكى (كارنده) كه پلار وى كه وصى وى يا منيجروى يامترجم وى او په قرض باندې دَ بالغ مسلمان آزاد سړو نه دوه سړى ګواه جوړول پكاردى. اوكه چرې دوه سړى ګواهان نه وى نويوسړې او دوه ښځې دې ګواه شى داسې ګواه كوم چې دَهغوى دَ دين او عدالت دَ وجې نه تاسو خوښه وئى اودَ ښځو په دوو كيدوكښې مصلحت دادې كه چرې په هغوى كښې يوه شهادت هير كړى دَهغې دَعقل اوياداشت دَ ناقص كيدودَ وجې نه نو په هغوى كښې يوه يعنى ياد ساتونكې دويمې يعنى هيرونكې ته يادګيرنه وركړى (فَتُذَكِّرَ) تخفيف اوتشديد سره دې، حقيقت كښې اذكار دَ لام علت دَ داخليدو محل دې. اى لِتُذَكِّرَ اِنْ ضَلَّتْ كه چرې هيركړى نو وريادنى كړئ، اولام دَعلت په ضلال باندې څكه داخل شوې دې چې هم هغه سبب دَ تذكيردې او په يوقراءت كښې، د اِنْ شرطيه كسره او تذكرپه رفع سره جمله مستانفه او جواب شرط دې اوكله چې دَګواه جوړولو يا ګواهى وركولو دَپاره ګواهان راؤغوښتلې شى، مَا زائده دې نوانكارنه دى كول پكار كه معامله غټه وى اوكه وړه، دَ اداكولو دَ ميعاد تعيين سره ليكلو كښې سستى نه دى كول پكار، يعنى په چاباندې چې تاسو دَ حق ګواهى وركړې ده دَهغې دَ كثرت سره واقع كيدو دَ وجې نه ستومانه كيدل نه دى پكار. (الى اجله) دَ تكتبوا دَ ضميرنه حال دې. دا ليكل دَالله تعالى په نيز عدل سره زيات نيزدې دى او دَ

شهادت په قائم کولو باندې ډیر معاون دی ځکه چې دا دَتحریری شهادت یادګیرنه ورکوی او ډیر نیزدې دی چې تاسو دَحق په مقدار او مودې باره کښې په شک کښې پرېنوځئ. (او) کهٔ لین دین لاس په لاس (نقد) وی دکوم چې تاسو لین دین کوئ (یعنی مبیع اوثمن باندې) لاس په لاس قبضه کوئ اودَهغې څه موده نه وی (یعنی قرض نه وی) او (تجارةً حاضرةً) په یوقراءت کښې نصب سره دې په دې صورت کښې به تکون ناقصه وی اودَ دې اسم تجارة (طرف نه راګرځیدونکې) به ضمیر وی نو ستاسو دَپاره په دې صورت کښې هیڅ مضائقه نشته چې اونه لیکئ اودَ تجارت نه مراد سامان تجارت دې. (بیاهم تاسو په دې باندې) ګواه کوئ، کوم وخت چې تاسو اخستل اوخرڅول کوئ ځکه چې دا خبره اختلاف ډیر ختمونکې دې، (اودَ شهادت دا حکم اوپه ماقبل کښې دَ کتابت حکم) استحبابی دې. اوکاتب اوګواه ته نقصان مه رسوئ یعنی صاحب حق او په چاچې حق دې هغه دې نقصان نه رسوی. (تحریر کښې تحریف کولوسره یا ګواه او کاتب دګواهئ اوکتابت نه منع کوی او نه دې دَ صاحب حق کاتب او ګواه ته تکلیف رسوی چې هغه دَداسې خبرې دَپاره مجبوره کړی چې دَ شهادت اوکتابت لائق نه وی اوکه چرې تاسو دَ ممنوعه حکم ارتکاب کوئ نودا ستاسو په حق کښې یوه ګناه ده چې تاسو پورې به اینخلی. یعنی دَ طاعت نه خروج دې، دَ دې امر او نهی په معامله کښې دَالله تعالی نه ویرېږئ او الله تعالی تاسو ته ستاسو دَ معاملاتو مصلحتونه ښائی او (وَیعلمکم،دَ اتقوا دَ ضمیرنه) حال مقدره دې. یاکلام مستانفه دې اوالله تعالی هریوڅیز ښه پیژندونکې دې او که چرې تاسو دَسفرپه حالت یئې یعنی مسافرونی اودَ قرض ورکولویا اخستلو معامله پیښه شوه او څوک لیکونکې موجودنه وی نو ګانړه ساتونکی څیزونه په قبضه کښې ورکړئ دَ کوم په ذریعه چې تاسو معامله مضبوطه کړنی او په یوقراءت کښې رُهُنٌ دې او په حدیث کښې حالت حضر اوکاتب موجودکیدو په صورت کښې هم رهن یعنی ګانړه بیان کړې شوې دې. ځکه چې مذکوره دواړه قیدونه ځکه چې دی چې حالت سفرکښې دَمضبوطولو ضرورت زیات سخت وی او مقبوضة لفظ نه داخبرد مستفاد کیږی چې په ګانړه کښې قبضه شرط دې اودا چې پخپله مرتهن یا دَ هغه وکیل قبضه اوکړی نوکافی دی اوکه چرې خپل مینځ کښې یوبل باندې دائن او مدیون ته دَخپل حق باره کښې اعتبار وی نو رهن دې نه ساتی. نو په چاباندې چې اعتبار کړې شوې دې (یعنی مدیون) نوهغه له پکاردی چې دَ هغه قرض اداکړی اودَالله تعالی نه چې دَهغه رب دې دَ قرض دَ اداکولو باره کښې ویرېږی اوکله چې تاسو دَ ګواهئ دَ ادا کولودَپاره راوغوښتلې شی نو تاسو ګواهی مه پټه وئ اوڅوک چې دا پټه وی نودَهغه زړه به ګناهګاروی او دَ قلب په مخصوص توګه باندې ذکر ځکه کړې دې چې هم دغه دَ شهادت محل دې او

څکه هم چې کله زړه ګناهګار شی نو دغې په اتباع کښې به ټول اعضاء ګناهګار وی نو د ګناهګارانو په شان به هغې سره د سزا معامله کولې شی. اوځه چې تاسو کوئی الله تعالی دَهغې نه خبردار دې ستاسو دَ اعمالونه دَهغه نه هیڅ یوعمل پټ نه دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** تَدَايَنْتُمْ (تَدَايُنٌ) تَفَاعُلٌ ماضی جمع مذکرحاضر، تاسو دَ قرض لین دین اوکړو.

**قوله:** تعامَلْتُمْ دَدې اضافه دَ تَدَايَنْتُمْ بیان معنی دَپاره دې ځکه چې دَ تَدَايُنْ دوه معنې راځی خپل مینځ کښې دَ قرض معامله کول، او بدله ورکول (كما يقال كما تُدِيْنُ تُدَانُ) دلته رومبې معنی مراد ده. دویمه وجه داده چې دَيْنٌ دَ تَدَايَنْتُمْ دَپاره تاسیس وی نه چې تاکید، که چرې تَدَايَنْتُمْ دَ دَيْنٌ په معنی کښې واخستې شی نو وړاندې بِدَيْنٍ لفظ به دَ تَدَايَنْتُمْ تاکیدوی حالانکه دَتاکید نه تاسیس بهتردې ځکه چې تَدَايَنْتُمْ دَ تعاملتم په معنی کښې اخستې شوې دې.

**قوله:** اِستِينافٌ، یعنی فَتُذَكِّرَ جمله مستانفه ده په دې معنی چې اِنْ شرطیه په دې کښې عامل نه دې.

**قوله:** كـانَ، كانَ محذوف منلوسره ئې اشاره اوکړه چې صغيرًا اوكبيرًا دَ كانَ محذوف خبردې.

**قوله:** تَقَعُ، دَ كان تفسیر ئې تَقَعُ سره کولوکښې ئې اشاره اوکړه چې کانَ تامه دې تجارة حاضرة دَدې اسم دې او په یوقراءت کښې نصب سره دې. په دې صورت کښې به تکون ناقصه وی. تقدیری عبارت به داوی اِلَّا اَن تکونَ التِّجارَةُ تِجَارَةً حَاضِرَةً.

**قوله:** حَالٌ مقدرةٌ اَوْمُسْتَانِفٌ دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال:** دَ يُعَلِّمُكُمُ اللهُ عطف په واتقوالله باندې صحیح نه دې ځکه چې دابه دَ جمله خبریه په جمله انشائیه باندې عطف وی کوم چې صحیح نه دې.

**جواب:** واؤ عاطفه نه دې بلکه حالیه یا استینافیه دې.

**قوله:** تَسْتَوْثِقُوْنَ بِهَا دا جمله محذوف منلومقصددا خودل دی چې فرهانٌ مقبوضةٌ موصوف صفت سره ملاؤشو مبتداء شوه او تَسْتَوْثِقُوْنَ جمله کیدوسره دَدې خبردې.

**[اياتونه:۲۸٤ - ۲۸٦]**

{لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَاِنْ تُبْدُوْا} تُظهِروا {مَا فِيْ اَنْفُسِكُمْ} مِن السُّوء والعَزم عَلَيْهِ {اَوْ تُخْفُوْهُ} تُسِرُّوهُ {يُحَاسِبْكُمْ} يُخبِركُم {بِهِ اللّٰهُ} يَوم القِيَامَة {فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاءُ} المَغفِرَة لَهُ {وَيُعَذِّبُ مَنْ

يَشَاء} تعذيبه وَالفِعْلَانِ بِالْجَزْمِ عَطْف عَلَي جَوَاب الشَّرْط وَالرَّفْع أَيْ فَهُوَ {وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ} وَمِنْهُ محَاسَبَتكُمْ وَجَزَاؤُكُمْ {آمَنَ} صَدَّقَ {الرَّسُول} مُحَمَّد صَلّي اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّه} مِنَ القُرْآن {وَالْمُؤْمِنُونَ} عُطِفَ عَلَيْهِ {كُلٌّ} تنوينه عِوَض مِنَ الْمُضَاف إِلَيْهِ {آمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِه وَكُتُبِه} بِالْجَمْعِ وَالإِفْرَاد {وَرُسُلِه} يَقُولُونَ {لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِه} فَنُؤْمِن بِبَعْضٍ وَنَكْفُر بِبَعْضٍ كَمَا فَعَلَ الْيَهُود وَالنَّصَارَي {وَقَالُوا سَمِعْنَا} أَيْ ما امرنا به سماع قبول {وأطعنا} نسألك {غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيْر} الْمَرْجِع بِالْبَعْثِ وَلَمَّا نَزَلَتْ الآيَة الَّتِي قَبْلَهَا شَكَا الْمُؤْمِنُونَ مِنَ الْوَسْوَسَة وَشَقَّ عَلَيْهِمْ الْمُحَاسَبَة بِهَا فَنَزَلَ {لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا} أَيْ ما تسعه قدرتها {لَهَا مَا كَسَبَتْ} مِنَ الْخَيْر أَيْ ثَوَابه {وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ} مِنَ الشَّرّ أَيْ وِزْره وَلَا يُؤَاخَذ أَحَد بِذَنْبِ أَحَد وَلَا بِمَا لَمْ يَكْسِبهُ مِمَّا وَسْوَسَتْ بِهِ نَفْسه قُولُوا {رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا} بِالْعِقَابِ {إِنْ نَسِيْنَا أَوْ أَخْطَأْنَا} تَرَكْنَا الصَّوَاب لَا عَنْ عَمْد كَمَا آخَذْت بِهِ مَنْ قَبْلنَا وَقَدْ رَفَعَ اللّٰه ذٰلِكَ عَنْ هٰذِهِ الأُمَّة كَمَا وَرَدَ فِي الْحَدِيث فَسُؤَاله اعْتِرَاف بِنِعْمَةِ اللّٰه {رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا} أَمْرًا يَثْقُل عَلَيْنَا حَمْله {كَمَا حَمَلْتَه عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا} أَيْ بَنِي إِسْرَائِيل مِنْ قَتْل النَّفْس فِي التَّوْبَة وَإِخْرَاج رُبْع الْمَال فِي الزَّكَاة وَقَرْض مَوْضِع النَّجَاسَة {رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ} قُوَّة {لَنَا بِهِ} مِنَ التَّكَالِيف وَالْبَلَاء {وَاعْفُ عَنَّا} امْحُ ذُنُوبنَا {وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا} فِي الرَّحْمَة زِيَادَة عَلَي الْمَغْفِرَة {أَنْتَ مَوْلَانَا} سَيِّدنَا وَمُتَوَلِّي أُمُورنَا {فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِيْنَ} بِإِقَامَةِ الْحُجَّة وَالْغَلَبَة فِي قِتَالهمْ فَإِنَّ مِنْ شَأْن الْمَوْلَي أَنْ يَنْصُر مَوَالِيه عَلَي الْأَعْدَاء وَفِي الْحَدِيث لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَة فَقَرَأَهَا صَلَّي اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيلَ لَهُ عَقِب كُلّ كَلِمَة قَدْ فَعَلْت

**ترجمه:** په آسمانونواو زمكه كښې چې څه دي ټول هم دَالله تعالى دي خراب اعمال اودَهغې اراده كوم چې ستاسو په زړونوكښې ده كه هغه تاسو ښكاره كړئې اوكه پټه الله تعالى به دَهغې تاسو ته په قيامت كښې سزادركوى، بيا چې دَ چا مغفرت غواړي مغفرت به اوكړي اوچاته چې عذاب وركول غواړي نو عذاب به وركوى. دواړه فعلونه (يغفر او يعذبُ) جواب شرط (يُحَاسِبْكُمْ) باندې عطف كيدو دَ وجې نه مجزوم دي او هُوَ د تقدير دَ وجې نه مرفوع هم، او الله تعالى په هرڅيزباندې قدرت لرونكي دې اوهم دَ دغه څيزونونه ستاسو محاسبه كول او تاسوته بدله دركول دى. رسول يعنى محمد ﷺ دَدې قرآن تصديق اوكړو كوم چې په حضورپاک باندې دَهغه دَ رب دَ طرف نه نازل كړې شوې دې او مؤمنانو (هم) دَدې عطف اَلرَسول باندې دې. دا ټول د (كُلٌّ) د تنوين دمضاف اليه عوض دى (اى كلّهُمْ) په الله باندې اودَهغه په فرښتو باندې اودَهغه په كتابونوباندې ايمان راوړو (كُتُبُ،كتاب) جمع او افرادسره دې اودَهغه په رسولانوباندې هغوى وائى چې مونږ دَهغه په رسولانوكښې هيڅ فرق نه كوو چې په بعضو باندې ايمان راوړو او دَ بعضو نه انكار اوكړو لكه څنگه چې يهودو اونصارىٰ كړى دى. اوهغوى اووئيل دَ څه چې تامونږ ته حكم راكړې دَ قبلولوپه غوږونو باندې مونږ واوريده او

مونږ اطاعت اوکړو اې زمونږ پروردګار مونږ تانه دَ خطا بخښلوسوال کوو اوهم ستاطرف ته واپسی ده، یعنی دَ بعث په ذریعه واپس کیدل دی اوکله چې په ماقبل کښې آیت نازل شو نو مؤمنانو دَ وسوسوباره کښې شکایت اوکړو او په هغوی باندې دَ وسوسوباره کښې حساب کول مشکل تیرشو نو ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ۭ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۭ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَي الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۪ وَاغْفِرْ لَنَا ۪ وَارْحَمْنَا ۪ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَي الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴾ نازل شو الله تعالی څوک دَهغه دَ طاقت نه دَ زیات مکلف نه جوړوی یعنی کوم چې دَهغه په طاقت کښې وی، کومه نیکی چې کوم یونفس اوکړله دَهغې ثواب هم دَهغه دَپاره دې اوچاچې کومه بدی اوکړله دَهغې ګناه هم په هغه باندې ده هیڅوك به دَ بل چا په جرم کښې نه راتیولې کیږی اونه په نه کړې شوې جرم یعنی دَ نفس په وسوسو کښې نیولې کیږی، اووایئ اې زمونږ پروردګار زمونږ دَعذاب په ذریعه راګیرول مه کوې که زمونږ نه هیره یا غلطی اوشی (یعنی) که بغیرد ارادې نه مونږ صحیح لار پریږدو لکه څنګه چې په دې باندې زمونږ نه وړاندې خلقو راګیرول شوی دی او الله تعالی دَدې امت نه هیره معاف کړې ده لکه چې په حدیث کښې واردشوی دی بیا دَ (معافئی) درخواست په اصل کښې دَالله تعالی دَ نعمت اعتراف دې اې زمونږ پروردګار په مونږ باندې داسې بوج مه اچوه لکه چې تا په هغه خلقوا چولې کوم چې مونږ نه وړاندې وو یعنی بنی اسرائیل چې هغه دَ توبې په عوض کښې دَنفس قتل دې او په زکوة کښې دَ څلورمې حصې مال زکوة ویستل اودَنجاست مقام پرې کول، یعنی داسې حکم چې زمونږ دَپاره دَ برداشت نه بهر وی دَ تکالیف او دَ مصیبتونو دَ قبیل نه او زمونږ نه زمونږ ګناهونه معاف کړه، مونږ معاف کړه او په مونږ باندې رحم اوکړه په رحمت کښې دَ مغفرت په مقابله کښې زیاتوالې دې هم ته زمونږ آقا ئی یعنی زمونږ دکارونو متولی، پس مونږ ته په کافرانو باندې غلبه راکړې په قیام حجت کښې اودهغوی سره په جنګ کښې په فتح سره، ځکه چې دَ آقا شان داوی چې هغه دَ خپلو غلامانو دَ دښمنانو په مقابله کښې امداد کوی او په حدیث کښې دی چې کله دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ دَدې تلاوت اوفرمائیلو نودَهرې کلمه نه پس (رسول ﷺ) ته اوونیلې شو، قدفعلت یعنی ما منظور کړل.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: تُظْهِرُوْا، دَ تُبْدُوْا تفسیر تُظْهِرُوْا سره کولو کښې اشاره اوکړه چې تُبْدُوْا اِبْداءٌ نه دې نه چې بذءٌ نه دَ کوم معنی چې دَ شروع کولو ده.

**قوله**: مِنْ سوءٍ مِنْ بیانیه دې دَ مَا بیان دې.

**قوله** يُحَاسِبْكُمْ دَدې دوه تفسيرونه دي يو يُجْزكُمْ او دويم يُخْبِرُكُمْ دې. مفسرعلام دَ سوؤ تفسير دَ والعزم عليه نه وړاندې د لفظ په اعتبارسره کړې دې او والعزم عليه كښې واؤ تفسيري دې مطلب داد ې چې دَ انسان په زړه كښې كوم مستقل خيالات راځي يعنې كوموته چې دَ عملي جامې اغوستلو كلكه اراده وي نو په هغې باندې به الله تعالى نيول كوي ځكه چې صرف دَ زړه په وسوسو باندې به راګيرول نه كيږي.

**قوله**: والعزم عليه دَ يو اعتراض جواب هم مقصوددې.

**سوال**: وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللهُ نه معلوميږي چې په قلبي وسوسو باندې به هم مؤاخذه كيږي حالانكه په وسواس قلبي باندې دَ بنده اختيار نه وي بل دا تكليف مالايطاق هم دې. دَدې جواب وركړې شو چې مافي انفسكم نه هغه وسوسې مراد دي كوموته چې دعملي جامه اغوستلومصمم اراده كړې شوي وي، دغه شان مفسر علام دَ يُحَاسِبْكُم تفسير يخبركم سره كولوسره هم دَدې سوال جواب وركړو چې په حديث شريف كښې اوفرمائيل چې په قلبي وسواس باندې هيڅ مواخذه نشته تركومې چې هغې ته عملي جامه وانچولې شي. دَدې جواب وركړې شو چې دَ يحاسبكم معنى ده يخبركم يعني الله تعالى به دَ قيامت په ورځ دَ قلبي وسواس نه هم بنده خبره وي او په كومو نسخو كښې چې يُجزكم دې نوبيا ددې نسخ د ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ سره به وي.

سابقه آيت ﴿ وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللهُ ﴾ كه چرې عام اوساتلې شي چې قلبي وسواس او معزومات ته هم شامل وي نو راتلونكې آيت﴿ لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ به دَدې ناسخ وي اوكه چرې سابقه آيت په عزم باندې محمول كړې شي نو بيابه نسخ نه وي بلكه لاحقه آيت به دَ سابقه آيت توضيح شي.

**قوله**: عطفًا على جواب الشرط، كه چرې يَغْفِرْ او يُعَذِّبُ جزم سره اولوستلې شي نو جواب شرط يعنى د يُحَاسِبُ باندې به عطف وي او كه دواړه مرفوع اولوستلې شي نود هُوَ دَ مبتداء محذوف خبر به شي او جمله به استينافيه شي.

**قوله**: تَنْوِيْنُهُ عوض عن المضاف اليه، دادَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: كله چې دَ المؤمنون عطف په الرسول باندې دې نوجمله معطوفه كيدوسره به خبرمقدم وي او كُلٌّ به مبتداء مؤخروي حالانكه دَ كُلٌّ نكره كيدودَ وجې نه مبتداء واقع كيدل صحيح نه دي.

**جواب**: د كُلٌّ د اضافت الى الغيردَ وجې نه معرفه دې ځكه چې دَكُلٌّ تنوين د مضاف اليه په عوض كښې دې تقديري عبارت كُلُّهُمْ دې اودَ عوض حكم دَ معوّض وي.

**قوله.** یقولون دَ یوسوال جواب دې.

**سوال.** لاَ نُفَرِّقُ، جمع متکلم صیغه ده دې کښې چې کوم ضمیرجمع متکلم دې هغه الرسول او المؤمنین طرف ته راجع دې حالانکه هغه د اسم ظاهرکیدودَ وجې نه په حکم دَغائب کښې دې او دَ غائب طرف ته کلام واحد کښې دَمتکلم ضمیر نه شی راګرځیدې، لهذا دَ نُفَرِّقُ نه وړاندې یقولون مقدرمنل ضروری دی دې دَپاره چې جمع او ضمیرکښې مطابقت پیدا شی.

## [۲] سورة آل عمران

## مدنیة وهی مائتا اية

سورت آل عمران مدنی دې اودَهغې دوه سوه آیاتونه او شل رکوع ګانې دی.

**[ایاتونه: ۱-۹]**

{الٓمٓ} الله اعلم بمراده بذلك {اللهُ لاَ إلٰهَ إلاَّ هُوَ الحَيُّ القَيُّومُ} {نَزَّلَ عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {الْكِتَابَ} الْقُرْآن مُلْتَبِسًا {بِالْحَقِّ} بِالصِّدْقِ فِي أَخبَاره {مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ} قَبْله مِنَ الْكُتُب {وَأَنْزَلَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْل تَنْزِيله {هُدًى} حَال بِمَعْنَى هَادِينَ مِنَ الضَّلَالَة {لِلنَّاسِ} مِمَّنْ تَبِعَهُمَا وَعَبَّرَ فِيهِمَا بِأَنْزَلَ وَفِي الْقُرْآن بِنَزَّلَ الْمُقْتَضِي لِلتَّكْرِيرِ لِأَنَّهُمَا أُنْزِلَا دُفْعَة وَاحِدَة بِخِلَافِهِ {وَأَنْزَلَ الْفُرْقَانَ} بِمَعْنَى الْكُتُب الْفَارِقَة بَيْن الْحَقّ وَالْبَاطِل وَذَكَرَهُ بَعْد ذِكْر الثَّلَاثَة لِيَعُمَّ مَا عَدَاهَا {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ} الْقُرْآن وَغَيْره {لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَاللَّهُ عَزِيزٌ} غَالِب عَلَى أَمْره فَلَا يَمْنَعهُ شَيْء مِنْ إِنْجَاز وَعْده وَوَعِيده {ذُو انْتِقَامٍ} عُقُوبَة شَدِيدَة مِمَّنْ عَصَاهُ لَا يَقْدِر عَلَى مِثْلهَا أَحَد {إِنَّ اللَّهَ لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْءٌ} كَائِن {فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ} لِعِلْمِهِ بِمَا يَقَع فِي الْعَالَم مِنْ كُلِّيّ وَجُزْئِيّ وَخَصَّهُمَا بِالذِّكْرِ لِأَنَّ الْحِسّ لَا يَتَجَاوَزهُمَا {هُوَ الَّذِي يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ} مِنْ ذُكُورَة وَأُنُوثَة وَبَيَاض وَسَوَاد وَغَيْر ذَلِكَ {لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ} فِي مُلْكه {الْحَكِيمُ} فِي صُنْعه {هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ} وَاضِحَات الدَّلَالَة {هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ} أَصْله الْمُعْتَمَد عَلَيْهِ فِي الْأَحْكَام {وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ} لَا تُفْهَم مَعَانِيهَا كَأَوَائِلِ السُّوَر وَجَعَلَهُ كُلّه مُحْكَمًا فِي قَوْله {أُحْكِمَتْ آيَاتُهُ} بِمَعْنَى أَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ عَيْب وَمُتَشَابِهًا فِي قَوْله {كِتَابًا مُتَشَابِهًا} بِمَعْنَى أَنَّهُ يُشْبِه بَعْضه بَعْضًا فِي الْحُسْن وَالصِّدْق {فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ} مَيْل عَنِ الْحَقّ {فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ} طَلَب {الْفِتْنَةِ} لِجُهَّالِهِمْ بِوُقُوعِهِمْ فِي الشُّبُهَات وَاللَّبْس {وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ} تَفْسِيره {وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ} تَفْسِيره {إِلَّا اللَّهُ} وَحْده {وَالرَّاسِخُونَ} الثَّابِتُونَ الْمُتَمَكِّنُونَ {فِي الْعِلْمِ} مُبْتَدَأ خَبَره {يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ} أَيْ بِالْمُتَشَابِهِ أَنَّهُ مِنْ عِنْد اللَّه وَلَا نَعْلَم مَعْنَاهُ {كُلٌّ} مِنَ الْمُحْكَم وَالْمُتَشَابِه {مِنْ عِنْدِ رَبِّنَا وَمَا يَذَّكَّرُ} بِإِدْغَامِ التَّاء فِي الْأَصْل فِي الذَّال أَيْ يَتَّعِظ {إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ} أَصْحَاب الْعُقُول وَيَقُولُونَ أَيْضًا إِذَا رَأَوْا مَنْ يَتْبَعهُ {رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا} تُمِلْهَا عَنِ الْحَقّ بِابْتِغَاءِ تَأْوِيله الَّذِي لَا

يلِيق بِنَا كَمَا أزغت قُلُوب أولَئِك {بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا} أرْشَدْتَنَا إِلَيْهِ {وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ} مِنْ عِنْدك {رَحْمَةً} تَثْبِيتًا {إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ} يَا {رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ} تَجْمَعهمْ {لِيَوْمٍ} أَيْ فِي يَوْم {لَّا رَيْبَ} لَا شَكّ {فِيهِ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة فَتُجَازِيهِمْ بِأَعْمَالِهِمْ كَمَا وَعَدْت بِذَلِكَ {إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ} مَوْعِده بِالْبَعْث فِيهِ اِلْتِفَات عَنْ الْخِطَاب وَيَحْتَمِل أَنْ يَكُون مِنْ كَلَامه تَعَالَى وَالْغَرَض مِنْ الدُّعَاء بِذَلِكَ بَيَان أَنَّ هَمّهمْ أَمْر الْآخِرَة وَلِذَلِكَ سَأَلُوا الثَّبَات عَلَى الْهِدَايَة لِيَنَالُوا ثَوَابهَا رَوَى الشَّيْخَانِ عَنْ عَائِشَة رَضِيَ اللَّه عَنْهَا قَالَتْ تَلَا رَسُول اللَّه صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذِهِ الْآيَة {هُوَ الَّذِي أَنزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُّحْكَمَاتٌ} إلَى آخِرهَا وَقَالَ فَإِذَا رَأَيْتُمْ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّى اللَّه فَاحْذَرُوهُمْ وَرَوَى الطَّبَرَانِيّ فِي الْكَبِير عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيّ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُول مَا أَخَاف عَلَى أُمَّتِي إلَّا ثَلَاث خِلَال وَذَكَرَ مِنْهَا أَنْ يُفْتَح لَهُمْ الْكِتَاب فَيَأْخُذهُ الْمُؤْمِن يَبْتَغِي تَأْوِيله وَلَيْسَ يَعْلَم تَأْوِيله إلَّا اللَّه وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْم يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلّ مِنْ عِنْد رَبّنَا وَمَا يَذَّكَّر إلَّا أُولُوا الْأَلْبَاب الْحَدِيث

**ترجمه**: شروع كوم په نامه دَ خدائى چې ډير بخښونكې اومهربان دې آلم هم الله تعالى دَدې نه خپل مراد بهتر پيژنى. **الله تعالى هغه دَ هميشه نه ژوندئې هستئ ده چې دَهغه نه بغيرپل څوك دَعبادت لائق نشته چې دَ** (كائناتو نظام) ئى قابو كړې دې هغه په تاباندئ اې محمد ﷺ قرآن چې په خبرور كولو كښې په صداقت مشتمل دې درجه په درجه نازل كړو دَ خپل ځان نه دَ وړاندينو كتابونو تصديق كونكې دې اودَې دَ نازلولونه وړاندې ئې تورات او انجيل نازل كړل حال دادې چې هغه لارخودونكى دى (هُدًى) دَ التوراة والانجيل نه حال دې يعنى دا دواړه كتابونه دَ هغه خلقو دَ ګمراهئى نه دَ هدايت طرف ته لار خودونكى دى چا چې دَدې اتباع اوكړه او په هغه دواړو كښې ئې أَنزَلَ تعبيراختياركړو او په قرآن كښې نَزَّلَ چې كوم دَ تكرار مقتضى دې دَدې وجه داده چې دَ حق او باطل په مينځ كښې فرق كونكې دې. دَ دريواړو دَ ذكركولونه پس ئى دَ فرقان ذكراوكړو دې دَپاره چې مذكوره دريواړه (كتابونونه) علاوه ته هم شامل شى، **بيشكه كومو خلقو چې دَالله تعالى آياتونه** (يعنى) دَ قرآن وغيره نه كفر اوكړو **دَهغوى دَپاره سخت عذاب دې اوالله تعالى په خپل امركښې غالب دې،** لهذا هيڅ يو شئ هغه دَ هغه دَ وعده اووعيددَ پوره كولونه نشى منع كولې اودَ خپل نافرمانونه سخته بدله اخستونكې دې چې دَهغه په شان عقوبت باندې څوك قادرنه دى، **بيشكه الله تعالى داسې دې چې دَهغه نه هيڅ څيزپټ نه دې كه په زمكه كښې وى اوكه په آسمان كښې وى** دَهغه په عالم كښې واقع كيدونكى كلى اوجزئى څيزنه خبردار كيدودَ وجې نه اودَ زمكې او آسمان دَتخصيص وجه داده چې هيڅ څيزدَدې دواړو نه تجاوزنه شى كولې. **هغه داسې دې چې په رحمونوكښې ستاسو صورتونه جوړه وى** څنګه چې غواړى هلك يا جينئى او سپين يا تور وغيره **دَهغه نه بغيرپل څوک معبودنشته چې په خپل ملك كښې ډير زبردست او خپل صنعت**

کښې لوئی حکمت والا دې هغه هم دغه خدائې دې چاچې په تاباندې کتاب نازل کړو په دې کښې محکم آیاتونه دی (یعنی) واضح، چې واضح الدلالت دی اوهم دغه دَ کتاب اصل مداردې یعنی اصل کتاب دې چې په احکامو کښې معتمدعلیه دې او نور متشابه دی دکوم چې معانی اومفهوم نه وی لکه دَ سورتونو په شروع کښې اودَ الله تعالی قول اُحْكِمَتْ آيٰتُه کښې پوره قرآن محکم گرځولې شوې دې داپه دې معنی کښې دې چې په دې کښې هیڅ عیب نشته اودَ الله تعالی قول كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا کښې پوره قرآن متشابه گرځولې شوې دې. دا په دې معنی کښې چې بعض بعضو سره په حسن او صدق کښې مشابه دې نوهغه خلق دَ چا په زړونو کښې چې کوګوالې یعنی دَ حق نه انحراف دې هغه دَخپلو حامیانو دَپاره دَهغوی دَ شهادت او التباس کښې واقع کیدودَ وجې نه دَ فتنې په لټون کښې هغه پسې گرځی کوم چې متشابه دې اودَې دَ غلط تفسیر په لټون کښې په داسې حال کښې چې دَالله تعالی وحده نه علاوه دَهغې حقیقی مراد هیڅوک نه پیژنی اود پوخ کاروالا او دَمضبوط علم والا وائی چې مونږ په متشابه باندې ایمان راوړې دې چې هغه دَالله تعالی دَ طرف نه دی اومونږ دَ دې دَ (حقیقی) مراد نه خبرنه یو. (والراسخون فی العلم) مبتداء دې او (یقولون آمنابه) دَدې خبردې. محکم او متشابه ټول زمونږ دَ رب دَ طرف نه دی اونصیحت هم عقل مندخلق حاصله وی (یَذَّكَّرُ) په اصل کښې دَ تاء په ذال کښې ادغام کولو سره جوړشوې دې یعنی نصیحت حاصله وی او کله چې څوك په متشابه پسې لګیدونکې وینی نو وائی اې زمونږ پروردګار ته زمونږ زړونه دَحق نه مه اړوه دَهغه حق داسې تاویل دَ لټون په ذریعه کوم چې زمونږ دَ پاره لائق نه دې لکه څنګه چې تادَهغه خلقو زړونه کاږه کړل یا پس دَهغې نه چې تامونږ ته حق لار اوخودله او مونږ له دَ خپل طرف نه په استقامت راکولو سره خصوصی رحمت اوکړه بیشکه هم ته دیر زیات ورکونکې ئې، اې زمونږ ربه یقینًا ته خلق یوه ورځ راجمع کونکې ئې یعنی په داسې ورځ دَ کومې په راتلو کښې چې هیڅ شک نشته هغه دَ قیامت ورځ ده ته به هغوی ته دَ خپلې وعدې مطابق دَهغوی دَعملونو بدله ورکوې یقینًا الله تعالی وعده خلافی نه کوی یعنی دَ بعث بعد الموت دَ وعدې خلاف ورزی به نه کوی په دې کښې دَ خطاب نه (غیبت) طرف ته التفات دې اوداهم احتمال دې چې ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴾ دَالله تعالی کلام وی، او ﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا﴾ سره دَ دعا کولو غرض دادې چې دَهغوئ مقصد دَ آخرت امر دې اوهم په دې وجه ئې په هدایت باندې دَ استقامت سوال اوکړو دې دَپاره چې دَدې ثواب حاصل کړی. مسلم او بخاری دَ حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت کړې دې چې حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها اوفرمائیل رسول الله ﷺ دا آیت ﴿ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰيٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ﴾ تلاوت اوکړو اوحضورپاك اوفرمائیل (اې عائشه) کله چې ته اوګورې چې خلق دَ

قرآن متشابهات پسې لګیدلی دی (نوپوهه شه) هم دغه هغه خلق دی دَ چاچې الله تعالیٰ ښه خودلې ده نوته دَ دوی نه بچ کیږه.

طبراني او کبیرکښې ابومالك اشعری رضی الله عنه نه روایت دې چې هغوی د رسول الله ﷺ داسې ویناکول اوریدلې دې ماته زما په امت باندې دَ دریوخبرو ویره ده او په هغه خبرو کښې یوه خبره دا ذکر کړه چې دَخلقو په وړاندې به کتاب (قرآن) کولاوولې شی نو مؤمن به دَدې دَ تاویل په تلاش کښې اخته شی حالانکه دَهغې تاویل دَالله تعالیٰ نه بغیر هیڅوک نه پیژنی او راسخین فی العلم وائی چې مونږ په دې باندې ایمان راوړې دې چې ټول په ټول (قرآن) زمونږ دَ رب دَ طرف نه دې او هم عقل مند خلق نصیحت حاصله وی. (الحدیث)

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: آلُ، ټبر خاندان، اولاد (عمران) وئیلې شوی دی چې دَ موسیٰ علیه السلام پلار مراد دې اووئیلې شوی دی چې عمران دَ حضرت مریم دَ پلارنوم دې. حضرت موسیٰ علیه السلام د پلار عمران اوحضرت مریم دَ پلار عمران په مینځ کښې یو زر او اته سوه کاله فاصله ده.

**قوله**: متلبّسًا دې کښې اشاره ده چې باء دَ الصاق دَپاره ده اودا چې بالحق، متلبّسًا سره متعلق شی نوحال دې.

**قوله**: قبلَ تنزیله دې کښې اشاره ده چې قبل دَقطع دَاضافت دَوجې نه مبنی علی الضم دې.

**قوله**: حَال بمعنی هَادِیِیْنَ دَدې اضافه مقصد دَ یوسوال مقدرجواب دې.

**سوال**: هُدًی مصدر دې دَدې حمل کتابونو (یعنی تورات او انجیل) باندې جائزنه دی ځکه نو مصدر حمل په ذات باندې لازم راځی.

**جواب**: هُدًی مصدر دې دا دَهادیین معنی کښې کیدوسره حال دې اودَحال په ذات باندې حمل صحیح دې.

**قوله**: بمعنی الکتب دادَدې سوال مقدر جواب دې چې فرقان دَ قرآن نوم دې لهذا تکرار لازم راغلو ځکه چې په سابق کښې هم دَ قرآن ذکر شوې دې اودَ فرقان نه هم قرآن مراد دې **جواب**: دَ فرقان لغوی معنی مراد ده لهذا دا هرآسمانی کتابونو ته شامل دې.

**قوله**: من إنجازِ وَعْدِهٖ، ای إتمام وَعْدِهٖ.

**[ایاتونه:١٠-٢٠]**

{إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ تُغْنِيَ} تدفع {عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ مِنَ اللَّهِ} أَيْ عَذَابه {شَيْئًا وَأُولَٰئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ} بِفَتْحِ الْوَاو مَا تُوقَد بِهِ دَأْبُهُم {كَدَأْبِ} كَعَادَةِ {آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ} مِنَ الْأُمَم كَعَادٍ وَثَمُود {كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ} أَهْلَكَهُمْ {بِذُنُوبِهِمْ} وَالْجُمْلَة مُفَسِّرَة لِمَا قَبْلَهَا {وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ} وَنَزَلَ لَمَّا أَمَرَ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَهُود بِالْإِسْلَامِ بَعْد مَرْجِعه مِنْ بَدْر فَقَالُوا لَا يَغُرَّنكَ أَنْ قَتَلْت نَفَرًا مِنْ قُرَيْش أَغْمَارًا لَا يعرفون القتال {قُلْ} يَا مُحَمَّد {لِلَّذِينَ كَفَرُوا} مِنَ الْيَهُود {سَتُغْلَبُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء فِي الدُّنْيَا بِالْقَتْلِ وَالْأَسْر وَضَرْب الْجِزْيَة وَقَدْ وَقَعَ ذَلِكَ {وَتُحْشَرُونَ} بِالْوَجْهَيْنِ فِي الْآخِرَة {إِلَى جَهَنَّمَ} فَتَدْخُلُونَهَا {وَبِئْسَ الْمِهَادُ} الفراش هي {قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ} عِبْرَة وَذُكِّرَ الْفِعْل لِلْفَصْلِ {فِي فِئَتَيْنِ} فِرْقَتَيْنِ {الْتَقَتَا} يَوْم بَدْر لِلْقِتَالِ {فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ} أَيْ طاعته وهم النبي وأصحابه وكانوا ثلاثمائة وَثَلَاثَة عَشَرَ رَجُلًا مَعَهُمْ فَرَسَانِ وَسِتّ أَدْرُع وَثَمَانِيَة سُيُوف وَأَكْثَرهمْ رَجَّالَة {وَأُخْرَى كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُمْ} اي الكفار {مِثْلَيْهِمْ} أي المسلمين اي اكثر مِنْهُمْ وَكَانُوا نَحْو أَلْف {رَأْيَ الْعَيْنِ} أَيْ رُؤْيَة ظَاهِرَة مُعَايَنَة وَقَدْ نَصَرَهُمْ اللهُ مَعَ قِلَّتهمْ {وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ} يُقَوِّي {بِنَصْرِهِ مَنْ يَشَاءُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ} الْمَذْكُور {لَعِبْرَةً لِأُولِي الْأَبْصَارِ} لِذَوِي الْبَصَائِر أَفَلَا تَعْتَبِرُونَ بِذَلِكَ فَتُؤْمِنُونَ {زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ} مَا تَشْتَهِيه النَّفْس وَتَدْعُو إِلَيْهِ زَيَّنَهَا اللهُ ابْتِلَاء أَوْ الشَّيْطَان {مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ} الْأَمْوَال الْكَثِيرَة {الْمُقَنْطَرَةِ} الْمُجْمَعَة {مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ} الْحِسَان {وَالْأَنْعَامِ} أَيْ الْإِبِل وَالْبَقَر وَالْغَنَم {وَالْحَرْثِ} الزَّرْع {ذَٰلِكَ} الْمَذْكُور {مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} يَتَمَتَّع بِهِ فِيهَا ثُمَّ يَفْنَى {وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الْمَآبِ} الْمَرْجِع وَهُوَ الْجَنَّة فَيَنْبَغِي الرَّغْبَة فِيهِ دُون غيره {قل} يا محمد لقومك {أَؤُنَبِّئُكُمْ} أُخْبِرُكُمْ {بِخَيْرٍ مِنْ ذَٰلِكُمْ} الْمَذْكُور مِنَ الشَّهَوَات اسْتِفْهَام تَقْرِير {لِلَّذِينَ اتَّقَوْا} الشِّرْك {عِنْدَ رَبِّهِمْ} خَبَر مُبْتَدَؤُهُ {جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ} أَيْ مُقَدَّرِينَ الْخُلُود {فِيهَا} إِذَا دَخَلُوهَا {وَأَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ} مِنَ الْحَيْض وَغَيْره مِمَّا يُسْتَقْذَر {وَرِضْوَانٌ} بِكَسْرِ أَوَّله وَضَمّه لُغَتَانِ أَيْ رِضًا كَثِير {مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ بَصِيرٌ} عَالِم {بِالْعِبَادِ} فَيُجَازِي كُلًّا مِنْهُمْ بِعَمَلِهِ {الَّذِينَ} نَعْت أَوْ بَدَل مِنَ الَّذِينَ قَبْله {يَقُولُونَ} يَا {رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا} صَدَّقْنَا بِك وَبِرَسُولك {فاغفرلنا ذنوبنا وقنا عذاب النار} {الصَّابِرِينَ} عَلَى الطَّاعَة وَعَنِ الْمَعْصِيَة نَعْت {وَالصَّادِقِينَ} فِي الْإِيمَان {وَالْقَانِتِينَ} الْمُطِيعِينَ لِلَّهِ {وَالْمُنْفِقِينَ} الْمُتَصَدِّقِينَ {والمستغفرين} الله بِأَنْ يَقُولُوا اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَنَا {بِالْأَسْحَارِ} أَوَاخِر اللَّيْل خُصَّتْ بِالذِّكْرِ لِأَنَّهَا وَقْت الغفلة ولذة النوم {شَهِدَ اللَّهُ} بين الله لخلقه الدلائل وَالْآيَات {أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ} أَيْ لَا مَعْبُود فِي الْوجود بحق {إِلَّا هُوَ} شهد بذلك {الملائكة} بالاقرار {وَأُولُو الْعِلْمِ} مِنَ الْأَنْبِيَاء وَالْمُؤْمِنِينَ بِالِاعْتِقَادِ وَاللَّفْظ {قَائِمًا} بِتَدْبِيرِ مَصْنُوعَاته وَنَصْبه عَلَى الْحَال وَالْعَامِل فِيهَا مَعْنَى الْجُمْلَة أَيْ تَفَرَّدَ {بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ {لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ} كَرَّرَهُ تَأْكِيدًا {الْعَزِيزُ} فِي مُلْكه {الْحَكِيمُ} فِي صُنْعه {إِنَّ الدِّينَ} الْمَرْضِيّ {عِنْدَ اللَّهِ} هُوَ

{الْإِسْلَام} أَيْ الشَّرْع الْمَبْعُوث بِهِ الرُّسُل الْمَبْنِيّ عَلَى التَّوْحِيد وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ أَنَّ بَدَل مِنْ أَنَّهُ إلخ بَدَل اشْتِمَال {وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَاب} الْيَهُود وَالنَّصَارَى فِي الدِّين بِأَنْ وَحَّدَ بَعْض وَكَفَرَ بَعْض {إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْم} بِالتَّوْحِيدِ {بَغْيًا} مِنَ الْكَافِرِينَ {بينهم ومن يكفر بآيات الله} {فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيع الْحِسَاب} أَيْ الْمُجَازَاة لَهُ {فَإِنْ حَاجُّوك} خَاصَمَكَ الْكُفَّار يَا مُحَمَّد فِي الدين {فقل} لهم {أسلمت وجهي لله} انْقَدْت لَهُ أَنَا {وَمَنْ اتَّبَعَنِ} وَخَصَّ الْوَجْه بِالذِّكْرِ لِشَرَفِهِ فَغَيْره أَوْلَى {وَقُلْ لِلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَاب} الْيَهُود وَالنَّصَارَى {وَالْأُمِّيِّينَ} مُشْرِكِي الْعَرَب {أَأَسْلَمْتُمْ} أَيْ أَسْلِمُوا {فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدْ اهْتَدَوْا} مِنَ الضَّلَال {وَإِنْ تَوَلَّوْا} عَنِ الْإِسْلَام {فَإِنَّمَا عَلَيْك الْبَلَاغ} أَيْ التَّبْلِيغ لِلرِّسَالَةِ {وَاللَّهُ بَصِير بِالْعِبَادِ} فَيُجَازِيهِمْ بِأَعْمَالِهِمْ وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِالْقِتَالِ

**ترجمه:** **يقينًا كوم خلقو چې كفرا وكړو دَهغوى مال او دَهغوى اولاددَ الله تعالى په مقابله كښې هيڅ كله دَهغوى په څه كار نه راځى** (يعنى عذاب) نه شى لرې كولې **او هم هغه خلق به دَ اور خشاک وى** دَ واؤفتحه سره، دَ كوم په ذريعه چې اور لګولې شى **لكه څنګه معامله چې آل فرعون او دَ هغوى نه وړاندې خلقو سره اوشوه** (يعنى) سابقه امتونو سره لكه چې عاد اوثمود (سره) **هغوى** زمونږ دَ اياتونو تكذيب اوكړو نوالله تعالى دَهغوى دَ ګناهونو په سبب هغوى راګيركړل يعنى هغوى ئې هلاك كړل اوجمله كَذَّبُوا الخ دَماقبل جملې كَدَابِ آلِ فرعون الخ تفسير دې اوالله تعالى ډير سخت عذاب وركونكې دې اوكوم وخت چې حضورپاك دَ غزوه بدر نه واپس شو اويهوديانوته ئې دَاسلام دعوت وركړو نو يهودو حضورپاك ته اووئيل چې ناتجربه كار او دَ جنګ په فن كښې ناواقف يوڅو قريش قتل كول دې تاسو په دهوكه كښې وانچوى. اې محمد ﷺ تاسو كفركونكو يهوديانوته اووايئ چې تاسو به ډير زر مغلوب كړې شئ، سيغلبون، ياء اوتاء سره په دنيا كښې قتل، قيد او جزيه لګولو سره اوهم داسې اوشو او په آخرت كښې به دَ دوزخ طرف ته راجمع كړې شئ،(يُحْشرونَ) نوتاسو به دې كښې داخليږئى اوهغه خراب ځائى دې. بيشكه ستاسودَپاره دَ بدر په ورځ دَ دواړو فريقو دَ جنګ دَپاره په مقابله كيدوكښې عبرت دې (كان) فعل په مينځ كښې دَ فصل دَ وجې نه مذكرراوړلې شوې دې. يوجماعت دَالله تعالى په لار كښې جنګيدلو يعنى دَهغه په اطاعت كښې، او هغه نبى عليه السلام اودَ حضورپاك صحابه كرام رضي الله عنهم وو دَ كوم شميرچې درې سوه او ديارلس وو هغوى سره (صرف) دوه اسونه شپږ زغرې او اته تورې وې او په هغوى كښې اكثرخلق پياده وو او دويم جماعت دَ كافرانو وو چې دغه (مسلمانان) ئې دَخپل ځان نه په غړيدلو سترګو ډير زيات ليدل يعنى دَخپل خان نه زيات دَهغوى شمير تقريبًا زر وو (يَرَوْنَ) ياء او تاء سره دې او الله تعالى دَ هغوى دَ كمى باوجود دَهغوى امداد اوفرمائيلو اوالله تعالى چې دَ چادَپاره غواړى په خپل نصرت باندې امدادكوى، بيشكه په دغه مذكوره (واقعه) كښې دَ اهل

بصیرت دَپاره یولوئی عبرت دي نو تاسو دَدې نه سبق نه اخلئ چې ایمان راوړئی او ښائسته کړې شوې دې دَخلقو دپاره مرغوباتو محبت یعنی زړه چې دَ کومې خواهش کوی اودهغې طرف ته راغواړي الله تعالی دغه مرغوبات په توګه دَ امتحان ښائسته جوړ کړې شوی دی یا شیطان (ښائسته کړې دی) که هغه (مرغوبات) ښځې وی که ځامن اوکه دَ مالونو زیاتوالي یا دَ سرو زرو او سپینو زرو لګیدلی انبارونه او نشانونه لګیدلی ښکلې اسونه او څاروی یعنی اوښان غواګانې او چیلئ او فصلونه دا ټول دَ دنیاوی ژوندون سامان دې هم په دنیاکښې دَدې نه نفع حاصلولې شي بیاختم شی. اوحسن انجام خو الله تعالی سره دې اوهغه جنت دې چنانچې هم هغه دَ رغبت لائق دې نه چې دَدې نه علاوه بل څه. اې محمد ﷺ ته خپل قوم ته اووایه چې زه درته دَ دغه مذکوره (مرغوبات) نه هم ښکلې څیزونه اونه ښایم؟ دَدغه (خلقو) دَپاره څوك چې دَ شرك نه ویریږی، استفهام دَ تقریردَپاره دې دَهغوی پروردګار سره باغونه دی دَ کومو لاندې چې لوئی نهرونه بهیږی په دې کښې به هغوی همیشه وی یعنی دَهغوی دَپاره همیشه اوسیدل مقدرکړې شوی دی اوهغه دې جنت په دې کښې به داخل شی. (عندربهم) مبتداء دې او (جنت تجری) دَدې خبردې اوحیض وغیره (مثلاً متیازې وغیره) نه کرکه کیږی صفا ستره بیبیانې به وی اودَ الله تعالی رضابه وی. (رِضْوانٌ) دَ راء کسره اوضمه سره. دا دوه لغته دی یعنی لویه رضامندی، الله تعالی په خپلو بندیګانو باندې نظر ساتلې دې په دوی کښې به هریوته دَ هغوی بدله ورکولې شی (دا هغه خلق دی) چې وائی (اَلَّذِیْنَ) دا د سابق اَلَّذِیْنَ صفت یابدل دې، اې زمونږ پروردګار مونږ ایمان راوړې یعنی مونږ ستادَ رسول ﷺ تصدیق کړې پس ته زمونږ ګناهونه اوبخښه اومونږ دَدوزخ دَ اور نه بچ کړه دا په طاعت او په مصیبت باندې صبرکونکی دی. (داهم) صفت دې او په ایمان کښې رښتونی دی اودَ الله تعالی دَپاره عاجزی کونکی دی او صدقه کونکی دی اودَ سحر په وخت یا شپې په روستئی حصه کښې اَللّٰهُمَّ اغفرلنا وئیلوسره دَ الله تعالی نه بخښنه غوښتونکی دی اودَ سحردَ وخت تخصیص په دې وجه دې چې دا دَغفلت او دَ خوب نه دَ خوند اخستلو وخت دې الله تعالی دَ خپل مخلوق دَپاره دلائلو او آیاتونو په ذریعه (عقلی اونقلی دلائلوپه ذریعه) بیان اوکړو چې دَهغه نه سوا بل څوک معبود نشته یعنی هیڅ یومعبودبرحق نشته او ملائکه هم اقرار کولوسره هم دغه ګواهی ورکړې ده او اهل علم چې هغه انبیاء او مؤمنین دی چاچې دَ عقیدې په ذریعه (دَزړه نه) ګواهی ورکړې ده او په ژبه سره تلفظ (اقرار) کولوسره. اوهغه په عدل سره انصاف قائمونکې دې یعنی دَخپل مخلوق تدبیرکونکې دې (او) قائما حال کیدو دَ وجې نه منصوب دې اوعامل دَدې جملې معنی ده. ای تَفَرَّدَ (یعنی لااله الا هو، د تَفَرَّدَ په معنی کښې دې) بغیردَهغه نه څوک معبود نشته تاکیداً

دا مکرر راوړلې شوې دې اوهغه په خپل ملك کښې زبردست دې او په خپل صنعت کښې حکمت والا دې یقینًا خوښ کړې شوې دین خو دَالله تعالی په نیز هم اسلام دې یعنی هغه شریعت کوم سره چې رسول مبعوث شوې دَ کوم مدار چې په توحیدباندې دې او په یوقراءت کښې دَ اَنَّ فتحه سره اَنّهٗ الخ سره بدل الاشتمال دې او اهل کتاب یهود اونصاری دَ توحید علم راتلونه پس چې کوم اختلاف اوکړو بعض دَ توحید قائل شو اوبعض منکر صرف دَ کافرانو دَ طرف نه دَخپل مینځ دَ ضد دَ وجې نه اوکړو او څوک چې دَالله تعالی دَ آیاتونو انکارکوی الله تعالی بیشکه ډیر زر حساب اخستونکې دې، یعنی هغه ته جزاء ورکونکې دې. نو اې محمد ﷺ که چرې داکافران تاسو سره په دین کښې حجت کوی نو تاسو هغوی ته اووایئې چې زه اوچاچې زما اتباع کړې ده خو خپل مخ دَالله تعالی طرف ته کړې دې (یعنی) دَهغه حکم منونکې شوې یم اودَ مخ تخصیص دَهغې دَ غوره والی دَ وجې نه دې. نودَ هغه نه غیرخو به په طریقه اولی فرمانبرداروی اوتاسو اهل کتاب یهود او نصاری او دَ جټو عربو مشرکانو نه پوښته اوکړئی چې آیا تاسو اسلام راوړئی؟ یعنی اسلام راوړئی نوکه چرې اسلام ئې راوړو نوهغوی دګمراهئی نه دَ هدایت په لار راغلل اوکه چرې هغوی دَاسلام نه اعراض اوکړو نو ستا په ذمه صرف پیغام رسول دی او الله تعالی په خپلو بندیګانو باندې نظر ساتونکې دې لهذا هغه به هغوی ته دَهغوی دَعملونو بدله ورکوی اودا حکم دَ جهاد دَحکم نه دَ وړاندې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: وَقُوْدُ دَ واؤ فتحه سره خشاك اسم دې دُ واؤ په ضمه سره مصدردې دَ مصدر حمل په ذات باندې چونکه صحیح نه دې په دې وجه مفتوح الواؤ اسم اوګرځولې شو دې دَپاره چې حمل صحیح شی.

**قوله**. دَاْبُهُمْ دالفظ محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې کَدَاْبِ آلِ فرعونَ دَ مبتداء محذوف خبر کیدو سره جمله مستانفه ده دَدې تعلق نه لَن تغنی سره دې اونه وَقودُالنار سره لکه چې وئیلی شوی دی. دأبٌ په معنی عادت، حال دابٌ (ف) سره مصدر دې یوشان په څه کار کښې اخته کیدل، هم دَ دې وجې نه دَدې معنیٰ دَ عادت ده

**قوله**. الجملة مفسرة، مفسرعلام مذکوره عبارت مقدرمنلو سره اشاره اوکړه چې كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا جمله حالیه نه ده څکه چې دَ ماضی حال واقع کیدودَپاره قد ضروری وی بلکه دا جمله دَ سابقه جملې تفسیر دې هم دغه وجه ده چې دَدواړو جملو په مینځ کښې واؤ نه دې راوړلې شوې.

**قوله**: اغمار،دَ غمرٌ جمع ده ناتجربه کار جاهل.

**قوله**. ذُكِّرَ الفعل للفصل داد یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: آیَةٌ، دکان اسم دې او فعل مذکر راوړلې شوې دې حالانکه کَانَتْ راوړل پکار وو دې دپاره چې فعل او اسم کښې موافقت اوشي.

**جواب**: فعل اودَ دې په اسم کښې کله چې فعل واقع شي نو موافقت ضروري نه وي. دلته لَكُمْ فصل واقع دې.

**قوله**. اَلْفِئَةُ، جماعت په لفظونو کښې دَ دې واحد نه استعمالیږي دَ دې جمع فئات ده.

**قوله**. المذکور، دَ یو سوال جواب دې.

**سوال**: دَ ذٰلِكَ مشار الیه التقلیل والتکثیر دې په اسم اشاره او مرجع کښې مطابقت نشته.

**جواب**: التقلیل والتکثیر بعمی المذکور دې لهذا مطابقت موجود دې.

**قوله**. مَا تَشْتَهِیْهِ دې کښې اشاره ده چې شهوات، مصدر مبالغةً په معنی دَ مفعول دی. کقوله احببت حبّ الخیر کښې.

**قوله**: نعتٌ اوبدلٌ مِنَ الَّذِیْنَ قَبْلَهُ دَ دې اضافه مقصد دَ دې اعتراض دفاع کول دی چې العباد کوم چې نیزدې دې نه بدل یا نعت وی نو دائی دفع کړو چې دا دَ اتقوا نه بدل یا نعت دې نه چې العباد نه.

**قوله**: یارَبَّنَا یاء مقدر منلوسره اشاره اوکړه چې رَبَّنَا دَ یاء مقدر کیدودَ وجې نه منصوب دې.

**قوله**: نعتٌ یعنی............. الَّذِیْنَ اتقوا نه نعت دې او دا اتقوا هم نعت دې.

**قوله**. نَصْبُهٗ علی الحال، یعنی قَائِمًا دَ هُوَ نه حال دې نه چې دَ اِلٰهٌ صفت کیدو دَ وجې نه، ځکه چې دَ صفت او موصوف په مینځ کښې فصل بالاجنبی واقع دې.

• **قوله**: والفاعل فیها معنی الجملة، ای تَفَرَّدَ، دا په اصل کښې دَ یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: سوال دا دې چې قَائِمًا که چرې د معطوف او دَ معطوف علیه مجموعې نه حال وې نو په دې صورت کښې به حمل صحیح نه وی او که صرف لفظ د الله نه حال وی نو دا هم جائز نه دی لکه چې جاءزیدٌ وعمرو راکبًا دغه وخت به دَ حال هیڅ عامل پاتې نه وی.

**جواب**: دا ورکړې شو چې جمله لا اله الا هو په معنی کښې دَ تَفَرَّدَ دې، ځکه چې استثناء دَ نفی نه پس د تفرد فائده ورکوی.

........

**[ایاتونه: ۲۱-۳۰]**

{إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ} وَفِي قِرَاءَة يُقَاتِلُونَ {النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ {مِنَ النَّاسِ} وَهُمْ الْيَهُود رُوِيَ أَنَّهُمْ قَتَلُوا ثَلَاثَة وَأَرْبَعِينَ نَبِيًّا فَنَهَاهُمْ مِائَة وَسَبْعُونَ مِنْ عِبَادهمْ فَقَتَلُوهُمْ مِنْ يَوْمهمْ {فَبَشِّرْهُمْ} أَعْلِمْهُمْ {بِعَذَابٍ أَلِيمٍ} مُؤْلِم وَذِكْر الْبِشَارَة تَهَكُّم بِهِمْ وَدَخَلَتْ الْفَاء فِي خَبَر إِنَّ لِشَبَهِ اسْمهَا الْمَوْصُول بِالشَّرْطِ {أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ} بَطَلَتْ {أَعْمَالُهُمْ} مَا عَمِلُوا مِنْ خَيْر كَصَدَقَةٍ وَصِلَة رَحِم {فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ} فَلَا اعْتِدَاد بِهَا لِعَدَمِ شَرْطهَا {وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ} مَانِعِينَ مِنَ الْعَذَاب {أَلَمْ تَرَ} تَنْظُر {إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا} حَظًّا {مِنَ الْكِتَابِ} التَّوْرَاة {يُدْعَوْنَ} حَال {إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِنْهُمْ وَهُمْ مُعْرِضُونَ} عَنْ قَبُول حُكْمه نَزَلَتْ فِي الْيَهُود زَنَى مِنْهُمْ اثْنَانِ فَتَحَاكَمُوا إِلَى النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَكَمَ عَلَيْهِمَا بِالرَّجْمِ فَأَبَوْا فَجِيءَ بِالتَّوْرَاةِ فَوُجِدَ فِيهَا فَرُجِمَا فَغَضِبُوا {ذَٰلِكَ} التَّوَلِّي وَالْإِعْرَاض {بِأَنَّهُمْ قَالُوا} أَيْ بِسَبَبِ قَوْلهمْ {لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ} أَرْبَعِينَ يَوْمًا مُدَّة عِبَادَة آبَائِهِمْ الْعِجْل ثُمَّ تَزُول عَنْهُمْ {وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِمْ} مُتَعَلِّق بِقَوْلِهِ {مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ} مِنْ قَوْلهمْ ذَلِكَ {فَكَيْفَ} حَالهمْ {إِذَا جَمَعْنَاهُمْ لِيَوْمٍ} أَيْ فِي يَوْم {لَا رَيْبَ} لَا شَكّ {فِيهِ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ} مِنْ أَهْل الْكِتَاب وَغَيْرهمْ جَزَاء {مَا كَسَبَتْ} عَمِلَتْ مِنْ خَيْر وَشَرّ {وَهُمْ} أَيْ النَّاس {لَا يُظْلَمُونَ} بِنَقْصِ حَسَنَة أَوْ زِيَادَة سَيِّئَة وَنَزَلَتْ لَمَّا وَعَدَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَّته مُلْك فَارِس وَالرُّوم فَقَالَ الْمُنَافِقُونَ هَيْهَاتَ {قُلِ اللَّهُمَّ} يَا اللَّه {مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي} تُعْطِي {الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ} مِنْ خَلْقك {وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاءُ} بِإِتْيَانِهِ {وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ} بِنَزْعِهِ مِنْهُ {بِيَدِكَ} بِقُدْرَتِك {الْخَيْرُ} أَيْ وَالشَّرّ {إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} {تُولِجُ} تُدْخِل {اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ} تُدْخِلهُ {فِي اللَّيْلِ} فَيَزِيد كُلّ مِنْهُمَا بِمَا نَقَصَ مِنَ الْآخَر {وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ} كَالْإِنْسَانِ وَالطَّائِر مِنَ النُّطْفَة وَالْبَيْضَة {وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ} كَالنُّطْفَةِ وَالْبَيْضَة {مِنَ الْحَيِّ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ} أَيْ رِزْقًا وَاسِعًا {لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ} يُوَالُونَهُمْ {مِنْ دُونِ} أَيْ غَيْر {الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ} أَيْ يُوَالِيهِمْ {فَلَيْسَ مِنَ} دِين {اللَّهِ فِي شَيْءٍ إِلَّا أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً} مَصْدَر تَقَيْته أَيْ تَخَافُوا مَخَافَة فَلَكُمْ مُوَالَاتهمْ بِاللِّسَانِ دُون الْقَلْب وَهَذَا قَبْل عِزَّة الْإِسْلَام وَيَجْرِي فِيمَنْ هُوَ فِي بَلَد لَيْسَ قَوِيًّا فِيهَا {وَيُحَذِّرُكُمُ} يُخَوِّفكُمْ {اللَّهُ نَفْسَهُ} أَنْ يَغْضَب عَلَيْكُمْ إِنْ وَالَيْتُمُوهُمْ {وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ} الْمَرْجِع فَيُجَازِيكُمْ {قُلْ} لَهُمْ {إِنْ تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ} قُلُوبكُمْ مِنْ مُوَالَاتهمْ {أَوْ تُبْدُوهُ} تُظْهِرُوهُ {يَعْلَمْهُ اللَّهُ وَ} هو {يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ تَعْذِيب من والاهم أُذْكُرْ {يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَا عَمِلَتْ} هُ {مِنْ خَيْرٍ مُحْضَرًا وَمَا عَمِلَتْ} هُ {مِنْ سُوءٍ} مُبْتَدَأ خَبَره {تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا} غَايَة فِي نِهَايَة الْبُعْد فَلَا يَصِل إِلَيْهَا {وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ} كرر التاكيد {وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ}

**ترجمه:** کوم خلق چې د الله تعالى د آياتونو انکار کوى او نبيان په ناحقه قتل کوى او په يو قراءت

کښې يُقَاتِلُوْنَ دي او هغه خلق څوک چې دَ انصاف حکم ورکوي هغه قتل کوي او هغه يهود دي روايت کړې شوې دې چې هغوی درې څلويښت انبياء کرام قتل کړي دي هغوی يوسل او يا بني اسرائيلو عابدانو منع کړل نو هغوی هم په هغه ورځ قتل کړل، هغوی ته دَ دردناک عذاب زيرې ورکړه (په ځائې دَ خبر) دَ زيرې ورکولو ذکر هغوی سره دَ مذاق په توګه دې او دَ اِنَّ په خبر باندې فاء داخل شوې ده دَ هغې دَ اسم موصول شرط سره مشابه کيدو دَ وجې نه. هم دغه هغه خلق دي دَ چا اعمال چې په دنيا او آخرت کښې (يعنی) صدقې او د صله رحمئی په توګه هغوی چې کوم اعمال کړي دي هغه ټول بې کاره شو لهذا دَ شرط نه موجود کيدو دَ وجې نه هغه په هيڅ شمير کښې نه دي او دَ هغوی به څوک امدادی هم نه وی (يعنی) هغوی به دَعذاب نه بچ کونکی نه وی. آيا تاسو هغه خلق او نه ليدل چاته چې دَ کتاب تورات يوه حصه ورکړې شوې وه هغوی به راغوښتلې شو (يُدْعَوْنَ، د اَلَّذِيْنَ) نه حال دې دې دَ پاره چې هغه کتاب دَ هغوی په مينځ کښې فيصله اوکړي بيا په هغوی کښې يو فريق بې رخی کولو سره دَ هغه حکم منلو نه مخ اړه وی. (راتلونکې آيت) دَ يهودو باره کښې نازل شو او په هغوی کښې دوو کسانو زنا اوکړه نو هغوی خپله مقدمه دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې راوړله نو حضور پاک په هغوی باندې دَ رجم فيصله اوکړه نو هغوی دَ منلو نه انکار اوکړو تورات راوړلې شو نو په هغې کښې دَ رجم حکم موجود وو. نو هغه دواړه رجم کړې شو يهوديان خفه شو او دا اعراض او مخ اړول دَ دې وجې نه وو چې دَ هغوی وينا وه مونږ پورې به اور صرف يو څو ورځې اولګی چې څلويښت ورځې دي او دا هغه موده وه چې په کومه کښې دَ هغوی پلارانو دَ سخی عبادت کړې وو بيا به دَ هغوی نه ختم کړې شی (يعنی خلاصې به بيامومی) او هغوی ته دَ هغوی دَ دين باره کښې دَ هغوی دَ ځان نه جوړ کړې قول لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ په دهوکه کښې اچولې وو. د فی دينهم تعلق ماکانوا يفترون سره دې نو دَ هغوی به څه حال وی؟ کله چې مونږ هغوی په هغه ورځ راجمع کړو دَ کومې په راتلو کښې چې لږ شان هم شک نشته هغه دَ قيامت ورځ ده. او هر سړی ته که هغه دَ اهل کتاب نه وی او که غير اهل کتاب نه وی دَ هغوی دَ ښه او بد عمل به پوره پوره بدله ورکولې شی او په خلقو به ظلم نه شی کولې په نيکو کښې په کمې او ګناهونو کښې په زياتې کولو سره. او کله چې رسول الله ﷺ خپل امت ته دَ ملك شام او فارس دَ فتح پيشنګوئی واؤروله نو منافقانو اووئيل دا خبره ډيره لرې ده ته اووايه اې دَ ټولو جهانونو لګه اللهم په معنی يا الله ته دَ خپل مخلوق نه چاله چې غواړې ملک ورکوې او چانه چې غواړې اخلې او چاته چې غواړې ملك ورکولو سره عزت ورکوې او چانه چې غواړې په زور اخلې او ذلت ورکړې هم ستا دَ قدرت په قبضه کښې چې خير او شر دې بغير دَ څه شک نه هم ته په هر شئ قادر ئې شپه په ورځ کښې او ورځ په شپه کښې داخل

کوي دهريونه چې کوم مقدار کميږي او په بل کښې زياتيږي اوته ساوالا نه بې ساوالا مثلاً انسان او مرغئي دَ نطفې او هګئې نه او بې سا والا مثلاً نطفه او هګئې دَ سا والا نه راوُباسې اوته چې چاته غواړې بې حسابه رزق ورکوې يعنې وسعت سره رزق ورکوې. مؤمنانوله پکار دي چې کافران دوستان نه جوړه وي چې مؤمنان پريږدي او هغوی سره محبت کول شروع کړي اوکوم سړی چې داسې کوی يعنې هغوی سره (دَزړه) نه دوستی کوی نوهغه دَالله تعالی دَ دين باره کښې په هيڅ شمير کښې نه دی مګر په داسې صورت کښې چې تاسو دَهغوی نه انديښنه دَ (ضرر) لرئی، تُقة، دَتقية مصدر دې يعنی که چرې تاسودَهغوی نه دَ څه قسم نقصان ويره لرئی نوتاسو ته هغوی سره دَ زبانی ويرې اجازت دې نه چې دَ زړه دَتعلق. اوداحکم دَ اسلام دَ غلبه دَ وړاندې وخت دې او مذکوره حکم څکه هم دې چې په يوداسې ښاريه کښې وی چې په هغې کښې اسلام قوی نه وی. او الله تعالی تاسو دَخپل ذات نه ويره وی داچې هغه به تاسونه خفه شی که چرې تاسو هغوی سره (دَزړه) تعلق ساتئی اودَ الله تعالی طرف ته راتلل دی نوهغه به تاسو ته بدله درکوی. ته هغوی ته اووايه چې دَهغوی دوستی کومه چې ستاسو په زړه کښې ده که هغه تاسو پټه وئی اوکه ښکاره کوئی الله تعالی هغه پيژنی اوکوم څه چې په آسمان او زمکه کښې دی (ټول) هغه پيژنی اوالله په هرشئ باندې قادردې او هم دَ هغې نه کافرانوسره دوستی کونکوته سزا ورکول هم دی په کومه ورځ چې به هر سړی خپل نيک اوبد اعمال موجود اووينی (ماعملت من سوءٍ) مبتداء او خبردې هغه به تمنا کوی چې افسوس دَهغه اودَدې (قيامت) دَ ورځ په مينځ کښې فاصله ډيره لرې وې چې هغه ده ته نه شوی رسيدلې اوالله تعالی تاسو دَخپل ذات نه ويره وی دَ تاکيد دَپاره ئی مکرر راوړلې دې اوالله تعالی په خپلو بنديګانو باندې ډير شفقت کونکې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: وَفِيْ قِرَاءةٍ يُقَاتِلُون بهتر به وې چې مفسرعلام دا اختلاف دَ روستووالا يَقْتُلُوْنَ الَّذِيْنَ نه پس ذکرکړې وو څکه چې مذکوره اختلاف په دويم يَقْتُلُوْنَ کښې دې نه چې په اول کښې (جمل)

**قوله**: يُدْعَوْنَ، حَالٌ، يُدْعَوْنَ د الَّذِيْنَ نه حال دې نه چې صفت څکه چې دَجمله، معرفه صفت نه شی کيدې.

**قوله**: ای النـاس، النـاس اضافه مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: هُمْ ضمير دَ نَفْسٌ طرف ته راجع دې کوم چې مؤنث سماعی دې لهذا په مرجع او ضمير کښې مطابقت نشته.

**جواب**: هم ضمير النـاس طرف ته راجع دې کوم چې دَ نَفْسٌ نه مفهوم دې.

**قوله**: ياالله، دَ اَللّٰهُمَّ تفسير ياالله سره كولو كښې اشاره اوكړه چې اَللّٰهُمَّ كښې الف لام د يا حرف نداء په عوض كښې دې هم دغه وجه ده چې لفظ الله باندې دواړه په يو وخت نه داخليږي.

**قوله**: رزقًا واسعًا، دادَ يو سوال جواب دې چې هر يو رزق غير معلوم الحساب (بې شميره) نه دې خاص توګه باندې ځکه چې دَالله تعالى په علم كښې هر څيز معلوم او محسوس دې نو دَ دې جواب ئې وركړې دې چې بغير دَ حساب نه مراد وسيع او كثير دې.

**قوله**: يُوَالُونَهُمْ په دې كښې اشاره ده چې اَوْلِيَاءُ د ولى په معنى كښې دَ محبت نه ماخوذ دې نه چې په معنى دَ استعانت نه.

**قوله**: تُقَةً (تُقَاة) دا دَ تَقِيَةٌ مصدر مفعول مطلق دې، معنى بچ كيدل حفاظت كول. تُقَةً اصل كښې وُقْيَة وو واؤ په تاء سره بدل كړو او ياء په الف سره اوتاء ته په حذف د واؤ باندې دلالت كولو دَ پاره ضمه وركړه. (اعراب القرآن متصرفًا)

**قوله**: أَنْ يَغْضَبَ عَلَيْكُمْ په دې كښې دَ حذف مضاف طرف ته اشاره ده. يُحَذِّرُكُمُ اللهُ نَفْسَهُ اى غضبَ نفسه، دا په هغه خلقو باندې رد دې چاچې تقة مفعول ګرځولې دې ځکه چې مفعول مجاز دې او مجاز بلاضرورت جائز نه دې او دلته هيڅ ضرورت نشته.

**قوله**: مبتداءٌ خبره تَوَدُّ، دې كښې اشاره ده چې دَ وَمَا عَمِلَتْ عطف تجدُ په معمول باندې نه دې بلكه مبتداء دې اودَ دې خبر تَوَدُّ دې ځکه چې په دې صورت كښې بهتَوَدُّ دَ عملت ضمير نه حال وى اودَ عدم معاونت دَ وجې نه حال واقع كيدل صحيح نه دى.

**[اياتونه: ٣١ - ٤١]**

وَنَزَلَ لَمَّا قَالُوا مَا نَعْبُدُ الْأَصْنَامَ إِلَّا حُبًّا لِلَّهِ لِيُقَرِّبُونَا إِلَيْهِ {قُلْ} لَهُمْ يَا مُحَمَّدُ {إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ} بِمَعْنَى يُثِيبُكُمْ {وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ} لِمَنْ اتَّبَعَنِي مَا سَلَفَ مِنْهُ قَبْلَ ذَلِكَ {رَحِيمٌ} بِهِ {قُلْ} لَهُمْ {أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ} فِيمَا يَأْمُرُكُمْ بِهِ مِنَ التَّوْحِيدِ {فَإِنْ تَوَلَّوْا} أَعْرَضُوا عَنِ الطَّاعَةِ {فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ} فِيهِ إِقَامَةُ الظَّاهِرِ مَقَامَ الْمُضْمَرِ أَيْ لَا يُحِبُّهُمْ بِمَعْنَى أَنَّهُ يُعَاقِبُهُمْ {إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى} اخْتَارَ {آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ} بِمَعْنَى أَنْفُسِهِمَا {عَلَى الْعَالَمِينَ} بجعل الْأَنْبِيَاءِ مِنْ نَسْلِهِمْ {ذرية بعضها من} ولد {بعض} منهم {والله سميع عليم} اُذْكُرْ {إِذْ قَالَتِ امْرَأَةُ عِمْرَانَ} حَنَّةُ لَمَّا أَسَنَّتْ وَاشْتَاقَتْ لِلْوَلَدِ فَدَعَتِ اللَّهَ وَأَحَسَّتْ بِالْحَمْلِ يَا {رَبِّ إِنِّي نَذَرْتُ} أَنْ أَجْعَلَ {لَكَ مَا فِي بَطْنِي مُحَرَّرًا} عَتِيقًا خَالِصًا مِنْ شَوَاغِلِ الدُّنْيَا لِخِدْمَةِ بَيْتِكَ الْمُقَدَّسِ {فَتَقَبَّلْ مِنِّي إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ} لِلدُّعَاءِ {الْعَلِيمُ} بِالنِّيَّاتِ وَهَلَكَ عِمْرَانُ وَهِيَ حَامِلٌ {فَلَمَّا وَضَعَتْهَا} وَلَدَتْهَا جَارِيَةً وَكَانَتْ تَرْجُو أَنْ يَكُونَ

غلاما إذ لم يكن يحرر إلا الغلمان {قالت} معتذرة يا {رب إني وضعتها أنثى والله أعلم} أي عالم {بما
وضعت} جملة اعتراض من كلامه تعالى وفي قراءة بضم التاء {وليس الذكر} الذي طلبت {كالأنثى}
التي وهبت لأنه يقصد للخدمة وهي لا تصلح لضعفها وعورتها وما يعتريها من الحيض ونحوه {وإني
سميتها مريم وإني أعيذها بك وذريتها} أولادها {من الشيطان الرجيم} المطرود في الحديث ما من
مولود يولد إلا مسه الشيطان حين يولد فيستهل صارخا إلا مريم وابنها رواه الشيخان {فتقبلها ربها} أي
قبل مريم من أمها {بقبول حسن وأنبتها نباتا حسنا} أنشأها بخلق حسن فكانت تنبت في اليوم كما ينبت
المولود في العام وأتت بها أمها الأحبار سدنة بيت المقدس فقالت دونكم هذه النذيرة فتنافسوا فيها
لأنها بنت إمامهم فقال زكريا أنا أحق بها لأن خالتها عندي فقالوا لا حتى نقترع فانطلقوا وهم تسعة
وعشرون إلى نهر الأردن وألقوا أقلامهم على أن من ثبت قلمه في الماء وصعد أولى بها فثبت قلم زكريا
فأخذها وبنى لها غرفة في المسجد بسلم لا يصعد إليها غيره وكان يأتيها بأكلها وشربها ودهنها فيجد
عندها فاكهة الصيف في الشتاء وفاكهة الشتاء في الصيف كما قال تعالى {وكفلها زكريا} ضمها إليه وفي
قراءة بالتشديد ونصب زكريا ممدودا ومقصورا والفاعل الله {كلما دخل عليها زكريا المحراب} الغرفة وهي
أشرف المجالس {وجد عندها رزقا قال يا مريم أنى} من أين {لك هذا قالت} وهي صغيرة {هو من عند
الله} يأتيني به من الجنة {إن الله يرزق من يشاء بغير حساب} رزقا واسعا بلا تبعة {هنالك} أي لما رأى
زكريا ذلك وعلم أن القادر على الإتيان بالشيء في غير حينه قادر على الإتيان بالولد على الكبر وكان
أهل بيته انقرضوا {دعا زكريا ربه} لما دخل المحراب للصلاة جوف الليل {قال رب هب لي من لدنك}
من عندك {ذرية طيبة} ولدا صالحا {إنك سميع} مجيب {الدعاء} {فنادته الملائكة} أي جبريل
{وهو قائم يصلي في المحراب} أي المسجد {أن} أي بأن وفي قراءة بالكسر بتقدير القول {الله
يبشرك} مثقلا ومخففا {بيحيى مصدقا بكلمة} كائنة {من الله} أي بعيسى أنه روح الله وسمي كلمة
لأنه خلق بكلمة كن {وسيدا} متبوعا {وحصورا} ممنوعا من النساء {ونبيا من الصالحين} روي أنه لم
يعمل خطيئة ولم يهم بها {قال رب أنى} كيف {يكون لي غلام} ولد {وقد بلغني الكبر} أي بلغت نهاية
السن مائة وعشرين سنة {وامرأتي عاقر} بلغت ثمانية وتسعين سنة {قال} الأمر {كذلك} من خلق
الله غلاما منكما {الله يفعل ما يشاء} لا يعجزه عنه شيء ولإظهار هذه القدرة العظيمة ألهمه السؤال
ليجاب بها ولما تاقت نفسه إلى سرعة المبشر به {قال رب اجعل لي آية} أي علامة على حمل امرأتي
{قال آيتك} عليه {أ} ن {لا تكلم الناس} أي تمتنع من كلامهم بخلاف ذكر الله تعالى {ثلاثة أيام}
أي بلياليها {إلا رمزا} إشارة {واذكر ربك كثيرا وسبح} صل {بالعشي والإبكار} أواخر النهار وأوائله

**ترجمه**: كله چې مشركانو اووئيل مونږ (دهغه بتانو) د الله تعالى په محبت كښې عبادت
كوو دې د پاره چې دوى مونږ هغه ته نيزدې كړى دا آيت نازل شو، اې محمد ﷺ دوى ته

اووایه که تاسو الله تعالی سره محبت کوئی نوزماتابعداری اوکرئی نوالله تعالی به تاسو سره محبت اوکړی یعنی تاسو ته به ددې ثواب درکوی. او ستاسوګناهونه به معاف کړي او الله تعالی ذهغه سړی چاچې زما تابعداری اوکړه هغه ټول ګناهونه معاف کونکې دې چې د هغه نه وړاندې شوی دی او په هغه باندې رحم کونکې دې، تاسو هغوی ته اووایئې چې دالله تعالی اودهغه د رسول تابعداری اوکړئی په توحید وغیره کښې دکوم چې هغه حکم کوی په هغې باندې هم که چرې هغوئ مخ واړولو یعنی د طاعت نه ئې ډډه اوکړه. نو الله تعالی کافرانوسره محبت نه کوی په دې کښې اسم ظاهرد اسم ضمیرپه ځائی راوړلې شوې دې، یعنی هغوی سره محبت نه کوی په دې معنی سره چې هغوی ته به سزا ورکوی بیشکه الله تعالی حضرت آدم علیه السلام او نوح علیه السلام او آل ابراهیم علیه السلام او آل عمران ته یعنی پخپله هغوی په ټول جهان باندې انبیاء کرام ددوی د نسل کولوسره غوره کړی دی دا بعض د بعضو اولاد دې اوالله تعالی ښه اوریدونکی او ښه پیژندونکې دې. هغه وخت یادکړئی کوم وخت چې د عمران بی بی حنه بوډئی شوه او د بچی آرزومنده شوه اوحمل ئې محسوس کړو عرض ئې اوکړو اې زما پروردګار ما ددې بچی کوم چې زما په خیټه کښې دې ستادپاره نذر منلې دې چې دهغې د دنیاوی مشاغل نه بالکلیه جدا کولوسره به د بیت المقدس د خدمت دپاره آزاد ساتلې شی یعنی زه به هغه آزادوم، پس ته (دا) زما نه قبول کړه سره ته د دعااوریدونکې اود نیتونو پیژندونکې ئې. اودعمران انتقال اوشو، کوم وخت چې دهغه بی بی (حنه) حامله وه، بیا چې کله دهغې جینئی اوشوه حالانکه دهغې امید د هلك وو ځکه چې د (بیت المقدس د خدمت دپاره) به هم هلکان آزادولې شو. نو عذر بیانولوسره هغې اووئیل اې زما پروردګار زما خو جینئی شوې ده حالانکه الله تعالی ته خو معلومه ده چې کوم څیز دې زنګولی دی. د الله تعالی په کلام کښې داجمله معترضه ده او په یوقراءت کښې وضعت ضمه سره دې کوم هلک چې ما غوښتې وو هغه دجینئی په شان نه شی کیدې کومه چې ماته راکړې شوې ده ځکه چې ددې نه یوخاص خدمت مقصود دې. د کوم چې دا جینئی دخپل ضعف اود ښځې کیدود وجې نه اوددې عذرونو مثلاً حیض نفاس وغیره راتلود وجې نه صلاحیت نه لری (خیر) مادې نوم مریم کیخودو او زه دا اود دې اولاد د شیطان مردود نه ستا په پناه کښې ورکوم، په حدیث کښې دی چې کوم بچې هم پیدا کیږی د پیدائش په وخت شیطان په هغه باندې نوکارې لګوی د کوم د وجې نه چې هغه په زوره زوره چغې وهی البته مریم اودهغې ځوئی ددې نه خلاص دی. (رواه الشیخان) بیا دهغې پروردګار په ښه طریقه سره دهغې د مور نه مریم قبوله کړه. اوهغې ته ئې ښه خصمانه ورکړه، یعنی په ښه تخلیق سره ئې هغه لویه کړه هغه به په یوه ورځ کښې دومره لوئیدله لکه چې ماشوم په کال کښې لوئیږی. نوهغه د هغې مور بیت المقدس کښې د (بیت المقدس) خدمت ګارانو احبارو له

راوستله اوهغه ته ئی اووئیل دا نذر منلې شوې واخلئ. تولو په دې کښې رغبت اوکړ
ځکه چې دا دَهغوی دَامام لوروه، زکریا علیه السلام اوفرمائیل زه دَدې زیات حقداریم ځکه چې
دَدې ترور زما په نکاح کښې ده نو خلقو اووئیل داسې نه شی کیدې بلکه مونږ به
خسنړې اوباسو نوهغوی دَ نهر اردن طرف ته لاړل هغوی یوکم دیرش کسان وو هغوی
خپل قلمان (دریاب) کښې واچول. په دې فیصله کولوسره چې دَ چا قلم په اوبوکښې
اودریدو او دَ اوبوپه سر راشی نوهغه سړې به دَ مریم زیات حقداروی. نودَ (حضرت)
زکریا علیه السلام قلم اودریدو لهذا حضرت زکریا علیه السلام بی بی مریم واخستله اودَهغې دَپاره ئی
په جمات کښې یوپاوړئی او بالاخانه جوړه کړه په هغې به دَ حضرت زکریا علیه السلام نه علاوه
بل څوك نه ورختل. اوحضرت زکریا علیه السلام به هغې له خوراك څښاك او تیل (وغیره) اوړل
نوبی بی مریم سره به دَ یخنې دَموسم میوې په ګرمئی کښې اودګرمئی دَ موسم په یخنئی
کښې موجود وې لکه چې الله تعالی فرمائیلی اودَهغې ساتونکې زکریا علیه السلام جوړکړې شو
یعنی هغه ئی هغه سره یوځائی کړه او په یوقراءت کښې تشدیدسره اودَ زکریا دَ نصب
سره دې. ممدود اومقصور دواړه دی او الله تعالی دَدې فاعل دې، کله چې به حضرت زکریا
علیه السلام دَهغې حجرې ته راتلو اوهغه دَ ټولونه افضل ځائی وو نوهغې سره به ئی دَ خوراک څښاک
څیزونه لیدل (یوه ورځ) ئی تپوس اوکړو اې مریم تالـه دا څیزونه دَکوم ځائی نه راځی؟ هغې اووئیل
دادَ الله تعالی دَطرف نه راځی هغه وخت هغه وړه وه هغه دا ماله دَ جنت نه راوړی. الله تعالی
چاله چې غواړی بې حسابه رزق ورکوی یعنی بغیردَ مشقت نه کافی رزق (بس) هم هلته، یعنی
چې کله حضرت زکریا علیه السلام دا صورت حال اولیدلو نو پوهه شو چې کوم ذات بې موسم
څیز راوړلوباندې قادر دې نوهغه په بوډاوالی کښې په اولاد ورکولوباندې هم قادردې،
دَحضرت زکریا علیه السلام اهل خانه وفات شوې وو، زکریا علیه السلام کوم وخت چې هغه دَ شپې جمات
کښې دَمانځه دَپاره لاړو دعااوکړه، عرض ئی اوکړو اې زما ربه ماله ته یوپاک اولاد یعنی نیك
اولاد راکړه بیشکه ته دَ دعاقبلونکې ئی. نو هغه ته فرښتو یعنی جبرائیل علیه السلام آواز ورکړو حال دا
چې هغه په جمات کښې ولاړ مونځ کولو، چې الله تعالی تاته دَ یحیی زیرې درکوی. اَنَّ اصل
کښې بِاَنَّ دې او په یوقراءت کښې کسره سره دې دَ قول تقدیر سره (یُبَشِّرُ) مشدد
اوغیرمشدد دواړه قراءتونه دی. چې دَ کلمة الله کوم چې دَ الله تعالی دَ طرف نه وی یعنی دَ
عیسیٰ علیه السلام تصدیق کونکې به وی چې هغه روح الله دې اودَهغه نوم کلمه کیخودې شوه
ځکه چې هغه دَ کلمه کُنْ په ذریعه سره پیداکړې شوې اومقتداء به وی او ډیرزیات ضبط
نفس والا به وی. اودَښځونه به ډیر ځان ساتونکې وی او په نبوت باندې به سرفراز وی په
صالحینو کښې به شمیرلې شی، روایت کړې شوې دې چې هغه نه کله دَخطاء ارتکاب کړې
دې او نه ئی کله دَدې اراده کړې. (زکریا علیه السلام) اووئیل اې زما پروردګار زما به ځوئی څنګه

کیږی؟ زه بوډا شوی یم یعنی دَ یوسل او شل کالو آخری عمر ته رسیدلی یم اوزما بی بی شنډه ده چې دوه کم سلوکالوته رسیدلې ده. جواب ملاؤ شو تاسو دواړو نه به دَ خپلې دَتخلیق معامله داسې کیږی چې الله تعالی څه غواړی هم هغه کیږی هیڅ یوشئ هغه عاجز کولې نه شی. اود قدرت عظیمه ښکاره کولودپاره الله تعالی هغه ته سوال الهام کړو چې په قدرت عظیمه سره جواب ورکړی، اوکله چې دَحضرت زکریا علیه السلام دَ نفس مبشربه په تادئی سره غوښتونکې شو نوعرض ئې اوکړو اې زما ربه ته زمادَ پاره زما دَ بی بی دَحامله کیدو څه نښه مقررکړه الله تعالی اوفرمائیل په دې باندې ستا نشانی داده چې ته به خلقو سره دَ دریو ورځوپورې سره دَهغې دَ شپو دَ اشارې نه علاوه خبرې نه شې کولې. یعنی خلقو سره به کلام کولوباندې قادر نه ئې په خلاف دَ الله تعالی دَ ذکر، او خپل رب په کثرت سره یاده وه سحر اوماښام یعنی آخردَ ورځې او اول دَ ورځې کښې تسبیح کوه.

## دَ قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بمعنی اَنَّهُ یُثِیْبُکُمْ، دَ یُحْبِبْکُمُ اللهتفسیر یُثِیْبُکُمْ سره کولوسره دَ یوسوال جواب ورکړې دې.

**سوال:** دَالله تعالی طرف ته دَ محبت نسبت کول صحیح نه دی ځکه چې محبت میلان القلب الی الشئ ته وئیلې شی دادَ ذات خداوندی دَپاره محال دې.

**جواب:** دَ محبت کولو نه مراد اجر او ثواب ورکول دی.

**قوله:** اَعْرَضُوْا دې کښې اشاره ده چې تَوَلَّوْادَماضی صیغه ده نه چې دَمضارع لکه چې بعض حضراتو وئیلی دی، ځکه چې دَ مضارع په صورت کښې دَ یوتاء حذف لازم راځې. دَعموم په قصدسره اوپه دې خبره دلالت کولودپاره چې اعراض سبب دکفردې، د هُم ضمیر په ځائی اسم ظاهر الکافرین راوړلې دې. یعنی د لَایُحِبُّهُمْ په ځائی الکٰفِرِیْنَ وئیلې دې.

**قوله:** مِنَ التَّوْحِید، داهم دَ یوسوال جواب دې.

**سوال:** دَاعمال فرعیه نه اعراض کول موجب کفرنه دې، حالانکه دلته فرمائیلی شوی دی اِنَّ اللهَ لَایُحِبُّ الْکٰفِرِیْنَ دَدې نه معلومیږی چې اعراض عن الاعمال الفرعیه مرکب موجب کفر دی.

**جواب:** دلته دَ اعراض نه مراد اعراض عن التوحید دې کوم چې موجب کفردې.

**قوله:** بمعنی انفسهما، آل ابراهیم علیه السلام او آل عمران نه مراد پخپله ابراهیم علیه السلام اوعمران دې ځکه چې دَدوی په آل کښې کافران اومؤمنان ټول دی حالانکه کافر مراد نه دی، عمران دَ حضرت موسی علیه السلام دَ پلار نوم دې. دَ موسیٰ علیه السلام نسب نامه داسې ده موسیٰ بن عمران بن

يصهر بن قاهث بن لاوى بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام اودَ حضرت مريم دَ پلارنوم هم عمران دې دَهغه سلسله نسب داسې ده حضرت مريم بنت عمران بن ماثان بن يهوذ ابن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام. دَدواړو عمرانانو په مينځ کښې دَ يو زر اتو سوو کالو فاصله ده.

**قوله** اَنْ اَجْعَلَ، د نذرتُ تفسير اَنْ اَجْعَلَ سره کولوسره دَ يوسوال جواب مقصود دې

**سوال** نذر دَ فعل منلې شی نه چې دَ شئ اودَ ذات، مافى بطنى ذات دې نه چې فعل

**دوهم جواب** اَنْ اَجْعَلَ وئيلوسره ددغه سوال جواب ورکړې دې، اونذر منل فعل دې نه چې عين، په دې کښې دَدې سوال جواب هم دې چې نذرتُ متعدى په يومفعول دې حالانکه دلته دوه مفعولوطرف ته متعدى دې يو مافى بطنى او دويم محررًا.

**دويم جواب** نذرتُ په معنى کښې دَ جَعَلَ دې او جَعَلَ متعدى په دوو مفعولو وى.

**قوله** اى جبرئيل دادَهغه سوال جواب دې چې دَ نادتْ فاعل ملائك دى حالانکه آواز ورکونکې څان له حضرت جبرائيل عليه السلام دې.

**جواب** الف لام دَ جنس دې اودلته اقل جنس مراد دې يعنى يوکس اوهغه حضرت جبرائيل عليه السلام دې.

**[اياتونه:٤٢-٥٤]**

{و} اُذْكُرْ {إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ} أَيْ جِبْرِيلُ {يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاكِ} اخْتَارَكِ {وَطَهَّرَكِ} مِنْ مَسِيْسِ الرِّجَالِ {وَاصْطَفَاكِ عَلَى نِسَاءِ الْعَالَمِينَ} أَيْ أَهْلِ زَمَانِكِ {يَا مَرْيَمُ اقْنُتِي لِرَبِّكِ} أَطِيْعِيْهِ {وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرَّاكِعِينَ} أَيْ صَلِّي مَعَ الْمُصَلِّيْنَ {ذَلِكَ} الْمَذْكُوْرُ مِنْ أَمْرِ زَكَرِيَّا وَمَرْيَمَ {مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ} أَخْبَارِ مَا غَابَ عَنْكَ {نُوحِيهِ إِلَيْكَ} يَا مُحَمَّدُ {وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَامَهُمْ} فِي الْمَاءِ يَقْتَرِعُوْنَ لِيَظْهَرَ لَهُمْ {أَيُّهُمْ يَكْفُلُ} يُرَبِّي {مَرْيَمَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ} فِي كَفَالَتِهَا فَتَعْرِفَ ذَلِكَ فَتُخْبِرَ بِهِ وَإِنَّمَا عَرَفْتَهُ مِنْ جِهَةِ الْوَحْيِ اُذْكُرْ {إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ} أَيْ جِبْرِيْلُ {يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِنْهُ} أَيْ وَلَدٍ {اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ} خَاطَبَهَا بِنِسْبَتِهِ إِلَيْهَا تَنْبِيْهًا عَلَى أَنَّهَا تَلِدُهُ بِلَا أَبٍ إِذْ عَادَةُ الرِّجَالِ نِسْبَتُهُمْ إِلَى آبَائِهِمْ {وَجِيهًا} ذَا جَاهٍ {فِي الدُّنْيَا} بِالنُّبُوَّةِ {وَالْآخِرَةِ} بِالشَّفَاعَةِ وَالدَّرَجَاتِ الْعُلَا {وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ} عِنْدَ اللهِ {وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ} أَيْ طِفْلًا قَبْلَ وَقْتِ الْكَلَامِ {وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّالِحِينَ} {قَالَتْ رَبِّ أَنَّى} كَيْفَ {يَكُونُ لِي وَلَدٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ} بِتَزَوُّجٍ وَلَا غَيْرِهِ {قَالَ} الْأَمْرُ {كَذَلِكِ} مِنْ خَلْقِ وَلَدٍ مِنْكِ بِلَا أَبٍ {اللَّهُ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ إِذَا قَضَى أَمْرًا} أَرَادَ خَلْقَهُ {فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ} أَيْ فَهُوَ يَكُوْنُ {وَيُعَلِّمُهُ} بِالنُّوْنِ وَالْيَاءِ {الْكِتَابَ} الْخَطَّ {وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ} {وَ}

يجْعَلهُ {رَسُولًا إِلَى بَنِي إِسْرَائِيل} فِي الصِّبَا أَوْ بَعْد الْبُلُوغ فَنَفَخَ جِبْرِيل فِي جَيْب دِرْعهَا فَحَمَلَتْ وَكَانَ مِنْ أَمْرهَا مَا ذُكِرَ فِي سُورَة مَرْيَم فَلَمَّا بَعَثَهُ اللّٰه إِلَى بَنِي إِسْرَائِيل قَالَ لَهُمْ إِنِّي رَسُول اللّٰه إِلَيْكُمْ {أَنِّي} أَيْ بِأَنِّي {قَدْ جِئْتُكُمْ بِآيَةٍ} عَلَامَة عَلَى صِدْقِي {مِنْ رَبِّكُمْ} هِيَ {أَنِّي} وَفِي قِرَاءَة بِالْكَسْرِ اسْتِئْنَافًا {أَخْلُق} أُصَوِّر {لَكُمْ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْر} مِثْل صُورَته فَالْكَاف اسْم مَفْعُول {فَأَنْفُخُ فِيهِ} الضَّمِير لِلْكَافِ {فَيَكُونُ طَيْرًا} وَفِي قِرَاءَة طَائِرًا {بِإِذْنِ اللّٰه} بِإِرَادَتِهِ فَخَلَقَ لَهُمْ الْخُفَّاش لِأَنَّهُ أَكْمَل الطَّيْر خَلْقًا فَكَانَ يَطِير وَهُمْ يَنْظُرُونَهُ فَإِذَا غَابَ عَنْ أَعْيُنهمْ سَقَطَ مَيِّتًا {وَأُبْرِئُ} أَشْفِي {الْأَكْمَه} الَّذِي وُلِدَ أَعْمَى {وَالْأَبْرَص} وَخُصَّا بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُمَا دَاءَا إِعْيَاء وَكَانَ بَعْثه فِي زَمَن الطِّبّ فَأَبْرَأَ فِي يَوْم خَمْسِينَ أَلْفًا بِالدُّعَاءِ بِشَرْطِ الْإِيمَان {وَأُحْيِي الْمَوْتَى بِإِذْنِ اللّٰه} كَرَّرَهُ لِنَفْيِ تَوَهُّم الْأُلُوهِيَّة فِيهِ فَأَحْيَا عَازِر صَدِيقًا لَهُ وَابْن الْعَجُوز وَابْنَة الْعَاشِر فَعَاشُوا وَوُلِدَ لَهُمْ وَسَام بْن نُوح وَمَاتَ فِي الْحَال {وَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ} تُخَبِّئُونَ {فِي بُيُوتِكُمْ} مِمَّا لَمْ أُعَايِنهُ فَكَانَ يُخْبِر الشَّخْص بِمَا أَكَلَ وَبِمَا يَأْكُل بَعْد {إِنَّ فِي ذَٰلِكَ} الْمَذْكُور {لَآيَة لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} {وَ} جِئْتُكُمْ {مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ} قَبْلِي {مِنَ التَّوْرَاةِ وَلِأُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ} فِيهَا فَأَحَلَّ لَهُمْ مِنَ السَّمَك وَالطَّيْر مَالَا صِيصَة لَهُ وَقِيلَ أَحَلَّ الْجَمِيع فَبَعْض بِمَعْنَى كُلّ {وَجِئْتُكُمْ بِآيَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ} كَرَّرَهُ تَأْكِيدًا وَلِيَبْنِيَ عَلَيْهِ {فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيعُونِ} فِيمَا آمُرُكُمْ بِهِ مِنْ تَوْحِيد اللّٰه وَطَاعَته {إِنَّ اللّٰهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا} الَّذِي آمُرُكُمْ بِهِ {صِرَاط} طَرِيق {مُسْتَقِيم} فَكَذَّبُوهُ وَلَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ {فَلَمَّا أَحَسَّ} عَلِمَ {عِيسَى مِنْهُمُ الْكُفْر} وَأَرَادُوا قَتْله {قَالَ مَنْ أَنْصَارِي} أَعْوَانِي ذَاهِبًا {إِلَى اللّٰه} لِأَنْصُرَ دِينه {قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنْصَارُ اللّٰه} أَعْوَان دِينه وَهُمْ أَصْفِيَاء عِيسَى أَوَّل مَنْ آمَنَ بِهِ وَكَانُوا اثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا مِنَ الْحُور وَهُوَ الْبَيَاض الْخَالِص وَقِيلَ كَانُوا قَصَّارِينَ يَحُورُونَ الثِّيَاب أَيْ يُبَيِّضُونَهَا {آمَنَّا} صَدَّقْنَا {بِاللّٰهِ وَاشْهَدْ} يَا عِيسَى {بِأَنَّا مُسْلِمُونَ} {رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنْزَلْتَ} مِنَ الْإِنْجِيل {وَاتَّبَعْنَا الرَّسُول} عِيسَى {فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ} لَكَ بِالْوَحْدَانِيَّة وَلِرَسُولِكَ بِالصِّدْقِ قَالَ تَعَالَى {وَمَكَرُوا} أَيْ كُفَّار بَنِي إِسْرَائِيل بِعِيسَى إِذْ وَكَّلُوا بِهِ مَنْ يَقْتُلهُ غِيلَة {وَمَكَرَ اللّٰه} بِهِمْ بِأَنْ أَلْقَى شَبَه عِيسَى عَلَى مَنْ قَصَدَ قَتْله فَقَتَلُوهُ وَرَفَعَ عِيسَى إِلَى السَّمَاء {وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ} أَعْلَمهُمْ بِهِ

---

**ترجمه:** او هغه وخت یادکړئ کله چې فرښتو یعنی جبرائیل علیه السلام او وئیل اې مریم بیشکه الله تعالی ته غوره کړې او دَ سړو دَ لاس لګولونه ئې ته پاکه کړئې او ته ئې دَ دنیا جهان دَ ښځو په مقابله کښې یعنی دَ خپلې زمانې دَ ښځو په مقابله کښې غوره کړئې. اې مریم ته دَ خپل رب اطاعت کوه او سجده کوه او رکوع کونکوسره رکوع کوه یعنی دَ مونځ کونکوسره مونځ کوه. دا مذکوره واقعات (یعنی) د زکریا علیه السلام او دَ بی بی مریم واقعه دَغیبو دَ خبرونه دی یعنی دَهغه خبرونه چې دَ تاسو نه دَغیب پرده کښې دی. مونږ تاسو ته اې محمد صلی الله علیه وسلم وحی کوو او کوم وخت چې هغوی خپل قلمونه دَ خسنړی ویستو دَپاره په اوبو کښې غورزول دې دَپاره چې

هغوی ته داخبره ښکاره شی چې دَ مریم سرپرستی به څوک وی؟ اودَهغې په سرپرستئ کښې چې هغوی اختلاف کولو نوته هغوی سره موجودنه وې چې تادا واقعه پیژندله دَ کوم په وجه چې تاسو دوی ته خبر ورکوئې تاته خو علم دَ وحې په ذریعه شوې دې. او هغه وخت یادکړه کله چې فرښتو یعنی جبرائیل علیه السلام اووئیل اې مریم الله تعالی تاته زیرې درکوې دَخپل طرف نه یوې کلمې یعنی دَ هلك چې دَهغه نوم (اولقب) به مسیح عیسی ابن مریم وی، دَ بچی دَ مریم طرف ته نسبت کول مریم ته خطاب په دې خبره باندې تنبیه کولودپاره اوکړو چې هغه به دا بغیردَ پلار نه راوړی اودَ خلقو عادت دَهغوی دَ پلار طرف ته دَ نسبت کولو دې. په دنیاکښې دَ نبوت دَ وجې نه او په آخرت کښې دَ شفاعت او اعلی درجات دَ وجې نه دَالله تعالی په نیز معزز او مقربین نه به وی. او هغه به خلقو سره په زانګو کښې یعنی وړوکوالی کښې دَخبرو کولو دَعمر نه وړاندې خبرې کوی او په پوخ عمر کښې هم، اودَ صالحینو نه به وی. هغې اووئیل اې زما پروردګار زما څوئی به څنګه کیږی په داسې حال کښې چې نه زما یو سړی سره نکاح شوې ده او نه بغیردَ نکاح نه دَ چا لاس لګیدلې دې ارشاد اوشو بغیردَ پلار نه به تانه د هلك پیدا کیدلو معامله هم داسې وی. الله تعالی چې څه غواړی پیدا کوی اوکله چې دَ یوڅیز دَ پیدا کولو اراده کوی نودَهغې دَ پاره کن وائی نو هغه کیږی او هغه به ده ته تعلمه، یعلمه نون او یاء سره دې لیکل ښائی او تورات او انجیل به ورته ښائی او مونږ به هغه ته په وړوکوالی او بالغ کیدونه پس دَ بنی اسرائیلو پیغمبر جوړه وو. چنانچې جبرائیل علیه السلام دَ هغې دَ قمیص ګریوان کښې پوکې اووهلو نو هغه حامله شوه. اودَهغې قصه داسې اوشوه کومه چې په سورت مریم کښې ده. نو چې کله هغه بنی اسرائیلو ته مبعوث کړو نو هغه بنی اسرائیلو ته اوفرمائیل زه ستاسو طرف ته دَالله تعالی رسول یم (او وائی به) ما تاسو له په خپل صداقت باندې ستاسو دَ رب دَ طرف نه نشانی راوړلې راغلې یم، هغه دا چې زه او په یو قراءت کښې په صورت انّی کسره سره دې دَاستیناف دَپاره. ستاسو دَپاره دَ خاورې نه دَ مرغو په شان صورت جوړوم یعنی دَمرغئی په شان صورت اودَ کهیئة کاف اسم مفعول دې، یا په هغې کښې دم کوم نو هغه دَالله تعالی په حکم سره مرغئی جوړیږی او په یو قراءت کښې طائراً دې. نو دَهغوی دَپاره ئې ښاپیرك پیدا کړو څکه چې هغه په مرغو کښې دَتخلیق په اعتبار سره کامل ترین دې هغه به الوتلو او هغوی به دا کتلو. اوکله چې به هغه دَ هغوی دَ نظر نه غائب شو نو هغه به مړشو پریوتلو به، او زه دَالله په حکم سره دَ مور نه پیدا شوی ړانده او برګ دَ دې دواړو مرضونو دَ تخصیص وجه دا ده چې دې دواړو طبیبان عاجز کړی وو او دَ هغوی بعثت دَ طب په زمانه کښې شوې وو. په یوه ورځ دَ ایمان په شرط سره دَ دعا په ذریعه پنځوس زره صحت مند کړل اودَ الله تعالی په حکم باندې مړی ژوندی کوم باذن الله ئې مکرر ذکر کړې دې په هغوی کښې دَ الوهیت دَ وهم دَ نفی کولو دَپاره. هغه خپل دوست عاذر او دَ بودئی

خونى اود عشر وصولونكي لور راژوندى كړل. دا خلق (دَ يوې مودې پورې) ژوندى وو او صاحب اولاد شو، او سام بن نوح ئى راژوندې كړو (مگر) هغه هم هغه وخت مړشو، اوزه تاسوته ښايم كوم چې تاسو خورئى اوكوم څه چې تاسو پټولو سره ايږدئى په خپلوكورونوكښې. دغه څيزونه كوم چې ماكتلې هم نه دى، نو هغوى به سړو ته خودل چې هغه څه خوړلى دى؟ او راتلونكي وخت كښې به څه خورى؟ بيشكه په دغه مذكوره واقعاتوكښې ستاسو دَپاره نشانې دى كه چرې تاسو ايمان لرئى او زه تاسو له دَخپل ځان نه وړاندې (كتاب) دَ تورات اوانجيل تصديق كونكې راغلې يم. (او دَ دې دپاره راغلې يم) كوم څه چې په تاسو په تورات كښې حرام كړې شوى دى ټول حلال كړم (په دې صورت كښې) بعض به په معنى دَ كل وى او زه تاسو له ستاسو دَ رب دَ طرف نه نشانى راوړلې راغلې يم دائى دَ تاكيد دَپاره مكرر راوړلې دې يا ځكه چې د (فاتقواالله واطيعون) بنا پرې اوشى. لهذا دَالله تعالى نه ويرېږئى اودَ كوم چې زه تاسو ته حكم دركړم په هغې كښې زما اطاعت كوئى اوهغه دَالله تعالى توحيد اودَهغه اطاعت دې، بيشكه الله تعالى زما هم رب دې او ستاسو هم رب دې، بس دَهغه عبادت كوئى هم دغه هغه نيغه لار ده دَ كومې چې زه تاسو ته حكم دركوم مگر هغوى دَ (عيسى عليه السلام) تكذيب اوكړو او په هغه باندې ئى ايمان رانوړو. كله چې حضرت عيسى عليه السلام دَهغوى دَ طرف نه انكارمحسوس كړو اوهغوى دَ ده دَقتل كولواراده اوكړه، نو هغه اوفرمائيل دَ الله تعالى دَپاره به زما څوک امدادى وى؟ حال دا چې زه دَ الله طرف ته تلونكې يم دې دَپاره چې زه دَهغه دَ دين امداد اوكړم نو حواريانو اووئيل مونږ يو دَ الله تعالى امداديان يعنى دَهغه دَ دين امدادى. اودغه دَحضرت عيسى عليه السلام منتخب كړې شوى خلق وو او په هغه باندې دَ ټولو نه اول ايمان راوړونكونه وو، او هغه دولس سړى وو (حواريان دَ حَوَرٌ نه مشتق دى دَ دې معنى خالص سپينوالې دې. وئيلى شوى دى هغه دهوبيان وو چې كپړې به سپينولې (صفا) كولې. مونږ دَالله تعالى تصديق كړو او اې عيسى عليه السلام ته گواه اوسيږه چې مونږ حكم منونكي يو اې زمونږ پروردگار مونږ ايمان راوړې په انجيل باندې كوم چې تا نازل كړې دې او مونږ دَ رسول اتباع اوكړه چې عيسى عليه السلام دې نو مونږ هم دَ خپل توحيد دَ گواهانوسره اودَ خپل رسول اتباع كونكوسره اوليكه، الله تعالى اوفرمائيل دَبنى اسرائيلو كافرانو عيسى عليه السلام سره تدبيراوكړو كوم وخت چې هغه هغه خلقو ته حواله كړو چې هغوى ناڅاپى قتل كول غوښتل اوالله هم هغوى سره خفيه تدبيراوكړو په داسې طريقه چې په هغه سړى باندې چا چې عيسى عليه السلام قتل كول غوښتل په هغه ئې دعيسى عليه السلام رنگ اوتشبيه واچولى خلقو هم هغه قتل كړو او عيسى عليه السلام ئى آسمان ته اوچت كړو. او الله تعالى پټ تدبير كونكوكښې دَ ټولونه بهتردې يعنى خفيه تدبير دَهغوى نه زيات پيژندونكې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: وَاِذْقَالَتِ الْمَلٰئِكَةُ، دا په سابقه قَالَتْ باندې عطف قصه علی القصه ده، قصه د بنت په قصه د اُم باندې عطف کړې شوې ده مناسبت ظاهر دې. او بعض حضراتو د اذکر فعل مقدر دَ وجې نه منصوب وئیلی دی دَمفسرعلام هم دغه رائې ده.

**قوله**: ای جبرئیل، دې کښې اشاره ده چې الملائکة اسم جنس دې مراد ادنیٰ فرد یعنی واحد دې یا الملائکة دَ جبرائیل عليه السلام دَ تعظیم په توګه سره جمع راوړلې شوې دې.

**قوله**: اِصْطَفٰی اِصْطِفَاءٌ نه ماضی واحد مذکر غائب، هغه خوښ کړو، هغه غوره کړو، هغه منتخب کړو.

**قوله**: ای وَلَدٍ دا د کلمةٍ تفسیر دې.

**قوله**: اَلْمَسِيْحُ عيسى عيسىٰ د المسيح نه بدل دې. دَهغوی لقب مسیح دې او مسیح په عبرانی ژبه کښې مبارك ته هم وائی، مسیح ته مسیح ځکه وئیلو چې هغه به سفر اوسیاحت ډیر کولو یا په دې وجه چې هغوی به کوم مریض مسح کولو هغه به تیك کیدلو.

**قوله**: عيسىٰ دا ايسوع نه ماخوذ دې او وئیلی شوی دی چې دَالعیس نه ماخوذ دې هغه سپینوالی ته وائی په کوم کښې چې سرخی غالب وی. چونکه هغه غنم رنګې وو په دې وجه هغه ته عیسیٰ وئیلې شوی دې.

**قوله**: ابن مريم، داد مبتداء محذوف، هُوَ خبر دې.

**قوله**: وَجِيْهًا دا د كلمةٌ نه حال دې اګرچې کلمة نکره دې مګر موصوفه دې ای کلمةٍ کائنةٍ منه.

**قوله**: ای طِفْلاً الخ دې کښې اشاره دد چې دَالمهد نه مراد زانګو نه ده بلکه حالت طفولیت دې کد دکلام کولو په وخت په زانګو کښې وی او که دَ مور په غیږ یا په بستره باندې.

**قوله**: ومن الصالحين دَدې عطف په وَجِيْهًا باندې دې.

**قوله**: فهو يكونُ دې کښې اشاره ده چې يكون، هُوَ دَمبتداء محذوف خبر دې.

**قوله**: الخط د الكتبَ تفسیر په الخط سره کولو مقصد دَ یو سوال جواب دې.

**سوال**: د التوراة او انجيل عطف الكتاب باندې صحیح نه دې ځکه چې په کتاب کښې انجیل او تورات دواړه شامل دی لهذا دا عطف الشئ علی نفسه دَ قبیل نه به شی.

**جواب**: الكتاب نه مراد الكتابة دې دَدې طرف ته په الخط سره اشاره فرمائیلې ده.

**قوله**: هِيَ اَن، هِيَ محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې اَنّی سره د خپل مابعد د مبتداء

محذوف خبر دې نه چې أنی قد جئتکم نه بدل کیدو د وجې نه منصوب

**قوله** الکاف اسم مفعول، دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَ یوسوال جواب دې

**سوال** فَأَنفُخُ فِيهِ، دَ فِيهِ ضمیر کَهَيْئَةِ الطیر کښې دکاف طرف ته راجع دې اوکاف حرف دې او حرف طرف ته ضمیر راجع کیدې نه شی.

**جواب** کاف په معنی دَ مثل دې کوم چې اسم مفعول دې، مماثل هَيْئَةِ الطير. لهذا اوس څه اشکال پاتې نه شو.

## [ایاتونه:۵۵-۶۳]

{إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَىٰ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ} قَابِضك {وَرَافِعُكَ إِلَيَّ} مِنَ الدُّنْيَا مِنْ غَيْرِ مَوْت {وَمُطَهِّرُكَ} مُبْعِدك {مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ} صَدَّقُوا بِنُبُوَّتِك مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالنَّصَارَى {فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا} بِك وَهُمْ الْيَهُود يَعْلُونَهُمْ بِالْحُجَّةِ وَالسَّيْف {إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ} مِنْ أَمْر الدِّين {فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا} بِالْقَتْلِ وَالسَّبْي وَالْجِزْيَة {وَالْآخِرَةِ} بِالنَّارِ {وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ} مَانِعِينَ مِنْهُ {وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ} بِالْيَاءِ وَالنُّون {أُجُورَهُمْ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ} أَيْ يعاقبهم روي أنه تَعَالَى أَرْسَلَ إِلَيْهِ سَحَابَة فَرَفَعَتْهُ فَتَعَلَّقَتْ بِهِ أمه وَبَكَتْ فَقَالَ لَهَا إِنَّ الْقِيَامَة تَجْمَعنَا وَكَانَ ذَلِكَ لَيْلَة الْقَدْر بِبَيْتِ الْمَقْدِس وَلَهُ ثَلَاث وَثَلَاثُونَ سَنَة وَعَاشَتْ أمه بَعْده سِتّ سِنِينَ وَرَوَى الشَّيْخَانِ حَدِيث أَنَّهُ يَنْزِل قُرْب السَّاعَة وَيَحْكُم بِشَرِيعَةِ نَبِيّنَا وَيَقْتُل الدَّجَّال وَالْخِنْزِير وَيَكْسِر الصَّلِيب وَيَضَع الْجِزْيَة وَفِي حَدِيث مُسْلِم أَنَّهُ يَمْكُث سَبْع سِنِينَ وَفِي حَدِيث عَنْ أَبِي دَاوُد الطَّيَالِسِيّ أربعين سنة يتوفي وَيُصَلَّى عَلَيْهِ فَيَحْتَمِل أَنَّ الْمُرَاد مَجْمُوع لُبْثه فِي الْأَرْض قَبْل الرَّفْع وَبَعْده {ذَٰلِكَ} الْمَذْكُور مِنْ أَمْر عِيسَى {نَتْلُوهُ} نَقُصّهُ {عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {مِنَ الْآيَاتِ} حَال مِنَ الْهَاء فِي نَتْلُوهُ وَعَامِله مَا فِي ذَلِكَ مِنْ مَعْنَى الْإِشَارَة {وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ} الْمُحْكَم أَيْ الْقُرْآن {إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ} شَأْنه الْغَرِيب {عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ} كَشَأْنِهِ فِي خَلْقه مِنْ غَيْر أَب وَهُوَ مِنْ تَشْبِيه الْغَرِيب بِالْأَغْرَبِ لِيَكُونَ أَقْطَع لِلْخَصْمِ وَأَوْقَع فِي النَّفْس {خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن} بَشَرًا {فَيَكُونُ} أَيْ فَكَانَ وَكَذَلِكَ عِيسَى قَالَ لَهُ كُنْ مِنْ غَيْر أَب فَكَانَ {الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ} خَبَر مُبْتَدَأ مَحْذُوف أَيْ أَمْر عِيسَى {فَلَا تَكُن مِّنَ الْمُمْتَرِينَ} الشَّاكِّينَ فِيهِ {فَمَنْ حَاجَّكَ} جَادَلَك مِنَ النَّصَارَى {فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ} بِأَمْرِهِ {فَقُلْ} لَهُمْ {تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ} فَنَجْمَعهُمْ {ثُمَّ نَبْتَهِلْ} نَتَضَرَّع فِي الدُّعَاء {فَنَجْعَل لَّعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ} بِأَنْ نَقُول اللَّهُمَّ الْعَنْ الْكَاذِب فِي شَأْن عِيسَى وَقَدْ دَعَا صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفْد نَجْرَان لِذَلِكَ لَمَّا حَاجُّوهُ بِهِ فَقَالُوا حَتَّى نَنْظُر فِي أَمْرنَا ثُمَّ نَأْتِيك فَقَالَ ذُو رَأْيهمْ لَقَدْ عَرَفْتُمْ نُبُوَّته وَأَنَّهُ مَا بَاهَلَ قَوْم نَبِيًّا إِلَّا هَلَكُوا فَوَادَعُوا الرَّجُل وَانْصَرَفُوا فَأَتَوْا الرَّسُول صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ خَرَجَ وَمَعَهُ الْحَسَن وَالْحُسَيْن وَفَاطِمَة وَعَلِيّ وَقَالَ لَهُمْ إِذَا دَعَوْت فَأَمِّنُوا فَأَبَوْا أَنْ يُلَاعِنُوا

وَصَالَحُوهُ عَلَى الْجِزْيَةِ رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ وَعَنْ ابنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَوْ خَرَجَ الَّذِينَ يُبَاهِلُونَ لَرَجَعُوا لَا يَجِدُونَ مَالًا وَلَا أَهْلًا وَرُوِيَ لَوْ خرجوا لاحترقوا {إِنَّ هَٰذَا} الْمَذْكُور {لَهُوَ الْقَصَصُ} الْخَبَرُ {الْحَقُّ} الَّذِي لَا شَكَّ فِيهِ {وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ} فِي مُلْكِهِ {الْحَكِيمُ} فِي صُنْعِهِ {فَإِنْ تَوَلَّوْا} أَعْرَضُوا عَنِ الْإِيمَانِ {فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ} فَيُجَازِيهِمْ وَفِيهِ وَضْعُ الظَّاهِرِ مَوْضِعَ الْمُضْمَرِ

**ترجمه**: (هغه وخت هم قابل ذکردې) کله چې الله تعالى حضرت عيسى عليه السلام ته اوفرمائيل اې عيسى زه تا وفات کونکې (يعنى) تا (خپله) قبضه کښې اخستونکې يم او دَدنيانه بغير د مرګ نه خپل طرف ته اوچتونکې يم او دَهغه خلقو نه تا پاک جدا کونکې يم کوم چې منکرشو او هغه خلق چاچې ستا تابعدارى اوکړه (يعنى) دَ مسلمانانو اونصارىٰ نه چاچې ستا تصديق اوکړو په هغه خلقو باندې څوک چې ستانه منکرشو ترقيامته پورې غلبه ورکونکې يم او هغه (منکرين يهود دى هغه په (يهودو باندې) به په دليل او دَ تورې په ذريعه غالب وى. بيا به ستاسو ټولو واپسى زماطرف ته کيږى نوزه به ستاسو په مينځ کښې په دينى معامله کښې فيصله کوم، کوم خلقو چې کفرکړې نوزه به هغوى ته سخت عذاب ورکوم په دنياکښې دَ قيد اوقتل جزيه په ذريعه او په آخرت کښې دَ اور په ذريعه او د هغوى به څوک دَعذاب نه بچ کونکى نه وى او کوم خلقو چې ايمان راوړې او نيک عمل ئې اوکړو نوزه به هغوى ته پوره پوره بدله ورکوم دَ ياء او نون سره. او الله تعالى ظالمان دوستان نه ساتى يعنى هغوى ته به سزا ورکوى. روايت کړې شوې دې چې الله تعالى يوه وريځ راوړليکله نوهغې حضرت عيسىٰ عليه السلام اوچت کړو نوهغه دَهغه مور اونيولو و په ژړا شوه نوحضرت عيسىٰ عليه السلام هغې ته اوفرمائيل قيامت به مونږ راجمع کړى اودا واقعه په ليلة القدرکښې په بيت المقدس کښې پيښه شوې وه هغه وخت دَحضرت عيسىٰ عليه السلام عمر درې ديرش کاله وو اودَهغوى مور بى بى دَهغه نه پس شپږ کاله ژوندئې وه. او په يو حديث شريف کښې چې شيخينو حضراتو روايت کړې دې چې هغه به قيامت سره نيزدې نازليږى او زمونږ دَمحمد ﷺ دَ شريعت مطابق به فيصله کوى او دجال او خنزير به قتل کوى. او صليب به ماتوى او جزيه به مقررکوى. اودَ مسلم شريف په حديث کښې دى چې عيسىٰ عليه السلام (دنياکښې) به اووه کاله قيام کوى. اودَ ابوداؤد طيالسى رحمه الله په حديث کښې دى چې څلويښت کاله به قيام کوى. اوهغه به وفات کولې شى او په هغه باندې به مونځ کولې شى اودا هم احتمال دې چې قبل الرفع او بعدالرفع په دنياکښې دَ قيام مجموعى موده مراد ده. اې محمد ﷺ دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام دغه مذکوره واقعه کومه چې مونږ تاته اوره وو دَ نشانونه ده (من الآيات) دَ (نتلوه) د هَا نه حال دې او عامل په دې کښې دَ ذلك معنى (يعنى) أُشِيْرُ دې. اومحکم ذکر يعنى قرآن کريم دې بيشکه دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام شان عجيبه، بغيردَ پلار نه دَهغوى تخليق کښې دَ الله

تعالى په نيز د حضرت آدم عليه السلام دَعجيبه شان په شان دي اودا دَ عجيب د اعجب سره د تشبيب
دَ تبيل نه دي خکه چې دَمخالف دَپاره مسكت، او اوقع في النفس وي، آدم عليه السلام يعني دَ دغه
جوسه دَ خاورې نه پيداکړه بيا هغه ته اوويلې شو بشر شه نو هغه (بشر) شو، دغه شان حضرت
عيسى عليه السلام ته اوفرمائيل چې بغير دَ پلار نه پيدا شه نو هغه شو. دا حق امر ستا دَ رب دَ طرف
نه دي (دا) دَمبتدا ء محذوف خبر دي، اى امر عيسى عليه السلام. لهذا په دې كښې ته دَ شک كونكو نه مه
كيږه. بيا چې څوک په نصارى كښې تاسره په دې باب حجت اوكړي پس دَهغې نه چې تاسو دَ
عيسى عليه السلام په معامله كښې علم رسيدلې وي نو هغوى ته اووايه (ښه ده) راشئ چې مونږ خپل
ځامن راؤغواړو او ستاسو ځامن هم او خپلې ښځې هم او ستاسو ښځې هم او پخپله مونږ او تاسو هم
(راځئ) چې دا ټول راجمع كړو بيا په عاجزئ سره دعا اوكړو او په دروغژنو باندې دَ الله تعالى
لعنت اوكړو او نبى عليه السلام سره چې كله هغوى په دې معامله كښې جګړه اوكړه نو رسول الله
عليه السلام دَ نجران وفد ته دَ مباهله دعوت وركړو، نو هغه خلقو اوويل چې مونږ به په خپله
معامله كښې غور اوكړو. بيا به مونږ تاسو له راشو، نو دَهغوى صاحب الرائې هغوى ته
اوويل تاسو دَهغه نبوت پيژندلې دې او واقعه داده چې يو قوم خپل نبى سره مباهله نه
ده كړې مګر دا چې هغوى هلاک شوى دي. لهذا تاسو دې سړي سره صلح اوكړئ او
واپس لاړ شئ (دَ مشورې نه پس) هغه خلق حضور پاک له راغلل او حال دا دې چې هغوى
دَ (مباهله) دَپاره راوتلې وو. او رسول الله عليه السلام سره حضرت حسن، حضرت حسين،
حضرت فاطمه او حضرت على رضي الله عنهم وو. حضور پاک هغوى ته اوفرمائيل چې كله زه
دعا كوم تاسو آمين وايئ نو هغوى دَ مباهله نه انكار كولو سره صلح اوكړه. روايت كړې
دې چې ددې ابونعيم او روايت كړې دې ابوداؤد چې هغوى په دوه سوه حُلّو (جوړو)
باندې صلح اوكړه. نيم دَ صفر په مياشت كښې او باقى دَ رجب په مياشت كښې. او ديرش
زغرې، ديرش اسونه او ديرش اوښان او دَ هر قسم وسلونه ديرش ديرش باندې (صلح
اوكړه) او امام احمد رحمه الله په خپل مسند كښې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه روايت كړې دې
چې حضور پاک اوفرمائيل كه چرې دوى دَ مباهله كولو دَپاره راوتلې نو په داسې حال
كښې به واپس كيدل چې نه به ورسره مال (باقى) پاتې وو او نه به ئې اهل (ژوندي) پاتې
شوى وو. او طبرانى مرفوعًا روايت كړې دې كه چرې وتلې وې نو سوزيدلې به وې
بيشكه دا ذكر شوې رښتونې خبر دې په كوم كښې چې شك نشته او دَ الله تعالى نه علاوه بل
څوک معبود نشته. مِن زائده دې. بيشكه هم الله تعالى زبردست دې په خپل ملك كښې حكمت
والا دې په خپل صنعت كښې. نو كه دوى (اوس هم) كبر اوكړي (يعنى) دَ ايمان نه اعراض
اوكړي نو بيشكه الله تعالى ښه پيژنې مفسدان او هغوى ته به سزا وركوى په دې كښې ضمير
دَ اسم ظاهر په ځائې راوړې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** مُتَوَفِّيْكَ، مُتَوَفِّي، تَوَفِّي (تفعُّل) نه اسم فاعل واحد مذکر مضاف لکَ مضاف الیه، زه تا وفات کونکي یم زه تا په خپل گرفت کښې اخستلوسره اوچتوم. زه تا اوده کوم. دَتَوَفِّي معنی پوره پوره اخستل دی، علماء سلف دَدې په تشریح کښې لفظ قبض استعمال کړې دې. یعنی په گرفت کښې اخستل، لیکن په قبضه اوگرفت کښې دَ اخستلو نه څه مراددې؟ قبض روح مع البدن یا صرف قبض روح، یعنی وژل یا خوب مسلط کول مراد دی. یعنی زه به تا اوده کړم بیا دَ خوب په حالت کښې به دې دَ آسمان طرف ته اوچتوم. دَدې معنی مستدل دَالله تعالی قول ﴿ وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ ﴾ دې الله تعالی تاسو په شپه کښې اوده کوی. دَدې نه معلومه شوه چې دَ توفّی معنی دَ اوده کولوراځی. واقعه هم دغه شان شوې ده چې الله تعالی حضرت عیسیٰ عليه السلام اوده کولوسره اوچت کړو (معالم) ابوالبقاء په کلیات کښې وئیلی دی مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ، دا دواړه سره دَدې چې دَ اسم فاعل صیغې دی مگر په معنی کښې دَ استقبال دی او په کلام کښې تقدیم اوتاخیردې. په اصل کښې رَافِعُكَ وَمُتَوَفِّيْكَ دې، ځکه چې حضرت عیسیٰ عليه السلام اول آسمان ته اوچت کړې شو بیا به دَهغه مرگ کیږی په تفسیر عباسی کښې هم دَدې تائید دې.

حضرت امام رازی رحمه الله نفیس او دقیق تفسیر کړې دې. إِنِّي متوفيك معنی إِنِّي متمم عمرك فحينئذ اتوفاك فَلَا أَتْرُكُهُمْ حَتّٰى يقتلوك، بل انا رافعك الى سمائي ومقربك بملائكتي واصونك عن ان يتمكنوا من قتلك (کبیر) یعنی إِنِّي متوفيك مطلب دادې چې زه به ستا عمر پوره کوم اودَ عمر پوره کولونه پس به تا وفات کوم، دَ کافرانو په لاس به تا قتل کولوته نه پرېږدم بلکه دَخپل آسمان طرف ته به تا اوچتوم او فرښتوسره ستا قیام گاه ده هلته په تا رسوم اودَ کافرانودَ قتل کولونه به تا محفوظ کوم.

**قوله**. مُبعِدُك. دَ مُطَهِّرُكَ تفسیر مُبعِدُك سره کولوکښې اشاره اوکړه چې ملزوم وئیلوسره لازم مراد دې ځکه چې دَ پاکوالی دَپاره دَ نجاست لرې کول لازمی دی. لهذا دا اعتراض هم لرې شو چې دَ تطهیردَپاره تلویث لازم دې اوهغه دلته مقصودنه دې، دَ جواب حاصل دادې چې مُطهرك بمعنی مُبعِدُك دې

**قوله**: ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ ذالك مبتداء، نتلوه عليك يا محمد ﷺ دَدې خبر دې مِنَ الآيات، دَ نتلوه ضمیر نه حال دې اودَدې عامل د ذالك معنی یعنی أُشِيْرُ ده.

**قوله**: فكان سره اشاره اوکړه چې يكون، دكان په معنی کښې دې.

**قوله**. فَوَادِعُوْا ای صالحوا یعنی مباهله مه کونی بلکه هغوی سره صلح اوکړئی.

**قوله**: لَمَّاتوه نو هغه خلق دَ حضور پاك په خدمت كښې حاضر شو او صلح ئې اوكړه

**قوله**: وضع الظاهر موضع المضمر، يعنى الله عليم بهم په ځائى عليم بالمفسدين اوفرمائيل دي د پاره چې د صفت فساد صراحت اوشي.

**قوله**: نَبْتَهِل (ابتهال) مونږ به ژړا او زاروسره دعاكوو. زمخشري رحمه الله ليكلى دى چې د بَهْلَة اصل دعاء لعنت دې بيا هغه مطلقًا دَدعا په معنى كښې استعماليدلو (لغات القرآن)

**قوله**. القصص، اسم په معنى مصدرى استعماليږى.

**[اياتونه: ٦٤ - ٧١]**

{قل يأهل الكِتَاب} اليَهُود وَالنَّصَارَي {تَعَالَوا إِلَى كَلِمَة سَوَاء} مَصْدَر بِمَعْنَي مُسْتَوٍ أَمْرهَا {بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ} هِيَ {أَ} ن {لا نَعْبُد إِلَّا اللَّه وَلَا نُشْرِك بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذ بَعْضنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُون اللَّه} كَمَا اتَّخَذْتُمْ الْأَحْبَار وَالرُّهْبَان {فَإِنْ تَوَلَّوْا} أَعْرَضُوا عَنْ التَّوْحِيد {فَقُولُوا} أَنْتُمْ لَهُمْ {اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ} مُوَحِّدُونَ وَنَزَلَ لَمَّا قَالَ الْيَهُود إبْرَاهِيم يَهُودِيّ وَنَحْنُ عَلَي دِينه وقالت النصاري كذلك {يأهل الْكِتَاب لِمَ تُحَاجُّونَ} تُخَاصِمُونَ {فِي إِبْرَاهِيم} بِزَعْمِكُمْ أَنَّهُ عَلَي دِينكُمْ {وَمَا أُنْزِلَتْ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل إِلَّا مِن بعده} بزمن طويل وبعد نزولها حَدَثَتْ الْيَهُودِيَّة وَالنَّصْرَانِيَّة {أَفَلَا تَعْقِلُونَ} بُطْلَان قَوْلكُمْ {هَا} لِلتَّنْبِيهِ {أَنْتُمْ} مُبْتَدَأ يَا {هَؤُلَاءِ} وَالْخَبَر {حَاجَجْتُمْ فِيمَا لَكُمْ بِهِ عِلْم} مِنْ أَمْر مُوسَي وَعِيسَي وَزَعْمكُمْ أَنَّكُمْ عَلَي دِينهمَا {فَلِمَ تُحَاجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهِ عِلْم} مِنْ شَأْن إبْرَاهِيم {وَاَللَّه يَعْلَم} شأنه {وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ} قَالَ تَعَالَي تَبْرِئَة لِإِبْرَاهِيم {مَا كَانَ إِبْرَاهِيم يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَكِنْ كَانَ حَنِيفًا} مَائِلًا عَنْ الْأَدْيَان كُلّهَا إلَي الدِّين الْقَيِّم {مُسْلِمًا} مُوَحِّدًا {وما كان من المشركين} {إِنَّ أَوْلَى النَّاس} أَحَقّهمْ {بِإِبْرَاهِيم لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ} فِي زَمَانه {وَهَذَا النَّبِيّ} مُحَمَّد لِمُوَافَقَتِهِ لَهُ فِي أَكْثَر شَرْعه {وَاَلَّذِينَ آمَنُوا} مِنْ أُمَّته فَهُمْ الَّذِينَ يَنْبَغِي أَنْ يَقُولُوا نَحْنُ عَلَي دِينه لَا أَنْتُمْ {وَاَللَّه وَلِيّ الْمُؤْمِنِينَ} نَاصِرهمْ وحافظهم وَنَزَلَ لَمَّا دَعَا الْيَهُود مُعَاذًا وَحُذَيْفَة وَعَمَّارًا إلَي دِينهمْ {وَدَّتْ طَائِفَة مِنْ أَهْل الْكِتَاب لَوْ يُضِلُّونَكُمْ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنْفُسهمْ} لِأَنَّ إثْم إضْلَالهمْ عَلَيْهِمْ وَالْمُؤْمِنُونَ لَا يُطِيعُونَهُمْ فِيهِ {وما يشعرون} بذلك {يأهل الْكِتَاب لِمَ تَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّه} الْقُرْآن الْمُشْتَمِل عَلَي نَعْت مُحَمَّد صَلَّي اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وأنتم تشهدون} تعلمون انه الحق {يأهل الْكِتَاب لِمَ تُلْبِسُونَ} تَخْلِطُونَ {الْحَقّ بِالْبَاطِلِ} بِالتَّحْرِيفِ وَالتَّزْوِير {وَتَكْتُمُونَ الْحَقّ} أَيْ نَعْت النَّبِيّ {وَأَنْتُمْ تعلمون} انه حق

**ترجمه**: تاسو ورته اووايئې چې اې اهل كتاب يهودو او نصرانيانو دَ يوداسې خبرې طرف ته راشئ كومه چې زمونږ اوستاسو په مينځ كښې مشتركه ده (سَوَاء) مصدر په معنى مُسْتَوٍ أمرها (اسم فاعل) اوهغه داده چې مونږ بغير دَ الله تعالى دَ چابندگى اونه كړو. اونه څوك دَهغه شريك

اوگرځوو اونه زمونږ نه څوک بل دَ الله نه سوا رب قائم کړي لکه چې تاسو احبار او رهبان ساتلي دي بیاهم که هغوی مخ اړه وی یعنی دَتوحیدنه اعراض اوکړي نوتاسو هغوی ته اووایئ ګواه اوسیږئ مونږ خو حکم منونکی مؤحد یو. (راتلونکې آیت) هغه وخت نازل شو کوم وخت چې یهودو اووئیل ابراهیم علیه السلام یهودي وو او هم مونږ دَهغه په دین باندې یو او هم داسې نصاریٰ اوئیل اې اهل کتابو تاسو دَ حضرت ابراهیم علیه السلام باره کښې ولې جګړې کوئی دَ خپل دغه ګمان دَ وجې نه چې هغه ستاسو په دین باندې وو. تورات او انجیل خودَ هغه نه ډیره موده پس نازل شوی دی اودَ هغې دَ نازلیدلونه پس یهودیت اونصرانیت پیداشوې دې نوتاسو دَعقل نه ولې کارنه اخلئ؟ یعنی تاسودَ خپل قول باطل کیدل ولې نه ګنړئ؟ اوتاسو خو هم هغه خلق یئې هَاء دَ تنبیه دَپاره ده أَنتُمْ مبتداء دې (یاهؤلاء جمله ندائیه معترضه) حَاجَجْتُمْ خبر، چې په دې امر کښې جګړه کوئی دکوم چې تاسو ته څه علم خو وو (او) هغه دَ موسیٰ علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام معامله ده اوتاسو دعویٰ کړې چې تاسو دَهغوی په دین یئې. (اوس) تاسو په یوداسې خبره کښې ولې جګړه کوئی دَ کوم چې تاسوته هیڅ علم نشته؟ (او) هغه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام معامله ده الله تعالی دَ هغه په حال باندې پوهیږی تاسو نه پوهیږئ. الله تعالی دَ حضرت ابراهیم علیه السلام براءت کولوسره اوفرمائیل ابراهیم علیه السلام نه یهودی وو اونه نصرانی لیکن هغه خوپه نیغه لار باندې یو مؤحد مسلمان وو. دَ ټولو باطل ادیانو نه اعراض کولوسره دَ حق دین طرف ته مائل کیدونکی اودَ مشرکانونه هم نه وو. بیشکه په خلقو کښې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام نه دَ ټولو نه نیزدې یعنی په هغوی کښې زیات حقدار هغه خلق دی چا چې دَهغوی په زمانه کښې دَهغوی تابعداری کړې وه او دا نبی محمد ﷺ دې دَهغوی اودَدوی په اکثر شرعی احکامو کښې دَ موافقت کیدودَ وجې نه. اوهغه خلق دی چې دَحضورپاك په امت کښې ایمان راوړلې داهغه خلق دی چې وائی مونږ دَ ابراهیم علیه السلام په دین باندې یو اوالله تعالی دَ ایمان راوړونکو حامی دې. (یعنی) مددګار اومحافظ دې. اوکله چې یهودو معاذ حذیفه او عمار رضی الله عنهم ته دَخپل دین طرف ته دعوت ورکړو نو (دا آیت) ودَتْ طائفة نازل شو. دَ اهل کتاب یوجماعت خودا غواړي چې تاسو به ګمراه کوی حالانکه هغوی بغیردَ خپل ځان نه څوك نه شي ګمراه کولې ځکه دَهغوی دَ ګمراه کولو ګناه هم په هغوی باندې ده. اومؤمنان به دَ هغوی په دې معامله کښې اطاعت نه کوی. مګر هغوی ته دَ دې شعورنشته. اې اهل کتاب تاسو دَالله تعالی دَ آیاتونو قرآن نه کوم چې دَ حضرت محمد ﷺ په صفاتو مشتمل دې ولې انکارکوئی؟ حالانکه تاسو ګواه ئې یعنی تاسو پیژنئی چې هغه حق دې. اې اهل کتاب تاسو دَ حق تلبیس د تحریف اوتکذیب په ذریعه باطل سره ولې کوئی؟ او حق پټه وئی حالانکه تاسو پیژنئی چې هم دغه حق دې.

........

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ، تَعَالَوْا امر جمع مذکر حاضر، تاسو راشئ، دا دَ تفاعل په وزن سره مبنی دي او واؤ فاعل دي، تَعَالَوْا په اصل کښې تَعَالَيُوْا وو دَ یاء متحرك او ماقبل مفتوح کیدو دَ وجې نه یاء په الف سره بدله کړه بیا دَ التقاء ساکنین دَ وجې نه الف حذف شو. (جمل)

**سوال**: دلته دَ تَعَالَوْا مفعول الی کلمةٍ مذکور دي او ماقبل کښې دَ تَعَالَوْا مفعول ذکر نه دي دې کښې څه حکمت دې؟

**جواب**: اول تَعَالَوْا سره صرف متوجه کول مقصود دی او دویم سره متحدې کلمه طرف ته رابلل مقصود دی

**سوال**: سواءٌ دَ مستو په معنی کښې دَ اخستلو څه فائده ده؟

**جواب**: سَوَاءٌ چونکه مصدر دې دَدې په کلمة باندې حمل صحیح نه دې ځکه چې سواء په معنی د مُسْتَوٍ اسم فاعل واخستې شو دې دَپاره چې حمل صحیح شي.

**سوال**: دَ امرها محذوف منلو څه وجه ده؟

**جواب**: چونکه مُسْتَوٍ مذکر دې دَ کوم حمل چې کلمة باندې صحیح نه دې ځکه چې کلمة مؤنث دې نو دَ کلمه نه وړاندې ئې امر محذوف او منلو چې حمل صحیح شي. (ترویح الارواح)

**قوله**: هِيَ أَنْ لَا الخ دَ کلمة تفسیر دې.

**قوله**: طویل، دَحضرت موسی ﷺ او حضرت ابراهیم ﷺ په مینځ کښې دَ زرو کالو موده او دَحضرت عیسیٰ ﷺ او حضرت ابراهیم ﷺ په مینځ کښې دوه زره او اته سوه کاله موده ده، نو بیا حضرت ابراهیم ﷺ یهودی او نصرانی څنګه کیدې شي، دا دواړه مذاهب خو دَ حضرت ابراهیم ﷺ نه ډیر روستو پیدا شوی دی.

**قوله**: هٰؤُلَاءِ حَاجَجْتُمْ، هَا حرف تنبیه ده أَنْتُمْ مبتداء یا حرف نداء محذوف هٰؤُلَاءِ منادی، نداء منادی ملا شو جمله معترضه، حَاجَجْتُمْ دَ مبتداء خبر. دا هم احتمال دې چې هٰؤُلَاءِ، دَ أَنْتُمْ خبر وی او حَاجَجْتُمْ دویمه جمله دَ ړومبې جملې بیان دَپاره وی، ای انتم هؤلاء الحمقی حاججتم فیما لیس لکم به علم.

**قوله**: مُوَحِّدًا.

**سوال**: دَ مُسْلِمًا تفسیر مُوَحِّدًا سره د کولو څه فائده ده؟

**جواب:** مسلمًا نه ظاهری اصطلاحی معنی مرادنه ده ګنی کوم اعتراض چې په يهوديت اونصرانيت باندې شوې وو هم هغه اعتراض به په اسلام باندې هم اوشی ځکه چې اسلام اصطلاحی خو د رسول الله ﷺ د زمانې نه په وجود کښې راغلې دې د حضور پاك بعثت خو د حضرت موسى عليه السلام او حضرت عيسى عليه السلام نه زرګونه کالونه پس شوې دې په دې وجه د مسلمًا تفسير مُوَحِّدًا سره اوکړو دې د پاره چې مذکوره اعتراض نه وی.

**قوله** تعلمون، د تشهدون تفسير تعلمون سره کولو کښې اشاره اوکړه چې شهادت الزام على الغير نه وائی او دلته هيڅ الزام على الغير نشته دې.

**[اياتونه: ۷۲-۸۰]**

{وقالت طائفة من أهل الكتاب} اليهود بعضهم {آمِنُوا بِالَّذِي أُنزِلَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا} أيْ القرآن {وجه النهار} أوله {واكفروا} دِينهمْ إذْ يَقُولُونَ مَا رَجَعَ هَؤُلَاءِ عَنْهُ بَعْد دُخُولهمْ فِيهِ وَهُمْ أُولُو عِلْم إلَّا لعلمهم بطلانه وقالوا أيضا {وَلَا تُؤْمِنُوا} تُصَدِّقُوا {إِلَّا لِمَن تَبِعَ} وَافَقَ {دِينَكُمْ} قَالَ تَعَالَى {قُلْ} لَهُمْ يَا مُحَمَّد {إِنَّ الْهُدَىٰ هُدَى اللَّهِ} الَّذِي هُوَ الْإِسْلَام وَمَا عَدَاهُ ضَلَال وَالْجُمْلَة اعْتِرَاض {أَن} أيْ بِأَنْ {يُؤْتَىٰ أَحَدٌ مِّثْلَ مَا أُوتِيتُمْ} مِنْ الْكِتَاب وَالْحِكْمَة وَالْفَضَائِل وَأَنْ مَفْعُول تُؤْمِنُوا وَالْمُسْتَثْنَى مِنْهُ أَحَد قُدِّمَ عَلَيْهِ الْمُسْتَثْنَى الْمَعْنَى لَا تُقِرُّوا بِأَنَّ أَحَدًا يُؤْتَى ذَلِكَ إلَّا لِمَنْ اتَّبَعَ دِينكُمْ {أَوْ} بِأَنْ {يُحَاجُّوكُمْ} أَيْ الْمُؤْمِنُونَ يَغْلِبُوكُمْ {عِندَ رَبِّكُمْ} يَوْم الْقِيَامَة لِأَنَّكُمْ أَصَحّ دِينًا وَفِي قِرَاءَة أَأَنْ بِهَمْزَةِ التَّوْبِيخ أَيْ إيتَاء أَحَد مِثْله تُقِرُّونَ بِهِ قال تعالى {قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ} فَمِنْ أَيْنَ لَكُمْ أَنَّهُ لَا يُؤْتَى أَحَد مِثْل مَا أُوتِيتُمْ {وَاللَّهُ وَاسِعٌ} كَثِير الْفَضْل {عليم} بمن هو اهله {يختص برحمته من يشاء والله ذو الفضل العظيم} {وَمِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مَنْ إِن تَأْمَنْهُ بِقِنطَارٍ} أَيْ بِمَالٍ كَثِير {يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ} لِأَمَانَتِهِ كَعَبْدِ اللَّه بْن سَلَام أَوْدَعَهُ رَجُل أَلْفًا وَمِائَتَيْ أُوقِيَّة ذَهَبًا فَأَدَّاهَا إلَيْهِ {وَمِنْهُم مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ} لِخِيَانَتِهِ {إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا} لَا تُفَارِقهُ فَمَتَى فَارَقْته أَنْكَرَهُ كَكَعْبِ بْن الْأَشْرَف اسْتَوْدَعَهُ قُرَشِيّ دِينَارًا فَجَحَدَهُ {ذَٰلِكَ} أَيْ تَرْك الْأَدَاء {بِأَنَّهُمْ قَالُوا} بِسَبَبِ قَوْلهمْ {لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ} أَيْ الْعَرَب {سَبِيلٌ} أَيْ إثْم لِاسْتِحْلَالِهِمْ ظُلْم مَنْ خَالَفَ دِينهم ونسبوه إليه تعالى قال تَعَالَى {وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ} فِي نِسْبَة ذَلِكَ إلَيْهِ {وَهُمْ يَعْلَمُونَ} أَنَّهُمْ كَاذِبُونَ {بلى} عليهم فيه سَبِيل {مَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ} الَّذِي عَاهَدَ عَلَيْهِ أَوْ بِعَهْدِ اللَّه إلَيْهِ مِنْ أَدَاء الْأَمَانَة وَغَيْره {وَاتَّقَىٰ} اللَّه بِتَرْكِ الْمَعَاصِي وَعَمَلِ الطَّاعَات {فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ} فِيهِ وَضْع الظَّاهِر مَوْضِع الْمُضْمَر أَيْ يُحِبّهُمْ بِمَعْنَى يُثِيبهُمْ وَنَزَلَ فِي الْيَهُود لَمَّا بَدَّلُوا نَعْت النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَهْد اللَّه إلَيْهِمْ فِي التَّوْرَاة وَفِيمَنْ حَلَفَ كَاذِبًا فِي دَعْوَى أَوْ فِي بَيْع سِلْعَة {إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ} يَسْتَبْدِلُونَ {بِعَهْدِ اللَّهِ} إلَيْهِمْ فِي الْإِيمَان بِالنَّبِيِّ وَأَدَاء الْأَمَانَة {وَأَيْمَانِهِمْ} حَلِفهمْ بِهِ تَعَالَى كَاذِبِينَ {ثَمَنًا قَلِيلًا} مِنْ الدُّنْيَا {أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ} نَصِيب {لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ} غَضَبًا {وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ}

يرحمهم {يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ} يطهرهم {وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مؤلم {وَإِنَّ مِنْهُمْ} أي أهل الكتاب {لَفَرِيقًا} طائفة ككعب بن الأشرف {يَلْوُونَ أَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتَابِ} أي يعطفونها بقراءته عن المنزل إلى ما حرفوه من نعت النبي صلي الله عليه وسلم ونحوه {لِتَحْسَبُوهُ} أي المحرف {مِنَ الْكِتَابِ} الذي أنزله الله {وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ} أنهم كاذبون ونزل لما قال نصارى نجران إن عيسى أمرهم أن يتخذوه ربا ولما طلب بعض المسلمين السجود له صلي الله عليه وسلم {مَا كَانَ} ينبغي {لِبَشَرٍ أَنْ يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ} أي الفهم للشريعة {وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِي مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَكِنْ} يقول {كُونُوا رَبَّانِيِّينَ} علماء عاملين منسوبين إلي الرب بزيادة ألف ونون تفخيما {بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُونَ} بالتخفيف والتشديد {الْكِتَابَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُونَ} أي بسبب ذلك فإن فائدته ان تعملوا {وَلَا يَأْمُرَكُمْ} بالرفع استئنافا أي الله والنصب مطلقا عطفا علي يقول أي البشر {أَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلَائِكَةَ وَالنَّبِيِّينَ أَرْبَابًا} كما اتخذت الصابئة الملائكة واليهود عزيرا والنصاري عيسى {أَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ} لا ينبغي له هذا

**ترجمه**۔ دَاهل کتاب يوه ډله خپلو بعض خلقوته مشوره ورکوی چې کوم قرآن (په واسطه دَنبی) په مؤمنانو باندې نازل کړې شوې دې په دې باندې سحر ايمان راوړئی او ماښام انکاراوکړئی، څه عجيبه ده چې هغه (مؤمنان) په دې (ترکيب سره دَخپل دين نه) واوړی. څکه چې هغوی به وائی اهل کتاب دَاهل علم کيدو باوجودپه دين اسلام کښې داخليدونه پس واپس کيدل (دَدغه دين) بطلان نه خبريدو دَ وجې نه کيدې شی اوهغوی داهم اووئيل اوتاسو صرف دهغه چا تصديق کوئی څوک چې ستاسودَدين موافقت کوی. لِمَنْ کښې لام زائدې الله تعالی اوفرمائيل اې محمد ﷺ ته ورته اووايه چې هدايت خوهم دَالله تعالی هدايت دې (او) هغه اسلام دې دې نه علاوه څه چې هم دی ګمراهی ده. او (فعل. تؤمنوا او مفعول أن يُؤتى په مينځ) کښې (اِنَّ الهُدٰی هُدَی الله) جمله معترضه ده. اوداَدهغه ورکړه ده چې چاته هم هغه څه ورکړې شی چې کله ئې تاسو ته هم درکړی وو اوهغه کتاب حکمت او فضائل دی. او اَنْ يُؤتى الخ دَ تؤمنوا مفعول دې او مستثنى منه احدَ دې په کوم چې مستثنى مقدم کړې شوې ده مطلب دا چې تاسو دَدې خبرې اقرار مه کوه چې چاته دا ورکولې شی مګر هغه ته چې ستاسو دَ دين اتباع اوکړی. يابه بيا مؤمنان ستاسو دَ رب په وړاندې دَقيامت په ورځ غالب راځی څکه چې تاسو دَ ټولونه په صحيح دين باندې يئې او په يو قراءت کښې آاَنْ همزه توبيخی سره دې يعنی آياتاسو به ددې په شان چاسره دَ ملاويدلو اقرار کوئی؟ (يعنی اقرار مه کوئی) ته ورته اووايه چې فضل خودَالله تعالی په لاس کښې دې چاته چې غواړی ورکوی نوبياتاسو داَچرته نه وائې چې ستاسو په شان (فضل)

چاته نه شي ورکيدې. الله تعالى دَ ډيروسعت والا او لوئي علم والا دې. اوهغه دا خبره پيژني چې څوك دَدې اهل دې؟ هغه چاته چې غواړي خپل رحمت سره خاص کوي او الله تعالى دَلوئي فضل والا دې او په اهل کتاب کښې بعض داسې هم دی که ته هغوی له يو ډيرې يعنى ډيرمال امانت کيږدې نوهغه به دا واپس کړی دَ خپل امانتدارئى دَ وجې نه لکه چې عبدالله بن سلام. يوسړی هغه سره ۱۲۰۰ اوقيه سره زر (امانت) کيخودو نوهغه سره زر هغه مالك ته ورکړه او په هغوی کښې بعض داسې هم دی که چرته ته هغوی سره يو دينار هم امانت کيږدې نو هغه به دَخپل خيانت دَ وجې نه تاته واپس نه کړی مگر دا چې تاسو دَهغوی په سرونو باندې هروخت سواره اوسيږئی اوهغوی نه پريږدئی اوکه چرته تاسوهغوی شاته پريږدئی نوهغوی به دَدې نه انکاراوکړی. لکه کعب بن اشرف چې هغه سره يو قريشی يو دينار امانت کيخودو نوهغه دَدې نه انکاراوکړو اودا نه اداکول دَهغوی دَدې عقيدې دَ وجې نه دی چې په مونږباندې دَناخوانده عرب باره کښې هيڅ نيول نشته. دَ خپل دين په مخالفينوباندې ظلم روا ساتلو (عقيدې) دَ وجې نه، اودَدې جواز نسبت دَالله تعالى طرف ته کوی. اودَدې خبرې دَالله تعالى طرف ته نسبت کولوسره په الله تعالى باندې بهتان تړی حالانکه هغوی پخپله پوهيږی چې دروغژن دی اوولې نه؟ په هغوی باندې (اُميين) باره کښې مواخذه ده. چاچې خپل عهدپوره کړو کوم چې الله تعالى دَهغوی نه اخستې دی يادَالله تعالى عهد چې دَ امانت اداکول وغيره دی (پوره کړو) اودَ گناه پريخودوسره دَ الله تعالى نه اوويريدو او اطاعت کونکې جوړشو نوبيشکه الله تعالى متقيان دوستان ساتی. په دې کښې دَاسم ضميرپه ځائی اسم ظاهر راوړلې شوې دې. يُحِبُّهُمْ معنى کښې يُثِيْبُهُمْ دې او (راتلونکې آيت) دَ يهودوباره کښې نازل شوې دی کله چې هغوی په تورات کښې ذکر شوې دَ رسول الله ﷺ صفات ياهغوی ﷺ سره دَالله تعالى کړې عهدبدل کړو يادَ هغه سړی باره کښې چاچې په دعوی کښې دَدروغوقسم اوخوړلو يادَ سامان خرڅولوپه معامله کښې (دَ دروغو قسم اوخوړلو) بيشکه هغه خلق چې په نبی ﷺ باندې د ايمان راوړلې اودَ امانت باره کښې دَالله تعالى عهداوپه الله تعالى دَدروغوقسمونه دَ دنيا په لږه شان معاوضه کښې بدله وی نوداهم هغه خلق دی چې دَدوی په آخرت کښې هيڅ حصه نشته دې. اوالله تعالى به دَقيامت په ورځ دَ خفگان دَ وجې نه هغوی سره کلام نه کوی اونه به دَ رحمت په نظر هغوی ته گوری اونه به دَ هغوی (دَگناهونونه) پاکوی. اودَهغوی دَپاره خو دردناک عذاب دې اوځه خلق دَهغوی نه داسې هم دی لکه کعب بن اشرف چې کتاب (تورات) لوستلوسره خپلې ژبې د منزل نه تاووی يعنی دَ نبی صفات وغيره تحريف طرف ته تاووی دې دَپاره چې تاسو دَالله تعالى دَ طرف نه نازل کړې شوې کتاب دغه محرف جزء هم د (منزل) کتاب جز اوگنړئی حالانکه هغه دکتاب جزنه دې او وائی چې دادَ الله تعالى دَ طرف نه دی اوهغوی په الله تعالى باندې بهتان لگوی اوهغوی پيژنی چې هغوی

دروغژن دي. (راتلونکې آیت) هغه وخت نازل شو کوم وخت چې دَ نجران نصارئ او ونیل چې حضرت عیسیٰ ﷺ هغوی ته حکم ورکړې دې چې هغه خپل رب جوړکړئی (یاهغه وخت نازل شوې) کله چې بعض مسلمانانو دحضورپاك نه هغوی ته دَ سجدې کولو اجازت اوغوښتو، یوبشرته چاته چې الله تعالی کتاب اوحکمت یعنی دَ شریعت فهم اونبوت ورکړې وی هغه ته دا نه شی کیدلې چې خلقو ته اووائی چې تاسو دَالله تعالی په ځائی زما بندیګان جوړشئ (هغه خو به هم دغه وائی) الله والا جوړشئ یعنی عالم باعمل جوړشئ (ربانیین) دَالف نون دَ زیاتی سره دَ رب طرف ته منسوب دې. ځکه چې تاسو (آسمانی) کتاب نورو ته ښایئ او پخپله ئی هم لولئ (تعلمون) دَ لام تخفیف او تشدید سره نودَدې فائده داکیدل ګاردی چې تاسو عمل اوکړئی. اوهغه یعنی الله تعالی تاسو ته دَدې خبرې حکم نه درکوی (لایامرکم) په توګه دَ استیناف مرفوع دې (ای الله لایامرکم) او یقول باندې دَعطف دَ وجې نه منصوب دې (ای ان یقول البشر) اوهغه به تاسو ته دَدې خبرې حکم نه درکوی چې فرښتې اونبیان رب جوړکړئی لکه چې فرقه صابیه ملائکه او یهود عزیر ﷺ ته او نصارئ حضرت عیسیٰ ﷺ (رب جوکړو) آیا هغه به تاسو ته دکفر حکم درکوی پس دَهغې نه چې تاسو اسلام راوړلې وی دا به هیڅ کله دَهغه نه اونه شی

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** وَقَالَتْ طَّابِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ، داجمله مستانفه ده اومقصددَ یهودو یودویم قسم تلبیس بیانول دی.

**قوله** اَوَّلَهُ. اول نهارته وَجْهُ ځکه ونیلې شوې دې لکه څنګه چې مخ ښائسته اوښکلې وی اول نهارهم ښکلې او مزیدار وی. اودَوَجْهُ تفسیرئی په دې وجه اول سره کړې دې څنګه چې په ملاقات کښې مخ دَ ټولونه اول مخې ته راځی دغه شان اول نهار هم دَ شپې دَ ختمیدونه پس دَ ټولونه رومبې ښکاره کیږی.

**قوله**: والجملة اعتراض، د فعل لاتؤمنوا اودَدې د مفعول، اَنْ يُّؤْتٰى الخ په مینځ کښې اِنَّ الْهُدٰى هُدَى الله جمله معترضه ده

**قوله**. اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ مستثنٰی مقدم ده اَنْ يُّؤْتٰى اَحَدٌ مستثنٰی منه مؤخر ده.

**قوله**. بِاَنْ يُّحَاجُّوْكُمْ د اَنْ مقدر منلومقصد دې طرف ته اشاره کول دی چې دَدې عطف بِاَنْ يُّؤْتٰى باندې دې نه چې اَنْ په معنی دَ اَوْ په دې وجه چې دا مجازکیدودَ وجې نه خلاف ظاهردې.

**قوله**: وفی قراءة أأن بهمزة التوبیخ، داأن يُّؤْتٰى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ کښې دَ دویم قراءت مطابق

به همزه استفهام توبیخي وي، یعنی آیا تاسو د خپل خان په شان حکمت او فضیلت نورو ته د ورکولو اقرار کوئ، نه دی کول پکار.

**قوله**: إِيْتَاءَ أَحَدٍ دي كښې اشاره ده چې أَنْ يُؤْتَى كښې أَنْ مصدريه دې.

**قوله**: قِنْطَارًا، واحد جمع قَنَاطِيْرُ، ډير مال.

**قوله**: وَلَا تُؤْمِنُوا إِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ، دا آيت د تركيب په اعتبار په مشكل ترين آياتونو كښې شميرلې كيږي بعض حضراتو د دې آيت نهه تركيبونه كړي دي مگر په دې كښې چې صرف يو تركيب كوم چې د ټولو نه آسان دې لاندې درج كولې شي او علامه زمخشري رحمه الله هم په خپل كتاب كشاف كښې تحرير كړې دې:

**تركيب**: واؤ عاطفه، لا ناهيه، تؤمنوا فعل مضارع مجزوم بلا، او واؤ فاعل، او إِلَّا، حرف استثناء او لِمَنْ كښې لام حرف جر، مَنْ اسم موصول د لام د وجې نه مجرور جار او مجرور محذوف سره ملاؤ شو د استثناء د وجې نه په محل كښې د نصب، تقديرى عبارت داسې شو، وَلَا تُؤْمِنُوا، وتظهروا بأن يؤتى أَحَدٌ بمثل ما اوتيتم لِأَحَدٍ مِنَ النَّاس إِلَّا لِأَشياعكم دون غيركم.

تبع، فعل ماضى هُوَ دې كښې ضمير فاعل، جمله فعليه صله او دِيْنَكُمْ مفعول به مينځ كښې قُلْ إِنَّ الْهُدَى هُدَى اللهِ جمله معترضه أَنْ يُؤْتَى أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُوتِيتُمْ، إِنْ خپل ماتحت سره ملاؤ شو په تاويل مصدر شو مجرور بنزع الخافض، او جار مجرور سره ملاؤ شو د تؤمنوا متعلق او أَحَدٌ د يُؤْتَى نائب فاعل، او مِثْل، مفعول به ثانى، اسم موصول د اضافت د وجې نه محلاً مجرور او جمله أُوتِيتُمْ صله مضارع.

**قوله**: الأُمِّيِّيْنَ مراد كوم چې اهل كتاب نه وي.

**قوله**: يَلْوُنَ مضارع جمع مذكر غائب، لَيٌّ مصدر (ن) هغه چورلوى، هغه تاووى.

**قوله**: اَلْبَشَرُ انسان كه مذكر وي او كه مؤنث واحد وي كه جمع په لفظونو كښې واحد نشته دې.

**[ایاتونه: ۸۱-۹۱]**

---

{وَ} اذْكُرْ {إِذْ} حِين {أَخَذَ اللّٰهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ} عَهدهمْ {لَمَا} بِفَتْحِ اللَّام لِلِابْتِدَاءِ وَتَوْكِيد بِمَعْنَى الْقَسَم الَّذِي فِي أَخْذ الْمِيثَاق وَكَسْرهَا مُتَعَلِّقَة بِأَخَذَ وَمَا مَوْصُولَة عَلَى الْوَجْهَيْنِ أَيْ لِلَّذِي {آتَيْتُكُمْ} إِيَّاهُ وَفِي قِرَاءَة آتَيْنَاكُمْ {مِنْ كِتَابٍ وَحِكْمَةٍ ثُمَّ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَكُمْ} مِنْ الْكِتَاب وَالْحِكْمَة وَهُوَ مُحَمَّد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لَتُؤْمِنُنَّ بِهِ وَلَتَنْصُرُنَّهُ} جَوَاب الْقَسَم إِنْ أَدْرَكْتُمُوهُ وَأُمَمهمْ تَبَع لَهُمْ فِي ذَلِكَ {قَالَ} تَعَالَى لَهُمْ {أَأَقْرَرْتُمْ} بِذَلِكَ {وَأَخَذْتُمْ} قَبِلْتُمْ {على ذلك إِصْرِي} عَهْدِي {قَالُوا أَقْرَرْنَا قَالَ فَاشْهَدُوا} عَلَى انفسكم واتباعكم ذلك {وَأَنَا مَعَكُمْ مِنَ الشَّاهِدِينَ} عَلَيْكُمْ وَعَلَيْهِمْ {فَمَنْ تَوَلَّى} أَعْرَض

{بَعْدَ ذَلِكَ} الميثاق {فأولئك هم الفاسقون} {أَفَغَيْرَ دِينِ اللَّهِ يَبْغُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ أَيْ المتولون {وله أسلم} إنقاد {من في السماوات وَالْأَرْضِ طَوْعًا} بِلَا إبَاء {وَكَرْهًا} بِمُعَايَنَةِ مَا يلجئ إليه {وإليه يرجعون} بِالتَّاءِ وَالْيَاء وَالْهَمْزَة فِي أَوَّل الْآيَة لِلْإِنْكَارِ {قُلْ} لَهُمْ يَا مُحَمَّد {آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ} أَوْلَاده {وَمَا أُوتِيَ مُوسَى وَعِيسَى وَالنَّبِيُّونَ مِنْ رَبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ} بِالتَّصْدِيقِ وَالتَّكْذِيب {وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ} مُخْلِصُونَ فِي الْعِبَادَة وَنَزَلَ فِيمَنْ ارْتَدَّ وَلَحِقَ بالكفار {وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ} لِمَصِيرِهِ إلَى النَّار الْمُؤَبَّدَة عَلَيْهِ {كَيْفَ} أَيْ لَا {يَهْدِي اللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ وَشَهِدُوا} أَيْ شَهَادَتهمْ {أَنَّ الرَّسُولَ حق و} قد {جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ} الْحُجَج الظَّاهِرَات عَلَى صِدْق النَّبِيّ {وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ} أَيْ الْكَافِرِينَ {أولئك جزاؤهم أن عليهم لعنة الله والملائكة والناس أجمعين} {خَالِدِينَ فِيهَا} أَيْ اللَّعْنَة أَوْ النَّار الْمَدْلُول بِهَا عَلَيْهَا {لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ} يُمْهَلُونَ {إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ وَأَصْلَحُوا} عَمَلهمْ {فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لَهُمْ {رَحِيمٌ} بِهِمْ وَنَزَلَ فِي الْيَهُود {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا} بِعِيسَى {بَعْدَ إِيمَانِهِمْ} بِمُوسَى {ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا} بِمُحَمَّدٍ {لَنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ} إذَا غَرْغَرُوا أَوْ مَاتُوا كُفَّارًا {وأولئك هم الضالون} {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِمْ مِلْءُ الْأَرْضِ} مِقْدَار مَا يَمْلَؤُهَا {ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَى بِهِ} أَدْخَلَ الْفَاء فِي خَبَر إنَّ لِشَبَهِ الَّذِينَ بِالشَّرْطِ وَإِيذَانًا بِتَسَبُّبِ عَدَم الْقَبُول عَنْ الْمَوْت عَلَى الْكُفْر {أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم {وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ} مَانِعِينَ مِنْهُ

**ترجمه:** اوهغه وخت یادکړئ کله چې دَ انبیاء کرام علیهم السلام نه په عالم ارواح کښې الله تعالی وعده واخستله چې کله زه تاسو ته دکتاب او حکمت (دَقسم) نه درکړم. لَمَا دَلام فتحه سره لام ابتداء دې او دَدې معنی دَ قسم دَتاکید دَپاره دې کوم چې دَ اَخَذَ الْمِیْثَاق نه مفهوم دې اودَ لام کسره سره دَ اَخَذَ متعلق دې او مَا په دواړو صورتونو کښې موصوله دې ای الذی او په یو قراءت کښې اٰتَیْنَا کم دې یا تاسوله دَدې کتاب او حکمت تصدیق کونکې راشی کوم چې تاسو سره دې اوهغه (رسول) محمد ﷺ دې. نو تاسو به ضرور په دغه رسول باندې ایمان راوړئ اودَهغه امداد به کوئی. (لَتُؤْمِنُنَّ الخ) جواب قسم دې (یعنی) که تاسو هغه اومومنی په دې حکم کښې دَانبیاء کرامو امتونه دَهغ تابع دی (بیا) الله تعالی هغوی ته اوفرمائیل آیا تاسو دَدې اقرار کوئی؟ او په دې باندې زما عهد قبلوئی؟ هغوی اووئیل مونږ اقرار کوو ارشاد اوشو په خپل خان او په خپلو متبعینو باندې دَدې خبرې گواه اوسیږئی اوزه هم په تاسو او په هغوی باندې دَ گواهانو نه یم نو اوس چې څوک دَدې عهد نه اعراض کوی نو هم هغه به په نافرمانو کښې شمیرلې شی، پس آیا دا خلق دَ الله تعالی دَ دین نه سوا (دَ بل چا دین) لټوی (یَبْغُوْنَ) یاء سره په معنی متولون، ای معرضون او تاء سره (ای تَبْغُوْنَ) ای تعرضون حال دا دې چې دَ

آسمانونو اوزمکې هريوځيزدَهغه فرمانبرداردې په خوشحالۍ سره بغيردَ څه انکارنه او په ناخوښئ سره دَتورې او دَهغه ځيزدَ مشاهدې دَوجې نه چې دَفرمانبردارئي دَپاره ئې مجبور کړی (مثلاً طاقت وغيره) اوټول به هم دَهغه طرف ته راګرځولې شي (ترجعون) يا، اوتا، سره (اَفَغَيْرَ) کښې همزه استفهام انکاريه دې. اې محمد ﷺ تاسو ورته اووايئ مونږ ايمان راوړې په الله باندې اوپه هغې باندې کوم چې په مونږ نازل کړې شوې دې اوکوم چې په ابراهيم عليه السلام او اسماعيل عليه السلام باندې او په اسحاق عليه السلام باندې اوپه يعقوب عليه السلام باندې او په اولاد د (يعقوب عليه السلام) باندې نازل کړې شوی دی اوپه هغې باندې کوم چې په موسی عليه السلام او په عيسی عليه السلام او (نورو) انبياءکرامو عليهم السلام ته دَهغوی دَ پروردګاردَطرف نه ورکړې شوی دی. مونږ په هغوی کښې دَتصديق اوتکذيب په اعتبارسره هيڅ فرق نه کو اومونږ خو په عبادت کښې هم دَهغه دَپاره مخصوص يو او (راتلونکې آيت) دَهغه سړی باره کښې نازل شو چې مرتدشو اوکافرانوکښې شامل شو اوڅوک چې دَاسلام نه بغيربل څه دين لټوی نوهغه به دَهغه نه هيڅ کله نه شي قبلولې. اوهغه سړې به په آخرت کښې دَهميشه عذاب طرف ته راګرځولودَوجې نه دَزيانکارانونه وی. اوالله به څنګه داسې خلقو ته هدايت ورکړی (يعنی) نه به ورکوی چاچې دَخپل ايمان نه پس کفراختيارکړو (اودَهغې نه پس چې هغه) ګواهي ورکړې وی چې رسول برحق دې (اوپس دَهغې نه) چې هغوی له ښکاره نشانې راغلې وې يعنی دَرسول الله ﷺ په صداقت باندې واضحه نشانې راغلې وې. اوالله تعالی به داسې ظالمانو خلقو اوکافرانوته هدايت نه ورکوی. دَ داسې خلقو سزاداده چې په هغوی به دَالله تعالی اودَ فرښتو اودَ ټولو انسانانولعنت وی او په دغه لعنت يا اور کښې به په کوم چې لعنت دلالت کوی دَ هميشه دَپاره پراته وی نه به دَهغوی نه عذاب سپکولې شي اونه به هغوی ته مهلت ورکولې شي البته هغه خلق څوک چې دې نه پس توبه اوکړی اودَخپلو اعمالواصلاح اوکړی. بيشکه الله تعالی هغوی معاف کونکی اوپه هغوی باندې رحم کونکې دې اودَ يهودودباره کښې (راتلونکې آيت نازل شو) بيشکه کومو خلقوچې په حضرت موسی عليه السلام باندې ايمان راوړلونه پس په حضرت عيسی عليه السلام باندې انکاراوکړو بيا په کفر کښې وړاندې کيدل دَ محمد ﷺ انکارئي اوکړو. نودَهغوی توبه به هيڅ کله نه قبليږی کله چې حالت نزع (زنکدن) ته اورسی يادکفر په حالت کښې مړه شي. هم دغه خلق خو ګمراه دی بيشکه چې کومو خلقوکفراختيارکړو اوهم دکفر په حالت کښې مړه شو دَهغوی نه به دَچانه هم هيڅ کله نه شي قبلولې ډکه زمکه دَ سرو زرو يعنی په دومره اندازه کښې چې زمکه ډکه کړی که هغه په معاوضه کښې ورکول غواړی، دَاِنَّ خبرباندې فاء داخل کړې شوه، د اَلَّذِيْنَ دَ شرط مشابه کيدودَ وجې نه او په دې خبره باندې خبرولودَپاره چې دَعدم قبوليت سبب مرګ دَ کفرپه حالت دې (نه چې محض کفر) هم دغه هغه خلق دی دَچادَپاره چې دردناک عذاب دې اودَ چادَپاره چې هيڅوک امدادی به دَعذاب نه بچ کونکې نه وی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

وَاذكر إذْحِين اَخَذَاللهُ مِيْثَاقَ النَّبِيِّيْنَ:

**قوله.** حِيْنَ لفظ حِيْنَ سره اشاره اوکړه چې اِذْ ظرفيه دې او اذکر فعل محذوف سره متعلق دې دَدې آيت متعدد ترکيبونه کړې شوى دى دا آيت هم په مشکل ترکيبى مقامات کښې شميرلې کيږى.

**دصاحب جلالين اختيارکړې شوې ترکيب:** واؤ استفهاميه، اِذْ ظرفيه متعلق فعل محذوف دَ اذکر، لَمَا، د لام فتحه سره دَپاره دَ ابتداء اومعنى قسم کوم چې اخذميثاق نه مفهوم ده، دَتاکيد دَپاره لام په کسره سره هم لوستلې شوې دې. د ةاخَذَمتعلق دواړو صورتونو کښې مَا موصوله دى اٰتَيْنكُمْ اِيَّاه، او په يوقراءت کښې اٰتَيْتُكُمْ، لَتُؤْمِنُنَّ جواب قسم اِيَّاه عائد محذوف کوم چې دَ موصول طرف ته راجع دې.

مَا موصله ده جائز دى چې متضمن په معنى شرط وى او لَتُؤْمِنُنَّ قائمقام جواب قسم او جواب شرط وى.

**قوله.** بالتصديق والتکذيب. دَدې اضافه مقصد دَ يوسوال مقدرجواب دې.

**سوال** دَالله تعالى دَ قول لانفرق مطلب دې چې مونږ په انبياء کرامو کښې فرق نه کوو بلکه ټول مساوى ګڼړو حالانکه دَ اهل سنت والجماعة عقيده ده چې انبياء عليهم السلام په فضيلت اودرجات کښې مختلف دى اوهم دغه خبره ﴿ تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ﴾ نه معلوميږى.

**جواب.** تفريق نه کول دَ تصديق اوتکذيب په اعتبارسره دى نه چې دَ فضيلت او درجات په اعتبارسره يعنى مونږ دَ يهودو په شان دَ بعضو تصديق اوبعضو تکذيب نه کوو.

**قوله:** مخلصون.

**سوال:** د مسلمون تفسير مخلصون سره کولوکښې څه فائده ده؟

**جواب.** مسلمون په معنى دَ مخلصون څکه کړې شوې دې چې نفس ايمان خودَ اٰمَنَّا نه مفهوم دې.

**قوله.** وَشَهِدُوٓا دې کښې اشاره ده چې دَدې عطف په تقدير د بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ باندې دې او فعل معطوف په تاويل کښې دَاسم دې.

**قوله:** قد حذف قد کښې اشاره ده چې واؤ حاليه دې نه چې عاطفه.

## پاره نمبر-٤ [لَنْ تَنَالُوا]

[ایاتو نه: ۹۲-۱۰۱]

{لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ} أَيْ ثَوَابه وَهُوَ الْجَنَّة {حَتَّى تُنْفِقُوا} تَصَدَّقُوا {مِمَّا تُحِبُّونَ} مِنْ أَمْوَالكُمْ {وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ} فَيُجَازِي عَلَيْهِ وَنَزَلَ لَمَّا قَالَ الْيَهُود إنَّك تَزْعُم أَنَّك عَلَى مِلَّة إبْرَاهِيم وَكَانَ لَا يَأْكُل لُحُوم الْإِبِل وَأَلْبَانهَا {كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا} حَلَالًا {لِبَنِي إِسْرَائِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَائِيلُ} يَعْقُوب {عَلَى نَفْسِهِ} وَهُوَ الْإِبِل لَمَّا حَصَلَ لَهُ عِرْق النَّسَا بِالْفَتْحِ وَالْقَصْر فَنَذَرَ إنْ شُفِيَ لَا يَأْكُلهَا فَحُرِّمَ عَلَيْهِ {مِنْ قَبْلِ أَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرَاةُ} وَذَلِكَ بَعْد إبْرَاهِيم وَلَمْ تَكُنْ عَلَى عَهْده حَرَامًا كَمَا زَعَمُوا {قُلْ} لَهُمْ {فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا} لِيَتَبَيَّن صِدْق قَوْلكُمْ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِيهِ فَبُهِتُوا وَلَمْ يَأْتُوا بِهَا قال تعالي {فَمَنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ} أَيْ ظُهُور الْحُجَّة بِأَنَّ التَّحْرِيم إنَّمَا كَانَ مِنْ جِهَة يَعْقُوب لَا عَلَى عَهْد إبْرَاهِيم {فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ} الْمُتَجَاوِزُونَ الْحَقّ إلَى الباطل {قُلْ صَدَقَ اللَّهُ} فِي هَذَا كَجَمِيعِ مَا أَخْبَرَ بِهِ {فَاتَّبِعُوا مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ} الَّتِي أَنَا عَلَيْهَا {حَنِيفًا} مَائِلًا عَنْ كُلّ دِين إلَى الْإِسْلَام {وما كان من المشركين} وَنَزَلَ لَمَّا قَالُوا قِبْلَتنَا قَبْل قِبْلَتكُمْ {إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ} مُتَعَبَّدًا {لِلنَّاسِ} فِي الْأَرْض {لَلَّذِي بِبَكَّةَ} بِالْبَاءِ لُغَة فِي مَكَّة سُمِّيَتْ بِذَلِكَ لِأَنَّهَا تَبُكّ أَعْنَاق الْجَبَابِرَة أَيْ تَدُقّهَا بَنَاهُ الْمَلَائِكَة قَبْل خَلْق آدَم وَوُضِعَ بَعْده الْأَقْصَى وَبَيْنهمَا أَرْبَعُونَ سَنَة كَمَا فِي حَدِيث الصَّحِيحَيْنِ وَفِي حَدِيث أَنَّهُ أَوَّل مَا ظَهَرَ عَلَى وَجْه الْمَاء عِنْد خَلْق السَّمَاوَات وَالْأَرْض زُبْدَة بَيْضَاء فَدُحِيَتْ الْأَرْض مِنْ تَحْته {مُبَارَكًا} حَال مِنْ الَّذِي أَيْ ذَا بَرَكَة {وَهُدًى لِلْعَالَمِينَ} لِأَنَّهُ قِبْلَتهمْ {فِيهِ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ} مِنْهَا {مَقَامُ إِبْرَاهِيمَ} أَيْ الْحَجَر الَّذِي قَامَ عَلَيْهِ عِنْد بِنَاء الْبَيْت فَأَثَّرَ قَدَمَاهُ فِيهِ وَبَقِيَ إلَى الْآن مَعَ تَطَاوُل الزَّمَان وَتَدَاوُل الْأَيْدِي عَلَيْهِ وَمِنْهَا تَضْعِيف الْحَسَنَات فِيهِ وَأَنَّ الطَّيْر لَا يَعْلُوهُ {وَمَنْ دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا} لَا يُتَعَرَّض إلَيْهِ بِقَتْلٍ أَوْ ظُلْم أَوْ غَيْر ذَلِكَ {وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ} وَاجِب بِكَسْرِ الْحَاء وَفَتْحهَا لُغَتَانِ فِي مَصْدَر حَجَّ قَصَدَ وَيُبْدَل مِنْ النَّاس {مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا} طَرِيقًا فَسَّرَهُ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالزَّادِ وَالرَّاحِلَة رَوَاهُ الْحَاكِم وَغَيْره {وَمَنْ كَفَرَ} بِاَللَّهِ أَوْ بِمَا فَرَضَهُ مِنْ الْحَجّ {فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ} الْإِنْس وَالْجِنّ وَالْمَلَائِكَة وَعَنْ عِبَادَتهمْ {قل يأهل الكتاب لم تكفرون بآيات الله} تَصْرِفُونَ {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} أَيْ دِينه {مَنْ آمَنَ} بِتَكْذِيبِكُمْ النَّبِيّ وَكَتْم نَعْته {تَبْغُونَهَا} أَيْ تَطْلُبُونَ السَّبِيل {عِوَجًا} مَصْدَر بِمَعْنَى مُعْوَجَّة أَيْ مَائِلَة عَنْ الْحَقّ {وَأَنْتُمْ شُهَدَاءُ} عَالِمُونَ بِأَنَّ الدِّين الْمَرْضِيّ الْقَيِّم هُوَ دِين الْإِسْلَام كَمَا فِي كِتَابكُمْ {وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ} مِنْ الْكُفْر وَالتَّكْذِيب وَإِنَّمَا يُؤَخِّركُمْ إلَى وَقْتكُمْ لِيُجَازِيَكُمْ وَنَزَلَ لَمَّا مَرَّ بَعْض الْيَهُود عَلَى الْأَوْس وَالْخَزْرَج وَغَاظَهُمْ تَأَلُّفهمْ فَذَكَّرَهُمْ بِمَا كَانَ بَيْنهمْ فِي الْجَاهِلِيَّة مِنْ الْفِتَن فَتَشَاجَرُوا وَكَادُوا يَقْتَتِلُونَ {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ يَرُدُّوكُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ كَافِرِينَ} {وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ} اسْتِفْهَام تَعْجِيب وَتَوْبِيخ {وَأَنْتُمْ تُتْلَى عَلَيْكُمْ آيَاتُ اللَّهِ وَفِيكُمْ رَسُولُهُ وَمَنْ يَعْتَصِمْ} يَتَمَسَّك {بالله فقد هدي إلى صراط مستقيم}

ترجمه: ترکومې چې خپل محبوب مالونه خرچ نه کړئ (صدقه نه کړئ) هیڅ کله دَ نیکۍ اجر چې جنت دې حاصل به نه کړې شئ او تاسو چې کوم څیز هم خرچ کوئ الله تعالی دَ هغې نه ښه خبردې، لهذا هغه به دَ هغې بدله درکوی او نازل شو کوم وخت چې یهودیانو دا خبره اوکړه چې تاسو دَدې خبرې دعوی کوئ چې تاسو په ملت ابراهیمی باندې یئ حالانکه هغه خو دَ اوښ غوښه او پئی خوړل څکل نه. (او تاسو خورئی څکئی) هر یو خوراک دَ بنی اسرائیلو دَپاره حلال وو بغیر دَ هغې نه کوم چې اسرائیل (یعقوب علیه السلام) په خپل ځان باندې حرام کړې وه او هغه اوښ وو، داسې ئې هغه وخت کړی وو کوم وخت چې هغوی ته دَ عرق النساء مرض لګیدلې وو (نَسَاء) دَ نون فتحه او قصر الف سره (په وزن دَ عصا) دې، (حضرت یعقوب علیه السلام نذر منلې وو چې که زه صحت مند شوم نو دا به زه نه خورم، چنانچې هغه دا په خپل ځان باندې ممنوع کړه. داسې ئې دَ تورات نازلیدو نه وړاندې کړې وو او دا (واقعه) دَ ابراهیم علیه السلام نه پس شوې او دا حرمت دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په زمانه کښې نه وو لکه څنګه چې تاسو ګڼړئی. نو ته هغوی ته اووایه تورات راوړئی او دا اولولئ دې دَپاره چې ستاسو دَ قول صداقت معلوم شی که چرې تاسو په دې باره کښې رښتونی ئې نو هغوی حیران پاتې شو او تورات ئې رانوړو. الله تعالی اوفرمائیل چې کوم سړی دَ دې یعنی حجت دَ ښکاره کیدو نه پس هم په الله تعالی باندې بهتان تړی چې تحریم دَ حضرت یعقوب علیه السلام دَ طرف نه وو نه چې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په زمانه کښې نو هم دغه خلق دی ظالمان (یعنی) دَ حق نه دَ باطل طرف ته تجاوز کونکی دی ته ورته اووایه چې دَ نورو خبرو په شان الله تعالی دا خبره هم رښتیا اوفرمائیله نو تاسو دَ نیغې لارې والا حضرت ابراهیم علیه السلام دَ دین په کوم باندې چې زه یم تابعداری اوکړئی یعنی دَ هر یو دین نه (اعراض کولو سره) دَ دین اسلام طرف ته مخ کولو سره او (حضرت ابراهیم علیه السلام) دَ مشرکانو نه نه وو. او راتلونکې آیت هغه وخت نازل شو کوم وخت چې یهودو وئیلی وو زمونږ قبله ستاسو دَ قبلې نه پخوانئی ده دَ ټولونه اولنې کور کوم چې دَ عبادت خانې په طور دَ خلقو لپاره مبارک جوړ کړې هغه دې کوم چې په مکه کښې دې، په مکه کښې یو لغت بکه هم دې باء سره بکه ته بکه ځکه وائی چې دَ بکه معنی ماتول وړانول دی. چونکه دا لوئی لوئی ظالمانو دَ ستونه ماتې دَ دې دَ نړولو اراده کړې وه ماتوی پریږدی. دَدې تعمیر فرښتو کړې وو دَدې نه پس مسجد اقصی جوړ کړې شو او دَدې دواړو په مینځ کښې دَ څلویښتو کالو فاصله ده لکه چې دَ صحیحین په حدیث کښې وارد شوی دی او په یو حدیث کښې دی چې دَ آسمانونو او زمکو دَ تخلیق په وخت دَ اوبو په مخ باندې دَ سپین ځګ په شکل کښې یو څیز راښکاره شوې وو هغه کعبه وه دَدې نه پس زمکه دَدې دَ لاندې نه خوره کړې شوه (مُبٰرَكًا) دَ اَلَّذِی نه حال دې ای ذابرکةٍ او دا دَ دنیا والو دَپاره هدایت والا ده ځکه چې دا دَ هغوی قبله ده. په دې کښې ښکاره نشانې

دی هم دې نه مقام ابراهیم علیه السلام دې يعنى هغه كانړې چې دَ بيت الله دَ جوړولو وخت په كوم (چې حضرت ابراهيم علیه السلام) اودريدلو دَهغوى دَ خپو په دې كښې نښې نښې جوړې شوې دى اودَ اوږدې زمانې راسې اودَخلقو دَبار بار لاس لګولونه باوجود ترننه پورې باقى دې اوهم دَدغه نښونه په دې كښې دَ نيكودَاجر ډبل ثواب كيدل دى. او يوه مرغئى دَدې دَپاسه نه شى تيريدلې. او څوک چې په دې كښې داخليږى هغه په امن كښې كيږى دَ قتل يا ظلم وغيره دَپاره به دې سره تعرض نه شوكيدلې. او په خلقو باندې دَالله تعالى دَپاره دَ بيت الله حج واجب دې (دَحج) په مصدركښې حاء فتحه او كسره دوه لغته دى. حَجّ په معنى قَصَدَ او (مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلاً) (النَّاس) نه بدل دې څوک چې دَهغه ځائى دَ رسيدو پورې طاقت لرى (دَ استطاعت) تفسير حضورپاك زاد او راحله (سورلى اودَ سفرخرچ) سره كړې دې. روايت كړې دې حاكم وغيره اوڅوک چې دَ الله تعالى نه كفر اوكړى اوكوم حج چې په هغه باندې فرض كړې شوې دې (دَهغې منكر وى) نوالله تعالى دَعالم والونه يعنى انس وجن او ملائكه اودَهغوى دَعبادت نه بې پرواه دې. ته ورته اووايه چې اې اهل كتاب تاسو دَالله تعالى آياتونه قرآن نه ولې انكاركوئى؟ اوحال دادې چې الله تعالى ستاسو په اعمالو باندې شاهد دې تاسوته به دَهغې بدله دركوى. ته ورته اووايه اې اهل كتاب كوم سړى چې ايمان راوړې وى دَالله تعالى د دين نه دَ نبى علیه السلام په تكذيب اودَ هغه علامات پټولوسره ولې منع كوئى؟ په دې لار (دين) كښې كوګوالې راوباسئى (عِوَجًا) مصدردې اودَمُعْوَجَّةً په معنى كښې دې يعنى دَحق نه انحراف كولوسره حالانكه تاسو پيژنئى چې خوښ كړې شوې او صحيح دين هم اسلام دې لكه چې ستاسو په كتاب كښې موجود دى. اوالله تعالى .دكفراوتكذيب وغيره ستاسودَاعمالونه بې خبرنه دې اوهغه تاسو ته صرف دَ يووخت پورې مهلت دركړې دې بيابه تاسوته دَدې سزا دركوى. (راتلونكې آيت هغه وخت نازل شو) كوم وخت چې دَ بعض يهوديانو تيريدل په آوس او خزرج باندې اوشو نودَهغوى دَخپل مينځ الفت اومحبت هغوى غضبناك كړل نودغه يهوديانودَ هغوى دَ جاهليت دَزمانې (دَخپل مينځ) دَ فتنې دَخبرو ذكر اوچيړلو دَ كوم په وجه چې هغوى خپل مينځ كښې جګړه اوكړه نيزدې وه چې خپل مينځ كښې وينې بهيولې وې. اې ايمان والو كه چرې دَ اهل كتاب دَ يوفريق خبره اومنئى نوهغوى به تاسو ستاسودَ ايمان راوړلوباوجود كافران جوړولوسره پرېږدى اوتاسو څنګه كفركولې شئى استفهام دَتعجب اوتوبيخ دَپاره دې، حالانكه تاسوته دَالله تعالى آياتونه لوستلې اوروله شى اوستاسو په مينځ كښې دَهغه رسول موجوددې او څوک چې الله تعالى مضبوط اونيسى نو يقينا هغه ته دَ نيغې لارې طرف ته هدايت اوكړې شو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** تَنَالُوْا تاسو به حاصل کړئی تاسوبه بیاموسئی (س) مضارع جمع مذکرحاضر نَالَ يَنَالُ نَيْلاً رسيدل، حاصلول.

**قوله** ای ثوابهٔ مفسرعلام مضاف مقدرمنلوسره اشاره اوکړه چې عبارت په حذف مضاف سره دې. څکه چې نفس بِرّ خو نيك عمل كولوته وائي دَ كوم وجود چې عمل نيك كولوسره كيږي البته دَ نيك عمل اجراوثواب دَ محبوب او خوښ كړې شوى څيزپه خرچ كولوسره حاصليدې شي.

**قوله** تَصَدَّقُوْا، دَ تُنْفِقُوْا تفسير تَصَدَّقُوْا سره كولوكښې اشاره اوكړه چې مطلق انفاق كه په خپل خان باندې وى اوكه په خرابوكارونوباندې وى مرادنه دې بلكه في سبيل الله صدقه كول مراددى.

**قوله**: مِمَّا تُحِبُّوْنَ مَا تبعيضيه دې دَدې دَپاره په يوقراءت كښې بَعْضَ مَا تُحِبُّوْنَ دى.

**قوله**: كُلُّ الطَّعَامِ الف لام دَ عهددې اى كُلُّ الاطعمة الَّتِي كَانَتْ تَدَّعِي اليهودُ حُرْمَتَهَا عَلَى إِبْرَاهِيْمَ.

**قوله** عِرْقِ النَّسَاء عرق النساء اكثردَ كس كوناتى نه شروع كيدوسره دَ زنګون او بعض وخت تر ګيټئى پورې راكوزيږى كه دا بيمارى دَ ډيرو ورځوپورې شى نو بيماركوډيږى. (شرح موجز اقرائى)

**قوله**: أَنَا عَلَيْهَا اتباع ملت ابراهيم نه مراددَ ملت اسلام اتباع ده څكه ملت ابراهيمى هم ملت اسلامى وو او رسول الله ﷺ هم په دغه ملت ابراهيمى باندې وو.

**قوله**: مُتَعَبَّدًا دې لفظ زياتولوسره ئې اشاره اوكړه چې اول بيت نه مطلق اول بيت مرادنه دې بلكه دَ عبادت ګاه په توګه اول بيت مراددې.

**قوله**: لَلَّذِيْ بِبَكَّةَ كښې لام دَتاكيددې دې ته لام مزحلقة هم وائى. په اصل كښې دا لام په مبتداء باندې دَهغې دَتاكيد دَ پاره داخليږى مګر كله چې په مبتداء باندې اِنَّ داخليږى نو اِنَّ دَخپل صدارت دَخاطره دغه لام دَخبرطرف ته ديكه كوى په دې وجه دې لام ته لام مزحلقه وائى
مكه او بكه دَ بلدحرام نومونه دى. دادواړه لغت دى اوداهم وئيلى شوى دى چې بكه دَ مقام بيت الله نوم دې اومكه دَ بلد حرام نوم دې او بعض خلقو وئيلى دى چې دَمسجدحرام نوم بكه دې اومكه دَ پوره حرم نوم دې او بكه ته بكه دَدې وجې نه وئيلې شى چې دَدې معنى دَ خلقو ګنړه ده دَ طواف په وخت چونكه ګنړه وى په دې وجه دې ته

بکه وئیلی شي. او بعض حضراتو وئیلی دی چې دَ بَكَ معنی دَقّ اودَدې معنی ده تکول ماتول تاوول ځکه چې کوم ظالم جابر دې ته په ککه سترګه کتلی دی اودې ته ئی دَ نقصان رسولو کوشش کړې دې دَهغه سټ راتاؤکړې شوې دې. اودَمکه دَتسمیه دَ وجې باره کښې بعض حضراتو وئیلی دی چې دَ اوبو دَقلت دَ وجې نه ورته مکه وئیلی شي عرب وائی مك الفصيل ضَرْعَ أُمِّه کله چې بچې دَ مور پئی ځکلو سره ختم کړی او په قاموس کښې دی چونکه مکه ګناهونه ختمه وی اودا تمك الذنوب نه مشتق دې ای تمحوها وتزيلها.

## دَ مکې ډیرنومونه دي:

| ① مکه | ② بکه | ③ البيت العتيق | ④ البيت الحرام |
|---|---|---|---|
| ⑤ البلد الامين | ⑥ المامون | ⑦ ام الرحيم | ⑧ ام القرى |
| ⑨ صلاح | ⑩ العرش | ⑪ القادس | ⑫ المقدسه |
| ⑬ البناسة | ⑭ نون اوباء سره | ⑮ الحاطمه | ⑯ الرأس |
| ⑰ کوثاء | ⑱ البلدة | ⑲ البنية | ⑳ الكعبة |

(اعراب القران)

مجاهد رحمه الله وئیلی دی چې باء په میم سره بدله کړې شوې ده لکه سَمَدْ او سَمَدْ او لازب ولازم کښې.

**قوله:** تطلبون السبيل، دادَ هغه شبه جواب دې چې سبیل مذکردې لهذا تَبْغُوْنَهَا په ځائی تَبْغُوْنَه کیدل پکاردی.

**جواب:** سبیل چونکه مذکر اومؤنث دواړه شان استعمالیږی لهذا تَبْغُوْنَهَا صحیح دې.

**قوله:** مصدر په معنی دَ مُعْوَجًا دادَدې سوال جواب دې چې عِوَجًا، السبل نه حال دې حالانکه دَدې حمل په السبل باندې صحیح نه دې.

**جواب:** عِوَجًا، دَمُعْوَجَةً په معنی کښې دې عِوَج دَعین کسره سره غیرمجسم څیزونو کوګوالی دَپاره استعمالیږی مثلاً عقل اوپوهه او عَوَج دَ عین فتحه سره دَمجسم څیزونو مثلاً دیوال وغیره کوګوالی دَپاره استعمالیږی.

**[اياتونه: ١٠٢-١٠٩]**

{يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقَاتِهِ} بِاَنْ يُطَاعَ فَلَا يُعْصَى وَيُشْكَرَ فَلَا يُكْفَرَ وَيُذْكَرَ فَلَا يُنْسَى فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَنْ يَقْوَى عَلَى هٰذَا فَنُسِخَ بِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ} {وَلَا تَمُوتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُسْلِمُونَ} موحدون {وَاعْتَصِمُوا} تَمَسَّكُوا {بِحَبْلِ اللّٰهِ} اَيْ دِينِهِ {جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا} بَعْدَ الْإِسْلَامِ {وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللّٰهِ} اِنْعَامَهُ {عَلَيْكُمْ} يَا مَعْشَرَ الْأَوْسِ وَالْخَزْرَجِ {اِذْ كُنْتُمْ} قَبْلَ الْإِسْلَامِ {أَعْدَاءً فَأَلَّفَ}

جَمَعَ {بَيْنَ قُلُوبِكُمْ} بِالْإِسْلَامِ {فَأَصْبَحْتُمْ} فَصِرْتُمْ {بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا} فِي الدِّينِ وَالْوِلَايَةِ {وَكُنْتُمْ عَلَى شَفَا} طَرَف {حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ} لَيْسَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الْوُقُوعِ فِيهَا إِلَّا أَنْ تَمُوتُوا كُفَّارًا {فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا} بِالْإِيمَانِ {كَذَلِكَ} كما بين لكم ما ذكر {يبين الله لكم آياته لعلكم تهتدون} {وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ} الْإِسْلَام {وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَأُولَئِكَ} الدَّاعُونَ الْآمِرُونَ النَّاهُونَ {هُمُ الْمُفْلِحُونَ} الْفَائِزُونَ وَمِنْ لِلتَّبْعِيضِ لِأَنَّ مَا ذُكِرَ فَرْض كِفَايَة لَا يَلْزَم كُلّ الْأُمَّة وَلَا يَلِيق بِكُلِّ أَحَد كَالْجَاهِلِ {وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا} عَنْ دِينهمْ {وَاخْتَلَفُوا} فِيهِ {مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ} وَهُمْ الْيَهُود وَالنَّصَارَى {وأولئك لهم عذاب عظيم} {يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ} أَيْ يَوْم الْقِيَامَة {فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ} وَهُمْ الْكَافِرُونَ فَيُلْقَوْنَ فِي النَّار وَيُقَال لَهُمْ تَوْبِيخًا {أَكَفَرْتُمْ بعد إيمانكم} يوم أخذ الميثاق {فذوقوا العذاب بما كنتم تكفرون} {وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ} وَهُمْ الْمُؤْمِنُونَ {فَفِي رحمة الله} اي جنته {هم فيها خالدون} {تِلْكَ} أَيْ هَذِهِ الْآيَات {آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {بِالْحَقِّ وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِلْعَالَمِينَ} بِأَنْ يَأْخُذهُمْ بِغَيْرِ جُرْم {وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا {وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ} تَصِير {الأمور}

ترجمه: اې دَايمان والو دَالله تعالى نه او ويرېږئ لکه څنګه چې دَهغه نه دَ وېرېدو حق دې په داسې توګه چې دَهغه اطاعت اوکړې شي دَهغه نافرمانی دې نه کيږی دَهغه شکردې اداکړې شي ناشکرى دې نه کيږى اوهغه دې ياد اوساتلې شي نه دې هيرول کيږى نوصحابه کرامو عرض اوکړو يارسول الله ﷺ دومره قدرت دَ چادې. نودا حکم الله تعالى په خپل قول فاتقوا الله ما استطعتم سره منسوخ کړو. اوتاسو پوهه شئ بغيردَدې حال نه چې تاسو مسلمانان موحدان يئ اودَ الله تعالى رسئ يعنى دَهغه دين تول په يوځائ مضبوط اونيسئ اودَ اسلام نه پس خپل مينځ کښې بې اتفاقى مه کوئ او اې دَ اوس او خزرج خلقو په خپل ځان باندې دَ الله تعالى انعام يادکړئ. کله چې تاسو دَاسلام نه وړاندې دَ يو بل دښمنان وئ نوهغه ستاسو په زړونوکښې دَ اسلام دَ وجې نه محبت واچولو نوتاسو دَهغه دَانعام په وجه په دين کښې او په نصرت کښې رونړه رونړه جوړشوئ اوتاسو دَ دوزخ په غاړه وئ او ستاسو دوزخ ته پريوتلو کښې صرف دومره وخت وو چې تاسو دکفرپه حالت کښې مړه شوې وئ نوتاسو ئې دَ دوزخ نه دَ ايمان په وجه بچ کړئ. دغه شان څنګه چې ستاسودَپاره مذکوره احکام بيان کړل الله تعالى ستاسو دَپاره خپل آياتونه ښکاره ښکاره بيانوى دې دَپاره چې تاسو لار بيامومئ او ضرور دی په تاسو کښې يو داسې جماعت وى چې دَخير يعنى اسلام دعوت ورکوى اودَنيک کار حکم کوى اودَبدئ نه منع کوى هم دغه دعوت کونکى حکم کونکى (دَبدئ) نه منع کونکى خلق کامياب دى. (مِنْكُمْ) کښې مِنْ تبعيضيه دې ځکه چې مذکوره حکم فرض کفايه دې دَامت په هرفرد باندې لازم نه دى اونه دَهر سړى لائق دى مثلاً جاهل. اووئيلې

شوی دی چې مِنْ زائده دي يعنی دې دپاره چې تاسو يوامت شئی اودَهغه خلقو په شان مه کیږئی چاچې پس دَهغې نه چې هغوی ته شواهد اورسیدل او په خپل دین کښې تفریق اوکړو اوهغه یهود او نصاریٰ دی هم دوی به په عظیم عذاب کښې وی. دَ قیامت په ورځ به څه مخونه سپین (پړقیدونکی) وی او څه مخونه به تور وی بیادَ چامخونه چې تور وی هغه به کافران وی نوهغوی به په دوزخ کښې اچولې شی. او دَ توبیخ په توګه به هغوی ته ونیلی شی آیا هم تاسو کفرکړې وو؟په یوم ألست کښې دَایمان راوړونه پس دَخپل کفردَ وجې نه عذاب اوڅکئ. اودَ چا مخونه چې سپین (پړقیدونکی) وی نوهغوی به دَالله تعالی په رحمت جنت کښې وی او هم په دغې کښې به همیشه وی. دادَ الله تعالی آیاتونه دی کوم چې اې محمد ﷺ مونږ تاته ټیک ټیک لوستلوسره اوره وو او الله تعالی په مخلوقات باندې ظلم نه غواړی چې بغیردَ جرم نه هغوی راګیرکړی. اودَملك اوخلق او مملوك کیدوپه اعتبارسره ټول کوم څه چې په آسمانونو کښې او زمکو کښې دی هم دَالله تعالی دَپاره دی. اوهم دَالله تعالی طرف ته به ټول امور واپس راګرځیږی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** بِاَنْ يُّطَاعَ فَلَا يُعْصٰى (الخ) داکماحقه دَتقویٰ بیان اودَهغې دَ صورت وضاحت دې.

**قوله** مُوَحِّدُوْنَ. **سوال**: دَ مُسْلِمُوْنَ تفسیر مُوَحِّدُوْنَ سره کولو کښې څه مصلحت دې؟

**جواب**: دَمرګ په وخت چونکه بغیردَ توحیدنه کوم چې دَقلبی ارادې نوم دې بله هیڅ عملی نیکی نه شی کیدې مثلاً نه مونځ کیدې شی اونه روژه ساتلې کید یشی اونه حج کیدلې شی علی هذاالقیاس هم دَدې مصلحت او حکمت په وجه دَ مُسْلِمُوْنَ تفسیر مُوَحِّدُوْنَ سره کړې دې عمل توحید په آخری وخت کښې هم کیدې شی.

**قوله** اِعْتَصِمُوْا دَ اعتصام نه دې جمع مذکرحاضر، تاسو مضبوط اونیسئی.

**قوله** الاوس والخزرج دَ حارثه یا ثعلبه ځامن دواړه سکه رونړه وودَ هغوی دَمور نوم قَیلَه وو. دا په اصل کښې دَ یمن دَ یو ښار مآرب اوسیدونکی وو چې یوه ډیره شنه او آباده علاقه وه کومه چې دَ یمن دارالسلطنت صنعاء نه درې منزله فاصله باندې واقع وه مشهور سدمآرب هم دالته واقع وو، دکوم په وجه چې به اهل مآرب په لویه خوشحالئ او خراخئی سره ژوندتیرولو الله تعالی دَهغوی د نافرمانوپه نتیجه کښې هم دَدې بند (ډیم) په ذریعه هغوی اودَ هغوی معیشت تباه کړو. دَ دغه بند په ماتیدوباندې هغوی په اطرافوکښې خوراه شو په دوی کښې څه مدینې ته راغلل آباد شو اوڅه دَ شام وغیره طرف ته لاړل دا واقعه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام نه پس دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت نه وړاندې پیښه شوې وه.

**قوله** يوم اخذ الميثاق دا دي عبارت د اضافه مقصد د يو سوال مقدر جواب دي.

**سوال** يهوديان او نصارىٰ مخاطب کولو سره وئيلي شي كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ دا دي مطلب دا دي چي هغوی اول ايمان راوړنی وو او ودي نه پس کافرشو، حالانکه هغوی د سره نه ايمان راوړي نه وو.

**جواب** د جواب حاصل دا دي چي د ايمان نه مراد د يوم ميثاق ايمان دي کوم چي اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ په جواب کښي بلیٰ وئيلو سره راوړي وو لهذا اوس هيڅ اعتراض پاتي نه شو.

**[اياتونه: ۱۱۰-۱۲۰]**

{كُنْتُمْ} يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ فِي عِلْمِ اللّٰهِ تَعَالَى {خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ} أُظْهِرَتْ {لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ} الْإِيمَانُ {خَيْرًا لَهُمْ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ} كَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَأَصْحَابِهِ {وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ} الْكَافِرُونَ {لَنْ يَضُرُّوكُمْ} أَيِ الْيَهُودُ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ بِشَيْءٍ {إِلَّا أَذًى} بِاللِّسَانِ مِنْ سَبٍّ وَوَعِيدٍ {وَإِنْ يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ} مُنْهَزِمِينَ {ثُمَّ لَا يُنْصَرُونَ} عَلَيْكُمْ بَلْ لَكُمُ النَّصْرُ عَلَيْهِمْ {ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا} حَيْثُمَا وُجِدُوا فَلَا عِزَّ لَهُمْ وَلَا اعْتِصَامَ {إِلَّا} كَائِنِينَ {بِحَبْلٍ مِنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِنَ النَّاسِ} الْمُؤْمِنِينَ وَهُوَ عَهْدُهُمْ إِلَيْهِمْ بِالْأَمَانِ عَلَى أَدَاءِ الْجِزْيَةِ أَيْ لَا عِصْمَةَ لَهُمْ غَيْرُ ذٰلِكَ {وَبَاءُوا} رَجَعُوا {بِغَضَبٍ مِنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ} أَيْ بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُونَ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ذٰلِكَ} تاكيدا {بِمَا عَصَوْا} أَمْرَ اللّٰهِ {وَكَانُوا يَعْتَدُونَ} يَتَجَاوَزُونَ الْحَلَالَ إِلَى الْحَرَامِ {لَيْسُوا} أَيْ أَهْلُ الْكِتَابِ {سَوَاءً} مُسْتَوِينَ {مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ أُمَّةٌ قَائِمَةٌ} مُسْتَقِيمَةٌ ثَابِتَةٌ عَلَى الْحَقِّ كَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عنه واصحابه {يتلون آيات الله آناء الليل} أَيْ سَاعَاتِهِ {وَهُمْ يَسْجُدُونَ} يُصَلُّونَ حَالٌ {يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَأُولٰئِكَ} الْمَوْصُوفُونَ بِمَا ذَكَرَ اللّٰهُ {مِنَ الصَّالِحِينَ} وَمِنْهُمْ مَنْ لَيْسُوا كَذٰلِكَ وَلَيْسُوا مِنَ الصَّالِحِينَ {وَمَا تَفْعَلُوا} بِالتَّاءِ أَيَّتُهَا الْأُمَّةُ وَالْيَاءِ أَيِ الْأُمَّةُ الْقَائِمَةُ {من خير فلن تكفروه} بِالْوَجْهَيْنِ أَيْ تَعْدَمُوا ثَوَابَهُ بَلْ تُجَازَوْنَ عَلَيْهِ {والله عليم بالمتقين} {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ تُغْنِيَ} تَدْفَعَ {عَنْهُمْ أموالهم ولا أولادهم من الله} اي من عذابه {شيئا} وخصها بالذِّكْرِ لِأَنَّ الْإِنْسَانَ يَدْفَعُ عَنْ نَفْسِهِ تَارَةً بفداء المال وتارة بالإستعانة بالأولاد {وأولئك أصحاب النار هم فيها خالدون} {مَثَلُ} صِفَةُ {مَا يُنْفِقُونَ} أَيِ الْكُفَّارُ {فِي هٰذِهِ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} فِي عَدَاوَةِ النَّبِيِّ مِنْ صَدَقَةٍ وَنَحْوِهَا {كَمَثَلِ رِيحٍ فِيهَا صِرٌّ} حَرٌّ أَوْ بَرْدٌ شَدِيدٌ {أَصَابَتْ حَرْثَ} زَرْعَ {قَوْمٍ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ} بِالْكُفْرِ وَالْمَعْصِيَةِ {فَأَهْلَكَتْهُ} فَلَمْ يَنْتَفِعُوا بِهِ فَكَذٰلِكَ نَفَقَاتُهُمْ ذَاهِبَةٌ لَا يَنْتَفِعُونَ بِهَا {وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ} بِضَيَاعِ نَفَقَاتِهِمْ {وَلٰكِنْ أَنْفُسَهُمْ يظلمون} بالكفر الموجب لضياعها {يأيها الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً} أَصْفِيَاءَ تُطْلِعُونَهُمْ عَلَى سِرِّكُمْ {مِنْ دُونِكُمْ} أَيْ غَيْرِكُمْ مِنَ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى وَالْمُنَافِقِينَ {لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا} نُصِبَ

بِنَزْعِ الْخَافِضِ أَيْ لَا يُقَصِّرُونَ لَكُمْ فِي الْفَسَادِ {وَدُّوا} تَمَنَّوْا {مَا عَنِتُّمْ} أَيْ عَنَتَكُمْ وَهُوَ شِدَّةُ الضَّرَرِ {قَدْ بَدَتْ} ظَهَرَتْ {الْبَغْضَاءُ} الْعَدَاوَةُ لَكُمْ {مِنْ أَفْوَاهِهِمْ} بِالْوَقِيعَةِ فِيكُمْ وَإِطْلَاعِ الْمُشْرِكِينَ عَلَى سِرِّكُمْ {وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ} مِنَ الْعَدَاوَةِ {أَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ} عَلَى عَدَاوَتِهِمْ {إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ} ذَلِكَ فَلَا تُوَالُوهُمْ {هَا} لِلتَّنْبِيهِ {أَنْتُمْ} يَا {أُولَاءِ} الْمُؤْمِنِينَ {تُحِبُّونَهُمْ} لِقَرَابَتِهِمْ مِنْكُمْ وَصَدَاقَتِهِمْ {وَلَا يُحِبُّونَكُمْ} لِمُخَالَفَتِهِمْ لَكُمْ فِي الدين {وتؤمنون بِالْكِتَابِ كُلِّهِ} أَيْ بِالْكُتُبِ كُلِّهَا وَلَا يُؤْمِنُونَ بِكِتَابِكُمْ {وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ} أَطْرَافَ الْأَصَابِعِ {مِنَ الْغَيْظِ} شِدَّةِ الْغَضَبِ لِمَا يَرَوْنَ مِنِ ائْتِلَافِكُمْ وَيُعَبَّرُ عَنْ شِدَّةِ الْغَضَبِ بِعَضِّ الْأَنَامِلِ مَجَازًا وَإِنْ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ عَضٌّ {قُلْ مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ} أَيِ ابْقَوْا عَلَيْهِ إِلَى الْمَوْتِ فَلَنْ تَرَوْا مَا يَسُرُّكُمْ {إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ} بما في قلوبكم وَمِنْهُ مَا يُضْمِرُهُ هَؤُلَاءِ {إِنْ تَمْسَسْكُمْ} تُصِبْكُمْ {حَسَنَةٌ} نِعْمَةٌ كَنَصْرٍ وَغَنِيمَةٍ {تَسُؤْهُمْ} تُحْزِنْهُمْ {وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ} كَهَزِيمَةٍ وَجَدْبٍ {يَفْرَحُوا بِهَا} وَجُمْلَةُ الشَّرْطِ مُتَّصِلَةٌ بِالشَّرْطِ قَبْلُ وَمَا بَيْنَهُمَا اعْتِرَاضٌ وَالْمَعْنَى أَنَّهُمْ مُتَنَاهُونَ فِي عَدَاوَتِكُمْ فَلِمَ تُوَالُوهُمْ فَاجْتَنِبُوهُمْ {وَإِنْ تَصْبِرُوا} عَلَى أَذَاهُمْ {وَتَتَّقُوا} اللَّهَ فِي مُوَالَاتِهِمْ وَغَيْرِهَا {لَا يَضُرُّكُمْ} بِكَسْرِ الضَّادِ وَسُكُونِ الرَّاءِ وَضَمِّهَا وَتَشْدِيدِهَا {كَيْدُهُمْ شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ {مُحِيطٌ} عَالِمٌ فَيُجَازِيهِمْ بِهِ

**ترجمه**: اې دَمحمد ﷺ امتـه تاسودَالله تعالی په علم کښې یوبهترین جماعت یئې چې دَخلقودَپاره ویستلې شوې دې تاسو دَ نیکئ حکم ورکوئی اودَ بدئی نه منع کول کوئی او په الله تعالی باندې ایمان لرئی اوکه چرې اهل کتاب هم په الله تعالی باندې ایمان راوړلې نوایمان راوړل به دَهغوی په حق کښې ښه وو هغوی کښې څه خومؤمنان دی لکه عبدالله بن سلام رضي الله عنه اودهغه ملګری مګر دَهغوی نه اکثر نافرمان (یعنی کافر) دی. اې مسلمانانو دا یهودیان په ژبه سره دَ کنځلو او دړکې کولو معمولی شان تکلیف نه سوا تاسو ته هیڅ نقصان نه شی دررسولې اوکه چرې هغوی تاسو سره مقابله کوی تاسوته به شاګړې ماتې خوړونکې به تختتې بیابه دوی ته ستاسو خلاف امداد هم اونه رسیدلې شی بلکه تاسو ته به دهغوی خلاف به امداد هم رسی، په دوی باندې ذلت مسلط کړې شوې دې که هرځائی کښې اولیدلې شی. دوی ته به عزت اواستحکام حاصل نه شی. سوا دَهغې نه چې که دَ الله تعالی دَ طرف نه څه عهد وی یادَ خلقو مسلمانانودَ طرف نه دوی سره څه عهدوی اوهغه جزیه اداکولو په صورت کښې دَامن معاهده ده. یعنی دَ مذکوره صورت نه علاوه به دوی ته تحفظ حاصل نه وی. او هغوی دَ الله تعالی غضب سره واپس کړې شو او په هغوی باندې خواری واچولې شوه. دا (ټول) دَدې وجې نه اوشو چې دوی به دَالله تعالی دَآیاتونو منکران کیدل او انبیاء کرام به ئې بغیردَ څه وجې نه قتل کول. اودا (ټول) دَدې وجې نه اوشو چې هغوی دَالله تعالی دَ حکم نافرمانی اوکړه اودَ حلال نه به ئې دَ حرامو طرف ته تجاوز کولو ټول اهل کتاب یوشان نه دی. هم دَ دغه اهل کتاب نه یو جماعت داسې

هم دي چې په نيغه لار باندې قائم دی او په حق باندې كلك ولاړ دی لكه چې عبدالله بن سلام رضي الله عنه او د هغه ملګري. دا خلق د الله تعالى آياتونه په شپه كښې د مانځه په حالت كښې لولي دوی په الله تعالى باندې او د قيامت په ورځ باندې ايمان لري او د نيكۍ حكم وركوی او د بدئی نه منع كول كوی. او د خو خبرو طرف ته منډې وهي. دا (يعنې) د مذكوره اوصافو حاملين هم د نيكانو خلق نه دی او په دوی كښې څه داسې هم دی چې د دغه صفتونو حامل نه دی او نه د نيكانو خلقونه دی. اوكوم څه چې تاسو ياهغوی قائمه امت نيكي كوی د هغې به هيڅ كله ناقدري نه شي كيدلې په دواړو صورتونو كښې په داسې توګه چې هغوی د ثواب نه محروم كړې شي بلكه هغوی ته به د هغې صله وركولې شي او الله تعالى پرهيزګار ښه پيژنې. بيشكه كوم خلقو چې كفر اختيار كړو هيڅ كله به د هغوی نه د الله تعالى د عذاب لږ شان هم د هغوی مال او د هغوی اولاد لرې نه كړې شي او د دې دواړو ذكرئې په خاص توګه ځكه اوكړو چې انسان بعض وخت د خپل ذات دفاع په مال وركولو سره كوی او كله د اولاد نه امداد غوښتلو سره (كوی). هم دغه خلق دوزخيان دی چې هميشه به په دې كښې وی. اودا كافران په دې دنياوی ژوندون كښې د نبي كريم ﷺ په دښمنئ كښې د صدقې وغيره په توګه كوم چې خرچ وغيره كوی د دې مثال د هغه هوا په شان دې په كوم كښې چې سخته ګرمی يا سخته يخني وی او د يو قوم په فصل اولګي چا چې د كفر او ګناه په ذريعه په خپل ځان باندې ظلم كړې وی يا هغه هوا هغه فصل تباه او برباد كړی د كوم نه چې هغوی څه فائده وا نه خستې شي هم دغه شان د هغوی صدقات دی د هغوی به په دغه صدقات سره هيڅ فائده نه وی. د هغوی صدقات ضائع كولو سره الله تعالى په هغوی باندې ظلم اونه كړو بلكه هغوی د كفر په ذريعه كوم چې د نفقات د بربادئی سبب دې په خپله په خپل ځان باندې ظلم اوكړو. اې ايمان والو تاسو د خپل ځان نه علاوه د يهردو او منافقين نه هيڅوك كلك دوست مه جوړه وئی چې هغه ستاسو د رازونو نه خبر شي هغه خلق تاسو سره په فساد كښې هيڅ كمې نه پريږدی خَبَالاً د حذف جار د وجې نه منصوب دې. يعنې تاسو سره به په فساد كښې هيڅ كمې كوتاهی نه كوی او تاسو ته د تكليف رسولو خواهش لري. يعنې ستاسو د خفګان او هغه سخت نقصان دې. او ستاسو دښمنی خو د هغوی په ژبه سره ستاسو غيبت كول او مشركانو ته ستاسو د رازونو خبرور كولو سره ښكاره شوې ده او كوم عداوت چې هغوی په خپلو سينو كښې پټ كړې دې هغه خو نور هم زيات دې مونږ خو تاسو ته د هغوی د دښمنئی نښانې ښكاره ښكاره بيان كړی دی كه چرې تاسو په دې خبره پوهيږئی نو تاسو به هغوی سره كلكه دوستی نه كوئی. اې مؤمنانو تاسو خو داسې ئی چې هَا د تنبيه د پاره ده. د هغوی تاسو سره د خپلولئ او د دوستئی د وجې نه هغوی سره محبت ساتئی او هغوی په دين كښې تاسو سره د مخالفت د وجې نه تاسو سره محبت نه ساتی. او تاسو په ټولو كتابونو باندې ايمان لرئی او هغوی ستاسو په كتاب باندې ايمان نه لري او دوی

چې کله تاسو سره ملاوېږي نو وائي چې مونږ ايمان راوړې دې اوچې کله جدا کېږي نو په تاسو باندې دَ سختې غصې نه ګوتې (يعنې بندونو) باندې چکونه لګوی ځکه چې هغوی ستاسو دَخپل مينځ محبت ته ګوري او دَ غضب شدت ئې عَضَّ الانامل سره تعبيرکړې دې سره دَدې چې په دې موقع باندې (حقيقتة) کښې ګوتې پرې کول نه وی. تاسو ورته اووايئ چې تاسو دَ غصې نه مړه شئ يعنې تاسو ترمرګه پورې په غصه کښې اخته اوسئ اوتاسو به هيڅ کله خوشحالونکې څيز اونه ګورئ. بيشکه الله تعالى دَ زړونو خبرې ښه پيژنی اوهم دَدغه خبرونه هغه خبرې هم دی کومې چې دې خلقو پټې کړی دی که چرې تاسو باندې څه ښه حالت راځی مثلاً نصرت اوغنيمت نوهغوی دا خبره خفه کوی. اوکه چرې په تاسو څه خراب حالت راځی مثلاً ماتې اوقحط کالی نوپه هغې سره دوی خوشحالېږی او جمله شرطيه (إِنْ تَمْسَسْكُمْ الخ) ماقبل شرط (وَإِذَا لَقُوكُمْ الخ) سره متصل دې اودَدې دواړو په مينځ کښې جمله معترضه دد (اوهغه مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ الخ) ده. مطلب دا چې هغوی ستاسو په دښمنئ کښې حدته رسيدلی دی. نوبياتاسو هغوی سره (زوره) دوستانه ولې کوئ؟ تاسوله خودهغوی نه محتاط اوسيدل پکاردی. اوکه تاسودَهغوی په تکليفونو رسولوباندې صبر اوتقوی اختيار کړئ .وهغوی سره دَ دوستئ وغيره باره کښې دَالله تعالى نه ويريږئ نودَهغوی دهوکې به ستاسو هيڅ خراب نه کړی (لَا يَضُرُّكُمْ) دَ ضاد کسره اوراء سکون او ضمه او راء تشديد سره (هم قراءت دې) بيشکه الله تعالى ستاسو دَ اعمالو پوره عملی احاط کړې ده (يعلمون) ياء اوتاء سره دې لهذا هغه به ستو ته (او) هغوی ته بدله درکوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ، امة لفظ چونکه عام دې لهذا صحابه اوغيرصحابه ټولوته شامل دې.

**قوله** فى علم الله تعالى.

**سوال** فى علم الله اضافه څه فائده ده؟

جواب كنتم دَماضی صيغه په داسې حدوث باندې دلالت کوی کوم چې مسبوق بالعدم او منقطع بطريان العدم وی دَدې دَپاره فى علم اللهدَ لفظ اضافه اوکړه دې دَپاره چې مذکوره شك لرې شی ځکه چې دَالله تعالى علم ته نه عدم سابق صحيح دې اونه عدم لاحق.

**قوله** كائنين، دا لفظ مقدر منلوسره اشاره اوکړه چې بِحَبْلٍ مِن الله حال دې.

**قوله** لَاعَصْمَةَ لَهُمْ غيرذلك، په دې کښې مستثنى منه محذوف طرف ته اشاره ده.

**قوله** بَاءُو، بَوْءٌ، نه ماضی جمع مذکر غائب، هغه واپس شو.

**قوله** يُصَلُّونَ، حال د يجدون تفسير يصلون سره کولو کښې اشاره اوکړه چې يجدون

په معنی د يصلون دي. ځکه چې په سجده کښې تلاوت نه کيږي او هُمْ مقدر منلو سره د حال کيدو د طرف ته اشاره اوکړه. لهذا دا اعتراض ختم شو چې اوجز اومختصر دا وو چې وَيسجدون نې وئيلې.

**قوله**: بطانة، استر، بدن سرد لګيدلې کپړه. دا ډيرنيزدې دوست نه کنايه ده. جاء في الحديث، الانصار شعار والناس دثار. الشعار ثوبٌ على الجسد والدثار فوقهٗ.

**قوله**: الوقيعة جمع وقائع معنى فتنه او غيبت.

**قوله**: ذلك دې کښې اشاره ده چې د تفعلون مفعول محذوف دې.

**قوله**: فلا تُوالُوهُمْ دې کښې اشاره ده چې د شرط جزا محذوف ده.

**قوله**: وجملة الشرط متصلة بالشرط قبلُ. مطلب دادې چې د شرط اوجمله شرطيه په مينځ کښې فصل بالاجنبی نشته دې په دې وجه په مينځ کښې جمله معترضه ده او د جملې معترضې په مينځ کښې راتلل عامه خبره ده.

## [اياتونه: ١٢١-١٢٩]

{وَ} اذْكُرْ يَا مُحَمَّد {إِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ} من المدينة {تبوء} تُنْزِل {الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ} مَرَاكِز يَقِفُونَ فِيهَا {لِلْقِتَالِ وَاللَّهُ سَمِيعٌ} لِأَقْوَالِكُمْ {عَلِيمٌ} بِأَحْوَالِكُمْ وَهُوَ يَوْم أُحُد خَرَجَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَلْفٍ أَوْ إِلَّا خَمْسِينَ رَجُلًا وَالْمُشْرِكُونَ ثَلَاثَة آلَاف وَنَزَلَ بِالشِّعْبِ يَوْم السَّبْت سَابِع شَوَّال سَنَة ثَلَاث مِنْ الْهِجْرَة وَجَعَلَ ظَهْره وَعَسْكَره إلَى أُحُد وَسَوَّى صُفُوفهمْ وَأَجْلَسَ جَيْشًا مِنْ الرُّمَاة وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَبْد اللَّه بْن جُبَيْر بِسَفْحِ الْجَبَل وَقَالَ انْضَحُوا عَنَّا بِالنَّبْلِ لَا يَأْتُونَا مِنْ وَرَائِنَا وَلَا تَبْرَحُوا غُلِبْنَا أَوْ نُصِرْنَا {إِذْ} بَدَل مِنْ إِذْ قَبْله {هَمَّتْ} بَنُو سَلِمَة وَبَنُو حَارِثَة جَنَاحَا الْعَسْكَر {طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا} تَجْبُنَا عَنْ الْقِتَال وَتَرْجِعَا لَمَّا رَجَعَ عَبْد اللَّه بْن أُبَيّ الْمُنَافِق وَأَصْحَابه وَقَالَ عَلَامَ نَقْتُل أَنْفُسنَا وَأَوْلَادنَا وَقَالَ لِأَبِي جَابِر السَّلَمِيّ الْقَائِل لَهُ أَنْشُدكُمْ اللَّه فِي نَبِيّكُمْ وَأَنْفُسكُمْ لَوْ نَعْلَم قِتَالًا لَاتَّبَعْنَاكُمْ فَثَبَّتَهُمَا اللَّه وَلَمْ يَنْصَرِفَا {وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا} نَاصِرهمَا {وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ} لِيَثِقُوا بِهِ دُون غَيْره وَنَزَلَ لَمَّا هُزِمُوا تَذْكِيرًا لَهُمْ بِنِعْمَةِ اللَّه {وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ} مَوْضِع بَيْن مَكَّة وَالْمَدِينَة {وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ} بِقِلَّةِ الْعَدَد وَالسِّلَاح {فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} نِعَمه {إِذْ} ظَرْف لِنَصَرَكُمْ {تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ} تُوعِدهُمْ تَطْمِينًا {أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ أَنْ يُمِدَّكُمْ} يُعِينكُمْ {رَبُّكُمْ بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُنْزَلِينَ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {بَلَى} يَكْفِيكُمْ ذَلِكَ وَفِي الْأَنْفَال بِأَلْفٍ لِأَنَّهُ أَمَدَّهُمْ أَوَّلًا بِهَا ثُمَّ صَارَتْ ثَلَاثَة ثُمَّ صَارَتْ خَمْسَة كَمَا قَالَ تَعَالَى {إِنْ تَصْبِرُوا} عَلَى لِقَاء الْعَدُوّ {وَتَتَّقُوا} اللَّه فِي الْمُخَالَفَة {وَيَأْتُوكُمْ} أَيْ الْمُشْرِكُونَ {مِنْ فَوْرِهِمْ} وَقْتهمْ {هَذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ} بِكَسْرِ الْوَاو وَفَتْحهَا أَيْ مُعَلَّمِينَ وَقَدْ صَبَرُوا وَأَنْجَزَ اللَّه وَعْده بِأَنْ قَاتَلَتْ مَعَهُمْ الْمَلَائِكَة عَلَى خَيْل بُلْق عَلَيْهِمْ عَمَائِم صُفْر أَوْ بِيض أَرْسَلُوهَا بَيْن أَكْتَافهمْ {وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ} أَيْ

الإمْدَاد {إِلَّا بُشْرَىٰ لَكُمْ} بِالنَّصْرِ {وَلِتَطْمَئِنَّ} تَسْكُن {قُلُوبُكُمْ بِهِ} فَلَا تَجزع من كسرة الْعَدُوّ وَقِلّتكُم {وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ} يُؤْتِيه مَنْ يَشَاء وَلَيْسَ بكثرة الجند {لِيَقْطَعَ} مُتَعَلِّق بِنَصَرَكُمْ أَيْ لِيُهْلِك {طَرَفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا} بِالْقَتْلِ وَالْأَسْر {أَوْ يَكْبِتَهُمْ} يُذِلّهُمْ بِالْهَزِيمَةِ {فَيَنْقَلِبُوا} يَرْجِعُوا {خَائِبِينَ} لَمْ يَنَالُوا مَا راموه وَنَزَلَتْ لَمَّا كُسِرَتْ رُبَاعِيَته صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَشُجَّ وَجْهه يَوْم أُحُد وَقَالَ كَيْفَ يَفْلَح قَوْم خَضَبُوا وَجْه نَبِيّهمْ بِالدَّمِ {لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ} بَلْ الْأَمْر لِلَّهِ فَاصْبِرْ {أَوْ} بِمَعْنَى إلَى أَنْ {يَتُوبَ عَلَيْهِمْ} بِالْإِسْلَامِ {أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ} بِالْكُفْرِ {وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا {يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ} الْمَغْفِرَة لَهُ {وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ} تَعْذِيبه {وَاللَّهُ غَفُورٌ} لأوليائه {رَحِيمٌ} بأهل طاعته

**ترجمه:** او اې محمد ﷺ هغه وخت یادکړه کوم وخت چې ته دَ مدینې نه دَ خپل اهل طرف نه وتلې وې د مسلمانانو دَ جنګ په مناسب مراکزنو باندې اودرولوسره اوالله تعالی دَهغوی اقوال ډیر اوریدونکې اودَهغوی احوال ډیرپیژندونکې دې اوداد أحد ورځ وه. رسول الله ﷺ زر یا پنځوس کم زر کسانوسره وتلې وو اودَمشرکانو تعداد درې زره وو. په کال ۳هجری دَ شوال دَمیاشتې اووم تاریخ دَ هفتې په ورځ په کنده کښې نزول اوفرمائیلو اودَ احد غر طرف ته ئې خپله اودَلښکر شاکړه او حضورپاك دَ لښکرصفونه صحیح کړل اودَ غشوویشتونکیوه دسته په کوم باندې چې حضرت عبدالله بن جبیر ﷺ سالارمقررکړې وو دَ غر په غاړه باندې مقررکړل او ونی فرمائیل چې دَ غشوویشتلو په ذریعه (دښمن) ګډوډکولوسره تاسوزمونږ دفاع کوئی دې دَپاره چې دښمن زمونږ دَشادَ طرف نه په مونږ رانشی اوخپل ځائی هیڅ کله پرینږدئی که مونږ مغلوب شو اوکه غالب. **کله چې تاسونه** دوه ډلې دا اذ سابقه اذ نه بدل دې بنوسلمه او بنوحارثه چې دَ لښکردوه متې وې داخیال اوکړو چې همت یلې یعنی په جنګ کښې بزدلی اوښائی اوواپس لاړشی. خو عبدالله بن ابی منافق اودَهغه ملګری داسې ویناکولوسره واپس شو چې مونږ ولې خپل ځانونه اوخپل اولاد قتل کړو؟ او (عبدالله بن ابی) ابوحاتم سلمی نه وئیلی وو چې تاسوته ستاسو دَ ځانونو اوستاسودَ نبی باره کښې دَحفاظت قسم درکوم وئی که چرې مونږ (دا) جنګ ګڼړلو نوضروربه مو ستاسو ملګرتیاکوله. (یعنی دا جنګ نه دې هلاکت دې) نو الله تعالی دواړو جماعتونوته ثابت قدمی ورکړه اوداخلق واپس نه شو، **حال دادې چې الله تعالی دَدواړو امدادی وو او مسلمانانوله خو هم په الله تعالی باندې یقین لرل پکاردی** نه چې په بل چاباندې (راتلونکې آیت) دَالله تعالی دَ نعمتونو یادګیرنې ورکولودَپاره هغه وخت نازل شوکوم وخت چې مسلمانانو شکست اوخوړلو. **اویقینًا بدرکښې چې دَمکې اومدینې** په مینځ کښې یومقام دې **الله تعالی ستاسو امداداوکړو حالانکه تاسو** په تعداد کښې او دَ

آلاتو په اعتبارسره کم وئ. دَالله تعالى نه ويريږئ دې دَپاره چې تاسو دَهغه دَنعمتونو
شکرګذار جوړشئ. هغه وخت ياد کړئ کله چې تاسو دَمؤمنانو دَ زړونو دَ مطمئن کولو دَپاره
مؤمنانوسره وعده کړې وه، آياستاسودَپاره کافي نه دې چې ستاسو پروردګار درې زره نازل کړې
شوې فرښتوسره ستاسوامداداوکړي (منزلين) کښې تخفيف اوتشديددواړه قراءتونه دي.
پيشکه دامقداربه ستاسودَپاره کافي وي. او په سورت انفال کښې دَ زرو ذکردې، څکه
چې په شروع کښې دَهغوى امداد په يوزر سره کړې وو بيادرې زره شوې بيا پنځه زرد
لکه چې الله تعالى اوفرمائيل که تاسو دښمن سره دَمقابله په وخت صبراوکړئ اودَ الله
تعالى دَمخالفت نه ويريږئ اومشرکان چې کوم وخت په تاسو باندې ناڅاپي حمله اوکړي
نوالله تعالى پنځه زره نشان لګولې (منتخب) فرښتوسره به ستاسو امدادکوي. دَواؤكسره
اوفتحه سره. يعنى دَ جنګ آداب زده کولوسره (ړومبى صورت کښې) يا ترتيب يافته
(دويم صورت کښې) اوهغه خلقو صبراوکړو، اوالله تعالى خپله وعده پوره کړه. په داسې
توګه چې فرښتو اَبلَق اسونوباندې سوريدوسره مشرکانو سره جنګ اوکړو چې زيړ
ياسپين پټکى ئې وهلې وو اودَهغې شملې دَدواړو اوږو په مينځ کښې زوړندوې. اودا
امداد الله تعالى څکه اوکړو دې دَپاره چې تاسو خوشحال شئ اودې دَپاره چې ستاسو زړونه په
دې سره مطمئن شى اوتاسو دَدښمن دَ کثرت او د خپل ځان دَقلت دَ وجې نه اونه ويريږئ.
اونصرت خودَ زبردست او حکمت والا الله دَطرف نه دې چاله چې غواړى ورکوي. اوهغه دَ
لښکر په کثرت باندې موقوف نه دې. (اودا نصرت دَدې دَپاره وو) دې دَپاره چې کفر
کونکونه يوه ډله دَقتل اوقيد په ذريعه هلاک کړي. (ليقطع) نصرکم متعلق دې يادَ شکست په
ذريعه هغوى ذليل کړى اوهغوى ناکامه شي واپس شي اوهغوى خپل مطلوب حاصل نه
کړې شى. اوکوم وخت چې په احدکښې دَرسول الله ﷺ رباعى مبارك شهيدان شو
اودحضورپاك مخ مبارك زخمي شو نوحضورپاك اوفرمائيل چې هغه قوم به څنګه فتح
ياموچې چاچې دَخپل نبى مخ په وينو ککړکړو. ستاسو په دې معامله کښې هيڅ دخل نشته
بلکه معامله دَالله تعالى په لاس کښې ده، بس تاسوصبراوکړئ. که هغوى ته دَاسلام
توفيق ورکړي دَهغوى توبه قبوله کړي يا هغوى ته عذاب ورکړي. اَوْ په معنى د الى ان دې. څکه
چې هغه دکفردَ وجې نه ظالمان دي. اوڅه چې په آسمانونو او زمکه کښې دى دَ الله ملک دې. دَ
ملکيت په اعتبار سره او دَ مملوکيت په اعتبارسره. هغه چې دَچامغفرت غواړى دَهغه
مغفرت کوى اوچاته چې عذاب ورکول غواړى هغه ته عذاب ورکوي. او الله خپل دوستانو لره
ډيرمعاف کونکې او په اطاعت کونکوباندې رحم کونکې دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: غَدَوْتَ، غَدُوٌ نه ماضي واحد مذكر حاضر معروف. الغدو د سحر وخت كښې وتل.

**قوله**: تُبَوِّءُ، تَبْوِئَة نه مضارع واحد مذكر حاضر ته ځائې وركوې، راكوزه وې ځې، دَدې تعديه مفعول ثاني طرف ته بنفسه هم كيږي او باللام هم.

**قوله**: اِذْهَمَّتْ طَّائِفَتَانِ، دا اِذْ د سابق اِذْغَدَوْتَ سره بدل دې نه چې سميع عليم لكه چې بعض حضراتو وئيلي دي ځكه چې سميع وعليم كيدل د يو زمان سره مقيد نه دي.

**قوله**: بدر دَمكې او مدينې په مينځ دَ يو كوهي نوم دې. دا كوهې دَ بدر نومې يو سړى وو هم دَهغه په نوم باندې دا ځائې په نوم شو.

**قوله**: مُسَوِّمِيْنَ واؤ كسره سره، يعنى فرښتو دَ خپلو اسونو په لكوا و تندو باندې او دَخپل لباس په ذريعه علامت لګولې وو او كه چرې واؤ فتحه سره وى نو مطلب به وى چې هغه اسونو باندې نشانونه لګيدلې وو.

**قوله** اى مُعْلَمِيْنَ دا دَ مُسَوِّمِيْنَ تفسير دې.

**قوله** بُلْقٌ، دَ اَبْلَقْ جمع ده برګ.

**قوله**: اَرْسَلُوْهَا بَيْنَ اكتافهم يعنى دَخپلو پټكو شملې په ملا باندې زوړند كړې وې.

**قوله**: او بمعنى اِلى اَنْ، كلمه د اَوْ دَ الى اَنْ، په معنى كښې دَاخستلو دَ وجې نه دې چې يَتُوْبَ فعل دې او ماقبل كښې اَلْاَمر او شئٌ دواړه اسم دى، لهذا دَ فعل عطف په اسم باندې صحيح نه دې او معنى دَ نه صحيح كيدو دَ وجې نه لَيْسَ باندې هم عطف صحيح نه دې. او اَوْ بمعنى اِلى بكثرت مستعمل دې.

**[اياتونه: ۱۳۰-۱٤۳]**

{يايها الذين آمنوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُضَاعَفَةً} بِأَلِفٍ وَدُونهَا بِأَنْ تَزِيدُوا فِي الْمَال عِنْد حُلُول الْأَجَل وَتُؤَخِّرُوا الطَّلَب {وَاتَّقُوا اللَّه} بِتَرْكِهِ {لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تَفُوزُونَ {وَاتَّقُوا النَّار الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ} أَنْ تُعَذَّبُوا بِهَا {وأطيعوا الله والرسول لعلكم ترحمون} {وَسَارِعُوا} بِوَاوٍ وَدُونهَا {إِلَى مَغْفِرَة مِنْ رَبّكُمْ وَجَنَّة عَرْضهَا السَّمَاوَات وَالْأَرْض} أَيْ كَعَرْضِهِمَا لَوْ وُصِلَتْ إِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى وَالْعَرْض السَّعَة {أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ} اللَّه بِعَمَلِ الطَّاعَات وَتَرْك الْمَعَاصِي {الَّذِينَ يُنْفِقُونَ} فِي طَاعَة اللَّه {فِي السَّرَّاء وَالضَّرَّاء} الْيُسْر وَالْعُسْر {وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظ} الْكَافِّينَ عَنْ إمْضَائِهِ مَعَ الْقُدْرَة {وَالْعَافِينَ عَنْ النَّاس} مِمَّنْ ظَلَمَهُمْ أَيْ التَّارِكِينَ عُقُوبَتهمْ {وَاَللَّه يُحِبّ الْمُحْسِنِينَ} بِهَذِهِ الْأَفْعَال أَيْ يُثِيبهُمْ {وَاَلَّذِينَ إذَا فَعَلُوا فَاحِشَة} ذَنْبًا قَبِيحًا كَالزِّنَا {أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسهمْ} بِمَا دُونه كَالْقُبْلَةِ {ذَكَرُوا اللَّه} أَيْ وَعِيده {فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ وَمَنْ} أَيْ لَا

{يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ وَلَمْ يُصِرُّوا} يُدَاوِمُوا {عَلَى مَا فَعَلُوا} بَلْ أَقْلَعُوا عَنْهُ {وَهُمْ يَعْلَمُونَ} أَنَّ الَّذِي أَتَوْهُ مَعْصِيَةٌ {أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ مَغْفِرَةٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَجَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا} حَالٌ مُقَدَّرَةٌ أَيْ مُقَدَّرِينَ الْخُلُودَ فِيهَا إِذَا دَخَلُوهَا {وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ} بِالطَّاعَةِ هٰذَا الْأَجْرُ وَنَزَلَ فِي هَزِيمَةِ أُحُدٍ {قَدْ خَلَتْ} مَضَتْ {مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ} طَرَائِقُ فِي الْكُفَّارِ بِإِمْهَالِهِمْ ثُمَّ أَخْذِهِمْ {فَسِيرُوا} أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ {فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ} الرُّسُلَ أَيْ آخِرُ أَمْرِهِمْ مِنَ الْهَلَاكِ فَلَا تَحْزَنُوا لِغَلَبَتِهِمْ فَأَنَا أُمْهِلُهُمْ لِوَقْتِهِمْ {هٰذَا} الْقُرْآنُ {بَيَانٌ لِلنَّاسِ} كُلِّهِمْ {وَهُدًى} مِنَ الضَّلَالَةِ {وَمَوْعِظَةٌ لِلْمُتَّقِينَ} مِنْهُمْ {وَلَا تَهِنُوا} تَضْعُفُوا عَنْ قِتَالِ الْكُفَّارِ {وَلَا تَحْزَنُوا} عَلَى مَا أَصَابَكُمْ بِأُحُدٍ {وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ} بِالْغَلَبَةِ عَلَيْهِمْ {إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} حَقًّا وَجَوَابُهُ دَلَّ عَلَيْهِ مَجْمُوعُ مَا قَبْلَهُ {إِنْ يَمْسَسْكُمْ} يُصِبْكُمْ بِأُحُدٍ {قَرْحٌ} بِفَتْحِ الْقَافِ وَضَمِّهَا جَهْدٌ مِنْ جُرْحٍ وَنَحْوِهِ {فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ} الْكُفَّارَ {قَرْحٌ مِثْلُهُ} بِبَدْرٍ {وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا} نُصَرِّفُهَا {بَيْنَ النَّاسِ} يَوْمًا لِفِرْقَةٍ وَيَوْمًا لِأُخْرَى لِيَتَّعِظُوا {وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ} عِلْمَ ظُهُورٍ {الَّذِينَ آمَنُوا} أَخْلَصُوا فِي إِيمَانِهِمْ مِنْ غَيْرِهِمْ {وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَاءَ} يُكْرِمُهُمْ بِالشَّهَادَةِ {وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ} الْكَافِرِينَ أَيْ يُعَاقِبُهُمْ وَمَا يُنْعِمُ بِهِ عليهم استدراج {وَلِيُمَحِّصَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا} يُطَهِّرَهُمْ مِنَ الذُّنُوبِ بما يصيبهم {ويمحق} يهلك {الكافرين} {أَمْ} بَلْ أَ {حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ ولما} لم {يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ} عِلْمَ ظُهُورٍ {وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ} فِي الشَّدَائِدِ {وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ} فِيهِ حَذْفُ إِحْدَى التَّاءَيْنِ فِي الْأَصْلِ {الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَلْقَوْهُ} حَيْثُ قُلْتُمْ لَيْتَ لَنَا يَوْمًا كَيَوْمِ بَدْرٍ لِنَنَالَ مَا نَالَ شُهَدَاؤُهُ {فَقَدْ رَأَيْتُمُوهُ} أَيْ سَبَبَهُ الْحَرْبَ {وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ} أَيْ بُصَرَاءَ تَتَأَمَّلُونَ الْحَالَ كَيْفَ هِيَ فَلِمَ انْهَزَمْتُمْ

---

**ترجمه**: اې ایمان والودا زیاتی سودخوړل پرېږدئی (مُضعَفَةً) الف .او بغیرالف په دواړو طریقودې. په داسې توګه چې دمودې پوره کیدو سره مالی مطالبه زیاته کړئی. او په مطالبه کښې مهلت ورکړئی (اکل ربا) پرېږدئی الله تعالی نه اووېرېږئی چې تاسو کامیاب شئی. اودهغه اور نه اووېرېږئی کوم چې (اصالةً) دکافرانودپاره تیارکړې شوې دې چې تاسو ته په هغې کښې عذاب درکړې شی اودالله تعالی اودهغه د رسول اطاعت کوئی دې دپاره چې په تاسو رحم اوکړې شی اودخپل رب مغفرت او جنت طرف ته منډه کړئی دکوم وسعت چې زمکه اوآسمان دې. (سَارِعُوْا) کښې ورانديې دَ سین نه واؤ او بغیرواؤ دواړه (قراءتونه) دی. یعنی دَ (جنت وسعت) دَ دې دواړو دَ وسعت په شان دې که چرې یو بل سره یوځائی کړې شی او دعرض معنی دَ وسعت ده، عمل اطاعت اوترك معاصی کولوسره کوم چې دَالله تعالی طرف ته دَ ویریدونکودپاره تیارکړې شوې دې دا هغه خلق دی فراغت اوتنګدستئی (دواړو حالتو) کښې دَالله تعالی په اطاعت کښې خرچ کوی (یعنی مالدارئی او غریبئ دواړو کښې خرچ کوی) او غصه څکونکی دی یعنی دَ قدرت نه باوجود غصه برداشت کونکی دی او

کو مر خلقو چې په هغوی باندې ظلم کړې دې هغوی ته معافي کونکی دی یعنی دَ هغوی سزا ترك كونكى دى الله تعالى دَ دغه اعمالو په ذريعه نیکانو سره محبت کونکې دې یعنی هغوی ته ثواب ورکونکې دې او دا هغه خلق دی چې کله یو ناخوښه حرکت یعنی ناخوښه گناه او کړی مثلاً زنا یا دَ زنانه کم دَ ښکلولو په ذریعه په خپل ځان باندې ظلم او کړی نو الله تعالی یعنی دَ هغه وعید یادوی او دَ خپلو گناهونو نه معافي غواړی او دَ الله تعالی نه سوا څوک گناهونه معاف کولې شی؟ او دا خلق په خپلو کړو باندې کلکیږی نه بلکه دَ هغې نه منع کیږی حال دادې چې هغوی دَ دې (قباحت) پیژنی چې دَ هغوی نه کوم کار شوې دې هغه گناه ده دَ داسې خلقو بدله دَ هغوی دَ پروردگار دَ طرف نه مغفرت دې او داسې باغونه دی دَ کوم لاندې چې نهرونه بهیږی په هغې کښې به دوی همیشه همیشه دَپاره وی کله چې په دې کښې داخل شی (خلدین) حال مقدره دې یعنی دَ هغوی دَپاره په دې باغونو کښې او سیدل مقدر کړې شوی دی. دَ اطاعت کونکو دَپاره دا بهترین اجردې او دَ احد دَ شکست باره کښې (راتلونکې آیت) نازل شو، تاسو نه وړاندې هم کافرانو ته مهلت ورکول او بیا دَ راگیرولو واقعات شوی دی نو اې مؤمنانو په زمکه کښې گرځئی راگرځئی او دَ رسولانو تکذیب کونکو په انجام باندې غور او فکر کوئی یعنی دَ هغوی انجام هم هلاکت دې. لهذا تاسو دَ هغوی په (وختې) غلبه باندې خاطرمه درنه وئی زه هغوی ته (دَ هغوی دَ هلاکت) دَ وخت پورې مهلت ورکوم. دا قرآن دَ ټولو خلقو دَپاره بیان دې. او په دوی کښې دَ پرهیزگارانو دَپاره دَ گمراهئی نه هدایت او نصیحت دې او مه همت یلئ یعنی دَ کافرانو په مقابله کښې په جنگ کښې کمزورئی کښې مه پریوځئی. او په احد کښې چې څه ستاسو مخې ته راغلل په هغې سره خفه کیږئی مه او که چرې تاسو په صحیح معنی کښې مؤمنان پاتې شوئی نو په دوی به فتح حاصولو سره هم تاسو غالب کیږئی او په جواب شرط باندې دَ ماقبل مجموعه یعنی (فسیروا اولاتهنوا الخ) دلالت کوی یعنی که تاسو په احد کښې زخمی شوئی (قرح) کښې دَ قاف فتحه سره او دَ دې ضمه سره. دَ زخم وغیره تکلیف، نو په بدر کښې کافرانو ته هم دغه شان زخم لگیدلې دې او مونږ دغه ورځې په خلقو کښې اړو را اړو (یعنی) بدلوو رابدلو. یوه ورځ دَ یو فریق په حق کښې او بله ورځ دَ بل فریق په حق کښې دې دَپاره چې خلق عبرت حاصل کړی. (دَ احد شکست) په دې وجه باندې وو چې مخلص مؤمنان دَ نورو (غیر مخلص) نه جدا کولو سره ښکاره کړی او په تاسو کښې بعض ته شهادت درکړو او دَ شهادت په ذریعه هغوی ته اعزاز یعنی اجر ورکړو. الله تعالی ظالمانو یعنی کافرانو سره محبت نه کوی یعنی هغوی ته به سزا ورکوی. او په هغوی باندې چې کوم څه انعام کیږی هغه مهلت دې او دې دَپاره چې الله تعالی دَ ایمان والو دَ دغه تکلیف په ذریعه کوم چې هغوی ته رسیدلې دَ گناهونو نه پاک صفا کړی او کافران هلاک کړی کیدې شی تاسو په دې خیال کښې یئې چې په جنت کښې به داخل شئی حالانکه تر دغه وخت تاسو نه دَ علم ظهور په

نو که هغه خلق نه دی ښکاره کړی چې په تاسو کښې جهاد کونکی څوک دی؟ او په تکلیفونو کښې صبر کونکی څوک دی؟ دَ جنګ نه وړاندې دَ مرګ خواهش کولو په اصل کښې یوه تاء حذف کړې شوې ده، کوم وخت چې تاسو ونیلی وو چې افسوس زمونږ دَپاره هم یوه ورځ لکه دَ بدر وې دې دَپاره چې مونږ هم هغه حاصل کړی وی کوم چې دَ بدر شهداؤ حاصل کړل پس تاسو مرګ یعنی دَهغې سبب چې هغه جنګ دې په غړیدلو سترګوسره کتلو یعنی دَ ماتې خوړلو په اسباب کښې موغور اوفکر کولو چې دا شکست دَ کومو اسبابو په وجه سره اوشو یعنی تاسو ولې شکست اوخوړلو؟

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: کَعَرْضِهِمَا دې کښې اشاره ده چې حرف تشبیه اومضاف محذوف دې.

**سوال**: دَمضاف محذوف منلو څه ضرورت پیښ شو؟

**جواب**: دې دَپاره چې دَ جنت دَ وسعت تشبیه زمکې اوآسمان سره صحیح شی، ځکه چې دَ جنت پلنوالې مقوله د کم متصل یعنی په مقدارسره دې اودَزمکې اوآسمان مقوله په جوهرسره دې حالانکه دَ تشبیه دَ جوازدَپاره دَمقوله متحد کیدل ضروری دی اوکله چې عرض محذوف اومنلې شو نودواړه یعنی مشبه او مشبه به مقوله د کم متصل نه شو، لهذا تشبیه صحیح شوه.

**قوله**: بِمَا دونه، دَدې حذف ضرورت ځکه پیښ شو چې عطف صحیح شی ځکه چې دَعطف دَپاره مغایرت ضروری دې.

**قوله**: ای وعیده، دَدې اضافه مقصد دَدې شبه جواب دې چې دَالله تعالی د ذکرنه صرف استغفار مراد اخستل ضروری نه دی.

**جواب**: دَ ذکر نه مراد دَهغه دَ وعید ذکردې.

**قوله**: حال مقدرة دادَدې شبه جواب دې چې دَ حال دَپاره مقارنت یعنی دَحال او ذوالحال زمانه متحد کیدل ضروری دی حالانکه خلودنفس به دَ جزاء دَ ثبوت نه پس کیږی.

**جواب**: دَدوی دَپاره خلود مقدرکړې شوې دې.

**قوله**: وَجوابه دَلّ علیه مجموع ماقبلهٗ دادَ یوسوال مقدر جواب دې.

**قوله**: اِنْ کُنْتُمْ مؤمنین شرط دې دَدې جزاء که چرې دَماقبل جمله فَسِیْرُوْا فِی الارض الخ دې نوداصحیح نه دې ځکه چې دَ ماقبل جمله فَسِیْرُوْا فی الارض نه مفهوم دې.

**قوله**: لِیَتَّعِظُوْا دا لفظ محذوف منلوسره مفسرعلام اشاره اوکړه چې دَ لِیَعْلَمَ عطف په محذوف باندې دې.

**قوله**: يكرمهم بالشهادة دې كښې اشاره ده چې شهداء دَ شهيد جمع ده نه چې دَ شاهد.

**قوله**: بل، يعنى ام، په معنى دَ بل دى. دې كښې اشاره ده چې دا أم منقطعه دې نه چې متصله چې د عديل دَ (مقابل) ضرورت وى.

**قوله**: اى بُصَرَاءُ.

**سوال**: فَقَدْ رَأَيْتُمُوْهُ نه پس انتم تنظرون وَنيلو څه مطلب دې؟

**جواب**: دَ رومبى رويت نه مراد رويت بصرى دې. دَ رَأَيْتُمُوْهُ ضمير مفعولى دَمرګ طرف ته راجع دې مګر مرګ چونکه په نظر راتلونکې څيز نه دې په دې وجه ئې سبب مضاف محذوف اومنلو يعنى سبب دَ مرګ يعنى حرب ئې اوليدلو اوانتم تنظرون نه صاحب بصيرت اوعلم ودانش کيدل مراد دى لهذا معلومه شوه چې دواړه معنې جدا جدا دى.

**[اياتونه: ١٤٤ - ١٤٨]**

وَنَزَلَ فِي هَزِيمَتِهِمْ لَمَّا أُشِيعَ أَنَّ النَّبِيَّ قُتِلَ وَقَالَ لَهُمُ الْمُنَافِقُونَ إِنْ كَانَ قُتِلَ فَارْجِعُوا إِلَي دِينِكُم {وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتِلَ} كَغَيْرِهِ {انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ} رَجَعْتُمْ إِلَي الْكُفْرِ وَالْجُمْلَة الأَخِيرَة مَحَلّ الاِسْتِفْهَام الإِنْكَارِيّ أَيْ مَا كَانَ مَعْبُودًا فَتَرْجِعُوا {وَمَنْ يَنْقَلِبْ عَلَى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا} وَإِنَّمَا يَضُرّ نَفْسه {وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ} نِعَمه بِالثَّبَاتِ {وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ} بِقَضَائِهِ {كِتَابًا} مَصْدَر أَيْ كَتَبَ اللَّه ذَلِكَ {مُؤَجَّلًا} مُؤَقَّتًا لَا يَتَقَدَّم وَلَا يَتَأَخَّر فَلِمَ انْهَزَمْتُمْ وَالْهَزِيمَة لَا تَدْفَع الْمَوْت وَالثَّبَات لَا يَقْطَع الْحَيَاة {وَمَنْ يُرِدْ} بِعَمَلِهِ {ثَوَابَ الدُّنْيَا} أَيْ جَزَاءَهُ مِنْهَا {نُؤْتِهِ مِنْهَا} مَا قُسِمَ لَهُ وَلَا حَظّ لَهُ فِي الْآخِرَة {وَمَنْ يُرِدْ ثَوَابَ الْآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا} أَيْ مِن ثوابها {وسنجزي الشاكرين} {وكأين} كم {من نبي قاتل} وَفِي قِرَاءَة قُاتِلَ وَالْفَاعِل ضَمِيره {مَعَهُ} خَبَر مُبْتَدَؤُهُ {رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ} جُمُوع كَثِيرَة {فَمَا وَهَنُوا} جَبُنُوا {لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ} مِنَ الْجِرَاح وَقَتْل أَنْبِيَائِهِمْ وَأَصْحَابهمْ {وَمَا ضَعُفُوا} عَنِ الْجِهَاد {وَمَا اسْتَكَانُوا} خَضَعُوا لِعَدُوِّهِمْ كَمَا فَعَلْتُمْ حِين قِيلَ قُتِلَ النَّبِيّ {وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ} عَلَي الْبَلَاء أَيْ يُثِيبهُمْ {وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ} عِنْد قَتْل نَبِيّهمْ مَعَ ثَبَاتهمْ وَصَبْرهمْ {إِلَّا أَنْ قَالُوا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا} تَجَاوُزنَا الْحَدّ {فِي أَمْرِنَا} إِيذَانًا بِأَنَّ مَا أَصَابَهُمْ لِسُوءِ فِعْلهمْ وَهَضْمًا لِأَنْفُسِهِمْ {وثبت أقدامنا} بالقوة علي الجهاد {وانصرنا على القوم الكافرين} {فَآتَاهُمُ اللَّهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا} النَّصْر وَالْغَنِيمَة {وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ} أَيْ الْجَنَّة وَحُسْنه التَّفَضُّل فَوْق الِاسْتِحْقَاق {والله يحب المحسنين}

**ترجمه**: راتلونکې آيت دَ صحابه کرامو باره کښې هغه وخت نازل شوکوم وخت چې داخبره مشهوره شوه چې محمد ﷺ شهيدکړې شو اوصحابه (مخلصين) ته منافقينواووئيل چې اوس محمد ﷺ قتل کړې شو نودَخپل (سابق) دين طرف ته واپس

راز کرځئي نو (وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ الخ) نازل شو. اومحمد ﷺ خو بس يو رسول دی، او ده څخه وړاندې نور رسولان هم تير شوي دي نو که هغه وفات شي يا قتل کړې شي نو آيا تاسو به الټه خپې واپس ګرځئي؟ يعنې د کفر طرف ته به واپس کيږئي؟ او آخري جمله د استفهام انکاري په محل کښې ده، يعنې هغه معبود نه وو (چې د هغه د مرګ د وجې نه) تاسو واپس اوګرځئي او څوک چې الټه خپې (د کفر طرف ته) اوګرځيدو نو هغه به د الله تعالى هيڅ نقصان هم اونه کړي بلکه پخپله به خپل نقصان کوي. او الله تعالى به ډير زر د هغه د نعمتونو شکر کونکوته د ثواب په صورت کښې ښه بدله ورکوي. او ممکن نه ده چې ساوالا په خپل مقرر وخت باندې د الله تعالى د قضاء نه بغير مړشي (كِتَابًا) مصدر دې يعنې الله تعالى د مرګ وخت مقرر ليکلې دې. مرګ نه وړاندې کيږي او نه روستو کيږي نو بيا تاسو ولې همت بيلو؟ د همت بيلل مرګ نه شي روستو کولې او ثابت قدم او سيدل ژوندنه شي ختمولې. او کوم سړي چې په خپل عمل سره د دنيا فائده غواړي يعنې د دنيا صله غواړي نو مونږ به د هغې نه کوم چې د هغه په قسمت کښې وي هغه ته ورکړو او څوک چې د آخرت نفع غواړي نو مونږ به هغه ته د هغې ثواب ورکړو او مونږ به ډير زر شکر کونکوته بدله ورکوو او څومره انبياء کرام قتل کړې شوي دي او په يو قراءت کښې قَاتَلَ دې او فاعل د دې ضمير دې. چې هغوی سره ډير د الله والا وو. مَعَهُ خبر دې او رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ د دې مبتداء دې، لوئى جماعت.

**دويمه ترجمه:** او د ډيرو انبياء کرامو هم رکاب کيدو سره ډيرو الله والا جهاد کړې دې. کوم چې هغوی ته زخمونه او د هغوی انبياء کرامو او اصحابوته د الله په لار کښې پيښ شوي دي په هغې سره خو نه هغوی همت بيلو او نه هغوی په جهاد کښې کمزوري پاتې شو او نه هغوی د خپل دښمن نه اوويريدل لکه چې تاسو اوکړل چې کله مشهوره شوه چې رسول الله ﷺ شهيد کړې شو. او الله تعالى په مصيبتونو باندې صبر کونکي دوستان ساتي يعنې هغوی ته اجر ورکوي. د هغوی د نبي د قتل په وخت د هغوی د ثابت قدمئ او صبر نه باوجود د هغوی خو بس هم دومره دعا وه چې دعا به ئې کوله اې زمونږ پروردګار زمونږ ګناهونه او زمونږ په معامله کښې زمونږ زياتي يعنې زمونږ د حد نه تجاوز کول معاف کړې، د دې د ښکاره کولو د پاره کوم څه چې هغوی ته مخې ته شو هغه د هغوی د بد عملو د وجې نه وؤ او د خپل کمزورئ ښکاره کولو د پاره وو. او په جهاد کښې طاقت راکولو سره مونږ ثابت قدم اوساتې او مونږ له په کافرانو باندې غلبه راکړې نو الله تعالى هغوی ته د دنيا عوض هم ورکړو يعنې نصرت او غنيمت او د آخرت ئې هم ښکلې بدله ورکړه. او هغه جنت دې او د ثواب حسن، د استحقاق نه زيات ورکول دي او الله تعالى نيکانو خلقو سره محبت ساتي.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** الجملة الاخیرة محل الاستفهام الانکاری. مطلب دادې چې اَفَاِنْ مَّاتَ باندې کوم همزه استفهام داخل دې هغه په اصل کښې اِ نْقَلَبْتُمْ عَلٰی اَعْقَابِکُمْ باندې داخل دې اوهم دغه محل دَ استفهام دې. تقدیری عبارت دادې اَانْقَلَبْتُمْ عَلٰی اَعْقَابِکُمْ اِنْ مَّاتَ اَوْقُتِلَ الخ، ای لاینبغی منکم الانقلاب والارتداد لان محمدًا ﷺ مبلغ لاَ مَعْبُوْدٌ لهذا اوس دا اعتراض نه واقع کیږی چې دَمرګ اوقتل سره دَ سوال څه معنی؟

**قوله**: بقضائه، دَ اِذن تفسیر قضاءٌ سره کولو کښې ئې دَیوسوال جواب ورکړې دې.

**سوال**: مَاکَانَ لِنُفْسٍ اَنْ تَمُوْتَ اِلاَّ بِاِذْنِ اللهِ نه معلومیږی چې دَ انسان مرګ دَهغه په اختیارکښې دې په دې وجه چې دَ مرګ نسبت نفس طرف ته کړې شوې دې.

**جواب**: اِذن په معنی دَ قضاء دې.

**قوله**: مصدرٌ یعنی کتابًا مفعول له نه دې ځکه چې دَمفعول له په صورت کښې معنی صحیح نه ده. کتابًا مفعول مطلق دَپاره دَتاکیدکیدو دَوجې نه منصوب دې تقدیری عبارت دادې. کَتَبَ الموتَ کِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ط مُّؤَجَّلًا دَ کتابًا صفت دې او ابن عطیه رحمه الله ورته منصوب علی التمیز وئیلی دی.

**قوله**: جزاء دادَ یوشبه جواب دې.

**شبه**: دَدې شبه جواب دې چې دَ ثواب اطلاق دَ دنیا په اجرباندې نه کیږی دَ ثواب اطلاق خو په اجر آخرت باندې کیږی.

**جواب**: حاصل دادې چې ثواب په معنی دَجزاء دې دَ کوم اطلاق چې په اجر آخرت او صله دَدنیا دواړو باندې کیږی خاص وئیلوسره عام مراددې.

**قوله**: فیها اضافه کولوسره اشاره اوکړه چې دَ ثواب اضافت دَ دنیاطرف ته اضافت مظروف الی الظرف دې. لهذا دا اعتراض ختم شوې دې چې دنیا نه دَ ثواب فاعل دې اونه مفعول لهذا دَ ثواب دَ اضافت دَ دنیاطرف ته څه معنی؟

**نوټ**: بعض نسخو کښې جزاءمنها په ځائې جزاءفیها دې کوم چې زیات صحیح دې. مذکوره تشریح دَ جزاءفیها دَ نسخې مطابق کړې شوې ده.

**قوله**: کَـاَیِّنْ دا په اصل کښې اَیٌّ وو، په دې باندې کاف تشبیه داخل کړو او دا نون، نون تنوین دې خلاف قیاس دا ئې باقی ساتلې دې کَـاَیِّنْ په معنی د کم خبریه دَ پاره دَ تکثیر ده.

**قوله** مَعَهُ خبر مقدم دی او ربيون مبتداء مؤخر ده مبتداء خبر مقدم سره ملاؤشوه جمله اسميه كيدو سره حال دی.

**قوله** وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا ، الخ قَوْلَهُمْ، دَ كَانَ خبر مقدم او أن قَالُوا په تاويل د مصدر كيدو سره دَ كَانَ اسم مؤخر دی. ابن كثير رحمه الله او عاصم رحمه الله قَوْلُ ،هُمْ دَ كَانَ اسم كيدو دَ وجې نه مرفوع لوستلې دی په دې صورت كښې أن قَالوا به دَ كَانَ خبر وی

**[اياتونه:۱٤۹-۱۵۵]**

{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا} فِيمَا يامرونكم به {يردكم} إلي الكفر {علي أعقابكم فتنقلبوا خاسرين} {بَلِ اللَّهُ مَوْلَاكُمْ} نَاصِرُكُمْ {وَهُوَ خَيْرُ النَّاصِرِينَ} فاطيعوه دونهم {سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ} بِسُكُونِ الْعِين وَضَمِّهَا الْخَوْف وَقَدْ عَزَمُوا بَعْد ارْتِحَالهمْ مِنْ أُحُد عَلَي الْعَوْد وَاسْتِئْصَال الْمُسْلِمِينَ فَرَعَبُوا وَلَمْ يَرْجِعُوا {بِمَا أَشْرَكُوا} بِسَبَبِ إشْرَاكهمْ {بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا} حُجَّة عَلَي عِبَادَته وَهُوَ الْأَصْنَام {وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ وَبِئْسَ مَثْوَى} مَأْوَي {الظَّالِمِينَ} الْكَافِرِينَ هِيَ {وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ} إيَّاكُمْ بِالنَّصْرِ {إِذْ تَحُسُّونَهُمْ} تَقْتُلُونَهُمْ {بِإِذْنِهِ} بِإِرَادَتِهِ {حَتَّى إِذَا فَشِلْتُمْ} جبنتم عن القتال {وَتَنَازَعْتُمْ} اخْتَلَفْتُمْ {فِي الْأَمْرِ} أَيْ أَمْر النَّبِيّ صَلَّي اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُقَامِ فِي سَفْح الْجَبَل لِلرَّمْيِ فَقَالَ بَعْضكُمْ نَذْهَب فَقَدْ نُصِرَ أَصْحَابنَا وَبَعْضكُمْ لَا نُخَالِف أَمْر النَّبِيّ صَلَّي اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَعَصَيْتُمْ} أَمْره فَتَرَكْتُمْ الْمَرْكَز لِطَلَبِ الْغَنِيمَة {مِنْ بَعْدِ مَا أَرَاكُمْ} الله {ما تحبون} من النصر وَجَوَاب إذَا دَلَّ عَلَيْهِ مَا قَبْله أَيْ منعكم نصره {مِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الدُّنْيَا} فَتَرَكَ الْمَرْكَز لِلْغَنِيمَةِ {وَمِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الْآخِرَةَ} فَثَبَتَ بِهِ حَتَّي قُتِلَ كَعَبْدِ اللَّه بْن جُبَيْر وَأَصْحَابه {ثُمَّ صَرَفَكُمْ} عطف عَلَي جَوَاب إذَا الْمُقَدَّر رَدَّكُمْ لِلْهَزِيمَةِ {عَنْهُمْ} أَيْ الْكُفَّار {لِيَبْتَلِيَكُمْ} لِيَمْتَحِنكُمْ فَيَظْهَر الْمُخْلِص مِنْ غَيْره {وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ} مَا ارْتَكَبْتُمُوهُ {وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ} بِالْعَفْوِ اذكروا {إذ تصعدون} تُبْعِدُونَ فِي الْأَرْض هَارِبِينَ {وَلَا تَلْوُونَ} تعرجون {عَلَى أَحَدٍ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَاكُمْ} أَيْ مِنْ وَرَائِكُمْ يَقُول إلَيَّ عِبَاد اللَّه {فَأَثَابَكُمْ} فجازاكُمْ {غَمًّا} بِالْهَزِيمَةِ {بِغَمٍّ} بِسَبَبِ غَمّكُمْ لِلرَّسُولِ بِالْمُخَالَفَةِ وَقِيلَ الْبَاء بِمَعْنَي عَلَي أَيْ مُضَاعَفًا علي غم فوت الغنيمة {لكيلا} متعلق بعفا أَوْ بِأَثَابَكُمْ فَلَا زَائِدَة {تَحْزَنُوا عَلَى مَا فَاتَكُمْ} مِنْ الْغَنِيمَة {وَلَا مَا أَصَابَكُمْ} مِن القتل والهزيمة {والله خبير بما تعملون} {ثم أنزل عليكم من بعد الغم أمنة} أَمْنًا {نُعَاسًا} بَدَل {يَغْشَى} بِالْيَاءِ وَالتَّاء {طَائِفَةً مِنْكُمْ} وَهُمْ الْمُؤْمِنُونَ فَكَانُوا يَمِيدُونَ تَحْت الحجف وَتَسْقُط السُّيُوف مِنْهُمْ {وَطَائِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ} أَيْ حَمَلَتْهُمْ عَلَي الْهَمّ فَلَا رَغْبَة لَهُمْ إلَّا نَجَاتهَا دُون النَّبِيّ وَأَصْحَابه فَلَمْ يَنَامُوا وَهُمْ الْمُنَافِقُونَ {يَظُنُّونَ بِاللَّهِ} ظَنًّا {غَيْرَ} الظَّنّ {الْحَقِّ ظَنَّ} أَيْ كَظَنِّ {الْجَاهِلِيَّةِ} حَيْثُ اعْتَقَدُوا أَنَّ النَّبِيّ قُتِلَ أَوْ لَا يُنْصَر {يَقُولُونَ هَلْ} مَا {لَنَا مِنَ الْأَمْرِ} أَيْ النَّصْر الَّذِي وُعِدْنَاهُ {مِنْ شَيْءٍ قُلْ} لَهُمْ {إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ} بِالنَّصْبِ تَوْكِيدًا وَالرَّفْع مُبْتَدَأ وَخَبَره {لِلَّهِ} أَيْ الْقَضَاء لَهُ يَفْعَل مَا يَشَاء

{يُخْفُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ مَا لَا يُبْدُونَ} يُظْهِرُونَ {لَكَ يَقُولُونَ} بَيَان لِمَا قَبْله {لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ مَا قُتِلْنَا هَاهُنَا} أَيْ لَوْ كَانَ الِاخْتِيَار إِلَيْنَا لَمْ نَخْرُج فَلَمْ نُقْتَل لَكِنْ أُخْرِجنَا كَرْهًا {قُلْ} لَهُمْ {لَوْ كُنْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ} وَفِيكُمْ مَنْ كَتَبَ اللّٰه عَلَيْهِ الْقَتْل {لَبَرَزَ} خَرَجَ {الَّذِينَ كُتِبَ} قُضِيَ {عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ} مِنْكُمْ {إِلَى مَضَاجِعِهِمْ} مَصَارِعهمْ فَيُقْتَلُوا وَلَمْ يُنْجِهِمْ قُعُودهمْ لِأَنَّ قَضَاءَهُ تَعَالَى كَائِن لَا مَحَالَة {وَ} فَعَلَ مَا فَعَلَ بِأُحُدٍ {لِيَبْتَلِيَ} يَخْتَبِر {اللّٰهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ} قُلُوبكُمْ مِنَ الْإِخْلَاص وَالنِّفَاق {وَلِيُمَحِّصَ} يُمَيِّز {مَا فِي قُلُوبِكُمْ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ} بِمَا فِي الْقُلُوب لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْء وَإِنَّمَا يَبْتَلِي لِيُظْهِر لِلنَّاسِ {إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ} عَنِ الْقِتَال {يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ} جَمْع الْمُسْلِمِينَ وَجَمْع الْكُفَّار بِأُحُدٍ وَهُمْ الْمُسْلِمُونَ إِلَّا اثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا {إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ} أَزَلَّهُمْ {الشَّيْطَانُ} بِوَسْوَسَتِهِ {بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا} مِنَ الذُّنُوب وَهُوَ مُخَالَفَة أَمْر النَّبِيّ {وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ إِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ} لِلْمُؤْمِنِينَ {حَلِيمٌ} لَا يعجل على العصاة

**ترجمه**: اې دَ ایمان والوکه چرې تاسو دکافرانو خبرې منئی نو هغوی به تاسو ستاسو دَ پوندو په مخ دَ کفر طرف ته راوګرځوی (یعنی مرتدبه موجوړ کړی) اوتاسو به دَ نقصانیانونه شئی بلکه هم الله تعالی ستاسو امدادی دې او هم هغه ستاسو بهترین مددګار دې لهذا هم دَهغه اطاعت کوئی دَ نورو مه کوئی. مونږ به دیر زر دَ کافرانو په زړونو کښې (رعب) واچوو او (رعب) دَ عین په سکون اوضمه سره دې یعنی ویره. دَ احد نه راګرځیدونه پس هغوی (احد) ته دَواپس راتلو او د مسلمانانو دَ بیخه ختمولو اراده کړې وه مګر مرعوب شو دَ څه دَ وجې نه چې واپس رانغلل دَ الله تعالی سره دَ هغه څیزونو دَ شریکولو دَ وجې نه دَ کوم باره کښې چې دَهغوی په عبادت (الله) څه دلیل نه دې نازل کړې اوهغه بتان دی اودَ هغوی ځائی دوزخ دې. اودَ ظالمانو کافرانو دا دیر خراب ځائی دې او یقینًا الله تعالی تاسو سره خپله وعده رښتیاکولوسره اوخودله کوم وخت چې تاسو هغوی هم دَ هغه په حکم سره قتل کول تردې چې کله تاسو په جهاد کښې همت بیلل اوخودل او په معامله کښې مو اختلاف اوکړو یعنی دَ غرېه څوکه دَ نبی کریم ﷺ دَ حکم مطابق دَ غشو ویشتونکو دَپاره هلته دَ پاتې کیدو باره کښې مو اختلاف اوکړو چنانچې بعض خلقو وئیل مونږ څو ځکه چې زمونږ ملګری کامیاب شو اوبعضو اووئیل مونږ دنبی دَحکم خلاف ورزی نه شو کولې. تاسو نافرمانی اوکړه دَ مال غنیمت په طلب کښې مرکزپریخودو. پس دَهغې نه چې الله تعالی تاسو ته ستاسو محبوب څیز (یعنی) نصرت دراوخودو او جواب إذا (محذوف دې) په کوم چې دَدې ماقبل دلالت کوی (اوهغه جواب) مَنَعَكُمْ نَصْرَهُ دې په تاسو کښې بعضو دنیاغوښتله نوهغوی دَ مال غنیمت دَپاره مرکزپریخودو. او دَبعض اراده آخرت وو هغوی په هغه مقام باندې کلك ولاړ وو تردې چې شهیدان شو لکه عبدالله بن جبیر رضی الله عنه او دَهغه ملګری بیائی تاسو دَ کافرانو نه په ماتی سره اوګرځولئ دَ إذا جواب مقدر (مَنَعَكُمْ نَصْرَهُ) باندې عطف دې دې دَپاره چې ستاسو امتحان واخلی

د کوم په نتیجه کښې چې مخلص دَ غیر مخلص نه جدا شي. او بیشکه الله تعالی ستاسو جرم معاف کړو او الله تعالی په مؤمنانو باندې دَ معافئی او بخښنې په ذریعه فضل کونکې دې. هغه وخت یاد کړئ کوم وخت چې تاسو په میدان کښې تختیدئی منډې موو هلې او چا ته مو په شا هم نه کتل او (دَ الله) رسول تاسو ته دَ شانه آوازونه در کول فرمائیلې اې دَ الله بندیګانو زما طرف ته راشئ. اې دَ الله بندیګانو زما طرف ته راشئ. نو په تاسو دَ غم دَ پاسه غم شو یو غم دَ هزیمت دَ وجې نه (او دویم) غم ستاسو دَ رسول ﷺ خلاف ورزی کولو دَ وجې نه او وئیلی شوی دی چې باء په معنی دَ علی ده یعنی دَ غنیمت په فوت کیدو باندې نور غم دې دَ پاره چې تاسو خفه نه شئی په هغې باندې کوم چې ستاسو دَ لاس نه او وتلو او هغه مال غنیمت دې او نه په هغې باندې چې په تاسو قتل او هزیمت راغلو. (په دې صورت کښې) دَ لِكَيْلَا تعلق عَفَا عَنكُم سره دې یا دَ دې تعلق أَثَابَكُمْ سره دې نو په دې صورت کښې به لا زائده وی. او الله تعالی ستاسو دَ کارونو نه خبردار دې. بیا دَ دې نه پس هغه په تاسو باندې دَ خوشحالئ خوب راوستلو نعاسًا اَمَنَةً سره بدل دې چې په تاسو نه کښې په یو جماعت باندې راخورشو یغشیٰ یاء او تاء سره دې او هغه مؤمنان وو چې هغوی (دَ خپلو) ډالونو لاندې (دَ خوب) جوتې وهلې او توری (دَ هغوی دَ لاسونونه) پریوتلې. او یو جماعت هغه وو چې دَ خپلو ځانونو په فکر کښې وو یعنی هغوی په غم کښې اخته وو دَ هغوی صرف دَ خپل ځان بچ کولو فکر وو نه ورسره دَ نبی ﷺ خیال وو او نه دَ نبی دَ صحابه. نو هغوی له خوب رانغلو او دغه منافقان وو چې هغوی الله تعالی سره ناحق دَ جهالت نه ډک بدګمانئی کولې په دې توګه چې هغوی یقین کړې وو چې نبی قتل کړې شو یا دَ هغوی امدادمه کوئی (او) وئیلې دَ کوم امداد چې مونږ سره وعده کولې شوه په هغې کښې هیڅ هم نشته (دویمه ترجمه) که زمونږ څه اختیار وې مِنْ زائده دې ته ورته او وایه چې اختیار خو ټول په ټول دَ الله تعالی دې کله دَ نصب سره دَ تاکید دَ پاره دې او رفع سره مبتداء دې دَ کوم خبر چې لله دې، یعنی حکم صرف دَ الله تعالی دې هغه چې څه غواړی کوی. داخلق دَ خپل زړه راز تاسو ته نه ښائی وائی چې دا دَ ماقبل بیان دې که چرې زمونږ څه اختیار هم وې نو مونږ به دلته نه قتل کیدو. یعنی که چرې زمونږ اختیار وې (یعنی که زمونږ خبره چلیدې) نو مونږ به دَ (مدینې) نه نه وتلې نو قتل کیدلې به هم نه لیکن مونږ خو په زور دلته راوستلې شو. ته هغوی ته او وایه که چرې تاسو په خپلو کورونو کښې هم وئی نو په تاسو کښې چې دَ چا په قسمت کښې قتل کیدل لیکلې شوې وو نو هغوی به دَ قتل ځائی ته راوتل او قتل کیدل به (یعنی) تاسو نه چې الله تعالی دَ چا دَ قتل منصوبه او کړه دَ هغوی (په کورونو) کښې ناستې هغوی بچ نه کړې شو ځکه چې تقدیر الهی خو لامحاله نافذ کیږی. او په احد کښې چې هغه څه کول غوښتل هغه ئې او کړل. (او دا ټول دَ دې وجې نه او شو) چې الله

تعالی ستاسو په سینو کښې چې کوم اخلاص اونفاق دې دَهغې امتحان اوکړی اودې دَپاره چې څه ستاسو په زړونو کښې دی هغه صفا کړی (جدا کړی) او الله تعالی دَ سینو رازونه ښه پیژنی یعنی په زړونو کښې چې څه دی هغه دَ الله نه پټ نه دی. او ازمیښت خو صرف دَدې دَپاره دې چې خلقو ته ښکاره کړی، یقینًا په تاسو کښې چې کوم خلق دَ دواړو جماعتونو دَمقابله په وخت په احد کښې دَ جنګ نه تختیدلې وو (دَ دواړو جماعتونونه مراد) دَمسلمانانو اوکافرانو جماعتونه دی اودَ دولسو کسانونه علاوه باقی ټول تختیدلې وو. هغه خلق دَهغوی دَبعض کړو دَ وجې نه شیطان دَ وسوسې په ذریعه اوخویول او (هغه کړه) دَ رسول الله ﷺ دَحکم خلاف ورزی وه لیکن الله تعالی هغوی یقینًا معاف کړل اویشکه الله تعالی مؤمنان معاف کونکې او حلیم دې (یعنی) دَ نافرمانو په راګیرولو کښې تادی نه کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** بسبب اشراکهم، دې کښې اشاره ده چې بما کښې باسببیه اوما مصدریه ده لهذا دې ته دَعائدضرورت نشته.

**قوله** هِیَ مخصوص بالذم دې.

**قوله** تَحُسُّوْنَهُمْ ای تَقْتُلُوْنَهُمْ دا حَسَّ یَحُسُّ (ن) نه مشتق دې هغه وخت وئیلې شی کوم وخت چې حس باطل کړی اوحس په قتل سره باطل کیږی ملزوم وئیلوسره لازم مراد دې قال جریر:

تحسهم السیوف کما سامی　　　عریق النار فی الاجم الحصید

**قوله** جواب اذا، دل علیه ماقبلهُ، یعنی دَ اذا جواب په ماقبل کښې ذکرنه دې چې دَ جزاء شرط باندې مقدم کیدل لازم راشی بلکه مقدردې په کوم چې ماقبل دلالت کوی اوهغه دال لَقَدْ صَدَقَکُمُ اللّٰهُ دې او مدلول کوم چې مقدردې مَنَعَکُمْ نَصْرَهٗ دې لکه چې صاحب دَ جلالین ښکاره کړې دې.

**قوله** عطف علی جواب اذا المقدر، دَدې عبارت دَ اضافه مقصد داخودل دی چې دَ صَرَفَکُمْ عطف دَ اِذا په جواب مقدر باندې دې ځکه چې دَدې ماقبل مضارع ده او صَرَفَکُمْ ماضی ده لهذا په ماقبل باندې عطف نه شی کیدې.

**قوله** مِنْ وَّرَائِکُمْ دې کښې اشاره ده چې فی په معنی دَ مِنْ ده.

**قوله** متعلق بعفی اوباثابکم فلا زائدة که دَ لکیلاَ تعلق عفا نه اومنلې شی نولا ناهیه به غیرزائده شی یعنی تاسو ته ئې دَ هزیمت په ذریعه غم درکړو دې دَپاره چې تاسو دَ مال غنیمت په فوت کیدو سره خفه نه شئی.

قوله وَلَا مَا أَصَابَكُمْ لا زائد دي (جمل)

قوله أَمَنَةً مفعول كيدو دَ وجې منصوب دې او نُعَاسًا دې سره بدل دې.

قوله الجَحَف، بفتحتين، دَ جُحْفَةٌ جمع ده په معنى ډال.

قوله ظَنًّا غَيْرَ الظَّنِّ الحَقِّ په دې كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې غير الحق دَ محذوف صفت دې كوم چې دَ يَظُنُّ مفعول مطلق دې. الظَّنُّ مقدر منلو مقصد دې خبرې طرف ته اشاره كول دي چې غير مفعول به نه دې ځكه چې كه دَ دې نه مفعول به مراد وې نو دَ الظن په ځاني به الامر يا الشئ مقدر منلې شو.

قوله اي كَظَنِّ دې كښې اشاره ده چې ظن منصوب بنزع الخافض دې.

قوله أَزَلَّهُمْ دې كښې اشاره اوكړه چې استفعال په معنى دَ افعال دې.

[ايا تونه: ۱٥٦ - ۱۷۱]

{يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا} أَيِ الْمُنَافِقِينَ {وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ} أَيْ فِي شَأْنِهِمْ {إِذَا ضَرَبُوا} سَافَرُوا {فِي الْأَرْضِ} فَمَاتُوا {أَوْ كَانُوا غُزًّى} جَمْع غَازٍ فَقُتِلُوا {لَوْ كَانُوا عِنْدَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا} أَيْ لَا تَقُولُوا كَقَوْلِهِمْ {لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَلِكَ} الْقَوْل فِي عَاقِبَة أَمْرهمْ {حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ} فَلَا يَمْنَع عَنِ الْمَوْت قُعُود {وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {بَصِيرٌ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ {وَلَئِنْ} لَام قَسَم {قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ} أَيِ الْجِهَاد {أَوْ مُتُّمْ} بِضَمِّ الْمِيم وَكَسْرهَا مِنْ مَاتَ يَمُوت أَيْ أَتَاكُمُ الْمَوْت فِيهِ {لَمَغْفِرَةٌ} كَائِنَة {مِنَ اللَّهِ} لِذُنُوبِكُمْ {وَرَحْمَةٌ} مِنْهُ لَكُمْ عَلَى ذَلِكَ وَاللَّام وَمَدْخُولهَا جَوَاب الْقَسَم وَهُوَ فِي مَوْضِع الْفِعْل مُبْتَدَأ خَبَره {خَيْرٌ مِمَّا تَجْمَعُونَ} مِنَ الدُّنْيَا بِالتَّاءِ وَالْيَاء {وَلَئِنْ} لَام قَسَم {مُتُّمْ} بِالْوَجْهَيْنِ {أَوْ قُتِلْتُمْ} فِي الْجِهَاد وَغَيْره {لَإِلَى اللَّهِ} لَا إِلَى غَيْره {تُحْشَرُونَ} فِي الْآخِرَة فَيُجَازِيكُمْ {فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ} يَا مُحَمَّد {لَهُمْ} أَيْ سَهُلَتْ أَخْلَاقك إِذْ خَالَفُوك {وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا} سَيِّء الْخُلُق {غَلِيظَ الْقَلْبِ} جَافِيًا فَأَغْلَظْت لَهُمْ {لَانْفَضُّوا} تَفَرَّقُوا {مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ} تَجَاوَزْ {عَنْهُمْ} مَا أَتَوْهُ {وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ} ذُنُوبهمْ حَتَّى أَغْفِر لَهُمْ {وَشَاوِرْهُمْ} اسْتَخْرِجْ آرَاءَهُمْ {فِي الْأَمْرِ} أَيْ شَأْنك مِنَ الْحَرْب وَغَيْره تَطْيِيبًا لِقُلُوبِهِمْ وَلِيُسْتَنّ بِك وَكَانَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَثِير الْمُشَاوَرَة لَهُمْ فَإِذَا عَزَمْتَ عَلَى إِمْضَاء مَا تُرِيد بَعْد الْمُشَاوَرَة {فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ} ثِقْ بِهِ لَا بِالْمُشَاوَرَةِ {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ} عَلَيْهِ {إِنْ يَنْصُرْكُمُ اللَّهُ} يُعِنْكُمْ عَلَى عَدُوّكُمْ كَيَوْمِ بَدْر {فَلَا غَالِبَ لَكُمْ وَإِنْ يَخْذُلْكُمْ} بِتَرْك نَصْركُمْ كَيَوْمِ أُحُد {فَمَنْ ذَا الَّذِي يَنْصُرُكُمْ مِنْ بَعْدِهِ} أَيْ بَعْد خِذْلَانه أَيْ لَا نَاصِر لَكُمْ {وَعَلَى اللَّهِ} لَا غَيْره {فَلْيَتَوَكَّلِ} لِيَثِق {الْمُؤْمِنُونَ} وَنَزَلَتْ لَمَّا فُقِدَتْ قَطِيفَة حَمْرَاء يَوْم أُحُد فَقَالَ بَعْض النَّاس لَعَلَّ النَّبِيّ أَخَذَهَا {وَمَا كَانَ} مَا يَنْبَغِي {لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ} يَخُون فِي الْغَنِيمَة فَلَا تَظُنُّوا بِهِ ذَلِكَ وَفِي قِرَاءَة بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ أَنْ يُنْسَب إِلَى

الغُلول {وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ} حَامِلًا لَهُ عَلَى عُنُقِه {ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ} الغَالُّ وَغَيْرُه جَزَاءَ {مَا كَسَبَتْ} عَمِلَتْ {وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ} شيئا {أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللَّهِ} فَأَطَاعَ وَلَمْ يَغُلَّ {كَمَنْ بَاءَ} رَجَعَ {بِسَخَطٍ مِنَ اللَّهِ} لِمَعْصِيَتِهِ وَغُلُوله {وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ} الْمَرْجِعُ هِيَ {هُمْ دَرَجَاتٌ} أَيْ أَصْحَابُ دَرَجَاتٍ {عِنْدَ اللَّهِ} اي مختلفوا الْمَنَازِلِ فَلِمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَه الثَّوَابُ وَلِمَنْ بَاءَ بِسَخَطِهِ الْعِقَابُ {وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ} فَيُجَازِيهِمْ به {لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ} أَيْ عَرَبِيًّا مِثْلَهُمْ لِيَفْهَمُوا عَنْهُ وَيَشْرُفُوا بِهِ لَا مَلَكًا وَلَا عجميا {يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِه} الْقُرْآنَ {وَيُزَكِّيهِمْ} يُطَهِّرُهُمْ مِنَ الذُّنُوبِ {وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ} الْقُرْآنَ {وَالْحِكْمَةَ} السُّنَّةَ {وَإِنْ} مُخَفَّفَةٌ أَيْ إِنَّهُمْ {كَانُوا مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْلَ بَعْثه {لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ} بَيِّنٍ {أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةٌ} بِأُحُدٍ بِقَتْلِ سَبْعِينَ مِنْكُمْ {قَدْ أَصَبْتُمْ مِثْلَيْهَا} بِبَدْرٍ بِقَتْلِ سَبْعِينَ وَأَسْرِ سَبْعِينَ مِنْهُمْ {قُلْتُمْ} مُتَعَجِّبِينَ {أَنَّى} مِنْ أَيْنَ لَنَا {هَذَا} الْخِذْلَانُ وَنَحْنُ مُسْلِمُونَ وَرَسُولُ اللَّهِ فِينَا وَالْجُمْلَةُ الْأَخِيرَةُ مَحَلُّ الِاسْتِفْهَامِ الْإِنْكَارِيِّ {قُلْ} لَهُمْ {هُوَ مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِكُمْ} لِأَنَّكُمْ تَرَكْتُمُ الْمَرْكَزَ فَخُذِلْتُمْ {إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ النَّصْرُ وَمَنْعُه وَقَدْ جَازَاكُمْ بِخِلَافِكُمْ {وَمَا أَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ} بِأُحُدٍ {فَبِإِذْنِ اللَّهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَلِيَعْلَمَ} عِلْمَ ظُهُورٍ {الْمُؤْمِنِينَ} حَقًّا {وليعلم الذين نافقوا و} الذين {قِيلَ لَهُمْ} لَمَّا انْصَرَفُوا عَنِ الْقِتَالِ وَهُمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ وَأَصْحَابُه {تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ} أَعْدَاءَهُ {أَوِ ادْفَعُوا} عَنَّا الْقَوْمَ بِتَكْثِيرِ سَوَادِكُمْ إِنْ لَمْ تُقَاتِلُوا {قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ} نُحْسِنُ {قِتَالًا لَاتَّبَعْنَاكُمْ} قَالَ تَعَالَى تَكْذِيبًا لَهُمْ {هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ} بِمَا أَظْهَرُوا مِنْ خِذْلَانِهِمْ لِلْمُؤْمِنِينَ وَكَانُوا قَبْلُ أَقْرَبَ إِلَى الْإِيمَانِ مِنْ حَيْثُ الظَّاهِرِ {يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ} وَلَوْ عَلِمُوا قِتَالًا لَمْ يَتْبَعُوكُمْ {وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ} مِنَ النِّفَاقِ {الَّذِينَ} بَدَلٌ مِنَ الَّذِينَ قَبْلَه أَوْ نَعْتٌ {قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ} فِي الدِّينِ {و} قَدْ {قَعَدُوا} عَنِ الْجِهَادِ {لَوْ أَطَاعُونَا} أَيْ شُهَدَاءُ أُحُدٍ او إخواننا في القعود {ما قتلوا قُلْ} لَهُمْ {فَادْرَءُوا} ادْفَعُوا {عَنْ أَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي أَنَّ الْقُعُودَ يُنْجِي مِنْهُ وَنَزَلَ فِي الشُّهَدَاءِ {وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ {فِي سَبِيلِ اللَّهِ} أَيْ لِأَجْلِ دِينِه {أَمْوَاتًا بَلْ} هُمْ {أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ} أَرْوَاحُهُمْ فِي حَوَاصِلِ طُيُورٍ خُضْرٍ تَسْرَحُ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شَاءَتْ كَمَا وَرَدَ فِي الْحَدِيثِ {يُرْزَقُونَ} يَأْكُلُونَ مِنْ ثمار الجنة {فَرِحِينَ} حَالٌ مِنْ ضَمِيرِ يُرْزَقُونَ {بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَ} هُمْ {يَسْتَبْشِرُونَ} يَفْرَحُونَ {بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ} مِنْ إِخوانهم المؤمنين ويبدل من الذين {أ} ن اي بان {لاخوف عليهم} اي الَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ {وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَةِ الْمَعْنَى يَفْرَحُونَ بِأَمْنِهِمْ وَفَرَحِهِمْ {يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ} ثَوَابٍ {مِنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ} زِيَادَةٍ عَلَيْهِ {وَأَنَّ} بِالْفَتْحِ عَطْفًا عَلَى نِعْمَةٍ وَبِالْكَسْرِ اسْتِئْنَافًا {اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ} بَلْ يَاجرهم

**ترجمه:** اې دَ ايمان والوتاسو دكافرانو اومنافقانو په شان خبرې مه کوئ چې دَخپلو رونړوپاره كښې كله چې هغوی په سفرباندې وی او وفات کیږی او یاچرته جهاد ته ځی اوقتل کیږی. غزّی،

رغاړ جمع ده وائی چې که هغوی مونږ سره وې نونه به مړه کیدل اونه به مړه کولې شو یعنی دهغوی په شان خبرې مه کوئی (داخبره ځکه دهغوی په ژبه راغلې وه) دې دپاره چې الله تعالی هغه (یعنی) هغه خبره آخرد هغوی په زړونوکښې د ارمان سبب جوړ کړی. هم الله تعالی ئې روانه وی او مړکوی. لهذا په کورونوکښې ناسته هغوی دمرګ نه نشی بچ کولې. اوځه چې تاسو کوئی الله تعالی هغه ښه ګوری نودهغې به تاسو ته بدله درکوی. تاء اویاء سره که چرې تاسو دالله تعالی په لار کښې یعنی جهاد کښې مړه کړې شئی یا مړه شئی د میم په ضمه اوکسره سره (اول) مات یموت نه او (دویم) مات یمات (س) نه دې یعنی تاسو ته په هغې کښې مرګ راشی نوستاسود ګناهونودپاره دالله تعالی مغفرت اوپه هغې باندې دهغه رحمت ډیر بهتردې. د دغه دنیانه کومه چې تاسوجمع کوئی تاء اویاء سره لام اودې مدخول جواب قسم دې اوهغه په مقام فعل کښې مبتداء دې اودې خبر (خَیْرٌ مِّمَّا تَجْمَعُوْنَ) دې اوکه چرې تاسو مړه شئی یا په جهاد وغیره کښې مړه کړې شئی (لئن) کښې لام په دواړو صورتونوکښې قسمیه دې نوتاسو به ضرور هم دالله تعالی طرف ته نه چې د بل چاطرف ته په آخرت کښې جمع کولې شئی نوهغه به تاسو ته بدله درکوی. پس اې محمد ﷺ د الله تعالی د رحمت په سبب تاسو په دوی باندې د نرم زړه والا ئې. ما زائده ده اوکه ته بدزبان اوتیزاو سخت مزاج والا وې او په دوی دې سختی کوله نوهغه به ټول تاسونه جدا کیدل لهذا تاسو هغوی سره د (احدپه ورځ) کښې چې څه (کوتاهی) شوې هغه معاف کړه. اودهغوی د ګناهونودپاره مغفرت غواړه. دې دپاره چې زه دهغوی مغفرت اوکړم اود جنګ وغیره په معاملاتوکښې دهغوی رائې معلومولودپاره دهغوی سره دهغوی د زړه خوشحالولودپاره مشوره کوه اودې دپاره چې ستاسو سنت قائم شی او رسول الله ﷺ به خپلو صحابه کرامو ؓ سره ډیره مشوره کوله او کله چې ته د مشورې نه پس د یوکارد کولو کلکه اراده اوکړې نو بیا په الله تعالی باندې یقین ساته، نه چې په مشاورت باندې. بیشکه الله تعالی په الله باندې یقین کونکو سره محبت کوی. اوکه الله تعالی د دښمن په مقابله کښې ستاسو امداداوکړی لکه چې په یوم بدرکښې نو په تاسو څوک غالب نه شی راتلې اوکه هغه تاسو پریږدی یعنی ستاسو امداد اونه کړی لکه چې په یوم احدکښې اوشو نو بیا څوک دی چې د هغه نه علاوه ستاسو امداداوکړی یعنی دهغه د پریخودونه پس یعنی ستاسو څوک امدادی نشته. ایمان والوله هم په الله تعالی باندې توکل کول پکاردی اوکوم وخت چې په یوم بدرکښې یوسور څادر اورك شو نو بعضو اوونیل چې کیدې شی نبی ﷺ اخستې وی اود نبی شان نه دې چې په مال غنیمت کښې خیانت اوکړی لهذا تاسو دهغوی باره کښې داسې ګمان مه کوئی او په یوقراءت کښې دمجهول صیغې سره دې یعنی چې د خیانت طرف ته نسبت

اوکړي اوڅوک چې خیانت کوي هغه به خیانت کړې شوې څیز دَ قیامت په ورځ په خپل سټ باندې اوچت کړې راوړي او هرخائن اوغیرخائن نفس ته به دَ هغه دَ اعمالو پوره پوره بدله ملاوېږي او په هغوي به یوذره برابر هم ظلم نه کیږي آیا چې کوم سړې دَالله تعالی دَ رضا تابع وي چې هغه اطاعت کړې دی اوخیانت ئې نه دې کړې نوهغه به دَ ده په شان شي چې دَمعصیت اوخیانت دَ وجې نه دَالله تعالی غضب سره واپس کیږي؟ نه، اودَهغه ځائی دوزخ دې چې هغه خراب ځائې دې اودَالله تعالی په نیز په دواړه قسم خلقوکښې ډیر فرق دې. یعنی دَهغوي به مختلف درجې وي نوچې څوك دَالله تعالی په خوشحالولوپسې لګیدلې وي دَهغه دَپاره به ثواب وي اوڅوك چې دَهغه غصې سره راګرځي هغه به دَعذاب مستحق وي. او الله تعالی دَهغوي عملونوته ګوري لهذا دَهغوي دَاعمالوبه هغوي ته بدله ورکولې شي په حقیقت کښې الله تعالی په مؤمنانو باندې (لوئې) احسان اوکړو چې هم دَهغوي نه ئې یورسول هغوي ته راولیګلو یعنی دَهغوي په شان عربي. دې دَپاره چې دَهغوي خبره باندې پوهه شي او په دې سره عزت حاصل کړي نه چې فرښته او غیر عربي. څوك چې دَهغه آیاتونه قرآن لوستلوسره اوره وي اوهغوي دَ ګناهونونه پاکوي اوهغوي ته دکتاب قرآن اوحکمت سنت تعلیم ورکوي او یقینًا په دې سره (یعني) دَهغه دَ بعثت نه وړاندې هغوي په ښکاره ګمراهئی کښې وو اوکوم وخت چې په احدکښې تاسو ته داسې تکلیف ملاؤشو چې ستاسو اویا کسان قتل کړې شو دَکوم نه چې دوه چنده تکلیف (فریق مقابل نه) په بدرکښې اویاکسان قتل کولوسره اویا قید کولوسره رسیدلې وو نوتاسو په تعجب سره اووئیل دادَکوم ځائی نه راغلل؟ حالانکه دَالله تعالی رسول په مونږ کښې موجود دې ته ورته اووایه چې دا پخپله ستاسو دَ طرف نه دی ځکه چې تاسو مرکز پریخودو دَ کوم په وجه چې تاسو ماتې اوخوړله. آخري جمله دَاستفهام انکاري په محل کښې ده.بیشکه الله تعالی په هرڅیز باندې قادر دې اوکوم مصیبت چې په تاسو په هغه ورځ پریوتلو په کومه ورځ چې په احدکښې دوه جماعتونه په مقابله کښې شو نوهغه دَالله تعالی په رضا سره اوشو. او دَدې دَپاره چې الله تعالی مؤمنان دَ علم ظهور په توګه اوپیژني اودې دَپاره چې منافقان اوپیژني چاته چې وئیلې شو کله چې هغوي دَ جنګ نه راؤرېدل اوهغه عبدالله بن ابی اودَهغه ملګري وو. راشئ دَ الله تعالی په لارکښې دَهغه دښمنانوسره اوجنګیږئې یاکه تاسو نه شئې جنګیدلې نوکافران زمونږ نه خپل تعداد زیاتولوسره اخوا کړه نوهغوي اووئیل که چرې مونږ څه (په طریقه) جنګ لیدلو نوخامخابه مونږ ستاسو ملګرتیاکوله الله تعالی دَهغوي تکذیب کولوسره اوفرمائیل دا خلق په هغه ورځ دَ ایمان په ځائی کفر ته ډیر نیزدې شو په دې سبب چې هغوي دَمؤمنانودَپاره خپله بزدلي ښکاره کړه اودَدې نه وړاندې هغوي په ظاهره ایمان ته نیزدې وو. داخلق په خپلو ژبوباندې هغه خبرې کوي چې دَدوي په زړونوکښې نه وي اوکه چرته دوي ته دَ جنګ علم وې نودوي به

سره نه راتلل او کوم نفاق چې د خلقو پټ کړې دې الله تعالى دَهغې نه ښه خبردې داهغه خلق دى چې خپلو دينى رونړوته ئې او وئيل حال دا چې هغوى پخپله هم دَ جهاد نه ناست وو او که شهداء احد يا زمونږ رونړو زمونږ خبره منلې نونه به قتل کيدل. ته ورته او وايه که چرې تاسو په دې خبره کښې رښتونى ئې چې دَ جنګ نه کيناستل دَ مرګ نه بچ کولې شى نو خپل ځان دَمرګ نه بچ کړئى او «راتلونکې آيت» دَ احد دَ شهداؤ باره کښې نازل شو کوم خلق چې دَالله تعالى په لار کښې دَ دين دَ پاره اووژلې شو تاسو هغه هيڅ کله مړه مه ګنړئى (قتلوا) تخفيف او تشديد سره دې. بلکه هغه ژوندى دى، دَهغوى روحونه دَ شنو مرغو په جوسو کښې چرته چې غواړى جنت کښې سيل کوى لکه چې په حديث شريف کښې دى هغوى له دَهغوى رب سره رزق ورکولې شى دَ جنت ميوې خورى، حال دادې چې هغوى په دې (نعمتونو) سره خوشحال دى کوم چې الله تعالى دَ خپل فضل نه هغوى ته ورکړى دى (فَرِحِيْنَ) يُرْزَقُوْنَ دَ ضميرنه حال دې او دَهغوى بابت کښې چې دَهغوى مؤمنان رونړه روستوپاتې چې دى تراوسه پورې هغوى سره نه دى ملاؤ شوى خوشحالى کوى په دې باندې چې هغوى (يعنى) چې تردغه وخت هغوى سره نه دى ملاؤشوى نه به څه ويره وى په هغوئ او نه به په آخرت کښې څه غم وى او دَ اَلَّذِيْنَ سره اَنْ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ بدل دې. هغوى دَدوى په امن او دَدوى په خوشحالئ سره خوشحال دى. هغه خلق دَالله تعالى په انعام ثواب او فضل سره خوشحال دى. او په دې باندې چې الله تعالى دَمؤمنانو اجر نه ضائع کوى (اَنْ) فتحه سره دې نعمةٍ باندې عطف کولو سره او کسره سره استيناف دې بلکه هغوى ته به اجر ورکوى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: فى شانهم. دې کښې اشاره ده چې لام په معنى دَ فى دې.

**قوله**: فى عَاقِبَةِ اَمرِهِم دې کښې اشاره ده چې لِيَجعَلَ کښې لام، دَعاقبت دې.

**قوله**: كَاىِٕنَة، كائنة مقدر منلو سره دَ يو سوال جواب ورکول مقصود دى.

**سوال**: لَمَغفِرَة خپل معطوف وَرَحمَةٌ سره ملاؤ شو مبتداء دې حالانکه دَدې دَنکره کيدو دَ وجې نه مبتداء جوړيدل صحيح نه دى.

**جواب**: نکره چې کله موصوف بالصفت وى نو دَهغې مبتداء جوړيدل صحيح وى دلته من الله جارمجرور سره ملاؤ شو دَ كائنة متعلق کيدو سره دَمغفرة صفت دې، لهذا مَغفِرَةٌ مبتداء جوړيدل صحيح دى. او خَيرٌ دَدې خبردې او لَمَغفِرَةٌ خپل خبر سره ملاويدو سره جواب قسم دې او جواب شرط محذوف دې.

**قوله**: وَهُوَ فى موضع الفعل هُوَ مرجع لَمَغفِرَةٌ دې. تقديرى عبارت دا دې وَالله لَئِن قُتِلتُم فى سبيل

الله لغفرت لكم ورحمتكم، جواب شرط محذوف دي اودَ مؤخرجواب محذوف وى هم دَنې فاعدې په رنړاکښې لَمَغْفِرَةٌ الخ جواب قسم دې اوجواب شرط محذوف دې په کوم چې جواب قسم دلالت کوی.

**ملحوظة**: د مفسرعلام وَهُوَ فِي مَوْضِعِ الفِعل، وينا محل دَتامل دې په دې وجه دَدې نه داخبره مفهوم کیږی چې دَ جواب قسم دَپاره فعل کیدل ضروری دی حالانکه اسم اوفعل دواړه جواب قسم واقع کیږی فتامل.

**قوله**: من الدنيا دا اشاره ده چې بِمَا يَعْلَمُونَ جمله کیدوسره صله ده او مِنهُ عائدمحذوف دې.

**قوله**: بوجهين يعني مُتم، بالضمة والكسرة.

**قوله**: زائدة للتأكيد، دَ مَا زائده ګرځولودوه وجې دی اول دا چې مَا دلته نه موصوله کیدې شی اونه شرطیه اونه نافیه اونه موصوفه اونه مصدریه ځکه چې دلته دَ دې نه هیڅ معنی نه صحیح کیږی. دویمه وجه داده چې که چرې مَا زائده اوګرځولې شی نو حرف په حرف داخلیدل به لازم راځی کوم چې صحیح نه دی.

**قوله**: اَصْحَابُ الدرجات،اصحاب مقدرمنلې شوې دې ددې دپاره حمل صحیح شی.

**قوله**: يَبِين، دَمبين تفسیریبین سره کولوکښې اشاره اوکړه چې متعدی په معنی د لازم دې.

**قوله**: الجملة الاخيرة، ای قلتم انى لنا هذا.

**قوله**: وَقَدقعدوا، قعدوا د قالوا دَضمیرنه حال دې. اوماضی بغیردَ قدنه حال کیدې نه شی په دې وجه مفسرعلام قَدمقدرمنلوسره اشاره اوکړه چې قَعَدُوا په تقدیرَ قد، دحال دې.

**[ایاتونه:۱۷۲ - ۱۸۰]**

{الَّذِينَ} مُبْتَدَأ {اسْتَجَابُوا لِلَّهِ وَالرَّسُول} دُعَاءَهُ بِالْخُرُوجِ للقتال لما اراد ابو سفيان واصحابه العودة تَوَاعَدُوا مَعَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُوق بَدْر الْعَام الْمُقْبِل مِنْ يَوْم أُحُد {مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ} بِأُحُدٍ وَخَبَر الْمُبْتَدَأ {لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا مِنْهُمْ} بِطَاعَتِهِ {وَاتَّقَوْا} مُخَالَفَته {أَجْرٌ عَظِيمٌ} هُوَ الْجَنَّة {الَّذِينَ} بَدَل مِنْ الَّذِينَ قَبْله أَوْ نَعْت {قَالَ لَهُمُ النَّاس} أَيْ نُعَيْم بْن مَسْعُود الْأَشْجَعِيّ {إِنَّ النَّاس} أَبَا سُفْيَان وَأَصْحَابه {قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ} الْجُمُوع ليستاصلوكم {فَاخْشَوْهُمْ} وَلَا تَأْتُوهُمْ {فَزَادَهُمْ} ذَلِكَ الْقَوْل {إِيمَانًا} تَصْدِيقًا بِاَللَّهِ وَيَقِينًا {وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّه} كَافِينَا أَمْرهمْ {وَنِعْمَ الْوَكِيل} الْمُفَوَّض إلَيْهِ الْأَمْر هُوَ وَخَرَجُوا مَعَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَافَوْا سُوق بَدْر وَأَلْقَى اللَّه الرُّعْب فِي قَلْب أَبِي سُفْيَان وَأَصْحَابه فَلَمْ يَأْتُوا وَكَانَ مَعَهُمْ تِجَارَات فَبَاعُوا وربحوا قال الله تعالى {فَانْقَلَبُوا} رَجَعُوا مِنْ بَدْر {بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّه وَفَضْل} بِسَلَامَةٍ وَرِبْح {لَمْ يَمْسَسْهُمْ سُوء} مِنْ قَتْل أَوْ جُرْح {وَاتَّبَعُوا رِضْوَان اللَّه} بِطَاعَتِهِ وَطَاعَة رَسُوله

في الخروج {وَاللّٰهُ ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ} عَلَى أَهْلِ طَاعَته {إِنَّمَا ذٰلِكُمُ} أَيِ القَائِلِ لَكُمْ إِنَّ النَّاس الخ {الشيطان يخوف} كم {أولياءه} الكفار {فلا تخافوهم وخافون} فِي تَرْكِ أَمْرِي {إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} حَقًّا {وَلَا يَحْزُنك} بِضَمِّ الْيَاءِ وَكَسْرِ الزَّايِ وَبِفَتْحِهَا وضم الزاي من احزانه {الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ} يَقَعُونَ فِيهِ سَرِيعًا بِنُصْرَتِهِ وَهُمْ أَهْلُ مَكَّة أَوِ الْمُنَافِقُونَ أَيْ لَا تَهْتَمَّ لِكُفْرِهِمْ {إِنَّهُمْ لَنْ يَضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا} بِفِعْلِهِمْ وَإِنَّمَا يَضُرُّونَ أَنْفُسَهُمْ {يُرِيدُ اللّٰهُ أَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا} نَصِيبًا {فِي الْآخِرَةِ} أَيِ الْجَنَّة فَلِذٰلِكَ خَذَلَهُمُ اللّٰهُ {وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ} فِي النَّار {إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ} أَيْ أَخَذُوهُ بَدَله {لَنْ يَضُرُّوا اللّٰهَ} بِكُفْرِهِمْ {شَيْئًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم {وَلَا يَحْسَبَنَّ} بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ {الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي} أَيْ إِمْلَاءَنَا {لَهُمْ} بِتَطْوِيلِ الْأَعْمَار وَتَأْخِيرهمْ {خَيْرٌ لِأَنْفُسِهِمْ} وَأَنَّ وَمَعْمُولَاهَا سَدَّتْ مَسَدَّ الْمَفْعُولَيْنِ فِي قِرَاءَة التَّحْتَانِيَّة وَمَسَدَّ الثَّانِي فِي الْأُخْرَى {إِنَّمَا نُمْلِي} نُمْهِل {لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا} بِكَثْرَةِ الْمَعَاصِي {وَلَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ} ذُو إِهَانَة فِي الآخرة {مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ} لِيَتْرُك {الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنْتُمْ} أَيُّهَا النَّاس {عَلَيْهِ} مِنِ اخْتِلَاط الْمُخْلِص بِغَيْرِهِ {حَتَّىٰ يَمِيزَ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد يَفْصِل {الْخَبِيثَ} الْمُنَافِق {مِنَ الطَّيِّبِ} الْمُؤْمِن بِالتَّكَالِيفِ الشَّاقَّة الْمُبَيِّنَة لِذٰلِكَ فَفَعَلَ ذٰلِكَ يَوْم أُحُد {وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ} فَتَعْرِفُوا الْمُنَافِق مِنْ غَيْره قَبْل التَّمْيِيز {وَلَٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِي} يَخْتَار {مِنْ رُسُلِهِ مَنْ يَشَاءُ} فَيُطْلِعهُ عَلَى غَيْبِه كَمَا أَطْلَعَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حَال الْمُنَافِقِينَ {فَآمِنُوا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ وَإِنْ تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا} النفاق {فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ} {وَلَا يَحْسَبَنَّ} بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ {الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ} أَيْ بِزَكَاتِهِ {هُوَ} أَيْ بُخْلهمْ {خَيْرًا لَهُمْ} مَفْعُول ثَانٍ وَالضَّمِير لِلْفَصْلِ وَالْأَوَّل بُخْلهمْ مُقَدَّرًا قَبْل الْمَوْصُول عَلَى الْفَوْقَانِيَّة وَقَبْل الضَّمِير عَلَى التَّحْتَانِيَّة {بَلْ هُوَ شَرٌّ لَهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ} أَيْ بِزَكَاتِهِ مِنَ الْمَال {يَوْمَ الْقِيَامَةِ} بِأَنْ يُجْعَل حَيَّة فِي عُنُقه تَنْهَشهُ كَمَا وَرَدَ فِي الْحَدِيث {وَلِلّٰهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} يَرِثهُمَا بَعْد فَنَاء أَهْلهمَا {وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {خَبِيرٌ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ

**ترجمه:** کومو خلقو چې دَ الله تعالیٰ او دَهغه دَ رسول (په دوباره) دَ جنګ دَپاره دَ وتلو په حکم باندې لبیک اووئیل سره دَدې چې هغوی په احد کښې زخم خوړلې وو. (او دا هغه وخت اوشو) کوم وخت چې ابوسفیان او دَهغه ملګرو دَ واپس راتلو اراده اوکړه. اونبی ﷺ سره دَ یوم احد نه پس په راتلونکی کال دَ بدر په بازارکښې په یوموقع (دَمقابلې کولو) چیلنج ورکړو. الذین الخ مبتداء دې او احسنوا منهم دَدې خبر دې. په هغوی کښې چې چادَ هغوی دَ اطاعت په ذریعه نیکی اختیار کړه او دَهغه د مخالفت نه ئې ډډه اوکړه دَهغوی دَپاره اجرعظیم دې او هغه جنت دې. اودا داسې خلق دی الذین سابقه الذین نه بدل یا صفت دې. کله چې هغوی ته خلقو یعنی نعیم بن مسعود اشجعی اووئیل چې خلقو (یعنی) ابوسفیان او دَهغه ملګرو ستاسو دَمقابله دَپاره یولوئی جماعت جمع کړې دې دَپاره چې تاسو دَ بیخه ختم

کړی لهذا تاسو دَهغوی نه اوویریږئی اودَ هغوی دَ مقابله دپاره مه راوځئی. نودې خبرې دَ
هغوی په الله تعالی باندې یقین اوتصدیق کښې نور اضافه اوکړه. اوهغه خلقو اوویل چې
الله تعالی دَهغوی دَپاره په دغه معامله کښې دَهغوی کافی دې. او هغه بهترین کارساز دې.
معامله هم هغه ته حواله ده او هغه نبی ﷺ سره اووتلواو دَ بدرپه بازارکښې داخل شو
نو الله تعالی دَ ابوسفیان او دَهغه دَ ملګرو په زړه کښې رعب واچولو دَ کوم دَ وجې نه چې
هغوی دَ راتلو همت اونه کړو او مسلمانانوسره دَتجارت سامان (هم) وو کوم ئی چې خرڅ
کړو اوښه ګټه ئی اوکړه. (نتیجه داشوه) چې داخلق دَمقام بدر نه دَالله تعالی انعام او فضل
سره صحیح سلامت سره دګټې واپس شو اوهغوی ته قتل یازخم یا دَ څه قسم تکلیف پیښ نه
شو. اودغه خلقو په وتلوکښې دَ اطاعت په ذریعه دَ الله تعالی دَ رضا تابعداری اوکړه اوالله
تعالی په خپلو اطاعت کونکوباندې دَ ډیر فضل والا دې یقینًا دا (ان الناس قد جمعوالکم)
ویونکې هم شیطان دې چې خپلو دوستانو (یعنی) دَ کافرانونه ئی ویره وی. تاسو دَدې
کافرانونه مه وریږئی اوزما په حکم ترک کولوکښې هم زمانه ویریږئی که چرې تاسو په صحیح
معنی کښې مؤمنان یئې اوهغه خلق چې په کفرکښې تیزی کوی یعنی په کفرکښې
امدادکولوسره په هغې کښې تیزی سره واقع کیږی اوهغه اهل مکه دی یا منافقان دی
تادې نه خفه کوی (لایحزنك) دَ یاء په ضمه او د زاء په کسره سره اودَ یاء فتحه او زاء ضمه
سره، حزنه نه احزنه کښې یولغت دې. یقینًا داخلق چې خپلوحرکتونو نه نه منع کیږی دَالله
تعالی هیڅ هم نه شی کولې هغوی خو هم خپل نقصان کوی دَالله تعالی هم دغه رضا ده چې دَ
هغوی دَپاره آخرت یعنی جنت کښې هیڅ حصه نشته. اودَهغوی دَپاره په دوزخ کښې لوئی
عذاب دې یقینًا کومو خلقو چې دَ ایمان په بدله کښې کفر اخستې دې یعنی دَ ایمان په ځائی
کفراختیارکړې دې هغوی دَخپل کفرپه وجه دَ الله تعالی هیڅ هم نه شی کولې. اودَهغوی دَپاره
دردناک عذاب دې اوکافران خلق زمونږ دَدې اوږد عمر او تاخیر (دَمواخذه) ورکړې شوې
مهلت دې په خپل حق کښې بهترنه ګنړی (تحسبن) یاء اوتاء سره دواړه قراءتونه دی. او
انَ سرد دَ خپل معمول یحسبن بالیاء په صورت کښې دَ دوو مفعولو قائم مقام ګرځولې
دې. او تحسبن بالتاء په صورت کښې دَ مفعول ثانی قائم مقام ګرځولې شوې دې. مونږدې
(کافرانو) ته صرف دَ دې دَپاره مهلت ورکوو چې دَ ډیرې ګناه په ذریعه دَهغوی ګناه نوره هم
زیاته شی او په آخرت کښې دَهغوی دَ پاره دَ شرم نه ډک عذاب دې. اې خلقو دَمخلص
اوغیرمخلص دَ اختلاط په کوم حالت چې تاسو یئې الله تعالی به ایمان والا په دغه حالت کښې
پرینږدی تر هغه وخت پورې چې خبیث یعنی منافق دَ طیب (یعنی) مؤمن نه دَهغه نه ښکاره
کیدونکې دَ سختوتکلیفونو په ذریعه جدا نه کړی دَ احد په ورځ ئی هم داسې اوکړل اونه

الله تعالی تاسو په غیبوباندې خبرونکې دې چې تاسو منافق نه غیرمنافق اوپیژندې شئ البته الله تعالی دَ خپلو رسولانونه څوک چې غواړي منتخب کوی نوهغه په غیبوباندې خبره وی لکه چې نبی کریم ﷺ ئی دَ منافقانو په حال باندې خبرکړې وو نوتاسو په الله اودَهغه په رسول باندې ایمان راوړئی که چرې تاسو ایمان راوړو او دَ نفاق نه مو ځان اوساتلو نوستاسودَپاره اجرعظیم دې اوچاته چې الله تعالی په خپل فضل اوکرم سره څه ورکړی دی نو په هغې کښې دې بخل بنه نه ګنړی (یحسبن) تاء او یاء سره دواړه قراءتونه دی (خیرًا) مفعول ثانی دې او هُوَ د ضمیر متصل دَپاره دې او مفعول اول بخلهم دَ فوقانیه په صورت کښې موصول نه وړاندې مقدردې اودَ ضمیرنه وړاندې دَ تحتانیه په صورت کښې. بلکه هغه دَ هغوی دَپاره ډیرخراب دې ډیر زر به دَ قیامت په ورځ دَدې (بخل کونکو په ستونو) کښې دغه مال دَ زکوٰة په کوم کښې چې هغوی بخل کړې دې دَ طوق په شکل کښې اچولې شی په داسې توګه چې دَ د غه مال نه به مارجوړکړې شی اودَهغوی په ستونوکښې به واچولې شی اوهغه به دوی ته ټکونه ورکوی. لکه چې په حدیث کښې راغلی دی دَآسمانونو اوزمکې میراث هم دَالله تعالی دَپاره دې دَ اهل ارض وسماء دَ فناکیدونه پس الله تعالی به دَ دوی وارث وی. اوڅه چې تاسو کوئی الله تعالی دَهغې نه بنه خبر دې. یاء او تاء سره نوتاسو ته به دَدې بدله درکوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: الذین مبتداء، یعنی الذین خپلې صله سره ملاؤشو مبتداء دې. او للذین احسنوا منهم الخ خبرمقدم دې، اجر عظیم مبتداء مؤخردې. مبتداء مؤخر خپل خبرمقدم ملاویدو سره جمله کیدو سره خبردې دَ الذین نه اول.

**قوله**: بدل من الذین، اونعت، مفسرعلام الذین ثانی دَ الذین اول نه بدل یا صفت ګرځولې دې مګر په دې کښې اشکال دې ځکه چې وړاندې الذین نه خاص هغه خلق مراددی څوک چې په غزوه احدکښې شریک شوی وو او دویم الذین نه عام مسلمانان مراد دی حالانکه دَ بدل اونعت دَپاره دواړو کښې اتحاد ضروری دې لهذا بهترداده چې الذین ثانی دَ امدح فعل محذوف سره منصوب اوګرځولې شی. (اعراب القرآن)

**قوله**: هو دا مخصوص بالمدح دې.

**قوله**: ګمردې کښې اشاره ده چې کمر، دَ یخوف مفعول ثانی دې اومفعول اول محذوف دې.

**قوله**: فتح الیاء وضم الزاء یعنی د باب د نصرنه.

**قوله**: یقعون فیه دادَیوسوال مقدرجواب دې.

**سوال**: يسارعون متعدى بالى وى اودلته متعدى بفى دي.

**جواب**: يسارعون، يقعون معنې ته متضمن دي.

**قوله**: مؤلم دَاليم تفسير مؤلم سره کولو کښې اشاره اوکړه چې لازم په معنى د متعدى دي لهذا دا شبه ختمه شوه چې عذاب صاحب الم پخپله (دردمند کيږی نه)

**قوله**: اى املاءنا دي کښې اشاره ده چې ما مصدريه دي نه چې موصوله لکه دَ اِنَّ ما سره متصل ليکلو دَ وجې نه هم کيږى، مناسب داوه چې إِنَّ مَا، إِنَّمَا سره ليکلې کيدو مګر په مصحف عثمانى کښې دغه شان مکتوب دي په دې وجه دَدې مخالفت اونه کړې شو. دَدې دَپاره مَا موصوله کيدو په صورت کښې يوخو به دَعائد ضرورت وى کوم چې موجود نه دي بل داچې معنى هم صحيح نه ده.

**قوله**: قبل الموصول تقديرى عبارت به داوى ولاتحسبن بخل الذين.

**قوله**: قبل الضمير تقديرى عبارت به داشي وَلَا يَحْسَبَنَّ الْبُخَلَاءُ بُخْلَهُمْ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ، اود مقدر په ضمير باندې دَ مقدم کولو وجه داده چې ضمير فصل دَ مبتداء اوهم دَ خبر په مينځ کښې واقع شوې دي.

## [اياتونه: ۱۸۱ - ۱۸۹]

{لَقَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ} وَهُمْ الْيَهُود قَالُوهُ لَمَّا نَزَلَ {مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا} وَقَالُوا كَانَ غَنِيًّا مَا اسْتَقْرَضَنَاهُ {سَنَكْتُبُ} نَأْمُر بِكَتْبِ {مَا قَالُوا} فِي صَحَائِف أَعْمَالهمْ لِيُجَازَوْا عَلَيْهِ وَفِي قِرَاءَة بِالْيَاءِ مَبْنِيًّا لِلْمَفْعُولِ {و} نَكْتُب {قَتْلَهُمْ} بِالنَّصْبِ وَالرَّفْع {الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَنَقُولُ} بِالنُّونِ وَالْيَاء أَيْ اللَّه لَهُمْ فِي الْآخِرَة عَلَى لِسَان الْمَلَائِكَة {ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ} النَّار وَيُقَال لَهُمْ إِذَا أُلْقُوا فِيهَا {ذَلِكَ} الْعَذَاب {بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ} عَبَّرَ بِهَا عَنْ الْإِنْسَان لِأَنَّ أَكْثَر الْأَفْعَال تُزَاوَل بِهَا {وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ} أَيْ بِذِي ظُلْم {لِلْعَبِيدِ} فَيُعَذِّبهُمْ بِغَيْرِ ذَنْب {الَّذِينَ} نَعْت لِلَّذِينَ قَبْله {قَالُوا} لِمُحَمَّدٍ {إِنَّ اللَّهَ} قَدْ {عَهِدَ إِلَيْنَا} فِي التَّوْرَاة {أَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُولٍ} نُصَدِّقهُ {حَتَّى يَأْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَأْكُلُهُ النَّارُ} فَلَا نُؤْمِن لَك حَتَّى تَأْتِيَنَا بِهِ وَهُوَ مَا يُتَقَرَّب بِهِ إِلَى اللَّه مِنْ نَعَم وَغَيْرهَا فَإِنْ قُبِلَ جَاءَتْ نَار بَيْضَاء مِنْ السَّمَاء فَأَحْرَقَتْهُ وَإِلَّا بَقِيَ مَكَانه وَعَهِدَ إِلَى بَنِي إِسْرَائِيل ذَلِكَ إِلَّا فِي الْمَسِيح ومحمد قال تعالى {قل} تَوْبِيخًا {قَدْ جَاءَكُمْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِي بِالْبَيِّنَاتِ} بِالْمُعْجِزَاتِ {وَبِالَّذِي قُلْتُمْ} كَزَكَرِيَّا وَيَحْيَى فَقَتَلْتُمُوهُمْ وَالْخِطَاب لِمَنْ فِي زَمَن نَبِيّنَا مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنْ كَانَ الْفِعْل لِأَجْدَادِهِمْ لِرِضَاهُمْ بِهِ {فَلِمَ قَتَلْتُمُوهُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي أَنَّكُمْ تُؤْمِنُونَ عِنْد الْإِتْيَان بِهِ {فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ جَاءُوا بِالْبَيِّنَاتِ} المعجزات {والزبر} كصحف إبراهيم {والكتاب} وَفِي قِرَاءَة بِإِثْبَاتِ الْبَاء فِيهِمَا {الْمُنِيرِ} الْوَاضِح هُوَ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرُوا {كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ}

جزاء أعمالكم {يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَنْ زُحْزِحَ} بُعِدَ {عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ} نَالَ غَايَةَ مَطْلُوبه {وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا} أَيِ الْعَيْش فيها {إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ} الباطل يتمتع بها قَلِيلًا ثُمَّ يَفْنَى {لَتُبْلَوُنَّ} حُذِفَ مِنْهُ نُون الرَّفْع لِتَوَالِي النُّونَات وَالْوَاو ضَمِير الْجَمْع لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ لَتُخْتَبَرُنَّ {فِي أَمْوَالِكُمْ} بِالْفَرَائِضِ فِيهَا وَالْجَوَائِح {وَأَنْفُسِكُمْ} بِالْعِبَادَاتِ وَالْبَلَاء {وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ} الْيَهُود وَالنَّصَارَى {وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا} مِنَ الْعَرَب {أَذًى كَثِيرًا} مِنَ السَّبّ وَالطَّعْن وَالتَّشْبِيب بِنِسَائِكُمْ {وَإِنْ تَصْبِرُوا} عَلَى ذَلِكَ {وَتَتَّقُوا} بِالْفَرَائِضِ {فَإِنَّ ذَلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ} أَيْ مِنْ مَعْزُومَاتهَا الَّتِي يُعْزَم عَلَيْهَا لِوُجُوبِهَا {و} اُذْكُرْ {إِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ} أَيِ الْعَهْد عَلَيْهِمْ فِي التَّوْرَاة {لَتُبَيِّنُنَّهُ} أَيِ الْكِتَاب {لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ} أَيِ الْكِتَاب بِالْيَاءِ وَالتَّاء بِالْفِعْلَيْنِ {فَنَبَذُوهُ} طَرَحُوا الْمِيثَاق {وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ} فَلَمْ يَعْمَلُوا بِهِ {وَاشْتَرَوْا بِهِ} أَخَذُوا بَدَله {ثَمَنًا قَلِيلًا} مِنَ الدُّنْيَا مِنْ سَفَلَتِهِمْ بِرِيَاسَتِهِمْ فِي الْعِلْم فَكَتَمُوهُ خَوْف فَوْته عليهم {فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ} شراؤهم هذا {وَلَا تَحْسَبَنَّ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوْا} فَعَلُوا فِي إِضْلَال النَّاس {وَيُحِبُّونَ أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا} مِنَ التَّمَسُّك بِالْحَقّ وَهُمْ عَلَى ضَلَال {فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ} فِي الْوَجْهَيْنِ تَأْكِيد {بِمَفَازَةٍ} بِمَكَانٍ يَنْجُونَ فِيهِ {مِنَ الْعَذَابِ} مِنَ الْآخِرَة بَلْ هُمْ فِي مَكَان يُعَذَّبُونَ فِيهِ وَهُوَ جَهَنَّم {وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم فِيهَا ومفعولا يحسب الأولى دل عليهما مفعولا مَفْعُولَا الثَّانِيَة عَلَى قِرَاءَة التَّحْتَانِيَّة وَعَلَى الْفَوْقَانِيَّة حُذِفَ الثَّانِي فَقَطْ {وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} خَزَائِن الْمَطَر وَالرِّزْق وَالنَّبَات وَغَيْرهَا {وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ تَعْذِيب الْكَافِرِينَ وَإِنْجَاء الْمُؤْمِنِينَ

---

**ترجمه:** يقيناً الله تعالى دَهغه خلقو قول واوريدو چاچې اووئيل الله تعالى محتاج دې اومونږ مالداريو اودا چې (ويونکی) يهوددی داخبره هغوی هغه وخت اوکړه کله چې ﴿ مَنْ ذَا الَّذِىْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ آيت نازل شو اودا (هم) که چرې الله تعالى مالداروئ نو زمونږ نه به ئې قرض نه غوښتلو، مونږ دَ هغوی قول دَهغوی په عمل ناموکښې ليکو دې دپاره چې دَ دې هغوی ته بدله ورکړې شي. او په يوقراءت کښې يكْتُبُ ياء سره دَمعروف صيغه ده. اومونږ دَهغوی انبياء په ناحقه قتل کول هم ليکو (قتلهم) نصب اورفع سره، او مونږ به وايوچې دَ سوزونکی اور مزه اوڅکئې. (نَقُوْلُ) نون اوياء سره يعنی په آخرت کښې به الله تعالى دَ ملائکو په خوله وائی، اوکله چې هغوی په دوزخ کښې اچولې شی نودوی ته به وئيلی شی چې دا عذاب ستاسو دَهغه کړو دَ وجې نه دې کوم چې تاسوکړی دی. دَ انسان تعبيرئې لاسونوسره کړې دې ځکه اکثراعمال هم په لاسونوباندې کيږی. اوالله تعالى په بنديگانوباندې ظلم کونکې نه دې چې هغوی ته بې خطاء سزا ورکړی. دا (قائلين) هغه خلق دی اَلَّذِيْنَ دَ ماقبل والا اَلَّذِيْنَ صفت دې چاچې محمد ﷺ ته اووئيل چې الله تعالى مونږ ته په تورات کښې حکم راکړې وی چې مونږ په يونبی باندې ترهغه وخته پورې ايمان رانوړو (يعنی)

دَهغه تصديق اونه کړو ترکومې چې هغه داسې قرباني رانوړي چې هغه اور اوخوري لهذا په تاباندې به هم ترهغه وخته پورې ايمان نه راوړو ترکوم وخت پورې چې ته مونږ له دغه شان قرباني رانوړې ارهغه قرباني هغه ده دَ کومې په ذريعه چې الله تعالى ته نيزديکت حاصل کړې شي دَ څناور وغيره دَقبيل نه. که قرباني به قبوله شوه نودَ آسمان نه به يوسپين اور راغلو او هغه به ئې اوسوزوله گنې په خپل ځائې به پرته وه. بني اسرائيلو ته دَ مسيح عليه السلام او محمد ﷺ نه علاوه دَپاره دا حکم ورکړې شوې وو. دَ قربانئې دَ قبليدوعلامت دَ آسماني اور دَ قربانئې څاروې سوزيدل دَ مسيح عليه السلام اودَ محمد ﷺ نه دَ علاوه دَپاره وو. دغه شان دَ آسماني اور سوزول دَ نبي دَ صداقت دليل دَمسيح عليه السلام اودَ محمد ﷺ نه دَ علاوه نبي دَپاره وو. **تاسو دوى ته اووايئې زما نه وړاندې تاسوته چې کوم رسول دَنوړو معجزوسره دا معجزه هم راوړې وې کوم چې تاسو يادوئې نوولې تاسو هغوئ قتلول؟** مثلاً زکريا عليه السلام اويحيى عليه السلام **چې تاسو هغوى قتل کړل.** اوخطاب هغه (يهودو) ته دې کوم چې زمونږ دَ نبي ﷺ په زمانه کښې وو سره دَدې چې دا فعل (قتل) دَهغوى دَ پلارانو نيکونو وو دَ هغه خلقو په دې فعل باندې راضي کيدلو دَ وجې نه. **که چرې تاسو په دې خبره کښې رښتوني ئې نو دَدې معجزې ليدلونه پس ايمان راوړئې. نوبيا هم که داخلق تاسو دروغژن کوى نوتاسو نه وړاندې هغه رسولان دروغ گنړلې شوى دى چې معجزات او صحيفې** لکه صحف ابراهيم عليه السلام. **او واضح کتابونه** او په يوقراءت کښې دواړوکښې (يعنى زبر او کتاب) کښې دَباء اثبات سره دې. (اى بالزبروبالکتاب) **راوړلوسره راغله** هغه تورات او انجيل دې. لهذا څنګه چې هغوى صبراوکړو ته هم صبراوکړه. **هرژوندې څيزبه دَمرګ مزه څکونکې دې اوتاسوته به ستاسو دَاعمالو بدله هم دَقيامت په ورځ درکولې شي. نوچې کوم سړې دَ اور نه لرې کړې شو او په جنت کښې داخل کړې شو نوهم هغه کامياب شو** يعنى هغه خپل مکمل مطلوب حاصل کړو. **دَدنيا ژوند** يعنى دَدې **عيش خو صرف باطل سودا ده** چې يوڅو ورځې دَهغې نه استفاده کولې شي بيابه فناشي. **يقيناً تاسو ته به په دې کښې** نون د رفع مسلسل دَ نونودَ وجې نه حذف کړې شوې دې او واؤ ضمير هم د اجتماع ساکنين دَ وجې نه حذف کړې شوې دې. **ستاسو په مالونوکښې** دَ هغوى دَ فرائض او آفات په ذريعه **او ستاسو په ځانونوکښې** دَعبادات اومصائب په ذريعه **ازميښت کولې شي. او يقيناً تاسو دَهغه خلقو نه کوموته چې تاسونه وړاندې کتاب ملاؤشوې دې** (يعنى) يهود نصارئ اودَ عربومشرکينونه **ډيرې زړه آزارونکې خبرې** مثلاً کنځلې او پيغورونه اوستاسو دَ ښځو باره کښې عشقيه شعرونه **به اورئې، که تاسو په دې باندې صبر اوکړئې او تقوى اختيارکړئې نويقيناً دادَ ډير همت کارونه دى** يعنى دَهغه مقاصدونه دى دَ کومو چې دَهغې دَواجب کيدودَ وجې نه اراده کولې شي. **اوهغه وخت يادکړئې کوم وخت چې الله تعالى دَاهل کتاب نه په تورات کښې عهد واخستلو**

چې تاسو به دا کتاب ټولو خلقوته ضرور بیانوئی او دا به پټوئی نه په دوارو فعلونو کښې دَ تاء او یاء سره. نوهغوی دغه عهد شاته اوغورزولو په داسې توګه چې په دې باندې ئې عمل اونه کړو. اودَدې په بدله کښې دَ خپل ښکته خلقو نه دَخپل علمی مشرئی دَ وجې نه دَ دنیا سپک قیمت واخستو، دَ دغه کم قیمت دَ فوت کیدو دَ ویرې نه ئی هغه عهدپټ کړو نوځنګه خراب څیزدې کوم چې هغوی اخلی یعنی دَهغوی دا اخستل څومره خراب دی، نودَداسې خلقو باره کښې چې دَخپلو کړو یعنی دَ خلقو په ګمراه کولوباندې خوشحالیږی هیڅ کله دې خیال نه کوی (چې هغوی به دَعذاب نه محفوظ پاتې شی) اوهغوی غواړی چې دَهغوی تعریفونه دې په داسې کارناموباندې هم اوکړی کوم چې هغوی نه دی پوره کړی اوهغه دَ حق نیول دی حالانکه هغوی په ګمراهئی کښې دی نودَداسې خلقو باره کښې تاسو هیڅ کله دا خیال مه کوئی چې هغوی به په آخرت کښې دَ عذاب نه محفوظ پاتې شی یعنی په داسې ځائی کښې به وی چې هغوی به خلاصې بیامومی، بلکه هغوی خو به په داسې ځائی کښې وی په کوم کښې چې به عذاب ورکولې شی. اوهغه دوزخ دې اودَهغوی دَپاره په دې کښې دردناک (دردمند) عذاب به وی. او اول دَ یَحْسَبُ دواړه مفعولونه په کوم چې دَ یَحْسَبُ ثانی دواړه مفعولونه دَ یاء تحتانیه دَ قراءت په صورت کښې دلالت کوی اود فوقانیه (قراءت) په صورت کښې صرف ثانی مفعول حذف کړې شوې دې. او آسمانونه اوزمکه یعنی باران اورزق او شینکی وغیره خزانو باندې هم دَالله تعالی بادشاهی ده اوهم الله تعالی په هرشئ قادر دې او هم دَدې نه دکافرانوتعذیب او مؤمنانوته نجات ورکول دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: لَقَدْ سَمِعَ اللهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْا داکلام مستانف دې دادَ یهودو فضول وینا اودَ افواه ګانو نمونه بیانولودَپاره راوړلې شوې دې. لَقَدْ کښې لام توطیه دې دَ قسم په محذوف کیدلوباندې دلالت کولودَپاره دې ای والله لَقَدْ سَمِعَ اللهُ الخ قَدْ حرف تحقیق دې او لام په جواب قسم باندې داخل دې.

**قوله**: نکتب، دې کښې اشاره ده چې د قَتْلَهُمْ عطف په مَا باندې دې نه چې په قالوا.

**قوله**: بالنصب والرفع، و قَتْلَهُمْ کښې دواړه قراءتونه دی. ځکه چې دَ قَتْلَهُمْ معطوف علیه ماقالوا دې. اومعطوف علیه دَ محل په اعتبارسره منصوب اومرفوع دواړه دې. که چرې نکتب نون سره اولوستلې شی نو مَاقَالُوْا به محلاً منصوب شی ځکه چې نکتب به مفعول شی او که یُکْتَبُ یاء سره اولوستلې شی نومعطوف علیه به مرفوع وی ځکه چې یکتب به دَ مجهول صیغه وی او مَاقالوا نائب فاعل.

**قوله**: اي بذي ظلم دي كښې اشاره ده چې ظلّام دَ مبالغه صيغه دَاسم فاعل په معنی کښې دي په قرآن کریم کښې دَ مبالغه صیغه اکثر دَاسم فاعل په معنی کښې مستعمل ده.

**قوله**: جوائح، دا دَ جائحة جمع ده آفت دَ ميوو بيماري.

**قوله**: التشبيب، غزل وئيل، دَعشق اومحبت خبري، تشبيب په اصل کښې دَ ځوانئ دَ خبروذکر ته وائي. روستو دَ غزل په شروع کښې عشقيه خبرې ذکرکولو ته اووئيلې شوه.

**قوله**: مَعْزُوْمَاتِهَا، دي کښې اشاره ده چې عزم مصدر په معنی د اسم مفعول دې. امور جمع دے، دَعزم اضافت امور جمع د جانت د وجې نه ده.

**قوله**: لَتُبَيِّنُنَّهُ، تبيّن نه جمع مذکر حاضر بانون ثقيله، تاسو به ضرور بيانونې په دې کښې لام قسميه دې.

**قوله**: شراءهم هذا، شراءهم، دَبئس فاعل دې او هذا مخصوص بالمدح دې.

[ايالونه: ۱۹۰-۲۰۰]

{إن في خلق السماوات والأرض} وما فيهما مِنَ الْعَجَائِب {وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ} بِالْمَجِيء وَالذَّهَاب وَالزِّيَادَة وَالنُّقْصَان {لَآيَاتٍ} دَلَالَات عَلَى قُدْرَته تَعَالَى {لِأُولِي الْأَلْبَابِ} لِذَوِي الْعُقُول {الَّذِينَ} نَعْتَ لِمَا قَبْله أَوْ بَدَل {يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِهِمْ} مُضْطَجِعِينَ أَيْ فِي كل حال وعن بن عبَّاس يُصَلُّونَ كَذَلِكَ حَسَب الطَّاقَة {وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} لِيَسْتَدِلُّوا بِهِ عَلَى قُدْرَة صَانِعهمَا يَقُولُونَ {رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذَا} الْخَلْق الَّذِي نَرَاهُ {بَاطِلًا} حَال عَبَثًا بَلْ دَلِيلًا عَلَى كَمَالِ قُدْرَتك {سُبْحَانَكَ} تَنْزِيهًا لَك عَنْ العبث {فقنا عذاب النار} {رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ} لِلْخُلُودِ فِيهَا {فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ} أَهَنْته {وَمَا لِلظَّالِمِينَ} الْكَافِرِينَ فِيهِ وُضِعَ الظَّاهِر مَوْضِع الْمُضْمَر إشْعَارًا بِتَخْصِيصِ الْخِزْي بِهِمْ {مِنْ أَنْصَارٍ} يَمْنَعُونَهُمْ مِنْ عَذَاب اللَّه تعالى {رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي} يَدْعُو النَّاس {لِلْإِيمَانِ} أَيْ إلَيْهِ وَهُوَ مُحَمَّد أَوْ الْقُرْآن {أَنْ} أَيْ بِأَنْ {آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا} بِهِ {رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ} حُطَّ {عَنَّا سَيِّئَاتِنَا} فَلَا تُظْهِرهَا بِالْعِقَابِ عَلَيْهَا {وَتَوَفَّنَا} اقْبِضْ أَرْوَاحنَا {مَعَ} فِي جُمْلَة {الْأَبْرَارِ} الْأَنْبِيَاء الصَّالِحِينَ {ربنا آتنا} أَعْطِنَا {مَا وَعَدْتَنَا} بِهِ {عَلَى} أَلْسِنَة {رُسُلِكَ} مِنْ الرَّحْمَة وَالْفَضْل وَسُؤَالهمْ ذَلِكَ وَإِنْ كَانَ وَعْده تَعَالَى لَا يُخْلِف سُؤَال أَنْ يَجْعَلهُمْ مِنْ مُسْتَحِقِّيهِ لِأَنَّهُمْ لَمْ يَتَيَقَّنُوا اسْتِحْقَاقهمْ لَهُ وَتَكْرِير رَبَّنَا مُبَالَغَة فِي التَّضَرُّع {وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ} الْوَعْد بِالْبَعْثِ وَالْجَزَاء {فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ} دُعَاءَهُمْ {أَنِّي} أَيْ بِأَنِّي {لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ} كَائِن {مِنْ بَعْضٍ} أَيْ الذُّكُور مِنْ الْإِنَاث وَبِالْعَكْسِ وَالْجُمْلَة مُؤَكِّدَة لِمَا قَبْلهَا أَيْ هُمْ سَوَاء فِي الْمُجَازَاة بِالْأَعْمَالِ وَتَرْك تَضْيِيعهَا نَزَلَتْ لَمَّا قَالَتْ أُمّ سَلَمَة يَا رَسُول اللَّه إنِّي لَا أَسْمَع ذِكْر النِّسَاء فِي الْهِجْرَة بِشَيْءٍ {فَالَّذِينَ هَاجَرُوا} مِنْ مَكَّة إلَى الْمَدِينَة {وَأُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي} دِينِي {وَقَاتَلُوا} الْكُفَّار

{وَقُتِلُوا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ وَفِي قِرَاءَة بِتَقْدِيمِهِ {لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ} أَسْتُرهَا بِالْمَغْفِرَةِ {وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ثَوَابًا} مَصْدَر مِنْ مَعْنَى لَأُكَفِّرَنَّ مُؤَكِّد لَهُ {مِنْ عِنْدِ اللَّهِ} فِيهِ الْتِفَات عَنْ التَّكَلُّم {وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ} الْجَزَاء وَنَزَلَ لَمَّا قَالَ الْمُسْلِمُونَ أَعْدَاء اللَّه فِيمَا نَرَى مِنْ الْخَيْر وَنَحْنُ فِي الْجَهْد {لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا} تَصَرُّفهمْ {فِي الْبِلَادِ} بالتجارة والكسب هُوَ {مَتَاعٌ قَلِيلٌ} يَتَمَتَّعُونَ بِهِ يَسِيرًا فِي الدُّنْيَا وَيَفْنَى {ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ} الفراش هي {لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ} أَيْ مُقَدَّرِينَ بِالْخُلُودِ {فِيهَا نُزُلًا} وَهُوَ مَا يُعَدّ لِلضَّيْفِ وَنَصْبه عَلَى الْحَال مِنْ جَنَّات وَالْعَامِل فِيهَا مَعْنَى الظَّرْف {مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ} مِنْ الثَّوَاب {خَيْرٌ لِلْأَبْرَارِ} مِنْ مَتَاع الدُّنْيَا {وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَمَنْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ} كَعَبْدِ اللَّه بْن سَلَام وَأَصْحَابه وَالنَّجَاشِيّ {وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ} أَيْ الْقُرْآن {وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِمْ} أَيْ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل {خَاشِعِينَ} حَال مِنْ ضَمِير يُؤْمِن مُرَاعًى فِيهِ مَعْنَى مِنْ أَيْ مُتَوَاضِعِينَ {لِلَّهِ لَا يَشْتَرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ} الَّتِي عِنْدهمْ فِي التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل مِنْ بَعْث النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {ثَمَنًا قَلِيلًا} مِنْ الدُّنْيَا بِأَنْ يَكْتُمُوهَا خَوْفًا عَلَى الرِّيَاسَة كَفِعْلِ غَيْرهمْ مِنْ الْيَهُود {أُولَئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ} ثَوَاب أَعْمَالهمْ {عِنْدَ رَبِّهِمْ} يُؤْتَوْنَهُ مَرَّتَيْنِ كَمَا فِي الْقَصَص {إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ} يُحَاسِب الْخَلْق فِي قَدْر نِصْف نَهَار مِنْ أَيَّام الدنيا {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا} عَلَى الطَّاعَات وَالْمَصَائِب وَعَنْ الْمَعَاصِي {وَصَابِرُوا} الْكُفَّار فَلَا يَكُونُوا أَشَدّ صَبْرًا مِنْكُمْ {وَرَابِطُوا} أَقِيمُوا عَلَى الْجِهَاد {وَاتَّقُوا اللَّهَ} فِي جَمِيع أَحْوَالكُمْ {لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تَفُوزُونَ بِالْجَنَّةِ وتنجون من النار

**ترجمه:** آسمانونه زمكې او په دې كښې چې كوم عجائبات دي دَدې په تخليق كښې او په تګ راتګ او زياتى كمى شپې ورځې په بدلولو كښې يقينًا دَعقلمندو دَپاره دَ الله تعالى دَ قدرت نشانې دي. كوم خلق (الذين) دَ خپل ماقبل صفت يا بدل دې چې الله تعالى په ولاړه ولاړه په ناسته ناسته او په ملاسته ملاسته يعنى هرحال كښې يادوى. ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چې دَ طاقت مطابق په دغه ذكرشوو حالتونو كښې مونځ كوى اودَ آسمانونو اوزمكو په تخليق كښې غوراوفكركوى دې دَپاره چې دَدې په ذريعه دَ زمكې اوآسمان جوړونكى قدرت باندې استدلال اوكړى. وائى اې زمونږ پروردګار دامخلوق كوم چې مونږ وينو تا بې فائدې نه دې پيداكړې بلكه ستادَ كمال قدرت دليل دې جوړكړې دې، دَتولولايعنى كارونونه ته پاک ئې نومونږ دَ دوزخ دَ عذاب نه محفوظ اوساته. اې زمونږ پروردګار څوک چې تا دَهميشه دَپاره په دوزخ كښې اوغورزول نوتا هغوى رسوا كړل اودَكافرانو دَپاره هيڅوک امدادى نشته چې هغوى دَ الله تعالى دَعذاب نه بچ كړې شى، په دې كښې دَ كافرانو سره دَ رسوائيې تخصيص طرف ته اشاره كولودَپاره دَاسم ضميرپه ځائې اسم ظاهر راوړلې شوې دې. اې زمونږ پروردګار مونږ يو آوازكونكې واوريدو چې په اوچت آوازئى خلق دَ ايمان طرف ته رابلل، اوهغه محمد ﷺ يا قرآن دې چې اې خلقو په خپل رب باندې ايمان راوړئى

تومونږ په هغه باندې ایمان راوړو اې زمونږ ربه اوس ته زمونږ گناه معاف کړه او زمونږ دَ خطاگانو پرده اوساته لهذا په هغې باندې په سزا راکولوسره هغه مه ښکاره کوه او زمونږ وفات (یعنی حشر) انبیاء کرام او صالحینوسره اوکړه او اې زمونږ ربه په خپل رحمت او خپل فضل سره (دَ مذکوره څیزونو مونږ مستحق کړه) اودَ خپل رسول ﷺ په ژبه چې تامونږ سره دَ څه وعده کړې هغه راعطاکړه. دَهغوی دَ مذکوره څیزونو سوال کول سره دَدې چې دَالله تعالی په وعده کښې تخلف نه کیږی په داسې توګه دې چې مونږ دَخپلې وعدې په مستحقینوکښې شامل کړه ځکه چې دَهغوی دَ دغه وعدو دَ مستحق کیدو یقین نه وو. اودَ رَبَّنَا تکرار په عاجزئی کښې دَمبالغه کولودَپاره دې اومونږ دَ قیامت په ورځ رسوا کوه مه بیشکه ته دَ بعث او جزاء دَ وعدې خلاف نه کوې. نودَهغوی دعادَهغوی پروردګار قبوله کړه ځکه چې زه دَ چا عمل کونکی عمل که هغه سړې وی اوکه ښځه نه ضائع کوم ځکه چې تاسو خپل مینځ کښې دَ یوبل جزیئې یعنی مذکردَ مؤنث نه دې اودَدې عکس دا جمله (معترضه) ماقبل دَپاره مؤکده ده. یعنی هغه دَاعمالو په جزاء او عدم اضاعت کښې برابر دی. (راتلونکې آیت هغه وخت نازل شو کوم وخت چې حضرت ام سلمة ﷺ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ ما نه دی اوریدلی چې الله تعالی دَ هجرت په معامله کښې دَښځوهم څه ذکرکړې وی. ځکه چې کوموخلقودَ مکې نه دَ مدینې طرف ته هجرت اوکړو او څوک چې دَهغوی دکورونونه اوویستلې شو اوزما دَدین په لارکښې ورته تکلیفونه ورکړې شو اوکومو چې کافرانوسره جهاداوکړو او شهیدکړې شو (قتلوا) تخفیف اوتشدیدسره. او په یوقراءت کښې دَ قُتِلُوْا تقدیم سره دې. زه به خامخادَهغوی ګناهونه لرې کوم یعنی هغوی به په مغفرت کښې راپټ کړم. اوضرور به هغوی په داسې جنت کښې داخلوم دکوم لاندې چې نهرونه روان دی. دادَ الله تعالی دَ طرف نه دَ ثواب په توګه دی. (ثوابًا) دَ لَاُكَفِّرَنَّ معنی نه مصدر دَ تاکیددَپاره دې. په دې کښې دَتکلم نه دَ غیبت طرف ته التفات دې. او بهترین ثواب هم الله تعالی سره دې. (او راتلونکې آیت هغه وخت نازل شو، کله چې مسلمانانو اووئیل مونږ خودَالله تعالی دښمنان په بهتر حالت (خوشحالئی) کښې وینو او مونږ په سختوکښې یو. دَ کافرانو په ښاریوکښې دَتجارت اوکارکسب په سلسله کښې تګ راتګ دې تاسو په دهوکه کښې وانچوی دا خود یوڅو ورځوخوشحالی ده په کوم سره چې به په دنیا کښې یوڅوورځې تیرې کړی اوختم به شی. بیاخودَدوی ځائی دوزخ دې او هغه ډیرخراب ځائی دې یعنی خرابه بستره ده. البته کوم خلق چې دَ خپل پروردګارنه ویریږی دَهغوی دَپاره داسې باغونه دی دَ کوم لاندې چې نهرونه جاری دی په کوم کښې چې به هغوی دَ همیشه دَپاره وی. دادَالله تعالی دَ طرف نه دَ میلمستیاپه توګه دی اودا همیشه اوسیدل دَ هغوی دَپاره مقدرکړې شوی دی او نُزُل هغه څیز ته وائی کوم چې دَ میلمه دَپاره تیارولې شی اودَدې نصب جنة نه دَحال کیدو په وجه دې او په دې کښې

عامل معنى د ظرف ده (اى ثَبَتَ لهم) اوالله تعالى سره چې کوم ثواب دې هغه دَ صالحينو دَپاره دَدنيا دَ متاع نه بهتردې او په اهل کتاب کښې يقينًا څه داسې خلق هم دى چې په الله تعالى باندې ايمان لرى لکه عبدالله بن سلام ﷺ اودَهغه ملګرى يانجاشى او په هغې باندې هم کوم چې ستا طرف ته نازل کړې شوى دى يعنى قرآن اوکوم چې دَهغوى طرف ته نازل شوى دى يعنى تورات اوانجيل(دَالله نه) ويريدونکى دى. اودَ الله تعالى آياتونه کوم چې تورات اوانجيل کښې هغوى سره دى اوهغه دَ محمد ﷺ صفات دى په لږ قيمت کښې سودا نه کوى چې دَ بادشاهئى دَختميدو په ويره کښې هغه پټ کړى لکه چې دَهغوى نه علاوه نورو يهوديانو کول. هم دغه هغه خلق دى دَ چادَ اعمالو بدله چې دَهغوى رب سره ده هغوى ته به ډبل اجرورکولې شي لکه چې په سورت قصص کښى دى يقينًا الله تعالى ديرزر حساب اخستونکې دې دَمخلوق حساب دَ دنياوى ورځو دَ حساب په اعتبارسره به په نيمه ورځ کښې اخلى. اې ايمان والو په اطاعت او په مصائب باندې اودګناه نه په منع کيدوباندې صبرکوئې اودکافرانو په مقابله کښې کلک اوسيږئى چې هغوى تاسو نه زيات ثابت قدم نه وى. اودَ جهاد دَپاره تياراوسيږئى اودَ الله تعالى نه ويريږئى دې دَپاره چې تاسو دَ جنت په ګټلو کښې کامياب شئى اودَ دوزخ دَ اورنه خلاص شئى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

اِنَّ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ(الاية) کلام مستانف دې دَالله سبحان وتعالى وجود اودَهغه علم اودَ هغه قدرت بيانولو دَ پار راوړلې شوې دې.

**قوله**: يقولون سابق کښې دَالله تعالى کلام وو دَدې ځائى نه د اولوالالباب کلام شروع کيږى ځکه دلته ئى يقولون مقدرمنلې دې.

**قوله**: الخلق الذى نرّاه دادَ يوسوال مقدرجواب دې.

**سوال**: دَ هذا مشاراليه السموات والارض دې کوم چې مؤنث دې اوهذا دې کښې اشاره دَمذکرده اسم اشاره او مشار اليه کښې مطابقت نشته.

**جواب**: دَ هذامشاراليه خلق دى چې په معنى مخلوق دى لهذا هيڅ اعتراض نشته.

**قوله**: باطلاً دادَ هذا حال دې نه چې دَ خلقت مفعول ثانى دې ځکه چې خلق متعدى په يومفعول وې.

**قوله**: للخلودفيها دادَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دَ الله تعالى د قول ﴿ يَوْمَ لَا يُخْزِى اللّٰهُ النَّبِىَّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ ﴾ مقتضى ده چې ټول مؤمنان دې غيرمخزى وى حالانکه دَعصاة مؤمنانونه به بعض په دوزخ کښې داخليږى

اودا آیت دلالت کوی چې څوك هم په دوزخ کښې داخل شو هغه رسوا شو سره دَدې چې هغه مؤمن ولې نه وی.

**جواب**: دخول نه دائمی دخول مراددې کوم چې به صرف دکافرانو دَپاره وی. په دې سره دَ معتزله جواب هم راغلو چې دَهغوی په نیز دکبیره گناه مرتکب مؤمن نه دې.

**قوله**: وضع الظاهر موضع المضمر الخ دا دَ یو سوال مقدرِ جواب طرف ته اشاره ده.

**سوال**: دَ اصحاب الخزی ذکر سابق کښې دَ مَن تدخل النار په ضمن کښې راغلې دې لهذا دَ دې دَپاره ضمیر راوړل کافی وو یعنی دَ ماللظلمین په ځائې مالهم کافی وو؟

**جواب**: دادې چې دَ خزیان تخصیص بیانولو دَپاره په صراحت سره لفظ ظالمین ذکرکړې شوې دې.

**قوله**: الیه دَ سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: نداء او دعاء متعدی باللام نه وی حالانکه دلته متعدی باللام دې؟

**جواب**: لام په معنی دَ الی دې. هم دَدې جواب طرف ته مفسرعلام إِلَيْهِ وئیلوسره اشاره کړې ده.

**قوله**: ثوابًا مصدرٌ مِنْ معنی لَاُکفرنَّ موکدله په دې عبارت سره داخودل دی چې ثوابًا دَ جنت نه حال نه دې ځکه چې دلته دَ حال په ذوالحال باندې حمل صحیح نه دې.

**قوله**: لاکفرن سره دَ یو سوال جواب ورکول مقصوددی.

**سوال**: دَ ثوابًا، لَاُكَفِّرَنَّ مفعول مطلق نه شی کیدې دَدواړو الفاظ جدا دی حالانکه دَ دواړو دَ یوې ماده نه کیدل ضروری دی؟

**جواب**: ثوابًا او لَاُكَفِّرَنَّ سره دَدې چې دَدواړو الفاظ متحدنه دی مگر دَمعنې په اعتبارسره دواړه متحددی ځکه چې لَاُكَفِّرَنَّ په معنی دَ لَاُثِيْبَنَّهُمْ کښې دې. لهذا اوس به عبارت داسې شی لَاُثِيْبَنَّهُمْ ثوابًا اودا مفعول مطلق دَ تاکید دَپاره دې.

## [٤] سورة النسآء

## مدنية وخمس اوست او سبع او سبعون اية

سورت نساء مدنی دی ۱۷۵ یا ۱۷۶ یا ۱۷۷ آیاتونه دی.

**[ایاتونه: ۱-۱۰]**

{يٰأَيُّهَا النَّاس} أَيْ أَهْل مَكَّة {اتَّقُوا رَبَّكُمُ} أَيْ عِقَابه بِأَنْ تُطِيعُوهُ {الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ} آدم {وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا} حَوَّاء بِالْمَدّ مِنْ ضِلَع مِنْ أَضْلَاعه الْيُسْرَى {وَبَثَّ} فَرَّقَ وَنَشَرَ {مِنْهُمَا} مِنْ آدم وَحَوَّاء {رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً} كَثِيرَة {وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي السِّين وَفِي قِرَاءَة بِالتَّخْفِيفِ بِحَذْفِهَا أَيْ تَتَسَاءَلُونَ {بِهِ} فِيمَا بَيْنكُمْ حَيْثُ يَقُول بَعْضكُمْ لِبَعْضٍ أَسْأَلك بِاللّٰهِ وَأَنْشُدك بِاللّٰهِ {وَ} اتَّقُوا {الْأَرْحَامَ} أَنْ تَقْطَعُوهَا وَفِي قِرَاءَة بِالْجَرّ عَطْفًا عَلَى الضَّمِير فِي بِهِ وَكَانُوا يَتَنَاشَدُونَ بِالرَّحِمِ {إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا} حَافِظًا لِأَعْمَالِكُمْ فَيُجَازِيكُمْ بِهَا أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذَلِكَ وَنَزَلَ فِي يَتِيم طَلَبَ مِنْ وَلِيّه مَاله فَمَنَعَهُ {وَآتُوا الْيَتَامَى} الصِّغَار الَّذِينَ لَا أَب لَهُمْ {أَمْوَالَهُمْ} إِذَا بَلَغُوا {وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ} الْحَرَام {بِالطَّيِّبِ} الْحَلَال أَيْ تَأْخُذُوهُ بَدَله كَمَا تَفْعَلُونَ مِنْ أَخْذ الْجَيِّد مِنْ مَال الْيَتِيم وَجَعْل الرَّدِيء مِنْ مَالكُمْ مَكَانه {وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ} مَضْمُومَة {إِلَى أَمْوَالِكُمْ إِنَّهُ} أَيْ أَكْلهَا {كَانَ حُوبًا} ذَنْبًا {كَبِيرًا} عَظِيمًا وَلَمَّا نَزَلَتْ تَحَرَّجُوا مِنْ وِلَايَة الْيَتَامَى وَكَانَ فِيهِمْ مَنْ تَحْته الْعَشْر أَوْ الثَّمَان مِنْ الْأَزْوَاج فَلَا يَعْدِل بَيْنهنَّ فنزل {وَإِنْ خِفْتُمْ} ن {أَلَّا تُقْسِطُوا} تَعْدِلُوا {فِي الْيَتَامَى} فَتَحَرَّجْتُمْ مِنْ أَمْرهمْ فَخَافُوا أَيْضًا أَنْ لَا تَعْدِلُوا بَيْن النِّسَاء إِذَا نَكَحْتُمُوهُنَّ {فَانْكِحُوا} تَزَوَّجُوا {مَا} بِمَعْنَى مَنْ {طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ} أي اثنين اثنين وثلاثا ثلاثا واربعا اربعا ولا تزيدوا على ذلك {فَإِنْ خِفْتُمْ} ن {أَلَّا تَعْدِلُوا} فِيهِنَّ بِالنَّفَقَةِ وَالْقَسْم {فَوَاحِدَةً} انكحوها {أَوْ} اقْتَصِرُوا عَلَى {مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ} مِنْ الْإِمَاء إِذْ لَيْسَ لَهُنَّ مِنْ الْحُقُوق مَا لِلزَّوْجَاتِ {ذَلِكَ} أَيْ نِكَاح الْأَرْبَع فَقَطْ أَوْ الْوَاحِدَة أَوْ التَّسَرِّي {أَدْنَى} أَقْرَب إِلَى {أَلَّا تَعُولُوا} تجوروا {وَآتُوا} أَعْطُوا {النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ} جَمْع صَدُقَة مُهُورهنَّ {نِحْلَةً} مَصْدَر عَطِيَّة عَنْ طِيب نَفْس {فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا} تَمْيِيز مُحَوَّل عَنْ الْفَاعِل أَيْ طَابَتْ أَنْفُسهنَّ لَكُمْ عَنْ شَيْء مِنْ الصَّدَاق فَوَهَبْنَهُ لَكُمْ {فَكُلُوهُ هَنِيئًا} طَيِّبًا {مَرِيئًا} مَحْمُود الْعَاقِبَة لَا ضَرَر فِيهِ عَلَيْكُمْ فِي الْآخِرَة نَزَلَتْ رَدًّا عَلَى مَنْ كَرِهَ ذَلِكَ {وَلَا تُؤْتُوا} أَيّهَا الْأَوْلِيَاء {السُّفَهَاءَ} الْمُبَذِّرِينَ مِنْ الرِّجَال وَالنِّسَاء وَالصِّبْيَان {أَمْوَالَكُمُ} أَيْ أَمْوَالكُمْ الَّتِي فِي أَيْدِيكُمْ {الَّتِي جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِيَامًا} مَصْدَر قَامَ أَيْ تَقُوم بِمَعَاشِكُمْ وَصَلَاح أَوْلَادكُمْ فَيُضَيِّعُوهَا فِي غَيْر وَجْههَا وَفِي قِرَاءَة قِيَمًا جَمْع قِيمَة مَا تَقُوم بِهِ الْأَمْتِعَة {وَارْزُقُوهُمْ فِيهَا} أَيْ أَطْعِمُوهُمْ مِنْهَا {وَاكْسُوهُمْ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَعْرُوفًا} عِدُوهُمْ عِدَة جَمِيلَة بِإِعْطَائِهِمْ أَمْوَالهمْ إِذَا رشدوا {وَابْتَلُوا} اخْتَبِرُوا {الْيَتَامَى} قَبْل الْبُلُوغ فِي دِينهمْ وَتَصَرُّفهمْ فِي أَحْوَالهمْ {حَتَّى إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ} أَيْ صَارُوا أَهْلًا لَهُ بِالِاحْتِلَامِ أَوْ السِّنّ وَهُوَ اسْتِكْمَال خَمْس عَشْرَة سَنَة عِنْد الشَّافِعِيّ {فَإِنْ

آنَسْتُمْ} أبصرتم {مِنْهُمْ رُشْدًا} صَلَاحًا فِي دِينهمْ وَمَالهمْ {فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَلَا تَأْكُلُوهَا} أَيُّهَا الْأَوْلِيَاء {إِسْرَافًا} بِغَيْرِ حَقّ حَال {وَبِدَارًا} أَيْ مُبَادِرِينَ إِلَى إِنْفَاقهَا مَخَافَة {أَنْ يَكْبَرُوا} رشداء فيلزمكم تسليمها إليهم {ومن كان} من الاولياء {غنيا فَلْيَسْتَعْفِفْ} أَيْ يَعِفّ عَنْ مَال الْيَتِيم وَيَمْتَنِع مِنْ أكله {وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ} مِنْهُ {بِالْمَعْرُوفِ} بِقَدْرِ أُجْرَة عَمَله {فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ} أَيْ إِلَى الْيَتَامَى {أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ} أَنَّهُمْ تَسَلَّمُوهَا وَبَرِئْتُمْ لِئَلَّا يَقَع اخْتِلَاف فَتَرْجِعُوا إِلَى الْبَيِّنَة وَهَذَا أَمْر إِرْشَاد {وَكَفَى بِاللَّهِ} الْبَاء زَائِدَة {حَسِيبًا} حَافِظًا لِأَعْمَالِ خَلْقه وَمُحَاسِبهمْ وَنَزَلَ رَدًّا لِمَا كَانَ عَلَيْهِ فِي الْجَاهِلِيَّة مِنْ عَدَم تَوْرِيث النِّسَاء وَالصِّغَار {لِلرِّجَالِ} الْأَوْلَاد وَالْأَقْرِبَاء {نَصِيب} حَظّ {مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ} الْمُتَوَفَّوْنَ {وَلِلنِّسَاءِ نَصِيب مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ} أَيْ الْمَال {أَوْ كَثُرَ} جَعَلَهُ اللَّه {نَصِيبًا مَفْرُوضًا} مَقْطُوعًا بِتَسْلِيمِهِ إِلَيْهِمْ {وإذا حضر القسمة} للميراث {أولوا الْقُرْبَى} ذَوُو الْقَرَابَة مِمَّنْ لَا يَرِث {وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِين فَارْزُقُوهُمْ مِنْهُ} شَيْئًا قَبْل الْقِسْمَة {وَقُولُوا} أَيُّهَا الْأَوْلِيَاء {لَهُمْ} إِذَا كَانَ الْوَرَثَة صِغَارًا {قَوْلًا مَعْرُوفًا} جَمِيلًا بِأَنْ تَعْتَذِرُوا إِلَيْهِمْ أَنَّكُمْ لَا تَمْلِكُونَهُ وَأَنَّهُ لِلصِّغَارِ وَهَذَا قِيلَ إِنَّهُ مَنْسُوخ وَقِيلَ لَا وَلَكِنْ تَهَاوَنَ النَّاس فِي تركه وعليه فهو ندب وعن بن عباس واجب {وَلْيَخْشَ} أَيْ لِيَخَفْ عَلَى الْيَتَامَى {الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا} أَيْ قَارَبُوا أَنْ يَتْرُكُوا {مِنْ خَلْفهمْ} اي من بَعْد مَوْتهمْ {ذُرِّيَّة ضِعَافًا} أَوْلَادًا صِغَارًا {خَافُوا عَلَيْهِمْ} الضَّيَاع {فَلْيَتَّقُوا اللَّه} فِي أَمْر الْيَتَامَى وليأتوا إليهم مَا يُحِبُّونَ أَنْ يُفْعَل بِذُرِّيَّتِهِمْ مِنْ بَعْدهمْ {وَلْيَقُولُوا} لِمَنْ حَضَرَتْهُ الْوَفَاة {قَوْلًا سَدِيدًا} صَوَابًا بِأَنْ يَأْمُرُوهُ أَنْ يَتَصَدَّق بِدُونِ ثُلُثه وَيَدَع الْبَاقِي لِوَرَثَتِهِ وَلَا يَتْرُكهُمْ عَالَة {إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَال الْيَتَامَى ظُلْمًا} بِغَيْرِ حَقّ {إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونهمْ} أَيْ مِلْأَهَا {نَارًا} لِأَنَّهُ يَؤُول إِلَيْهَا {وَسَيَصْلَوْنَ} بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمَفْعُول يَدْخُلُونَ {سَعِيرًا} نَارًا شَدِيدَة يَحْتَرِقُونَ فِيهَا

---

**ترجمه:** شروع کوم په نامه الله چې ډير بخښونکې او ډيرمهربان دې. اې خلقو يعنی اې مکې والو تاسو ځېل رب د عذاب نه اووېرېږئی په داسې طريقه چې د هغه اطاعت اوکړئی. چاچې تاسو يوځان ادم نه پيداکړئی اوهم د هغه نه ئی د هغه جوړه حواء بی بی د هغه د کسې پوښتو نه د ښې پوښتئی نه پيداکړه (حواء) مدسره ده او د دغه دوارو يعنی آدم عليه السلام او بی بی حوا نه ډير سړی اوښځې خوراه کړل او د هغه الله تعالی نه اووېرېږئی د چاپه واسطه چې تاسو د يو بل نه غوښتنې کوئی. په دې طريقه چې يوبل ته وايئې زه تانه د الله تعالی په واسطه سره سوال کوم ياتاته د الله تعالی قسم درکوم. په دې کښې تاء په اصل کښې په سين کښې مدغم ده او په يوقراءت کښې په حذف د تاء تخفيف سره دې. اې تَسَاءَلُوْنَ او د ذوی الارحام په معامله کښې د الله تعالی نه وېرېږئی يعنی د تعلق پرېخودونه اووېرېږئی او په يوقراءت کښې (د اَرْحَامِ) په کسره سره دې د ه په ضميرباندې عطف کولوسره او هغوی

ـه په خپل مینځ کښې دَ صله رحمئی هم واسطه ورکوله. **بیشکه الله تعالی په تاسو باندې** ساتندونکې دې یعنی ستاسو د اعمالو محفوظ ساتونکې دې نو هغه به تاسوته دَ دغه عمالو بدله درکوی یعنی هغه په دغه دَ ساتندونکی صفت سره دَ همیشه نه متصف دې او (راتلونکې) آیت دَ یویتیم باره کښې نازل شو هغه دَخپل ولی نه خپل مال اوغوښتلو نو هغه منع کړو **اویتیمان** یعنی هغه واړه ماشومان دَ چاپلارچې موجودنه وی کله چې هغوئ بالغ شی **نودَهغه مال ورکړه اوحرام په حلال سره مه بدله وه**. یعنی حرام دَحلال په عوض مه اخله لکه چې تاسو دَ یتیمانودَمال نه ښکلې مال واخلئ اودَخپل مال نه خراب قسم مال دَهغې په ځائی کیږدئی **اودَهغوی مالونه خپلو مالونوکښې یوځائی کولوسره** (یعنی دَدې په دهوکه کښې) **مه خورئی بیشکه داخوراك عظیم گناه ده** اوکله چې مذکوره ایت نازل شو نوخلقو دَیتیمانو په پالنه کښې حرج محسوس کړو او په هغوی کښې بعض خلق داسې هم وو دَ چا په زوجیت کښې چې لس لس یا اته اته یتیمانې کونډې وې اوهغوی به دَدوی په مینځ کښې دَعدل نه کارنه اخستلو نوراتلونکې آیت نازل شو. **که تاسوته دَیتیمانو باره کښې دَ عدل نه کارنه اخستو خطره وی اوتاسودَهغوی په معامله کښې** (گناه) نه بچ کیدل غوارئی اودَ دغه یتیمانو جینکوسره دَ نکاح کولوپه صورت کښې هم دَ انصاف نه کولوویره وی نو (دَیتیمانو جینکونه علاوه) **سره نکاح اوکړئی کومې چې ستاسو خوښې وی**. مَا په معنی مَنْ دې دوه دوه درې درې څلور څلوراودې نه مه وراندې کیږئی **خو تاسو ته دَهغوی په مینځ کښې** (هم) **دَمساوات نه کولو ویره وی نوهم یوه کافی ده یا په خپلو وینځوباندې** اکتفاء اوکړئی ځکه چې دَ وینځوهغه حقوق نه وی کوم چې دَ بیبیانووی. دا څلورو سره نکاح یا یوې سره نکاح یا په وینځه باندې اکتفاء **دَزیاتی نه کیدو په توقع کښې دیر نیزدې** دی اوتاسو دَ ښځو مهر دَ زړه په خوشحالئ سره ورکوئی. صَدُقٰت، دَ صَدُقَةٌ جمع ده. صَدُقٰتِهِنَّ ای مهورهُنَّ، نِحلَةً مصدر دې معنی په خوشحاله زړه سره دَ عطیه ورکول دی خو که دَ زړه په **خوشحالئ سره دَهغې نه دوئ ستاسو دَپاره څه پریږدی نَفْسًا** تمیزدې چې دَفاعل نه منقول دې ای طَابَتْ أَنْفُسُهُنَّ لکم من شئٍ مِنَ الصَّداق **فَوَهَبْنَهُ لکم نوتاسوهغه په شوق اوخوشحالئ سره** خورئی اودَدې په خوړلوسره ستاسو دَ پاره په آخرت کښې هیڅ نقصان نشته. دا آیت په هغه سړی باندې رد کولوباره کښې نازل شو چې په دې کښې ئی کرکه کوله. اواې اولیاء تاسو کم عقلو ته څوك چې فضول خرچ وی سړی وی که ښځه یاماشومانوته هغه مال مه ورکوئی کوم چې ستاسو په قبضه دی (او) **اوکوم ئی چې ستاسودَ ژوند تیرولودَپاره دَ ژوند** ذریعه جوړه کړې ده، قِیَامًا دَ قَامَ مصدردې یعنی دکوم په ذریعه چې تاسو خپل معاش اودَخپل اولاد اصلاح قائم ساتئی نوهغوی به دغه مال بغیردَ څه وجې نه خرچ کړی او په

یو قراءت کښې قِيَمًا د قيمة جمع ده د کوم په وجه چې د ژوند تیرول قائم پاتې کیږي او دغه مال نه په هغوی باندې خوړل او اغوستل کوئ او هغوی ته د نیکئ خبره کوئ یعنې تاسو هغوی ته د مال ورکولو باره کښې ښه وعدې کوئ چې کله ته هوښیار شې (نو ستاسو مال به تاسو ته درکولې شی) او (د هغوی) بالغ کیدونه وړاندې دهغوی د دین او لین دین معاملات کښې دهغوی خیال ساتئ تردې چې دنکاح عمر ته اورسي (بالغ شي) یعنې د نکاح اهل شي د احتلام په ذریعه یادعمر په ذریعه او هغه (موده) د پنځلسو کالو پوره کیدل دي.
د امام شافعي رحمه الله په نیز که چرې تاسو په هغوی کښې پوهه یعنې دهغوی د دین او مال په معامله کښې صلاح اوګورې نو دهغوی مال هغوی ته حواله کړئ او اې اولیاؤ دهغوی د لوئیدلو د ویرې دهغوی مالونه زر زر فضول خرچو کښې ناحق مه تباه کوئ (یعنې د هغوی د غټیدو او پوهیدو د ویرې په تادئ سره دهغوی مال مه خورئ په دې خیال چې د غټیدو نه پس به دهغوی مال هغوی ته حواله کول دي) او په اولیاؤ کښې چې څوک مالداروي هغه له پکاردي چې د هغوی یعنې د یتیمانو د مال نه ځان بچ کړي او دهغې د خوړلو نه دې ځان اوساتي البته څوک چې ناداروي نو هغه دې د یتیم د مال نه د دستور مطابق د خپل عمل داجرت په اندازه باندې خوراک کولې شي او کله چې د هغوی مال هغه یتیمانو ته حواله کوئ نو په هغې باندې ګواه جوړه وئ چې هغوی مال وصول کړي او تاسو خلاص شئ دې دپاره چې اختلاف واقع نه شي. (او د اختلاف واقع کیدو په صورت کښې) تاسو د ګواه طرف ته رجوع اوکړې شئ او دا امر اصلاحي دې (یعنې د ګواه جوړولو حکم استحبابی دې) او الله تعالی حساب اخستونکې کافی دې یعنې د خپل مخلوق د اعمالو محافظ او دهغې محاسب دې. (راتلونکې آیت) ددې دستور رد کولو دپاره نازل شو کوم چې د جاهلیت په خلقو کښې رائج وو او هغه ښځو او ماشومانو ته دمیراث نه ورکولو دستور وو. وفات کیدونکو مور پلار په مال کښې د سړو یعنې اولاد او دخپلوانو حصه هم ده او د والدین او خپلوانو په ترکه کښې د ښځو حصه هم ده که مال ډیر وی که لږ، الله تعالی په هغې کښې حصه مقرر کړې ده او کله چې د میراث د تقسیم په وخت داسې خپلوان راشي چې دهغوی په میراث کښې حصه نه وی او یتیم او مسکین (راشي) نو د تقسیم نه وړاندې څه لږ ډیر هغوی ته هم ورکړئ او اې اولیاؤ دې حاضریدونکو سره په خواخلاقو خبره کوئ کله چې په ورثه کښې نابالغ هم وی نو په داسې طریقه چې هغوی ته معذرت اوکړه چې تاسو ددې مالکان کیدې نه شئ ځکه چې دا د نابالغ ماشومانو مال دې او وئیلی شوی دی (چې غیرورثاته د ورکولو حکم) منسوخ دې او نور وئیلی شوی دی چې نه دې منسوخ. بلکه خلق (په دې حکم باندې) په ترک عمل کښې آساني ګڼړی او د دغه عدم نسخ د قول مطابق امر د استحباب دپاره دې. او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چې دا حکم د وجوب دپاره دې او د

یتیمانو باره کښې هغه خلق ویرول پکاردی که چرې هغوی خپل شاته دَ خپل مرګ نه پس واړه کمزوری ماشومان پریخودل یعنی مرګ ته نیزدې کیدودَ وچې نه پریخودوته نیزدې کیدل دَ کومو دَ ضائع کیدوچې ویره وی نوپکاردی چې دَیتیمانو معامله کښې دَالله تعالی نه اوویرېږی اوهغوی سره هم هغه سلوك اوکړی کوم چې هغوی پخپله خوښویچې دَهغوی دَ مرګ نه پس دَهغوی اولاد سره څه اوکړې شی او مرکیدونکې یعنی (بیمار) سره مناسب خبره کوئی (مثلاً) دا چې هغه ته اووئیلې شی دَ دریمې حصې دَ مال نه کم صدقه کړه اوباقی دَ وارثانو دَپاره پرېږده او محتاج جوړولوسره ئی مه پرېږده. **بیشکه کوم خلق چې په ناروا طریقه باندې دَ یتیمانومال خوری نوهغوی په خپلو خېټوکښې اور خوری،** یعنی خېټه کښې اور ډکوی. ځکه چې دا (خوړلې شوې) به په اورکښې بدل شی **اوهغه خلق به ډیر زر سورکړې** شوی یعنی سخت اور ته ورځی په کوم کښې چې به هغوی سوزیږی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: يَأَيُّهَا النَّاسُ اي اهل مكة.

**سوال**: مشهوره قاعده ده چې په مکی آیاتونوکښې خطاب په یاایها الناس سره او مدنی آیاتونوکښې یاایها الذین آمنوا سره کیږی حالانکه سورت نساء مدنی دې خو په دې کښې خطاب یاایها الذین سره شوې دې دَدې څه وجه ده؟

**جواب**: مذکوره قاعده اکثری ده کلی نه ده، دَدې نه علاوه مخاطب دلته هم اهل مکه دی.

**قوله**: اي عِقَابَهُ دَدې اضافه مقصداخودل دی چې دَ ذات نه احترازِ محال دې مطلب دادې چې دَدې اطاعت کولو سره دَ هغه دَ عذاب نه بچ شئ.

**قوله**: حوّآء انما سميت حواء لانها خُلِقَتْ من الحيّ.

**قوله**: تَسَاءلُوْنَ، دَتساءل نه مضارع ده جمع مذکرحاضر، تاسوخپل مینځ کښې سوال کوئی اصل کښې تَتَسَاءَلونَ وو تاء ثانیه حذف کړې شوه.

**قوله**: والارحام داد رحم جمع ده په معنی د قرابت رشته داری.

**قوله**. أن يُقَطَّعُوْا دې کښې اشاره ده چې مضاف محذوف دې لهذا دااعتراض ختم شو چې دَ ارحام نه دَ احتراز څه معنی نشته.

**قوله**: كانوايتناشدون اى يتقاسمون.

**قوله**: الأُلى، دا اسم موصول دې کوم چې مذکرمؤنث یعنی الذی او آلتی کښې مشترك دې. ځکه چې یتیم کیدل مذکر یا مؤنث سره خاص نه دی دَدې دَپاره ئی داسې اسم

موصول راوړلې دې چې په مذکراومؤنث دواړو کښې مشترك دې.

**فائده:** په انسانانو کښې یتیم هغه ماشوم ته وائی دَ کوم چې پلارنه وی او په څناورو کښې چې دَ چا مورنه وی الیتیم فی الاناسی مِنْ قِبَلِ الآباءِ وفی البهائم مِنْ قِبَلِ الامُّهَاتِ.

**قوله:** یتٰمی، دَیتیم جمع الجمع ده. دَیتیم جمع یتمٰی په وزن د اَسْرٰی او یتمٰی جمع دَ یتامٰی ده.

**قوله:** مَضْمُوْنَةً، د اَکْلُ صله چونکه اِلٰی نه راځی دَدې دَپاره مضمونة مقدرمنلو سره اشاره او کړه چې الی مَضْمُوْنَةً سره متعلق دې نه چې دَ تَـاْکُلُوا دې.

**قوله:** ای اکلَهَا، دا دَیو سوال مقدرجواب دې.

**سوال:** دَ اَنَّهُ ضمیر دَ اموال طرف ته راجع دې کوم چې جمع دې دَ ضمیرمفرد راوړل صحیح نه دی.

**جواب:** دَتـاْکلوا نه چې کوم اکل مفهوم دې دَهغې طرف ته راجع دې.

**قوله:** تَحَرَّجُوْامِنْ ولایة الیتٰمی، یعنی دَ یتیمانو دَ ولایت نه بچ کیدل اود منع کیدلو کوشش ئی کولو.

**قوله:** فَخَافُوْا.

**سوال:** فخافوا جزاء محذوف منلوڅه ضرورت پیښ شو؟ ځکه چې فـانکحوا جزاء موجود ده.

**جواب:** دَ جواب حاصل دادې چې خـافوا دَماضی صیغه نه ده لکه چې په بادی الرائې کښې وهم کیږی بلکه دادَ امر جمع مذکرحاضر صیغه ده مطلب دادې چې که تاسو ته دَ یتیمانو دَمال باره کښې دَناانصافئی ویره وی اودَ دغه یتیمانو جینکوسره دَ نکاح کولو په صورت کښې هم دَ بې انصافئی ویره وی، مطلب دادې چې دَ ناانصافئی په خطره کښې دواړه صورتونه شریك دی دَ مفهوم په دې اشتراك باندې دَمفسرعلام لفظ ایضًا دلالت کوی.

**قوله.** اِنکحوها.

**سوال:** جزاء دَپاره جمله کیدل شرط دی حالانکه دلته جزاء، فَوَاحِدَةً مفرد دې.

**جواب:** مفسرعلام انکحوا محذوف منلو سره دَدې سوال دَ جواب طرف ته اشاره کړې ده. ای اِنْکحوا وَاحِدَةً دَدې تقدیرنه پس جزاء جمله شوې ده لهذا اوس هیڅ اعتراض نشته دې.

**قوله:** اِقْتَصَرُوْاعلی داعبارت هم دَ یو سوال مقدرجواب دې.

**سوال:** دادې چې د اَوْمَامَلَکَتْ عطف په اِنکحواواحدةً باندې دې کوم چې عطف مفرد علی

الجمله دَ قبيل نه دي حالانكه دا جائز نه دى.

**جواب**: دادې چې مفسرعلام اقتصروا على محذوف منلوسره هم دَدې سوال جواب وركړې دې اقتصروا محذوف منلو نه پس عطف جمله على الجمله شو لهذا څه اعتراض پاتې نه شو.

**سوال**: په معطوف كښې فعل محذوف دَ كوم مصلحت لاندې بدل كړې شو؟ اوحا دادې چې په معطوف عليه كښې انكحوا فعل محذوف دې او محذوف كښې اِقتصروا.

**جواب**: كه چرې په معطوف كښې فعل نه بدلولو نوتقديرى عبارت به داكيدو إنكحوا مَاملكت اَيْمَانكم اودا صحيح نه دې. ځكه چې وينځې سره دَمالك نكاح صحيح نه ده. (ترويح الارواح)

**قوله**: عطيةً عَنْ طيب نفسٍ دادَ هغه شبه جواب دې چې نحلةً مصدر (يعنى مفعول مطلق) څنګه كيدې شى؟ كله چې دَ مفعول مطلق دَپاره دَمصدر دَ فعل هم معنى كيدل شرط دى اودلته داسې نه دى. دَ جواب حاصل دادې چې نِحْلَةً په معنى د عطية دې لهذا د خپل فعل كوم چې آتواالنسـاء دې هم معنى دې ځكه چې آتوا، دَ اعطوا په معنى كښې دې.

**قوله**: هَنِيْئًا صفت مشبه (ف ن ض) هَنَاءً ښكلې مزه، پاكيزه، دَ فعيل په وزن واحد جمع تولودَپاره راځى په دې وجه دلته دَ ضميرواحدنه حال دې.

**قوله**: مَرِيْئًا صفت مشبه، مزيدار، مَرَاءٌ مصدر مزيدار كيدل (ك ف س).

**قوله**: بِغَيْرِحق په دې اضافه سره دا شك لرې كړې شو چې اسراف نه بغيربه دَ يتيمانو مال خوړل جائز وى نو بغيرحق اضافه كولوسره اوخودلې شو چې په ناحقه طريقه ئې مه خورئى كه اسراف وى كه نه وى.

**قوله**: فَلْيَسْتَعْفِفْ (استفعال) واحدمذكرغائب، دې بچ شى، احتراز دې اوكړى.

**قوله**: لِئلاّيَقَعَ اِخْتِلاَفٌ ترجعواالى البيّنَةِ، اى اِنْ وقع اختلاف فترجعواالى البيّنة.

**قوله**: هذاالأمرُلِرْشاد، اى اَمْرُاستحباب، يعنى دَ امام اعظم رحمه الله په نيزګواه جوړول مستحب امر دې ځكه چې دَ امام صاحب په نيز دَ اختلاف په صورت كښې دَ ولى قول معتبردې.

**قوله**: جَعَلَهُ الله دَدې اضافه مقصد دې خبرې طرف ته اشاره كول دى چې نَصِيْبًا،دَجَعَلَ فعل محذوف مفعول ثانى كيدو دَ وجې نه منصوب دې نه چې مفعول مطلق كيدو دَوجې نه.

.........

[آیاتونه: ۱۱-۱۴]

{يُوصِيكُمُ} يَأْمُرُكُمْ {اللَّهُ فِي} شَأْن {أَوْلَادِكُمْ} بِمَا يُذْكَر {لِلذَّكَرِ} مِنْهُمْ {مِثْلُ حَظِّ} نَصِيب {الْأُنْثَيَيْنِ} إذَا اجْتَمَعَتَا مَعَهُ فَلَهُ نِصْف الْمَال وَلَهُمَا النِّصْف فَإِنْ كَانَ مَعَهُ وَاحِدَة فَلَهَا الثُّلُث وَلَهُ الثُّلُثَانِ وَإِنْ انْفَرَدَ حَازَ الْمَال {فَإِنْ كُنَّ} أَيْ الْأَوْلَاد {نِسَاءً} فَقَطْ {فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ} الْمَيِّت وَكَذَا الِاثْنَتَانِ لِأَنَّهُ لِلْأُخْتَيْنِ بِقَوْلِهِ {فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ} فَهُمَا أَوْلَى وَلِأَنَّ الْبِنْت تَسْتَحِقّ الثُّلُث مَعَ الذَّكَر فَمَعَ الْأُنْثَى أَوْلَى {وَفَوْقَ} قِيلَ صِلَة وَقِيلَ لِدَفْعِ تَوَهُّم زِيَادَة النَّصِيب بِزِيَادَةِ الْعَدَد لِمَا فُهِمَ اسْتِحْقَاق الْبِنْتَيْنِ الثُّلُثَيْنِ مِنْ جَعْل الثُّلُث لِلْوَاحِدَةِ مَعَ الذَّكَر {وَإِنْ كَانَتْ} الْمَوْلُودَة {وَاحِدَةً} وَفِي قِرَاءَة بِالرَّفْعِ فَكَانَ تَامَّة {فَلَهَا النِّصْفُ وَلِأَبَوَيْهِ} أَيْ الْمَيِّت وَيُبْدَل مِنْهُمَا {لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِنْ كَانَ لَهُ وَلَدٌ} ذَكَر أَوْ أُنْثَى وَنُكْتَة الْبَدَل إفَادَة أَنَّهُمَا لَا يَشْتَرِكَانِ فِيهِ وَأُلْحِق بِالْوَلَدِ وَلَد الِابْن وَبِالْأَبِ الْجَدّ {فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ} فَقَطْ أَوْ مَعَ زَوْج {فَلِأُمِّهِ} بِضَمِّ الْهَمْزَة وَكَسْرهَا فِرَارًا مِنْ الِانْتِقَال مِنْ ضَمَّة إلَى كَسْرَة لِثِقَلِهِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ {الثُّلُثُ} أَيْ ثُلُث الْمَال أَوْ مَا يَبْقَى بَعْد الزَّوْج وَالْبَاقِي لِلْأَبِ {فَإِنْ كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ} أَيْ اثْنَانِ فَصَاعِدًا ذُكُورًا أَوْ إنَاثًا {فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ} وَالْبَاقِي لِلْأَبِ وَلَا شَيْء لِلْإِخْوَةِ وَإِرْث مَنْ ذُكِرَ مَا ذُكِرَ {مِنْ بَعْدِ} تَنْفِيذ {وَصِيَّةٍ يُوصِي} بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمَفْعُول {بِهَا أَوْ} قَضَاء {دَيْنٍ} عَلَيْهِ وَتَقْدِيم الْوَصِيَّة عَلَى الدَّيْن وَإِنْ كَانَتْ مُؤَخَّرَة عَنْهُ فِي الْوَفَاء لِلِاهْتِمَامِ بِهَا {آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ} مُبْتَدَأ خَبَره {لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا} فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة فَظَانّ أَنَّ ابْنه أَنْفَع لَهُ فَيُعْطِيه الْمِيرَاث فَيَكُون الْأَب أَنْفَع وَبِالْعَكْسِ وَإِنَّمَا الْعَالِم بِذَلِكَ هُوَ اللَّه فَفَرَضَ لَكُمْ الْمِيرَاث {فَرِيضَةً مِنَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا} بِخَلْقِهِ {حَكِيمًا} فِيمَا دَبَّرَهُ لَهُمْ أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذَلِكَ {وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُنَّ وَلَدٌ} مِنْكُمْ أَوْ مِنْ غَيْرِكُمْ {فَإِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ} وَأُلْحِق بِالْوَلَدِ فِي ذَلِكَ وَلَد الِابْن بالإجماع {ولهن} اي الزوجات تعددن او لا {الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكُمْ وَلَدٌ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ} مِنْهُنَّ أو من غيرهن {فلهن الثمن مما تَرَكْتُمْ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ} وَوَلَد الِابْن فِي ذَلِكَ كَالْوَلَدِ إجْمَاعًا {وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ} صِفَة وَالْخَبَر {كَلَالَةً} أَيْ لَا وَالِد لَهُ وَلَا وَلَد {أَوِ امْرَأَةٌ} تُورَث كَلَالَة {وَلَهُ} أَيْ لِلْمُورَثِ كَلَالَة {أَخٌ أَوْ أُخْتٌ} أَيْ مِنْ أُمّ وَقَرَأَ بِهِ ابْن مَسْعُود وَغَيْره {فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسُ} مِمَّا تَرَكَ {فَإِنْ كَانُوا} أَيْ الْإِخْوَة وَالْأَخَوَات مِنْ الْأُمّ {أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ} أَيْ مِنْ وَاحِد {فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ} يَسْتَوِي فِيهِ ذَكَرهمْ وَأُنْثَاهُمْ {مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ} حَال مِنْ ضَمِير يُوصَى أَيْ غَيْر مُدْخِل الضَّرَر عَلَى الْوَرَثَة بِأَنْ يُوصِي بِأَكْثَر مِنْ الثُّلُث {وَصِيَّةً} مَصْدَر مُؤَكِّد لِيُوصِيكُمْ {مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ} بِمَا دَبَّرَهُ لِخَلْقِهِ مِنْ الْفَرَائِض {حَلِيمٌ} بِتَأْخِيرِ الْعُقُوبَة عَمَّنْ خَالَفَهُ وَخَصَّتْ السُّنَّة تَوْرِيث مَنْ ذُكِرَ بِمَنْ لَيْسَ فِيهِ مَانِع مِنْ قَتْل أَوْ اخْتِلَاف دِين أَوْ رِقّ {تِلْكَ} الْأَحْكَام الْمَذْكُورَة مِنْ أَمْر الْيَتَامَى وَمَا بَعْده {حُدُودُ اللَّهِ} شَرَائِعه الَّتِي حَدَّهَا لِعِبَادِهِ لِيَعْمَلُوا بِهَا وَلَا يَتَعَدَّوْهَا {وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ

ورسوله} فيما حَكَمَ بِهِ {يُدْخِلهُ} بِالْيَاءِ وَالنُّون التفاتا {جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَذَٰلِكَ الفوز العظيم} {وَمَنْ يَعْصِ اللّٰه وَرَسُوله وَيَتَعَدَّ حُدُوده يُدْخِلهُ} بِالْوَجْهَيْنِ {نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ} فِيهَا {عَذَاب مُهِين} ذُو إهَانَة رُوعِيَ فِي الضَّمَائِر فِي الْآيَتَيْنِ لَفْظ مَنْ وَفِي خَالِدِينَ مَعْنَاهَا

**ترجمه**: الله تعالى تاسوته ستاسو دَ اولادباره كښې دا (راتلونكى) ذكرشوې حكم دركوى په اولادكښې دَ يو هلك دَ پاره دَ دووجينكودَحصې برابردى چې دوه جينكې يو هلك سره وى، دَ هلك دَپاره دَمال (متروكه) نصف دې اودَ دوو جينكودَپاره نصف (او) كه چرې يو هلك سره يوه جينئى وى نودَ جينئى دَپاره يوثلث اودَهلك دَ پاره دوه ثلث اوكه هلك ځان له وى نو ټول مال به اوړى. اوكه چرې اولاد ئى صرف هم جينكۍ وى دَوو نه زياتې نودَهغوى دَپاره دَ مړى دَ متروكه مال دوه ثلث دى اودغه شان چې كله جينكۍ صرف هم دوه وى نودو تهائى دَ دوو خوئيندودَپاره دى. دَ الله تعالى د قول فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ دَوجې نه، لهذا دوه جينكۍ دغه شان به په طريقه اولى مستحق وى. اوداځكه چې جينئى هلك سره دَ يوتهائى مستحق وى نومؤنث سره به په طريقه اولى مستحق وى. او لفظ فوق ونيلې شوې دې چې صله يعنى (زائده) دې او ونيلى شوى دى چې دَ جينكوتعداد زياتيدو په صورت كښې دَ حصې دَزياتوالى وهم لرې كولو دَپاره دې چې دَ دوو جينكودَ دوو ثلث مستحق كيدل دَهلك سره يوه جينئى كيدو په صورت كښې په يوثلث سره اوخودلې شو اوكه چرې په اولاد كښې صرف يوه جينئى وى نوهغه جينئى دَپاره (دَتركې) نصف دې او په يو قراءت كښې (واحدةٌ) دَ رفع نه دې نو په دې صورت كښې به كان تامه وى او دَ مړى دَ والدين نه دَهريودَپاره دَ متروكه مال نه شپږمه حصه ده كه چرې دَمړى اولادوى كه هلك وى اوكه جينئى، او (لِكُلِّ وَاحِدٍ) أَبَوَيْهِ سره بدل دې او په بدل كښې نكته داده چې دَدې خبرې فائده اوشوه چې دواړه به په يوسدس كښې شريك نه وى. (بلكه هريو ته به سدس) ملاويږى او ولد سره ولدالابن او اب سره جد هم شامل كړې شوې دې او كه چرې (دَمړى) اولاد نه وى او وارثان ئې صرف والدين وى يا دَ مړكيدونكى زوج هم وى (ښځه يا خاوند) نو(دَمړى) دَ موردَپاره دَ ټولو مال يوتهائى يادَ زوج ته دَ وركولونه پس دَباقى پاتې مال يوتهائى ده او باقى دَ موردَپاره دې. (فَلِأُمِّهِ) همزه ضمه سره اوكسره سره هم دې دَ ضمه نه دكسرې طرف ته دَ انتقال نه دَ بچ كيدو دَپاره دَدې دَ ثقيل كيدودَ وجې نه په دواړو ځايونوكښې، اوكه دَمړى دوه يا دَ دوو نه زيات رونړه يا خوئيندې وى نودَ مړى دَ موردَپاره يوسدس دې اوباقى دَ پلاردَپاره دى اودَ رونړو خوئيندودَپاره هيڅ نشته. اودَمذكورين دَپاره مذكوره حصې دَ مړى وصيت پوره كولو يا قرض اداكولونه پس دى. (يُوصِي) معروف او مجهول دواړو طريقو باندې دې اودَ وصيت په دين يعنى قرض باندې وړانديوالې دَدې دَ اهتمام دَ وجې نه دې

سره دَدې چې په اداکولو کښې مؤخردي. که ستاسو پلاره وی اوکه ستاسو ځامن تاسوته ندی معلومه چې په دنيا اوآخرت کښې تاسو ته فائده رسولو کښې تاسو ته څوک ډير نيزدې دی؟ (آبَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ) مبتداء دی او لَاتَدْرُوْنَ دَدې خبردې دا ګمان کول چې دَهغه خوئی دَهغه دَپاره ډيرمفيدوې نوهغه ته ميراث ورکوی حالانکه دَهغه پلاردَهغه دَپاره ډير مفيددې اودَدې عکس هم کيدې شی دَهغه پيژندونکې په حقيقت کښې خو هم الله تعالی دې دَ کومې وجې نه چې هغه ستاسو دَپاره ميراث (حصې) مقرر کړې، داحصې دَالله تعالی دَطرف نه مقررکړې شوی دی الله تعالی دَخپل مخلوق باره کښې خبردې او په دې کښې ياحکمت دې کوم چې هغه دَ دوی دَپاره مقررکړی دی يعنی هغه دې صفت سره دَهميشه نه متصف دې اوستاسو ښځې چې څه پريږدی مړې شی دَهغې نه ستاسودَپاره نصف دې که چرې دَهغوی تاسونه يا دَ بل خاوندنه څه اولادنه وی که دَهغې اولاد وی نو په متروکه مال کښې ستاسودَپاره څلورمه ده اودَهغه د وصيت پوره کولو او دَ قرض دَادا کولونه پس، او په دې حکم کښې دَ خوئی سره نمسې بالاجماع يوځائی کړې شوې دې او دَ ښځودَپاره متعدد وی که نه وی ستاسو دَ متروکه مال نه څلورمه حصه ده که چرې ستاسو اولاد نه وی اوکه چرې ستاسو اولاد وی که دَهغې نه وی اوکه دَ نورو بيبيانونه وی نودَهغوی دَپاره ستاسو په متروکه مال کښې اتمه حصه ده دَهغوی د وصيت پوره کولو او دَ قرض دَاداکولونه پس، او نمسې په دې حکم کښې بالاجماع دَ خوئی په شان دې اوکه مورث سړې وی اوکه ښځه کَلٰلَة وی يعنی نه دَهغې خوئی وی اونه پلار (يورث) دَ رجلٌ صفت دې اوكَلٰلَةً دَ كَانَ خبردې اوکه چرې ښځه، مورث کَلٰلَه وی اومورث دَ کلله دَ مور شريك رور يا خور وی اودا قراءت دَ ابن مسعود ﷺ وغيره دې نودَمتروکه مال نه په هغوی کښې دَ هريودَپاره شپږمه حصه ده اوکه دَ مور شريك رونړه خوئيندې دَ يونه زيات وی نودا ټول به په يوتهائی کښې شريک وی او په دې کښې به مذکر اومؤنث برابر وی دَ وصيت پوره کولو اوقرض دَاداکولونه پس، کله چې دَ نورو نقصان نه وی (غَيْرَمُضَآرٍّ) د يوصی دَ ضميرنه حال دې يعنی ورثاته ضرر رسونکې نه وی، په دې طريقه چې دَ ثلث نه زيات وصيت اوکړی داحکم دَالله تعالی مقررکړې شوې دې، وصية دَ يوصيکم دَ تاکيد دَپاره دې او الله تعالی دَدې حکمت ښه پيژنی کوم فرائض چې هغه دَخپل مخلوق دَپاره مقرر کړی دی او په دې احکامو کښې مخالفت کونکی دَپاره سزا مؤخرکولو کښې بردباردې. او په سنت رسول ﷺ کښې مذکوره توريث دَ هغه وارث دَپاره خاص کړی دی په کوم کښې چې (وراثت نه) څه مانع نه وی مثلاً قتل يا اختلاف دين يا رقيت، دَ يتيمانومعامله اودَدې نه پس دغه مذکوره احکام دَالله تعالی حدوددی کوم چې الله تعالی دَ خپلو بنديګانودَپاره مقررکړی دی دَپاره چې په دې عمل اوکړی اودَدې نه تجاوز اونه کړی اوڅوک چې

دَالله تعالى اودَ هغه دَ رسول ﷺ مقرركړې شوي احكامو كښې اطاعت كوي هغه به الله تعالى په داسې جنتونو كښې داخلوي په كوم كښې چې به نهرونه جاري وي په كوم كښې چې به هغوي دهميش هميش دَپاره اوسيږي (نُدْخله،يُدْخله) دَ ياء او نون سره دَ التفات په توګه دي اودا ډيره لويه كاميابي ده اوڅوك چې دَالله تعالى اودَهغه دَ رسول ﷺ نافرماني كوي اودَهغه دَ مقرركړې شوو حدودو نه تجاوز اوكړي نوهغه به دوزخ كښې داخلوي (يُدْخله،نُدْخله)په دواړو طريقوسره دي په كوم كښې چې به هغوي دَهميشه دَپاره اوسيږي دَداسې خلقودَپاره رسواكونكې عذاب دې يعنى د بې عزتئى اودَ دواړو آياتونو په ضميركښې دَ لفظ مَنْ رعايت كړې شوې دې او په خلدين كښې دَمعنې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله** يُوْصِىْ (ايصاءٌ) مضارع واحدمذكرغائب معروف، هغه وصيت كوي هغه حكم وركوي،دَوصيت اصل معنى ده دَوفات كيدوپه وخت كښې وصيت اونصيحت وغيره كول.

**قوله**: يَأْمُرُكُمْ، دَ وصيت حقيقي معنې چونكه دَالله تعالى دَ ذات دَپاره محال دى نو ځكه مفسرعلام د يوصى تفسير په يامُرُ سره كړې دې.

**قوله**: شَانِ،دادَيوسوال جواب دې.

**سوال**: اَوْلَاد، دَ يامُرُ ظرف دې حالانكه دَاولاد ظرف جوړيدل صحيح نه دى ځكه چې په اولادكښې دَ ظرف جوړيدو صلاحيت نشته دې.

**جواب**: د شَانِ تقديرهم دَ صحت دَ ظرفيت بيانولودَپاره دې.

**قوله**: مِنْهُمْ **سوال**: مفسرعلام مِنْهُمْ دَ څه فائدې دَپاره محذوف منلې دې؟

**جواب**: لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ دا دَ وصيت تشريح ده لهذا دَ ضميرعائدكيدل ضروري دى چې دَ اولاد طرف ته راجع وي مګرعائد دَ هغه په ظهورباندې اعتمادكولو سره حذف كړې شوې دې لكه چې اَلسَّمْنُ مَنَوَانِ بِدِرْهَمٍ كښې مِنْهُ د مفهوم كيدودَ وجې نه حذف كړې شوې دې.

**قوله**: فَاِنْ كُنَّ اى اَلْاَوْلَادُ.

**سوال**: دكُنَّ دَ تفسيرمفسرعلام اَوْلَادُسره كړې دې كوم چې مذكردې نوبيادا كُنَّ دَ مؤنث ضميرولې راوړلې شوې دې؟

**جواب**: دكُنَّ خبر نِسَآءً چونكه مؤنث دې لهذا دَخبر رعايت كولودَ وجې نه ضميرمؤنث راوړلې شوې دې.

**قوله**: فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ اِنْ حرف شرط كُنَّ فعل ناقص، شرط، په دې كښې ضمير هُنَّ هغه دَدې اسم نِسَآءً موصوف او فَوْقَ اثْنَتَيْنِ صفت، موصوف صفت سره ملاؤشو دَكُنَّ خبر اوكُنَّ خپل اسم اوخبرسره ملاؤشو شرط، فَلَهُنَّ جواب شرط.

**قوله**: وفوق صلة وقيل لدفع توهم زيادة النصيب بزيادة العدد دَدې عبارت دَ اضافه مقصد دَحضرت ابن عباس ﷠ دَ تفردجواب وركول دى. په دې عبارت كښې دوو جوابونوطرف ته اشاره كړې شوې ده، دَ ابن عباس ﷠ تفرددادې چې هغه دَدې خبرې قائل دې چې دوه ثلث به جينكوته هغه وخت ملاويږى كله چې جينكۍ دَ دوو نه زياتې وى حالانكه دَ جمهورو مسلك دادې كه جينكۍ دوه هم وى خوبيابه هم هغوى ته دوه ثلث ملاويږى دَدې تفرددوه جوابونه وركړې شوى دى دَ اول جواب حاصل دادې چې لفظ فوق زائد محض دَصله دَپاره دې لكه ﴿ فَاضْرِبُوْا فَوْقَ الْاَعْنَاقِ ﴾ كښې لفظ فوق زائد محض صله ده او وقيل لدفع توهم الخ، دادويم جواب دې. دَدې مقصد وهم دفع كول دى چې دَ لفظ فوق نه دا مفهوم كيږى چې دَ جينكودَ شمير زياتيدوسره به دَهغوى حصه هم زياتيږى څكه چې كله يو جينئى يوهلك سره وى نويوتهائى حصه ده اوچې دوه وى نو دوتهائى دَدې نه معلومه شوه چې دَ جينكوشمير څومره زياتيږى دَهغوى په حصوكښې به هم زياتوالې كيږى. حالانكه داسې نه ده اودا شك پيداشوې دې دَ لفظ فوق نه لهذا دې ويناكولوسره چې لفظ فوق زائد دَپاره دَ صله دې دا شك ختمه وى.

**قوله**: وَيُبْدَلُ مِنْهُمَا دا دَيوشبه جواب دې. شبه داده چې كه چرې الله تعالى وَلِاَبَوَيْهِ السُّدُسُ، السدس مبتداءمؤخرًا او لابويه خبرمقدم فرمائيلو نومختصربه هم وې اوپه دال باندې مقصود هم دَ مبتداء اوخبر په مينځ كښې لِكُلِّ واحدٍ منهما فصل دكوم مصلحت دَپاره دې؟
جواب: دَجواب حاصل دادې چې دَ عدم فصل په صورت كښې به دا شبه وه چې په يوسدس كښې به مور او پلار دواړه شريك گڼرلې شو حالانكه هريودَ سدس مستحق دې. دَدې دَپاره لِكل واحد مِنْهُمَا نى اَبَوَيْهِ سره بدل اوگرځولو اوبدل مبدل منه سره ملاؤشو خبرمقدم او السدس مبتداء مؤخر دغه شان دَ شركت شبه ختمه شوه.

**قوله**. فقط اومعزوجر، دَ زوج اطلاق زوج او زوجه دواړوباندې كيږى.

**سوال**: دَمفسرعلام دَ فقط اومعزوجر دَاضافه نه څه مقصد دې؟

**جواب**: دَدې مقصد دَ ابوين دَ ميراث باره كښې دَ جمهورو اوحضرت ابن عباس ﷠

مسلك په مينځ كښې فرق واضحه كول دى. دَ جمهورو په نيزكه چرې مړې بې اولاده وى اودهغه وارث صرف والدين وى نو والده ته به ثلث كل ملاويږى او دَ باقى دوثلث به پلارته ملاويږى اوكه دَمړى دَ والدين سره سره زوج يا زوجه هم وى نو په دې صورت كښې به زوج يا زوجه ته دَاقل مخرج نه دَ وركولونه پس دَ باقى پاتې ثلث ملاويږى اوباقى دوه ثلث به والدين ته ملاويږى. مګر دَحضرت ابن عباس ﷺ دَ مسلك مطابق په دوارو صورتونوكښې به مور ته ثلث كل ملاويږى. مفسرعلام فقط أومَعَ زَوْجٍ وئيلو سره دَ جمهورودَ مسلك طرف ته اشاره كړې ده.

**قوله**: بضم الهمزة ويكسرها فرارًا من الانتقال من ضمة الى كسرة لِثِقْلِه، بضم الهمزة الخ نه فلامه كښې دوو قراءتونوطرف ته اشاره كړې ده. اودَ فلامه همزه دَ كسره دَعلت طرف ته هم اشاره كړې ده مشهور قراءت دَهمزه دَضمه سره دې. يعنى فلامه او دويم قرامت كښې دَهمزه كسره سره فلامه دې مفسرعلام دَدې قراءت وجه بيان كړې ده چې فلامه په صورت كښې ضمه نه دَ كسره طرف ته انتقال لازم راځى كوم چې ثقيل دې په دې وجه همزه ته هم كسره وركړې شوه.

**قوله**: وَإِرْثُ مَنْ ذُكِرَمَاذُكِرَ يعنى دَمذكورين وراثت به دَ بيان كړې شوى اصولو مطابق وى.

**قوله**: مَن بعدوصيةٍ ماقبل كښې بيان كړ شوى تقسيم دَ ميراث دَاصول نه دى مطلب دادې چې سابق كښې دَ تركه دَ تقسيم اصول مطابق تقسيم دَ وصيت دَ نفاذ او قرض دَاداكولونه پس به وى، كه چرې مړى وصيت كړې وى اوقرضدار وى نو په وصيت اوقرض كښې به قرض وړاندې كولې شى.

**قوله**: فَفَرَضَ لكم الميراث داعبارت مقدرمنلوسره اشاره اوكړه چې فريضةً دَفعل محذوف مصدر (مفعول مطلق) دې. نه چې دَ يوصيكم الله مصدر.

**قوله**: يورَث صفة، يعنى يورث دَ رجلٌ صفت دې لهذا دَ رجلٌ مبتداء جوړيدل صحيح دى اوكلالة دَ مبتداء خبردې.

**قوله**: المَوْرُوْث په وزن دَ مفعول ثلاثى مجردسره اى الميت.

**قوله**: وَرُوْعِىَ فى اضمار فى الايتَيْن لفظ مَنْ وفى خلدين مَعْنَاهَا دواړه ځايونه دَيُدْخِلْهُ ضمير مفردمذكر دَ مَنْ دَ لفظ رعايت سره راوړلې شوې دې اوخلدين جمع مذكر دَ مَنْ رعايت سره راوړلې شوې دې.

[اياتونه: ١٥ - ٢٢]

{واللاتى يأتين الفاحشة} الزنى {مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ} أي مِنْ رِجَالِكُمْ الْمُسْلِمِينَ {فَإِنْ شَهِدُوا} عَلَيْهِنَّ بِهَا {فَأَمْسِكُوهُنَّ} احْبِسُوهُنَّ {فِي الْبُيُوتِ} وَامْنَعُوهُنَّ مِنْ مُخَالَطَةِ النَّاسِ {حَتَّى يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ} أي مَلائِكته {أَوْ} إِلَى أَنْ {يَجْعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا} طَرِيقًا إِلَى الْخُرُوجِ مِنْهَا أمِرُوا بِذَلِكَ أَوَّل الْإِسْلَام ثُمَّ جَعَلَ لَهُنَّ سَبِيلًا بِجَلْدِ الْبِكْر مِائَة وَتَغْرِيبهَا عَامًا وَرَجْم الْمُحْصَنَة وَفِي الْحَدِيث لَمَّا بَيَّنَ الْحَدّ قَالَ خُذُوا عَنِّي خُذُوا عَنِّي قَدْ جَعَلَ اللَّه لَهُنَّ سَبِيلًا رَوَاهُ مُسْلِم {وَاللَّذَانِ} بتخفيف النون وتشديدها {يَأْتِيَانِهَا} اي الفاحشة الزنى أَوْ اللِّوَاط {مِنْكُمْ} أَيْ الرِّجَال {فَآذُوهُمَا} بِالسَّبِّ وَالضَّرْب بِالنِّعَالِ {فَإِنْ تَابَا} مِنْهَا {وَأَصْلَحَا} الْعَمَل {فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا} وَلَا تُؤْذُوهُمَا {إِنَّ اللَّهَ كَانَ تَوَّابًا} عَلَى مَنْ تَابَ {رَحِيمًا} بِهِ وَهَذَا مَنْسُوخ بالحد إن أريد بها الزنى وَكَذَا إِنْ أُرِيدَ بِهَا اللِّوَاط عِنْد الشَّافِعِيّ لَكِنَّ الْمَفْعُول بِهِ لَا يُرْجَم عِنْده وَإِنْ كَانَ مُحْصَنًا بَلْ يُجْلَد وَيُغَرَّب وَإِرَادَة اللِّوَاط أَظْهَر بِدَلِيلِ تَثْنِيَة الضَّمِير وَالْأَوَّل قَالَ أَرَادَ الزَّانِي وَالزَّانِيَة وَيَرُدّهُ تَبْيِينهمَا بِمِنْ الْمُتَّصِلَة بِضَمِيرِ الرِّجَال وَاشْتِرَاكهمَا فِي الْأَذَى وَالتَّوْبَة وَالْإِعْرَاض وَهُوَ مخصوص بالرجال لما تقدم في النساء من الحبس {إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ} أَيْ الَّتِي كَتَبَ عَلَى نَفْسه قَبُولهَا بِفَضْلِهِ {لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ} الْمَعْصِيَة {بِجَهَالَةٍ} حَال أَيْ جَاهِلِينَ إِذْ عَصَوْا رَبّهمْ {ثُمَّ يَتُوبُونَ مِنْ} زَمَن {قَرِيبٍ} قَبْل أَنْ يُغَرْغِرُوا {فَأُولَئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ} يَقْبَل تَوْبَتهمْ {وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا} بِخَلْقِهِ {حَكِيمًا} فِي صُنْعه بهم {وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ} الذُّنُوب {حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ} وَأَخَذَ فِي النَّزْع {قَالَ} عِنْد مُشَاهَدَة مَا هُوَ فِيهِ {إِنِّي تُبْتُ الْآنَ} فَلَا يَنْفَعهُ ذَلِكَ وَلَا يُقْبَل مِنْهُ {وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ} إذَا تَابُوا فِي الْآخِرَة عِنْد مُعَايَنَة الْعَذَاب لَا تُقْبَل مِنْهُمْ {أُولَئِكَ أَعْتَدْنَا} أَعْدَدْنَا {لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا} مؤلما {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ} أَيْ ذَاتهنَّ {كَرْهًا} بِالْفَتْحِ وَالضَّمّ لُغَتَانِ أَيْ مُكْرِهِيهِنَّ عَلَى ذَلِكَ كَانُوا فِي الْجَاهِلِيَّة يَرِثُونَ نِسَاء أَقْرِبَائِهِمْ فَإِنْ شَاءُوا تَزَوَّجُوهُنَّ بِلَا صَدَاق أَوْ زَوَّجُوهُنَّ وَأَخَذُوا صَدَاقهنَّ أَوْ عَضَلُوهُنَّ حَتَّى يَفْتَدِينَ بِمَا وَرِثْنَهُ أَوْ يَمُتْنَ فَيَرِثُوهُنَّ فَنُهُوا عَنْ ذَلِكَ {وَلَا} أَنْ {تَعْضُلُوهُنَّ} اي تَمْنَعُوا أَزْوَاجكُمْ عَنْ نِكَاح غَيْركُمْ بِإِمْسَاكِهِنَّ وَلَا رَغْبَة لَكُمْ فِيهِنَّ ضِرَارًا {لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ} مِنْ الْمَهْر {إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ} بِفَتْحِ الْيَاء وَكَسْرهَا أَيْ بُيِّنَتْ أَوْ هِيَ بَيِّنَة أَيْ زِنًا أَوْ نُشُوز فَلَكُمْ أَنْ تُضَارُّوهُنَّ حَتَّى يَفْتَدِينَ مِنْكُمْ وَيَخْتَلِعْنَ {وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ} أَيْ بِالْإِجْمَالِ فِي الْقَوْل وَالنَّفَقَة وَالْمَبِيت {فَإِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ} فَاصْبِرُوا {فَعَسَى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا} وَلَعَلَّهُ يَجْعَل فِيهِنَّ ذَلِكَ بِأَنْ يَرْزُقكُمْ مِنْهُنَّ وَلَدًا صَالِحًا {وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ} أَيْ أَخْذهَا بَدَلهَا بِأَنْ طَلَّقْتُمُوهَا {وَ} قَدْ {آتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ} أَيْ الزَّوْجَات {قِنْطَارًا} مَالًا كَثِيرًا صَدَاقًا {فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا} ظُلْمًا {وَإِثْمًا مُبِينًا} بَيِّنًا وَنَصْبهمَا عَلَى الْحَال وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّوْبِيخِ وَلِلْإِنْكَارِ فِي قَوْله {وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ} أَيْ بِأَيِّ وَجْه {وَقَدْ أَفْضَى} وَصَلَ {بَعْضُكُمْ إِلَى بَعْضٍ} بِالْجِمَاعِ الْمُقَرِّر لِلْمَهْرِ

{وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَاقًا} عَهْدًا {غَلِيظًا} شَدِيدًا وَهُوَ مَا أَمَرَ اللهُ بِهِ مِنْ إِمْسَاكِهِنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحِهِنَّ بِإِحْسَانٍ {وَلَا تَنكِحُوا مَا} بِمَعْنَى مَنْ {نَكَحَ آبَاؤُكُم مِّنَ النِّسَاءِ إِلَّا} لَكِنْ {مَا قَدْ سَلَفَ} مِنْ فِعْلِكُمْ ذَٰلِكَ فَإِنَّهُ مَعْفُوٌّ عَنْهُ {إِنَّهُ} أَيْ نِكَاحَهُنَّ {كَانَ فَاحِشَةً} قَبِيحًا {وَمَقْتًا} سَبَبًا لِلْمَقْتِ مِنَ اللهِ وَهُوَ أَشَدُّ الْبُغْضِ {وَسَاءَ} بِئْسَ {سَبِيلًا} طَرِيقًا ذَٰلِكَ

**ترجمه.** اوستاسو دَ ښځونه چې څوک دَ بې حیایئی، زنا مرتکب شوی وی په هغوی باندې خپلو (مسلمانانو) نه څلور سړی ګواه کړئی، نوکه په هغوی باندې دَ بې حیایئی ګواهی ورکړی نوهغوی په کورونوکښې نظربند کړئی اوهغه دَخلقودَ ملاویدو نه منع کړئی، تردې چې مرګ (ملائکه) دَهغې خاتمه اوکړی یاالله تعالی دَهغوی دَپاره بل (څه) لار راوباسی یعنی دَهغې نه دَ وتلو څه صورت راوباسی داحکم دَ اسلام په شروع کښې ورکړې شوې وو بیا دَهغوی باکره یعنی پیغله ته سل کوړې اویوکال دَ وطن نه دَ ویستو په صورت کښې اومحصنه دَ رجم په صورت کښې لار اوویستله، او په حدیث شریف کښې دی کله چې الله تعالی حد بیان کړو نوحضورپاك اوفرمائیل مانه واخلئ مانه حاصل کړئی الله تعالی دَهغوی دَپاره لار راوویستله. (رواه مسلم) اوتاسوکښې دَ بعضو سړونه چې کوم دوه (یعنی جوړه) دَ فحش کار مرتکب شی یعنی دَ زنا یا لواطت، نوهغوی ته بدې ردې ونیلوسره چیترې وهلوسره تکلیف ورکړئی (وَالَّذانِ) دَنون تخفیف اوتشدیدسره دې، بیاکه دواړه دَفحش کارنه توبه اوباسی اودَعمل اصلاح اوکړی نوهغوی نظرانداز کړئی او هغوی ته تکلیف مه رسوئی، یشکه الله تعالی دَتوبه کونکی لوئی توبه قبلونکې (او) په هغه رحم کونکې دې. اودا حکم دَامام شافعی رحمه الله په نیز دَ حدپه ذریعه منسوخ دې که چرې دې نه زنا.مراد وی اوهم دغه شان که لواطت مراد وی البته مفعول به دَهغه په نیز رجم کولې نه شی، سره دَدې چې محصن ولې نه وی بلکه کوړې به وهلې شی دَ وطن نه به ویستلې شی، اولواطت مراد اخستل زیات ښکاره دی. (الذانِ یاتیانها) ضمیر دَتثنیه دَ دلیل دَ وجې نه اودَ اول قول قائل هغه دې چاچې (تثنیه) نه دَ زانی اوزانیه اراده کړې ده. اودَدې تردید دَدې مِنْ بیانیه نه کیږی کوم چې دَمنکُمْ ضمیر مذکر سره بیان دَپاره متصل دې. (دغه شان) دَهغوی تکلیف او توبه او په معاف کولوکښې مشترك کیدل اودا مذکوره دریواړه څیزونه سړو سره مخصوص دی، څکه چې دَښځو حکم نظربند کول وړاندې تیرشوې دې. اوتوبه دَکوم قبلول چې دَالله تعالی په ذمه دی یعنی دَتوبې قبولیت الله تعالی په خپل فضل سره په خپله ذمه اخستې ده، هغه خو بس هم دَ دغه خلقو توبه ده چې ګناه په ناپوهئی سره اوکړی (بِجَهَالَةٍ) حال دې یعنی دَ خپل رب نافرمانی کولو وخت کښې ناپوهی اوکړی او بیا زر دَزنکدن حال راتلونه وړاندې توبه اوکړی هم دَ د غه شان خلقو الله تعالی توبه قبلوی او الله تعالی دَ

خپل مخلوق نه خبردار او هغوی سره په معامله کولو کښې باحکمت دې او دَهغوی توبه نه ده
چې یوشان گناهونه کوی تردې چې په هغوی کښې دَ چامرگ راشی اودَ زنکدن حالت شروع شی او
په زنکدن کښې دَ پیښیدونکو څیزونو مشاهده اوکړی نو وائی چې زه اوس توبه کوم
نو دَهغه دا توبه کول به نه دَهغه دَپاره فائده ورکړی نه به مقبول شی اونه به قبوله شی څوک
چې هم دَکفر په حالت کښې مړه شی او په آخرت کښې دَعذاب دَکتلو وخت کښې توبه اوکړی
هم دغه خلق دی دَچادَپاره چې مونږ دردناک عذاب تیارکړې دې. اې ایمان والو ستاسو دَپاره دا
جائزنه دی چې تاسو دَ ښځودَ ذات جبراً مالکان شئی کَرْهًا فتحه اوضمه سره دوه لغته دی
یعنی هغه مجبوره کولوسره دا طریقه (زمانه) دَ جاهلیت کښې وه چې خلقو به دَخپلوانو دَ
ښځې مالك کیدل، که غوښتل به ئې نو پخپله به ئې ورسره بغیردَ مهر نه نکاح کوله یا
دَهغې نکاح به ئې چرته غیرسره کوله اودَهغې مهربه ئې پخپله اخستلو، یا به ئې هغوی
منع کولې تردې چې هغه دَ خپل مال فدیه ورکړی یا مړه شی نودَهغې دَ مال وارثان کیدل
به. نوهغوی دَدې حرکت نه منع کړې شو، اونه ستاسو دَپاره دا جائزدی چې تاسودَهغوی بل
سره په نکاح کولوسره دَ نقصان رسولو په غرض هغه منع کړی حالانکه ستاسو هغوی سره
هیڅ رغبت نشته. دې دَپاره چې تاسو دَهغې نه دَخپل ورکړې شوی مهرڅه حصه وصول کړې
بغیردَ هغې صورت چې هغه دَ ښکاره بدکارئی مرتکب وی، دَ یاء فتحه او کسره سره یعنی چې
کومه بالکل ښکاره ده یا هغه ښکاره کونکې ده یعنی زنا یا نافرمانی، نوتاسوته حق شته
چې هغوی ته تکلیف اورسوې تردې چې هغوی تاسو ته څه معاوضه درکړی او خلع
حاصله کړی. او ښځوسره په ښه سلوک سره وخت تیره وئی یعنی په خبرو اترو کښې، خرچې
کښې او شپه تیرولو کښې دَ ښکلې معاشرت مظاهره کوئی که چرې تاسو دا ناخوښه کوئی
نو صبراوکړئی څه عجیبه ده چې تاسو یوڅیز ناخوښه کړئی اوالله تعالی په هغې کښې لویه ښیگړه
کیږدی او کیدې شی چې الله تعالی په هغې کښې خیرواچوی په داسې توگه چې تاسوته
دَهغې نه نیك اولاد درکړی اوکه چرې تاسودَ یوې ښځې په ځائی بله ښځه کول غوارئی یعنې
یوې ته طلاق ورکولوسره بل کوئی غوارئی اوتاسو دغه ښځوکښې چاته یودیرې یعنی زیات
مال دَ مهر په توگه ورکړې وی نوتاسو دَهغې نه هیڅ هم واپس مه اخلئی، آیا تاسو دَ ظلم او ښکاره
گناه نه باوجود به داخلئ (مُبِيْنًا) په معنی بَيِّنًا اودَدې نصب دَحال دَ وجې نه دې او استفهام دَ
توبیخ دَپاره دې اوتاسو به دا څنگه اخلئی؟ یعنی څنگه به ئې اخلئ استفهام انکاری دې
حالانکه تاسو دَ جماع په ذریعه خپلو کښې یوځائی شوی یئې کوم چې مهرثابتونکې دې،
اودغه ښځوتاسونه کلک عهد وپیمان اخستې دې اودغه عهد هغه دې دَکوم چې تاسو ته الله
تعالی حکم درکړې دې هغه دا چې تاسو دوی دَ دستور مطابق خپل ځان سره اوساتئی یا
په ښه اخلاقوسره هغه پریږدئی او هغه ښځو سره نکاح مه کوئی چاسره چې ستاسو پلارانو نکاح

کړي ده. مَا په معنی دَ مَنْ دې مګر چې څه اوشو نو هغه شوی دی يعنی ورانديږ تاسو نه شوی دی هغه معاف دی دا يعنی هغوی سره نکاح کول دَ بې حيايئ او خفګان سبب دې يعنی دَ الله تعالی دَ خفګان سبب دې او دا ډير سخت بغض دې اودا لويه خرابه لار ده.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** مِنْ رِجَالِ المسلمين: **سوال:** فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنْكُمْ مفسر علام دَمنکم تفسير مِنْ رِجَالِ المسلمين سره کړې دې دَ کومې نه چې معلوميږی چې ښځې مخاطب نه دی حالانکه په قرآن کښې ښځې دَ سړو تابع ګرځولو سره اکثر خطاب کړې شوې دې مګر دلته دم سړی مخاطب دی دَدې څه وجه ده؟

**جواب:** أَرْبَعَةً، دلته دَدې خبرې قرينه ده چې مخاطب هم سړی دی نه چې ښځې ځکه چې دَ نحو مشهوره قاعده ده چې که عدد مؤنث وی نو دَهغې معدود مذکروی دلته اربعة مؤنث دې لهذا په دې سره معدود مذکرمتعين دې اوهغه رجال دی نه چې نساء، هم دَدې قرينې دَ وجې نه علامه سيوطی رحمه الله دَ منکم تفسير مِنْ رِجَالِ المسلمين سره کړې دې.

**قوله:** ای الملائکة دې کښې دَدې خبرې طرف ته اشاره ده چې کلام حذف مضاف سره دې، ای يَتَوَفَّهُنَّ ملئکة الموت.

**سوال:** حذف مضاف ضرورت ولې پيښ شو؟

**جواب:** التوفی هوالموت، اوس به عبارت داسې شی حَتَّى يُمِيتُهُنَّ الموت اودا صحيح نه دې ځکه چې په دې کښې اسناد الشئ الی نفسه لازم راځی بل په دې کښې دَ مرګ فاعل جوړيدل لازم راځی حالانکه په مرګ کښې دَ فاعل جوړيدو صلاحيت نشته دې، په دې وجه مفسر علام الملئکة. محذوف منلو سره اوخودل چې يَتَوَفَّهُنَّ فاعل مرګ نه دې بلکه ملئکة دې، بل په دې صورت کښې اسناد الشئ الی نفسه اعتراض هم ختم شو.

**قوله:** الی أَنْ، دې سره اشاره اوکړه چې دَ يَجْعَلَ عطف يَتَوَفَّهُنَّ باندې دې هم دَدې وجې نه يَجْعَلَ منصوب دې.

**قوله:** يَاتِيَانِهَا. په دې کښې د ضمير مرجع ذکر شوې ده چه فاحشه او زنا او لواطت دې.

**قوله:** مِنَ الرِّجَالِ دواړو ځايونو کښې دَ مذکر صيغې استعمال کړی دی.

**قوله:** اواللواطة، د لفظ لواطة ضافه دَامام شافعی رحمه الله دَ مسلك مطابق ده ځکه چې دَهغوی په نيز دَ لواطت سزا هم هغه ده کومه چې دَ زناده، دَاحنافو په نيزداسې نه ده بلکه دَ امير په رائې باندې موقوف ده هغه چې کومه سزا مناسب ګنړی ورکولې شی.

[اياتونه:٢٣]

{حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ} أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ وَشَمِلَتْ الْجَدَّات مِنْ قِبَل الْأَب أَوْ الْأُمّ {وَبَنَاتُكُمْ} وَشَمِلَتْ بَنَات الْأَوْلَاد وَإِنْ سَفُلْنَ {وَأَخَوَاتُكُمْ} مِنْ جِهَة الْأَب أَوْ الْأُمّ {وَعَمَّاتُكُمْ} أَيْ أَخَوَات آبَائِكُمْ وَأَجْدَادكُمْ {وَخَالَاتُكُمْ} أَيْ أَخَوَات أُمَّهَاتكُمْ وَجَدَّاتكُمْ {وَبَنَات الْأَخ وَبَنَات الْأُخْت} وَيَدْخُل فِيهِنَّ أَوْلَادهمْ {وَأُمَّهَاتُكُمْ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ} قَبْل اسْتِكْمَال الْحَوْلَيْنِ خَمْس رَضَعَات كما بينه الحديث {وأمهاتكم اللاتي أرضعنكم} وَيُلْحَق بِذَلِكَ بِالسُّنَّةِ الْبَنَات مِنْهَا وَهُنَّ مَنْ ارضعتهم موطوأته وَالْعَمَّات وَالْخَالَات وَبَنَات الْأَخ وَبَنَات الْأُخْت مِنْهَا لِحَدِيثِ يَحْرُم مِنْ الرَّضَاع مَا يَحْرُم مِنْ النَّسَب رَوَاهُ الْبُخَارِيّ وَمُسْلِم {وَأُمَّهَات نِسَائِكُمْ وَرَبَائِبُكُمْ} جَمْع رَبِيبَة وَهِيَ بِنْت الزَّوْجَة مِنْ غَيْره {اللَّاتِي فِي حُجُورِكُمْ} تُرَبُّونَهُنَّ صِفَة مُوَافِقَة لِلْغَالِبِ فَلَا مَفْهُوم لَهَا {مِنْ نِسَائِكُمْ اللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ} أَيْ جَامَعْتُمُوهُنَّ {فَإِنْ لَمْ تَكُونُوا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاح عَلَيْكُمْ} فِي نِكَاح بَنَاتهنَّ إذَا فَارَقْتُمُوهُنَّ {وَحَلَائِل} أَزْوَاج {أَبْنَائِكُمْ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابكُمْ} بِخِلَافِ مَنْ تَبَنَّيْتُمُوهُمْ فَلَكُمْ نِكَاح حَلَائِلهمْ {وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْن الْأُخْتَيْنِ} مِنْ نَسَب أَوْ رَضَاع بِالنِّكَاحِ وَيُلْحَق بِهِمَا بِالسُّنَّةِ الْجَمْع بَيْنهَا وَبَيْن عَمَّتهَا أَوْ خَالَتهَا وَيَجُوز نِكَاح كُلّ وَاحِدَة عَلَى الِانْفِرَاد وَمِلْكهمَا مَعًا وَيَطَأ وَاحِدَة {إلَّا} لَكِنْ {مَا قَدْ سَلَفَ} فِي الْجَاهِلِيَّة مِنْ نِكَاحهمْ بَعْض مَا ذُكِرَ فَلَا جُنَاح عَلَيْكُمْ فِيهِ {إنَّ اللَّه كَانَ غَفُورًا} لِمَا سَلَفَ مِنْكُمْ قَبْل النَّهْي {رَحِيمًا} بِكُمْ فِي ذَلِكَ

**ترجمه:** او په تاسو باندې ستاسو مېندو سره نکاح کول حرام کړې شوي دی او په دې حکم کښې نیاګانې هم شاملې دی او ستاسو لونړه اوپه دې کښې نمسئی هم داخل دی اګر چې ترښکته پورې وی. او علاتی اواخیافی خوئیندې (اوحقیقي خوئیندې) ستاسو دپاره حرام کړې شوې دی او ستاسو ترورياني يعنی ستاسو دَ پلارانو نیکونو خوئیندې او خالاګانې يعنی ستاسو دَ میندو او نیاګانو خوئیندې او وريرې او خورزې او په دې کښې دَهغوی لونړه هم شاملې دی اوستاسو هغه میندې کومو چې تاسو ته دوه کاله مکمل کیدونه وړاندې پنځه ګوټه پئی درکړی وی لکه حدیث کښې دا بیان کړې شوی دی او ستاسو رضاعی خوئیندې اوهغوی سره دَ حدیث په رنړاکښې رضاعی لونړه هم شاملې کړی دی اوهغه داسې لونړه دی کوموته چې دَهغوی مطلوعۀ پیئی ورکړی وی او (رضاعی) ترورياني او خالاګانې او (رضاعی) وريرې او (رضاعی) خورزې (په دې قاعده سره) کوم چې په نسب باندې حرامیږی هغه په رضاعت سره هم حرام کیږی. (رواه البخاری ومسلم) اوستاسو خینې او ستاسو ربيبیانې ربائبُ دَ ربیبَة جمع ده اوهغه دَ هغه دَ ښځې لورده دَ دويم خاوندنه، کومې چې ستاسو په پالنه کښې وی يعنی دکومو چې ته پالنه کوې (أي حجورکم)

صفت دَ غالب په اعتبارسره دي لهذا دَدې مفهوم مخالف معتبرنه دې (يعنى دَدې قيد هيڅ اعتبار نشته) (او) دَهغه ښځونه وى چاسره چې ستاسو كوروالې شوى وى يعنى هغوى سره جماع كړې وى لهذا كه تاسو هغوى سره جماع نه وى كړې نودَهغوى دَلونړوسره ستاسو په نكاح كولو كښې ستاسودَپاره هيڅ گناه نشته خوچې تاسودغه ښځې جدا كړې وى اوستاسو دَ سكه ځامنو ښځې په خلاف دَهغه ځامنودَ ښځو كومې چې تاسومتبنٰى جوړې كړى دى ستاسودَپاره دَهغوى ښځوسره نكاح كول جائزدي. اودا چې تاسو دوه نسبى يا رضاعى خوئيندې په نكاح كښې جمع كړئى (حرام دى) او دَ حديث په رنړاكښې ښځې اودَهغوى تروريانې اودَهغوى خالاگانې په يوځائى جمع كول حرام گرځولې دى. او هرې يوې سره ځان ځان له نكاح كول صحيح دى. اودَهغوى مالك جوړيدل هم صحيح دى مگر جماع به په هغوى كښې يوې سره كوى. البته كوم څه چې شوى دى نوهغه شوى دى دَ جاهليت په زمانه كښې دَ مذكور نه دَ بعضو بعض سره نكاح كولوسره، لهذا ستاسودَپاره دې كښې هيڅ گناه نشته بيشكه الله تعالى دامعاف كونكې دې كوم چې دَ ممانعت نه وړاندې تاسو نه شوى دى په دغه معامله كښې په تاسو باندې رحم كونكې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله.** اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ دَدې اضافه مقصددَيوسوال جواب دې.

**سوال:** حُرِّمَتْ عَلَيكُمْ اُمَّهَاتُكُمْ كښې دَ حرمت نسبت امهات ذات طرف ته كړې شوې دې حالانكه دَ ذوات د حرمت هيڅ معنى نشته دې ځكه چې حرمت اوحلت دَافعال صفت دې.

**جواب.** دَ جواب حاصل دادې چې د امهات د حرمت نه دَهغې سره دَ نكاح حرمت مراد دې چونكه نكاح متبادر الى الفهم ده ځكه حذف كړې شوې ده. دَدې دَپاره چې كوم وصف اهم مقصود كيږى هغه متبادرالى الفهم كيږى لكه چې حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ كښې دى ښكاره خبرده چې دې نه مراد خوراك دې نه چې نفس ميتة او مثلاً حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الخمرُ مراد دَ شرابو څكلوحرمت دې نه چې دَ ذات حرمت.

**قوله.** مَوْطوئنه اى موطوءة الرجل.

**قوله:** حلاَئل، بيبيانى، دَ حَلِيْلَة جمع ده اودا د حَلّ نه مشتق دې دَ كوم معنى چې غوټه كولاوول، كوزيدل اودَ حلال كيدو ده. چونكه خاوند اوښځه دَ يوبل پرتوغانړ كولاووى او يوبل ته وركوزيږى اودَ يوبل دَپاره حلال دى ځكه ورته حليل اوحليلة وائى.

## پاره نمبر-٥ [وَالْمُحْصَنَاتُ]

### [اياتونه: ٢٤-٢٥]

(وَ) حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ (الْمُحْصَنَاتُ) أيْ ذَوَاتُ الْأَزْوَاجِ (مِنَ النِّسَاءِ) أنْ تَنْكِحُوهُنَّ قَبْلَ مُفَارَقَةِ أزْوَاجِهِنَّ حَرَائِرَ مُسْلِمَاتٍ كُنَّ أوْ لَا (إلَّا مَا مَلَكَتْ أيْمَانُكُمْ) مِنَ الْإِمَاءِ بِالسَّبْيِ فَلَكُمْ وَطْؤُهُنَّ وَإنْ كَانَ لَهُنَّ أزْوَاجٌ فِي دَارِ الْحَرْبِ بَعْدَ الِاسْتِبْرَاءِ (كِتَابَ اللَّهِ) نُصِبَ عَلَى الْمَصْدَرِ أيْ كَتَبَ ذَلِكَ (عَلَيْكُمْ وَأُحِلَّ) بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمَفْعُولِ (لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَلِكُمْ) أيْ سِوَى مَا حُرِّمَ عَلَيْكُمْ مِنَ النِّسَاءِ (أنْ تَبْتَغُوا) تَطْلُبُوا النِّسَاءَ (بِأمْوَالِكُمْ) بِصَدَاقٍ أوْ ثَمَنٍ (مُحْصِنِينَ) مُتَزَوِّجِينَ (غَيْرَ مُسَافِحِينَ) زَانِينَ (فَمَا) فَمَنْ (اسْتَمْتَعْتُمْ) تَمَتَّعْتُمْ (بِهِ مِنْهُنَّ) مِمَّنْ تَزَوَّجْتُمْ بِالْوَطْءِ (فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ) مُهُورَهُنَّ الَّتِي فَرَضْتُمْ لَهُنَّ (فَرِيضَةً وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُمْ) أنْتُمْ وَهُنَّ (بِهِ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيضَةِ) مِنْ حَطِّهَا أوْ بَعْضِهَا أوْ زِيَادَةٍ عَلَيْهَا (إنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا) بِخَلْقِهِ (حَكِيمًا) فِيمَا دَبَّرَهُ لَهُمْ (وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا) غنى ل (أنْ يَنْكِحَ الْمُحْصَنَاتِ) الْحَرَائِرَ (الْمُؤْمِنَاتِ) هُوَ جَرْيٌ عَلَى الْغَالِبِ فَلَا مَفْهُومَ لَهُ (فَمِنْ مَا مَلَكَتْ أيْمَانُكُمْ) يَنْكِحُ (مِنْ فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ أعْلَمُ بِإيمَانِكُمْ) فَاكْتَفُوا بِظَاهِرِهِ وَكِلُوا السَّرَائِرَ إلَيْهِ فَإنَّهُ الْعَالِمُ بِتَفْضِيلِهَا وَرُبَّ أمَةٍ تَفْضُلُ حُرَّةً فِيهِ وَهَذَا تَأْنِيسٌ بِنِكَاحِ الْإِمَاءِ (بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ) أيْ أنْتُمْ وَهُنَّ سَوَاءٌ فِي الدِّينِ فَلَا تَسْتَنْكِفُوا مِنْ نِكَاحِهِنَّ (فَانْكِحُوهُنَّ بِإذْنِ أهْلِهِنَّ) مَوَالِيهِنَّ (وَآتُوهُنَّ) أعْطُوهُنَّ (أُجُورَهُنَّ) مُهُورَهُنَّ (بِالْمَعْرُوفِ) مِنْ غَيْرِ مَطْلٍ وَنَقْصٍ (مُحْصَنَاتٍ) عَفَائِفَ حَالٌ (غَيْرَ مُسَافِحَاتٍ) زَانِيَاتٍ جَهْرًا (وَلَا مُتَّخِذَاتِ أخْدَانٍ) أخِلَّاءَ يَزْنُونَ بِهِنَّ سِرًّا (فَإذَا أُحْصِنَّ) زُوِّجْنَ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ تَزَوَّجْنَ (فَإنْ أتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ) زِنًا (فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ) الْحَرَائِرِ الْأبْكَارِ إذَا زَنَيْنَ (مِنَ الْعَذَابِ) الْحَدِّ فَيُجْلَدْنَ خمسين ويغربن نصف سنة ويقاس عليهم الْعَبِيدُ وَلَمْ يَجْعَلِ الْإحْصَانَ شَرْطًا لِوُجُوبِ الْحَدِّ لِإفَادَةِ أنَّهُ لَا رَجْمَ عَلَيْهِنَّ أصْلًا (ذَلِكَ) أيْ نِكَاحُ الْمَمْلُوكَاتِ عِنْدَ عَدَمِ الطَّوْلِ (لِمَنْ خَشِيَ) خَافَ (العنت) الزنى وأصله المشقة سمي به الزنى لِأنَّهُ سَبَبُهَا بِالْحَدِّ فِي الدُّنْيَا وَالْعُقُوبَةِ فِي الْآخِرَةِ (مِنْكُمْ) بِخِلَافِ مَنْ لَا يَخَافُهُ مِنَ الْأحْرَارِ فَلَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا وَكَذَا مَنِ اسْتَطَاعَ طَوْلَ حُرَّةٍ وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيُّ وَخَرَجَ بِقَوْلِهِ (مِنْ فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ) الْكَافِرَاتُ فَلَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا وَلَوْ عَدِمَ وَخَافَ (وَأنْ تَصْبِرُوا) عَنْ نِكَاحِ الْمَمْلُوكَاتِ (خَيْرٌ لَكُمْ) لِئَلَّا يَصِيرَ الْوَلَدُ رَقِيقًا (وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ) بِالتَّوْسِعَةِ فِي ذَلِكَ

**ترجمه**:- اوحرام کړې شوی دی ستاسو دپاره دخاوندانوولا ښځې چې هغوی سره د خاوندانو دمفارقت نه بغیرنکاح اوکړئی که آزاده مسلمانه ښځه وی اوکه نوري. **مګردا** چې د هغه وینځې کومې چې ګرفتارشي اوستاسو په قیدکښې راشي نوستاسو دپاره جائزدی چې هغوی سره وطی اوکړئی استبراء(رحم) نه پس اګرچې په دارالحرب کښې دهغوی خاوندان موجودوی، **الله تعالی** (دا احکام) **په تاسو فرض کړی دی. نصب د** مصدریت دَ وجې نه دې أي کَتَبَ ذلك او ستاسو دپاره دمذکوره حرام کړې شوو ښځونه

علاوه حلال کړې شوی دی دا چې تاسو ښځو لره دَخپلومالونو په ذریعه په مهر یا قیمت ورکولوسره طلب کړئ (په دې طریقه) چې اراده مو دَ نکاح وی نه چې (محض) شهوت پوره کونکې لهذا دَ چانه چه تاسو فائده اوچته کړه نوهغوی ته دَهغوی مقررکړې شوې مهر ورکړئ کوم چې تاسو هغوی له مقررکړې دې او په تاسو باندې دَ هغه مقدارپه باره کښې هیڅ ګناه نشته په کوم چې تاسو اوهغوی دَمهر مقررکولونه پس راضی شئ، ټول ساقط کولوسره یا څه کمې زیاتې کولوسره بیشکه الله تعالی دَخپل مخلوق په باره کښې ډیرزیات پیژندونکې اودَهغه نظم باره کښې کوم ئې چې دَمخلوق دَپاره قائم کړې دې دَ لوئی حکمت والا دې. اوکوم سړې چې په تاسوکښې د آزادې مومنې ښځې سره دَنکاح کولو قدرت نه لری دَ ایمان صفت د غالب په بناء دې . لهذا دَدې مفهوم مخالف مرادنه دې. نوهغه دې مسلمانانو وینځوسره دکومو چې مالکان یئ (نکاح دې اوکړی) الله تعالی ستاسو ایمان ښه پیژنی. لهذا دَهغوی په ظاهری ایمان باندې اکتفاء اوکړئ او رازونه الله تعالی ته حواله کړئ ځکه چې هغه دَ رازونو تفصیلات پیژنی او ډیرې وینځې په ایمان کښې په آزادو(ښځو) باندې فضیلت لری اودا دَ وینځو د نکاح سره مانوس کول دی اوتاسو په خپل مینځ کښې هم یو ئې یعنی هغوی اوتاسو په دین کښې برابریئ. لهذا هغوی سره په نکاح کولوکښې شرم مه محسوسوئ. نودَهغوی دَمالکانو په رضا د هغوی سره نکاح اوکړئ اودَ دستورمطابق بغیرد دَ ټال مټول نه اوبغیرد کمی نه هغوی ته مهرورکړئ. حال دا چې هغوئ پاکدامنې وی نه چې ښکاره په زناکونکې ښځې او نه په پټه یارانې کونکې ښځې دکوم په وجه چې په پټه توګه باندې زناکونکې وی. نوچې کله دا وینځې په نکاح کښې راشی او په یوقرامت کښې دَمعروف په صیغې سره دې یعنی کله چې هغوی نکاح اوکړی بیا که هغوئ د بې حیائی دَزنامرتکب شی نو بیا دهغوی سزا دَآزادې واده کړې شوې په نیمه ده کله چې هغوئ زنااوکړی نو پنځوس کوړې دې اووهلې شی او دنیم کال دَپاره دې جلاوطن کړې شی. او هم په دې به غلامان قیاس کولې شی او احصان دَ وجوب حددَپاره د شرط په توګه نه دې بلکه دَدې خبرې فائده ورکولودَپاره دې چې په هغوی باندې قطعًا رجم نشته(په آزاده باندې) قدرت نه کیدو په صورت کښې د وینځوسره دَنکاح کولو دا حکم دَهغه خلقو دَپاره دې د چا چه په ستاسوکښې په ګناه زنا داخته کیدو اندیښنه وی اودَ عَنَتٌ اصل معنی مشقت ده اودَ زنانوم ئې مشقت ځکه کیخودې دې چې زناپه دنیاکښې حد او په آخرت کښې دَسزا سبب دې په خلاف دَهغه آزادو خلقو چې دَهغوی (په زناکښې دَاخته کیدو) ویره نه وی نودَهغوی دَپاره وینځوسره نکاح کول حلال نه دی اوهم دغه حکم دَهغه سړی هم دې چې د آزادې ښځې سره دَنکاح قدرت لری اوهم دغه مذهب دَ امام شافعی رحمه الله دې. اودَالله تعالی قول مومنات دَ قیدنه کافرات خارج شوې نو دَ هغه دَپاره هم د وینځوسره نکاح کول حلال نه

دی اګر چې قدرت مفقود وی او دَ زنا ویره وی. اوکه چرې تاسو وینځوسره نکاح کول ضبط کړئ نودا ستاسو دَپاره ډیره بهتره ده دې دَپاره چې بچې غلام نه وی اوالله تعالی ډیر بخښونکې او په دې معامله کښې دَ وسعت په ذریعه ډیررحم کونکې دې.

## دَ قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: وَ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمُحْصَنٰتُ دَ جمهورو په نیز دصاد په فتحې سره اسم مفعول دې. هغه ښځې چې خپل شرمګاهونه ئې دَ نکاح په ذریعه محفوظ کړې وی(یعنی واده کړې ښځې) دَدې آیت نه علاوه هرځائی کښې کسائی دَ صادپه کسری سره صیغه اسم فاعل لوستلې ده.

**قوله**: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ، دَ حُرِّمَتْ دَ اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې دَ المحصنت عطف په أُمَّهٰتُكُمْ باندې دې او مُحْصَنات (یعنی دَخاوندانووالا ښځې)هم په سلسله دَ محرماتو کښې داخلې دی. اَلْمُحْصَنت اسم مفعول دَ جمع مؤنث صیغه ده واحدئې مُحْصَنَةٌ دې. په قرآن مجید کښې إحصان په څلورو معنو کښې استعمال شوې دې.
① واده کړې ښځې ② آزادې ښځې ③ پاکې لمنې ښځې ④ مسلمانانې ښځې. دلته رومبې معنی یعنی واده کړې ښځې مراددی. مفسرعلام ذَوَاتُ الأَزواج وئیلو سره هم دې معنې طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ، دَدې اضافې مقصد دَ یوسوال مقدرجواب دې.
سوال:- حرمت په افعالو کښې وی نه چې په ذواتو کښې. حالانکه حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمُحْصَنٰتُ نه دَ ذات حرمت مفهوم کیږی؟

**جواب**:- مفسرعلام اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اضافه کولوسره دَ دې سوال جواب ورکړې دې یعنی محصنت سره نکاح کول حرام دی نه چې دَهغوی ذات.

**قوله**: قَبْلَ اَلْمُفَارَقَةِ دَدې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې پس دَ مفارقت نه نکاح کولو کښې هیڅ قباحت نشته که ښځه آزاده وی اوکه وینځه وی.

**قوله**: بِالسَّبْيِ په دې کښې اشاره ده چې بغیرمفارقت وطی کول هغه وینځې سره جائزده چې ګرفتار شوې وی اوراغلې وی اوکه په قیمت اخستې شوې وی اوهغه واده کړې ده نوهغې سره بغیر دمفارقت د زوج نه وطی کول جائزنه دی.

**قوله**: نَصْبٌ علی المَصْدَرِيَّةِ،په دې کښې اشاره ده چې کتاب الله دَ مصدریت دَ وجې نه منصوب دې دَ کتاب عامل كَتَبَ،دحُرِّمَتْ نه مستفاددې څکه چې تحریم او کتاب او فرض هم په یوه معنی کښې دی. مفسر علام كَتَبَ ذلك وئیلو سره هم دَ دغه عامل محذوف طرف

نه اشاره کړې ده.

**قوله:** وَأُحِلَّ لَكُمْ دَ دې عطف دَ كتاب الله په عامل مقدرباندې دې كه چرې فعل مقدر په كَتَبَ باندې عطف وی نو أَحَلَّ به معروف وی اوكه چرې حُرِّمَتْ باندې وی نو أُحِلَّ به مجهول وی.

**قوله:** هُوَجَرْىٌ عَلَى الغَالِبِ دَ دې اضافي مقصد دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال:**-دَ المؤمنات دَ قيدنه معلوميږی چې كتابياتو سره نكاح صحيح نه ده.

**جواب:**-دَ المؤمنات قيد دَ غالب په اعتبارسره دې اودَ نكاح باره كښې چې كوم حكم دَ آزادو مرمناتو دې هم هغه حكم دآزاد كتابياتو هم دې لهذا دَ دې مفهوم مخالف مراد اخستل صحيح نه دی.

**قوله:** مُحْصَنَات، داد فانكحوهن دَ ضميرنه حال دې نه چې صفت، ځكه ضميرنه موصوف واقع كيږی اونه صفت، مشهوره قاعده ده الضمير لايُوصف ولايوصفُ به.

**قوله:** غَيْرَمُسَافِحِيْنَ داحال مؤكده دې مُسَافِحِيْنَ، مُسَافِحٌ جمع ده په معنی دَ زناكار.

**قوله:** أَخْدَان دا دَ خِدْنٌ جمع ده په معنی د پټ دوست.

**[اياتونه: ۲٦-۳۲]**

{يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ} شَرَائِع دِينِكُمْ وَمَصَالِح أَمْرِكُمْ {وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ} طَرَائِق {الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ} مِنْ الْأَنْبِيَاء فِي التَّحْلِيل وَالتَّحْرِيم فَتَتْبَعُوهُمْ {وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ} يَرْجِع بِكُمْ عَنْ مَعْصِيَته الَّتِي كُنْتُمْ عَلَيْهَا إلَى طَاعَته {وَاللَّهُ عَلِيمٌ} بِكُمْ {حَكِيمٌ} فِيمَا دَبَّرَهُ لَكُمْ {وَاللَّهُ يُرِيدُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْكُمْ} كَرَّرَهُ لِيَبْنِيَ عَلَيْهِ {وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ} الْيَهُود وَالنَّصَارَى أَوْ الْمَجُوس أَوْ الزُّنَاة {أَنْ تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا} تَعْدِلُوا عَنْ الْحَقّ بِارْتِكَابِ مَا حُرِّمَ عَلَيْكُمْ فَتَكُونُوا مِثْلهمْ {يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُخَفِّفَ عَنْكُمْ} يُسَهِّل عَلَيْكُمْ أَحْكَام الشَّرْع {وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا} لَا يَصْبِر عن النساء والشهوات {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ} بِالْحَرَامِ فِي الشَّرْع كَالرِّبَا وَالْغَصْب {إلَّا} لَكِنْ {أَنْ تَكُونَ} تَقَع {تِجَارَةً} وَفِي قِرَاءَة بِالنَّصْبِ أَنْ تَكُون الْأَمْوَال أَمْوَال تِجَارَة صَادِرَة {عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ} وَطِيب نَفْس فَلَكُمْ أَنْ تَأْكُلُوهَا {وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ} بِارْتِكَابِ مَا يُؤَدِّي إلَى هَلَاكهَا أَيًّا كَانَ فِي الدُّنْيَا أَوْ الْآخِرَة بِقَرِينَةِ {إنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا} فِي مَنْعه لَكُمْ مِنْ ذَلِكَ {وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ} أَيْ مَا نُهِيَ عَنْهُ {عُدْوَانًا} تَجَاوُزًا لِلْحَلَالِ حَال {وَظُلْمًا} تَأْكِيد {فَسَوْفَ نُصْلِيهِ} نُدْخِلهُ {نَارًا} يَحْتَرِق فِيهَا {وَكَانَ ذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا} هَيِّنًا {إنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ} وَهِيَ مَا وَرَدَ عَلَيْهَا وَعِيد كَالْقَتْلِ وَالزِّنَا وَالسَّرِقَة وعن بن عَبَّاس هِيَ إلَى السَّبْعِمِائَةِ أَقْرَب {نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ} الصَّغَائِر بِالطَّاعَاتِ {وَنُدْخِلْكُمْ مُدْخَلًا} بِضَمِّ الْمِيم وَفَتْحهَا أَيْ إدْخَالًا أَوْ مَوْضِعًا {كَرِيمًا} هُوَ الجنة {وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللَّهُ بِهِ

بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ) مِنْ جِهَةِ الدُّنْيَا أَوِ الدِّينِ لِئَلَّا يُؤَدِّي إِلَى التَّحَاسُدِ وَالتَّبَاغُضِ (لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ) ثَوَابٌ (مِمَّا اكْتَسَبُوا) بِسَبَبِ مَا عَمِلُوا مِنَ الْجِهَادِ وَغَيْرِهِ (وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِمَّا اكْتَسَبْنَ) مِنْ طَاعَةِ أَزْوَاجِهِنَّ وَحِفْظِ فُرُوجِهِنَّ نَزَلَتْ لَمَّا قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ لَيْتَنَا كُنَّا رِجَالًا فَجَاهَدْنَا وَكَانَ لَنَا مِثْلُ اجر الرجال (واسألوا) بِهَمْزَةٍ وَدُونِهَا (اللَّهَ مِنْ فَضْلِهِ) مَا احْتَجْتُمْ إِلَيْهِ يُعْطِكُمْ (إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا) وَمِنْهُ مَحَلُّ الْفَضْلِ وَسُؤَالُكُمْ (وَلِكُلٍّ) مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ (جَعَلْنَا مَوَالِيَ) عَصَبَةً يُعْطَوْنَ (مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ) لَهُمْ مِنْ مَالٍ (والذين عاقدت) بِأَلِفٍ وَدُونِهَا (أَيْمَانُكُمْ) جَمْعُ يَمِينٍ بِمَعْنَى الْقَسَمِ أَوِ الْيَدِ أَيِ الْحُلَفَاءُ الَّذِينَ عَاهَدْتُمُوهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ عَلَى النُّصْرَةِ وَالْإِرْثِ (فَآتُوهُمْ) الْآنَ (نَصِيبَهُمْ) حُظُوظَهُمْ مِنَ الْمِيرَاثِ وَهُوَ السُّدُسُ (إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا) مُطَّلِعًا وَمِنْهُ حالكم وهذا منسوخ.

---

**ترجمه**:- الله تعالی غواړي چې ستاسو دَپاره ستاسو دَدین احکام او ستاسو دَمعاملې مصلحتونه ښه ښکاره بیان کړي اوتاسو ته ستاسو نه دَ وړاندې خلقو دَ انبیاء کرامو دَ حلال اوحرام حالات (طریقې)اوښائي دې دَپاره چې تاسو دَهغوی اتباع اوکړئی(اوالله تعالی غواړي) چې تاسو په کومو ګناهونوتاسوباندې وئی دهغې نه دَخپل طاعت طرف ته اوګرځوي. الله تعالی ستاسو دَ حالاتو پیژندونکې اوکوم نظم چې هغه ستاسو دَ پاره قائم کړې دې په هغې کښې باحکمت دې او الله تعالی ته منظوره ده چې ستاسو په حال توجه اوفرمائي دا (جمله) مکرر راوړلې شوې ده دې دَپاره چې مابعد په دې باندې مبنی کړې شي او کوم خلق چې خواهشاتوراګیرکړي دی یعنی یهودیان نصاریٰ او مجوسیان او زناکار هغوئ غواړي چې (په تاسو) دَ حرامو څیزونوارتکاب اوکړي دَ حق نه په پوره توګه واړوي او الله تعالی ته منظورده چې تاسو سره آسانی اوکړي او ستاسو دَ پاره دَ شریعت احکام آسان کړي. او انسان خو کمزوري پیداکړې شوې دې چې دَ ښځو نه او شهوتونونه صبرنه شي کولې. اې ایمان والو! تاسو په خپل مینځ کښې دَیوبل مال شرعًا په حرامه طریقه مثلاً دَ سود او غصب په طریقه مه خورئی اوکه ستاسو په خپل مینځ کښې څه تجارت په خپل مینځ کښې رضامندئی باندې اوشي (نوخوړلې شئ) او په یوقراءت کښې (تجارة) په نصب سره دې یعنی دَ تجارت مالونه یعنی په خپل مینځ کښې په رضامندئی اوخوشحالئ سره په وجودکښې راشي نوتاسو ته دَهغې دَخوراك اجازت دې. دَ هلاکیدونکی څیز ارتکاب کولوسره خپل ځان په هلاکت کښې مه اچوئی که هغه هلاکت په دنیاکښې وی اوکه په آخرت کښې وی. دَ ﴿ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴾ دَ قرینې دَ وجې نه بیشکه الله تعالی ستاسو په حق کښې ډیر مهربان دې تاسو دَ دغه هلاکت نه دَ منع کولو دَ وجې اوڅوك چې دَ ممنوع ارتکاب کوی حلال ترك کولوسره (تجاوزاً) حال دې او دَ ظلم په توګه دا تاکید دې نو مونږ به ډیر زرهغه په اورکښې واچووچه په هغې کښې به سوزیږي اودا دَ الله تعالی دَ پاره آسان دی اوکه چرې تاسو دَ هغه لويو ګناهونودَ

کارونو نه دَ کوم نه چې تاسو منع کړې شوي يئ ځان بچ کړئ او لوئي ګناهونه هغه دي په کوموچې وعيد راغلې دې مثلاً قتل زنا غلا او دَابن عباس ﷺ نه روايت دې چې دا اووه سرو ته نيزدې دي. مونږ به ستاسو واړه ګناهونه دَطاعت په بدله کښې معاف کړو او تاسو به يو معززمقام ته چې هغه جنت دې داخل کړو. (مُدْخَلًا) دَميم په ضمې او فتحې سره داخلول ته اودَ داخليدو ځائې. اوتاسو دَ داسې څيزتمنا مه کوئی په کومه کښې چې الله تعالی بعضو له په بعضو باندې په دنيا او دين کښې ډير فضيلت ورکړې دې دې دپاره چې په خپل مينځ کښې حسد اوبغض پيدا نه شي. دَ سړو دَپاره دَهغوی دَ اعمالو وغيره ثواب دې کوم چې هغوی دَ جهادوغيره په شکل کښې کړی دی اودَ ښځودَپاره دَهغوی دَ اعمالو ثواب دې کوم چې هغوی دَ خپلو خاوندانو په تابعدارئی کښې اودَ خپل ناموس دَ حفاظت په صورت کښې کړی دی. (دا آيت) هغه وخت نازل شو کله چې حضرت ام سلمه ﷺ تمنا اوکړه چې افسوس چې مونږ سړی وې نومونږ به جهادکولو اومونږ ته به هم دَ سړو په شان اجرملاويدلو اودَ الله تعالی نه دَهغه فضل طلب کوئ. په همزې سره او بغيردَ همزې. دکوم چې تاسو محتاج يئ هغه به تاسو ته درکوی بيشکه الله تعالی دَ هرڅيزنه خبردې هم په دې کښې محل د فضل اوستاسو سوال هم دې او دهر دپاره د نارينو اود زنانو نه دهغه مال نه دی کوم چې مورپلاراو خپلوان دَهغوی دپاره پريږدی مونږدَ هغې دَپاره وارثان مقررکړی دی کومو ته چې به هغه مال ورکولې شي اوکومو خلقو سره چې ستاسو عهد او پيمان شوې دې نوهغوی ته اوس دَ ميراث حصه ورکړئی اوهغه شپږمه حصه ده. ایمان دَ یمین جمع ده يعنی قسم يا عهد يعنی ستاسو هغه حلفاء چاسره چې تاسو په زمانه دَجاهليت کښې په نصرت او ارث باندې معاهده کړې ده. بيشکه الله تعالی په هرڅيزباندې خبردارې او هم په هغوی کښې ستاسوحال هم دې اودا دَالله تعالی په قول﴿ وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ باندې منسوخ دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: يُرِيْدُ اللهُ لِيُبَيِّنَ، لِيُبَيِّنَ، د يُرِيْدُ مفعول به دې اولام زائده دَ تاکيدپاره دې.

**قوله**: شَرَائِعَ دِيْنِكُمْ، شرائع، مقدرمنلو کښې اشاره ده چې دَ ليبين مفعول محذوف دې.

**قوله**: يَرْجِعُ بِكُمْ عَنِ الْمَعْصِيَةِ دَ يريدُ تفسيرپه يرجع سره دکولومقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**:- دَتوبې د قبلولومقصدوی د معصيت معاف کول اومعصيت اوګناه دَ شريعت راتلونه پس کيږی او شريعت دغه وخت لاراغلې نه دې څکه چې سابق کښې الله تعالی فرمائی چې هغه ستاسو دَپاره شريعت بيانول غواړی نوچې شريعت واردشوې نه وی نودَ شريعت خلاف ورزی هم نه ده شوې اوچې کله خلاف ورزی نه ده شوې نو معصيت هم نه

دي شوي او چې معصيت نه دي شوي نو دَ توبې قبلولو څه معنی نشته؟

**جواب:-** مفسر علام دَ بتوب تفسير په بِرَجمٍ سره کړي دي او دَ مذکوره سوال دَ جواب طرف ته ئې اشاره کړې ده. دَ جواب حاصل دادې چې دَ بتوب مطلب دې برجم منع کړئی او تاسو دَ جاهليت دَ طور طريقونه واړوی.

**قوله:** تَكُوْنَ تفسير تَقَعَ سره کولو کښې اشاره اوکړه چې کان تامه ده او تجارة په نصب سره هم دې په دې صورت کښې به کان ناقصه شی او دَدې اسم به محذوف شی او تجارة به دَدې خبر شی او تقدير دَعبارت به داسې وی الا أن تكون التجارة تجارة الا أن تكون مستثنى منقطع ده ځکه چې مستثنى منه کوم چې مالونه دی دَ مستثنى يعنی تجارة دَ جنس نه نه دی.

**قوله:** أَمْوَالَ التِّجَارَةِ دَ لفظ اموال اضافه به دَ کان ناقصه منلو په صورت کښې وی او دَدې اضافې مقصد به دَ کان په اسم باندې دَدې د خبر حمل صحيح کرځول وی گنی مطلب به داوی چې تاسو خپل مالونه مه خورئی مگر دا چې هغه تحارت وی حالانکه تجارت دَ خوراك ځيزنه وی.

**قوله:** صَادِرَةً دَدې اضافې مقصد دَ يو سوال جواب دې.

**سوال:-** دَ تجارة صله عن نه استعماليږی بلکه باء استعماليږی؟

**جواب:-** عَنْ، دَ تجارة صله نه ده بلکه دَ صادرة مقدر صله ده لهذا هيڅ اشکال نشته.

**قوله:** بِقَرِيْنَةِ دَدې اضافې مقصد په هغه خلقو باندې رد دې چې هلاکت صرف قتل گنړی حالانکه صحيح خبره داده چې هلاکت عام دې که دنياوی وی او که اخروی او که هغه دَ نفس دَ قتل په صورت کښې وی يا دَ معصيت دَ ارتکاب په صورت کښې وی که حسی وی او که معنوی وی او دَدې عموم قرينه ﴿ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴾ ده ځکه چې دَ الله تعالی رحمت دَ دنيا او آخرت دواړو دَپاره عام دې نه چې دَ بعض قسم هلاکتونو سره خاص دې.

**قوله:** هِيَ إِلَى سَبْعِمِائَةٍ أَقْرَبُ يعنی دَ کبائرو شمير اووه سوو ته نيزدې دې. (مگر دَ اوياؤ قول اقرب إلى الصحة دې)

**[اياتونه: ٣٤-٤٢]**

(الرِّجَالُ قَوَّامُونَ) مُسَلَّطُونَ (عَلَى النِّسَاءِ) يُؤَدِّبُونَهُنَّ وَيَأْخُذُونَ عَلَى أَيْدِيهِنَّ (بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ) أَيْ بِتَفْضِيلِهِ لَهُمْ عَلَيْهِنَّ بِالْعِلْمِ وَالْعَقْلِ وَالْوِلَايَةِ وَغَيْرِ ذَلِكَ (وَبِمَا أَنْفَقُوا) عَلَيْهِنَّ (مِنْ أَمْوَالِهِمْ فَالصَّالِحَاتُ) مِنْهُنَّ (قَانِتَاتٌ) مُطِيعَاتٌ لِأَزْوَاجِهِنَّ (حَافِظَاتٌ لِلْغَيْبِ) أَيْ لِفُرُوجِهِنَّ وَغَيْرِهَا فِي غَيْبَةِ

أزواجهن {بِمَا حَفِظَ} لَهُنَّ {اللَّهُ} حَيْثُ أوصَى عَلَيْهِنَّ الأزواج {وَاللَّاتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ} عِصْيَانهن لَكُمْ بِأنْ ظَهَرَتْ أمَارته {فَعِظُوهُنَّ} فَخَوِّفُوهُنَّ الله {وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ} اعتزلوا الى فِرَاش آخر إنْ أظْهَرْنَ النُّشوز {وَاضْرِبُوهُنَّ} ضَرْبًا غير مُبَرِّح إنْ لَمْ يَرْجِعْنَ بالهجْرَانِ {فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ} فِيمَا يُرَاد مِنْهُنَّ {فَلَا تَبْغُوا} تطلُبُوا {عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا} طَرِيقًا الى ضَرْبِهِنَّ ظُلْمًا {إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا} فاحذَرُوهُ أنْ يُعَاقِبكُمْ إنْ ظَلَمْتُمُوهُنَّ {وَإِنْ خِفْتُمْ} عَلِمْتُمْ {شِقَاقَ} خِلاف {بَيْنِهِمَا} بَيْن الزَّوْجَيْنِ وَالإضَافَة لِلاتّساعِ أيْ شِقَاقًا بَيْنهمَا {فَابْعَثُوا} إلَيْهمَا بِرِضَاهُمَا {حَكَمًا} رَجُلًا عَدْلًا {مِنْ أَهْلِهِ} أقَاربه {وَحَكَمًا مِنْ أَهْلِهَا} وَيُوَكِّل الزَّوْج حَكَمه فِي طَلَاق وَقَبُول عِوَض عَلَيْهِ وَتُوَكِّل هِيَ حَكَمهَا فِي الإخْتِلاع فَيَجْتَهِدَانِ وَيَأْمُرَانِ الظَّالِم بِالرُّجُوعِ أوْ يُفَرِّقَانِ إنْ رَأيَاهُ قَالَ تَعَالَى {إِنْ يُرِيدَا} أيْ الحَكَمَانِ {إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا} بَيْن الزَّوْجَيْنِ أيْ يُقَدِّرهُمَا عَلَى مَا هُوَ الطَّاعَة مِنْ إصْلَاح أوْ فِرَاق {إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا} بِكُلِّ شَيْء {خَبِيرًا} بِالْبَوَاطِنِ كَالظَّوَاهِرِ {وَاعْبُدُوا اللَّهَ} وَحِّدُوهُ {وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَ} احسنوا {بِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا} بَرًّا وَلِين جَانِب {وَبِذِي الْقُرْبَى} القَرَابة {وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى} القَرِيب مِنك فِي الجِوَار أوْ النَّسَب {وَالْجَارِ الْجُنُبِ} البَعِيد عَنك فِي الجِوَار أوْ النَّسَب {وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ} الرفيق في سفر او صناعة وقيل الزوجة {وَابْنِ السَّبِيلِ} المُنْقَطِع فِي سَفَره {وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ} مِنَ الأرِقَّاء {إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا} مُتَكَبِّرًا {فَخُورًا} عَلَى النَّاس بِمَا أوتِي {الَّذِينَ} مُبْتَدَأ {يَبْخَلُونَ} بِمَا يَجِب عَلَيْهِمْ {وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ} بِهِ {وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ} مِنَ العِلْم وَالمَال وَهُمْ اليَهُود وخبر المبتدأ لهم وعيد شديد {وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ} بِذَلِكَ وَبِغَيْرِهِ {عَذَابًا مُهِينًا} {وَالَّذِينَ} عُطِفَ عَلَى الَّذِينَ قَبْله {يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ} مُرَائِينَ لَهُمْ {وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ} كَالمُنَافِقِينَ وَأهْل مَكَّة {وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا} صَاحِبًا يَعْمَل بِأمْرِهِ كَهَؤُلَاءِ {فَسَاءَ} بِئْسَ {قَرِينًا} هُوَ {وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَنْفَقُوا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللَّهُ} أيْ أيّ ضَرَر عَلَيْهِمْ فِي ذَلِكَ وَالإسْتِفْهَام لِلإنْكَارِ وَلَوْ مَصْدَرِيَّة أيْ لَا ضَرَر فِيهِ وَإنَّمَا الضَّرَر فِيمَا هُمْ عَلَيْهِ {وَكَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا} فَيُجَازِيهِمْ بما عملوا {إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ} أحَدًا {مِثْقَالَ} وَزْن {ذَرَّةٍ} أصْغَر نَمْلَة بِأنْ يُنْقِصهَا مِنْ حَسَنَاته او يَزِيدهَا في سيئاته {وَإِنْ تَكُ} الذَّرَّة {حَسَنَةً} مِنْ مُؤْمِن وَفِي قِرَاءَة بِالرَّفْعِ فَكَانَ تَامَّة {يُضَاعِفْهَا} مِنْ عَشْر إلَى أكْثَر مِنْ سَبْعِمِائَةٍ وَفِي قِرَاءَة يُضَعِّفهَا بِالتَّشْدِيدِ {وَيُؤْتِ مِنْ لَدُنْهُ} مِنْ عِنْده مَعَ المُضَاعَفَة {أَجْرًا عَظِيمًا} لَا يَقْدِرهُ أحَد {فَكَيْفَ} حَال الكُفَّار {إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ} يَشْهَد عَلَيْهَا بِعَمَلِهَا وَهُوَ نَبِيّهَا {وَجِئْنَا بِكَ} يَا محمد {عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا} {يَوْمَئِذٍ} يَوْم المَجِيء {يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ} أيْ أنْ {تُسَوَّى} بِالبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَالفَاعِل مَعَ حَذْف إحْدَى التَّاءَيْنِ فِي الأصْل وَمَعَ إدْغَامهَا فِي السِّين أيْ تَتَسَوَّى {بِهِمُ الْأَرْضُ} بِأنْ يَكُونُوا تُرَابًا مِثْلهَا لِعِظَمِ هَوْله كَمَا فِي آيَة أُخْرَى {وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَا لَيْتَنِي كُنْتُ تُرَابًا} {وَلَا يَكْتُمُونَ اللَّهَ حَدِيثًا} عَمَّا عَمِلُوهُ وَفِي وَقْت آخَر يَكْتُمُونَهُ وَيَقُولُونَ {وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ}

**ترجمه:-** سري دَ بنځو حاکمان دي دَهغوی تادیب کوي او هغوی دَ (ناخوښه خبرونه) منع

کړی په دې سبب چې الله تعالی هغوی کښې يوله په بل باندې فضيلت ورکړې دې يعنی الله تعالی سړو ته په ښځوباندې په علم کښې عقل کښې او ولايت وغيره کښې فضيلت ورکړې دې او په دې سبب چې سړی په ښځوباندې خپل مالونه خرچ کوی نونيکې او حکم منونکې ښځې دَخپلو خاوندانو تابعدارې دَ خاوند په غيرموجودګئی کښې په حفاظت دَالله تعالی دَ خپل ناموس وغيره خيال ساتونکې دی داسې چې خاوندانوته يې دَهغوی دَ حفاظت تاکيدفرمائيلې دې. اودَ کومو ښځو دَ نافرمانوچې تاسو ته ويره وی داسې چې ددې علامات ښکاره وی نوهغوی ته نصيحت اوکړئی يعنی هغوی دَالله تعالی نه اوويروئ اوهغوی په بستروکښې ځان له پريږدئی يعنی که هغه دَنافرمانئ مظاهره اوکړی نو دَهغوی نه بستره جدا کړئی اوکه هغوی په بسره جدا کولوسره هم منع نه شی نوهغوی له دَ وهلوسزا ورکړئی چې (سخت) تکليف والا نه وی اوکه هغه په دې سره ستاسوپه مقصود کښې تابعداری اوکړی نوتاسو بيا په ظلم سره دَ وهلو بهانې مه لټوئی بيشکه الله تعالی ديراوچتاو لوئی دې. لهذا تاسو دَهغه دَ سزا نه اوويريږئی که په ښځو ظلم اوکړو اوکه چرې تاسو ته دَښځې او د خاوند په مينځ کښې کشمکش (دَ جوړخ نه راتلو) انديښنه وی (شِقَاقَ بَيْنِهِمَا) کښې اضافت دَ اتساع په توګه دې. (اصل کښې شِقَاقًا بَيْنَهُمَا دې. نو يو منصف دَ سړی والو نه اويومنصف دَښځې والو نه هغوی له دهغوئ په رضامندئی اوليږئی اوخاونددې خپل منصف نه په طلاق او (په طلاق) باندې دَ قبول عوض اختيار ورکړی اوښځه دې خپل منصف نه دَخلع اختيار ورکړی بيادې دواړه دَ (حکم، اصلاح) کوشش اوکړی او ظالم ته دې دَ ظلم نه د منع کيدو حکم ورکړی ياکه مناسب ګڼړی نودَهغوی په مينځ کښې دې جدائی راولی. الله تعالی فرمائی چې که دواړه حَکَم صلح کول غواړی نوالله تعالی به دَ ښځې اوخاوند په مينځ کښې موافقت پيدا کړی. په دې توګه چې صلح يا جدائې نه چې کوم طاعت دې دهغ بهې هغوی ته قدرت ورکړی. بيشکه الله تعالی دَهرڅيز نه خبردې يعنی دَپټو څيزونو نه د ښکاره څيزونو په شان خبردې. دَيوالله تعالی بندګی کوئې اوهغه سره څوک مه شريکوئی او موريلارسره ښه سلوک کوئی (يعنی) هغوی سره په نيکئ او نرمئ سره مخ کيږئی او د خپلوانو سره اويتيمانانو مسکينانو اونزدې ګاوندیانوسره يعنی څوک چې تاسو ته په ګاوند يا نسب کښې نيزدې وی او دَلرې ګاوندیانوسره يعنی څوک چې تاسو سره په ګاوند يا نسب کښې لرې وی او دَمجلس مګری سره يعنی چې څوک دَ سفرملګرې وی اويا روزګار ملګرې وی او ونيلې شوی دی چې مراد بی بی ده اومسافروسره چې سفرجاری ساتلونه عاجزشوې وی، اود هغه چا سره څوک چې ستاسوپه ملکيت کښې دی (غلامان او وينځې) يقيناً الله تعالی تکبرکونکی او مال وغيره چه هغوی ته نی ورکړې دې دَهغې په وجه په نورو باندې فخر کونکی نه خوښوی اوکوم خلق چې په واجباتو کښې بخل کوی او نورو خلقوته هم دَ

بخیل توب کولووائی. اَلَّذِیۡنَ مبتداء دې. اوالله تعالی چې هغوی ته په خپل فضل او علم سره مال وغیره ورکړې دې هغه پټوی اوهغه یهودیان دی اودَ مبتداء خبر لَهُمْ وَعِيْدٌ شَدِيْدٌ دې اودکافرانودَ پاره مونږ ذدې وجې نه اودَدې نه علاوه د نورو عملونو دَ وجې دَ ذلت والا عذاب تیارکړې دې اوکوم خلق چې خپل مال دَخلقو دَ خودنې دَپاره خرچ کوی او په الله تعالی اوپه ورځ دَ قیامت باندې ایمان نه لری لکه منافقان او اهل مکه اودَ چاملګرې چې شیطان وی نوهغه دَ دغه دَ حکم مطابق عمل کوی لکه څنګه چې دا خلق دی. نوهغه ډیر خراب دوست دې. او دَ هغوی به څه نقصان وې که په الله تعالی او په ورځ دَ قیامت باندې یې ایمان راوړې وې او الله تعالی چې هغوی ته کومه ورکړه کړې ده دَهغې نه ئې خرچ کولې یعنی په دې کښې هیڅ نقصان نه وو. بلکه نقصان خو په هغه څه کښې دې څه چې هغوی کوی. الله تعالی هغوی ښه پیژنی لهذا دَهغوی دَ عملونو بدله به هغوی ته ورکړی. بیشکه الله تعالی په چاباندې دَ یوې ذرې برابر (یعنی) دَ وړوکی میږی برابر هم ظلم نه کوی داسې چې دَهغوی نیکئ کمې کړی یا دَهغوی په ګناهونو کښې زیاتوالې اوکړی اوکه چرې دَمؤمن نیکی دَ یوې ذرې برابر وی نوهغې لره دَ لس چنده په څانی اوه سوه چنده نه هم زیاتوی. او په یوقراءت کښې حسنة رفع سره دې نو په دغه صورت کښې به تَكُ تامه شی او په یو قراءت کښې یُضَعِّفُهَا تشدیدسره دې او په خاص دَخپل رحمت نه مضاعفة نه علاوه ډیر لوئې اجرورکوی چې په هغې باندې چاته قدرت حاصل نه دې. نو دَ دې کافرانو به څه حال وی؟ کله چې مونږ دَهرامت نه یوګواه جوړکړو راولو چې هغه به په هغوی باندې دَهغوی د عمل ګواهی ورکوی اوهغه به دَ دې امت نبی وی. اوای محمد مونږ به تا لره په دغه خلقو باندې ګواه جوړولوسره راولو. (دَيومئذ نه يوم المجيء مراد ده) په کومه ورځ چې به کافران اودَ رسول منکران تمناکوی چې افسوس هغوی زمکې سره هوارکړې شوی وې (تسوّی) دَ مجهول اومعروف صیغې سره دې. په اصل کښې دیوې تاء حذف سره اَو بل د تاء په سین کښې ادغام سره ای تَتَسَوّى بِهِمْ چې هغوی دَ زمکې په شان شوې وې دَهغه ورځ دَ تباهودَ وجې نه لکه چې په بل آیت کښې دی ﴿ وَيَقُوْلُ الْكَافِرُ يٰلَيْتَنِیْ كُنْتُ تُرٰبًا ﴾ اودَالله تعالی نه به هیڅ خبره پټه نه کړې شی یعنی دَخپلو عملونو نه به هیڅ عمل پټ نه کړې شی او په بل وخت کښې به ئې پټ کړې شی چې وائی به ﴿ وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ ﴾.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: قَوَّامُوْنَ: دا دَ قَوَّامٌ جمع ده دَ مبالغې صیغه ده یعنی مشر، مصلح، خیال ساتونکې.

**قوله**: لِفُرُوْجِهِنَّ په دې کښې یې د حافظات مفعول محذوف طرف ته اشاره کړې ده. مفسرعلام دَ للغيب تفسیر په فِیْ غَيْبَتِهِ سره کولو کښې اشاره کړې ده چې لام په معنی دَ فی دې.

**قوله**: بِأَنْ ظَهَرَتْ أَمَارَاتُهُ دادَ یوسوال مقدرجواب دې.

**سوال:** - دَ ظاهر آیت نه معلومیږی چې که دَښځونه دَنافرمانئی اندیښنه وی نودَهغوی باره کښې دَ نصیحت إعتزال او د ضرب وغیره احکام دی حالانکه دَ احکامو ترتب صرف په اندیښنه او ویره باندې نه وی بلکه په وقوع باندې وی. دَدې سوال جواب مفسرعلام بأنْ ظَهَرَتْ اَمَارَاتُهُ سره ورکړې دې چې کله د ښځې نه دَ نافرمانئی ظهور وی نوهغه وخت به دا احکام جاری کیږی.

**قوله:** ضربًا غَيْرَمُبَرِّحٍ، اى الضرب الذى لايكسر عظمًا ولايشين عضوًا، اى ضربًا غيرشديد.

**قوله:** والاضَافَةُ لِلإتِّسَاعِ دادَ یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال:** - دَ مصدر اضافت دَ فاعل یا مفعول طرف ته وی اودلته دَ شقاق اضافت دَ بَيْن طرف ته کیږی کوم چې ظرف دې؟.

**جواب:** - په ظرف کښې اتساع صحیح ده ځکه چې مشهوره قاعده ده يجوز فى الظرف مالايجوز فى غيره. درنګ ظرف دَ مفعول قائمقام دې لکه بأسارق الليل کښې.

**قوله:** وَأَحْسِنُوا **سوال:** - مفسرعلام اَحْسِنُوادَ کومې فائدې دَپاره محذوف منلې دې؟

**جواب:** - په دې سرد دَ یوسوال مقدرجواب ورکول مقصوددی.

**سوال:** - دادې چې وَبِالْوالدين احسانًا جمله خبریه ده دَدې عطف په وَاعْبُدُوا اللهَ باندې دې کومه چې جمله إنشائیه ده او عطف خبر على الإنشاء صحیح نه دې.

**جواب:** - مفسرعلام أَحْسِنُوا فعل امر مقدرمنلوسره اشاره اوکړه چې معطوف هم جمله انشائیه ده لهذا اوس هیڅ اعتراض پاتې نه شو.

**قوله:** الْجُنُب بضَمَّتَيْن په معنی دَ لرې ګاونډی دَدې اطلاق په مذکرمؤنث او تثنیه اوجمع ټولو باندې کیږی.

**قوله** والصاحِبِ بِالْجَنْبِ په فتحې دَ جیم او په سکون دَ نون سره په معنی دَ رفیق، دَ نیک کار ملګرې مثلاً د تعلیم، صنعت وحرفت اود سفروغیره ملګرې.

**قوله:** الذين الخ مبتداء ده دَدې خبرمحذوف دې کوم چې مفسرعلام لَهُمْ وعيدٌ شديدٌ سره ظاهرکړې دې او بعض حضراتو الذين دَ هُمْ مبتداء محذوف خبر ګرځولې دې.

**[ایاتوله: ٤٢-٥٠]**

(يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ) أيْ لَا تُصَلُّوا (وَأَنْتُمْ سُكَارَى) مِنَ الشَّرَابِ لِأَنَّ سَبَبَ نُزُولِهَا صَلَاةُ جَمَاعَةٍ فِي حَالِ سُكْرٍ (حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ) بِأَنْ تَصْحُوا (وَلَا جُنُبًا) بِإِيلَاجٍ أَوْ إِنْزَالٍ وَنَصْبُه عَلَى الْحَالِ وَهُوَ يُطْلَقُ عَلَى الْمُفْرَدِ وَغَيْرِهِ (إِلَّا عَابِرِي) مُجْتَازِي (سَبِيلٍ) طَرِيقٍ أَيْ مُسَافِرِينَ (حَتَّى تَغْتَسِلُوا) فَلَكُمْ أَنْ

تصلّوا واستثناء الْمُسَافِر لِأَنَّ لَهُ حُكْمًا آخر سيأتي وَقِيلَ الْمُرَاد النَّهْي عَنْ قُرْبَان مَوَاضِع الصَّلَاة أَيْ الْمَسَاجِد إِلَّا عُبُورهَا مِنْ غَيْر مُكْث ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى﴾ مَرَضًا يَضُرّهُ الْمَاء ﴿أَوْ عَلَى سَفَرٍ﴾ أَيْ مُسَافِرِينَ وَأَنْتُمْ جُنُب أَوْ مُحْدِثُونَ ﴿أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ﴾ هُوَ الْمَكَان الْمُعَدّ لِقَضَاءِ الْحَاجَة أَيْ أَحْدَثَ ﴿أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ﴾ وَفِي قِرَاءَة بِلَا أَلِف وَكِلَاهُمَا بِمَعْنَى اللَّمْس هُوَ الْجَسّ باليد قاله بن عُمَر وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ وَأُلْحِق بِهِ الْجَسّ بِبَاقِي البشرة وعن بن عَبَّاس هُوَ الْجِمَاع ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً﴾ تَتَطَهَّرُونَ بِهِ لِلصَّلَاةِ بَعْد الطَّلَب وَالتَّفْتِيش وَهُوَ رَاجِع إِلَى مَا عَدَا الْمَرْضَى ﴿فَتَيَمَّمُوا﴾ اقْصِدُوا بَعْد دُخُول الْوَقْت ﴿صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ تُرَابًا طَاهِرًا فَاضْرِبُوا بِهِ ضَرْبَتَيْنِ ﴿فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ﴾ مَعَ الْمِرْفَقَيْنِ منه ومسح يتعدى بنفسه وبالحرف ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا﴾ ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا﴾ حَظًّا ﴿مِنَ الْكِتَابِ﴾ وَهُمْ الْيَهُود ﴿يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ﴾ بِالْهُدَى ﴿وَيُرِيدُونَ أَنْ تَضِلُّوا السَّبِيلَ﴾ تُخْطِئُوا الطَّرِيق الْحَقّ لتكونوا مثلهم ﴿وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ﴾ مِنْكُمْ فَيُخْبِرُكُمْ بِهِمْ لِتَجْتَنِبُوهُمْ ﴿وَكَفَى بِاللَّهِ وَلِيًّا﴾ حَافِظًا لَكُمْ مِنْهُمْ ﴿وَكَفَى بِاللَّهِ نَصِيرًا﴾ مَانِعًا لَكُمْ مِنْ كَيْدهمْ ﴿مِنَ الَّذِينَ هَادُوا﴾ قَوْم ﴿يُحَرِّفُونَ﴾ يُغَيِّرُونَ ﴿الْكَلِمَ﴾ الَّذِي أَنْزَلَ اللَّه فِي التَّوْرَاة مِنْ نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿عَنْ مَوَاضِعِهِ﴾ الَّتِي وُضِعَ عَلَيْهَا ﴿وَيَقُولُونَ﴾ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَرَهُمْ بِشَيْءٍ ﴿سَمِعْنَا﴾ قَوْلك ﴿وَعَصَيْنَا﴾ أَمْرك ﴿وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ﴾ حَال بِمَعْنَى الدُّعَاء أَيْ لَا سَمِعْت ﴿وَ﴾ يَقُولُونَ لَهُ ﴿رَاعِنَا﴾ وَقَدْ نُهِيَ عَنْ خِطَابه بِهَا وَهِيَ كَلِمَة سَبّ بِلُغَتِهِمْ ﴿لَيًّا﴾ تَحْرِيفًا ﴿بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا﴾ قَدْحًا ﴿فِي الدِّينِ﴾ الْإِسْلَام ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا﴾ بَدَل وَعَصَيْنَا ﴿وَاسْمَعْ﴾ فَقَطْ ﴿وَانْظُرْنَا﴾ اُنْظُرْ إِلَيْنَا بَدَل رَاعِنَا ﴿لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ﴾ مِمَّا قَالُوهُ ﴿وَأَقْوَمَ﴾ أَعْدَل مِنْهُ ﴿وَلَكِنْ لَعَنَهُمُ اللَّهُ﴾ أَبْعَدَهُمْ عَنْ رَحْمَته ﴿بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ مِنْهُمْ كَعَبْدِ اللَّه بن سَلَام واصحابه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا﴾ مِنَ الْقُرْآن ﴿مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ﴾ مِنَ التَّوْرَاة ﴿مِنْ قَبْلِ أَنْ نَطْمِسَ وُجُوهًا﴾ نَمْحُو مَا فِيهَا مِنَ الْعَيْن وَالْأَنْف وَالْحَاجِب ﴿فَنَرُدَّهَا عَلَى أَدْبَارِهَا﴾ فَنَجْعَلهَا كَالْأَقْفَاءِ لَوْحًا وَاحِدًا ﴿أَوْ نَلْعَنَهُمْ﴾ نَمْسَخهُمْ قِرَدَة ﴿كَمَا لَعَنَّا﴾ مَسَخْنَا ﴿أَصْحَابَ السَّبْتِ﴾ مِنْهُمْ ﴿وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ﴾ قَضَاؤُهُ ﴿مَفْعُولًا﴾ وَلَمَّا نَزَلَتْ أَسْلَمَ عَبْد اللَّه بْن سَلَام فَقِيلَ كَانَ وَعِيدًا بِشَرْطٍ فَلَمَّا أَسْلَمَ بَعْضهمْ رُفِعَ وَقِيلَ يَكُون طَمْس وَمَسْخ قَبْل قِيَام السَّاعَة ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ﴾ أَيْ الْإِشْرَاك ﴿بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ﴾ سِوَى ﴿ذَلِكَ﴾ مِنَ الذُّنُوب ﴿لِمَنْ يَشَاءُ﴾ الْمَغْفِرَة لَهُ بِأَنْ يُدْخِلهُ الْجَنَّة بِلَا عَذَاب وَمَنْ شَاءَ عَذَّبَهُ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ بِذُنُوبِهِ ثُمَّ يُدْخِلهُ الْجَنَّة ﴿وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْمًا﴾ ذَنْبًا ﴿عَظِيمًا﴾ كبيرا ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنْفُسَهُمْ﴾ وَهُمُ الْيَهُود حَيْثُ قَالُوا نَحْنُ أَبْنَاء اللَّه وَأَحِبَّاؤُهُ أَيْ لَيْسَ الْأَمْر بِتَزْكِيَتِهِمْ أَنْفُسهمْ ﴿بَلِ اللَّهُ يُزَكِّي﴾ يُطَهِّر ﴿مَنْ يَشَاءُ﴾ بِالْإِيمَانِ ﴿وَلَا يُظْلَمُونَ﴾ يُنْقَصُونَ مِنْ أَعْمَالهمْ ﴿فَتِيلًا﴾ قَدْر قِشْرَة النَّوَاة ﴿انْظُرْ﴾ مُتَعَجِّبًا ﴿كَيْفَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ﴾ بِذَلِكَ ﴿وَكَفَى بِهِ إِثْمًا مُبِينًا﴾ بَيِّنًا

---

**ترجمه:** - اې ايمان والو! دَ نشې په حالت کښې مونځ ته مه نيزدې کيږئ يعنې مونځ مه کوئ. ځکه چې ددې آيت دَنزول سبب دَنشې په حالت کښې په جمع سره مونځ کول وو. ترديې چې

تاسو پوهه شئ چې تاسو څه وایئ؟ یعنی چې په هوش کښې راشئ. او نه دَ جنابت په حالت کښې ترکومې چې تاسو غسل اونه کړئ (مونځ کوئ) حالت د جنابت که دَ ادخال په وجه وی اوکه دَانزال په وجه. دَ جنبًا اطلاق په مفرد اوغیرمفرد دواړو باندې کیږی بغیردَهغې نه چې تاسو دَ سفرپه حالت کښې یئ نوستاسو دَپاره (بغیردَ غسل) نه مونځ کول جائزدی. مسافرئی مستثنی کړې دې ځکه چې دَمسافرحکم نیزدې راروان دې. (اوهغه تیمم دې) اوونیلې شوی دی چې دَ مونځ دَ ځایونونه ممانعت یعنی جماعت کښې د داخلیدونه ممانعت دې مګربغیردَ حصاریدو نه په جمات کښې دَ تیریدواجازت دې اوکه چرې تاسو داسې بیمارئې چې اوبه درله نقصانی وی یا تاسو مسافرئې اوتاسو جنابت کښې ئې یامحدث (بې اودسه) یاتاسو کښې څوک دَ استنجاء نه راغلې وی (غائط) هغه ځائی چې دَ اودس ماتی دَپاره تیارکړې شوې وی یعنی هغه بې اودسه شوې وی یا تاسو ښځوسره مباشرت کړې وی او په یوقراءت کښې بغیردَ الف نه دې اودَدې دواړو هم یوه معنی ده دَ لمس نه ماخوذ دې دَدې معنی ده لاس لګول. دَ ابن عمر ﷠ هم دغه قول دې. دَامام شافعی ﷫ هم دغه مسلك دې. امام شافعی ﷫ باقی بدن ته لاس لګول هم دې (مس الید) سره یوځائی کړی دی اودَ ابن عباس ﷠ نه (لمس) معنی جماع نقل ده بیا تاسو ته اوبه ملاؤ نه شی دَ کوشش او طلب نه پس دَ مونځ دَپاره دَ طهارت اوبه ملاؤنه شی دَدې تعلق د مریض نه علاوه سره دې نوتاسو تیمم اوکړئ یعنی دَ وخت د داخلیدو نه پس پاکې خاورې اراده اوکړئ نو په دغه خاوره دوه ضربونه اووهئ اودا په خپل مخ باندې او لاسونوباندې سره دَ څنګلو راکاږئ (لفظ) مسح متعدی بنفسه اومتعدی بالحرف دواړه شان دې. بیشکه الله تعالی ډیر لوئی معاف کونکې او ډیر لوئی بخښونکې دې. آیا تاسو هغه خلق نه دی لیدلی چاته چې دَ کتاب څه حصه ورکړې شوې ده؟ اوهغه یهود دی هغوی دَ هدایت په ځائی ګمراهی اخلی اوغواړی چې تاسو هم ګمراه شئ (یعنی) دَ حق دَ لارې نه اخوا شئ دې دَپاره چې تاسو هم دَهغوی په شان شئ. الله تعالی ستاسو دښمنان پیژنی اوتاسو دَهغوی نه خبروی دې دَپاره چې تاسو دَهغوی نه بچ شئ. اوالله تعالی ستاسو دَ پاره حفاظت کونکې کافی دې. اوالله تعالی تاسو دَهغوی دَمکرنه بچ کونکې کافی دې. بعض یهودیان هغه کلمات دَ کوم په ذریعه چې په تورات کښې دَمحمد ﷺ صفتونه نازل فرمائیلی دی هغه دَ خپل اصل مفهوم نه اړوی یعنی دَهغه مفهوم نه دَ پاره چې کوم دپاره وضع کړې شوی دی. اوکله چې حضوپاك ﷺ هغوی ته څه فرمائی نو وائی چې مونږ ستاسوخبره واوریده او ستاسودحکم نافرمائی مو اوکړه او (زمونږه) واوره تاته دې واته ورولې اوهغوی نبی علیه السلام ته رَاعِنَا (زمونږ رعایت اوکړه) وائی لیکن هغوی (راعنا) وئیلوکښې خپله ژبه تاووهی او په دین اسلام کښې پیغورونه کوی اودَهغوی په ژبه کښې دا دکنځلو کلمه ده. حالانکه په دغه کلمې سره د

خطاب کولو نه دوی منع کړې شوی دی او که چرې دې خلقو دَعَصَيۡنَا په ځائی سَمِعۡنَا وَاَطَعۡنَا او
صرف وَاسۡمَعۡ وئیلې او وَانۡظُرۡنَا یعنی د رَاعِنَا په ځائی یې اُنۡظُرۡاِلَیۡنَا (یعنی زمونږ رعایت اوکړه)
ځه چې دوی وائی چې دَدې نه به بهتروی او دَهغې نه صحیح دی. لیکن الله تعالی هغوی دَ دوی
دکفر په وجه دَ خپل رحمت نه لرې کړی دی. لهذا په دوی کښې به ایمان نه راوړی مگر ډیرلږ خلق
لکه عبدالله بن سلام او دَهغه ملگری؟ اې هغه خلقو چاته چې کتاب ورکړې شوې دې په هغه
کتاب قرآن باندې ایمان راوړئی کوم چې مونږ نازل کړې دې کوم چې دَهغې تصدیق کوی کوم چې
تاسو سره دې یعنی تورات ددې نه وړاندې چې مونږ مخونه وران کړو یعنی په دې کښې ځیزونه
(مثلاً) سترگې پوزه اوریځې ورانې کړو اومخونه شاته راتاؤ کړو او هغه د ځتهونو گدایانو
په شان یوه تختتی کړو یا مونږ په هغوی باندې لعنت اولیږلو یعنی دَ بیزوگانو په
شکلو کښې مسخ کړو لکه ځنگه چې مونږ لعنت کړې وو یعنی مسخ کړل ددوئ نه یوم السبت
والا او دَالله تعالی حکم خو به پوره کیږی او کله چې (مذکوره آیت) نازل شو نو عبدالله بن سلام
ایمان راوړو نو اووئیلې شو چې دا وعید مشروط وو خو چې کله دَهغوی نه بعض خلقو
ایمان راوړو نو هغه وعید واپس واخستې شو او وئیلې شوی دی چې ورانول او مسخ
کول به دَ قیامت نه وړاندې وی. یقینًا الله تعالی خپل ځان سره شرک کول نه بخښی دَدې نه علاوه
نور گناهونه معاف کوی دَ چادَپاره چې گناه معاف کول اوغواړی. داسې چې هغوی به
بغیر دَعذاب نه جنت کښې داخل کړی او کوم کس چې د الله تعالی سره (ځوک) شریک گرځوی
یقینًا هغه دَ لوئی گناه ارتکاب اوکړو. آیا تاسو هغه خلق اونه لیدل چې خپله ستائینه پخپله کوی؟
او هغه یهودیان دی هغوی وئیلې وو چې هغوی دَالله تعالی اولاد او دَهغه محبوب دی
(یعنی) خبره داسې نه ده چې دَهغوی پاك وئیلو سره به هغوی پاك شی بلکه الله تعالی چې
ځوک غواړی دَایمان په ذریعه هغه لره پاکیزه کوی او په چا باندې هم دَهغوی په اعمالو کښې
دکمې کولو سره دکهجورې دَهډوکی دَ جهلئ برابر هم ظلم اونه کړې شی. گوره دوی ځنگه په الله
تعالی باندې بهتان تړی؟ او دا دَصریح گناه کیدو په اعتبار سره کافی ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** أي لاَ تُصَلُّوْا د لاتقربواالصلوةَ تفسیر په لا تصلوا سره کولو کښې په هغه خلقو باندې
رداوکړې شو چې دَلاتقربواالصلوة نه دَ قرب إلی المسجد نه نهی مراد اخلی.

**قوله:** بِأَن تَصۡحُوۡا، دا اَلصَّحۡوُا نه ماخوذ دې دَدې معنی ده دَ نشې دَ وجې نه دَ بې هوشئی نه
په هوش کښې راتلل.

**قوله:** نَصۡبُهٗ عَلَی الۡحَالِ، دې سره اشاره ده چې وَلَاجُنُبًا عطف په اَنۡتُمۡ سُکَارٰی باندې دې
او معطوف علیه چونکه دَحال کیدو دَ وجې نه منصوب دې لهذا وَلَاجُنُبًا هم دَ حال کیدو

دَ وجې نه منصوب وی. دَ جُنُبًا عطف وَانتم سكارى باندې دې.

**قوله** وَهُوَيُطْلَقُ عَلَى الْمُفْرَدِ وَغَيْرِهِ دَدې عبارت دَ اضافي مقصد دَ يو سوال جواب وركول دى.

**سوال**:- جُنُبًا، دَ لاَتَقْرَبُوْا د ضمير فاعل نه حال دې كوم چې جمع دې او جُنُبًا مفرد دې لهذا حال واقع كيدل صحيح نه دى؟.

**جواب**:- جُنُبًا اسم، دمصدر اَلْإِجْتَنَاب قائمقام دې په كوم كښې چې مفردتثنيه جمع اومذكرمؤنث ټول برابر دى لهذا حال واقع كيدل صحيح دى اود وَلاَ جُنُبًا عطف په وَاَنْتُمْ سُكَارى باندې دې يعنى تاسو دَ نشې په حالت كښې او دَ جنابت په حالت كښې مانځه ته مه نيزدې كيږئى.

**قوله**: إِلاَّ عَابِرِىْ سَبِيْلٍ، دا دَ مخاطبينود عام حالاتونه استثناء ده، أى لاتصلوا جنبًا فى عامة الأحوال إلاّ فى حالة السفر إذالم تجدوا ماءً.

**قوله**: قِيْلَ الْمُرَادُ النَّهْىُ عَنْ قِرْبَانِ مَوَاضِعِ الصَّلٰوةِ، دا دَ آيت دويم تفسيردې. امام شافعى رحمه الله هم دا اخستې دې.

**قوله**: بَعْدَ دُخُوْلِ الْوَقْتِ،دا تفسير دَامام شافعى رحمه الله دَ مذهب مطابق دې.

**قوله**: تُرَابًا طَاهِرًا صعيدًا طيبًا دا تفسير دَ امام شافعى رحمه الله دَ مذهب مطابق دې. دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ تراب نه علاوه په شكه كانړى وغيره هم تيمم صحيح دې.

**قوله**: وَبِالْحَرْفِ دا په هغه خلقو باندې رد دې كوم چې وائى چې بوجهكم كښې باء زائده ده ځكه چې مسح متعدى بنفسه هم ده او متعدى بحرف الباء هم.

**قوله**: حَالٌ بِمَعْنَى الدُّعَاءِ دَدې اضافي مقصد داخودل دى چې غيرمُسْمَعٍ إسْمَعْ دضمير انت نه حال دې نه چې صفت ځكه چې ضمير نه صفت واقع كيږى اونه موصوف. اوغيرمسمع دَ بددعاء په معنى كښې دې أى لاسَمِعْتَ بِصَمَمٍ او بموت.

**قوله**: كَلِمَةُ سَبٍّ يعنى دَ يهودو په لغت كښې كله د رَاعِنَا دَ كنځلودپاره استعماليده يا خو په دې وجه چې رعونت په معنى دَ حماقت نه مشتق دې په دې صورت كښې به الف دَ نداء وى معنى اې بې وقوف يا راعِنا دَ عين كسره رابنكلوسره اى رَاعينا زمونږ ګډبه.

**قوله**: بِتَزْكِيَتِهِمْ اَنْفُسَهُمْ دا د لَمْ تَرَ خبردې.

**قوله**: بَيِّنًا، د مُبِيْنًا تفسيرپه بَيِّنًا سره كولوكښې يې اشاره اوكړه چې مبينًا سره دَدې چې متعدى دې مګر په معنى كښې لازم دې.

## [ آیات نمبر: ۵۱ - ۵۹ ]

وَنَزَلَ فِي كَعْب بْن الْأَشْرَف وَنَحْوه مِنْ علماء اليهود قَدِمُوا مَكَّة وَشَاهَدُوا قَتْلَى بَدْر وَحَرَّضُوا الْمُشْرِكِينَ عَلَى الْأَخْذ بِثَأْرِهِمْ وَمُحَارَبَة النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ﴾ صَنَمَانِ لِقُرَيْشٍ ﴿وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ أَبِي سُفْيَان وَأَصْحَابه حِين قَالُوا لَهُمْ أَنَحْنُ أَهْدَى سَبِيلًا وَنَحْنُ وُلَاة الْبَيْت نَسْقِي الْحَاجّ وَنَقْرِي الضَّيْف وَنَفُكّ الْعَانِي وَنَفْعَل أَمْ مُحَمَّد وَقَدْ خَالَفَ دِين آبَائِهِ وَقَطَعَ الرَّحِم وَفَارَقَ الْحَرَم ﴿هٰؤُلَاءِ﴾ أَيْ أَنْتُمْ ﴿أَهْدَى مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا﴾ أَقْوَم طريقا ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ وَمَنْ يَلْعَنِ﴾ ـه ﴿اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا﴾ مَانِعًا مِنْ عذابه ﴿أَمْ﴾ بل أ ﴿لَهُمْ نَصِيبٌ مِنَ الْمُلْكِ﴾ أَيْ لَيْسَ لَهُمْ شَيْء مِنْهُ وَلَوْ كَانَ ﴿فَإِذًا لَا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا﴾ أَيْ شَيْئًا تَافِهًا قَدْر النُّقْرَة فِي ظَهْر النَّوَاة لِفَرْطِ بُخْلهمْ ﴿أَمْ﴾ بَلْ ﴿يَحْسُدُونَ النَّاسَ﴾ أَيْ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿عَلَى مَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ﴾ مِنْ النُّبُوَّة وَكَثْرَة النِّسَاء أَيْ يَتَمَنَّوْنَ زَوَاله عَنْهُ وَيَقُولُونَ لَوْ كَانَ نَبِيًّا لَاشْتَغَلَ عَنْ النِّسَاء ﴿فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ﴾ جَدّه كَمُوسَى وَدَاوُد وَسُلَيْمَان ﴿الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ وَالنُّبُوَّة ﴿وَآتَيْنَاهُمْ مُلْكًا عَظِيمًا﴾ فَكَانَ لِدَاوُدَ تِسْع وَتِسْعُونَ امْرَأَة وَلِسُلَيْمَان أَلْف مَا بَيْن حُرَّة وَسُرِّيَّة ﴿فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ بِهِ﴾ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَمِنْهُمْ مَنْ صَدَّ﴾ أَعْرَضَ ﴿عَنْهُ﴾ فَلَمْ يُؤْمِن ﴿وَكَفَى بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا﴾ عَذَابًا لِمَنْ لا يؤمن ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ﴾ نُدْخِلهُمْ ﴿نَارًا﴾ يَحْتَرِقُونَ فِيهَا ﴿كُلَّمَا نَضِجَتْ﴾ احْتَرَقَتْ ﴿جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا﴾ بِأَنْ تُعَاد إِلَى حَالهَا الْأَوَّل غَيْر مُحْتَرِقَة ﴿لِيَذُوقُوا الْعَذَابَ﴾ لِيُقَاسُوا شِدَّته ﴿إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيزًا﴾ لَا يُعْجِزهُ شَيْء ﴿حَكِيمًا﴾ فِي خَلْقه ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا لَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ﴾ مِنْ الْحَيْض وَكُلّ قَذَر ﴿وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا﴾ دَائِمًا لَا تَنْسَخهُ شَمْس وَهُوَ ظِلّ الْجَنَّة ﴿إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ﴾ أَيْ مَا اُؤْتُمِنَ عَلَيْهِ مِنْ الْحُقُوق ﴿إِلَى أَهْلِهَا﴾ نَزَلَتْ لَمَّا أَخَذَ عَلِيّ رَضِيَ اللّٰه عَنْهُ مِفْتَاح الْكَعْبَة مِنْ عُثْمَان بْن طَلْحَة الحجبي سَادِنهَا قَسْرًا لَمَّا قَدِمَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّة عام الْفَتْح وَمَنَعَهُ وَقَالَ لَوْ عَلِمْت أَنَّهُ رَسُول اللّٰه لَمْ أَمْنَعهُ فَأَمَرَ رَسُول اللّٰه صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَدِّهِ إِلَيْهِ وَقَالَ هَاكَ خَالِدَة تَالِدَة فَعَجِبَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَرَأَ لَهُ عَلِيّ الْآيَة فَأَسْلَمَ وَأَعْطَاهُ عِنْد مَوْته لِأَخِيهِ شَيْبَة فَبَقِيَ فِي ولده الْآيَة وَإِنْ وَرَدَتْ عَلَى سَبَب خَاصّ فَعُمُومهَا مُعْتَبَر بِقَرِينَةِ الْجَمْع ﴿وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ﴾ يَأْمُركُمْ ﴿أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ إِنَّ اللّٰهَ نِعِمَّا﴾ فِيهِ إِدْغَام مِيم نِعْمَ فِي مَا النَّكِرَة الْمَوْصُوفَة أَيْ نِعْمَ شَيْئًا ﴿يَعِظُكُمْ بِهِ﴾ تَأْدِيَة الْأَمَانَة وَالْحُكْم بِالْعَدْلِ ﴿إِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيعًا﴾ لِمَا يُقَال ﴿بَصِيرًا﴾ بما يفعل ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللّٰهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي﴾ واصحاب ﴿الْأَمْرِ﴾ أَيْ الْوُلَاة ﴿مِنْكُمْ﴾ إِذَا أَمَرُوكُمْ بِطَاعَةِ اللّٰه وَرَسُوله ﴿فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ﴾ اخْتَلَفْتُمْ ﴿فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللّٰهِ﴾ أَيْ إِلَى كِتَابه ﴿وَالرَّسُولِ﴾ مُدَّة حَيَاته وَبَعْده إِلَى سُنَّته أَيْ اكْشِفُوا عَلَيْهِ مِنْهُمَا ﴿إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذٰلِكَ﴾ أَيْ الرَّدّ إِلَيْهِمَا ﴿خَيْرٌ﴾ لَكُمْ مِنْ التَّنَازُع وَالْقَوْل بِالرَّأْيِ ﴿وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾ مَآلًا.

**ترجمه:**- اودَعلماء (یهودو) نه کعب بن اشرف غوندې خلقو باره کښې (راتلونکې آيت) نازل شو. کله چې دا خلق مکې ته راغلل اودَ مقتولينِ بدر مشاهده ئې اوکړه اومشركانولره يې دَ خپلو مقتولينو دَ وينې بدله اخستلو او نبی کريم ﷺ سره په جنګ کولو باندې تيارکړل، آيا تاسو هغه خلق اوليدل چاته چې دَکتاب څه حصه ورکړې شوې ده (دَدې باوجود) په بت اوشيطان باندې ايمان لری (جبت او طاغوت) دَ قريشو دوؤ بتانونامې دی او دکافرانو يعنی د ابوسفيان اودَ هغه دَ ملګروپه باره کښې وائی کله چې دَهغوی نه تپوس اوکړې شو چې مونږ په نيغه لاريو که محمد ﷺ؟ حال دادې چې مونږ دَ بيت الله متوليان يو حاجيانو باندې اوبه څکوؤ اودَميلمنو ملمستياکوو او قيديان راخلاصوو اودَې نه علاوه هم (ډير څه) کوو. حالانکه هغوی دَخپل پلارنيکه دَ دين مخالفت اوکړو قطع رحمی ئی اوکړه او حرم ته ئی خيرباد اووئيل چې دا يعنی تاسو دَايمان والونه زيات په نيغه لاريئی. دا هم هغه خلق دی په چاچې الله تعالی لعنت کړې دې په چا چې الله تعالی لعنت اوکړی نو ته به دَهغه هيڅوک امدادی اونه مومې يعنی دَهغه دَ عذاب نه منع کونکی، آيا په حکومت کښې دَهغوی څه حصه شته؟ يعنی دَهغوی په حکومت کښې هيڅ حصه نشته اوکه چرې داسې وی نودا خلق به (نورو خلقوته) دَخپل بخل دَ وجې نه به يو سپک څيز يعنی دَ کهجوری دَهډوکی دَپاسه جهلئ برابرهم ورنه کړی. بلکه (حقيقت دادې) چې دا خلق په خلقو يعنی په محمد ﷺ باندې حسدکوی په دې وجه چې الله تعالی هغه ته دَخپل فضل نه نبوت او ډيرې ښځې ورکړې دی يعنی دَحضورپاك دَ نعمت دَ زوال آرزو کوی اووائی چې که چرته دا نبی وو نودَ ښځوسره به ئی شغل نه ساتلو نو مونږ خودَ حضورپاك ﷺ نيکه حضرت ابراهيم ﷺ آل ته چې په هغوی کښې موسی ﷺ حضرت داؤد ﷺ او سليمان ﷺ دې کتاب اوحکمت (نبوت) ورکړو اومونږ هغوئ ته يوعظيم سلطنت ورکړو. دَحضرت داؤد ﷺ يوکم سل بيبيانې اودَ حضرت سليمان آزادې او وينځې ټولې جمع کيدو سره يوزر وې نو په هغوی کښې چا په محمد ﷺ باندې ايمان راوړو اوچا دَهغوی نه اعراض اوکړو او ايمان ئی قبول نه کړو. اوکوموخلقو چې ايمان رانوړو دَهغوی دَ عذاب دَ پاره جهنم کافی دې. کوموخلقوچې زمونږ دَآياتونونه انکاراوکړو ډير زر به مونږ هغوی په اور کښې واچوو په کوم کښې چې به سوزيږی اوکله چې دَهغوی څرمنې اوسوزی نومونږ به دَهغې په ځائی نورې څرمنې ورواغوندو. په دې توګه چې بغيردَ سوزيدونه به سابقه حالت ته واپس کړې شی. دې دَ پاره چې عذاب اوڅکی. (يعنی) دې دَپاره چې هغوی دَدې سختی محسوس کړی يقيناً الله تعالی غالب، دَمخلوق باره کښې حکمت والا دې. هغه لره هيڅ يو څيز عاجزکولې نه شی اوکوموخلقو چې ايمان راوړو اونيك عملونه ئی اوکړل مونږ به ډير زر هغوی داسې جنتونو ته ورداخل کړو په کومو کښې چې به نهرونه جاری وی په کوموکښې چې به

هغوی همیشه همیشه دپاره اوسیږی. دهغوی د پاره به هلته د حیض اوهرقسم گندگئی نه صفا ستره ببیبیانې وی او مونږ به هغوی په گڼړو سورو کښې داخل کړو. یعنی د همیشه والا سوری کښې کوم به چې نمر نه شی ختمولې اوهغه به د جنت سورې وی. الله تعالی تاسو ته حکم درکوی چې تاسو د امانت والوحقوقو هغه اماتونه په کوموچې تاسو امین جوړکړې شوی ئې هغوی ته اورسوئی. (مذکوره آیت) هغه وخت نازل شو کله چې حضرت علی رضی الله عنه د بیت الله چابی د عثمان بن طلحه حجبی د بیت الله دخادم نه په زور واخستله کوم وخت چې نبی کریم ﷺ د فتح مکه په کال مکې ته تشریف راوړلې وو. (او عثمان بن طلحه) حضورپاک ته د چابئ ورکولونه انکاراوکړو او وئی وئیل چې که زما دا یقین وې چې ته دالله تعالی رسول ئې نو مابه نه وه منع کړې. نو حضورپاك حضرت علی رضی الله عنه ته دچابئ واپس کولو حکم اوکړو. (او دمعذرت دپاره ئی اوفرمائیل) واخله (چابیانې) دا خدمت به د قیامته پورې دهمیش همیش دپاره هم تاسوسره وی.

عثمان بن طلحه ته په دې معاملې سره ډیرتعجب اوشو نوحضرت علی رضی الله عنه هغه ته مذکوره آیت تلاوت کړو. نوعثمان ایمان راوړو او عثمان بن طلحه هغه چابی دمرگ په وخت خپل رور شیبه ته ورکړه اودهغوی په اولاد کښې (ترننه پورې) باقی ده. د آیت نزول سره دادې چې په خاص واقعه کښې شوې دې خود جمع صیغود قرینې د وجې معتبردې عموم دې اوکله چې د خلقو فیصله کوئی نوتاسو ته (الله) حکم درکوی چې په عدل او انصاف سره فیصله کوئی یقینًا دا یوبهترڅیزدې. په دې کښې دنِعْمَ د میم په مَا نکره موصوفه کښې ادغام دې ای نعم شیئًا یعظکم د کوم چې تاسو ته الله تعالی نصیحت کوی. (یعنی) د امانت ورکول اوپه انصاف سره فیصله کول بیشکه الله تعالی دخبرو اوریدونکې اوداعمالولیدونکې دې. اې ایمان والو! فرمانبرداری کوئی دالله تعالی اودهغه د رسول اودخپل اولوالامر حاکمانو کله چې تاسو ته دالله تعالی اود هغه د رسول ﷺ د اطاعت حکم اوکړی. که په یوه معامله کښې ستاسو اختلاف ښکاره شی نوهغه د الله تعالی یعنی دهغه د کتاب طرف ته او د رسول الله ﷺ طرف ته راوا پس کړئی دهغه په ژوند کښې اودهغه د وفات نه پس دهغه د سنت طرف ته راوا پس کړئی. یعنی دهغې حکم د قرآن اوسنت نه معلوم کړئی که چرې ستاسو په الله تعالی او په ورځ د قیامت باندې ایمان وې او دا په قرآن اوسنت باندې پیش کول ستاسو دپاره بهتردی د جګړو او د رائې قائمولونه اوپه اعتبارد انجام ډیر ښه دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بِثَارِهِمْ، الثار والثورة، د وینې بدله (ف) ثأرًا همزه اوبغیر دهمزه دواړه طریقوسره د وینې بدله اخستل.

**قوله**: لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا، لِلَّذِيْنَ، دَ يقولون صله ده (كما فى لغات القرآن للدرويش) اودَ بعض حضراتو وينا ده چې للذين كښې لام په معنى دَ اجل دې نه چې دَ يقولون صله، دَ يقولون قائل كعب بن اشرف اودَهغه ملګرى دى. لهذا اوس به دا اعتراض نه واردېږى چې دَ لام مدخول چې دَ قول نه پس واقع وى دَ قول مخاطب وى اودلته داسې نه ده. مطلب دا دې چې كعب بن اشرف دَ ابوسفيان اودَ هغه دَ ملګرو باره كښې اووئيل هؤلاء أهدى من الذين آمنوا سبيلاً. (ترويح الارواح)

**قوله**: العَانِيْ قيدى، بنديوان.

**قوله**: نَفْعَلُ، په بعض نسخوكښې د نفعل په ځائې لعقلُ دې عقل ديت ته وائى يعنى مونږ ديت وركوؤ.

**قوله**: هؤلاء، هؤلاء اسم اشاره غائب راوړلو وجه داده چې دا خلق دَ يقولون مخاطب نه دى.

**قوله**: لَيْسَ لَهُمْ تفسير په ليس لهم سره كولو كښې يئ اشاره اوكړه چې همزه په معنى د استفهام انكارى دې.

**قوله**: لَوْكَانَ په دې كښې اشاره ده چې فَإِذًا لايؤتون الناس نقيراً جمله جزائيه ده او فاء جزائيه ده او دَدې شرط محذوف دې كوم چې مفسرعلام لوكان وئيلوسره ظاهر كړو يا فَإِذًا كښې فاء عاطفه نه ده ګنى عطف د خبريه الانشاء به لازم شى ځكه چې استفهام انشاء دې.

**قوله**: شَيْئًا كَافِيًا اى شيئا حقيراً.

**قوله**: قَدْرَ النُّقْرَةِ فِى ظَهْرِ النَّوَاةِ، دا دَ نَاقِيْرًا تفسير دې نُقرة په ضمې سره دَ كهجوري دَهډوكى په چاؤدى كښې نرى تار ته وائى.

**قوله**: يَتَمَنَّوْنَ زَوَالَهُ عَنْهُ په دې سره دَ غبطې نه اعتراز مقصود دى.

**قوله**: عَذَابًا، د كفى جهنم ته د نسبت نه تميزدې.

**قوله**: إِلَى حَالِهَا الأَوَّلِ په دې كښې اشاره ده چې دَمغائرت نه مراد مغائرت فى الصفت دې نه چې مغائرت فى الذات دې دَپاره چې دَغيرمجرم تعذيب لازم رانه شى.

**قوله**: سَادِنُهَا اى خادمها.

**قوله**: جَدُّهُ اى جد النبى ﷺ.

**قوله**: مَنَعَهُ اى مَنَعَ العثمان الحجب النبى صلى الله عليه وسلم يعنى هغوى دَ بيت الله كنجيانې

ورکولو په دې وینا سره انکار او کړو چه چرې ماته نبي ګنړلې نو کنجي ورکولو نه به مې منع نه کوله.

**قوله**: هَاكَ اي خذها.

**قوله**: تَالِدًا دا د خالدًا اَتباع نه دې.

**قوله**: نِعْمَ شَيْئًا په دې کښې اشاره ده چې نِعِمَّا کښې په نعمَ کښې ضمير فاعل مستتر تميز دې.

**قوله**: تَأْدِيَةُ الْأَمَانَةِ، په دې کښې اشاره ده چې د نِعْمَ مخصوص بالمدح محذوف دې کوم چې مفسر علام خپل قول تأدية الأمانة سره ظاهر کړې دې.

**اياتونه: ۶۰-۷۰]**

وَنَزَلَ لَمَّا اخْتَصَمَ يَهُودِيٌّ وَمُنَافِقٌ فَدَعَا الْمُنَافِقُ إِلَى كَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمَا وَدَعَا الْيَهُودِيُّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فاتياه فقضى لِلْيَهُودِيِّ فَلَمْ يَرْضَ الْمُنَافِقُ وَأَتَيَا عُمَرَ فَذَكَرَ اليهودي ذلك فقال للمنافق كذلك قَالَ نَعَمْ فَقَتَلَهُ ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ﴾ الْكَثِيرِ الطُّغْيَانِ وَهُوَ كَعْبُ بْنُ الْأَشْرَفِ ﴿وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ﴾ وَلَا يُوَالُوهُ ﴿وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا﴾ عَنِ الحق ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ فِي الْقُرْآنِ مِنَ الْحُكْمِ ﴿وَإِلَى الرَّسُولِ﴾ لِيَحْكُمَ بَيْنَكُمْ ﴿رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ﴾ يُعْرِضُونَ ﴿عَنْكَ﴾ إلى غيرك ﴿صدودا﴾ ﴿فَكَيْفَ﴾ يَصْنَعُونَ ﴿إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ﴾ عُقُوبَةٌ ﴿بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ مِنَ الْكُفْرِ وَالْمَعَاصِي أَيْ أَيَقْدِرُونَ عَلَى الْإِعْرَاضِ وَالْفِرَارِ مِنْهَا لَا ﴿ثُمَّ جَاءُوكَ﴾ مَعْطُوفٌ عَلَى يَصُدُّونَ ﴿يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنْ﴾ مَا ﴿أَرَدْنَا﴾ بِالْمُحَاكَمَةِ إِلَى غَيْرِكَ ﴿إِلَّا إِحْسَانًا﴾ صُلْحًا ﴿وَتَوْفِيقًا﴾ تَأْلِيفًا بَيْنَ الْخَصْمَيْنِ بِالتَّقْرِيبِ فِي الْحُكْمِ دُونَ الْحَمْلِ عَلَى مُرِّ الْحَقِّ ﴿أُولَئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ﴾ مِنَ النِّفَاقِ وَكَذِبِهِمْ فِي عُذْرِهِمْ ﴿فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ بِالصَّفْحِ ﴿وَعِظْهُمْ﴾ خَوِّفْهُمْ اللهَ ﴿وَقُلْ لَهُمْ فِي﴾ شَأْنِ ﴿أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا﴾ مُؤَثِّرًا فِيهِمْ أَيْ ازْجُرْهُمْ لِيَرْجِعُوا عَنْ كُفْرِهِمْ ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ﴾ فِيمَا يَأْمُرُ بِهِ وَيَحْكُمُ ﴿بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ بِأَمْرِهِ لَا لِيُعْصَى وَيُخَالَفَ ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ﴾ بِتَحَاكُمِهِمْ إِلَى الطَّاغُوتِ ﴿جَاءُوكَ﴾ تَائِبِينَ ﴿فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ﴾ فِيهِ الْتِفَاتٌ عَنِ الْخِطَابِ تَفْخِيمًا لِشَأْنِهِ ﴿لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا﴾ عَلَيْهِمْ ﴿رَحِيمًا﴾ بهم ﴿فَلَا وَرَبِّكَ﴾ لَا زَائِدَةٌ ﴿لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ﴾ اخْتَلَطَ ﴿بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا﴾ ضِيقًا أَوْ شَكًّا ﴿مِمَّا قَضَيْتَ﴾ بِهِ ﴿وَيُسَلِّمُوا﴾ يَنْقَادُوا لِحُكْمِكَ ﴿تَسْلِيمًا﴾ مِنْ غَيْرِ مُعَارَضَةٍ ﴿وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنْ﴾ مُفَسِّرَةٌ ﴿اقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِنْ دِيَارِكُمْ﴾ كَمَا كَتَبْنَا عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿مَا فَعَلُوهُ﴾ أَيِ الْمَكْتُوبَ عَلَيْهِمْ ﴿إِلَّا قَلِيلٌ﴾ بِالرَّفْعِ عَلَى الْبَدَلِ وَالنَّصْبِ عَلَى الِاسْتِثْنَاءِ ﴿مِنْهُمْ وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ﴾ مِنْ طَاعَةِ الرَّسُولِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا﴾ تحقيقا لإيمانهم ﴿وَإِذًا﴾ أَيْ لَوْ تَثَبَّتُوا ﴿لَآتَيْنَاهُمْ مِنْ لَدُنَّا﴾ مِنْ عِنْدِنَا ﴿أَجْرًا

عَظِيمًا﴾ هُوَ الْجَنَّة ﴿وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾ قَالَ بَعْض الصَّحَابَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ نَرَاكَ فِي الْجَنَّة وَأَنْت فِي الدَّرَجَات الْعُلَى وَنَحْنُ أَسْفَل منك فنزل ﴿وَمَنْ يُطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُول﴾ فِيمَا أَمَرَ بِهِ ﴿فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللّٰه عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ﴾ أَفَاضِل أَصْحَاب الْأَنْبِيَاء لِمُبَالَغَتِهِمْ فِي الصِّدْق وَالتَّصْدِيق ﴿وَالشُّهَدَاء﴾ الْقَتْلَى فِي سَبِيل اللّٰه ﴿وَالصَّالِحِينَ﴾ غَيْر مَنْ ذُكِرَ ﴿وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا﴾ رُفَقَاء فِي الْجَنَّة بِأَنْ يَسْتَمْتِع فِيهَا بِرُؤْيَتِهِمْ وَزِيَارَتهمْ وَالْحُضُور مَعَهُمْ وَإِنْ كَانَ مَقَرّهمْ فِي الدَّرَجَات الْعَالِيَة بِالنِّسْبَةِ إِلَى غَيْرهمْ ﴿ذَٰلِكَ﴾ أَيْ كَوْنهمْ مَعَ مَنْ ذُكِرَ مُبْتَدَأ خَبَره ﴿الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ﴾ تَفَضَّلَ بِهِ عَلَيْهِمْ لَا أَنَّهُمْ نَالُوهُ بِطَاعَتِهِمْ ﴿وَكَفَىٰ بِاللّٰهِ عَلِيمًا﴾ بِثَوَابِ الْآخِرَة أَيْ فَثِقُوا بِمَا أَخْبَرَكُمْ بِهِ ولا ينبئك مثل خبير

**ترجمه:-** (راتلونکې آيت) هغه وخت نازل شو کوم وخت چې دَ يويهودي او منافق په مينځ کښې دَ يومقتول په معامله کښې جګړه پيدا شوه. منافق کعب بن اشرف له د تللودپاره اوونيل دې دپاره چې هغه دَ دوی په مينځ کښې فيصله اوکړي او يهودي رسول اللهﷺ له دَ تللو اووئيل. چنانچه کله چې داخلق دَحضورپاکﷺ په خدمت کښې حاضرشو نو حضورپاك دَ يهودی په حق کښې فيصله اوکړه مګرمنافق په دې راضي نه شو او دواړه حضرت عمر ﷺ له راغلل. يهودي دَ رسول اللهﷺ دَ فيصلې ذکر دَ حضرت عمر ﷺ په وړاندې اوکړو (حضرت عمرﷺ) منافق ته اوونيل آيا دا خبره هم داسې ده؟ منافق اقرار اوکړو نوحضرت عمر ﷺ هغه منافق قتل کړو. آيا تاسو دَهغه خلقو په معامله کښې غور اوکړو دَچاچې دعوی ده چې هغوئ په هغه څه باندې ايمان راوړلې دې کوم چې په تاباندې نازل کړې شوې دی اوکوم چې ستاسونه وړاندې نازل کړې شوی دی خپلې فيصلې غيرالله ته اوړل غواړي (طاغوت) کثيرالطغيان ته وئيلې شی اوهغه کعب بن اشرف دې حالانکه دوی ته حکم ورکړې شوې دې چې دَ طاغوت په وړاندې دې خپل سر نه ټيټوی اودَ هغه اقتداردې نه تسليموی شيطان خو هم دا غواړي چې هغوی دَ حق نه واړوی او لرې ئې بوځی. اوکله چې دوی ته وئيلې شی چې دَهغه حکم طرف ته راشئ کوم چې په قرآن پاک کښې الله تعالی نازل کړې دې اورسولﷺ ته راشئ چې ستاسو فيصله اوکړي نوتاسو به دا منافقان ګورئ چې تاسو نه ډير بې رخی کولوسره دَ نورو طرف ته مخ کونکی دی. نوهغه وخت به څه کوی چې کله دَهغوی دَ کړو په وجه اوهغه کفر اومعاصی دی په دوی باندې مصيبت (عقوبت) راشي يعنی آيا دا خلق به دَدې نه په اعراض او تيختنه باندې قادر شي؟ نه، بيا به دا (منافق) دَالله تعالی قسم خوړلوسره تاسو له راځی دَدې عطف په يَصُدُّونَ باندې دې غيرله مقدمه اوړلو کښې زمونږ مقصد په حکم کښې اعتدال پيدا کولوسره دَ فريقينو په مينځ کښې صلح او ميل ملاپ کول وو نه چې په تريخ حق باندې آماده کول، دا هغه خلق دی دَ چادَ زړونو راز چې په الله تعالی باندې ښه ښکاره دې اوهغه نفاق اودَهغوی په عذرکښې کذب بيانول دی. لهذا ته دَدوی مخ واړوه اودوئ ته نصيحت کوه (يعنی) دوی دَ الله تعالی نه ويروه او دَهغوی په معامله کښې هغوی سره

مؤثرخبره کوه یعنی زیات منع کونکې دې دَپاره چې هغوی دَ خپل کفرنه منع شی اومونږ
چې کوم یو رسول هم لیږلې دې هغه مو دَدې دَپاره لیکلې دې چې دکوم څیز هغه حکم اوکړی په
هغې کښې دَالله تعالی په حکم سره دَهغه اطاعت اوکړې شی اودَهغه نافرمانی اومخالفت اونه
کړې شی اوکاش چې کوم وخت دې خلقو طاغوت ته خپله مقدمه اوړلوسره په خپل ځان باندې
زیاتې اوکړو توبه کولوتاله راغلی وی اودَالله تعالی نه ئې معافی غوښتلې وی او رسول هم
دَدوی دَپاره استغفارکړې وی په دې کښې دَ خطاب نه (غیبت) طرف ته (التفات دې) دنبی
علیه السلام دَ عظمت شان دَ اظهار دَ پاره نودوی به ضرور الله تعالی دَدوی توبه قبلونکې او
مهربان موندلې وی نو قسم دې ستا دَ پروردګارلا زائده ده دویٔ دَهغه وخته پورې مؤمنان کیدې نه
شی ترکومې چې په خپل مینځ کښې اختلافی معامله کښې تاسو حکم اونه منی. بیا چې کومه
نیصله تاسو اوکړئی په هغې کښې په خپل زړه کښې هیڅ تنګی یا شك اونه مومیٔ اوستا حکم بغیر
د څه معارضې پوره پوره اومنی اوکه مونږ په دوی باندې دا فرض کړې وی چې خپل ځانونه قتل
کړئی یادَ خپلو کورونونه اوځیٔ لکه چې مونږ په بنی اسرائیلو باندې فرض کړې
وو(أن)مفسره دې نودغه فرض به ډیرو کمو خلقو اداکولو. قلیل په رفع سره دې دَ بدلیت دَ
وجې نه اونصب سره دې دَ استثناء دَ وجې نه اوکه چرې دې خلقو هغه کارکولې دَکوم چې
دوی ته حکم ورکړې شوې دې اوهغه طاعت رسول دې نودا به دَهغوی په حق کښې ډیره بهتره وه
اودَهغوی ایمان لره یېٔ ډیر زیات مضبوط ساتونکې هم اوهغه وخت به مونږ دَخپل طرف نه دوی ته
ضرور اجرعظیم ورکولو اوهغه جنت دې اومونږ به هغوی ته نیغه لار خودله. بعض صحابه
کرامو ﷺ حضورپاك ته عرض اوکړویا رسول الله ﷺ مونږ به په جنت کښې ستاسو
دیدارڅنګه کوو؟ څکه چې تاسو به په اوچتو درجوکښې یئ او مونږ به ټه ښکته درجو
کښې یو نودا آیت نازل شو چې څوک هم دَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول په ماموربه کښې
فرمانبرداری کوی هغوی به هغه د خلقو سره وی په چاچې الله تعالی انعام فرمائیلې دې. لکه چې
انبیاء او صدیقین دَ انبیاء کرامو په ملګروکښې هغه خلق دی کوم چې ډیر غوره دی
اوشهداء دَالله تعالی په لارکښې قتل کړې شوی او دَ مذکورینو نه علاوه نورصالحین دا
بهترین رفیق دی یعنی په جنت کښې رفقاء دی. په داسې توګه چې دَهغوی د دیدار نه اودَ
هغوی د زیارت نه اود هغوی سره د حاضرئی نه به مستفید کیږی. سره دَدې چې دَهغوی
مقامات به دَ نوروپه نسبت په اوچتودرجوکښې وی.دا فضل یعنی د مذکورینو سره کیدل
دَ الله تعالی دَطرف نه دی. (ذلك) مبتداء ده او (الفضل) دَدې خبر دې دَ کوم چې الله تعالی په
هغوی باندې فضل کړې دې نه دا چې هغوی د خپل طاعت په ذریعه حاصل کړې دې.
اوهم دَالله تعالی علم کافی دې دآخرت ثواب دَ پیژندلوپه اعتبارسره لهذا دَ کوم چې هغه
تاسو ته خبردرکړی په هغې اعتماد کوئی تاسو ته دَهغه په شان هیڅ څوک خبرنه شی درکولې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** يَصُدُّوْنَ صَدَّ (ن) نه مضارع جمع مذکرغائب، هغوئ اعراض کوی اومنع کوی دَ يَصُدُّوْنَ تفسیرپه يُعْرِضُوْنَ سره دَ بیان معنې دپاره دي که رَأَيْتَ نه رؤیت بصری مراد وی نو يصدون به جمله حالیه وی اوکه رویت قلبی مراد وی نو يَصُدُّوْنَ به مفعول ثانی وی او المنافقين مفعول اول او صدودًا مفعول مطلق.

**قوله:** معطوف علی يصدونَ، یعنی په شروع کښې ستانه اعراض کوی اوبیا روستو دَاعراض معافی غواړی اودَ دروغو قسمونه خوری او وائی چې زمونږ مقصد خو دَ طرفین دَحال اصلاح کول وونه چې ستاسو مخالفت.

**قوله:** جاءوكَ ددې عطف په يصدون باندې دې او په مینځ کښې جمله معترضه ده يحلفون جمله حالیه ده.

**قوله:** بِالتَّقْرِيْبِ فِي الْحُكْمِ یعنی خصمَینولره دَهغوی مراد ته نیزدې کولوسره صلح کول دی نه چې دَ حق مطابق فیصله کولوسره د الحق مرٌ په قبلولوباندې مجبورکول.

**قوله:** اِلْتِفَاتٌ عَنِ الْخِطَابِ دا یعنی په جَاءُوكَ کښې حضورپاك ﷺ ته خطاب دې او استغفرلهم الرسول کښې رسول دَاسم ظاهر د وجې غائب دې.

**قوله:** تَفْخِيْمًا لِشَأْنِهِ یعنی د خطاب نه اعراض کولوسره يې د نبی علیه السلام خاص وصف (رسالت) طرف ته التفات اوفرمائیلو.

**قوله:** به بِمَا قَضَيْتَ کښې ما موصوله ده ځکه چې صله کله جمله وی نو دَعائد ضرورت وی.

**قوله:** اَفَاضِلِ اَصْحَابِ الْاَنْبِيَاءِ دا دَ صدیق دَ کَنړ تعریفونونه ته اشاره ده.

**قوله:** غَيْرَ مَنْ ذُكِرَ په دې کښې دَ تکرار نه اجتناب طرف ته اشاره ده.

**قوله:** لِاَنَّهُمْ نَالُوْهُ بِطَاعَتِهِمْ په دې کښې په معتزلو باندې رد دې.

**[ایاتوله: ٧١-٧٦]**

---

(يأيها الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ) مِنْ عَدُوِّكُمْ أَيْ احْتَرِزُوا مِنْهُ وَتَيَقَّظُوا لَهُ (فَانْفِرُوا) انْهَضُوا إِلَى قِتَالِه (ثُبَاتٍ) مُتَفَرِّقِينَ سَرِيَّةً بَعْدَ أُخْرَى (أَوِانْفِرُوا جَمِيعًا) مُجْتَمِعِينَ (وَإِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَيُبَطِّئَنَّ) لَيَتَأَخَّرَنَّ عَنِ الْقِتَالِ كَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أُبَيٍّ الْمُنَافِقِ وَأَصْحَابِهِ وَجَعَلَهُ مِنْهُمْ مِنْ حَيْثُ الظَّاهِرِ وَاللَّامُ فِي الْفِعْلِ لِلْقَسَمِ (فَإِنْ أَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةٌ) كَقَتْلٍ وَهَزِيمَةٍ (قَالَ قَدْ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ إِذْ لَمْ أَكُنْ مَعَهُمْ شَهِيدًا) حَاضِرًا فَأُصَابَ (وَلَئِنْ) لَامُ قَسَمٍ (أَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِنَ اللّٰهِ) كَفَتْحٍ وَغَنِيمَةٍ (لَيَقُولَنَّ) نَادِمًا (كَأَنْ) مُخَفَّفَةٌ وَاسْمُهَا مَحْذُوفٌ أَيْ كَأَنَّهُ (لَمْ تَكُنْ) بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ (بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ) مَعْرِفَةٌ وَصَدَاقَةٌ وَهٰذَا رَاجِعٌ إِلَى قَوْلِهِ قَدْ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ اعْتَرَضَ بِهِ بَيْنَ

الْمُنَزَّل وَمَقُوله وَهُوَ ﴿يَا﴾ لِلتَّنْبِيهِ ﴿لَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا﴾ آخذ حظا وافرا من الغنيمة قال تعالى ﴿فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ لِإِعْلَاءِ دِينه ﴿الَّذِينَ يَشْرُونَ﴾ يَبِيعُونَ ﴿الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ وَمَن يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ﴾ يُسْتَشْهَد ﴿أَوْ يَغْلِبْ﴾ يَظْفَر بِعَدُوِّهِ ﴿فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ ثَوَابًا جزيلا ﴿وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ﴾ اسْتِفْهَام تَوْبِيخ أَيْ لَا مَانِع لكم من القتال ﴿فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَ﴾ فِي تَخْلِيص ﴿الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ﴾ الَّذِينَ حبسهم الكفار عن الهجرة وآذوهم قال ابن عَبَّاس رَضِيَ اللَّه عَنْهُمَا كُنْت أَنَا وَأُمِّي مِنْهُمْ ﴿الَّذِينَ يَقُولُونَ﴾ دَاعِينَ يَا ﴿رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ﴾ مَكَّة ﴿الظَّالِمِ أَهْلُهَا﴾ بِالْكُفْرِ ﴿وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ﴾ مِنْ عِنْدك ﴿وَلِيًّا﴾ يَتَوَلَّى أُمُورنَا ﴿وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا﴾ يَمْنَعنَا مِنْهُمْ وَقَدْ اسْتَجَابَ اللَّه دُعَاءَهُمْ فَيَسَّرَ لِبَعْضِهِمْ الْخُرُوج وَبَقِيَ بَعْضهمْ إلَى أَنْ فُتِحَتْ مَكَّة وَوَلَّى صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَتَّاب بن أسيد فَأَنْصَفَ مَظْلُومهمْ مِنْ ظَالِمهمْ ﴿الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ﴾ الشَّيْطَان ﴿فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ﴾ أَنْصَار دِينه تَغْلِبُوهُمْ لِقُوَّتِكُمْ بِاَللَّهِ ﴿إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ﴾ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿كَانَ ضَعِيفًا﴾ وَاهِيًا لَا يُقَاوِم كَيْد اللَّه بِالْكَافِرِينَ

ترجمه:- اې ایمان والو! دخپلو دښمنانو نه محتاط اوسئ یعنی دهغوی نه احتیاطی تدابیر اختیاره کړئ او دهغوی په باره کښې ویخ اوسئ بیا دښمن سره دجنګیدودپاره دټولګو په شکل کښې یوبل پسې اوځئ یا په اجتماعی توګه اویقینًا په تاسو کښې بعض هغه دی چې په وتلو کښې مخکښې روستوکیږی یعنی دجنګ نه د پاتې کیدو کوشش کوی لکه عبدالله بن ابی اودهغه ملګری اوهغه ته مؤمن د ظاهرپه اعتبارسره ونیلی شوی دی او لام فعل باندې قسمیه دې او بیا که چرې تاسو ته څه مصیبت (نقصان) دراورسی مثلاً قتل یا ماتې نووائی چې په ما دالله تعالی لوئی فضل اوشو چې زه هغوی سره (جنګ) کښې حاضر نه شوم ګنی زه به هم په دغه مصیبت کښې انختې ووم اوکه چرې تاسو ته دالله تعالی فضل دراورسی لکه فتح او مال غنیمت نودشرم نه وائی لکه چې ستاسو او دده په مینځ کښې هدو د پیژندګلو او دوستئ څه تعلق نشته (کَأَنْ) مخففه دې اودې اسم محذوف دې ای کَأَنَّهُ (نکن) په یاء او تاء سره دې اودې جملې تعلق قد أنعم الله عَلَیّ سره دې اوداجمله د قول یعنی لَيَقُولَنَّ اود مقولې (یعنی یالَیْتَنِیْ) په مینځ کښې جمله معترضه ده افسوس زه هم دوی سره وې نولویه کامیابی به مې حاصله کړې وه یعنی دمال غنیمت نه به مې ډیره حصه حاصله کړې وه. الله تعالی فرمائی چې کومو خلقو دنیاوی ژوندون دآخرت په عوض خرڅ کړې دې نوهغوی له دالله تعالی د دین د سرلوړئ دپاره دالله تعالی په لارکښې جهادکول پکاردی او کوم سړی چې دالله تعالی په لارکښې جهاد کولوسره شهیدشی یا په خپل دښمن باندې غالب راشی نومونږ به هغوی ته اجرعظیم ورکړواوتاسو څه عذر دې استفهام توبیخی دې یعنی دجهادنه تادپاره هیڅ یوڅیزمانع کونکې نشته. چې تاسو دالله تعالی په

لارکښې اودَ کمزوروسرو، ښځواو ماشومانو په راخلاصولوکښې کوم چې کافرانودَ هجرت کولونه رامنع کړې دی اوهغوی ته تکلیفونه رسوی. ابن عباس ﷠ اوفرمائیل چې زه اوزما مور ئم دَدوی نه وو جهادنه کوی په دعا کښې وائی اې زمونږ پروردګار ته مونږدې کلی نه یعنی مکې نه دَ کوم اوسیدونکو چې کفرکولوسره ظلم کړې دې اوباسه اودَخپل طرف نه زمونږ یووالی مقررکړه چې زمونږ دَمعاملاتو تولیت اوکړی اوزمونږ دَپاره دَخپل طرف نه امدادی مقررکړه چې مونږ دَدوی نه بچ کړی او الله تعالی دَهغوی دعاقبوله کړه چې دَهغوی دَپاره ئی دَمکې نه وتل آسان کړل اوځه خلق دَ فتح مکه پورې په مکه کښې پاتې شو او محمد ﷺ دَهغوی متولی عتاب بن اسید جوړکړو چاچې مظلومانوته دَ ظالمانو نه انصاف ورکړو کوموخلقو چې ایمان راوړې دې هغوی دَ الله تعالی په لارکښې جهاد کوی اوکوم چې کافران دی هغوی دَ شیطان په لار جنګ کوی لهذا تاسو دَ شیطان د دوستانو سره جنګ اوکړئ یعنی دَ شیطان دَ دین امدادیانوسره جهاد اوکړئ دَ الله تعالی دَطرف نه درکړې شوی طاقت په وجه به هم تاسو غالب راځئ یقین اوساتئ مؤمنانوسره دَ شیطان مکر ډیر بیکاره (کمزورې) دې کافرانوسره دَ الله تعالی دَ تدبیرمقابله نه شی کولې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: حِذْرٌ د حاء په کسرې اوذال په سکون اودَدوارو په فتحې سره، احتیاط، بیدارو مغزی. دَخطرناك ځیزنه ډډه کول. یقال أخَذَ حذرهُ إذا تیقظ واحترز من المخوف په دې کښې استعارد بالکنایه ده، حذر له ئی په سلاح سره په زره زره کښې تشبیه ورکړې ده مشبه مذکوراو مشبه به محذوف دې. (فارسی ترجمه) اے مسلمانان بگیرید سلاح خود پس بیروں روید یعنی جنگ دشمنان گروه در گروه در جهات مختلف، یا بیرو کنید برائے جهاد جمع شده بایکدیگر.

**قوله**: ثُبات جمع ثُبۃ دَ لسونه دَ زیاتو کسانو جماعت.

**قوله**: یُبَطِّئَنَّ مضارع واحد مذکرغائب بانون تاکیدثقیله (تفعیل) تبطیۃ ناوختخ کول، سستی کول شاته پاتې کیدل ماده بطوءٌ.

**قوله**: واللام للقسم ددې نه مراد د لَیُبَطِّئَنَّ لام دې او لَمَنْ کښې لام ابتدائیه دې تقدیری عبارت دادې وَانّ منکم لَمَنْ أقسم بالله لَیُبَطِّئَنَّ.

**قوله**: فَأَصَابَ، أی أَصَابهٰی ما أَصَابهُم.

**سوال**:- لَیَقُوْلَنَّ جزاء د شرط ده اوقاعده ده چې جزاءکله مضارع واقع وی نو په دې باندې فاء لازم وی حالانکه دلته فاء نشته؟.

**جواب**:- لَئِنْ أَصَابَکُمْ کښې قسم اوشرط دواړه جمع دی اوقسم مقدم محذوف دې او

قاعده ده چې کله قسم اوشرط دواړه جمع شی نو راتلونکې جمله دَاول جزاء وی لهذا لَيَقُولَنَّ جواب قسم دې نه چې جواب شرط.

**قوله**: نَادِمًا، اى نادمًا لفوات الغنيمة لا لطلب الثواب.

**قوله**: وهذا رَاجِعٌ إلَى قَوْلِهِ قَدْ أَنْعَمَ الله عَلَيَّ الخ يَعْنِي كَأَنْ لَمْ يَكُنْ الخ ددې تعلق په اعتبارد معنى سابق جملې قدانعم الله عَلَيَّ سره ده. تقديرى عبارت دادې قال قدأنعم الله عَلَيَّ الخ كأن لم يكن الخ بيا دا جمله په توګه دَ جمله معترضه مؤخر کړې شوه.

**قوله**: لَيَقُولَنَّ قول دې او ياليتنى كنت معهم الخ مقوله ده او كأن لم يكن بينكم وبينه مودة جمله معترضه ده.

**قوله**: فَأَفُوزَ جواب تمنى دَ وجې نه منصوب دې.

[اياتونه: ۷۷-۸۷]

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ﴾ عَنْ قِتَال الْكُفَّار لَمَّا طَلَبُوهُ بِمَكَّة لِأَذَى الْكُفَّار لَهُمْ وَهُمْ جَمَاعَة مِنْ الصَّحَابَة ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ فَلَمَّا كُتِبَ﴾ فُرِضَ ﴿عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ إِذَا فَرِيقٌ مِنْهُمْ يَخْشَوْنَ﴾ يَخَافُونَ ﴿النَّاسَ﴾ الكفار أي عذابهم بالقتل ﴿كَخَشْيَةِ﴾ هم عَذَاب ﴿اللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً﴾ مِنْ خَشْيَتهمْ لَهُ وَنَصْب أَشَدّ عَلَى الْحَال وَجَوَاب لِمَا دَلَّ عَلَيْهِ إذَا وَمَا بَعْدهَا أَيْ فَاجَأَتْهُمْ الْخَشْيَة ﴿وَقَالُوا﴾ جَزَعًا مِنْ الْمَوْت ﴿رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ لَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿أَخَّرْتَنَا إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ قُلْ﴾ لَهُمْ ﴿مَتَاعُ الدُّنْيَا﴾ مَا يَتَمَتَّع بِهِ فِيهَا أَوْ الِاسْتِمْتَاع بِهَا ﴿قَلِيلٌ﴾ آيِل إلَى الْفَنَاء ﴿وَالْآخِرَةُ﴾ أَيْ الْجَنَّة ﴿خَيْرٌ لِمَنِ اتَّقَى﴾ عِقَاب اللَّه بِتَرْكِ مَعْصِيَته ﴿وَلَا تُظْلَمُونَ﴾ بِالتَّاءِ وَالْيَاء تُنْقَصُونَ مِنْ أَعْمَالكُمْ ﴿فَتِيلًا﴾ قدر قشرة النواة فجاهدوا ﴿أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ﴾ حُصُون ﴿مُشَيَّدَةٍ﴾ مُرْتَفِعَة فَلَا تَخْشَوْا الْقِتَال خَوْف الْمَوْت ﴿وَإِنْ تُصِبْهُمْ﴾ أَيْ الْيَهُود ﴿حَسَنَةٌ﴾ خِصْب وَسَعَة ﴿يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ﴾ جَدْب وَبَلَاء كَمَا حَصَلَ لَهُمْ عِنْد قُدُوم النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَة ﴿يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِكَ﴾ يَا مُحَمَّد أَيْ بِشُؤْمِك ﴿قُلْ﴾ لَهُمْ ﴿كُلٌّ﴾ مِنْ الْحَسَنَة وَالسَّيِّئَة ﴿مِنْ عِنْدِ اللَّهِ﴾ مِنْ قبله ﴿فَمَالِ هَؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ﴾ أَيْ لَا يُقَارِبُونَ أَنْ يَفْهَمُوا ﴿حَدِيثًا﴾ يُلْقَى إلَيْهِمْ وَمَا اسْتِفْهَام تَعْجِيب مِنْ فَرْط جَهْلهمْ وَنَفْي مُقَارَبَة الْفِعْل أَشَدّ من نفيه ﴿مَا أَصَابَكَ﴾ أَيُّهَا الْإِنْسَان ﴿مِنْ حَسَنَةٍ﴾ خَيْر ﴿فَمِنَ اللَّهِ﴾ أَتَتْك فَضْلًا مِنْهُ ﴿وَمَا أَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ﴾ بَلِيَّة ﴿فَمِنْ نَفْسِكَ﴾ أَتَتْك حَيْثُ ارْتَكَبْت مَا يَسْتَوْجِبهَا مِنْ الذُّنُوب ﴿وَأَرْسَلْنَاكَ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿لِلنَّاسِ رَسُولًا﴾ حَال مُؤَكِّدَة ﴿وَكَفَى بِاللَّهِ شَهِيدًا﴾ عَلَى رِسَالَتك ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَمَنْ تَوَلَّى﴾ أَعْرَضَ عَنْ طَاعَتك فَلَا يُهِمّنك ﴿فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾ حَافِظًا لِأَعْمَالِهِمْ بَلْ نَذِيرًا وَإِلَيْنَا أَمْرهمْ فَنُجَازِيهِمْ وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِالْقِتَالِ ﴿وَيَقُولُونَ﴾ أَيْ الْمُنَافِقُونَ إذَا جَاءُوك أمرنا ﴿طَاعَةٌ﴾ لَك ﴿فَإِذَا بَرَزُوا﴾ خَرَجُوا ﴿مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ﴾

مِنْهُمْ بإدْغَامِ التَّاء فِي الطَّاء وَتَرْكه أيْ أضْمَرَتْ (غَيْرَ الَّذِي تَقُول) لَك فِي حُضُورك مِنْ الطَّاعَة أيْ عِصْيَانك (وَاللّٰهُ يَكْتُبُ) يَأْمُر بِكَتْبِ (مَا يُبَيِّتُونَ) فِي صَحَائِفهمْ لِيُجَازَوْا عَلَيْهِ (فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ) بِالصَّفْحِ (وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰه) ثِقْ بِهِ فَإِنَّهُ كَافِيك (وَكَفَى بِاللّٰهِ وَكِيلًا) مفوضا إليه (أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ) يَتَأَمَّلُونَ (الْقُرْآن) وَمَا فِيهِ مِنْ الْمَعَانِي الْبَدِيعَة (وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا) تَنَاقُضًا فِي مَعَانِيه وَتَبَايُنًا فِي نظمه (وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْر) عَنْ سَرَايَا النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا حَصَلَ لَهُمْ (مِنَ الْأَمْن) بِالنَّصْرِ (أَوْ الْخَوْف) بِالْهَزِيمَةِ (أَذَاعُوا بِهِ) أَفْشَوْهُ نَزَلَ فِي جَمَاعَة مِنْ الْمُنَافِقِينَ أَوْ فِي ضُعَفَاء الْمُؤْمِنِينَ كَانُوا يَفْعَلُونَ ذَلِكَ فَتَضْعُف قُلُوب الْمُؤْمِنِينَ وَيَتَأَذَّى النَّبِيّ (وَلَوْ رَدُّوهُ) أَيْ الْخَبَر (إِلَى الرَّسُول وَإِلَى أُولِي الْأَمْر مِنْهُمْ) أَيْ ذَوِي الرَّأْي مِنْ أَكَابِر الصَّحَابَة أَيْ لَوْ سَكَتُوا عَنْهُ حَتَّى يُخْبَرُوا بِهِ (لَعَلِمَهُ) هَلْ هُوَ مِمَّا يَنْبَغِي أَنْ يُذَاع أَوْ لَا (الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ) يَتَّبِعُونَهُ وَيَطْلُبُونَ عِلْمه وَهُمْ الْمُذِيعُونَ (مِنْهُمْ) مِنْ الرَّسُول وَأُولِي الْأَمْر (وَلَوْلَا فَضْل اللّٰه عَلَيْكُمْ) بِالْإِسْلَامِ (وَرَحْمَته) لَكُمْ بِالْقُرْآنِ (لَاتَّبَعْتُمْ الشَّيْطَان) فِيمَا يَأْمُركُمْ بِهِ مِنْ الْفَوَاحِش (إِلَّا قليلا) (فَقَاتِلْ) يَا مُحَمَّد (فِي سَبِيل اللّٰه لَا تُكَلَّف إِلَّا نَفْسك) فَلَا تَهْتَمّ بِتَخَلُّفِهِمْ عَنْك الْمَعْنَى قَاتِلْ وَلَوْ وَحْدك فَإِنَّك مَوْعُود بِالنَّصْرِ (وَحَرِّضْ الْمُؤْمِنِينَ) حُثَّهُمْ عَلَى الْقِتَال وَرَغِّبْهُمْ فِيهِ (عَسَى اللّٰه أَنْ يَكُفّ بَأْس) حَرْب (الَّذِينَ كَفَرُوا وَاللّٰه أَشَدّ بَأْسًا) مِنْهُمْ (وَأَشَدّ تَنْكِيلًا) تَعْذِيبًا مِنْهُمْ فَقَالَ رَسُول اللّٰه صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَخْرُجَن وَلَوْ وَحْدِي فَخَرَجَ بِسَبْعِينَ رَاكِبًا إِلَى بَدْر الصُّغْرَى فَكَفَّ اللّٰه بَأْس الْكُفَّار بِإِلْقَاءِ الرُّعْب فِي قُلُوبهمْ وَمَنْع أَبِي سُفْيَان عَنْ الْخُرُوج كَمَا تَقَدَّمَ فِي آل عِمْرَان (مَنْ يَشْفَع) بَيْن النَّاس (شَفَاعَة حَسَنَة) مُوَافِقَة لِلشَّرْعِ (يَكُنْ لَهُ نَصِيب) مِنْ الْأَجْر (مِنْهَا) بِسَبَبِهَا (وَمَنْ يَشْفَع شَفَاعَة سَيِّئَة) مُخَالِفَة لَهُ (يَكُنْ لَهُ كِفْل) نَصِيب مِنْ الْوِزْر (مِنْهَا) بِسَبَبِهَا (وَكَانَ اللّٰه عَلَى كُلّ شَيْء مُقِيتًا) مُقْتَدِرًا فَيُجَازِي كُلّ أَحَد بِمَا عَمِلَ (وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ) كَأَنْ قِيلَ لَكُمْ سَلَام عَلَيْكُمْ (فَحَيُّوا) الْمُحَيِّي (بِأَحْسَن مِنْهَا) بِأَنْ تَقُولُوا لَهُ عَلَيْك السَّلَام وَرَحْمَة اللّٰه وَبَرَكَاته (أَوْ رُدُّوهَا) بِأَنْ تَقُولُوا لَهُ كَمَا قَالَ أَيْ الْوَاجِب أَحَدهمَا وَالْأَوَّل أَفْضَل (إِنَّ اللّٰه كَانَ عَلَى كُلّ شَيْء حَسِيبًا) مُحَاسِبًا فَيُجَازِي عَلَيْهِ وَمِنْهُ رَدّ السَّلَام وَخَصَّتْ السُّنَّة الْكَافِر وَالْمُبْتَدِع وَالْفَاسِق وَالْمُسَلِّم عَلَى قَاضِي الْحَاجَة وَمَنْ فِي الْحَمَّام وَالْآكِل فَلَا يَجِب الرَّدّ عَلَيْهِمْ بَلْ يُكْرَه فِي غَيْر الْأَخِير وَيُقَال لِلْكَافِرِ وَعَلَيْك (اللّٰه لَا إِلٰه إِلَّا هُوَ) وَاللّٰه (لَيَجْمَعَنَّكُمْ) مِنْ قُبُوركُمْ (إِلَى) فِي (يَوْم الْقِيَامَة لَا رَيْب) لَا شَكّ (فيه وَمَنْ) أَيْ لَا أَحَد (أَصْدَق مِنَ اللّٰه حَدِيثًا) قولا

**ترجمه**:- آیا تاسو هغه خلق اونه لیدل چاته چې حکم ورکړې شو چې کافرانو سره دَ جنګ نه لاس اونیسئ. چې کله هغوی دَ په مکه مکرمه کښې دَ کافرانو دَتکلیفونو رسولودَ وجې دَ جهاد مطالبه اوکړه اوهغه دَ صحابه کرامو یو جماعت وو. او مونځ کوئی او زکوٰة اداکوئی بیاچې په هغوی باندې جهادفرض کړې شو نو هم هغه وخت دَدوی نه یوجماعت دکافرانونه اوویریدو یعنی دَ قتل په ذریعه دَ هغوی دَ عذاب نه لکه چې څنګه هغوی دَ الله

تعالی دَ عذاب نه ویریږی، بلکه دَهغه دَ ویرې نه هم زیات. او دَ اَشَدَّ نصب حال کیدو دَ وجې نه دې. او دَ لَمَّا په جواب باندې اِذَا او دَ دې مابعد دلالت کوی. یعنی هغوی ناڅاپی او ویریدل او وئی وئیل چې اې زمونږ پروردګار تا په مونږ جهادولې فرض کړو؟ ولې دې مونږ لږ شان نور روستو نه کړو؟ ته ورته او وایه چې دَ دنیا سود مندی (یعنی) دَعیش سامان د کوم نه چې تاسو خوندونه اخلئ یا ګټه اخلئ خودیرکم دې. (یعنی) دَدې انجام فناده. او دَ ګناهونو پریخودلو سره دَالله تعالی دَعذاب نه ویریدونکو دَ پاره آخرت یعنی جنت بهتردې او ستاسو عملونه (نیکو) کښې کمې ګولوسره دَ یوتار یعنی دَ کهجورې دَ هډوکی دَ جلئ برابر به ظلم نه شی کولې تاسو چه چرته هم یئی اګر چې تاسو په مضبوطو او چتو قلعه ګانوکښې یئی نو مرګ به تاسو راګیرکړی لهذا دَ مرګ دَ ویرې دَ جهادنه مه ویریږئ. او که یهودیانو ته څه ښیګړه (مثلاً) تازه والې او خوشحالی ملاویږی نو وائی چې دادَ الله تعالی دَ طرف نه دی او که چرې هغوی ته څه بدی (مثلاً) قحط او مصیبت رسیږی لکه دَ حضورپاك مدینې ته دَ راتلو په وخت (قحط) راغې وو نو وائی چې دا ستا دَ وجې اې محمد (ﷺ) یعنی دا ستادَ سپیره والی دَ وجې نه دی ته دوی ته او وایه دا ټول که نیکی وی او که بدی دَالله تعالی دَ طرف نه دی په دغه خلقو څه چل اوشو چې کومه خبره هم هغوی ته اووئیلې شی په هغې پوهیدو ته نزدې هم نه دی نه او مَا استفهام تعجبی دَپاره ده دَهغوی دَزیات جهالت دَ وجې نه دَ قرب فعل نفی د (نفس) فعل دَ نفی نه نور هم سخته وی. اې انسانه څه خیرهم چې تاته رسیږی نو هغه دَالله تعالی دَ طرف نه دې یعنی دَهغه دَ فضل نه دې او کوم مصیبت چې تاته رسیږی هغه ستادَ نفس دَ طرف نه دې. داسې چې ته دَ ګناهونو ارتکاب کوې کوم چې دَ مصائبو دَ موجباتو نه دی او اې محمد ﷺ مونږ ته رسول جوړکړې لیږلې رسولاحال مؤکده دې او ستا په رسالت باندې دَ الله تعالی ګواهی کافی ده. څوک چې دَ رسول اطاعت اوکړی هغه دَالله تعالی اطاعت اوکړو او چا چې دَحضورپاک دَ اطاعت نه مخ واړولو نو ته خفه کیږه مه ځکه چې مونږ ته په هغوی باندې ساتونکې جوړولوسره نه ئی لیږلې یې. یعنی دَهغوی دَاعمالو نګران بلکه دَهغوی ویرونکې جوړکړې لیګلې. او دَهغوی معامله هم زمونږ طرف ته راواپس کیدونکې ده. لهذا مونږ به هغوی ته بدله ورکړو او دا حکم دَجهاددَ حکم نه وړاندې دې. منافقان چې کله تاسو له راشی نو وائی چې ستاسو فرمانبرداری ده خو چې کله هغوئ ستا خوا نه (بَيَّتَ طَائِفَةٌ) کښې د تاء په طاء کښې ادغام کولوسره او بغیردَ ادغام نه نو په هغوی کښې یوه ډله دَ شپې دَ هغې خلاف مشوره کوی څه چې ده ستاسو په وړاندې دَاطاعت خبره کوی یعنی ستاسو دَ نافرمانئ مشوره کوی او الله تعالی دَهغوی په عمل نامو کښې لیکی څه چې دوی دَ شپې مشوره کوی.

**نوټ:-** دَ بَيَّتَ تفسیر اَضۡمَرَتَ سره تسامح ده ځکه چې دَعصیان او نافرمانئ تعلق د نبی علیه السلام د خوا نه وتلوسره متعلق نه وو بلکه په مجلس کښې دَ موجودګئ په صورت

کښې هم عصيان اونافرماني دَهغوی په زړونوکښې وه. لهذا بَیّتَ تفسير دَ شپې مشوره کول انسب دی. پس تاسو هغوی ته معافی اوکړئی اومخ ترې واړوئی او په الله تعالی باندې يقين کوئی ځکه چې هغه ستاد َ پاره کافی دې. الله تعالی دکارسازئی دَپاره کافی دې. آیا داخلق په قرآن کښې اود َ هغې په معانيو کښې غورنه کوی چې په دې کښې موجود دی. که چرې دا قرآن پاك دَ الله تعالی نه بغيرد َ بل چاد َ طرف نه وې نو په دې کښې به دوئ ډيراختلاف موندلې وې يعنی دَدې په معنی کښې به ئی تناقص اوپه نظم کښې به يئ تباين موندلې وې. کله چې هغوی له يوه خبره دَ حضورپاك دَ لښکر اورسی کوم چې هغوی له راشی که دَ نصرت وی اوکه دَهزيمت وی نو هغه خوروی (دا آیت) دَ منافقانود يوې ډلې يا دَ کمزوری ايمان والا مؤمنانو باره کښې نازل شوې دې چې داسې به ئی کول. اوکه چرې دې خلقو رسول الله ﷺ ته يا ذمه وار صحابه کرامو ته رسولې يعنی که دې خلقو خاموشی اختيارولې ترهغه وخته پورې چې دوی ته دَهغې معاملې خبرورکړې کيدې شو نوداخلق چې دَدغه خبر تحقيق پسې لګيدلې دی او په دغه خبر باندې پوهه حاصلول غواړی اوداهم هغه خورونکې خلق دی نو په دې خبره باندې به پوهيدل چې دا خبرد َ خورولو دې اوکه نه دې. اوکه چرته دَ اسلام په ذريعه په تاسو باندې دَالله تعالی فضل اود َ قرآن په ذريعه په تاسو دَهغه رحمت نه وې نو دَ شميرد َ يوڅوکسانونه علاوه به تاسو دَ بې حيايئی په خبروکښې دکوموچې شيطان تاسو ته حکم کوی دَ شيطان تابعدار به جوړ شوی وئی. اې محمد ﷺ ته دَالله تعالی په لارکښې جهادکوه تاته صرف ستا دَ ذات په نسبت حکم درکولې شی. لهذا ستانه دَهغوی شاته پاتې کيدلو باندې ته خفه کيږه مه مطلب دا چې ته جهادکوه سره دَدې چې ته ځان له ئی ځکه چې دَ نصرت وعده تاسره ده او دَ ايمان والو ته رغبت ورکوه يعنی مؤمنان په جهاد کولو باندې تيار وه اوهغوی ته رغبت ورکوه ممکن ده چې الله تعالی دکافرانو جنګ بندکړی اوالله تعالی دَهغوی نه په اعتبارد َ جنګ او په اعتبارد َ عذاب ډيرزيات سخت دې. نوحضورپاك ﷺ اوفرمائيل قسم دې په هغه ذات دَچا په قدرت کښې چې زما ځان دې زه به خامخا (دَ جهاد دَپاره) اوځم سره دَدې چې زه يوازې ولې نه يم. چنانچه رسول الله ﷺ (صرف) اوياؤ (۷۰) سورو سره بدرصغریٰ طرف ته لاړو نوالله تعالی دکافرانو حمله دَهغوی په زړونوکښې رعب اچولوسره بنده کړه او ابوسفيان ئی (دَ جنګ دَپاره) وتلونه منع کړو لکه چې په سورت آل عمران کښې تيرشو. کوم کس چې په خلقو کښې دَ شريعت مطابق دَ ښيګړې سفارش اوکړی نوهغه ته به هم دَ دغې دَ وجې دَ اجر حصه ملاويږی اوکوم کس چې دَ شريعت خلاف دَبدئی سفارش اوکړی نوهغه ته به دَ دغه سفارش دَ وجې دَ ګناه حصه ملاويږی او الله تعالی په هرڅيزباندې قدرت لرونکې دې. لهذا هريوته به دهغه د اعمالو بدله ورکړی. اوکله چې تاسو ته سلام اوکړې شی مثلاً تاسو ته اووئيلې شی سلام عليکم نوتاسو سلام

کونکی ته د هغه د سلام نه ښه جواب ورکوئی په دې طریقه چې تاسو هغه ته اووایئ وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته یا هم هغه الفاظ ورواپس کړئی داسې چې څنګه هغه وئیلی دی تاسو هم ورته هم هغه شان اووایئی یعنی په دې کښې یو واجب دې مګر ړومبې غوره دې. بیشکه الله تعالی دَهرڅیز حساب اخستونکې دې لهذا دَ هر (عمل) جزاء به ورکوی او هم دَدې نه دَ سلام جواب ورکول هم دی. او شریعت مستثنی کړې دې، کافر، بدعتی، متیازې کونکی باندې سلام کونکې او هغه سړی باندې کوم چې په حمام کښې وی او په خوراك کونکی باندې چې دَدوی دَ سلام جواب ورکول واجب نه دی. بلکه دَ اخیرې نه علاوه مکروه دی او دَ کافر په جواب کښې به وئیلې شی عَلَيْكَ (یعنی په تاباندې هم) الله تعالی هغه ذات دې چې دَهغه نه بغیر یل څوک معبود نشته. هغه به یقینًا تاسو ستاسو دَ قبرونونه دَ قیامت په ورځ راجمع کوی په دې کښې هیڅ شک نشته او دَ الله تعالی نه رښتیا خبره کونکې بل څوک دې؟ هیڅوك نشته.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: مِنْ خَشْيَتِهِمُ الخ په دې کښې اشاره ده چې دَدې عطف په کخشية الله باندې دې.

**قوله**: ونَصْبٌ علی الحال یعنی کخشية الله نه د حال کیدو دَ وجې نه منصوب دې تقدیری عبارت دا دې يَخْشَوْنَ النَّاسَ مِثْلَ خَشْيَةِ الله.

**قوله**: أَوْأَشَدَّ خَشْيَةً هم د حال کیدو دَ وجې نه منصوب دې ځکه چې دَدې عطف په کخشيةِ الله باندې دې په دې کښې دَهغه خلقو دَ قول تردید دې کوم چې وائی خشية الله د مصدر دَ وجې نه منصوب دې.

**قوله**: جَوَابُ لَمَّا دَلَّ علیه إِذَا، مناسب دا وه چې مفسرعلام وجواب لَمَّا إِذَا وَمَا بعدها فرمائیلې.

**قوله**: إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ کښې إذا مفاجاتیه قائم مقام دَفاء دې فَلَمَّا كُتِبَ د لَمَّا جواب دې.

**قوله**: جَزَعًا مِنَ الْمَوْتِ دې خبرې ته اشاره ده چې لِمَ كَتَبْتَ علينا القِتَال، په توګه دَ اعتراض نه وو بلکه دَمرګ نه دَ طبعی ویرې د وجې نه وو ځکه چې قائلین خیار صحابه وو.

**قوله**: مَا يُتَمَتَّعُ به په دې کښې اشاره ده چې متاع مصدر په معنی دمفعول دهې.

**قوله**: أوالاسْتِمْتَاعُ بِهَا په دې کښې اشاره ده چې مَتَاعٌ نه مصدری معنی مراد کیدې شی.

**قوله**: بِهَا أي بعين المتاع.

**قوله**: بَيَّتَ طَائِفَةٌ دَ بَيَّتَ فاعل طائفة دې طائفة چونکه مؤنث غیرحقیقی دې دَ کوم دَپاره چې فعل مذکر یا مؤنث دواړه راوړل جائز دی. مفسرعلام د بَيَّتَ تفسیر په أضمرت سره

کړي دي او مطلب ئې دا بیان کړې دې چې منافقان به کله دَ حضورپاك مجلس نه بهر راتلل نو دَحضورپاك دَ قول خلاف به ئې په زړه کښې پټ ساتلې وو حالانکه دا مفهوم مناسب نه دې ځکه چې دَ حضورپاك دَ قول برخلاف خودَهغوی په زړونوکښې هغه وخت هم مضمرو کوم وخت چې به هغوی دَ حضورپاك په مجلس کښې وو. ځکه چې منافقانو به هم په مجلس کښې سمعنا واطعنا وئیل. مفسرعلام که چرې دَ بَيَّتَ تفسر تدبيرالأمرليلاً سره کړې وې نو زيات مناسب به وو ځکه چې منافقانوبه دَ شپې دَحضورپاك خلاف پټ تدبيرونه کول.

**قوله**: المُرۡجِفُونَ افواه گانې خورونکې.

**[اياتونه: ۸۸-۹۱]**

وَلَمَّا رَجَعَ نَاس مِنْ أُحُد اخْتَلَفَ النَّاس فِيهِمْ فَقَالَ فَرِيق اُقْتُلْهُمْ وَقَالَ فَرِيق لَا فَنَزَلَ {فَمَالَكُمْ} مَا شَأْنكُمْ صِرْتُمْ {فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ} فِرْقَتَيْنِ {وَاللَّهُ أَرْكَسَهُمْ} رَدَّهُمْ {بِمَا كَسَبُوا} مِنْ الْكُفْر وَالْمَعَاصِي {أَتُرِيدُونَ أَنْ تَهْدُوا مَنْ أَضَلَّ} هـ {اللَّه} أَيْ تَعُدُّوهُمْ مِنْ جُمْلَة الْمُهْتَدِينَ وَالِاسْتِفْهَام فِي الْمَوْضِعَيْنِ لِلْإِنْكَارِ {وَمَنْ يُضْلِلْ} هـ {اللَّه فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا} طَرِيقًا إلَى الْهُدَى {وَدُّوا} تَمَنَّوْا {لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا فَتَكُونُونَ} أَنْتُمْ وَهُمْ {سَوَاء} فِي الْكُفْر {فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَاء} تُوَالُونَهُمْ وَإِنْ أَظْهَرُوا الْإِيمَان {حَتَّى يُهَاجِرُوا فِي سَبِيل اللَّه} هِجْرَة صَحِيحَة تُحَقِّق إيمَانهمْ {فَإِنْ تَوَلَّوْا} وَأَقَامُوا عَلَى مَا هُمْ عَلَيْهِ {فَخُذُوهُمْ} بِالْأَسْرِ {وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا} تُوَالُونَهُ {وَلَا نَصِيرًا} تَنْتَصِرُونَ بِهِ عَلَى عَدُوّكُمْ {إلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ} يَلْجَئُونَ {إلَى قَوْم بَيْنكُمْ وَبَيْنهمْ مِيثَاق} عَهْد بِالْأَمَانِ لَهُمْ وَلِمَنْ وَصَلَ إلَيْهِمْ كَمَا عَاهَدَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِلَال بْن عُوَيْمِر الْأَسْلَمِيّ {أَوْ} الَّذِينَ {جَاءُوكُمْ} وَقَدْ {حَصِرَتْ} ضَاقَتْ {صُدُورهمْ} عَنْ {أَنْ يُقَاتِلُوكُمْ} مَعَ قَوْمهمْ {أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمهمْ} مَعَكُمْ أَيْ مُمْسِكِينَ عَنْ قِتَالكُمْ وَقِتَالهمْ فَلَا تَتَعَرَّضُوا إلَيْهِمْ بِأَخْذٍ وَلَا قَتْل وَهَذَا وَمَا بَعْده مَنْسُوخ بِآيَةِ السَّيْف {وَلَوْ شَاءَ اللَّه} تَسْلِيطهمْ عَلَيْكُمْ {لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ} بِأَنْ يُقَوِّي قُلُوبهمْ {فَلَقَاتَلُوكُمْ} وَلَكِنَّهُ لَمْ يَشَأْهُ فَأَلْقَى فِي قُلُوبهمْ الرُّعْب {فَإِنْ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إلَيْكُمْ السَّلَم} الصُّلْح أَيْ انْقَادُوا {فَمَا جَعَلَ اللَّه لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا} طريقا بالاخذ والقتل {ستجدون آخرين يريدون أن يأمنوكم} بإظهار الإيمان عندكم {ويأمنوا قومهم} بالكفر إذا رجعوا إليهم وهم أسد وغطفان {كل ما ردوا إلى الفتنة} دعوا إلى الشرك {أركسوا فيها} وقعوا اشد وقوع {فإن لم يعتزلوكم} بترك قتالكم {و} لم {يلقوا إليكم السلم و} لم {يكفوا أيديهم} عنكم {فخذوهم} بالأسر {واقتلوهم حيث ثقفتموهم} وجدتموهم {وأولئكم جعلنا لكم عليهم سلطانا مبينا} برهانا بينا ظاهرا على قتلهم وسبيهم لغدرهم

**ترجمه**:- اوکله چې خلق دَ أُحدنه واپس شو نوخلقو دَهغوی باره کښې اختلاف اوکړو يو فريق وئيل دوی قتل کړئې دويم فريق وئيل چې مه ئې قتلوئې. نودا آيت نازل شو {فَمَا

ستاسو څه حال دی چې تاسو دَ منافقینو باره کښې دوه ډلې شوئی. الله تعالیٰ هغوی دَخپل کفر او ګناه په وجه واپس او ګرځول آیا تاسو غواړئی چې کوم خلق الله تعالیٰ ګمراه کړل تاسو ئې په نیغه لار راولئ یعنی تاسو هغوی من جمله هدایت یافته خلقو کښې شمیرئی. استفهام په دواړو ځایونو کښې انکاری دې او څوک چې الله تعالیٰ ګمراه کړی دَهغوی دَپاره خو به ته دَ هدایت لار هیڅ کله نه پیاموې. دا خلق خو دَ زړه نه غواړی چې تاسو هم کفر او کړئی لکه څنګه چې داخلق کفر کوی دې دَپاره چې هغوی او تاسو په کفر کښې برابر شئ. پس تاسو په هغوی کښې څوک دوست مه جوړه وئی چې هغوی سره دوستی کوئی. سره دَ دې چې هغوی دَ ایمان اظهار اوکړی تردې چې دَ الله تعالیٰ په لار کښې په صحیح توګه هجرت اوکړی چې دَهغوی ایمان محقق کړی او که هغوی مخ واړوی او په موجوده نفاق باندې قایم پاتې شی نو هغوی قید کړئ او چرته چې هغوی مومئی قتل یې کړئی او په هغوی کښې هیڅوک دوست مه جوړوئی چې هغوی سره دوستی کوئی او مه ئی امدادیان جوړوئی چې دَهغوی نه دَ دښمن په مقابله کښې چې امداد واخلئ. سوا دَهغه خلقو نه چې هغه خلقو سره ملاؤ شی چې د هغوی او ستاسو په مینځ کښې معاهده دَامن ده او دَهغوی چې ورسره ملاؤ شی لکه څنګه حضور پاك هلال بن عویمر اسلمی سره معاهده کړې وه. یا هغه خلق تاسو له داسې راشی چې دَهغوی سینې د دې خبرې نه تنګیږی چې هغوی خپل قوم سره شی او تاسو سره اوجنګیږی یا تاسو سره شی او خپل قوم سره اوجنګیږی. یعنی هغوی ستاسو سره او دَهغوی سره دَ جنګ کولو نه منع شوی دی لهذا تاسو هغوی نه قید او قتل کولو سره تعرض مه کوئی دا حکم او دَ دې مابعد په آیت سیف سره منسوخ شوې دې او که چرې الله تعالیٰ ته په تاسو باندې دَهغوی غلبه منظوروه نو هغه به دَهغوی زړونه قوی کولو سره هغوئ په تاسو غالب کړې وې نو هغوی به تاسو سره ضرور جنګ کولو لیکن هغه ته دا منظور نه شوه دَ څه دَ وجې نه چې الله تعالیٰ دَهغوی په زړونو کښې رعب واچولو نو که هغوی تاسو پرېږدی او تاسو سره جنګ نه کوی او تاسو سره په سلامتیا سره تعلق اوساتی یعنی ستاسو دَ حکم منونکی شی نو الله تعالیٰ دَهغوی دَپاره خلاف ستاسو دپاره دَ قید او قتل هیڅ لار نه ده کیخودې او ډیر زر به تاسو څه نور خلق اووینئی چې غواړی به چې ستاسو په وړاندې دَایمان اظهار کولو سره تاسو نه هم په امن اوسیږی او کله چې خپل قوم له لاړ شی نو دکفر اظهار کولو سره د خپل قوم هم په امن باندې وی. او هغه اَسَدْ و غطفان دی او هغوی چې کله هم دَ شرک دَفتنې طرف ته رابللې شی نو هغوی دَ دې طرف ته راتاویږی یعنی په هغې کښې په شدت سره واقع کیږی. نو که دَ جنګ ترك کولو سره تاسو نه پرېږدی او نه تاسو سره په سلامتیا سره اوسیږی او نه تاسو نه خپل لاسونه رابند کړی نو تاسو هغوی قید کړئی او چرته چې ئې مومئی قتل یې کړئی هم دغه خلق خودی دچا خلاف چې مونږ تاسو ته کولاؤ اجازت درکړې دې یعنی دَهغوی په قتل او قید باندې دَهغوی دغداری دَ وجې ښکاره او واضحه دلیل درکړې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: مَا شَأْنُكُمْ د دخول حرف علی الحرف نه دَ بچ کیدو دَ پاره مفسر علام شأن مضاف محذوف منلې دې.

**قوله**: صِرْتُمْ دَ دې په حذف کښې اشاره ده چې فی المنافقين د صرتم محذوف متعلق دې. او فِئَتَيْنِ د صرتم د خبر کیدو دَ وجې نه منصوب دې او جمله د مالکم مبتداء خبر دې.

**قوله**: تَمَنَّوا، د وَدُّوا تفسیر په تَمَنَّوا سره کولو کښې اوخودلې شو چې د وَدُّ نه پس لَوْ واقع وی نو دَ تمنا په معنی کښې وی.

**قوله**: يَلْجَأُوْنَ مفسر علام دَ يَصِلُوْنَ تفسیر په يَلْجَأُوْنَ سره د تصحیح صله دَ پاره کړې ده.

**قوله**: أوالَّذِيْنَ په دې کښې اشاره ده چې د جاءوکم عطف په یصلون باندې دې نه چې د قوم په صفت باندې.

**قوله**: وقد حَصِرَتْ قد محذوف منلو سره په هغه خلقو باندې رد کول مقصود دې چې حصرت دَ قومًا محذوف صفت منی. ځکه چې په دې کښې بغیر دَ ضرورت نه حذف لازمیږی بلکه حصرت د جاءو کم دَ ضمیرنه حال دې او ماضی چې کله حال واقع شی نو قَدْ ضروری دی که لفظًا وی او که معنًا هم په دې وجه مفسر علام قد مقدر منلې دې.

**قوله**: عن، حصرت چونکه متعدی بنفسه نه وی په دې وجه عَنْ محذوف منل ضروری دی.

[ایاتونه: ۹۲-۹۶]

(وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَقْتُلَ مُؤْمِنًا) أيْ مَا يَنْبَغِي أنْ يَصْدُر مِنْهُ قَتْل لَهُ (إلَّا خَطَأً) مُخْطِئًا فِي قَتْله مِنْ غَيْر قَصْد (وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً) بِأنْ قَصَدَ رَمْي غَيْره كَصَيْدٍ أوْ شَجَرَة فَأصَابَهُ أوْ ضَرَبَهُ بِمَا لَا يَقْتُل غَالِبًا (فَتَحْرِير) عِتْق (رَقَبَة) نَسَمَة (مُؤْمِنَة) عَلَيْهِ (وَدِيَة مُسَلَّمَة) مُؤَدَّاة (إلَى أهْله) أيْ وَرَثَة الْمَقْتُول (إلَّا أنْ يَصَّدَّقُوا) يَتَصَدَّقُوا عَلَيْهِ بِهَا بِأنْ يَعْفُوا عَنْهَا وَبَيَّنَتْ السُّنَّة أنَّهَا مِائَة مِنْ الْإِبِل عِشْرُونَ بِنْت مَخَاض وَكَذَا بَنَات لَبُون وَبَنُو لَبُون وَحِقَاق وَجِذَاع وَأنَّهَا عَلَى عَاقِلَة الْقَاتِل وَهُمْ عَصَبَته فِي الْأصْل وَالْفَرْع مُوَزَّعَة عَلَيْهِمْ عَلَى ثَلَاث سِنِينَ عَلَى الْغَنِيّ مِنْهُمْ نِصْف دِينَار وَالْمُتَوَسِّط رُبْع كُلّ سَنَة فَإنْ لَمْ يَفُوا فَمِنْ بَيْت الْمَال فَإنْ تَعَذَّرَ فَعَلَى الْجَانِي (فَإنْ كَانَ) الْمَقْتُول (مِنْ قَوْم عَدُوّ) حَرْب (لَكُمْ وَهُوَ مُؤْمِن فَتَحْرِير رَقَبَة مُؤْمِنَة) عَلَى قَاتِله كَفَّارَة وَلَا دِيَة تُسَلَّم إلَى أهْله لِحِرَابَتِهِمْ (وَإنْ كَانَ) الْمَقْتُول (مِنْ قَوْم بَيْنكُمْ وَبَيْنهمْ مِيثَاق) عَهْد كَأهْلِ الذِّمَّة (فَدِيَة) لَهُ (مُسَلَّمَة إلَى أهْله) وَهِيَ ثُلُث دِيَة الْمُؤْمِن إنْ كَانَ يَهُودِيًّا أوْ نَصْرَانِيًّا وَثُلُثَا عُشْرهَا إنْ كَانَ مَجُوسِيًّا (وَتَحْرِير رَقَبَة مُؤْمِنَة) عَلَى قَاتِله (فَمَنْ لَمْ يَجِد) الرَّقَبَة بِأنْ فَقَدَهَا وَمَا يُحَصِّلهَا بِهِ (فَصِيَام شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ) عَلَيْهِ كَفَّارَة وَلَمْ يَذْكُر اللّه تَعَالَى الِانْتِقَال إلَى الطَّعَام كَالظِّهَارِ وَبِهِ أخَذَ الشَّافِعِيّ فِي أصَحّ قَوْلَيْهِ

(توبة من الله) مصدر منصوب بفعله المقدر (وكان الله عليما) بخلقه (حكيما) فيما دبره لهم (ومن يقتل مومنا متعمدا) بأن يقصد قتله بما يقتل غالبا عالما بإيمانه (فجزاؤه جهنم خالدا فيها وغضب الله عليه ولعنه) أبعده من رحمته (وأعد له عذابا عظيما) في النار وهذا مؤول بمن يستحله أو بأن هذا جزاؤه إن جوزي ولا بدع في خلف الوعيد لقوله (ويغفر ما دون ذلك لمن يشاء) وعن ابن عباس أنها على ظاهرها وأنها ناسخة لغيرها من آيات المغفرة وبينت آية البقرة أن قاتل العمد يقتل به وأن عليه الدية إن عفي عنه وسبق قدرها وبينت السنة أن بين العمد والخطأ قتلا يسمى شبه العمد وهو أن يقتله بما لا يقتل غالبا فلا قصاص فيه بل دية كالعمد في الصفة والخطأ في التأجيل والحمل وهو والعمد أولى بالكفارة من الخطأ ونزل لما مر نفر من الصحابة برجل من بني سليم وهو يسوق غنما فسلم عليهم فقالوا ما سلم علينا إلا تقية فقتلوه واستاقوا غنمه (يأيها الذين آمنوا إذا ضربتم) سافرتم للجهاد (في سبيل الله فتبينوا) وفي قراءة فتثبتوا في الموضعين (ولا تقولوا لمن ألقى إليكم السلام) بألف أو دونها أي التحية أو الانقياد بكلمة الشهادة التي هي أمارة على الإسلام (لست مؤمنا) وإنما قلت هذا تقية لنفسك ومالك فتقتلوه (تبتغون) تطلبون بذلك (عرض الحياة الدنيا) متاعها من الغنيمة (فعند الله مغانم كثيرة) تغنيكم عن قتل مثله لماله (كذلك كنتم من قبل) تعصم دماؤكم وأموالكم بمجرد قولكم الشهادة (فمن الله عليكم) بالاشتهار بالإيمان والاستقامة (فتبينوا) أن تقتلوا مؤمنا وافعلوا بالداخل في الإسلام كما فعل بكم (إن الله كان بما تعملون خبيرا) فيجازيكم به (لا يستوي القاعدون من المؤمنين) عن الجهاد (غير أولي الضرر) بالرفع صفة والنصب استثناء من زمانة أو عمى ونحوه (والمجاهدون في سبيل الله بأموالهم وأنفسهم فضل الله المجاهدين بأموالهم وأنفسهم على القاعدين) لضرر (درجة) فضيلة لاستوائهما في النية وزيادة المجاهدين بالمباشرة (وكلا) من الفريقين (وعد الله الحسنى) الجنة (وفضل الله المجاهدين على القاعدين) لغير ضرر (أجرا عظيما) ويبدل منه (درجات منه) منازل بعضها فوق بعض من الكرامة (ومغفرة ورحمة) منصوبان بفعلهما المقدر (وكان الله غفورا) لأوليائه (رحيما) بأهل طاعته

---

ترجمه:- دَ يومؤمن دَپاره دا روا نه دى چې هغه دې بل مؤمن قتل كړى يعنى دَمؤمن دَپاره دامناسب نه دى چې دَهغه نه ديومؤمن قتل اوشى سوا دَ غلطۍ نه يعنى چې بغيرارادې په غلطۍ سره قتل شى. (نوهغه بله خبره ده) اوڅوک چې مؤمن په غلطۍ سره قتل كړى په داسې توګه چې نښه ئې غيرمؤمن مثلاً ښكار يا ونې ته لګولې وه مګر مؤمن اولګيدو يا په يرداسې ځيزئې قتل كړو چې په عام توګه په هغې قتل نه كيږى نو په هغه باندې يومؤمن غلام آزادول لازم دى او خون بهابه هم دَهغه خپلوانوته اداكولې شى يعنى دَ مقتول وارثانوته، سوا ددې نه كه دَهغه (خپلوان) ديت معاف كړى اوسنت بيان كړې دې چې ديت سل (١٠٠) اوښان دى شل (٢٠) بنت مخاض، او دومره بنت لبون او بنولبون او حقې او جذعې اود ديت دَ قاتل په اهل خاندان باندې دې. اوهغوى دَاصل اوفرع عصبه دى كوم چې به په

عصبات باندې تقسیمیږي. (دَدې موده) به درې کاله وي. په دوی کښې په مالدارانو باندې نصف دینار سالانه او په متوسط باندې څلورمه حصه دَ دینار سالانه اوکه چرې داخلق ئې ادانه کړې شي نو دَبیت المال نه به اداکیږي اوکه چرې دا هم گرانه وي نو په جاني (قاتل) باندې به واجب وي اوکه چرې مقتول ستاسو دَ دښمن قوم (دارالحرب) نه وي حال داچې هغه مؤمن وي نو دَهغه په قاتل باندې یوغلام آزادول واجب دی دَ کفارې په توگه نه چې دَ دیت په توګه چې دَهغه کوروالو ته حواله کړې شي. هغوی سره دَمحاربه کیدو دَ وجې نه اوکه چرې مقتول داسې قوم سره تعلق لري چې ستاسو اودَهغوی په مینځ کښې معاهده دِه لکه اهل ذمه نو دَهغه په قاتل باندې دَ یو مؤمن غلام آزادول دی نو که یو کس غلام او نه مومی په دې وجه چې غلام نه وي یا دومره مال نه وي په کوم سره چې غلام واخستې شي نودَ دې کفاره دوه میاشتې مسلسل روژې ساتل دی او الله تعالی دَ طعام طرف ته رجوع نه ده ذکر کړې څنګه چې ئې په ظهار کښې فرمائیلی دی او امام شافعي رحمه الله په خپلو دواړو قولونو کښې صحیح ترین قول کښې هم دا اخستې دې اودَالله تعالی دَ طرف نه دَ توبې قبولیت دې، توبة مصدر دې فعل مقدر (تاب) دَ وجې نه منصوب دې اوالله تعالی دَ خپل مخلوق باره کښې خبردار دې (او) هغه چې کوم نظام قائم کړې دې په هغې کښې هغه باحکمت دې اوکوم کس چې یو مؤمن قصداً قتل کړی په داسې طریقه چې دَ هغه په یو داسې څیز سره دَ قتل اراده اوکړی په کوم سره چې قتل کیږي دَهغه دَ ایمان نه دَ واقف کیدو باوجود نودَ داسې کس سزا دوزخ دې په کوم کښې چې به هغه همیشه پروت وي او په هغه دَالله تعالی غضب او دَهغه لعنت دې دَهغه دَ رحمت نه لریوالې دې. اودَهغه دَپاره (الله تعالی) په دوزخ کښې یولوئی عذاب تیار ساتلې دې. او دا (آیت) مؤول دې هغه کس سره چې دَمؤمن قتل حلال ګڼړی یا په دې طریقه چې دا دَ هغه سزا ده که چرې سزا ورکړې شي او دَوعید په تخلف کښې څه ندرت نشته دې دَالله تعالی قول ﴿ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ ﴾ دَ وجې نه اود ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چې دا آیت دَدې په ظاهرباندې محمول دې اودَ مغفرت دَ نورو آیاتونو دَپاره ناسخ دې او دَ سورت بقره په آیت کښې بیان شوی دی چې عمداً قتل کونکې به دَقتل دَ وجې نه قتل کولې شي. او یقیناً په ده باندې دیت واجب دې سره دَدې که دې معاف کړې شي او دَدیت مقدار وړاندې تیر شو او سنت بیان کړې دې چې دقتل عمد اود قتل خطا په مینځ کښې یو قتل بل دې دَ کوم نوم چې شبه عمد دې او هغه دادې چې په داسې څیز سره ئې قتل کړی په کوم سره چې په عام توګه قتل نه کیږي نو په هغې کښې قصاص نشته بلکه په هغې کښې دیت دې. په صفت کښې دَ قتل عمد په شان اوپه تاجیل (تاخیر) او په خاندان والو باندې اچولو کښې دَ قتل خطأ په شان، قتل شبه عمد او قتل عمد دکفارې (وجوب) دَپاره دَ قتل خطاء نه اولی دې. او نازل شوی دی (راتلونکې آیت) هغه وخت کله چې دَ

صحابه کرامو دَ یوجماعت دَ بنی سلیم یوسړی سره تیریدل اوشو اوهغه چیلئ بوتللې هغه سړی دوی ته سلام اوکړو نو دې خلقو اووئیل چې دې سړی سلام صرف دَخپل ځان بچ کولودَپاره اوکړو. نوهغه خلقو دې قتل کړو او دَهغه چیلئ یئ راوستلې (نو آیت یٰاَیُّهَاالَّذِیْنَ آمنوا نازل شو) اې ایمان والوکله چې تاسو دَالله تعالی په لارکښې دَ جهاددَپاره سفرکوئی نوتحقیق کوئی او په یوقراءت کښې دواړو ځایونوکښې په ثاء مثلثه سره دې.
(فتثبتوا) انتظارکوئی اوڅوک چې تاسو ته سلام علیک اوکړی (سلام) په الف سره دې او بغیردَ الف نه دې اوکلمهٔ شهادت په ذریعه کوم چې دَهغه دَ اسلام علامت دې د انقیاد (فرمانبردارئی) اظهاراوکړی نوتاسو دامه وایئی چې ته مسلمان نه ئی تاخوداکلمه دَ خپل ځان اومال بچ کولودَپاره اووئیله. دنیاوی سامان مال غنیمت طلب کولودَپاره هغه قتل کړئی. اللّٰه تعالی سره ډیرزیات غنیمتونه دی نوهغه غنیمتونه به تاسو دَهغه دَمال دَپاره دَهغه دَقتل نه مستغنی کړی. دَدې نه وړاندې تاسو هم داسې وئی ستاسو ځانونه او ستاسو مالونه صرف ستاسو دَ کلمه شهادت دَ وجې نه محفوظ ساتلې کیدل. بیا الله تعالی په تاسو باندې دَ ایمان د شهرت او استقامت په ذریعه احسان اوکړو نوتاسو تحقیق کوئی (داسې نه وی چه) تاسو څوك مؤمن قتل کړئی او په اسلام کښې داخلیدونکی سره هم داسې معامله کوئی څنګه چې تاسو سره اوکړې شوه. بیشکه اللّٰه تعالی ستاسود اعمالو نه خبردې دکوم چې به هغه تاسو ته بدله درکړی بغیردَ عذر دَ جهادنه پاتې کیدونکی مؤمنان (غیرُ) په رفع سره صفت کیدو دَ وجې نه اوپه نصب سره دَ استثناء د وجې نه، دَ ګډوالی یا ړندوالی وغیره په وجه، اودَاللّٰه تعالی په لار کښې په ځانونو اومالونوسره جهاد کونکی برابر کیدې نه شی او اللّٰه تعالی په خپلو مالونو اوځانونوسره جهاد کونکوته دَ عذر دَ وجې نه جهاد نه کونکوباندې فضیلت ورکړې دې. دواړه په نیت کښې د مساوی کیدلو اودَ مجاهد په عملی توګه جهاد کولودَ وجې نه، او (هسې خو) اللّٰه تعالی دواړو ډلو نه هریوسره دَ ښیګړې وعده کړې ده اومجاهدینو له یئ بغیردَ عذره پاتې کیدونکو باندې لوئی اجر فضیلت ورکړې دې او درجاتٍ منه د (اجراً) نه بدل دې دَخپل طرف نه دَ مرتبو چې په عزت کښې یودَ یوبل نه زیات دې او په مغفرت اورحمت کښې دواړه دَخپل مقدرفعلونودَ وجې منصوب دې اللّٰه تعالی خپل دوستانو لره معاف کونکې اودَهغه اطاعت کونکوباندې رحم کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: خَطِئًا فِی قَتْلِه: په دې کښې اشاره ده چې خَطَأً، حال کیدو دَوجې نه منصوب دې او مصدر په معنی د اسم فاعل دې اوداهم کیدې شی چې مفعول مطلق کیدو دَوجې منصوب وی او مصدر دَمحذوف صفت وی. ای اِلَّاقَتْلاً خطأً.

**قوله**: عَلَيْهِ: په دې کښې اشاره ده چې تحرير، مبتداء ده او ددې خبرمحذوف دې أى فعليه تحرير يا د مبتداء محذوف خبردې أى فالواجب عليه تحرير رقبة او د فعل محذوف فاعل هم کيدې شى أى فيجب عليه تحرير رقبة اودا هم کيدې شى چې عليه دَ شرط جزاء وى او چونکه دَجزاء دَپاره جمله کيدل شرط دى لهذا عليه به محذوف منل وى.

**قوله**: وَدِيَةٌ، دَدې عطف په تحرير باندې دې وَدِيَة په اصل کښې مصدر دې په مال ماخوذ باندې دَدې اطلاق کړې شوې دې هم دَدې وجې نه دَدې صفت مُسَلَّمَةٌ راوړلې شوې دې او دا د اصل کښې وَدِيٌ وو واؤحذف کړې شو دَدې په عوض کښې په آخره کښې تاء تانيث اضافه کړې شوه نو دية شو.

**قوله**: نِصْفُ دِيْنَارٍ، دا دَامام شافعى رحمه الله په نيزدى.

**قوله**: ثُلُثَا عُشْرِهَا، دا دَ امام شافعى رحمه الله مذهب دې.

**قوله**: مَصْدَرٌ مَنْصُوْبٌ بِفِعْلِهِ الْمُقَدَّرِ اى تَابَ عَلَيْكُمْ تَوْبَةً.

**قوله**: عَالِمًا بِإِيْمَانِه.يعنى مذکوره عذاب به هغه وخت مستحق شى کله چې ئى دې مؤمن ګڼړلو سره قتل کړې وى او که حربى ئى ګڼړلې وى اوقتل کړې يئ وى نو مستحق به نه وى.

**قوله**. بِمَنِ اسْتَحَلَّه، دَدې اضافې مقصد په معتزله باندې ردکول دى ځکه چې په جهنم کښې خو به دَهميشه داخليدل دَ کافردَپاره وى په دې وجه دکتاب وسنت اواجماع دلائل قطعيه په دې کښې صريح دى چې عصاة المسلمين به دائمى توګه باندې دوزخ کښې نه داخليږى. په خلاف دَ معتزله چې دَهغوى په نيزدکبيره ګناه مرتکب که چرې بغيرد توبې نه مړشى نو هغه هم دائمى جهنمى دې.

**قوله**. لايدْرَأى الانْدَرَة،دَ ابن عباس رضى الله عنهما په نيزآيت په ظاهرباندې محمول دې غالبًا دَدې نه مقصد شدت ښکاره کول دى ځکه چې هم دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه دَدې خلاف هم نقل دى.

**قوله**: فِى قراءة بالمثلة: اى بالثاء «اى فتثبتوا» يعنى انتظار کوئ.

**قوله**: بِالرَّفْعِ صِفَةٌ، يعنى غيرُمرفوع دې دَ قاعدون صفت کيدو دَ وجې نه.

**سوال**: القَاعِدُوْنَ الف لام دَ وجې نه معرفه دې او غيرنکره دې لهذا صفت واقع کيدل صحيح نه دى.

**رومبې جواب**: غير چې کله دَ دوؤ متضاد څيزونو په مينځ کښې واقع وى نو معرفه کيږى.

**دويم جواب**:- القاعدون کښې الف لام دَ جنس دې دَ کوم دَ وجې نه چې مشابه دنکرې سره دې.

**دريم جواب**:- دَ القاعدون نه يومتعين قوم مرادنه دې لهذا هغه هم نكره دې معرفه به هله وې چې متعين قوم مراد وې. ښكاره خبره ده چې غير د القاعدون نه بدل دې او بدل مبدل منه كښې تعريف اوتنكير كښې مطابقت ضروری نه دې. او په غيرباندې نصب هم جائز دې د القاعدون نه دَ استثناء دَ وجې نه دې.

**قوله** منَ الزَّمَانَةِ دا دَللضرربيان دې.

**قوله**: مَنْصُوْبَانِ بِفِعْلِهِمَا الْمُقَدَّرِ يعنى مغفرةً ورحمةً دواړه دَخپل خپل فعل مقدر دَ وجې نه منصوب دی نه چې په اَجراً باندې د معطوف كيدو دَ وجې نه، تقديری عبارت دادې غفرالله لهم مغفرةً ورحمهم الله رحمةً.

**[اياتونه:۹۷-۱۰۰]**

وَنَزَلَ فِي جَمَاعَةٍ أَسْلَمُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا فَقُتِلُوا يوم بدر مع الكفار ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ﴾ بِالْمُقَامِ مع الكفار وترك الهجرة ﴿قَالُوا﴾ لَهُمْ مُوَبِّخِينَ ﴿فِيمَ كُنْتُمْ﴾ أَيْ فِي اي شَيْءٍ كُنْتُمْ فِي أَمْرِ دِينِكُمْ ﴿قَالُوا﴾ مُعْتَذِرِينَ ﴿كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ﴾ عَاجِزِينَ عَنْ إِقَامَةِ الدِّين ﴿فِي الْأَرْضِ﴾ أَرْضِ مَكَّةَ ﴿قَالُوا﴾ لَهُمْ تَوْبِيخًا ﴿أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا﴾ مِنْ أَرْضِ الْكُفْرِ إِلَى بَلَدٍ آخَرَ كَمَا فَعَلَ غيركم قال الله تعالى ﴿فَأُولَئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾ هِيَ ﴿إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ﴾ ﴿الَّذِينَ لا يستطيعون حيلة﴾ لَا قُوَّةَ لَهُمْ عَلَى الْهِجْرَةِ وَلَا نَفَقَةَ ﴿وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا﴾ طَرِيقًا إِلَى أَرْضِ الْهِجْرَةِ ﴿فأولئك عسى الله أن يعفو عنهم وكان الله عفوا غفورا﴾ ﴿وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا﴾ مُهَاجَرًا ﴿كَثِيرًا وَسَعَةً﴾ فِي الرِّزْقِ ﴿وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ﴾ فِي الطَّرِيقِ كَمَا وَقَعَ لجندع بْنِ ضَمْرَةَ اللَّيْثِيِّ ﴿فَقَدْ وَقَعَ﴾ ثبت ﴿أجره على الله وكان الله غفورا رحيما﴾

**ترجمه**:-(آئنده آيت) دَ يوې ډلې په باره كښې نازل شو چاچې اسلام قبول كړو خو هجرت ئې اونه كړو اودكافرانوسره په بدر كښې قتل كړې شو. بيشكه دَهغه خلقو روحونه كوم چې د كافرانوسره د اوسيدلو اود هجرت ترك كولو د وجې يئې په خپل ځان ظلم اوكړو. فرښتې (چې كله) روح قبض كوی نودَهغویَ نه توبيخًا تپوس كوی تاسو دَخپل دين په معامله كښې په كوم حال وئې؟ نوهغویَ عذربيانولوسره وائی چې مونږ دَ دين دَ قايمولو په معامله كښې دَ مكې په زمكه كښې كمزوری وو نو(فرښتې) به هغوی ته توبيخًا وائی ولې دَالله تعالى زمكه وسيع نه وه؟ چې تاسو په هغې كښې هجرت كړې وې يعنى دَ كافرانودَ مكې نه چرته بل خوامو هجرت كړې وې لكه چې نورو كړې دې. الله تعالى به فرمائى هم دغه خلق دی دَ چا ځائى چې دوزخ دې اوهغه ډيرخراب ځائى دې سوا دَهغه خلقو نه چې په سړو كښې، ښځو كښې، او ماشوماتوكښې كمزوري وی چې نه څه تدبيركولې شی اونه ورته دَ هجرت كولوڅه صورت مومی

نوداخلق داسې دی چې الله تعالی به دوی معاف کړی اوالله تعالی خودې ډیرمعاف کونکې اوډیربخښونکې اوڅوک چې دَالله تعالی په لار کښې هجرت اوکړی نو هغه به په زمکه کښې دَهجرت ځایونه دی او په رزق کښې وسعت بیامومی اوڅوک چې دَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ دَ خاطره هجرت کولوسره اوځی بیا په لارکښې هغه ته مرګ راشی لکه چې جندع بن ضمر ه لیثی ته پیښه شوې وه نودَهغه دَپاره په الله تعالی باندې اجر ثابت شو اوالله تعالی خودې ډیر بخښونکې او ډیرمهربان.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: قَالُوْالَهُمْ مُوَبِّخِيْنَ :**سوال**: دَ مُوَبِّخِيْنَ داضافې څه فائده ده؟

**جواب**: دَ مُوَبِّخِيْنَ دَ اضافه مقصد په سوال اوجواب کښې مطابقت پیداکول دی ځکه چې مُوَبِّخِيْنَ مخذوف اونه منلې شی نو.

**سوال**: فِيْمَ كُنْتُمْ؟ او **جواب**: كُنَّا مُسْتَضْعَفِيْنَ کښې مطابقت نه راځی ځکه چې سوال دې چې تاسو په څه څیزکښې وئې اوجواب دې مونږ کمزوری او عاجزوو. دا جواب دَ سوال مطابق نه دې او مُوَبِّخِيْنَ محذوف اومنلې شی نودا سوال نه شو بلکه دَهجرت دَپاره نه به وتلوباندې توبیخ وی مطلب دا شو چې تاسو دَهجرت دَپاره ولې اونه وتلئ؟ جواب ورکړې شو چې زمونږ دَ کمزورئ دَ وجې په هجرت باندې قدرت نه وو په دې وجه مونږ هجرت اونه کړو.

**قوله**: فی اَیِّ شَيْءٍ په دې کښې اشاره ده چې فِيْمَ کښې مَا استفهامیه ده نه چې موصوله

**قوله**: مُرَاغَماً، دَ باب مفاعله ظرف مکان دې معنی دَ منع کیدو ځائی، مقام هجرت، د مُرَاغَمًا، تفسیرپه مهاجراً سره کولو مقصد تعیین دَمعنی دې.

**قوله**: جُنْدُعِ بْنِ ضَمْرَةَ، بعض مفسرینو جندب بن ضمره لیکلې دې.

**[ایاتوله:۱۰۱-۱۰٤]**

(وَإِذَا ضَرَبْتُمْ) سَافَرْتُمْ (فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ) فِي (أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ) بِأَنْ تَرُدُّوهَا مِنْ أَرْبَعٍ إِلَى اثْنَتَيْنِ (إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ) أَيْ يَنَالَكُمْ بِمَكْرُوهٍ (الَّذِيْنَ كَفَرُوا) بَيَان لِلْوَاقِعِ إِذْ ذَاكَ فَلَا مَفْهُوم لَهُ وَبَيَّنَتْ السُّنَّة أَنَّ الْمُرَاد بِالسَّفَرِ الطَّوِيل وَهُوَ أَرْبَع بُرُد وَهِيَ مَرْحَلَتَانِ وَيُؤْخَذ مِنْ قَوْله (فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ) أَنَّهُ رُخْصَة لَا وَاجِب وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ (إِنَّ الْكَافِرِيْنَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا) بيني العداوة (وَإِذَا كُنْتَ) يَا مُحَمَّد حَاضِرًا (فِيْهِمْ) وَأَنْتُمْ تَخَافُونَ الْعَدُوّ (فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ) وَهَذَا جَرْي عَلَى عَادَة الْقُرْآن فِي الْخِطَاب (فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَّعَكَ) وَتَتَأَخَّر طَائِفَة (وَلْيَأْخُذُوا) أَيْ الطَّائِفَة الَّتِي قَامَتْ مَعَك (أَسْلِحَتَهُمْ) مَعَهُمْ (فَإِذَا سَجَدُوا) أَيْ صَلَّوْا (فَلْيَكُوْنُوا) أَيْ الطَّائِفَة الْأُخْرَى (مِنْ وَّرَآئِكُمْ) يَحْرُسُونَ إِلَى أَنْ تَقْضُوا الصَّلَاة

وَتَذْهَب هَذِهِ الطَّائِفَة تَحرُس ﴿وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ﴾ مَعَهُمْ إِلَى أَنْ تَقْضُوا الصَّلَاة وَقَدْ فَعَلَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَلِكَ بِبَطْنِ نَخْل رَوَاهُ الشَّيْخَانِ ﴿ود الذين كفروا لو تغفلون﴾ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاة ﴿عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً﴾ بِأَنْ يَحْمِلُوا عَلَيْكُمْ فَيَأْخُذُوكُمْ وَهَذَا عِلَّة الْأَمْر بِأَخْذِ السِّلَاح ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ﴾ فَلَا تَحْمِلُوهَا وَهَذَا يُفِيد إِيجَاب حَمْلهَا عِنْد عَدَم الْعُذْر وَهُوَ أَحَد قَوْلَيْنِ لِلشَّافِعِيِّ وَالثَّانِي أَنَّهُ سُنَّة وَرَجَحَ ﴿وَخُذُوا حِذْرَكُمْ﴾ مِنْ الْعَدُوّ أَيْ احْتَرِزُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ ﴿إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا﴾ ذَا إِهَانَة ﴿فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ﴾ فَرَغْتُمْ مِنْهَا ﴿فَاذْكُرُوا اللَّهَ﴾ بِالتَّهْلِيلِ وَالتَّسْبِيح ﴿قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ﴾ مُضْطَجِعِينَ أَيْ فِي كُلّ حَال ﴿فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ﴾ أَمِنْتُمْ ﴿فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ أَدُّوهَا بِحُقُوقِهَا ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا﴾ مَكْتُوبًا أَيْ مَفْرُوضًا ﴿مَّوْقُوتًا﴾ أَيْ مُقَدَّرًا وَقْتهَا فَلَا تُؤَخَّر عَنْهُ وَنَزَلَ لَمَّا بَعَثَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَائِفَة فِي طَلَب أَبِي سُفْيَان وَأَصْحَابه لَمَّا رَجَعُوا مِنْ أُحُد فَشَكَوْا الْجِرَاحَات ﴿ولا تهنوا﴾ تضعفوا ﴿في ابتغاء﴾ طلب ﴿القوم﴾ الْكُفَّار لِتُقَاتِلُوهُمْ ﴿إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ﴾ تَجِدُونَ أَلَم الْجِرَاح ﴿فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ﴾ أَيْ مِثْلكُمْ وَلَا يَجْبُنُونَ عَلَى قِتَالكُمْ ﴿وَتَرْجُونَ﴾ أَنْتُمْ ﴿مِنَ اللَّهِ﴾ مِنْ النَّصْر وَالثَّوَاب عَلَيْهِ ﴿مَا لَا يَرْجُونَ﴾ هُمْ فَأَنْتُمْ تَزِيدُونَ عَلَيْهِمْ بِذَلِكَ فَيَنْبَغِي أَنْ تَكُونُوا أَرْغَب مِنْهُمْ فِيهِ ﴿وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا﴾ بِكُلِّ شَيْء ﴿حَكِيمًا﴾ فِي صُنْعه

---

**ترجمه**:- او کله چې تاسو سفر کوئ نو په مونځ کښې قصر کولو کښې په تاسو هيڅ ګناه نشته. په دې توګه چې تاسو دَ څلورو رکعتو په ځائې دوه اوکړئ. که چرې تاسو ته انديښنه وی چې تاسو ته به تکليف پيښيږی او کافران به تاسو تنګ کړی دا دنزول دَ وخت دَواقعې بيان دې لهذا دَدې مفهوم مخالف مرادنه دې. اوسنت دا بيان کړې دې چې دَ سفرنه سفرطويل يعنی اوږد سفرمراددې اوهغه څلور بريده دی چې دَ دوومرحلوبرابردې اودَ الله تعالی قول ﴿فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ﴾ نه دا معلوميږی چې قصررخصت دې نه چې واجب اودَ امام شافعی رحمه الله هم دغه مذهب دې. يقينًا کافران ستاسو ښکاره دښمنان دی (يعنی) دَ هغوی دښمنی ښکاره شوې ده اواې محمد ﷺ کله چې تاسو په هغوی کښې موجودئې او تاته دَ دښمن ويره وی او (صحابه کرام وته) په جمع سره مونځ ورکوې او نبی عليه السلام ته خطاب دې (نه چې عاموخلقو ته) د قرآني اسلوب دَ خطاب مطابق دې لهذا دَدې مفهوم مخالف مرادنه دې نوپکاردی چې دَ (صحابه) يوه ډله تاسو سره (په مانځه کښې) اودريږی او (بله نوره ډله دَ دښمن دَ مقابلې دَپاره) روستوپاتې شی (يعنی په جمع کښې دې شريك نه وی) اوکومه ډله چې تاسو سره په (مانځه کښې) ولاړه وی هغوی سره دې هم وسله وی اوکله چې دا ډله په مانځه کښې مشغوله وی نو بلې ډلې له پکاردی چې هغوی دې ستاسو نه شاته دَ دښمن په مقابله کښې وی اوحفاظت دې کوی تردې چې دا ډله خپل مونځ پوره کړی او (اوس) دې دا ډله لاړه شی

او حفاظت دې کوي دويمه ډله کومې چې تردغه وخته پورې مونځ نه دې کړې هغوي دې تاسو سره مونځ اوکړي او دَ خپل بچاؤ او حفاظت سامان دې ځان سره واخلي تردې چې دا ډله هم مونځ پوره کړي او نبي کريم ﷺ په بطن نخله کښې هم داسې کړي وو. (رواه الشيخان) کافران غواړي چې کله تاسو مانځه ته اودريږئ چې تاسو په څه شان سره دَ خپلې وسلې او سامان نه غافل شئ نو هغوي په تاسو باندې ناڅاپي حمله اوکړي په داسې توګه چې په تاسو حمله اوکړي چې اچانك مو راګير کړي اودا دَ وسلې ځان سره د ساتلو دَ حکم علت دې. إلأ دا چې تاسو ته دَ باران دَ وجې نه زحمت پيښيږي ياتاسو بيماران يئ نو په دې کښې هيڅ حرج نشته چې تاسو وسله کوزه کيږدئ يعنى مسلح نه ئې. دَدې نه معلومه شوه چې دَعذر نه کيدو په صورت کښې وسله ځان سره ساتل واجب دي. اودَ امام شافعي دَ دواړو قولونو نه دا يوقول دې او دويم قول دادې چې وسله تړلې ساتل سنت دي اودې ته ترجيح ورکړې شوې ده. او دَ دښمن نه دَخپل حفاظت سامان ځان سره ساتئ (يعنى) ترکومې چې کيدې شي دَ دښمن نه محتاط اوسيږئ بيشکه الله تعالى دَ کافرانودَپاره يو رسوا کونکې عذاب تيار ساتلې دې. اوکله چې تاسو دَ مانځه نه فارغ شئ نو دَ تهليل اوتکبير په ذريعه دَالله تعالى ذکر کوئ په ولاړه په ناسته او په ملاسته (يعنى) په هرحال کښې. بيا چې کله تاسو په امن کښې شئ نو مونځ قايم کړئ دَهغې د حقوقو يعنى (ارکانو او شرائطو) سره ئې اداکوئ. يقيناً مونځ په مؤمنانو باندې په خپل مقرر وخت باندې فرض دې يعنى دَهغې په مقرر وخت کښې لهذا تاسو دَا دَهغې نه روستوکوئ مه. اوکله چې حضورپاك يوجماعت دَ غزوه احد نه فارغيدونه پس دَابوسفيان اودَهغه د ملګرو په تعاقب کښې روان کړو نوهغه خلقو دَ زخمونو(نه دردمندکيدو) شکايت اوکړو نودا آيت نازل شو اود کافرقوم په تعاقب کښې هغوي سره په جنګ کولو کښې همت مه بائيلئ که چرې تاسو ته تکليف رسيدلې وي يعنى د زخمونو تکليف وي نو هغوي ته هم ستاسو په شان تکليف رسيدلې دې لکه څنګه چه تاسو ته رسيدلې دې. او هغوي تاسو سره د جنګ کولو نه همت نه دې بائيللې اوتاسو دَالله تعالى نه د امداد اوپه (جهاد) باندې دَ ثواب اميد لرئ کوم چې هغوي نه لري. لهذا تاسو په دې طريقه په هغوي فوقيت لرئ نو تاسو له خو په جنګ کښې دَهغوي نه زيات راغب کيدل پکاردي او هم الله تعالى خودې چې دَ هرڅيز پيژندونکې او په صنعت کښې دَحکمت والا دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** بَيَانٌ لِلْوَاقِعِ، دَدې اضافې مقصد دَ خوارجو رد دې. دَ خوارجو په نيز دَ قصرمونځ دَپاره دَ ويرې شرط دې او استدلال دَالله تعالى د قول ﴿ إِنْ خِفْتُمْ ﴾ نه کوي؟.

**جواب:** دَ جواب حاصل دادې ﴿ إِنْ خِفْتُمْ ﴾ دَ زمانهٔ نزول دَ واقعې مطابق دې ځکه چې دَ نزول په زمانه کښې چې په عامه توګه مسلمانانو ته په سفرکښې دَ دښمن خطره پيښيدله

لهذا دغه مفهوم مخالف به مراد نه وي چې ګني که چرې ويره نه وي نو قصر به نه وي.

**قوله** بَيْنَ الْعَدَاوَةِ په دې کښې اشاره ده چې مُبِيْنًا متعدی په معنی د لازم دې.

**قوله**: الْمُبَاحِ د المباح قيد سره سفر د معصيت خارج کول مقصود دی.

**قوله** فَلَامَفْهُوْمَ لَهُ. د دې اضافي مقصد په امام ابويوسف رحمه الله باندې رد کول دی ځکه چې امام ابويوسف رحمه الله هم د دې آيت نه استدلال کوی چې د حضور پاک د وصال نه پس صلوة خوف جائز نه دې د نورو ائمه حضراتو په نيز جائز دې. پاتې شو رسول الله ﷺ ته خطاب نو دا د قرآنی عادت مطابق دې.

**نوټ**:- مګر د فقه په کتابونو کښې دا اختلاف ذکر نه دې. (کما قال القاضی وصاحب المدارك)

**قوله**: بِأَنْ يَحْمِلُوْا عَلَيْكُمْ فَيَأْخُذُوْكُمْ، دا د وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ علت دې يعنی وسله ځکه ځان سره ساتئ چې چرته داسې نه وی چې هغوی ناڅاپی په تاسو حمله اوکړی.

**قوله**: أَنتُمْ د تاکيد د پاره دې د پاره چې کافرانو طرف ته ذهن لاړ نه شی.

**اياتونه:۱۰۵-۱۱۲]**

---

وَسَرَقَ طُعْمَة بْن أُبَيْرِق دِرْعًا وَخَبَّأَهَا عِنْد يَهُودِيّ فَوُجِدَتْ عِنْده فَرَمَاهُ طُعْمَة بِهَا وَحَلَفَ أَنَّهُ مَا سَرَقَهَا فَسَأَلَ قَوْمه النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَادِل عَنْهُ وَيُبَرِّئَهُ فَنَزَلَ ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ﴾ الْقُرْآن ﴿بِالْحَقِّ﴾ مُتَعَلِّق بِأَنْزَلَ ﴿لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ﴾ اعلمك ﴿اللّٰه﴾ فِيهِ ﴿وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ﴾ كَطُعْمَة ﴿خَصِيمًا﴾ مُخَاصِمًا عنه ﴿واستغفر اللّٰه﴾ مما هممت به ﴿إن اللّٰه كان غفورا رحيما﴾ ﴿وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِينَ يَخْتَانُونَ أَنفُسَهُمْ﴾ يَخُونُونَهَا بِالْمَعَاصِي لِأَنَّ وَبَال خِيَانَتهمْ عَلَيْهِمْ ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ خَوَّانًا﴾ كَثِير الْخِيَانَة ﴿أَثِيمًا﴾ أَيْ يُعَاقِبهُ ﴿يَسْتَخْفُونَ﴾ أَيْ طُعْمَة وَقَوْمه حَيَاء ﴿مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ﴾ بِعِلْمِهِ ﴿إِذْ يُبَيِّتُونَ﴾ يُضْمِرُونَ ﴿مَا لَا يَرْضَىٰ مِنَ الْقَوْلِ﴾ مِنْ عَزْمهمْ عَلَى الْحَلِف عَلَى نَفْي السَّرِقَة وَرَمْي الْيَهُودِيّ بِهَا ﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا﴾ عِلْمًا ﴿هَا أَنتُمْ﴾ يَا ﴿هَٰؤُلَاءِ﴾ خِطَاب لِقَوْمِ طُعْمَة ﴿جادلتم﴾ خاصمتم ﴿عنهم﴾ أَيْ فِي طُعْمَة وَذَوِيهِ وَقُرِئَ عَنْهُ ﴿فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ إِذَا عَذَّبَهُمْ ﴿أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا﴾ يَتَوَلَّى أَمْرهمْ وَيَذُبّ عَنْهُمْ أَيْ لَا أَحَد يَفْعَل ذلك ﴿وَمَن يَعْمَلْ سُوءًا﴾ ذَنْبًا يَسُوء بِهِ غَيْره كَرَمْيِ طُعْمَة الْيَهُودِيّ ﴿أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ﴾ يَعْمَل ذَنْبًا قَاصِرًا عَلَيْهِ ﴿ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ﴾ مِنْهُ أَيْ يَتُبْ ﴿يَجِدِ اللّٰهَ غَفُورًا﴾ لَهُ ﴿رَّحِيمًا﴾ بِهِ ﴿وَمَن يَكْسِبْ إِثْمًا﴾ ذَنْبًا ﴿فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُ عَلَىٰ نَفْسِهِ﴾ لِأَنَّ وَبَاله عَلَيْهَا وَلَا يَضُرّ غَيْره ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ فِي صُنْعه ﴿وَمَن يَكْسِبْ خَطِيئَةً﴾ ذَنْبًا صَغِيرًا ﴿أَوْ إِثْمًا﴾ ذَنْبًا كَبِيرًا ﴿ثُمَّ يَرْمِ بِهِ بَرِيئًا﴾ مِنْهُ ﴿فَقَدِ احْتَمَلَ﴾ تَحَمَّلَ ﴿بُهْتَانًا﴾ بِرَمْيِهِ ﴿وَإِثْمًا مُّبِينًا﴾ بينا بكسبه

---

**ترجمه**:- طعمه بن اُبَيرق يوه زغره پټه کړې وه او يو يهودی سره ئې پټه ايخې وه. هغه

زغره دَ يهودی نه برآمدشوه. طعمه دَ زغرې الزام په يهودی باندې اولګولو اوقسم ئې اوخوړلوچې ما زغره نه ده پټه کړې، دَ طعمه خاندان والو حضور پاك ته درخواست اوکړو چې طعمه بچ کړی اوهغه بری اوګرځوی وه نو (آئنده) آيت نازل شويقينًا مونږ په تاباندې کتاب قرآن په حق سره نازل کړې دې. بالحق، د أنزلنا متعلق دی دې دپاره چې په دغه معامله کښې الله تعالى تاته څه خودلی دی دهغې مطابق دَ خلقو فيصله اوکړه او دَ خيانت کونکو مثلاً طعمه دفاع مه کوه او تاچې کومه اراده کړې ده دَهغې نه استغفار اوکړه. بيشکه الله تعالى ډير لوئی بخښونکې او ډير لوئی رحم کونکې دې. اودَهغه خلقو وکالت مه کوه چې په خپل حق کښې خيانت کوی (يعنی) دَ معاصی په ذريعه خپلو نفسونوسره خيانت کوی. ځکه چې دَ هغوئ دَ خيانت وبال پخپله هم په هغوی باندې راپريوځی. الله تعالى هيڅ يو داسې کس نه خوښوی چې خيانت کونکې اوګناهګاروی. يعنی هغه ته به سزاورکوی. طعمه اودَهغه دَ قوم خلق دَ شرم دَ وجې نه دَ خلقو نه پټيږی مګر دَ الله تعالى نه پټيدې نه شی ځکه چې هغه هغوی سره دې دَهغوی راز پيژنی کله چې هغوی دَ شپې د ناخوښه خبرې يعنی دَ غلا نه انکار او دَ زغرې دَغلا الزام په يهودی باندې دَ اچولو مشوره کوی. اوڅه چې کوی الله تعالى دَهغې علمی احاطه کړې ده تاسو هغه خلق يئی دا دَ طعمه قوم ته خطاب دې چې په دنياکښې خوتاسودَهغه دَ طرف نه دفاع اوکړه اودَ عنهم په ځائی عنه هم لوستلې شوې دې ليکن دَالله تعالى په مخکښې به دَ قيامت په ورځ دَ ده دفاع څوک اوکړی؟ کله چې هغوئ له عذاب ورکړی اوڅوک به دَ هغه وکيل جوړشی؟ يعنی دَهغه دَ معاملې کفالت به اوکړی. اودَهغه دفاع به اوکړی. يعنی هيڅوك به دا کارنه کوی څوک چې څه بدی اوکړی چې هغې سره نورو خلقوته تکليف اورسی لکه دَ طعمه په يهودی باندې الزام لګول يا په خپل ځان ظلم اوکړی چې هم هغه پورې محدود وی بيادهغې نه ته استغفار اوکړی يعنی توبه اوکړی نوهغه به الله تعالى دَخپل ځان دَپاره بخښونکې او په خپل ځان باندې رحم کونکې اومومی. او څوک چې څه ګناه کوی نو دَخپل ځان دَپاره ئې کوی ځکه چې دَهغې وبال به هم په هغه باندې وی او نورو ته نقصان نه ورکوی اوالله تعالى ښه پيژندونکې او په خپل صنعت کښې باحکمت دې. اوچاچې څه وړه يا لويه ګناه اوکړه اوبيائی هغه ګناه دَ يوبې ګناه په سر وراوتپله نوهغه دَ ډيرلوئی بهتان متحمل شو او په خپل عمل سره ئی ښکاره ګناه اوکړه.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: طُعِمَة، بتثليث الطاء، والكسر أشهر.

**قوله**: ابن أُبَيْرِق، همزه مضمومه او باء موحده اوپه راء مکسور سره دا غيرمنصرف دې.

**قوله**: وخَبَّاهَا، أی الدِّرْعَ درع کوم چې دَ اوسپنې وی مؤنث دې او دَ درع په معنی د څادر (څادر لوپټه وغيره) مذکردې.

**قوله**: عَلَّمَكَ،په دې کښې اشاره ده چې رؤيت په معنى دَعلم دې اوعلم په معنى دَ معرفت دې ګنې متعدى به درې مفعولو ته کيدل ضرورى دى کوم چې موجودنه دى.

**قوله**: فِيهِ، ضميرد ما طرف ته راجع دې.

**قوله**: مِمَّا هَمَّتْ اى بقطع يد اليهودى.

**قوله**: بِالْمَعَاصِي،د خيانت نه مراد معصيت دې دې دَپاره چې په دې کښې دَطعمه طرف دارشامل شى ځکه چې جرم د خيانت خوصرف د طعمه نه صادرشوې وو.

**قوله**: حَيَاءً په دې کښې اشاره ده چې استخفاء په معنى د حَيَاء ده دې دَپاره چې مشاکلت پيداشى ځکه چې لايستخفون من الله کښې استخفاء په معنى دَحياء ده ځکه چې استخفاء، دَالله تعالى نه محال ده لهذا دَدې د نفى نه هيڅ فائده نشته.

**قوله**: قُرِئَ عنه،يعنى دَعنهم په ځائى عنه هم په يوقراءت کښې لوستلې شوې دې اى عن طُعْمَة.

**قوله**: تَحَمَّلَ، دَاحتمل تفسير يې په تَحَمَّلَ سره کړې دې ځکه چې تَفَعُّل اخذ فى الاثم کښې زيات مشهوردې.

**قوله**: بَيِّنًا، په دې کښې اشاره ده چې متعدى په معنى د لازم دې.

**[اياتونه:۱۱۳-۱۱۵]**

{وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {وَرَحْمَتُه} بِالعِصْمَةِ {لَهَمَّتْ} اَضْمَرَتْ {طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ} مِنْ قَوْم طُعْمَة {أَنْ يُضِلُّوكَ} عَنِ الْقَضَاءِ بِالْحَقِّ بِتَلْبِيسِهِمْ عَلَيْكَ {وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّونَكَ مِن} زائدة {شىء} لأن وبال ذلك اِضْلَالِهِمْ عَلَيْهِمْ {وَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْكَ الْكِتَابَ} القُرْآن {وَالْحِكْمَةَ} مَا فِيهِ مِنَ الْأَحْكَامِ وَالغَيْب {وَكَانَ فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ} بذلك وغيره {عظيما} {لَا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِنْ نَجْوَاهُمْ} أَيْ النَّاس أَيْ مَا يَتَنَاجَوْنَ فِيهِ وَيَتَحَدَّثُونَ {إِلَّا} نَجْوَى {مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ} عَمَل بِرّ {أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ} المذكور {ابْتِغَاءَ} طلب {مَرْضَاتِ اللَّهِ} لَا غَيْره مِنْ أُمُورِ الدُّنْيَا {فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ} بالنون والياء اي الله {أَجْرًا عَظِيمًا} {وَمَنْ يُشَاقِقِ} يُخَالِف {الرَّسُولَ} فِيمَا جَاءَ بِهِ مِنَ الْحَقِّ {مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى} ظَهَرَ لَهُ الْحَق بِالْمُعْجِزَاتِ {وَيَتَّبِعْ} طَرِيقًا {غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ} أَيْ طَرِيقهم الَّذِي هُمْ عَلَيْهِ مِنَ الدِّين بِأَنْ يَكْفُر {نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى} نَجْعَلهُ وَالِيًا لِمَا تَوَلَّاهُ مِنَ الضَّلَال بان نخلي بينه وبينه في الدنيا {وَنُصْلِهِ} نُدْخِلهُ فِي الْآخِرَة {جَهَنَّمَ} فَيَحْتَرِق فِيهَا {وَسَاءَتْ مَصِيرًا} مَرْجِعًا هِيَ

**ترجمه**:- اې محمد ﷺ که په باندې دَالله تعالى فضل او دَحفاظت مهربانى نه وه نودَ (طعمة ابن ابيرق) دَ قوم يوې ډلې تالره دَحق فيصله کولو نه په اشتباه کښې اچولوسره دَ دهوکه کولو اراده کړې وه. مګر په اصل کښې داخلق خپل ځان ګمراه کوى او دا خلق ستا هيڅ نقصان نه

شی کولی. مِن زائده دي دګمراه کولوبال پخپله هم په دوی باندي دي اوالله تعالی په تاباندي کتاب قرآن اوحکمت په کوم کښي چي احکام دی نازل کړي دي اوتاته ئی هغه احکام او مغیبات اوخودل کوم چي تا نه پيژندل. اودَ الله تعالی په تاباندي دا اودَدي نه علاوه بوډيرلوي فضل دي. دَدي خلقو په خفیه مشوروکښي اکثرڅه خیرنشته یعنی په کوم کښي چي دوی غوړايستني او خبري اتري کوی(په دي کښي هيڅ خيرنشته) اودَهغه چا په مشوره کښي چي دَ صدقي یا د څه کارخیر خفیه مشوره اوکړی یا دَ خلقو په مینځ کښي دَ اصلاح مشوره اوکړی (نیکی ده) اوڅوک چي دغه مذکوره کارونه دَالله تعالی دَخوشحالولودَپاره اوکړی نه چي دَ بل څه دنیاوی غرض دَپاره نو مونږ به هغه ته ضرور اجر عظیم ورکړو. (نؤتیه) کښي یا، او نون دواړه دی یعنی الله او کوم کس چي په هغه حق کښي کوم چي رسول راوړي دي دَمعجزاتو په ذریعه دَ هدایت لاره ښکاره کیدو نه پس(هم) دَ رسول مخالفت اوکړی اوکوم چي دَ(عام) ایمان والا لار پريږدی دَ نورو لار اختیارکړی یعنی هغه دین لار پريږ دی په کوم چي دوی دي په داسي توګه چي دَدي نه انکاراوکړی نومونږ به هغه هم په هغه کولوسره پريږدو کوم چي هغه کوی یعنی مونږ به هغه هم دَهغه ګمراه والی جوړکړو دَ کوم چي هغه والی جوړشوي دي په داسي طریقه چي مونږ به هغه اودَهغه اختیارکړي شوي په دنیاکښي دګمراهئی په مینځ کښي آزاد پريږدو اوهغه به په آخرت کښي په دوزخ کښي داخل کړ دي دَپاره چي په هغي کښي اوسوزی اوهغه ډير خراب ځائی دي.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله.** لَهَمَّتْ،دا دَ لولافضل الله جواب دي.

**سوال** لولا دَ وجود اول دَ وجي نه په امتناع ثانی باندي دلالت کوی مطلب داشوچي دَالله تعالی دَ فضل دَ وجي نه هغه خلقو ستاسو دَ بي لاري کولو اراده اونه کړه حالانکه هغوی اراده کړي وه؟.

**جواب:** دلته دَ ارادي نه مراد هغه اراده ده چي مع الفلال وی. اوس مطلب داشو چي دَالله تعالی دَ فضل دَ وجي نه اضلال مقصود منتفی شو.

**قوله:** مِنْ زَائِدَةٌ،ځکه چي يَضُرُّ متعدی بنفسه بدومفعول دي. تقدیری عبارت دادي وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شيْئٍ.

**قوله:** مَا يَتَنَاجَوْنَ فيه،په دي کښي اشاره ده چي نجوی مصدر په معنی د اسم مفعول دي.

**قوله.** اِلاَّ نَجْوَی، نجوی مضاف محذوف منلوسره يئ اشاره اوکړه چي حذف دَ مضاف نه بغیرد مَا يَتَنَاجَوْنَ نه مِنْ اَمَرَ استثناء صحیح نه ده.

[اياتونه: ۱۱٥ - ۱۲٦]

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ ۚ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا﴾ عَنِ الحق ﴿إِن﴾ ما ﴿يَدْعُونَ﴾ يَعْبُد الْمُشْرِكُونَ ﴿مِن دُونِهِ﴾ أَيِ اللَّهِ أَيْ غَيْرِه ﴿إِلَّا إِنَاثًا﴾ أصنامًا مؤنثة كاللات والعُزّى ومَناة ﴿وَإِن﴾ ما ﴿يَدْعُونَ﴾ يَعْبُدُونَ بِعِبَادَتِهَا ﴿إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا﴾ خارجًا عَنِ الطَّاعة لِطَاعَتِهِمْ لَهُ فِيهَا وَهُوَ إِبْلِيس ﴿لَّعَنَهُ اللَّهُ﴾ أبعده عَنْ رَحْمَته ﴿وَقَالَ﴾ أَيِ الشَّيْطَان ﴿لَأَتَّخِذَنَّ﴾ لأجعلن لي ﴿مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا﴾ حَظًّا ﴿مَّفْرُوضًا﴾ مقطوعًا أدعوهم إِلَى طَاعَتِي ﴿وَلَأُضِلَّنَّهُمْ﴾ عَنِ الْحَقّ بِالْوَسْوَسَةِ ﴿وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ﴾ أُلْقِي فِي قُلُوبِهِمْ طُول الْحَيَاة وَأَنْ لَا بَعْث وَلَا حِسَاب ﴿وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ﴾ يُقَطِّعُنَّ ﴿آذَانَ الْأَنْعَامِ﴾ وَقَدْ فَعَلَ ذَلِكَ بِالْبَحَائِرِ ﴿وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللَّهِ﴾ دِينه بِالْكُفْرِ وَإِحْلَال مَا حَرَّمَ اللَّه وَتَحْرِيم مَا أَحَلَّ ﴿وَمَن يَتَّخِذِ الشَّيْطَانَ وَلِيًّا﴾ يَتَوَلَّاهُ يُطِيعهُ ﴿مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْره ﴿فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِينًا﴾ بَيِّنًا لِمَصِيرِهِ إِلَى النَّار المؤبدة عليه ﴿يَعِدُهُمْ﴾ طُول الْعُمُر ﴿وَيُمَنِّيهِمْ﴾ نَيْل الْآمَال فِي الدُّنْيَا وَأَنْ لَا بَعْث وَلَا جَزَاء ﴿وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ﴾ بِذَلِكَ ﴿إِلَّا غُرُورًا﴾ بَاطِلًا ﴿أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا﴾ معدلا ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا﴾ أَيْ وَعَدَهُمُ اللَّه ذَلِكَ وَحَقّه حَقًّا ﴿وَمَنْ﴾ أَيْ لَا أحد ﴿أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلًا﴾ أَيْ قَوْلًا وَنَزَلَ لَمَّا افْتَخَرَ الْمُسْلِمُونَ وَأَهْل الْكِتَاب ﴿لَّيْسَ﴾ الأمر منوطا ﴿بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَا أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتَابِ﴾ بَلْ بِالْعَمَلِ الصالح ﴿مَن يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ﴾ إِمَّا فِي الْآخِرَة أَوْ فِي الدُّنْيَا بِالْبَلَاءِ وَالْمِحَن كَمَا وَرَدَ فِي الْحَدِيث ﴿وَلَا يَجِدْ لَهُ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْره ﴿وَلِيًّا﴾ يَحْفَظهُ ﴿وَلَا نَصِيرًا﴾ يمنعه منه ﴿وَمَن يَعْمَلْ﴾ شَيْئًا ﴿مِنَ الصَّالِحَاتِ مِن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ﴾ بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَالْفَاعِل ﴿الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ نَقِيرًا﴾ قَدْر نقرة النواة ﴿وَمَنْ﴾ أَيْ لَا أَحَد ﴿أَحْسَنُ دِينًا مِّمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ﴾ أَيْ انْقَادَ وَأَخْلَصَ عَمَله ﴿لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ مُوَحِّد ﴿وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ﴾ الْمُوَافِقَة لِمِلَّةِ الْإِسْلَام ﴿حَنِيفًا﴾ حَال أَيْ مَائِلًا عَنْ الْأَدْيَان كُلّهَا إِلَى الدِّين الْقَيِّم ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾ صَفِيًّا خَالِص الْمَحَبَّة لَهُ ﴿وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا ﴿وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطًا﴾ عِلْمًا وَقُدْرَة أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بذلك

**ترجمه:-** الله تعالى به هيڅ كله معاف نه كړي دا خبره چې هغه سره شريک جوړ كړې شي (او) دَ شرك نه علاوه ګناه دَ چا دَ پاره چې اوغواړي معاف يې به كړي او څوك چې الله تعالى سره شرك پيدا كوي هغه دَ حق نه ډير لرې پريوځي. مشرك الله تعالى پريږدي او دَ ښځو يعني (بتانو) بندګى (عبادت) كوي لكه چې ځنګه لات، عزىٰ او مناة دَ دوى عبادت نه دې مګر دَ سركش شيطان عبادت دې كوم چې دَ طاعت دَ حدنه خارجيدونكې دې. دَ بتانو په عبادت كښې د دمشركانو د سيطان خبره منلو دَ وجې نه او هغه ابليس دې الله تعالى په هغه لعنت فرمائيلې دې يعنى هغه ئى دَ خپل رحمت نه لرې كړې دې. او هغه شيطان وئيلى دى چې زه به ستا په بنديګانو كښې خپله حصه اخلم (يعنى) زه به هغوى له دَ خپل اطاعت دعوت وركوم او زه به دَ

وسوسو په ذریعه به هغوی دَ حق نه ضرور گمراه کوم اوزه به په هغوی دَ اوږدژوند (باطل خواهش ضرور اچوم او دا چې بعث اوحساب نشته. او دا چې زه به هغوی ته حکم ورکوم چې دَ ځناورو په غوږونو کښې چاؤدې اوکړې چنانچه داسې په بحائرکښې اوکړې شو (بحیره هغه اوښه چې څلورخل ئې نران راوړلونه پس په پنځم خل ماده بچې راوړی وی) اوزه به هغوی ته وایم چې دَالله تعالی مخلوق (یعنی) دَ هغه دین دکفرپه ذریعه اوحرام کړې شوی حلالولو اوحلال لره حرامولوسره بدل کړی. اوکوم کس چې الله تعالی پرېږدی او شیطان دوست جوړوی یعنی هغه سره دوستی کوی اودَ هغه اطاعت کوی هغه به یقینًا په ښکاره نقصان کښې پرېوځی. دَهغه دَ همیشه والا عذاب ته دَ ورتللودَ وجې هغه به دَدوی سره ټول ژوند (زبانی) وعدې کوی اوهغوی ته به په دنیاکښې دَ تمنا پوره کیدو امید ورکوی او دا چې بعث اوحساب هیڅ نشته. هغوی سره دَ شیطان وعدې سراسر د دهوکې دی دا هغه خلق دی چې دَدوی ځائی دوزخ دې دَ چرته نه چې به هغوی ته خلاصې نه ملاوېږی اوڅوک چې ایمان راوړی اونیک عملونه کوی نوموږ به هغوی په داسې جنت کښې داخل کړو په کوم کښې چې به نهرونه جاری وی اوهغوی به په کښې دَهمیشه همیشه دَپاره وی دَالله تعالی وعده حق ده یعنی الله تعالی هغوی سره وعده کړې ده چې سراسرحق ده اودَ الله تعالی نه رښتیاخبره دَ چاکیدې شی؟ دَ چاهم نه اوکله چې مسلمانانواواهل کتاب فخراوکړو نو (آئنده) آیت نازل شو اودَ (ایمان اوطاعت مدار (اې مسلمانانو) نه ستاسو په آرزوګانو دې او نه دَاهل کتاب په آرزوګانو بلکه په نیک عمل باندې دې څوک چې بدعمل کوی هغه ته به سزا ورکولې شی یا خو په آخرت کښې اویا په دنیاکښې په ازمیښت اومحنت سره لکه چې په حدیث کښې راغلی دی هغه به دَ الله تعالی نه علاوه بل هیڅوک خپل دوست اونه وینی چې دَهغه حفاظت اوکړې شی اونه څوک امدادی چې دَهغه دفاع اوکړې شی او څوک چې څه هم نیک عمل کوی که هغه سړی وی اوکه ښځې او مؤمن هم وی نوداسې ټول خلق به جنت ته ځی. (یدخلون) مجهول اومعرف دواړه دی او په هغوی به دَیو ذرې برابر (یعنی) په اندازه دَ هډوکی دَ چاؤدی هومره ظلم نه کیږی او په دین کښې دَهغه چا نه بهترڅوک دی؟ هیڅوک نه. څوک چې خپل مخ د الله تعالی طرف کړی یعنی دَهغه حکم منونکې شی اوخپل عمل (دَ الله) دَپاره خالص کړی اوهغه محسن موحد هم وی اودَ ابراهیم علیه السلام دَ نیغې لارې والا مذهب کوم چې دَ اسلامی ملت مطابق دې تابعداری اوکړی، حال دا چې هغه دَ ټولو دینونونه بې رخی اوکړی اودَ صحیح دین طرف ته رخ کړی او الله تعالی خو ابراهیم علیه السلام خپل دوست جوړکړو یعنی هغه سره خالص محبت کونکې اوهم دَالله تعالی ملک دې څه چې په زمکواو آسمانونوکښې دی دَ ملکیت په اعتبارسره او دَ تخلیق په اعتبارسره اودَ مملوکیت په اعتبارسره او الله تعالی دَهرڅیز علم او قدرت په اعتبارسره احاطه کړی ده یعنی هغه دغه صفت سره دَهمیشه دَپاره متصف دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: مَرِيْداً، (ن، ك) صفت مشبه، سرکش، دَهرخیرنه خالی، ﴿ اِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ ﴾ دا کلام مستانف دې دَ شرك دنه معاف کولودَ تاکید دَپاره راوړلې شوې دې.

**قوله**: لَعَنَهُ اللهُ، دا دَ شیطان دویم صفت دې اول مېنځا دې.

**قوله**: اَمُنِّيَنَّهُمْ، زه به هغوی ته اومیدونه ورکوم دَهغوی په زړونوکښې به اوږده اوږده خواهشات راپیدا کوم. تمنیٰ نه مضارع واحد متکلم بانون تاکید ثقیله.

**قوله**: يُبَتِّكُنَّ، مضارع جمع مذکر غائب بانون تاکید ثقیله. تبتك (تفعیل) ماده بَتْكٌ دغوږ به ډیر پرې کوی.

**قوله**: بَحَائِر،دَ بَحیرة جمع ده هغه اوښه چې مسلسل څلورنران راوړی او په پنځم څل ماده راوړی دَداسې اوښې غوږ به ئې څیرې کړو اودَ بتانو په نوم به ئې آزاده کړه اودَهغې نه خدمت اخستل به ئې ګناه ګڼرله دَ بحر په ماده کښې چونکه د وسعت اودکثرت معنی ملحوظ ده په دې وجه چې دکومې اوښې په ښه شان سره غوږ څیرلې شوې وی هغې ته بحیره وائی دا فعیل په معنی د مفعول دې.

**قوله**: دِيْنَهُ،د خلق تفسر په دین سره کولوکښې دَ یوسوال جواب ته اشاره ده.

**سوال**: دَ مشرکانو خویو دین هم حق نه وو بیا دَهغې دَ بدلولو څه مطلب دې؟

**جواب**: دَ دین نه مراد دین فطرت دې چې په هرکس کښې دننه موجود دې الله تعالی فرمائیلی دی ﴿ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللهِ اَيْ لِدِيْنِ اللهِ ﴾

**قوله**: يَعِدُهُمْ،او يُمَنِّيْهِمْ دَدې دواړو مفعول محذوف دې کوم چې مفسرعلام ظاهرکړې دې.

**قوله**: عَنْهَا مَحِيْصًا، عنها دَمحذوف متعلق دې اودَ مَحِيْصًا نه حال دې أی کائنا عَنْهَا،عَنْهَا دَ يَجِدُوْنَ متعلق ځکه نه شی کیدې چې دَ يجدون صله عن نه راځی اونه دَمحيصًا متعلق کیدې شی ځکه چې محيصًا خو یا اسم مکان دې چې عمل نه کوی یامصدردې اودَ مصدرمعمول په مصدرباندې مقدم کیدې نه شی.

**[ایاتونه:۱۲۷ - ۱۳٤]**

{وَيَسْتَفْتُوْنَكَ} يَطْلُبُوْنَ مِنْكَ الْفَتْوٰى {فِي} شَأْنِ {النِّسَآءِ} وَمِيْرَاثِهِنَّ {قُلْ} لَهُمْ {اللهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ} الْقُرْآنِ مِنْ آيَةِ الْمِيْرَاثِ وَيُفْتِيْكُمْ أَيْضًا {فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ} فُرِضَ {لَهُنَّ} مِنَ الْمِيْرَاثِ {وَتَرْغَبُوْنَ} أَيُّهَا الْأَوْلِيَاءُ عَنْ {أَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ} لِدَمَامَتِهِنَّ وَتَعْضُلُوْهُنَّ أَنْ يَتَزَوَّجْنَ طَمَعًا فِيْ مِيْرَاثِهِنَّ أَيْ يُفْتِيْكُمْ أَنْ لَا تَفْعَلُوْا ذٰلِكَ {وَ} فِيْ {الْمُسْتَضْعَفِيْنَ} الصِّغَارِ {مِنَ الْوِلْدَانِ} أَنْ

تعطوهم حقوقهم (و) يامركم (أن تقوموا لليتامى بالقسط) بالعدل في الميراث والمهر (وما تفعلوا من خير فإن الله كان به عليما) فيجازيكم به (وإن امرأة) مرفوع بفعل يفسره (خافت) توقعت (من بعلها) زوجها (نشوزا) ترفعا عليها بترك مضاجعتها والتقصير في نفقتها وطموح عينه إلى أجمل منها (أو إعراضا) عنها بوجهه (فلا جناح عليهما أن يصالحا) فيه إدغام التاء في الأصل في الصاد وفي قراءة يصلحا من أصلح (بينهما صلحا) في القسم والنفقة بأن تترك له شيئا طلبا لبقاء الصحبة فإن رضيت بذلك وإلا فعلى الزوج أن يوفيها حقها أو يفارقها (والصلح خير) من الفرقة والنشوز والإعراض قال تعالى في بيان ما جبل عليه الإنسان (وأحضرت الأنفس الشح) شدة البخل أي جبلت عليه فكأنها حاضرته لا تغيب عنه المعنى أن المرأة لا تكاد تسمح بنصيبها من زوجها والرجل لا يكاد يسمح عليها بنفسه إذا أحب غيرها (وإن تحسنوا) عشرة النساء (وتتقوا) الجور عليهن (فإن الله كان بما تعملون خبيرا) فيجازيكم به (ولن تستطيعوا أن تعدلوا) تسووا (بين النساء) في المحبة (ولو حرصتم) على ذلك (فلا تميلوا كل الميل) إلى التي تحبونها في القسم والنفقة (فتذروها) أي تتركوا الممال عنها (كالمعلقة) التي لا هي أيم ولا هي ذات بعل (وإن تصلحوا) بالعدل بالقسم (وتتقوا) الجور (فإن الله كان غفورا) لما في قلبكم من الميل (رحيما) بكم في ذلك (وإن يتفرقا) أي الزوجان بالطلاق (يغن الله كلا) عن صاحبه (من سعته) أي فضله بأن يرزقها زوجا غيره ويرزقه غيرها (وكان الله واسعا) لخلقه في الفضل (حكيما) فيما دبر لهم (ولله ما في السماوات والأرض ولقد وصينا الذين أوتوا الكتاب) بمعنى الكتب (من قبلكم) أي اليهود والنصارى (وإياكم) يا أهل القرآن (أن) أي بأن (اتقوا الله) خافوا عقابه بأن تطيعوه (و) قلنا لهم ولكم (إن تكفروا) بما وصيتم به (فإن لله ما في السماوات وما في الأرض) خلقا وملكا وعبيدا فلا يضره كفركم (وكان الله غنيا) عن خلقه وعبادتهم (حميدا) محمودا في صنعه بهم (ولله ما في السماوات وما في الأرض) كرره تأكيدا لتقرير موجب التقوى (وكفى بالله وكيلا) شهيدا بأن ما فيهما له (إن يشأ يذهبكم) يا (أيها الناس ويأت بآخرين) بدلكم (وكان الله على ذلك قديرا) (من كان يريد) بعمله (ثواب الدنيا فعند الله ثواب الدنيا والآخرة) لمن أراده لا عند غيره فلم يطلب أحدكم الأخس وهلا طلب الأعلى بإخلاصه له حيث كان مطلبه لا يوجد إلا عنده (وكان الله سميعا بصيرا)

---

**ترجمه**:- او (خلق) تاسو نه دښځو اودهغوی دَ میراث په باره کښې دَفتوي تپوس کوی ته هغوی ته اووایه چې الله تعالی تاسو ته دَهغوی په باره کښې فتوی درکوی او هغه هم دغه ده کومه چې تاسو ته په قرآن کښې دَ میراث په آیت کښې لوستلو سره اوروليې شی. اوهغه تاسو ته دَهغه یتیمانو په ښځوباره کښې هم فتوی درکوی کوموته چې تاسو دَهغوی دَ میراث مقرره حصه نه ورکوئی او اې اولیاؤ تاسو دَهغوی بدرنګوالی دَ وجې نه. هغوی سره د نکاح کولونه ډډه کوئی او تاسودَهغوی دَ میراث دَ لالچ دَ وجې نه هغه د نکاح کولونه هم منع کوئی هغه

تاسو ته فتویٰ درکوی چې داسې مه کوئی. (اوتاسوته) دَ کمزوری ماشومانو په باره کښې فتویٰ درکوی) چې تاسو دَهغوی حقوق اداکړئی اوتاسوته (دَدې هم) حکم درکوی چې تاسو یتیمانوسره دَمیراث او مهر په معامله کښې دَانصاف نه کار واخلئ اوتاسو چې څه هم نیک کاراوکړئی بیشکه الله تعالی دَهغې نه ښه خبر دې. په هغې به تاسو ته بدله درکړی. که ښځې ته دَ خاوندد طرف نه دَ زیاتی اندیښنه وی په هغې باندې دَ اوچتوالی دَ وجې نه چې هغه دَ بسترې نه جدا کړی یاهغې سره دَ بغض دَ وجې نه دَهغې په نفقه کښې کمې اوکړی یا دَهغه د نظر دَهغې نه زیاتی ښائسته ښځې طرف ته اوچتیدو یا دَهغې نه دَ بې رخئ کولو اندیښنه وی نوکه دواړه په خپل مینځ کښې په خپل نمبر او نفقه کښې صلح اوکړی په دې طریقه چې خاوند ته دَ صحبت باقی ساتلودَپاره څه رعایت ورکړی که ښځه ئی په دې باندې راضی شی نوتیك ده ګنی په خاوند باندې دَهغې حق اداکول واجب دی یادې هغه پریږدی نو په هغوی څه ګناه نشته. په دې کښې په اصل کښې دَ تاء په صاد کښې ادغام دې او په یوقراءت کښې یُصْلِحَا دې أَصْلَحَ نه او صلح دَ جدائې او نافرمانئ او بې رخئ نه بهتره. او الله تعالی دَانسانی پیدائش فطرت بیانولوسره اوفرمائیل اوطمع په هرنفس کښې شامل کړې شوې ده یعنی دَ بخل ډیروالې، او نفوس هم په دې باندې پیدا کړې شوی دی لکه چې هغه بخل هروخت موجود وی یووخت هم دَده نه جدا کیږی نه. معنی دا ده چې ښځه دَخپل خاوند نه دَخپلې حصې نه دَ لاس اخستلودَپاره تیاره نه ده اوسړې چې بلې سره محبت کوی نوهغه دَ خپل ذات باره کښې ښځې ته دَ رعایت ورکولودَپاره تیارنه وی اوکه تاسو ښځو سره دَ ښه ژوند تیرولومعامله اوکړئی اوپه هغوی باندې دَ ظلم کولونه ځان اوساتئی نوځه چې تاسو کوئی الله تعالی په هغې باندې ښه خبردار دې دَ کومې چې به هغه تاسو ته بدله درکړی. اوتاسو نه خو به داچرې هم اونه شی چې تاسو دَ ښځو په محبت کښې مساوات اوکړئی ښځې سره دَدې چې تاسو دَدې هر څومره خواهش کوئی په دې وجه په نمبراو نفقه کښې بالکل یو طرف ته مه مائل کیږئی چې کومې سره تاسو محبت کوئی (دَهغې په مقابله کښې) دَ کومې سره چې ستاسو رغبت نشته هغه زوړنده پریږدئی په داسې توګه چې هغه نه په کونډو کښې وی اونه دَ خاوند والو کښې وی. اوکه چرې په نمبرکښې په انصاف سره اصلاح اوکړئی اودَ ظلم نه بچ شئی نو الله تعالی ستاسو دَ زړه رغبت معاف کونکې دې او په دې معامله کښې په تاسو باندې رحم کونکې دې. اوکه ښځه اوخاوندد طلاق په وجه دَ یوبل نه جدا شی نوالله تعالی به په خپل وسعت سره هریودَ بل نه بې پرواه کړی(یعنی) په خپل فضل سره. په دې توګه چې ښځې له به بل خاوند ورکړی او خاوند له بله ښځه، او الله تعالی په خپل مخلوق باندې په فضل کښې وسعت والا او دَهغوی دَپاره په تدبیرکښې حکمت والا دې. دَ زمکې او آسمان هریوڅیز هم دَالله تعالی ملک دې اومونږهغه

خلقو ته چاته چې تاسو نه وړاندې کتاب ورکړې شوې کتاب په معنی دکتب دې یعنی یهود او نصاری اوتاسوته هم اې اهل قرآن حکم درکوی دا چې دَ الله تعالی نه اوویریږئی یعنی دَهغه دَعذاب نه اوویریږئی په دې توګه چې دَهغه اطاعت درکړی اومونږ هغوی ته او تاسو ته اووئیل چې که تاسو دَحکم نافرمانی اوکړئی نوځه چې په آسمانونو اوزمکو کښې دی دَتخلیق په اعتبارسره اودَ ملك په اعتبارسره اودَ مملوك کیدو په اعتبارسره لهذا ستاسو کفر دهغه هیڅ نقصان نه شئ کولې هم دَهغه ملک دې او الله تعالی دَخپل مخلوق او دَهغوی دَعبادت نه ډیر بې نیازه او بې پرواه دې یعنی هغوی سره په خپل صنعت کښې محمود دې اودَ الله تعالی په اختیارکښې دی په زمکه او آسمانونوکښې چې څه هم دی دائی مکررذکرکړې دي دَ موجبات تقوی دَتاکیددَپاره، او الله تعالی دکارسازکیدو په اعتبارسره کافی دې. یعنی په دې خبره باندې دَ ګواهئی دَپاره چې کوم څه په زمکو او آسمانونوکښې دی هم دهغه په ملك کښې دی. اې خلقو که هغه ته منظوروی نو تاسو به هلاک کړی او ستاسو په ځائې به نور راولی اوالله تعالی ته په دې باندې پوره قدرت حاصل دې اوکوم کس چې په خپل عمل سره دَ دنیا دَاجر خواهش مندوی نو د الله تعالی سره دَ دنیا اود آخرت دواړو اجرونه دی دهغه چا دَپاره څوك چې ددې غوښتونکې وی نه چې دَهغه دَغیر سره نو په دې کښې کمزورې ولې طلب کوی؟ اودَخپل اخلاص په ذریعه اعلی ولې نه غواړی هر کله چې د هغه مطلوب صرف هم دهغه سره حاصلیدې شی اوالله تعالی ښه اوریدونکې او ښه لیدونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: فِي شَأْنِ دَمضاف محذوف منلوسره ئی اشاره اوکړه چې سوال د احوال نه کیږی نه چې د ذوات نه.

**قوله** ميراثهنّ، دا دَ شان بیان دې.

**قوله**. وَمَا يُتْلَى عليكم، ددې عطف په الله باندې دې یعنی دَ ښځودَ میراث په باره کښې الله تعالی او د قرآن آیت د (میراث) کوم چې تاسو ته لوستلې اوروله شی فتوی درکوی.

**قوله**: أيضًا، په دې سره هم اشاره ده چې وَمَا يُتْلَى، عطف په لفظ د الله باندې دې.

**قوله**. دَمَامَةً بدرنګوالې.

**قوله**. أنْ لا تَفْعَلُوا ذلك، دا أنْ تفسیریه دې په دې کښې اشاره ده چې مابعْئ به محذوف دې لهذا دَ فائده تام نه کیدو اعتراض ختم شو.

**قوله**. وَفِي الْمُسْتَضْعَفِيْنَ فى مقدرمنلوسره یئ اشاره اوکړه چې ددې عطف په يتامیٰ النساء باندې دې.

**قوله**: تُعْطُوْهُمْ حُقُوْقَهُمْ، دا دَ مفتی به بیان دي.

**قوله**: وَيَأْمُرُكُمْ په دي كښي اشاره ده چي أَنْ تَقُوْمُوْا دَ فعل مقدرۀ وجي نه منصوب دي.

**قوله**: مَرْفُوْعٌ بِفِعْلٍ يُفَسِّرُهُ خَافَتْ. دَدي عبارت مقصد داخودل دی چي اِمْرَأَةٌ خَافَتْ دَ فعل مقدرۀ وجي نه مرفوع دي دَ كوم تفسيرچي روستوني خافت كوی. تقديری عبارت دادي وَإِنْ خَافَتْ اِمْرَأَةٌ خَافَتْ.

**قوله**: اَجْمَلَ مِنْهَا اَی جميلةً منها.

**قوله**: فِيهِ إِدْغَامُ التَّاءِ، دا هغه وخت دی كله چي دَ يصلحا اصل يصتلحا اومنلي شی.

**قوله**: شِدَّةَ الْبُخْلِ دا دَ الشح دَمعنی بيان دي.

**قوله**: الْأَنْفُسُ دا دَ أُحْضِرَتْ مفعول اول قائمقام نائب فاعل دي او الشُّحّ مفعول ثانی دي.

**[اياتونه:١٣٥-١٤١]**

{يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ} قَائِمِينَ {بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ {شُهَدَاءَ} بِالْحَقِّ {لِلَّهِ وَلَوْ} كَانَتْ الشَّهَادَةُ {عَلَى أَنْفُسِكُمْ} فَاشْهَدُوا عَلَيْهَا بِأَنْ تُقِرُّوا بِالْحَقِّ وَلَا تَكْتُمُوهُ {أَوْ} عَلَى {الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ إِنْ يَكُنْ} الْمَشْهُود عَلَيْهِ {غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا فَاللَّهُ أَوْلَى بِهِمَا} مِنْكُم وَأَعْلَم بِمَصَالِحِهِمَا {فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوَى} فِي شَهَادَتكُمْ بِأَنْ تُحَابُوا الْغَنِيّ لِرِضَاهُ أَوْ الْفَقِير رَحمة له لِ {أَن} لا {تعدلوا} عَنْ الْحَقّ {وَإِنْ تَلْوُوا} تُحَرِّفُوا الشَّهَادَة وَفِي قِرَاءَة بِحَذْفِ الْوَاو الْأُولَى تَخْفِيفًا {أَوْ تُعْرِضُوا} عَنْ أَدَائِهَا {فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا} فيجازيكم به {يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا} دَاوِمُوا عَلَى الْإِيمَان {بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي نَزَّلَ عَلَى رَسُولِهِ} مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الْقُرْآن {وَالْكِتَابِ الَّذِي أَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ} عَلَى الرُّسُل بِمَعْنَى الْكُتُب وَفِي قِرَاءَة بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ فِي الْفِعْلَيْنِ {وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا} عَنْ الْحَقّ {إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا} بِمُوسَى وَهُمْ الْيَهُود {ثُمَّ كَفَرُوا} بِعِبَادَتِهِمْ الْعِجْل {ثُمَّ آمَنُوا} بَعْده {ثُمَّ كَفَرُوا} بِعِيسَى {ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا} بِمُحَمَّدٍ {لَمْ يَكُنْ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ} مَا أَقَامُوا عَلَيْهِ {وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيلًا} طَرِيقًا إِلَى الْحَقّ {بَشِّرْ} أَخْبِرْ يَا مُحَمَّد {الْمُنَافِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا} مُؤْلِمًا هُوَ عَذَاب النَّار {الَّذِينَ} بَدَل أَوْ نَعْت لِلْمُنَافِقِينَ {يَتَّخِذُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ} لِمَا يَتَوَهَّمُونَ فِيهِمْ مِنْ الْقُوَّة {أَيَبْتَغُونَ} يَطْلُبُونَ {عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ} اِسْتِفْهَام إِنْكَار أَيْ لَا يَجِدُونَ عِنْدهمْ {فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا} فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة وَلَا يَنَالهَا إِلَّا أَوْلِيَاؤُهُ {وَقَدْ نَزَّلَ} بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمَفْعُول {عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ} الْقُرْآن فِي سُورَة الْأَنْعَام {أَنْ} مُخَفَّفَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ أَنَّهُ {إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ} الْقُرْآن {يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ} أَيْ الْكَافِرِينَ وَالْمُسْتَهْزِئِينَ {حَتَّى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ إِنَّكُمْ إِذًا} إِنْ قَعَدْتُمْ مَعَهُمْ {مِثْلُهُمْ} فِي الْإِثْم {إِنَّ اللَّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا} كَمَا اجْتَمَعُوا فِي الدُّنْيَا عَلَى الْكُفْر وَالِاسْتِهْزَاء {الَّذِينَ} بَدَل مِنْ الَّذِينَ قَبْله

﴿يَتَرَبَّصُونَ﴾ يَنْتَظِرُونَ ﴿بِكُمْ﴾ الدَّوَائِر ﴿فَإِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ﴾ ظَفَر وَغَنِيمَة ﴿مِنَ اللَّهِ قَالُوا﴾ لَكُمْ ﴿أَلَمْ نَكُنْ مَعَكُمْ﴾ فِي الدِّين وَالْجِهَاد فَأَعْطُونَا مِنَ الْغَنِيمَة ﴿وَإِنْ كَانَ لِلْكَافِرِينَ نَصِيبٌ﴾ مِنَ الظَّفَر عَلَيْكُمْ ﴿قَالُوا﴾ لَهُمْ ﴿أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ﴾ نَسْتَوْلِ ﴿عَلَيْكُمْ﴾ وَنَقْدِر عَلَى أَخْذكُمْ وَقَتْلكُمْ فَأَبْقَيْنَا عَلَيْكُمْ ﴿وَ﴾ أَلَمْ ﴿نَمْنَعْكُمْ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ أَنْ يَظْفَر بِتَخْذِيلِهِمْ وَمُرَاسَلَتهمْ بِاخبارهم فلنا عليكم المنة قال تعالى ﴿فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ﴾ وَبَيْنهمْ ﴿يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ بِأَنْ يُدْخِل وَيُدْخِلهُمْ النَّار ﴿وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾ طَرِيقًا بِالِاسْتِئْصَالِ

**ترجمه**: اې ايمان والو! په انصاف باندې ښه ټينګ اوسيدونکي او د الله تعالى دپاره د حق ګواهي ورکونکي جوړشئ که هغه شهادت ستاسو د خپل ځان خلاف ولې نه وي. نو د خپل ځان خلاف ګواهي ورکړئ په دې توګه چې د حق اقرار اوکړئ او هغه مه پټوئ. يا ستاسو د مور پلار او خپلوانو خلاف ولې نه وي مشهودعليه مالدار وي که غريب الله تعالى دې دواړو ته ستاسو په نسبت نيزدې دې او د دغه دواړو د مصلحتونو نه واقف دې. په خپله ګواهئ کښې د نفس د خواهش تابعداري مه کوئ. په دې توګه چې د مالدار د زړه ساتنې دپاره د هغه رعايت اوکړئ يا په فقير باندې د رحم د وجې د هغه نه رعايت اوکړئ په داسې توګه چې د حق نه واوړئ. او دا چې په ګواهئ کښې تحريف اوکړئ او په يو قراءت کښې تخفيفًا د اول واؤ په حذف سره دې يا دا چې د شهادت د اداکولو نه ډډه اوکړئ. ځه چې تاسو کوئ الله تعالى د هغې نه خبر دې تاسو ته به د هغې بدله درکړي. اې د ايمان والو! په الله باندې او د هغه په رسول باندې او د هغه په کتاب باندې چې هغه په خپل رسول محمد ﷺ باندې نازل کړې دې او هغه قرآن دې او په هغه کتابونو چې وړاندې يې په رسولانو باندې نازل کړې دي په ايمان باندې قائم اوسيږئ او کتاب معنى کتب دې او په يو قراءت کښې دواړه د فعل معروف په صيغې سره دي او څوک چې د الله تعالى نه او د هغه د فرښتو نه او د هغه د کتابونو نه او د هغه د رسولانو نه او د قيامت د ورځې نه انکار کوي هغه په ګمراهئ کښې د حق نه ډير لرې لاړو. بيشکه کومو خلقو چې په موسى عليه السلام باندې ايمان راوړو هغه يهود دي بيا د سخى په عبادت کولو سره کافران شو بيائي د هغې نه پس ايمان راوړو. بيا د عيسى عليه السلام منکر شو بيائي د محمد ﷺ نه په انکار کولو سره په کفر کښې ترقي اوکړه. الله تعالى به هيڅ کله د هغوى مغفرت اونه کړي ترکومې چې هغوى په کفر باندې قائم وي او نه به هغوى ته د حق طرف ته نيغه لار اوښائي. اې محمد ﷺ منافقانو ته اووايه چې د هغوى دپاره دردناک عذاب دې او هغه د اور عذاب دې. هغه خلق چې مؤمنانو لره پريږدي او کافران دوستان جوړوي په دې وجه په هغوى کښې طاقت نه خيال کوي (الذين) د منافقانو نه بدل يا صفت واقع دې. آيا هغوى سره عزت لټوي؟ استفهام انکاري دې يعنې هغوى سره به عزت بيانه مومي. ځکه چې په دنيا کښې او په آخرت کښې ټول عزتونه هم د الله تعالى سره دي هغه هم د الله تعالى دوستان حاصلولې شي. او الله

تعالی تاسو ته په خپل کتاب قرآن کښې (نُزِّلَ) معروف اومجهول دواړه دي په سورت انعام کښې داحکم نازل کړې دې (أَنْ) مخففه دې دَدې اسم محذوف دې أی أَنَّهُ،چې کله تاسو (په یو مجلس کښې) خلقولره د الله تعالی دآیتونو نه کفرکول اوهغې پورې ټوقې کولوسره واورئی نوتاسو هغوی سره مه کینئی یعنی ټوقې مسخرې کونکوکافرانو سره ترهغه وخته پورې چې هغوی په بله څه خبره کښې مشغول شی ګنی تاسو که هغوی سره کیناستئ نوتاسو به هم په ګناه کښې دَهغوی په شان شئ. الله تعالی به منافقان او کافران ټول په دوزخ کښې راجمع کړی لکه څنګه چې هغوی په کفراو مسخرو باندې راجمع شوی وو (دا) هغه (خلق) دی چې ستاسو دَپاره دَ مصیبتونو په انتظاردی نوکه تاسو ته دَ الله تعالی دَ طرف نه فتح او (مال) غنیمت حاصلیږی نو وائی چې په دین اوجهاد کښې ولې مونږ تاسو سره نه وو؟ لهذا مونږ ته هم په مال غنیمت کښې حصه راکړئی. اوکه کافرانوته په تاسو باندې فتح نصیب کیږی نوهغوی ته وائی آیا مونږ په تاسو باندې غالب نه ووراغلی؟ اوآیا مونږ ستاسو په راګیرولواو قتل کولوباندې قادرشوی نه وو؟ خو مونږ په تاسو رحم اوکړو او ولې داخبره نه ده چې مونږ مسلمانانو لره بې همته کولو او دهغوئ خبرونه تاسو ته درسولو سره په تاسوباندې مسلمانان غالب راتلونه بچ کړل. لهذا زمونږ په تاسو باندې احسان دې الله تعالی فرمائی چې هم الله تعالی به ستاسواودَهغوی په مینځ کښې دَقیامت به ورځ فیصله اوکړی. په دې طریقه چې تاسو به جنت کښې او هغوی به په دوزخ کښې داخل کړی. اوالله تعالی به هیڅ کله کافرانوته په مومنانو باندې غلبه ورنه کړی یعنی د هغوی د استیصال او او بالکل ختمولو غلبه به ورنه کړی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: فَأَشْهَدُوْاعَلَيْهَادا دَ لَوْ جواب دې د ماقبل د دلالت د وجې نه حذف کړې شوې دې.

**قوله**: بِأَنْ تُقِرُّوْا، په دې کښې اشاره ده چې دَخپل نفس خلاف ګواهی ورکولومطلب دې اقرار کول.

**قوله**: الْمَشْهُوْدُعَلَيْهِ،دَدې اضافې مقصددَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: دادې چې یکن کښې کوم ضمیردې هغه والدین او أقربین ته راجع دې کوم چې جمع ده او په یکن کښې ضمیرواحد ددې لهذا په ضمیر اومرجع کښې اتحاد نشته کوم چې ضروری دې؟

**جواب**: دادې چې دَیکن ضمیر مرجع مشهودعلیه دې کوم چې دَ جنس کیدودَ وجې نه په معنی کښې دَجمع دې.

**قوله**: منكم، په دې کښې اشاره ده چې منفصل عليه محذوف دې.

**قوله**: لأنْ تَعْدِلُوْا، تتبعوا الهوى، تَتَّبِعُوْا متعدى په يومفعول دې او هغه هوىٰ دې اوس دا دويم مفعول طرف ته بغيرد حرف متعدى کيدې نه شى ځکه يئ لام مقدرمنلې دې دې دَپاره چې دويم مفعول طرف ته متعدى شي.

**قوله**: بعده، اى بعد عود موسى.

**قوله**: اَلَّذِيْنَ، على محذوف دَوجې نه منصوب کيدې هم شي.

[اياتونه: ١٤٢ - ١٤٧]

{إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ} بِإِظْهَارِ خِلَاف مَا أَبْطَنُوهُ مِنَ الْكُفْر لِيَدْفَعُوا عَنْهُمْ أَحْكَامه الدُّنْيَوِيَّة {وَهُوَ خَادِعُهُمْ} مُجَازِيهمْ عَلَى خِدَاعهمْ فَيُفْتَضَحُونَ فِي الدُّنْيَا بِإِطْلَاعِ اللَّه نَبِيّه عَلَى مَا أَبْطَنُوهُ وَيُعَاقَبُونَ فِي الْآخِرَة {وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ} مَعَ الْمُؤْمِنِينَ {قَامُوا كُسَالَى} مُتَثَاقِلِينَ {يُرَاءُونَ النَّاسَ} بِصَلَاتِهِمْ {وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ} يُصَلُّونَ {إِلَّا قَلِيلًا} رِيَاء {مُذَبْذَبِينَ} مُتَرَدِّدِينَ {بَيْنَ ذَلِكَ} الْكُفْر وَالْإِيمَان {لَا} مَنْسُوبِينَ {إِلَى هَؤُلَاءِ} أَيْ الْكُفَّار {وَلَا إِلَى هَؤُلَاءِ} أَيْ الْمُؤْمِنِينَ {وَمَنْ يُضْلِلِ} هُ {اللَّهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا} طَرِيقًا إِلَى الْهُدَى {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ أَتُرِيدُونَ أَنْ تَجْعَلُوا لِلَّهِ عَلَيْكُمْ} بِمُوَالَاتِهِمْ {سُلْطَانًا مُبِينًا} بُرْهَانًا بَيِّنًا عَلَى نِفَاقكُمْ {إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ} الْمَكَان {الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ} وَهُوَ قَعْرهَا {وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا} مَانِعًا مِنَ الْعَذَاب {إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا} مِنَ النِّفَاق {وَأَصْلَحُوا} عَمَلهمْ {وَاعْتَصَمُوا} وَثِقُوا {بِاللَّهِ وَأَخْلَصُوا دِينَهُمْ لِلَّهِ} مِنَ الرِّيَاء {فَأُولَئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ} فِيمَا يُؤْتَوْنَهُ {وَسَوْفَ يُؤْتِ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا} فِي الْآخِرَة وَهُوَ الْجَنَّة {مَا يَفْعَلُ اللَّهُ بِعَذَابِكُمْ إِنْ شَكَرْتُمْ} نِعَمه {وَآمَنْتُمْ} بِهِ وَالِاسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي أَيْ لَا يُعَذِّبكُمْ {وَكَانَ اللَّهُ شَاكِرًا} لِأَعْمَالِ الْمُؤْمِنِينَ بِالْإِثَابَةِ {عَلِيمًا} بِخَلْقِهِ

**ترجمه**: - بيشکه منافقان دَخپل پټ کفر خلاف ښکاره کولو په ذريعه دې دَپاره چې دَ خپل ځان نه دنياوى احکام دفع کړې شي. الله تعالى سره چلونه کوى او هغه دوى ته دَ دوى دَ چالباز يئ بدله ورکونکې دې. چنانچه هغوى به په دنيا کښې دَالله تعالى خپل نبى لره دَهغوى په پټ کفرباندې خبرولودَ وجې نه رسوا شي او په آخرت کښې به ورته سزا ورکولې شي. اوکله چې دا خلق مؤمنانو سره دَ مونځ دَپاره اودريږى نو په ډيره سستئى سره اودريږى (خپل مونځ) خلقو ته ښائى اودَ الله تعالى ذکر خو هسې صرف دنو دپاره کوى. دکفراو ايمان په مينځ کښې زورند دى نه (پوره) دَ کافرانو طرف ته منسوب دى او نه مؤمنانو طرف ته. الله تعالى چې څوک ګمراه کړى نو ته به دَ هغوى دَپاره دَ هدايت هيڅ لار بيانه مومې. اې ايمان والو مؤمنان پرېښودوسره کافران دوستان مه جوړوئى آيا تاسو غواړئى چې دَهغوى په دوستئى سره په خپل ځان باندې په نفاق باندې دالله تعالى صريح حجت قايم کړئى. يقينًا منافقان به دَ دوزخ په

ښکته طبقه کښې وی اوهغه دَ دوزخ دَ ټولو نه ښکته او لاندې طبقه ده او ته به دَهغوی څوك امدادی اونه مومئ یعنی دَ عذاب نه بچ کونکې مګر هغه خلق چې دَ نفاق نه توبه اوکړی اودَ خپل عمل اصلاح اوکړی اودَ الله تعالی رسئ مضبوطه اونیسئ اوخپل دین دَالله تعالی دَپاره دَ ریاکارئی نه خالص کړی نوداخلق به په جنتونوکښې د مؤمنانوسره وی اوالله تعالی به مؤمنانو ته ډیر زر اجرعظیم ورکړی اوهغه جنت دې. الله تعالی به تاسو ته په سزا درکولو څه اوکړی؟ که چرې تاسو دَهغه دَنعمتونو شکرګذاری کوئې او په هغه باندې ایمان اولرئی اواستفهام په معنی دَنفی دې یعنی تاسو ته به سزا نه درکوی. او الله تعالی مؤمنانوته اجرورکولوسره دَ هغوی دَاعمالو ډیر قدردان دې اودَ خپل مخلوق نه خبردې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: يُخَادِعُهُمْ دا دَ یوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دادې چې دَ الله تعالی طرف ته دَ خداع نسبت صحیح نه دې. ځکه چې خداع صفت قبیح دې الله تعالی دَدې نه وراءالوراء(پاك) دې.

**جواب**:- دادې چې دَالله تعالی دَپاره دَ خداع استعمال دَ مشاکلت په توګه دې. داد جزاء السیئة دَ سیئة قبیل نه دې. یعنی جزاء خداع په خداع سره تعبیرکړې شوې دې.

**قوله**: كُسَالٰى ، دَ كَسلانٌ جمع ده سست، کاهل.

**قوله**: يُرَآءُوْنَ جمع مذکرغائب (مفاعلة) هغوئ ځان خودنه کوی.

**قوله**: مُنْسُوْبِيْنَ دَدې اضافې مقصد دَدې اعتراض جواب دې چې لاالٰی هؤلاء کښې دَحرف لا په حرف إلٰی باندې داخیلدل لازمیږی حالانکه دَحرف په حرف باندې داخلیدل صحیح نه دی.

**جواب**: لا، په إلٰی باندې داخل نه دې بلکه په منسوبین باندې داخل دې.

**قوله**: الدَّرْكِ: **سوال**: الدرك تفسیر مفسرعلام دَطبقة په ځائې مکان سره ولې کړې دې؟

**جواب**: الأسفل چونکه مذکر دې لهذا الدّرك په معنی د طبقة صفت نه شی واقع کیدې.

**قوله**: وَالِاسْتِفْهَامُ بِمَعْنَى النَّفْيِ یعنی دَالله تعالی قول مَا يَفْعَلُ اللهُ بِعَذَابِكُمْ؟ کښې استفهام په معنی دَ نفی دې لهذا دا اعتراض ختم شو چې استفهام دَالله تعالی دَپاره محال دې.

**قوله**: بِالْإِثَابَةِ دا د دې شبه جواب دې چې شکر دمنعم اظهارد نعمت ته وائی اودا دَ ذات بارتعالی دَ پاره محال دې.

**جواب**: دلته دَ شکرنه دَعمل اجر او ثواب ورکولوسره قدردانی مقصود دې.

## پاره نمبر-٦ [لَایُحِبُّ اللّٰه]

## [ایاتونه:١٤٨-١٥٢]

﴿لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْءِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ مِنْ أَحَد أَيْ يُعَاقِبُهُ عَلَيْهِ ﴿إِلَّا مَنْ ظُلِمَ﴾ فَلَا يُؤَاخِذُهُ بِالْجَهْرِ بِهِ بِأَنْ يُخبِر عَنْ ظُلْم ظَالِمه وَيَدْعُو عَلَيْهِ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيعًا﴾ لِمَا يُقَال ﴿عَلِيمًا﴾ بِمَا يَفْعَل ﴿إِنْ تُبْدُوا﴾ تُظْهِرُوا ﴿خَيْرًا﴾ مِنْ أَعْمَال الْبِرّ ﴿أَوْ تُخْفُوهُ﴾ تَعْمَلُوهُ سِرًّا ﴿أَوْ تَعْفُوا عَنْ سُوءٍ﴾ ظلم ﴿فَإِن الله كان عفوا قديرا﴾ ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهِ﴾ بِأَنْ يُؤْمِنُوا بِهِ دُونهمْ ﴿وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ﴾ مِنَ الرُّسُل ﴿وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ﴾ مِنْهُمْ ﴿وَيُرِيدُونَ أَنْ يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذٰلِكَ﴾ الْكُفْر وَالْإِيمَان ﴿سَبِيلًا﴾ طَرِيقًا يَذْهَبُونَ إِلَيْهِ ﴿أُولٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا﴾ مَصْدَر مُؤَكِّد لِمَضْمُونِ الْجُمْلَة قَبْله ﴿وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا﴾ ذَا إِهَانَة وَهُوَ عَذَاب النَّار ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ﴾ كُلّهمْ ﴿وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ أُولٰئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ﴾ بِالْيَاء وَالنون ﴿أجورهم﴾ ثواب اعمالهم ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا﴾ لِأَوْلِيَائِهِ ﴿رَحِيمًا﴾ بِأَهْلِ طَاعَته

**ترجمه** - الله تعالى دَ چادا خبره نه خوښوي چې څوک دَ چا بد اووائي يعنې په بده وينا كولو به سزا وركوي. البته مظلوم ته (دَ ظلم بيانولو) اجازت دې. دا چې دَخپل ظالم ظلم ښكاره كړي اودَهغه دَپاره خيرې اوكړي. (نو الله تعالى به په دغه ظلم ښكاره كولو باندې مواخذه نه كوي) اوځه چې وئيلې شي الله تعالى هغه اوريدونكې دې او څه چې كولې شي په هغې باندې پوهيدونكې دې. اوكه چرې تاسو په نيكو اعمالو كښې يو عمل ښكاره اوكړئ يا ئې پټ اوكړئ يا ظلم معاف كړئ (نو ډيره ښه ده څكه چې دَالله تعالى هم دغه صفت دې) چې هغه (په انتقام باندې) قدرت لرلو باوجود لوئې معافي كونكې دې كوم خلق چې دالله تعالى اودَهغه د رسول ﷺ نافرماني كوي او غواړي چې دَالله تعالى اودَهغه د رسول ﷺ په مينځ كښې تفريق اوكړي په دې توګه چې په الله تعالى باندې ايمان راوړي او په رسولانو باندې ايمان رانوړي اوهغه وائي (هم) چې مونږ په بعض رسولانو باندې ايمان راوړې دې او په هغوى كښې دَ بعضو منكريو اودا خلق غواړي چې دكفر اود ايمان په مينځ كښې داسې يوه لار راؤباسي په كومه چې هغوى روان شي. يقينًا داخلق پاخه كافران دي. (حَقًّا) دَ سابقه جملې دَ مضمون تاكيد دې او مونږ دَ كافرانو دَپاره دَ سپكاوى سزا تجويزكړې ده. او هغه دَ دوزخ سزاده او كوم خلق چې په الله تعالى باندې ايمان لري اودَ هغه په ټولو رسولانو باندې هم (ايمان لري) او په هغوى كښې په چاكښې هم تفريق نه كوي دغه خلقوته به الله تعالى دَهغوى دَ نيكو اعمالو بدله ضرور وركړي. (يؤتيهم) په نون او ياء سره دې. او الله تعالى خپلو دوستانو لره ډيره لوئې معافي كونكې او په خپل اطاعت كونكو باندې ډير رحم كونكې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اَلْجَهْر، رفع الصوت بالقول وغیره، جهر بالقول نه مطلقاً اظهار مراد دي که جهر وي اوکه نه وي.

**قوله**: مِن أحدٍ، دا مستثنٰی منه مقدر دې لهذا دااعتراض ختم شو چې دَ اِلاَّ مَن ظُلِمَ استثناء د ماقبل نه صحیح نه ده او دَالجهر مصدر فاعل محذوف دې اودَ مصدر دَ فاعل حذف جائزدې. او اِلاَّ مَنْ ظُلِمَ هم دَدې فاعل محذوف نه مستثنٰی دې یا که مضاف محذوف اومنلې شي نوتقدیری عبارت به داشي اِلاَّ جَهْرَ مَنْ ظُلِمَ په مذکوره دواړو صورتونو کښې به مستثنٰی متصل وي.

**قوله**: أي يُعَاقِبُ عليه، په دې کښې اشاره ده چې دَعدم محبت نه غضب اوعقاب مراد دې.

**قوله**: فَاِنَّ اللهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا، دا جمله جواب شرط دې. او اِنْ تُبْدُوْا او اَوْتُخْفُوْهُ او أوتعفوا عن سُوءٍ دا دریواړه جملې دَ عطف په ذریعه شرط دی.

دَ جواب شرط نه معلومیږی چې مقصود دریمه جمله یعنی د اَوْتَعْفُوْا جواب شرط دې او که چرې ابداء خیر او اخفاء خیر مقصود بالشرط وی نو په جواب شرط کښې فقط په فِاِنَّ اللهَ كَانَ عفواً قديراً باندې اکتفاء کول صحیح نه وی. دَدې نه معلومه شوه چې ابداء خیر اواخفاء خیر محض دَ تمهید په توګه راوړلې شوې دی دَدې خودلودَپاره چې علانیه او خفیه طریقې سره کارخیرکول هم نیکی ده مګر دَ قدرت علی الانتقام باوجود معاف کول لویه نیکی ده ځکه چې هم دغه صفت دَالله تعالی هم دې.

**[ایاتونه: ۱۵۳-۱۶۲]**

---

{يَسْأَلُك} يَا مُحَمَّد {أَهْلُ الْكِتَابِ} الْيَهُود {أَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتَابًا مِنَ السَّمَاءِ} جُمْلَة كَمَا أُنْزِلَ عَلَى مُوسَى تَعَنُّتًا فَإِنْ اسْتَكْبَرْت ذَلِكَ {فَقَدْ سَأَلُوا} أَيْ آبَاؤُهُمْ {مُوسَى أَكْبَرَ} أَعْظَم {مِنْ ذَلِكَ فَقَالُوا أَرِنَا اللَّهَ جَهْرَةً} عِيَانًا {فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ} الْمَوْت عِقَابًا لَهُمْ {بِظُلْمِهِمْ} حَيْثُ تَعَنَّتُوا فِي السُّؤَال {ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ} إلَهًا {مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ} الْمُعْجِزَات عَلَى وَحْدَانِيَّة اللَّه {فَعَفَوْنَا عَنْ ذَلِكَ} وَلَمْ نَسْتَأْصِلهُمْ {وَآتَيْنَا مُوسَى سُلْطَانًا مُبِينًا} تَسَلُّطًا بَيِّنًا ظَاهِرًا عَلَيْهِمْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ بِقَتْلِ أَنْفُسهمْ تَوْبَة فَأَطَاعُوهُ {وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ} الْجَبَل {بِمِيثَاقِهِمْ} بِسَبَبِ أَخْذ الْمِيثَاق عَلَيْهِمْ لِيَخَافُوا فَيَقْبَلُوهُ {وَقُلْنَا لَهُمْ} وَهُوَ مُظِلّ عَلَيْهِمْ {ادْخُلُوا الْبَابَ} بَاب الْقَرْيَة {سُجَّدًا} سُجُود انْحِنَاء {وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا} وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ الْعَيْن وَتَشْدِيد الدَّال وَفِيهِ إدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الدَّال أَيْ لَا تَعْتَدُوا {فِي السَّبْتِ} بِاصْطِيَادِ الْحِيتَان فِيهِ {وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا} عَلَى ذَلِكَ فَنَقَضُوهُ {فَبِمَا نَقْضِهِمْ} مَا زَائِدَة وَالْبَاء لِلسَّبَبِيَّةِ مُتَعَلِّقَة بِمَحْذُوفٍ أَيْ لَعَنَّاهُمْ بِسَبَبِ نَقْضهمْ {مِيثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِآيَاتِ اللَّهِ وَقَتْلِهِمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَقَوْلِهِمْ} لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {قُلُوبُنَا

غُلْفٌ} لَا تَعِي كَلَامك {بَلْ طَبَعَ} خَتَمَ {اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ} فَلَا تَعِي وَعْظًا {فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا} مِنْهُمْ كَعَبْدِ اللهِ بْن سَلَام واصحابه {وَبِكُفْرِهِمْ} ثَانِيًا بِعِيسَى وَكَرَّرَ الْبَاء لِلْفَصْلِ بَيْنه وَبَيْن مَا عُطِفَ عَلَيْهِ {وَقَوْلِهِمْ عَلَى مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا} حيث رموها بالزنى {وَقَوْلِهِمْ} مفتخرين {إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ} فِي زَعْمهمْ أَيْ بِمَجْمُوعِ ذَلِكَ عَذَّبْنَاهُمْ قَالَ تَعَالَى تَكْذِيبًا لَهُمْ فِي قَتْله {وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ} الْمَقْتُول وَالْمَصْلُوب وَهُوَ صَاحِبهمْ بِعِيسَى أَيْ أَلْقَى اللهُ عَلَيْهِ شَبَهه فَظَنُّوهُ إِيَّاهُ {وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ} أَيْ فِي عِيسَى {لَفِي شَكٍّ مِنْهُ} مِنْ قَتْله حَيْثُ قَالَ بَعْضهمْ لَمَّا رَأَوْا الْمَقْتُول الْوَجْه وَجْه عِيسَى وَالْجَسَد لَيْسَ بِجَسَدِهِ فَلَيْسَ بِهِ وَقَالَ آخَرُونَ بَلْ هُوَ هُوَ {مَا لَهُمْ بِهِ} بِقَتْلِهِ {مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ} اسْتِثْنَاء مُنْقَطِع أَيْ لَكِنْ يَتَّبِعُونَ فِيهِ الظَّنّ الَّذِي تَخَيَّلُوهُ {وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا} حَال مُؤَكِّدَة لِنَفْيِ الْقَتْل {بَلْ رَفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا} فِي مُلْكه {حَكِيمًا} فِي صُنْعه {وَإِنْ} مَا {مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ} أَحَد {إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ} بِعِيسَى {قَبْلَ مَوْتِهِ} أَيْ الْكِتَابِيّ حِين يُعَايِن مَلَائِكَة الْمَوْت فَلَا يَنْفَعهُ إِيمَانه أَوْ قَبْل مَوْت عِيسَى لَمَّا يَنْزِل قُرْب السَّاعَة كَمَا وَرَدَ فِي حَدِيث {وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ} عِيسَى {عَلَيْهِمْ شَهِيدًا} بِمَا فَعَلُوهُ لَمَّا بُعِثَ إليهم {فَبِظُلْمٍ} أَيْ فَبِسَبَبِ ظُلْم {مِنَ الَّذِينَ هَادُوا} هُمْ الْيَهُود {حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ} هِيَ الَّتِي فِي قَوْله تَعَالَى {حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ} الْآيَة {وَبِصَدِّهِمْ} النَّاس {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دينه صدا {كَثِيرًا} {وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ} فِي التَّوْرَاة {وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ} بِالرِّشَا فِي الْحُكْم {وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا} مُؤْلِمًا {لَكِنِ الرَّاسِخُونَ} الثَّابِتُونَ {فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ} كَعَبْدِ اللهِ بْن سَلَام {وَالْمُؤْمِنُونَ} الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَار {يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ} مِنَ الْكُتُب {وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ} نُصِبَ عَلَى الْمَدْح وَقُرِئَ بِالرَّفْعِ {وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أُولَئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ} بِالنُّونِ وَالْيَاء {أَجْرًا عَظِيمًا} هو الجنة

ترجمه:- اې محمد ﷺ دا اهل کتاب يعنې يهوديان عناداً تاسو نه مطالبه کوی چې ته په هغوی د آسمان نه څه ليکلې شوې کتاب په يو ځل نازل کړه لکه چې په موسیٰ عليه السلام باندې نازل کړې شوې وو. ته دا مطالبه ډيره لويه ګڼړې نودې خلقو يعنې د دې پلارانو اونيکونو د موسیٰ عليه السلام نه د دې نه هم لويه مطالبه کړې ده هغوی د موسیٰ عليه السلام نه مطالبه کړې وه چې په مونږ باندې د الله تعالىٰ په ښکاره ديدار اوکړه. نو د هغوی د دې سرکشئ د وجې نه هغوی له سزا ورکولو د پاره ناڅاپی په هغوی باندې د مرګ بجلی د آسمان نه راپريوتله. ځکه چې هغوی په مطالبه کنبې سرکشی اختيار کړې وه. بيا هغوی سخې معبود جوړ کړو حالانکه هغوی ته د الله تعالىٰ د وحدانيت ښکاره نښې راغلې وې. په دې باندې هم مونږ هغوی معاف کړل چې هغوی مونږ د ختم نه کړل نيست و نابوبود مو نه کړل او مونږ موسیٰ عليه السلام ته په هغوی باندې غلبه ورکړه په داسې ترګه چې موسیٰ عليه السلام هغوی ته حکم ورکړو چې د توبې د پاره خپل ځانونه قتل کړئ. نوهغوی د موسیٰ عليه السلام تابعداری اوکړه اود هغوی نه وعده اخستلو د پاره مونږ د هغوی د پاسه غر رازوړندکړو دې د پاره چې هغوی اوويريږی او عهد قبول کړی. اومونږ

هغوی ته او وئیل حال دا چې غر د هغوی دَ پاسه زوړند وو دَ هغتې په ورځ کښې تعدی مه کوئی
او په یو قراءت کښې دَعین په فتحې او لام په تشدید سره دې. ‹یعنی تعدّی› او په اصل
کښې دَتاء په دال کښې ادغام دې یعنی دَهفتې په ورځ دَ کبانو په ښکار کښې تعدی نه
کول او په دې باندې مونږ دَ هغوی نه پوخ عهد واخستلو خو هغوی وعده خلافی اوکړه
نو دَهغوی دَ عهد ماتولو دَ وجې، مازائده ده او باء سببیه ده دَ محذوف متعلق دې یعنی دَ
هغوی عهدلره د ماتولو دَ وجې نه او دَهغوی دَ الله تعالی دَ آیاتونو نه دَ انکار دَ وجې نه او دَ خپلو
انبیاء کرامو په ناحقه دَقتل کولو دَ وجې نه او دَهغوی خپل نبی ته داسې وینا کولو دَ وجې چې
زمونږ زړونه په غلاف کښې دی دَ کوم دَ وجې نه چې ستا کلام محفوظ نشو ساتلې بلکه
حقیقت دا دې چې دَهغوی دَ کفر دَ وجې نه دَهغوی په زړونو باندې مهر لګولې دې چې دهغې د
وجې هغوی نصیحت محفوظ نه شی ساتلې او هم دَ دې وجې نه په هغوی کښې ډیر کم خلق
ایمان راوړی مثلاً عبد الله بن سلام او دَ هغه ملګری او بیا دَهغوی دَحضرت عیسیٰ علیه السلام نه دَ
انکار دَ وجې او ‹بکفرهم› کښې باء دَهغې او دَ هغې دَ معطوف علیه په مینځ کښې فصل
باالاجنبی دَ وجې نه مکرر راوړلې شوې دې. او دَ هغوی په بی بی مریم باندې عظیم بهتان
لګولو دَ وجې نه چې په هغې باندې ئې دَ زنا تهمت اولګولو او دَهغوی فخریه داسې وینا
کولو دَ وجې نه چې مونږ دَ الله رسول مسیح عیسیٰ بن مریم په خپل ګمان کښې قتل کړو
یعنی مذکوره ټولو ‹صفات قبیحه› دَ وجې نه مونږ هغوی ته سزا ورکړه او الله تعالی
دَهغوی دَ عیسیٰ علیه السلام دَ قتل دعویٰ دروغ ښکاره کولو سره اوفرمائیل او هغوی خو نه هغه
قتل کړې دې او نه ئې په سولئ کړې دې بلکه دَهغوی په نظر کښې دَهغوی مقتول او مصلوب
ملګرې دَ عیسیٰ علیه السلام په شکل جوړ کړې شو یعنی الله تعالی په مقتول باندې دَ عیسیٰ علیه السلام
شبیه ورواچوله نو هغوی خپل ملګرې حضرت عیسیٰ علیه السلام اوګڼړلو. یقین اوکړئی دَ
عیسیٰ علیه السلام باره کښې اختلاف کونکی دَعیسیٰ علیه السلام دَ قتل په باره کښې په شک کښې اخته دی
خکه چې کله هغوی مقتول اوکتلو نو چا او وئیل چې مخ خو هم دَحضرت عیسیٰ علیه السلام په
شان دد خو تنه ئې دَ عیسیٰ علیه السلام په شان نه دې نو مقتول عیسیٰ علیه السلام سره مشتبه شو او چا
او وئیل چې دا خو بالکل هم عیسیٰ علیه السلام دې. هغوی ته دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ قتل هیڅ
علم نشته او صرف دَ تخمینې خبرو پیروی کونکی دی. دا استثناء منقطع ده یعنی دا خلق دَ
حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ قتل په باره کښې دَخپل هغه ګمان پیروی کوې دکوم چې هغوی
تصور کړې دې حالانکه هغوی یقیناً عیسیٰ علیه السلام نه دې قتل کړې ‹لفظ یقیناً› نفی قتل دَپاره
حال مؤکده دې بلکه ‹حقیقت› دادې چې الله تعالی هغه خپل طرف ته اوچت کړې دې او الله
تعالی په خپل ملک کښې ډیر زبردست او په خپل صنعت کښې حکمت والا دې او دَ اهل کتابو نه
به څوک هم نه بچ کیږی چې هغوی به په عیسیٰ علیه السلام دَخپل مرګ نه وړاندې ایمان رانوړی چې کله

هغه دَ مرګ ملائکه ويني (دَ موته ضمير کتابی طرف ته راجع دې) مګر هغه وخت ايمان راوړل به دَهغوی دَپاره فائده مند نه وی (بأقبل موته) مطلب دادې چې دَ عيسیٰ دَمرګ نه وړاندې کله چې په هغوئ د قيامت سره نيزدې نازل شی لکه څنګه چې په حديث کښې وارد دی او دَ قيامت په ورځ به حضرت عيسیٰ عليه السلام دَهغوی خلاف ګواهی ورکوی په دې باندې چې کله هغه دَدوی طرف ته مبعوث کړې شوې وو نوهغوی ده سره څه معامله اوکړه اودَ يهودو دَ ظلم دَ وجې دَ پاك او ستره څيزونه کوم چې په هغوی باندې حلال کړې شوی وو مونږ په هغوئ باندې حرام کړل او دا هغه څيزونه دی کوم چې (الله تعالی)په خپل قول (حرمنا کل ظفر) کښې بيان فرمائيلی دی. اوډيروخلقو لره دَالله تعالی د لارې يعنی ددين حق، نه د منع کولودَ وجې اودَهغوی دَ سود اخستو دَ وجې نه حالانکه په تورات کښې هغوی دَدې نه منع کړې شوې وو اودَ خلقو مالونه دَهغوی په باطل طريقه سره (مثلاً) په فيصله کښې دَ رشوت په ذريعه خوړلودَ وجې نه او په هغوی کښې چې کوم کافران دی مونږ دَهغوی دَ پاره تکليف ورکونکې عذاب تيار ساتلې دې ليکن په هغوی کښې پوخ علم لرونکی مثلاً عبدالله بن سلام او ايمان والا کوم چې مهاجر او انصار دی په هغه څهٔ باندې کوم چې په تا باندې نازل کړې شوی دی او په هغه کتابونو باندې هم کوم چې تانه وړاندې نازل کړې شوی دی او مونځ قائمونکی دی او مقيمين منصوب علی المدح دې او مقيمون په رفع سره هم لوستلې شوې دې اوکوم چې زکوة ادا کونکی دی او په الله تعالی باندې اوپه ورځې دَ قيامت باندې ايمان لرونکی دی. هم دغه دی هغه خلق چاته چې به مونږ اجر عظيم ورکړو ياء او نون سره او هغه (اجر عظيم) جنت دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: عِيَانًا، يا خودَ مصدر محذوف صفت دې، أي أرنا إراءةً عيانًا به دې صورت کښې به لفظًا مصدر وی يا به مصدر بغير لفظه وی، أي رُؤيَةً عيانًا.

**قوله**: فَإِنْ استكبرت الخ. په دې کښې اشاره ده چې فَقَدْ سَأَلُوْا دشرط محذوف جزاء دد.

**قوله**: أي آباءُهُمْ. دَدې لفظ په اضافه کولو کښې يئ اشاره اوکړه چې دَ حضورپاك ﷺ په زمانه کښې موجود يهودو طرف ته دَ سوال په نسبت مجازاً دې څکه چې موجودين دَ خپلو پلارانو په سوال نه راضی وو.

**قوله**: المُعْجِزَاتُ، د البينات تفسير په المعجزات سره کولو کښې يئ اشاره اوکړه چې البينات نه مراد تورات نه دې لکه چې بعضو ونيلی دی څکه چې سخی لره د معبود جوړولو وخت کښې تورات نه وو ورکړې شوې دَدې نه پس ورکړې شوې دې.

**قوله:** بَابَ الْقَرْيَةِ، په دې کښې اشاره ده چې په الباب کښې الف لام په عوض کښې دَ مضاف اليه دې او دَ قريه نه مراد ايلة ده.

**قوله:** سُجُوْدَ انْحِنَاءٍ په دې کښې اشاره ده چې سُجَّدًا نه معروف سجده يعنی وضع الجبهة علی الأرض مراد نه ده بلکه ټيټيدل او عاجزی او تواضع کول مراد دی.

**قوله:** لَاتَعْدُوْا، عَدَا يَعْدُوْا نه نهی مضارع جمع مذکر حاضر تاسو تجاوز مه کوئی تَعْدوا په اصل کښې تَعْدُوُوْا وو دَ واؤ اول په ضمې سره چې لام کلمه ده ضمه په واؤ باندې ثقيل کيدو دَ وجې نه ساقط شوه اوس دَ دوو واؤونو په مينځ کښې التقاء دَ ساکنينو راغله واؤ حذف شو تَعْدُوْا شو او په يو قراءت کښې تَعَدُّوْا دې چې په اصل کښې تَعْتَدُوْا وو تاء په دال سره بدله کړې شوه او دَال په دال کښې ادغام او شو تَعَدُّوْا شو.

**قوله:** عَلٰى ذٰلِكَ نَقَضُوْهُ دَ دې اضافې مقصد دَ يو سوال جواب دې.

**سوال:** دَ فَبِمَا نَقْضِهِمْ متفرع عليه موجود نه دې لهذا تفريع صحيح نه ده؟

**جواب:** په کلام کښې اختصار دې تقديری عبارت داسې دې وَأخذنا منهم ميثاقا غليظا علی ذلك فنقضوه فبما نقضهم الخ.

**قوله:** غُلْفٌ دا دَ غلاف جمع ده.

**قوله:** ثانيا بعيسٰی يعنی اولا دحضرت موسیٰ عليه السلام اود تورات نه دکفر دَ وجې نه او ثانيا دحضرت عيسی عليه السلام نه دَ کفر دَ وجې دَهغوی په زړونو باندې مهر اولګيدو دواړه دَ طبع علی القلوب دَ اسباب نه دی ځکه چې مطلق کفر دَ طبع د اسبابو نه دی. دا عطف سبب علی السبب دَ قبيل نه دې معطوف او معطوف عليه کښې چونکه سبب طبع مختلف دې لهذا عطف الشئ علی نفسه لازم نه راځي.

**قوله:** فِی زَعْمِهِمْ، د دې تعلق إنّا قتلنا سره دې او دا دَ الله تعالی مقوله ده يعنی يهوديانو په خپل خيال کښې قتل کړو ګنی په حقيقت کښې يې قتل کړې نه دې او دَ فی زعمهم تعلق که د رسول الله ﷺ سره وی نو دا به دَ يهودو مقوله شی مطلب به داشی چې مونږ عيسیٰ ابن مريم عليه السلام قتل کړو چې نصاریٰ په خيال کښې دَالله تعالی رسول دې. ځکه چې يهود دَ عيسی عليه السلام دَ رسالت قائل نه وو.

**قوله:** أی بِمَجْمُوْعِ ذٰلِكَ يعنی دَ ټولو مذکوراتو عطف په فَبِمَا نَقْضِهِمْ باندې دې.

**قوله:** الْمَقْتُوْلُ وَالْمَصْلُوْبُ دا دَ شُبِّهَ نائب فاعل دې.

**قوله:** إسْتِثْنَاءٌ مُنْقَطِعٌ ځکه چې ظن دَ علم دَ جنس نه نه دې.

**قوله**: أي الكتابي په دې كښې اشاره ده چې دَ به ضمير دَحضرت عيسى عليه السلام طرف ته او مُوته ضمير دَ اَحَدٌ طرف راجع دې دَكوم نه مراد چې كتابي دې.

**قوله** اَوْقَبْلَ مَوْتِ عِيْسٰى دا دَ دويم تركيب طرف ته اشاره ده په دې صورت كښې به دواړه ضميرونه دَحضرت عيسى عليه السلام طرف ته راجع وى.

**قوله** وَهِيَ الَّتِيْ فِي قَوْلَه دا دَ سورت انعام طرف ته اشاره ده.

**قوله**: صَدًّا: په دې كښې اشاره ده چه دا دَ كثيرًا محذوف صفت دې.

**قوله**: نَصْبٌ عَلَى الْمَدْحِ يعنى المقيمين امدح فعل مقدر دَ وجې نه منصوب دې. اى اَمْدَحُ المقيمينَ الصلوة په دې صورت كښې به جمله معترضه شى او واؤ به اعتراضيه شى.

**قوله**: وقُرِءَ بِالرَّفْعِ او المقيمون رفع سره هم لوستلې شوې دې په دې صورت كښې به په الراسخون باندې عطف وى.

**[ اياتونه:١٦٣ - ١٧١ ]**

{إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ} وَ كَمَا {أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ} ابنيه {وَيَعْقُوبَ} بن إسحاق {وَالْأَسْبَاطِ} أولاده {وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ وَآتَيْنَا} أَبَاهُ {دَاوُدَ زَبُورًا} بِالْفَتْحِ اسْم لِلْكِتَابِ الْمُؤْتَى وَالضَّمّ مَصْدَر بِمَعْنَى مَزْبُورًا أَيْ مكتوبا {وَ} أَرْسَلْنَا {رُسُلًا قَدْ قَصَصْنَاهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ} رُوِيَ أَنَّهُ تَعَالَى بَعَثَ ثَمَانِيَة آلَاف نَبِيّ أَرْبَعَة آلَاف مِنْ إِسْرَائِيل وَأَرْبَعَة آلَاف مِنْ سَائِر النَّاس قَالَهُ الشَّيْخ فِي سُورَة غَافِر {وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ} بلا واسطة {تَكْلِيمًا} {رُسُلًا} بَدَل مِنْ رُسُلًا قَبْله {مُبَشِّرِينَ} بِالثَّوَابِ مَنْ آمَنَ {وَمُنْذِرِينَ} بِالْعِقَابِ مَنْ كَفَرَ أَرْسَلْنَاهُمْ {لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ} تُقَال {بَعْدَ} إِرْسَال {الرُّسُلِ} إِلَيْهِمْ فَيَقُولُوا رَبّنَا لَوْلَا أَرْسَلْت إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِع آيَاتك وَنَكُون مِنْ الْمُؤْمِنِينَ فَبَعَثْنَاهُمْ لِنَقْطَع عُذْرهمْ {وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا} فِي مُلْكه {حَكِيمًا} فِي صُنْعه وَنَزَلَ لَمَّا سُئِلَ الْيَهُود عَنْ نُبُوَّته صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْكَرُوهُ {لَٰكِنِ اللَّهُ يَشْهَدُ} يُبَيِّن نُبُوَّتك {بِمَآ أَنْزَلَ إِلَيْكَ} مِنْ الْقُرْآن الْمُعْجِز {أَنْزَلَهُ} مُلْتَبِسًا {بِعِلْمِهِ} أَيْ عَالِمًا بِهِ او وفيه عِلْمه {وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ} لَك ايضا {وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا} عَلَى ذَلِكَ {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا} بِاللَّهِ {وَصَدُّوا} النَّاس {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دِين الْإِسْلَام بِكَتْمِهِمْ نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ الْيَهُود {قَدْ ضَلُّوا ضَلَالًا بَعِيدًا} عَنْ الْحَقّ {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا} بِاللَّهِ {وَظَلَمُوا} نَبِيّه بِكِتْمَانِ نَعْته {لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا} مِنْ الطُّرُق {إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ} أَيْ الطَّرِيق الْمُؤَدِّي إِلَيْهَا {خَالِدِينَ} مُقَدَّرِينَ الْخُلُود {فِيهَا} إِذَا دَخَلُوهَا {أَبَدًا وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا} هينا {يَا أَيُّهَا النَّاسُ} أَيْ أَهْل مَكَّة {قَدْ جَاءَكُمُ الرَّسُولُ} مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {بِالْحَقِّ مِنْ رَبِّكُمْ فَآمِنُوا} بِهِ وَاقْصِدُوا {خَيْرًا لَكُمْ} مِمَّا أَنْتُمْ فِيهِ {وَإِنْ تَكْفُرُوا} بِهِ {فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا فَلَا يَضُرّهُ

كثرتكم {وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا} بخلقه {حَكِيمًا} في صُنْعِه بهم {يٰأَهْلَ الْكِتَابِ} الإِنْجِيل {لَا تَغْلُوا} تَتَجَاوَزُوا الْحَدّ فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللّٰهِ إِلَّا} الْقَوْل {الْحَقَّ} مِنْ تَنْزِيهه عَنِ الشَّرِيك وَالْوَلَد {إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللّٰهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا} أَوْصَلَهَا اللّٰه {إِلَىٰ مَرْيَمَ وَرُوحٌ} أَيْ ذُو رُوح {مِنْهُ} أُضِيفَ إِلَيْهِ تَعَالَى تَشْرِيفًا لَهُ وَلَيْسَ كَمَا زعمتم ابن اللّٰه أَوْ إِلٰهًا مَعَهُ أَوْ ثَالِث ثَلَاثَة لِأَنَّ ذَا الرُّوح مُرَكَّب وَالْإِلٰه مُنَزَّه عَنِ التَّرْكِيب وَعَنْ نِسْبَة الْمُرَكَّب إِلَيْهِ {فَآمِنُوا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ وَلَا تَقُولُوا} الْآلِهَة {ثَلَاثَةٌ} اللّٰه وَعِيسَى وَأُمّه {انْتَهُوا} عَنْ ذٰلِكَ وَأْتُوا {خَيْرًا لَكُمْ} مِنْهُ وَهُوَ التَّوْحِيد {إِنَّمَا اللّٰهُ إِلٰهٌ وَاحِدٌ سُبْحَانَهُ} تَنْزِيهًا لَهُ عَنْ {أَنْ يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} خَلْقًا وَمُلْكًا وَعَبِيدًا وَالْمَلَكِيَّة تُنَافِي النُّبُوَّة {وَكَفَىٰ بِاللّٰهِ وَكِيلًا} شَهِيدًا عَلَى ذٰلِكَ

**ترجمه**:- اې محمد ﷺ مونږ ستا طرف ته هم داسې وحې ليږلې ده څنګه چې مو حضرت نوح ﷺ او دَهغوی نه پس پيغمبرانو طرف ته ليږلې وؤ او څنګه چې مونږ دَحضرت ابراهيم ﷺ طرف ته وحې ليږلې وه او دَهغه دواړو ځامنو اسماعيل ﷺ او اسحاق ﷺ طرف ته (هم) وحې اوليګله اويعقوب ﷺ بن اسحاق ﷺ او اولاد يعقوب ﷺ او عيسىٰ ﷺ او ايوب ﷺ او يونس ﷺ اوسليمان ﷺ طرف ته مو وحې ليږلې وه او دَ سليمان ﷺ پلار حضرت داؤد ﷺ ته زبور ورکړو (زَبور په فتحې سره) د ورکړې شوی کتاب نوم دې. او (زبور) په ضمې سره مصدردې دَ مکتوب په معنی کښې يعنی مزبور په معنی مکتوب دې اومونږ دَهغه رسولانوطرف ته هم وحې ليږلې وه دَ چا ذکر چې مونږ تاته کړې دې اودَهغوی طرف ته هم دَ کومو ذکرچې مونږ تاته نه دې کړې. روايت کړې شوې دې چې الله تعالی اته زره انبياء کرام مبعوث کړی څلورزره انبياء په بنی اسرائيلوکښې او (باقی) څلور زره دَ نورو قومونونه، شيخ جلال الدين محلی په سورت غافرکښې هم دغه شميربيان کړې دې او الله تعالی موسیٰ ﷺ سره په يوخاص طريقه بلاواسطه کلام اوفرمائيلو او ټول رسولان، رُسُلاً، دَماقبل درُسُلاً نه بدل دې. ايمان راوړونکوته زيرې اورونکې کفرکونکو دَعذاب نه ويرونکې جوړکړې ليږلې وؤ. رسولان مونږ مبعوث کړل دې دَپاره چې خلقو ته دَ رسولَ ليږلونه پس دَالله تعالی په وړاندې دَ عذر بيانولو ګنجائش پاتې نه شی چې هغوی دا ووائی چې اې زمونږ پروردګارا تامونږ له رسول ولې را اونه ليږلو؟ دې دَپاره چې مونږ هم ستا دَ آياتونو اتباع کړې وې اومونږ دَ مؤمنانونه شوې وې نومونږ دَ هغوی عذر ختمولودَپاره دَهغوی طرف ته رسولان اوليږل اوالله تعالی په خپل ملك کښې غالب اوپه خپل صنعت کښې باحکمت دې اوکله چې ستاد دنبی د نبوت باره کښې دَيهوديانونه سوال اوکړې شو او يهودود نبی د نبوت نه انکاراوکړو نو (آئنده) آيت نازل شو (که داخلق ګواهی نه ورکوی نونه دې ورکوی) الله تعالی خودَدې معجز قرآن پاك په ذريعه ستا دَ نبوت ګواهی ورکوی کوم چې يې په تا نازل کړې دې او نازل کړې ئې هم دَ خپل علمی کمال په ذريعه دې يعنی څه ئې چې نازل کړی

دَهغې پیژندونکې دې یا په هغې کښې دَهغه علم (یعنی معلومات) شته اوفرښتې هم سَنا دَ نبوت گواهی ورکوی او په دې نبوت باندې دَالله تعالی گواهی ورکول کافی دی. کوم خلق چې دَالله تعالی نه منکر شو او نورخلق دَالله تعالی د لارې (یعنی) د دین اسلام نه دَ محمد ﷺ صفات پټولوسره منع کوی اوهغه یهودیان دی. نوداسې خلق یقینًا دَحق نه په گمراهئ کښې ډیر لرې وتلې دی. بیشکه کوم خلق چې دَالله تعالی نه منکر شو اودَ هغه په نبی باندې یې دَهغه صفات پټولوسره ظلم اوکړو الله تعالی به هغوی کله هم معاف نه کړی اونه به هغوی ته دَ دوزخ دَلارې نه بغیریل څه لار اوښائی یعنی هغه لار کومه چې دوزخ ته رسوونکې ده په داسې طریقه چې په هغې کښې دَ دوی داخلیدل دِ همیشه دَپاره مقدرشوی دی کله چې په هغې کښې داخل شی اودَ الله تعالی دَپاره دا آسانه ده اې دَ مکې خلقو دا رسول محمد ﷺ تاسو ته ستاسو دَرب دَ طرف نه په حق سره راغلې دې په ده باندې ایمان راوړئی اودَ خپل ځان دَپاره دَ خیر اراده اوکړئی دَهغې نه په کوم کښې چې تاسو (فی الحال) یئ که چرې تاسو په هغه کفر اوکړونو په آسمانونو اوزمکه کښې چې څه دی هغه دَملك او تخلیق کیدو په اعتبارسره هم دَهغه دی لهذا ستاسو کفر به دَ هغه هیڅ نقصان اونه کړې شی اوالله تعالی علیم هم دې اودَهغوئ دَ تدبیر بارد کښې حکیم هم دې. اې اهل کتاب (یعنی) دَانجیل منونکو دَخپل دین په باره کښې دَحد نه تجاوز مه کوئی اودَالله تعالی طرف ته دَحق خبرې نه علاوه بل څه مه منسوب کوئی چې دَ شریك او بال بچ نه هغه پاك دې. مسیح عیسی ﷺ ابن مریم دَدې نه علاوه هیڅ نه وو چې دَالله تعالی یو رسول اودَهغه فرمان وو کوم چې الله تعالی دَ بی بی مریم طرف ته لیږلې وو اودَهغه دَطرف نه یو روح یعنی ذی روح وو اودَ روح نسبت دَالله تعالی طرف ته تشریفًا دې. اوداسې نه ده کوم چې تاسو گنړئی چې هغه ابن الله یا دَهغه سره اله دې یا په دریو کښې دریم دې ځکه چې ذی روح مرکب وی او اله دَترکیب نه اود طرف ته دَمرکب نسبت کولونه پاك دې نوتاسو په الله باندې اودَهغه په رسول باندې ایمان راوړئی داسې مه وایئی چې خدایان درې دی (یعنی) الله عیسی ﷺ اودَ هغه مور دَدې تثلیث نه منع شئی اودَ خپل ځان دَپاره دَدې نه بهتر لاره اختیارکړئی او هغه توحید دې معبود خو بس هم یو خدائی دې اوهغه نه اوچت دې چې دَهغه دې څوک ځوئی وی دَآسمانونو اوزمکو ټول څیزونه هم دَهغه دی دَ مخلوق کیدو په اعتبارسره اودَ ملك په اعتبارسره او ملکیت دَ بنوة منافی دې اوهم هغه دَدې دَ نگرانئ په اعتبارسره کافی دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ، کاف د مصدر محذوف صفت دې. تقدیری عبارت دادې اِیْحَاءً مِثْلَ اِیْحَائِنَا او په ما کښې دوه احتماله دی که چرې مصدریه وی نودَعائد ضرورت به نه وی اوکه دَ الذی په معنی کښې وی نوعائد به محذوف وی اوتقدیری عبارت به داسې

شي كالذي أوْحَيْنَاهُ الى نوح.

قوله: كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ مفسر علام كما، محذوف منلو سره اشاره كړې ده چې أَوْحَيْنَا الى ابراهيم عطف اوْحَيْنَا الى نوح باندې نه چې په نوح باندې ګنی تکرار به لازم شی.

قوله: زَبُور بالفتح اِسْمُ الْكِتَاب په فتحې سره فَعول په معنی مفعول دې لکه چې رکوب په معنی مرکوب او دا زَبَرَه په معنی کتَبة نه ماخوذ دې. زبور په داؤد عليه السلام باندې د نازل کړې شوی کتاب نوم دې په دې کښې یوسل پنځوس سورتونه وو او په ضمې سره مصدر دې په معنی دمزبور.

قوله: وَأَرْسَلْنَا دې کښې اشاره ده چې دَ رُسُلاً ناصب اَرْسَلْنَا فعل محذوف دې.

قوله: بِلاَ وَاسِطَةٍ دا ددې سوال مقدرجواب دې چې دَالله تعالى کلام کول خودَهرنبی سره ثابت دی نوبیادَ موسیٰ عليه السلام څه تحصیص دې؟ جواب دادې چې نورو انبياء کرامو سره کلام بالواسطه شوې دې او موسیٰ عليه السلام سره بلاواسطه.

قوله: مُقَدِّرِينَ الْخُلُودَ دَدې اضافې مقصد دَدې اعتراض جواب دې چې دَ هدايت زمانه اودَ خلود زمانه يوه نه ده حالانکه دَ حال او ذوالحال دَزمانې يوکيدل ضروری دی؟. دَ جواب حاصل دادې چې دَ دوزخ طرف ته لارخودنه به په داسې حالت کښې وی چې دَهغوی دپاره خلود فی النار مقدر شوې دې.

قوله: به مفسرعلام به مقدر منلو سره اشاره کړې ده چې دآمنوا متعلق به، محذوف دې نه چې خيراً څکه چې پوره قرآن کښې دَ آمنوا متعلق هم باء استعمال شوې ده.

قوله: : فَآمِنُوا خَيْرًا لَكُمْ، دَخيرًا دَناصب باره کښې دَ نحودَعلماؤ اختلاف دې دَ سيبويه او خليل وينا ده چې فعل ناصب اقصدوا اتوا دې اودَ فراء رحمه الله وينا ده چې خيراً دَمصدر محذوف صفت كيدو دَ وجې نه منصوب دې. اى آمنوا يكن الايمان خيرا لكم په مذکوره دريوارو صورتونو کښې ثالث دَ ټولونه زيات راجح دې بيا اول او بيا دَ ثانی درجه ده.

قوله: مِمَّا أَنْتُمْ په دې کښې اشاره ده چې من تفضيليه مع مفضل عليه محذوف دې لهذا اوس به دا اعتراض نه وی چې دَ اسم تفضيل استعمال دَ دريو طريقونه په يوې طريقې سره ضروری دې اودلته يوه هم نشته.

قوله: فَلاَ يَضُرُّهُ كُفْرُكُمْ، په دې کښې اشاره ده چې اِنْ تكفروا دَ شرط جزاء محذوف ده اوکوم چې ذکر دی هغه دال على الجزاء ده نه چې جزاء څکه چې که فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ جزاء اومنلې شی نودَ عدم ترتب الجزاء على الشرط اعتراض به لازم راشی.

**قوله**: الإنجيل دا د یو سوال جواب دې.

**سوال**: دَ اهل کتاب تفسیر يئ صرف په اهل انجیل سره ولې کړې دې سره حالانکه چې په اهل کتاب کښې یهودیان هم شامل دی؟

**جواب**: وړاندې دَ غلوفی الدین چې کوم تفصیل بیان شوې دې هغه د شریك حیات اود ولد نه تنزیه ده دَ کوم مصداق چې صرف نصارىٰ دی یهودنه. (تراويح الارواح)

**قوله**: القَوْلَ، دَ القول دَ تقدير په اضافې کولوکښې اشاره ده چې الحق دَموصوف محذوف صفت کیدو دَ وجې نه منصوب دې.

**قوله**: أَوْصَلَهَا: **سوال**: د أَلْقَاهَا تفسيرپه اوصَلَهَا سره دَ کوم مقصد دَپاره کړې شوې دې؟

**جواب**: چونکه دَالقیٰ صله الی نه راځی دَدې دَپاره اشاره اوکړې شوه چې القیٰ دَأَوْصَلَ معنې لره متضمن دې کوم دَ وجې نه چې إلى صله کښې راوړل صحیح دی.

**قوله**: أي ذُوْ رُوْحٍ: **سوال**: دَ روح تفسير په ذو روح په حذف دمضاف سره کولوکښې څه مصلحت دې؟

**جواب**: دې دَپاره چې دَ روح په رسول الله باندې حمل صحيح شي.

**قوله**: عن ذلك وتوا، دې کښې اشاره ده چې د انتهوا مفعول محذوف دې او خيرًا د فعل مقدر توا دَ وجې نه منصوب دې. لهذا دا اعتراض ختم شو چې دَ خیر نه منع کول دَالله تعالىٰ دَ شان سره مناسب نه دی.

**[اياتونه: ۱۷۲ - ۱۷٦]**

﴿لَنْ يَسْتَنْكِفَ﴾ يتكبر ويأنف ﴿الْمَسِيحُ﴾ الَّذِي زَعَمْتُمْ أَنَّهُ إِلَه عَن ﴿أَنْ يَكُونَ عَبْدًا لِلَّهِ وَلَا الْمَلَائِكَةُ الْمُقَرَّبُونَ﴾ عِنْد اللّٰه لَا يَسْتَنْكِفُونَ أَنْ يَكُونُوا عَبِيدًا وَهَذَا مِنْ أَحْسَنِ الاسْتِطْرَاد ذُكِرَ لِلرَّدِّ عَلَى مَنْ زَعَمَ أَنَّهَا آلِهَةٌ أَوْ بَنَات اللّٰه كَمَا رَدَّ بِمَا قَبْله عَلَى النَّصَارَى الزَّاعِمِينَ ذَلِكَ الْمَقْصُود خِطَابهمْ ﴿وَمَنْ يَسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيعًا﴾ فِي الآخرة ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ﴾ ثَوَاب أَعْمَالهمْ ﴿وَيَزِيدُهُمْ مِنْ فَضْلِهِ﴾ مَا لَا عَيْن رَأَتْ وَلَا أُذُن سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلَى قَلْب بَشَر ﴿وَأَمَّا الَّذِينَ اسْتَنْكَفُوا وَاسْتَكْبَرُوا﴾ عَنْ عِبَادَته ﴿فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ مُؤْلِمًا هُوَ عَذَاب النَّار ﴿وَلَا يَجِدُونَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْره ﴿وَلِيًّا﴾ يَدْفَعهُ عَنْهُمْ ﴿وَلَا نَصِيرًا﴾ يمنعهم منه ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمْ بُرْهَانٌ﴾ حُجَّة ﴿مِنْ رَبِّكُمْ﴾ عَلَيْكُمْ وَهُوَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُورًا مُبِينًا﴾ بَيِّنًا وَهُوَ الْقُرْآن ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَاعْتَصَمُوا بِهِ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِي رَحْمَةٍ مِنْهُ وَفَضْلٍ وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَاطًا﴾ طَرِيقًا ﴿مُسْتَقِيمًا﴾ هُوَ دِين الإِسْلَام ﴿يَسْتَفْتُونَكَ﴾ فِي الْكَلَالَة ﴿قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ إِنِ امْرُؤٌ﴾ مَرْفُوع بِفِعْلٍ يُفَسِّرهُ ﴿هَلَكَ﴾ مَاتَ ﴿لَيْسَ لَهُ

وَلَد﴾ أَيْ وَلَا وَالِد وَهُوَ الْكَلَالَة ﴿وَلَهُ أُخت﴾ مِنْ أَبَوَيْنِ أَوْ أَب ﴿فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ وَهُوَ﴾ أَيْ الأَخ كَذَلِكَ ﴿يَرِثُهَا﴾ جَمِيع مَا تَرَكَتْ ﴿إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا وَلَد﴾ فَإِنْ كَانَ لَهَا وَلَد ذَكَر فَلَا شَيْء لَهُ أَوْ أُنْثَى فَلَهُ مَا فَضَلَ مِنْ نَصِيبهَا وَلَوْ كَانَتْ الأُخت أَوْ الأَخ مِنْ أُمّ فَفَرْضه السُّدُس كَمَا تَقَدَّمَ أَوَّل السُّورَة ﴿فَإِنْ كَانَتَا﴾ أَيْ الأُخْتَانِ ﴿اثْنَتَيْنِ﴾ أَيْ فَصَاعِدًا لِأَنَّهَا نَزَلَتْ فِي جابر وقد مات عن اخوات ﴿فلها الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ﴾ الأَخ ﴿وَإِنْ كَانُوا﴾ أَيْ الْوَرَثَة ﴿إِخْوَةً رِجَالًا وَنِسَاءً فَلِلذَّكَرِ﴾ مِنْهُمْ ﴿مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ﴾ شَرَائِع دِينكُمْ لِ ﴿أَنْ﴾ لَا ﴿تَضِلُّوا وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ وَمِنْهُ الْمِيرَاث رَوَى الشَّيْخَانِ عَنْ الْبَرَاء أَنَّهَا آخِر آيَة نَزَلَتْ أَيْ مِنْ الْفَرَائِض

**ترجمه**:- دَحضرت مسيح عليه السلام نه د چاباره كښې چې تاسو دَالوهيت عقيده لرئى دَالله تعالى بنده كيدو نه شرم اوانكار بالكل ممكن نه دې اونه دَالله تعالى مقرب فرښتو نه دَ بنده كيدو نه شرم او انكاركيدې شي. اودا بهترين (طريقه) دَ استطراد ده (يعني طريقه ترديده) دا په هغه خلقو باندې رد كولو دَپاره ذكركړې شوچې دَ فرښتو د اولوهيت يا دَ الله تعالى د لونړه كيدو عقيده لرى لكه چې ماقبل (جملې سره) مذكوره عقيده لرونكو (نصارىٰ) باندې رد اوكړې شو (دلته) مقصود دخطاب هم نصارىٰ دى. او څوک هم چې دَ هغه دَ عبادت نه تنګ اوشرم (مخ اړول او انكار) كوى نو الله تعالى به هغه ټول په آخرت كښې راګير كړى او خپل ځان ته به ئې خامخا حاضر كړى نو چې كومو خلقو ايمان راوړلې او نيک اعمال يې كړې وى نو هغوى ته به دَ هغوى دَعمل پوره پوره ثواب وركړى او هغوى ته به په خپل فضل سره (دَ هغوى د استحقاق نه) زيات اجر وركړى. (داسې اجر) چې نه به چرته سترګو ليدلې وى اونه به چرته غوږونو اوريدلې وى اونه به چرته دَ يوانسان په زړه كښې دَهغې خيال راغلې وى او كومو خلقو چې دَهغه دَ بندګئى نه مخ واړولو او هغه ئې شرم اوګڼلو نو هغوى ته به الله تعالى دَ دردنه ډک عذاب وركړى. او هغه دَ دوزخ سزا ده او دغه خلق به دَ الله تعالى نه سوا بل هيڅوک حمايتى اونه مومى چې دَهغوى دفاع اوكړې شي اونه څوك مددګار چې (دَالله) په مقابله كښې دَهغوى امداد اوكړې شي. خلقو تاسو له ستاسو دَ رب دَ طرف نه حجت راغلې دې. اوهغه نبى (محمد ﷺ) دې او مونږ ستاسو طرف ته يو واضحه رڼا نازله كړې ده اوهغه قرآن دې. نو چې كوموخلقو په الله تعالى باندې ايمان راوړوُ او دائى كلک اونيولو نوهغه به دوى په خپل خصوصى رحمت او فضل كښې داخل كړى اوهغه به دَدوى دَ نيغې لارې طرف ته رهنمائى اوكړى اوهغه دين اسلام دې (خلق) دَ كلاله په باره كښې تاسو نه دَ فتوى تپوس كوى ته هغوى ته اووايه چې الله تعالى پخپله تاسو ته دكلاله په باره كښې فتوى دركوى. كه يوسړې بې بچو مړشى نه دَهغه پلاروى اونه يې بچى وى داسې كس كلاله دې. اِمْرَأ دَهغه فعل محذوف دَ وجې نه مرفوع دې دكوم تفسير چې (فعل) هَلَكَ كوى اودَهغه يوه خور وى حقيقى ياعلاتى، نوهغې ته به دَتركې نصف ملاويږى اوكه چرې خور لاولد مړه شى اورور ئې حقيقى وى يا علاتى نودَ خوردَ ټول

متروکه مال وارث به وی، که چرې خور ئې لاولد وی اوکه د خورئې خوئې وی نو رور ته به هيڅ هم نه ملاويږي اوکه جينئې وی نو روربه ئې د جينئې د حصې نه دپاتې شوي مستحق وی اوکه چرې رور اوخور اخيافي (مور شريك) وی نو د هغوی حصه شپږمه ده لکه چې د سورت په شروع کښې تيرشوی دی اوکه د (مړی)دوه يا د دوو نه زياتې خوئيندې وی نو هغوی ته به د رور د ميراث نه دوه ثلث ملاويږي په دې دليل سره چې دا آيت د جابر ﷺ په باره کښې نازل شو چې يوځو خويندې پريخودو سره مړشوې وو. اوکه وارثان ډير خويندې رونړه وی نو رور ته به د خور دوچند حصه ملاويږي الله تعالی ستاسو د پاره د دين احکام بيانوی. دې د پاره چې تاسو گمراه نشئ او الله تعالی د هريو څيز علم لری اوهم د دې نه ميراث دې. شيخين حضراتو د حضرت براء بن عازب ﷺ نه روايت کړې دې چې د فرائضو په باره کښې نازليدونکې دا آخری آيت دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وَيَسْتَنْكِفْ، مضارع واحد مذکر غائب مصدر استنکاف هغه شرم گنړی او هغه کبر او انکار کوی د دې ماده نکف دې. (س، ن) نَكْفًا، ونَكَفًا بې ځايه کبر کول.

**قوله:** اَلْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ د دې عطف په المسيح باندې دې او دا هم کيدې شی چې الملائكة المقربون په ترکيب توصيفی سره مبتداء وی او لايستنكفون د دې خبرمحذوف وی.

**قوله:** هٰذَامِنْ اَحْسَنِ الاِسْتِطْرَادِ يعنی په ولاالملائكة المقربون کښې استطراد احسن دې.
د استطراد مطلق تعريف: ذکر الشئ فی غير محله لمناسبة يوڅيز په غيرمحل کښې د څه مناسبت د وجې نه ذکر کول استطراد دې.
د استطراد دويم تعريف: د کلام مقصوپه داسې توگه ذکرکول چې غيرمقصود ته مستلزم شی.
استطراد أحسن: د يوې معنې نه بلې معنې ته داسې انتقال کول چې اوله معنی د دويمې معنې د پاره ذريعه جوړه نه کړی شی.
استطراد حسن: د دويمې معنې د پاره کوم چې مقصود وی اول معنی ذريعه جوړه کړې شی، مفسرعلام هذا من احسن الاستطراد وئيلو سره اشاره اوکړه چې په مذکوره آيت کښې استطراد احسن دې.

**قوله:** إليه أی إلی الله أو القرآن.

**قوله:** الزاعِمِيْنَ ذٰلِكَ، دا د النصاری صفت دې او د ذلك اشاره د نصاریٰ عقيدې د الوهيت او ابنيت اوتثليث نه هريو طرف ته ده.

**قوله:** صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا، دا د يهديهم مفعول ثانی کيدو د وجې نه منصوب دې.

## [٥] سورة المائدة

## مدنية مائة وعشرون اية او اثنتان اوثلث

### [ایاتونه: ۱ - ۲]

{يٰأيها الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ} الْعُهُود الْمُؤَكَّدَة الَّتِي بَيْنكُمْ وَبَيْن الله وَالنَّاس {أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الْأَنْعَام} الْإِبِل وَالْبَقَر وَالْغَنَم أَكْلًا بَعْد الذَّبْح {إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ} تَحْرِيمه فِي {حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ} الْآيَة فَالِاسْتِثْنَاء مُنْقَطِع وَيَجُوز أَنْ يَكُون مُتَّصِلًا وَالتَّحْرِيم لِمَا عَرَضَ مِنَ الْمَوْت وَنَحْوه {غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ} أَيْ مُحْرِمُونَ وَنَصْب غَيْر عَلَى الْحَال مِنْ ضَمِير لَكُمْ {إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ} مِنَ التحليل وغيره لا اعتراض عليه {يٰأيها الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ} جَمْع شَعِيرَة أَيْ مَعَالِم دِينه بِالصَّيْدِ فِي الْإِحْرَام {وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ} بِالْقِتَالِ فِيهِ {وَلَا الْهَدْيَ} مَا أُهْدِيَ إِلَى الْحَرَم مِنَ النَّعَم بِالتَّعَرُّضِ لَهُ {وَلَا الْقَلَائِدَ} جَمْع قِلَادَة وَهِيَ مَا كَانَ يُقَلَّد بِهِ مِنْ شَجَر الْحَرَم لِيَأْمَن أَيْ فَلَا تَتَعَرَّضُوا لَهَا وَلَا لِأَصْحَابِهَا {وَلَا} تُحِلُّوا {آمِّينَ} قَاصِدِينَ {الْبَيْتَ الْحَرَامَ} بِأَنْ تُقَاتِلُوهُمْ {يَبْتَغُونَ فَضْلًا} رِزْقًا {مِنْ رَبِّهِمْ} بِالتِّجَارَةِ {وَرِضْوَانًا} مِنْهُ بِقَصْدِهِ بِزَعْمِهِمْ الْفَاسِد وَهَذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ بَرَاءَة {وَإِذَا حَلَلْتُمْ} مِنَ الْإِحْرَام {فَاصْطَادُوا} أَمْر إِبَاحَة {وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ} يَكْسِبَنَّكُمْ {شَنَآنُ} بِفَتْحِ النُّون وَسُكُونهَا بُغْض {قَوْمٍ} لِأَجْلِ {أَنْ صَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ أَنْ تَعْتَدُوا} عَلَيْهِمْ بِالْقَتْلِ وَغَيْره {وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ} بِفِعْلِ مَا أُمِرْتُمْ بِهِ {وَالتَّقْوَى} بِتَرْكِ مَا نُهِيتُمْ عَنْهُ {وَلَا تَعَاوَنُوا} فِيهِ حَذْف إِحْدَى التَّاءَيْنِ فِي الْأَصْل {عَلَى الْإِثْمِ} الْمَعَاصِي {وَالْعُدْوَانِ} التَّعَدِّي فِي حُدُود الله {وَاتَّقُوا اللَّهَ} خَافُوا عِقَابه بِأَنْ تُطِيعُوهُ {إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ} لِمَنْ خَالَفَهُ

**ترجمه**: شروع کوم په نامه دَخدائی چې ډیر مهربان او ډیر رحم والا دې. اې ایمان والو! وعدې پوره کړئ یعنی هغه محکم قول او قرار پوره کړئ کوم چې تاسو الله تعالی سره او د انسانانو سره کړې دی. ستاسو دَ پاره څاروی اوځناور مثلاً اوښ غوا او چیلۍ (وغیره) ذبح کولو نه پس خوړل حلال کړې شوی دی مګر هغه ځناور نه دی حلال کړې شوی دَ کوم حرمت چې به تاسوته په راتلونکی آیت حرمت علیکم المیتة کښې خودلې شی.دا استثناء منقطع ده.اودا هم جائز دی چې متصل وی او تحریم دَمرګ وغیره عارض کیدو دَ وجې نه دې لیکن دَ احرام په حالت کښې ښکار حلال مه ګنړئ یعنی چې کله تاسو محرم یعنی په احرام کښې ئی او غیرَ دکم طرف ته راګرځیدونکی) ضمیرنه حال کیدو دَ وجې منصوب دې، الله تعالی دَ حلت او(حرمت) چې کوم احکام غواړی حکم یې ورکوی. په دې باندې دَاعتراض ګنجائش نشته اې خلقو چې ایمان مو راوړې دې په حرم کښې ښکارکولوسره دَ شعائرالله بې حرمتی مه کوئی شعائر دَ شعیرة جمع ده یعنی دَالله تعالی دَ دین نښې، او نه دَحرمت والومیاشتو، په دې کښې جنګ کولوسره (بې حرمتی مه کوئی) اونه دَ قربانئی د څاروو پسې لاسونه

وروړدولوسره دَهغې بې حرمتی کوئی هدی هغه څاروی او ځناور کوم چې (دَ قربانئی دَپاره) حرم ته بوتلې شی.
اومه په هغه ځناورو پسې لاسونه وروړدوئی دَ کوم په مروکښې چې (دَ الله تعالی دَ نذر دَ علامت په توګه دَحرم دَ ونو پټې) زوړندوی او جنګ کولوسره نه دَهغه خلقو بې حرمتی کوئی چې دَ بیت الحرام په اراده سره روان وی چې دَخپل رب فضل اود تجارت په ذریعه دَخپل رب دَ رزق په خپل خیال کښې دَ بیت الله په ارادې سره دَهغه دَ رضامندئی طلبګار وی. دا حکم په آیت براءة سره منسوخ دې اوکله چې تاسو دَاحرام نه فارغ شئی نو دَ ښکار اجازت دې (فَاصْطَادُوا) کښې امر دَ اباحت دَپاره دې اودَ هغه خلقو دښمنی چاچې تاسو دَمسجد حرام نه منع کړی وئی تاسو په دې خبره باندې آماده نه کړی (اونه پاروی) چې تاسو په هغوی باندې دَ قتل وغیره په ذریعه زیاتې اوکړئی. (شَنَآنُ) دَنون په فتحې اوسکون سره په معنی دَ بغض دې او په نیکئ باندې د هغه کارکولوسره دَ کوم چې تاسوته حکم درکړې شوې دې اوتقوی باندې هغه کار په پرېخودلو سره د کوم نه چې تاسو منع کړې شوی ئې یوبل سره امداد کوئی او په ګناه باندې اودَ الله تعالی په حدودو کښې زیاتې (په خبروکښې) دَ یوبل سره امدادمه کوئی (تَعَاوَنُوا) په اصل کښې دَ دوو تاء ګانو نه یوه تاء محذوف ده اودَ الله تعالی دَعذاب نه ویرېږئی په دې توګه چې دهغه اطاعت کوئی او الله تعالی خپل مخالفت کونکی ته سخته سزا ورکونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اَلْمَائِدَة دسترخوان جمع موائد.

**قوله**: بِالْعُقُوْدِ، واحد عقد پوخ عهد عقد مصدردې او په توګه دَاسم استعمال شوې دې.

**قوله**: بَهِيْمَةٌ جمع بَهَائِم، څاروی دَ عربو په عرف کښې دَ بهائم اطلاق درندګانو او مرغونه علاوه په هرځناور کیږی. بهیمة دَ ابهام نه ماخوذ دې چونکه دَ څارو په آواز کښې ابهام وی په دې وجه دې ته بهائم وئیلې شی.

**قوله**: اَنْعَام واحد نَعَمْ ګډه چیلئ غوا میخه اوښ په انعام کښې دَ اوښ شاملیدل ضروری دی بغیردَ اوښ دَ شاملولو دې ته انعام نه شی وئیلې. دَعربو په نیز چونکه اوښ یوډیر لوئی نعمت دې په دې وجه دې ته نعم اووئیلې شو.

**قوله**: اَكْلاً دې اضافه مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: حلت اوحرمت خو دَافعالو دَ اوصافو نه دی دلته دَ ذات یعنی د بهیمة الانعام وصف ګرځولې شوې دې چې صحیح نه دې.

**جواب:** اكلاً محذوف منلو سره هم دَدغه سوال جواب وركول مقصود دى.

**قوله:** تَحْرِيْمُهٗ دا دَدې سوال جواب دې چې بهيمة متلو څيزونو نه دى؟

**جواب:** بهيمة منلو نه دې بلكه تحريم بهيمة متلو دې.

**قوله:** فَالاِسْتِثْنَاءُ مُنْقَطِعٌ ځكه چې مستثنى منه چې بهيمة الانعام دې او مستثنى چې ما يتلى عليكم دې دَ يو جنس نه نه دى مستثنى منه دَ ذرات دَ قبيل نه دې او مستثنى دَ قبيل د الفاظ.

**قوله:** يَجُوْزُ اَن يَّكُوْنَ مُتَّصِلاً تقدير دَ مضاف په صورت كښې په إلا ما يتلى عليكم، داحلت لكم بهيمة الانعام نه مستثنى متصل وى تقديرى عبارت به داسې شى أى إلا محرم ما يتلى عليكم او محرم نه مراد ميتة دې.

**قوله:** لِمَا عَرَضَ مِنَ الْمَوْتِ: په دې كښې اشاره ده چې أنعام مذكوره حرمت ذاتى نه دې بلكه دَ مرگ دَ وجې نه طارى دې.

**قوله:** وأنتم حُرُم دا جمله غير محلى الصيد دَ ضمير مستتر نه حال دې كوم چې دَلكم ضمير طرف ته راجع دې. يعنى غير محلى الصيد ذو الحال دې او وانتم حُرُم حال دې.

**قوله:** وهذا مَنْسُوْخٌ بِآيَةِ بَرَاءَةٍ وهى قوله تعالى اقتلوا المشركين حيث وجدتموهم.

**[اياتونه: ٣-٥]**

{حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ} أَيْ أَكْلُهَا {وَالدَّمُ} أَيْ الْمَسْفُوح كَمَا فِي الْأَنْعَام {وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ} بِأَنْ ذُبِحَ عَلَى اسْم غَيْره {وَالْمُنْخَنِقَةُ} الْمَيْتَة خَنْقًا {وَالْمَوْقُوذَةُ} الْمَقْتُولَة ضَرْبًا {وَالْمُتَرَدِّيَةُ} السَّاقِطَة مِنْ عُلْو إِلَى أَسْفَل فَمَاتَتْ {وَالنَّطِيحَةُ} الْمَقْتُولَة بِنَطْحِ أُخْرَى لَهَا {وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ} مِنْهُ {إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ} أَيْ أَدْرَكْتُمْ فِيهِ الرُّوح مِنْ هَذِهِ الْأَشْيَاء فَذَبَحْتُمُوهُ {وَمَا ذُبِحَ عَلَى} اسْم {النُّصُبِ} جَمْع نِصَاب وَهِيَ الْأَصْنَام {وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا} تَطْلُبُوا الْقَسْم وَالْحُكْم {بِالْأَزْلَامِ} جَمْع زَلَم بِفَتْحِ الزَّاي وَضَمّهَا مَعَ فَتْح اللَّام قِدْح بِكَسْرِ الْقَاف صَغِير لَا رِيش لَهُ وَلَا نَصْل وَكَانَتْ سَبْعَة عِنْد سَادِن الْكَعْبَة عَلَيْهَا أَعْلَام وَكَانُوا يُحَكِّمُونَهَا فَإِنْ أَمَرَتْهُمْ ائْتَمَرُوا وَإِنْ نَهَتْهُمْ انْتَهَوْا {ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ} خُرُوج عَنْ الطَّاعَة وَنَزَلَ يَوْم عَرَفَة عَام حَجَّة الْوَدَاع {الْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ دِينِكُمْ} أَنْ تَرْتَدُّوا عَنْهُ بَعْد طَمَعهمْ فِي ذَلِكَ لِمَا رَأَوْا مِنْ قُوَّته {فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ} أَحْكَامه وَفَرَائِضه فَلَمْ يَنْزِل بَعْدهَا حَلَال وَلَا حَرَام {وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي} بِإِكْمَالِهِ وَقِيلَ بِدُخُولِ مَكَّة آمِنِينَ {وَرَضِيتُ} أَيْ اخْتَرْت {لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ} مَجَاعَة إِلَى أَيّ شَيْء مِمَّا حُرِّمَ عَلَيْهِ فَأَكَلَهُ {غَيْرَ مُتَجَانِفٍ} مَائِل {لِإِثْمٍ} مَعْصِيَة {فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لَهُ مَا أَكَلَ {رَحِيمٌ} بِهِ فِي إِبَاحَته بِخِلَافِ الْمَائِل لِإِثْمٍ أَيْ الْمُتَلَبِّس بِهِ كَقَاطِعِ الطَّرِيق وَالْبَاغِي مَثَلًا فَلَا يَحِلّ لَهُ الْأَكْل {يَسْأَلُونَكَ} يَا مُحَمَّد {مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ} مِنْ الطَّعَام {قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ

الطَّيِّبَاتِ} الْمُسْتَلَذَّات {و} صَيْد {مَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ} الْكَوَاسِب مِنَ الْكِلَاب وَالسِّبَاع وَالطَّيْر {مُكَلِّبِينَ} حَال مِنْ كَلَّبْت الْكَلْب بِالتَّشْدِيدِ أَيْ أَرْسَلْته عَلَى الصَّيْد {تُعَلِّمُونَهُنَّ} حَال مِنْ ضَمِير مُكَلِّبِينَ أَيْ تُؤَدِّبُونَهُنَّ {مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ} مِنْ آدَاب الصَّيْد {فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ} وَإِنْ قَتَلْنَهُ بِأَنْ لَمْ يَأْكُلْنَ مِنْهُ بِخِلَافِ غَيْر الْمُعَلَّمَة فَلَا يَحِلّ صَيْدهَا وَعَلَامَتهَا أَنْ تَسْتَرْسِل إِذَا أُرْسِلَتْ وَتَنْزَجِر إِذَا زُجِرَتْ وَتُمْسِك الصَّيْد وَلَا تَأْكُل مِنْهُ وَأَقَلّ مَا يُعْرَف بِهِ ثَلَاث مَرَّات فَإِنْ أَكَلَتْ مِنْهُ فَلَيْسَ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَى صَاحِبهَا فَلَا يَحِلّ أَكْله كَمَا فِي حَدِيث الصَّحِيحَيْنِ وَفِيهِ أَنَّ صَيْد السَّهْم إِذَا أُرْسِلَ وَذُكِرَ اسْم اللَّه عَلَيْهِ كَصَيْدِ الْمُعَلَّم مِنَ الْجَوَارِح {وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ} عند ارساله {واتقوا الله إن الله سريع الحساب} {الْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ} الْمُسْتَلَذَّات {وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ} أَيْ ذَبَائِح الْيَهُود وَالنَّصَارَى {حِلٌّ} حلال {لَكُمْ وَطَعَامُكُمْ} إِيَّاهُمْ {حِلٌّ لَهُمْ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُحْصَنَاتُ} الْحَرَائِر {مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ} حِلّ لَكُمْ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ {إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ} مُهُورهنَّ {مُحْصِنِينَ} مُتَزَوِّجِينَ {غَيْرَ مُسَافِحِينَ} مُعْلِنِينَ بِالزِّنَى بِهِنَّ {وَلَا مُتَّخِذِي أَخْدَانٍ} منهن تسرون بالزنى بِهِنَّ {وَمَنْ يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ} أَيْ يَرْتَدّ {فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ} الصَّالِح قَبْل ذَلِكَ فَلَا يُعْتَدّ بِهِ وَلَا يُثَاب عَلَيْهِ {وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ} إذا مات عليه .

---

**ترجمه**:- ستاسو دَپاره مرداره او بهیدونکې وینه (حرام کړې شوې دی) لکه چې په سورت انعام کښې ذکر دی. او دَ خنزیر غوښه او هغه څناور په کوم چې (دَ ذبح په وخت کښې) دَغیرالله نوم اخستې شوې وی په دې صورت چې دَ غیرالله په نوم باندې ذبح کړې شوې وی خوړل حرام کړې شوی دی او ساه بندیدو سره مړشوې څناور او زخمی شوې مړشوې څناور او دَ پورته نه راپریوتلې مړشوې څناور او هغه څناور چې دَبل څناور په ښکرو وهلو سره مړشوې وی او هغه څناور دَ کوم نه چې درنده ګانو خوړلې وی (خوړل حرام کړې شوی دی) مګر چې تاسو دا ذبح کړې وی یعنی په ذکرشوو څناورو کښې چې تاسو ته کوم ژوندې ملاؤ شوې وی او تاسو ذبح کړې وی (نو هغه حرام نه دې) او هغه څناور چې دَبتانو په نوم ذبح کړې شوی وی. **نُصُبْ** دَ **نصابْ** جمع ده او هغه بتان دی (حرام کړې شوی دی) او دغشو فال په ذریعه **قسمت معلومولو سره نتیجه معلومول** (حرام کړې شوی دی) **اَزْلَام** دَ **زَلَمْ** جمع ده دَ زاء په فتحې او ضمې سره او مع دَ لام په فتحې سره وړوکې غشې په کوم کښې چې نه وزر لګیدلې وی او نه اونه پېڅ سوکه وی **قِدحْ** دَ قاف په کسرې سره دې او هغه اوره غشی وو چې دَ بیت الله خادم سره به وو په هغې به نښې لګیدلې وې دَهغې نه به ئې جواب غوښتلو (فال به ئې پرې ویستلو) که چرې هغې به اجازت ورکولو نو هغه کار به ئې کولو او که جواب به په ممانعت کښې وتلو نو نه به ئې کولو دا فسق دې یعنی دَ اطاعت نه خروج دې (آئنده آیت) دَحجة الوداع په موقع باندې نازل شو اوس کافران ستاسو دَ دین (اسلام) نه دَ مرتد کیدو باره کښې دَ خواهش لرلو باوجود ناامیده شوی دی څکه چې هغوی دَدې دین طاقت لیدلې دې. **لهذا** تاسو دَدوی نه مه

ورېږئي او هم زما نه ويرېږئ. نن ما ستاسو دين (يعني) دَدې احكام او فرائض مكمل كړل چنانچه دَدې نه پس بيا دَ حلال اوحرام څه حكم نازل نه شو او په تاسو باندې ما خپل دين مكمل كړو او خپل انعام مې پوره كړو. اووئيلې شوى دى چې په مكه كښې په مامون طريقه باندې داخلولوسره (انعام مكمل كړو) اوما ستاسو دَ پاره اسلام دَ دين په توګه خوښ كړو كوم سړې چې دَ سختې ولګې نه بې تابه وى دَهغه دَ پاره دَ حرام كړې شوى څيزونو نه معمولى شان خوراك كول خو مباح دى په دې شرط چې دَ ګناه طرف ته ئې خيال نه وى نو الله تعالى دغه خوراك معاف كونكې دې او دغه كس دپاره (داخوراك) مباح كولوسره رحم كونكې دې په خلاف دَهغه سړى چې دګناه طرف ته ئې خيال وى يعنى (دَ ګناه) مرتكب وى لكه د شوكه كونكې باغى مثلاً نوددغه كس دَپاره (مذكوره څيزونو) نه خوراك كول حلال نه دى. اې محمد ﷺ تانه خلق سوال كوى چې دَهغوى دَپاره كوم خوراك حلال دى؟ ته ورته اووايه چې ستاسو دَپاره پاك صفا اوخوږندناك څيزونه حلال كړې شوى دى اودَ هغه ښكارى ځناورو كړې شوې ښكار كوم چې تاسو اموخته كړې وى كه هغه سپې وى كه شلونكې ځناور وى يا مرغئى وى په دې شرط چې تاسو هغه ښكار پسې پرېږدئى (مُكَلِّبِيْنَ) عَلَّمْتُمْ دَ ضميرنه حال دې اود كَلَّبْتُ الْكَلْبَ بالتشديد نه ماخوذ دې أى أَرْسَلْتُ على الصيد حال دا چې تاسو دَ الله تعالى خودلى شوى آداب ښكار هغه ته خودلې وى. (تعلموهن) مكلبين دَ ضميرنه حال دې أى تُؤَدِّبُوْنَهُنَّ نو تاسو هغه ښكار خوړلې شئى كوم چې هغه ستاسو دَ پاره كړې وى سره دَدې چې هغه رژلې وى په دې شرط چې دَهغې نه ئې څه خوړلې نه وى په خلاف دَ بغير اموخته كړې شوى ځناور چې دهغه كړې شوې ښكار حلال نه دې او دَ اموخته كړې شوى پېژندګلو داده چې كله هغه ښكار پسې په منډه كړې نو چې منډه كړى او كله چې يې منع كړې نو چې اودرېږى او دَ ښكار په نيولو سره دَهغې نه څه خورى نه. اود كم نه كم علامت چې دهغې په په ذريعه دَ ځناور معلَّم كيدل معلوم شى درې ځل (ښكار پسې) پرېخودل دى كه ښكارى ځناور دَ دې نه څه خوراك اوكړو نو پوهه شئى چې ده دَخپل مالك دَپاره نه دې نيولې لهذا په داسې صورت كښې دَ دغه ښكار خوړل حلال نه دى لكه چې دَ صحيحين په حديث كښې دى او هم په دې كښې دى چې په غشى سره كړې شوې ښكار چې دَغشى پرېخودو وخت كښې بسم الله وئيلې وى نودا دَ غشى ښكار دَ ښكارى ځناور په شان دې (حلال) دې او صيدمعلم پرېخودو وخت كښې دَالله تعالى نوم اخلئ اودَ الله تعالى نه ويرېږئ يقيناً الله تعالى دير زر حساب اخستونكې دې. نن تول پاك څيزونه ستاسو دَپاره حلال كړې شوى دى اودَ اهل كتاب خوراك ستاسو دَپاره يعنى دَ يهود او نصارىٰ ذبيحه حلال كړې شوه اوستاسو ذبيحه دَهغوى دَپاره حلال كړې شوه او پاكدامنې مؤمنانې ښځې اود اهل كتاب(دَ يهود

اونصاري) آزادې ښځې ستاسو دپاره حلال کړې شوی دی يعنی ستاسو دَ پاره د هغوی سره نکاح کول جائز دی کله چې تاسو دَهغوی مهر اداکړئ حال دا چې تاسو هغوی سره نکاح کونکی ئې نه چې هغوی سره په ښکاره (د زنا په ذريعه) شهوت پوره کوونکی اوندپټه باندې هغوی سره ياراني کونکې چې هغوی سره زنا پټونکی يئ او کوم کس چې دَ ايمان منکر شو يعنی مرتد شو نودَهغه وړاندينی نيک اعمال ضايع شو لهذا هغه به په هيڅ شمير کښې نه وی او نه به په هغې اجرور کولې شی او هغه به په آخرت کښې دَ تاوانيانو نه وی کله چې هغه په ارتداد باندې مړشوې وی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: الْمَيْتَةُ اسم صفت دې مرداره هغه ځناور چې بغيردَ شرعی ذبح يا څه حادثې يا په خپل مرګ مړشی.

**قوله**: أَكْلُهَا، مضاف محذوف منلوسره اشاره اوکړه چې دّ حلت اوحرمت تعلق د افعال سره وی نه ذات سره.

**قوله**: الْمُنْخَنِقَةُ، اسم فاعل واحد مؤنث (انخناق،انفعال) خَنِقًا(ن) مرئی خفه کيدل.

**قوله**: أُهِلَّ: الإِهْلَالُ رفع الصوت،لغيرالله به کښې لام په معنی دَباء اوباء په معنی عند، المعنی، مارفع الصوت عند ذکاته باسم غيرالله.

**قوله**: الْمَوْقُوذَةُ وَقْذ، (ض) اسم مفعول واحد مؤنث زخمی کيدلو سره مړشوې.

**قوله**: الْمُتَرَدِّيَةُ اسم فاعل واحد مؤنث تَرَدِّی (تفعّل) دَ اوچت ځائی نه راپريوتوسره مړشوې ځناور.

**قوله**: النَّطِيحَةُ صيغه صفت په وزند فَعِيْلَةٌ په معنی د منطوحة نطح (ف، ن) هغه چيلئ چې دَ بلې دَ ښکرد زخم نه مړه شوې وی، بعض اهل لغت دَ چيلئ تخصيص نه دې کړې.

**سوال**: نطيحة په وزن دَ فعيلة دې فعلية په وزن کښې مذکراومؤنث دواړه برابردی لهذا دلته دَ تاء ضرورت نشته؟

**جواب**: نطيحة کښې تاء انتقال من الوصفية إلى الاسمية دَپاره دې نه چې دَ تانيث دَپاره لکه ذبيحة کښې چې ده.

**قوله**: منه،منه دَ اضافي مقصد دَدې سوال جواب دې چې فَأَكَلَ السَّبُعُ مطلب دې کوم چې ليوه خوړلې وی اوداخبره ښکاره ده چې ليوه کوم ځناور اوخوړلو هغه معدوم شو ومعدوم سره دَحلت يا حرمت هيڅ حکم نه متعلق کيږی، مِنْهُ وئيلو سره دَدې دا جواب ورکړې شو چې دَ کوم ښکارنه څه حصه ليوه خوړلې وی دکوم دَ وجې نه چې ځناور

مرشوې وي ده هغې خوړل حلال نه دي.

**قوله**: اِلَّامَاذَكَّيْتُمْ دا اَلْمُنْخَنِقَةُ او دې د مابعدنه استثناء ده.

**قوله**: عَلَى اسْمِ النُّصُبِ: **سوال**: د لفظ اسم ذاضافې څه فائده ده؟

**جواب**: دې دپاره چې ذ ذبح صله عَلٰی صحیح شي لهذا علی په معنی د لام اخستلو ضرورت به نه وي. (كماقال البعض)

**قوله**: ذٰلِكُمْ، اي الاستقسام بالازلام خاصةً فسق.

**قوله**: رَضِيْتُ، دا ذ بیان حال دپاره جمله مستانفه ده ددې عطف په اَكْمَلْتُ باندې نه دې ځکه چې ددې نه به دا لازم شي چې ذ اسلام نه ذ دین کیدو په اعتبارسره نن راضي شوم ددې نه وړاندې راضي نه ووم حالانکه اسلام ذالله تعالی خوښ کړې شوې دین دې اوذ هریونبي دین اسلام دې. رضيتُ متعدی بیك مفعول دې اوهغه الاسلام دې او دِيْنًا تمیز دې.

**قوله**: اِخْتَرْتُ، بعض حضراتو وئیلي دي چې رضيتُ په معنی د اخترتُ دې چې متعدی بدومفعول دې او اول مفعول الاسلامَ او دویم دِيْنًا دې. لهذا په دې صورت کښې به دينًا لره دحال یا تمیز گرځولو ضرورت پاتې نه شي.

**قوله**: غيرَ مُتَجَانِفٍ، ذتفاعل نه اسم فاعل واحد مذكر دې ذ بدئي طرف ته مائل کیدونکي، ذ حق نه مخ اړونکي، غَيْرَمنصوب على الحال دې.

**قوله**: مَخْمَصَةٍ: اسم، داسې اولګه په کومه کښې چې خیټه اولګي.

**قوله**: فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ، دا آیت درې ځایه راغلې دې دلته، سورت بقره کښې او په سورت نحل کښې.

جواب شرط طرف ته يې اشاره کړې ده اوبعض حضراتو فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ محذوف منلې دې فَمَنِ اضطر الخ دا آیت د سابقه تتمه ده اوذ ذلك فسق نه تردې ځائی پورې جمله معترضه ده چې ذ دوو کلامونو په مینځ کښې واقع شوې ده.

**قوله** كقَاطِعِ الطَّرِيْقِ، اي اِذَاكَانَامُسَافِرَيْنِ.

**[اياتوله: ٦-١١]**

{يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ} أَيْ أَرَدْتُمُ الْقِيَام {اِلَى الصَّلٰوةِ} وَأَنْتُمْ مُحْدِثُونَ {فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ} أَيْ مَعَهَا كَمَا بَيَّنَتْهُ السُّنَّة {وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ} الْبَاء لِلْإِلْصَاقِ أَيْ أَلْصِقُوا الْمَسْح بِهَا مِنْ غَيْر إِسَالَة مَاء وَهُوَ اسْم جِنْس فَيَكْفِي أَقَلّ مَا يَصْدُق عَلَيْهِ وَهُوَ مَسْح بَعْض شَعْره وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ {وَاَرْجُلَكُمْ} بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى أَيْدِيكُمْ وَبِالْجَرّ عَلَى الْجِوَار {اِلَى الْكَعْبَيْنِ} أَيْ مَعَهُمَا كَمَا بَيَّنَتْهُ السُّنَّة

وَهُمَا الْعَظْمَانِ النَّاتِئَانِ فِي كُلِّ رِجْلٍ عِنْدَ مَفْصِلِ السَّاقِ وَالْقَدَمِ وَالْفَصْلُ بَيْنَ الْأَيْدِي وَالْأَرْجُلِ الْمَغْسُولَةِ بِالرَّأْسِ الْمَمْسُوحِ يُفِيدُ وُجُوبَ التَّرْتِيبِ فِي طَهَارَةِ هٰذِهِ الْأَعْضَاءِ وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيُّ وَيُؤْخَذُ مِنَ السُّنَّةِ وُجُوبُ النِّيَّةِ فِيهِ كَغَيْرِهِ مِنَ الْعِبَادَاتِ {وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا} فَاغْتَسِلُوا {وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى} مَرَضًا يَضُرُّهُ الْمَاءُ {أَوْ عَلَى سَفَرٍ} أَيْ مُسَافِرِينَ {أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ} أَيْ أَحْدَثَ {أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ} سَبَقَ مِثْلُهُ فِي آيَةِ النِّسَاءِ {فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً} بَعْدَ طَلَبِهِ {فَتَيَمَّمُوا} اقْصِدُوا {صَعِيدًا طَيِّبًا} تُرَابًا طَاهِرًا {فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ} مَعَ الْمِرْفَقَيْنِ {مِنْهُ} بِضَرْبَتَيْنِ وَالْبَاءُ لِلْإِلْصَاقِ وَبَيَّنَتِ السُّنَّةُ أَنَّ الْمُرَادَ اسْتِيعَابُ الْعُضْوَيْنِ بِالْمَسْحِ {مَا يُرِيدُ اللّٰهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ} ضِيقٍ بِمَا فَرَضَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْوُضُوءِ وَالْغُسْلِ وَالتَّيَمُّمِ {وَلٰكِنْ يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ} مِنَ الْأَحْدَاثِ وَالذُّنُوبِ {وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ} بِالْإِسْلَامِ بِبَيَانِ شَرَائِعِ الدِّينِ {لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} نِعَمَهُ {وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ} بِالْإِسْلَامِ {وَمِيثَاقَهُ} عَهْدَهُ {الَّذِي وَاثَقَكُمْ بِهِ} عَاهَدَكُمْ عَلَيْهِ {إِذْ قُلْتُمْ} لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ بَايَعْتُمُوهُ {سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا} فِي كُلِّ مَا تَأْمُرُ بِهِ وَتَنْهَى مِمَّا نُحِبُّ وَنَكْرَهُ {وَاتَّقُوا اللّٰهَ} فِي مِيثَاقِهِ أَنْ تَنْقُضُوهُ {إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ} بِمَا فِي الْقُلُوبِ فَبِغَيْرِهِ أَوْلَى {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ} قَائِمِينَ {لِلّٰهِ} بِحُقُوقِهِ {شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ {وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ} يَحْمِلَنَّكُمْ {شَنَآنُ} بُغْضُ {قَوْمٍ} أَيِ الْكُفَّارِ {عَلَى أَلَّا تَعْدِلُوا} فَتَنَالُوا مِنْهُمْ لِعَدَاوَتِهِمْ {اعْدِلُوا} فِي الْعَدُوِّ وَالْوَلِيِّ {هُوَ} أَيِ الْعَدْلُ {أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُوا اللّٰهَ إِنَّ اللّٰهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ {وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ} وَعْدًا حَسَنًا {لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ} هُوَ الْجَنَّةُ {والذين كفروا وكذبوا بآياتنا أولئك أصحاب الجحيم} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ هَمَّ قَوْمٌ} هُمْ قُرَيْشٌ {أَنْ يَبْسُطُوا} يَمُدُّوا {إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ} لِيَفْتِكُوا بِكُمْ {فَكَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ} وَعَصَمَكُمْ مِمَّا أَرَادُوا بِكُمْ {واتقوا الله وعلى الله فليتوكل المؤمنون}

**ترجمه**:- اې هغه خلقو چې ايمان مو راوړې دې کله چې تاسو دَ مانځه دَپاره پاسئ يعنى دَ پاسيدو اراده اوکړئ حال دا چې تاسو بې اودسه ئې نو خپل مخونه او لاسونه ترڅنګلو پورې اووينځئ يعنى سره دَ څنګلو لکه چې سنت بيان کړې دى. او په سرونو باندې لاس راکاږئ باء دَ الصاق دَپاره ده يعنى مسح دَ سرونونه د اوبو بهيولو بغير متعلق کړئ. مسح اسم جنس دې لهذا په څه چې مسح صادق راشى دَهغې کم نه کم کافى دې او هغه دَ سر دَ بعض ويښتو مسح ده او هم دغه دَ امام شافعى رحمه الله مذهب دې او دَ ګيټو پورې خپې اووينځئ څنګه چې سنت بيان کړې دې. په «اَرْجُلَكُمْ» نصب سره دې اَيۡدِيَكُمۡ باندې دعطف دوجې او جر دَ ګاونډ دَ رعايت دَ وجې نه دې او «کَعۡبَيۡن» دوه راپړسيدلى «راختلى» هډوکى دى، په هره خپه کښې دَ خپې او قدم دَ جوړيه مقام باندې او لاس او خپو دَ اعضاء مغسوله په مينځ دَ دې ممسوح فصل دَدغه اندامونو په طهارت کښې دَ وجوب ترتيب فائده ورکوى

او هم دغه دَ امام شافعي مذهب دي. اوپه اودس کښې په نيت د وجوب دَ نورو عبادتونو په شان د سنت (إِنَّمَا الأَعْمَالُ بِالنيات) نه ماخوذ دې اوکه چرې تاسو جنبي ئی نو په ښه شان سره طهارت حاصل کړئ يعني غسل اوکړئ اوکه چرې تاسو بيماران ئی داسې بيماري په کوم کښې چې اوبه نقصاني وی يا دَ سفرپه حالت کښې ئی يا په تاسو کښې څوک دَ قضاء حاجت نه راغلې وی يعني حدث يې کړې وی يا تاسو ښځو سره صحبت کړی وی اودَ لټون پس هم اوبه ملاؤ نه شی نو دَپاکې خاورې اراده اوکړئ(يعني دَ خاورې نه کاروا خلئی) نوخپل مخونه او لاسونه ترڅنګلوپورې مسح کړئ په خاوره باندې دوه ضربونه اولګوئی اوباء دَالصاق دَپاره ده. اوسنت دا خبره واضحه کړې ده چې دَدوارو اندامونو دَمسح نه مراد استيعاب بالمسح دې الله تعالی په تاسو باندې اودس، غسل او تيمم فرض کولوسره ستاسو دَپاره څه قسم تنګی پيدا کول نه غوارې ليکن هغه غوارې چې تاسودَ پليتنی او ګناهونونه پاک کړی اودَ دين قوانين بيانولو سره په تاسو باندې خپل نعمت پوره کول غوارې دې دَپاره چې تاسو دَهغه دَنعمتونو شکريه اداکړئ اوتاسو په خپل ځان باندې نعمت دَاسلام يادکړئ اودَ خپلې هغه وعدې خيال اوساتئ چې هغه تاسو نه هغه وخت اخستې وه چې کله تاسو دَنبي بيعت سره د کولو په وخت کښې وئيلی وو چې مونږ واؤريدل او قبول موکړل په هره هغه خبره کښې دکومې چې نبي عليه السلام حکم اوکړی اومنع اوکړی که مونږ ئی خوښ کړو اوکه ناخوښه ئی کړو. اوالله تعالی سره دکړې عهدباره کښې دَنقض عهدکولونه دَالله تعالی نه اوويريږئ بيشکه الله تعالی دَ زړونو په رازونو باندې خبر دې. نودَدې نه علاوه خو په طريقه اولی واقف دې. اې خلقو چې ايمان موراوړې دې دَالله تعالی دَ پاره دَهغه دحقوقو سره په راستئی باندې قائم پاتې کيدونکی اوپه انصاف سره ګواهی ورکونکی جوړشئ. دَ يوجماعت دَښمنی دې تاسوپه دې باندې آماده نه کړی چې تاسوهغوی سره انصاف اونه کړئ چې تاسو د هغوی سره دَدښمنئی د وجې نه دَهغوی نه خپل مقصد حاصل کړئ دوست اودښمن هريوسره انصاف کوئ اوانصاف دَ الله تعالی نه ډيرمناسب دې دَالله تعالی نه اوويريږئ اوڅه چې تاسو کوئ الله تعالی دَهغې نه په پوره توګه خبردې نو هغه به تاسوته دَ هغې بدله درکړی دَهغه خلقو دَپاره چې ايمان ئی راوړې دې نيک عملونه يې کړی وی د الله تعالی ښه وعده ده چې دَهغوی دَپاره مغفرت دې او عظيم اجر دې اوهغه جنت دې. اوکوم خلق چې کفر اوکړی او زمونږ آياتونه دروغ ګڼړی نوهغوئ دوزخيان دی. اې خلقو چې ايمان مو راوړې دې دَالله تعالی هغه احسان يادکړئ کوم چې هغه په تاسو باندې کړې دې. کله چې يوقوم يعني قريشو اراده کړې وه چې تاسوته لاس داوږد کړې دې دَپاره چې تاسو ته نقصان اورسوی (قتل موکړی) مګر الله تعالی دَ هغوی لاسونه په تاسو باندې دَ اوچتيدو بندکړل اوتاسو ئی دهغه څه نه محفوظ اوساتلئ دکوم څه چې هغوی تاسو سره دکولو اراده کړې وه. دَالله تعالی نه اوويريږئ اودَايمان والوله هم په الله تعالی باندې بهروسه کول پکار دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: ای أَرَدْتُمُ القِيامَ دَدي اضافې مقصد دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: إِذَا قُمْتُمْ الى الصلوة فاغسلو وجوهكم نه معلوميږي چې طهارت شروع فى الصلوة نه پس واجب دي حالانكه دَمونځ شروع كولونه وړاندې طهارت ضروري دی؟.

**جواب**: دادې چې إِذَا قُمْتُمْ مطلب دا دې إذا أردتم القيامَ يعنى كله چې تاسو دَ مونځ كولو اراده اوكړئي نو طهارت حاصل كړئي.

**سوال**: قمتم وئيلوسر د أردتم اراده په كوم مناسبت سره ده په دې كښې كومه علاقه ده؟

**جواب**: مسبب وئيلوسره سبب مراد اخستې شوې دې. اراده چونكه دَقيام سبب دې او قيام مسبب دې لهذا دلته قيام وئيلوسره اراده مراد اخستې شوې دې.

**قوله**: وَأَنتُمْ مُحْدِثُونَ دا اضافه هم دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دَمذكوره آيت نه معلوميږي چې كله هم دَ قيام الى الصلوة اراده وى نوطهارت حاصلول ضروري دى كه دَ اول نه طهارت حاصل وى او كه نه؟

**جواب**: اودس هغه وخت ضروري دې كله چې طهارت نه وى هم په دې دَ علماؤ اتفاق دې خو دَهر مانځه دَپاره تازه اودس كول بهتر دى.

**قوله**: المَرَافِقِ دا مرفق جمع ده دَميم په كسرې اود فاء په زبرسره دې. په دې كښې يولغت دَ ميم فتحه اوفاء كسره هم ده هغه جوړته وائى چې دَ مټ اود اوږې په مينځ كښې وى كوم ته چې په اردوكښې كُهنى وائى او پښتو كښې ورته څنګل وائى.

**قوله**: اَلْبَاءُ لِلْإِلْصَاقِ بعض حضراتو وئيلي وى چې باء زائده ده او بعضو وئيلى دى چې تبعيض دَپاره ده. ابن هشام او زمخشري رحمه الله وئيلي دى چې الصاق دَپاره ده يعنى مسح كه هغه دَ پوره سر وى اوكه دَ بعض سر متعلق كړئ. امام مالك رحمه الله اوامام احمد رحمه الله احتياطًا استيعاب واجب وئيلي دى او امام شافعي رحمه الله اقل مقدار واجب وئيلي دى ځكه چې دا يقيني مقداردې او امام ابوحنيفه رحمه الله څلورمه حصه دَ سر مسح واجب ګرځولې ده او دليل دَرسول الله ﷺ هغه حديث دې په كوم كښې چې وارد شوى دى أَنَّهُ مسح على الناصية، الناصية مقدم الرأس وهو بقدر ربع الرأس.

**قوله**: بالنَّصْبِ، أَرْجلكم، كښې دوه قراءتونه دى دَ لام په فتحې سره دا دَنافع رحمه الله اود ابن عامر رحمه الله اوكسائى رحمه الله او حفص رحمه الله دَ عاصم رحمه الله نه.

**قوله**: بالجَرّ دا دَ باقى قراء سبعه دې هم دَدې اختلاف قراءت دَ وجې نه دَ خپو وينځل يا

مسح کولوباره کښې دمسلمانانو په مينځ کښې اختلاف پيداشوي دي. داهل سنت په نيز صرف غسل واجب دي اودَ اهل تشيع په نيز مسح ضروري ده او داؤد بن على اود فرقه زيديه نه ناصر للحق ددواړو په مينځ کښې دَ جمع قائل دي.

**قوله**: والجرّللجوار، دا دَ يوسوال جواب دي.

**سوال**: ډير قراء أرجلكم کښې لام په کسرې سره لولي دَ جر دَ قرات په صورت کښې رؤسکم باندې عطف کيدو د وجې به دَ مسح حکم وي حالانکه دا مذهب دَ خوراجو اود اهل تشيع دي کوم چې دَ سنت رسول او سنت صحابه خلاف عمل دي؟

**جواب**: حاصل د جواب دادې چې اَرْجُلِكُم د لام کسره د رعايت دَ جوار دَ وجې نه ده نه چې دَعطف على المجرور دَ وجې نه اودَدې مثالونه په قرآن اوغيرقرآن کښې ډير دي.

[اياتونه:۱۲-۱۹]

{وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ} بِمَا يُذْكَر بَعْد {وَبَعَثْنَا} فِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة أَقَمْنَا {مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا} مِنْ كُلّ سِبْط نَقِيب يَكُون كَفِيلًا عَلَى قَوْمه بِالْوَفَاءِ بِالْعَهْدِ تَوْثِقَةً عَلَيْهِمْ {وَقَالَ} لَهُمْ {اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ} بِالْعَوْنِ وَالنُّصْرَة {لَئِنْ} لَام قَسَم {أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ} نَصَرْتُمُوهُمْ {وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا} بِالْإِنْفَاقِ فِي سَبِيله {لَأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ فَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَلِكَ} الْمِيثَاق {مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ} أَخْطَأَ طَرِيق الْحَقّ وَالسَّوَاء فِي الْأَصْل الْوَسَط فَنَقَضُوا الْمِيثَاق قال تعالى {فَبِمَا نَقْضِهِمْ} مَا زَائِدَة {مِيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ} أَبْعَدْنَاهُمْ عَنْ رَحْمَتنَا {وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً} لَا تَلِين لِقَبُولِ الْإِيمَان {يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ} الَّذِي فِي التَّوْرَاة مِنْ نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْره {عَنْ مَوَاضِعِهِ} الَّتِي وَضَعَهُ اللَّه عَلَيْهَا أَيْ يُبَدِّلُونَهُ {وَنَسُوا} تَرَكُوا {حَظًّا} نَصِيبًا {مِمَّا ذُكِّرُوا} أُمِرُوا {بِهِ} فِي التَّوْرَاة مِنْ اتِّبَاع مُحَمَّد {وَلَا تَزَالُ} خِطَاب لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {تَطَّلِعُ} تَظْهَر {عَلَى خَائِنَةٍ} أَيْ خِيَانَة {مِنْهُمْ} بِنَقْضِ الْعَهْد وَغَيْره {إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ} مِمَّنْ أَسْلَمَ {فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ} وَهَذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ السَّيْف {وَمِنَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَى} مُتَعَلِّق بِقَوْلِهِ {أَخَذْنَا مِيثَاقَهُمْ} كَمَا أَخَذْنَا عَلَى بَنِي إِسْرَائِيل الْيَهُود {فَنَسُوا حَظًّا مِمَّا ذُكِّرُوا بِهِ} فِي الْإِنْجِيل مِنْ الْإِيمَان وَغَيْره وَنَقَضُوا الْمِيثَاق {فَأَغْرَيْنَا} أَوْقَعْنَا {بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ} بِتَفَرُّقِهِمْ وَاخْتِلَاف أَهْوَائِهِمْ فَكُلّ فِرْقَة تُكَفِّر الْأُخْرَى {وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ} فِي الْآخِرَة {بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ} فيجازيهم عليه {يَا أَهْلَ الْكِتَابِ} الْيَهُود وَالنَّصَارَى {قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولُنَا} مُحَمَّد {يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِمَّا كُنْتُمْ تُخْفُونَ} تَكْتُمُونَ {مِنَ الْكِتَابِ} التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل كَآيَةِ الرَّجْم وَصِفَته {وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ} مِنْ ذَلِكَ فَلَا يُبَيِّنهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَصْلَحَة إِلَّا افْتِضَاحكُمْ {قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللَّهِ نُورٌ} هُوَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَكِتَابٌ} قُرْآن {مُبِينٌ} بَيِّن ظَاهِر {يَهْدِي بِهِ} أَيْ بِالْكِتَابِ {اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ} بِأَنْ آمَنَ

{سُبُلَ السَّلَامِ} طُرُق السَّلَامَة {وَيُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ} الكُفْر {إِلَى النُّورِ} الإِيمَان {بِإِذْنِهِ} بِإِرَادَتِهِ {وَيَهْدِيهِمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ} دِين الإِسلام {لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ} حَيْثُ جَعَلُوهُ إِلَهًا وَهُمْ الْيَعْقُوبِيَّة فِرْقَة مِنَ النَّصَارَى {قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ} أَيْ يَدْفَع {مِنَ} عَذَاب {اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُهْلِكَ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا} أَيْ لَا أَحَد يَمْلِك ذَلِكَ وَلَوْ كَانَ الْمَسِيح إِلَهًا لَقَدر عَلَيْهِ {وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ} شاءه {قَدِيرٌ} {وَقَالَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى} أَيْ كُلّ مِنْهُمَا {نَحْنُ أَبْنَاءُ اللَّهِ} أَيْ كَأَبْنَائِهِ فِي الْقُرْب وَالْمَنْزِلَة وَهُوَ كَأَبِينَا فِي الرحمة والشفقة {وَأَحِبَّاؤُهُ قُلْ} لَهُمْ يَا مُحَمَّد {فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوبِكُمْ} إِنْ صَدَقْتُمْ فِي ذَلِكَ وَلَا يُعَذِّب الْأَب وَلَده وَلَا الْحَبِيب حَبِيبه وَقَدْ عَذَّبَكُمْ فَأَنْتُمْ كَاذِبُونَ {بَلْ أَنْتُمْ بَشَرٌ مِمَّنْ} مِنْ جُمْلَة مَنْ {خَلَقَ} مِنَ الْبَشَر لَكُمْ مَا لَهُمْ وَعَلَيْكُمْ مَا عَلَيْهِمْ {يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ} الْمَغْفِرَة لَهُ {وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ} تَعْذِيبه لَا اعْتِرَاض عَلَيْهِ {وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ} المرجع {يَا أَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولُنَا} مُحَمَّد {يُبَيِّنُ لَكُمْ} شَرَائِع الدِّين {عَلَى فَتْرَةٍ} انْقِطَاع {مِنَ الرُّسُلِ} إِذْ لَمْ يَكُنْ بَيْنه وَبَيْن عِيسَى رَسُول وَمُدَّة ذَلِكَ خَمْسمِائَةٍ وَتِسْع وَسِتُّونَ سَنَة ل {أَنْ} لَا {تَقُولُوا} إِذَا عُذِّبْتُمْ {مَا جَاءَنَا مِنْ} زَائِدَة {بَشِيرٍ وَلَا نَذِيرٍ فَقَدْ جَاءَكُمْ بَشِيرٌ وَنَذِيرٌ} فَلَا عُذْر لَكُمْ إِذًا {وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ تَعْذِيبكُمْ إِنْ لم تتبعوه

---

**ترجمه**:- او الله تعالی دَ بنی اسرائيلو نه دَ آئنده ذکر شوې خبرو خبرو باره کښې دا پخه وعده اخستې وه او مونږ په هغوی کښې دولس نقيبان يعنی مشران مقرر کړی وو. په دې کښې دَ غيبت نه (دَ تکلم طرف ته) التفات دې (بَعَثْنَا په دمعنی اقمنا دې نه چې په معنی دَ ارسلنا دې) دَ هرې قبيلې نه يو نقيب (نګران) چې هغه په خپل قوم باندې دَ وعدې دپوره کولو تاکيد اوکړی او هغوی ته مو وئيلی وو چې زه به دَ اعانت او نصرت په اعتبار سره تاسو سره يم قسم دې که تاسو مونځ قائم کړو او زکوة مو اداکړو او زما په رسولانو باندې مو ايمان راوړو او دَ هغوی امداد مو اوکړو او دَ الله تعالی په لار کښې موخرچ کولو سره الله تعالی ته قرض حسنه ورکړو نو يقينِ ساتئ چې زه به ستاسو ګناهونه ستاسو نه لرې کړم. او تاسو به په داسې باغونو کښې ورداخل کړم دَ کوم نه لاندې چې به نهرونه بهيږی دَ دې عهد نه پس چا چې کفر اوکړو نو هغه دَ نيغې لارې نه ګمراه شو يعنی دَ حق لارې نه خطا شو او دَ سواء معنی په اصل کښې وسط يعنی مينځ ده نو بنی اسرائيلو وعده ماته کړه نو دَ هغوی دَ وعدې ماتولو دَ وجې نه مونږ هغوی دَ خپل رحمت نه لرې کړل او مونږ دَ هغوی زړونه سخت کړل چې د هغې د وجې نه دَ حق قبلولو دَ پاره نرميږی نه (اوس دَ هغوی حال دادې) چې دَ محمد ﷺ هغه صفات وغيره کوم چې تورات کښې موجود دی دَ هغې دَ هغه اصل مفهوم نه کوم چې الله تعالی متعين کړې دې ردوبدل کولو سره دَ څه نه څه جوړوی يعنی هغه بدلوی او دَ کوم څيز يعنی اتباع د محمد ﷺ هغوی ته په تورات کښې حکم ورکړې شوې وو دَ هغې اکثر حصه هغوی شاته غورزولې وه او هره ورځ دوی تا ته

حضور پاک ﷺ ته خطاب دي دهغوی د وعدې ماتولو وغیره د څه نه څه خیانت پته لګی. په ډیرو کښې ډیر کم خلق دی چې اسلام ئې راوړې دې (دَدغه عیب نه) بچ شوی دی (کله چې دهغوی دا حالت دې) نو ته هغوی معاف کړه او د (هغوی دَحرکتونو نه) سترګې پټې کړې الله تعالی هغه خلق خوښوی چې دَ احسان طریقه خوښوی دا (حکم) په آیت سیف سره منسوخ دې او دَهغه خلقو نه هم مونږ پخه وعده واخسته چاچې اووئیل مونږ نصاری یو څنګه چې مونږ د بنی اسرائیل د یهودو نه عهد اخستې وو مګر هغوی ته هم چې کوم (سبق) په انجیل کښې د ایمان وغیره وریادکړې شوی وو دهغې یو لویه حصه ئې هیره کړه او وعده خلافی ئې اوکړه نو مونږ په هغوی کښې د تفریق په ذریعه او دهغوی په نظریاتو کښې دَ اختلاف په ذریعه دَ قیامته پورې بغض او دښمنی واچوله د کوم په نتیجه کښې چې هرفریق دَ بل تکفیرکوی ډیر زر به الله تعالی هغوی ته په آخرت کښې اوښائی کوم حرکتونه چې هغوی په (دنیا کښې) کول؟ نو هغوی ته به دَهغې سزا ورکړی. اې اهل کتاب یهود او نصاری تاسو له زمونږ رسول راغلې دې چې دَ الله تعالی دَ کتابونو تورات انجیل ډیرې داسې خبرې لکه آیت رجم او دَ رسول الله ﷺ صفات په کومو چې به تاسو پرده اچوله ستاسو په وړاندې ښکاره بیانوی او په هغې کښې ډیرې خبرې پریږدی هم چې هغه نه ښکاره کوی کوم کښې چې ستاسو دَ فضیحت نه علاوه څه مصلحت نه وی یقینًا تاسو له دَ الله تعالی دَ طرف نه رڼرا راغله او هغه (محمد ﷺ) نبی ﷺ دې. او یوداسې حق نما کتاب قرآن چې دَدې په ذریعه الله تعالی هغه کس چې دَالله دَرضا طالب دې چې په دې ایمان راوړې دَ سلامتیا طریقې ورته ښائی او په خپلو ارادوسره هغه د کفر دَتیارونه دَ ایمان رڼرا طرف ته راوُباسی او نیغه لار (یعنی) دین اسلام طرف ته ئې رهنمائی کوی. یقینًا هغه خلقو کفر اوکړو چاچې اووئیل یقیناهم مسیح ابن مریم خدائې دې په دې توګه چې هغوی مسیح معبوداوګرځولو اوهغه فرقه یعقوبیه ده چې دَ نصاری یوه فرقه ده. دهغوی نه تپوس اوکړئې چې که چرې الله تعالی مسیح ابن مریم او دَهغه مور هلاکول غواړی نو دَچا څه مجال چې دَ الله تعالی د عذاب نه څه هم دفاع اوکړې شی یعنی دَدې چا کښې مجال نشته اوکه چرې مسیح خدائې وې نو په دې بانډې به قادر وو یهود اونصاری په دوی کښې هریو وائی چې مونږ دَ الله تعالی څامن یو یعنی په قرب او منزلت کښې اوهغه زمونږ دَپاره په شفقت او رحمت کښې دَ پلارپه شان دې او دَ هغه نیازبین یو. اې محمد ﷺ ددوی نه تپوس اوکړه نو بیا هغه تاسو ته سزا ولې درکوی؟ که چرې تاسو په دغه دعوی کښې رښتونې یئې او پلار خوئې ته سزا نه ورکوی اونه محبوب خپل محبوب ته اوهغه خو به یقینًا تاسو ته سزا درکوی لهذا تاسو په (خپله دعوی کښې) دروغژن یئې بلکه حقیقت دادې چې تاسو هم دغه شان انسانان یئې لکه چې نور انسانان ئې پیداکړی دی ستاسو دَپاره هم هغه اجراو ثواب دې کوم چې دَهغوی دَپاره دې اوستاسو دَپاره هم هغه سزا ده کوم چې

دَهغوی دَپاره ده. هغه چې څوک معاف کول غواړي معاف کوئی او چاته چې عذاب ورکول غواړي ورکوئی په هغه باندې هیڅ اعتراض نشته په آسمانونو او زمکه کښې او دَدې په مینځ کښې چې څه دی دَالله تعال ملک دې او هم دَهغه طرف ته واپس کیدل دی. اې اهل کتاب زمونږ رسول محمد ﷺ تاسو ته راغلې دې او دَ دین دَاحکامو واضحه تعلیم درکوی. حالانکه د رسولانو دَ راتگ سلسله دَ یوې مودې پورې بنده وه ځکه چې دَحضرت عیسی علیه السلام او دَهغوی په مینځ کښې بل رسول نه وو راغلې او دَ توقف موده ۵۶۹ کاله وه کله چې تاسو ته سزا درکړې شی نو چې تاسو به دا اونه وئیلې شئ چې مونږ له نه څوک زیرې راکونکې راغلې وو او نه ویرونکې. مِنْ زائده دې اوس ستاسو دَپاره دَ هیڅ عذر گنجائش نشته او الله په هر شئ قادر دې هم په دې کښې تاسو ته سزا درکول هم شامل دی که چرې تاسو دَ ده اتباع اونکړئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: نَقِیْب، جمع نُقَبَاء سردار، دَقوم دَ طرف نه دَ عهد پوره کولو ذمه وار، دَ قوم دَحالات نگرانی کونکې، دا فعیل په معنی فاعل دې.

**قوله**: لَئِنْ اَقَمْتُمْ لام په حذف دقسم باندې دلالت کولو دَپاره دې او اِنْ شرطیه دې تقدیری عبارت دا دې وَاللهُ لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصلوة، لَاُکَفِّرَنَّ جواب قسم دې چې قائمقام دې دَ جواب شرط.

**قوله**: عَزَّرْتُمُوْا، تعزیر نه ماضی جمع مذکر حاضر دې. واؤ دَاشباع دې تاسو امداد او کړو.

**قوله**: یُحَرِّفُوْنَ الْکَلِمَ، دا جمله مستانفه ده مقصد دَ یهودیانو دَ زړه قساوت بیانول دی.

**قوله**: خیانةٍ مؤنث دې، دَجواب حاصل دا دې چه خائنةٍ د فاعل په وزن باندې مصدر دې لکه عافیة او عاقبة، ددې تائید د اعمش د قرأت نه کیږی، چه هغوی خائنةٍ په خائی خیانةٍ لوستلې دې دارنگ منهم او فاعف عنهم هم په دې دلالت کوی.

**قوله**: بِاٰیَةِ السَّیْفِ ای اقتلوا المشرکین حیث وَجَدتموهم، یعنی د آیة السیف نه مراد اقتلوا المشرکین الخ. آیت دې.

**قوله**: اَغْرَیْنَا ای اَلصقنا وَاَلزَمْنَا، إغراء نه ماضی جمع متکلم دې مونږ واچول، مونږ اولگول.

**قوله**: بَیْنَهُمْ، ای فِرَق النصاری، ① نسطوریه ددوئ عقیده ده چې عیسی علیه السلام دَالله تعالی خوئی دې. ② یعقوبیه ددوئ عقیده ده چې هم مسیح ابن مریم خدائې دې ③ ملکانیه ددوئ عقیده ده چې خدائې په دریو کښې یو دې.

**قوله**: کَاٰیَةِ الرَّجْمِ وَصِفَتِه دا دَ یهودو دَ کتمان مثال دې او دَ نصاریٰ دَ پټولو مثال مبشرا برسول یاتی من بعدی اسمه احمد دې.

**قوله**: إِن صَدَقْتُمْ فِي ذٰلِكَ، فَلِمَ يعذبكم بذنوبكم، د شرط محذوف جزاء ده لهذا دَ عطف انشاء على الاخبار اعتراض به نه وارديږي. (ترويح الارواح)

**قوله**: لان لاتقولوا، لام محذوف منلوسره يئ اشاره اوكړه چې جمله لاجله ده.

**[اياتونه: ٢٠ - ٢٦]**

{وَ} اُذْكُرْ {إِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ} أَيْ مِنْكُمْ {أَنبِيَاءَ وَجَعَلَكُم مُّلُوكًا} أَصْحَاب خَدَم وَحَشَم {وَآتَاكُم مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ} مِنَ الْمَنّ وَالسَّلْوَى وَفَلْق الْبَحْر وغير ذلك {يَا قَوْمِ ادْخُلُوا الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ} الْمُطَهَّرَة {الَّتِي كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ} أَمَرَكُمْ بِدُخُولِهَا وَهِيَ الشَّام {وَلَا تَرْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِكُمْ} تَنْهَزِمُوا خَوْف الْعَدُوّ {فَتَنقَلِبُوا خَاسِرِينَ} فِي سَعْيكُمْ {قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ} مِنْ بَقَايَا عَاد طِوَالًا ذِي قُوَّة {وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا حَتَّىٰ يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِن يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِنَّا دَاخِلُونَ} لَهَا {قَالَ} لَهُمْ {رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ} مُخَالَفَة أَمْر اللَّه وَهُمَا يُوشَع وَكَالِب مِنَ النُّقَبَاء الَّذِينَ بَعَثَهُمْ مُوسَى فِي كَشْف أَحْوَال الْجَبَابِرَة {أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمَا} بِالْعِصْمَةِ فَكَتَمَا مَا اطَّلَعَا عَلَيْهِ مِنْ حَالهمْ إِلَّا عَنْ مُوسَى بِخِلَافِ بَقِيَّة النُّقَبَاء فَأَفْشَوْهُ فَجَبُنُوا {ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ} بَاب الْقَرْيَة وَلَا تَخْشَوْهُمْ فَإِنَّهُمْ أَجْسَاد بِلَا قُلُوب {فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَالِبُونَ} قَالَا ذَلِكَ تيقنا بنصر الله والجاز وعده {وعلى الله فتوكلوا إن كنتم مؤمنين} {قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا أَبَدًا مَّا دَامُوا فِيهَا فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا} هم {إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ} عَنِ الْقِتَال {قَالَ} مُوسَى حِينَئِذٍ {رَبِّ إِنِّي لَا أَمْلِكُ إِلَّا نفسي و} إلا {أخي} وَلَا أَمْلِك غَيْرهمَا فَأُجْبِرهُمْ عَلَى الطَّاعَة {فَافْرُقْ} فافصل {بيننا وبين القوم الفاسقين} {قَالَ} تَعَالَى لَهُ {فَإِنَّهَا} أَيْ الْأَرْض الْمُقَدَّسَة {مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ} أَنْ يَدْخُلُوهَا {أَرْبَعِينَ سَنَةً يَتِيهُونَ} يَتَحَيَّرُونَ {فِي الْأَرْضِ} وَهِيَ تِسْعَة فَرَاسِخ قَالَهُ ابن عَبَّاس {فَلَا تَأْسَ} تَحْزَن {عَلَى الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ} رُوِيَ أَنَّهُمْ كَانُوا يَسِيرُونَ اللَّيْل جَادِّينَ فَإِذَا اصبحوا إذا هم في الموضع الذي ابتداوا مِنْهُ وَيَسِيرُونَ النَّهَار كَذَلِكَ حَتَّى انْقَرَضُوا كُلّهمْ إِلَّا مَنْ لَمْ يَبْلُغ الْعِشْرِينَ قِيلَ وَكَانُوا سِتّمِائَةِ أَلْف وَمَاتَ هَارُونَ وَمُوسَى فِي التِّيه وَكَانَ رَحْمَة لَهُمَا وَعَذَابًا لِأُولَئِكَ وَسَأَلَ مُوسَى رَبّه عِنْد مَوْته أَنْ يُدْنِيه مِنَ الْأَرْض الْمُقَدَّسَة رَمْيَة بِحَجَرٍ فَأَدْنَاهُ كَمَا فِي الْحَدِيث وَنُبِّئَ يُوشَع بَعْد الْأَرْبَعِينَ وَأُمِرَ بِقِتَالِ الْجَبَّارِينَ فَسَارَ بِمَنْ بَقِيَ مَعَهُ وَقَاتَلَهُمْ وَكَانَ يَوْم الْجُمُعَة وَوَقَفَتْ لَهُ الشَّمْس سَاعَة حَتَّى فَرَغَ مِنْ قِتَالهمْ وَرَوَى أَحْمَد فِي مُسْنَده حَدِيث إِنَّ الشَّمْس لَمْ تُحْبَس عَلَى بَشَر إِلَّا لِيُوشَع لَيَالِي سَارَ إِلَى بَيْت الْمَقْدِس

**ترجمه**: او ياد كړئى كوم وخت چې موسى علیه السلام خپل قوم ته وئيلى وواې زما دَ قوم خلقو تاسو دَ الله تعالى دهغه نعمتونو خيال اوكړئى كوم چې هغه تاسو ته دركړى دى. هغه تاسو كښې نبى پيدا كړل اوتاسو كښې يئ دَ شان اوشوكت والا بادشاهان جوړ كړل اوتاسو ته ئى هغه څه دركړل كوم چې يئ په دنيا كښې چاته هم نه وو وركړى. يعنى مَنْ وَسلوىٰ او سمندر ئى اوشلولولارې يئ جوړه كړه وغيره. اې زما دَ قوم خلقو په دغه مقدسه زمكه كښې داخل شئى كومه چې الله تعالى

ستاسو په (نوم) ليكلي ده يعنى په دې كښې دَداخليدو حكم يې كړې دې اوهغه (زمكه) ملك شام دې اواولټه خپې په شاكېږئ مه ګنى دَ دښمن دَ ويرې نه به ماتې اوخورئ او په خپل كوشش كښې به نامراده پاتې شئ. هغوى جواب وركړو اې موسى ﷺ هلته خودَ قوم عاد دَنسل اوږدقدوالا طاقتور اوزبردست خلق اوسيږى مونږ په هلته هيڅ كله لاړنه شو ترهغه وخته پورې چې هغه خلق دَدغه ځائى نه اونه ځى اوكه هغوى دَ دغه ځائى نه اووتل نومونږداخليدو ته تيار يو. هغوى ته هغه دوو سړو اووئيل كوم چې دَ الله تعالى د حكم د خلاف ورزئ كولونه ويريدل اوهغه يوشع او كالب وو چې په هغه دولسو سردارانوكښې وو كوم چې موسىٰ ﷺ دَ جبابره دَ تفتيش دَپاره ليږلي وو په كومو دواړو باندې چې الله تعالى د (افشا، نه دَ حفاظت په ذريعه انعام اوفرمائيلو نودغه دواړو حضراتو خپل معلومات دَحضرت موسىٰ ﷺ نه علاوه نورو نه پټ اوساتل په خلاف دَ نورو سردارانو چې هغوى راز ښكاره كړو دكوم په نتيجه كښې چې (بنى اسرائيل) بې همته شو تاسو په هغوى دَ ښار په دروازه باندې خو اورسئى اودَهغوى نه ويريږئى مه هغوئ خو بې زړه جوسې دى(يعنى كمزورې خلق دى) اوكله چې تاسو په دروازه كښې داخل شئى نويقيناً هم تاسو به غالب كيږئى. هغوى داخبره دَ الله تعالى په امداد او دَهغه وعدې لره د پوره كولوباندې يقين كولوسره اوكړه اوپه الله تعالى باندې يقين ساتئ كه چرې تاسو مؤمنان يئ ليكن هغوى (بيا هم دغه اووئيل) چې اې موسى ﷺ مونږ به هلته هيڅ كله لاړنه شو تركومې چې هغوى هلته موجود وى. بس ته او ستارب دې لاړشى هغوى سره اوجنګيږئ مونږ دلته دَ جنګ نه په حفاظت كښې ناست يو. هغه وخت حضرت موسى ﷺ عرض اوكړو اې زما پروردګار زه دَخپل ذات او خپل رورنه علاوه دَ بل چامالک نه يم او زه دَدې دواړونه دَعلاوه ملاك نه يم چې دوى په اطاعت باندې مجبوركړې شم ته مونږ دَدې نافرمانه خلقو نه جدا كړه نوالله تعالى حضرت موسى ﷺ ته اوفرمائيل دَدې خلقو دَپاره په دغه پاكه زمكه كښې دَ څلويښتوكالو پورې داخليدل منع دى دوى به په زمكه كښې حيران سرګردان ګرځى اودَ (دې وسعت) نهه فرسخ دې. دا دَ حضرت ابن عباس ﷺ قول دې. دَدې نافرمانو په حالت باندې هيڅ كله ترس مه كوه. روايت دې چې بنواسرائيل به په ډير كوشش سره دَ شپې تلل خوچې كله به سحرشو نوهم په هغه ځائى به وو دكوم ځائى نه چې به نى دَ سفرشروع كړې وه. اوهم دغه حال دَهغوى دَ ورځې په تګ كښې وو تردې چې دهغوى پوره نسل ختم شو سوا دَ هغه ځوانانونه دَ چا عمر چې لاشل كالو نه وورسيدلې وئيلې شوى دى چې دهغوى تعداد شپږ لاكهه وو اودَ حضرت هارون ﷺ اوحضرت موسى ﷺ انتقال هم په مقام تيه كښې شوې وو اودادَ مقام تيه قيام دَهغه دواړو دَ پاره رحمت اودَهغوئ ټولو دَپاره عذاب وو. حضرت موسىٰ ﷺ دَ وفات په وخت دَخپل رب نه دعااوكړه چې دوى ارض مقدس نه دَ يوكاڼړى دَ ويشتلو په مقدار

باندې نیزدې کړې چنانچې هغوی ورنیزدې کړې شو. لکه چې په حدیث کښې راغلی دی حضرت یوشع علیه السلام خلوېښت کاله پس نبی جوړ کړې شو او د جبابره سره د جنګ حکم ئې ورکړو. (حضرت یوشع علیه السلام) باقی خلق خپل ځان سره کړل لاړو او هغوی سره جنګ او کړو او په هغه ورځ د جمعې ورځ وه نمر د هغوی د پاره د یو ساعت د پاره ولاړ وو تردې چې د جنګ نه فارغ شو. او احمد رحمه الله په خپل مسند کښې روایت کړې دې چې نمبر سوا د حضرت یوشع علیه السلام نه د چا د پاره نه دې ولاړ په هغه شپو کښې کوم کښې چې یوشع علیه السلام د بیت المقدس طرف ته سفر او کړو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: ای منکم دا د یو سوال جواب دې.

**سوال**: د فیکم په تفسیر منکم سره ولې او کړو؟

**جواب**: ځکه چې کُمْ کښې حقیقةً د ظرف جوړیدو صلاحیت نشته.

**قوله**: من المَنّ والسلوی، په دې کښې اشاره ده چې بنی اسرائیلو ته په اهل عالم باندې مطلقًا فضیلت حاصل نه وو بلکه د مَنْ وسلوی د وجې نه جزوی فضیلت حاصل وو.

**قوله**: اَنْعَمَ اللّٰهُ علیهما، په دې کښې احتمال دې چې جمله دعائیه وی په دې صورت کښې به جمله معترضه شی او دا هم احتمال دې چې جمله خبریه وی نو په دې صورت کښې به د رجلان صفت ثانیه وی.

**قوله**: اَلْبَاب تفسیر یې په بابَ القریة سره کولو کښې اشاره او کړه چې الباب کښې الف لام مضاف الیه په عوض کښې دې.

**قوله**: وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ واؤ استنافیه دې او کلام مستانف دې فاء د امر محذوف په جواب باندې داخل ده. تقدیری عبارت دا دې تَنَبَّهُوْا فتوكلوا على الله، على الله، د توكلوا متعلق مقدم دې. ان كنتم شرط دې جواب شرط محذوف دې په کوم باندې چې ماقبل یعنی توكلوا دلالت کوی. قال ب إنى لا أملك إلا نفسى وأخى، دا جمله استینافیه د پاره د اظهار د حسرت او تاسف ده. قال، قول دې او مابعد دې مقوله ده. لاأملكُ د إنَّ خبر دې الا حرف استثناء د پاره د حصر دې نفسى مفعول به دې.

**قوله**: وَأخِىْ، په دې کښې د رفع نصب او جر دریو اړو احتمال دې. که چرې د املك په ضمیر مستتر باندې عطف وی نو رفع به وی او که چرې د إنَّ په اسم باندې عطف وی نو نصب به شی او که چرې په یاء مجرور باندې عطف وی نو مجرور به شی.

**قوله**: يَتِيهُوْنَ، تِيْهٌ (ض) مضارع جمع مذكر غائب، سرګردان به ګرځي.
**قوله**: لاتَأْسَ ته غم مه کوه (س) مصدر اسی تاس مضارع واحد مذکر حاضر اصل تاسی وو لاء نهی دَ وجې نه یاء ساقط شوه.

**[ایاتونه: ۲۷-۳٤]**

{وَاتْلُ} يَا مُحَمَّد {عَلَيْهِمْ} عَلَى قَوْمك {نَبَأَ} خبر {ابنى آدم} لهابيل وَقَابِيل {بِالْحَقِّ} مُتَعَلِّق بِاتْلُ {إِذْقَرَّبَاقُرْبَانًا} إلى الله وهو كبش هابيل وَزَرْع لِقَابِيل {فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا} وَهُوَ هَابِيل بِأَنْ نَزَلَتْ نَار مِنْ السَّمَاء فَأَكَلَتْ قُرْبَانه {وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ} وَهُوَ قَابِيل فَغَضِبَ وَأَضْمَرَ الْحَسَد فِي نَفْسه إِلَى أَنْ حَجَّ آدَم {قَالَ} لَهُ {لَأَقْتُلَنَّكَ} قَالَ لِمَ قَالَ لتقبل قربانك دوني {قَالَ إِنَّمَا يتقبل الله من المتقين} {لَئِنْ} لام قَسَم {بَسَطْتَ} مَدَدْت {إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ} فِي قَتْلك {إِنِّي أُرِيدُ أَنْ تَبُوءَ} تَرْجِع {بِإِثْمِي} بِإِثْمِ قَتْلِي {وَإِثْمِكَ} الَّذِي ارْتَكَبْته مِنْ قَبْل {فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ} وَلَا أُرِيد أَنْ أَبُوء بِإِثْمِك إِذَا قَتَلْتُك فَأَكُون مِنْهُمْ قَالَ تَعَالَى {وَذَلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ} {فَطَوَّعَتْ} زَيَّنَتْ {لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ} فَصَارَ {مِنَ الْخَاسِرِينَ} بِقَتْلِهِ وَلَمْ يَدْرِ مَا يَصْنَع بِهِ لِأَنَّهُ أَوَّل مَيِّت عَلَى وَجْه الْأَرْض مِنْ بَنِي آدَم فَحَمَلَهُ عَلَى ظهره {فَبَعَثَ اللَّهُ غُرَابًا يَبْحَثُ فِي الْأَرْضِ} يَنْبُش التراب بمنقاره وبرجله وَيُثِيرهُ عَلَى غُرَاب مَيِّت حَتَّى وَارَاهُ {لِيُرِيَهُ كَيْفَ يُوَارِي} يَسْتُر {سَوْأَةَ} جيفة {أَخِيهِ قَالَ يَا وَيْلَتَى أَعَجَزْتُ} عَنْ {أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هَذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْأَةَ أَخِي فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِينَ} عَلَى حَمْله وَحَفَرَ لَهُ وَوَارَاهُ {مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ} الَّذِي فَعَلَهُ قَابِيل {كَتَبْنَا عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنَّهُ} أَيْ الشَّأْن {مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ} قَتَلَهَا {أَوْ} بِغَيْرِ {فَسَادٍ} أَتَاهُ {فِي الْأَرْضِ} مِنْ كُفْر أَوْ زِنًا أَوْ قَطْع طَرِيق أَوْ نَحْوه {فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا} بِأَنْ امْتَنَعَ عَنْ قَتْلهَا {فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا} قَالَ بن عَبَّاس مِنْ حَيْثُ انْتِهَاك حُرْمَتهَا وَصَوْنهَا {وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ} أَيْ بَنِي إِسْرَائِيل {رُسُلُنَا بِالْبَيِّنَاتِ} الْمُعْجِزَات {ثُمَّ إِنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ بَعْدَ ذَلِكَ فِي الْأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ} مُجَاوِزُونَ الْحَدّ بِالْكُفْرِ وَالْقَتْل وَغَيْر ذلك وَنَزَلَ فِي الْعُرَنِيِّينَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِينَة وَهُمْ مَرْضَى فَأَذِنَ لَهُمْ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَخْرُجُوا إِلَى الْإِبِل وَيَشْرَبُوا مِنْ أَبْوَالهَا وَأَلْبَانهَا فَلَمَّا صَحُّوا قَتَلُوا رَاعِي النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا الْإِبِل {إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ} بِمُحَارَبَةِ الْمُسْلِمِينَ {وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا} بِقَطْعِ الطَّرِيق {أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ} أَيْ أَيْدِيهمْ الْيُمْنَى وَأَرْجُلهمْ الْيُسْرَى {أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ} أَوْ لِتَرْتِيبِ الْأَحْوَال فَالْقَتْل لِمَنْ قَتَلَ فَقَطْ وَالصَّلْب لِمَنْ قَتَلَ وَأَخَذَ الْمَال وَالْقَطْع لِمَنْ أَخَذَ الْمَال وَلَمْ يَقْتُل وَالنَّفْي لمن أخاف فقط قاله بن عَبَّاس وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ وَأَصَحّ قَوْلَيْهِ أَنَّ الصَّلْب ثَلَاثًا بَعْد الْقَتْل وَقِيلَ قَبْله قَلِيلًا وَيُلْحَق بِالنَّفْيِ مَا أَشْبَهَهُ فِي التَّنْكِيل مِنْ الْحَبْس وَغَيْره {ذَلِكَ} الْجَزَاء الْمَذْكُور {لَهُمْ خِزْيٌ} ذُلّ {فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ} هُوَ عَذَاب النَّار {إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا} مِنَ الْمُحَارِبِينَ وَالْقُطَّاع {مِنْ

قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ} لَهُمْ مَا أَتَوْهُ {رَحِيمٌ} بِهِمْ عَبَّرَ بِذٰلِكَ دُونَ فَلَا تَحُدُّوهُمْ لِيُفِيدَ أَنَّهُ لَا يَسْقُطُ عَنْهُ بِتَوْبَتِهِ إِلَّا حُدُودُ اللّٰهِ دُونَ حُقُوقِ الْآدَمِيِّينَ كَذَا ظَهَرَ لِي وَلَمْ أَرَ مَنْ تَعَرَّضَ لَهُ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ فَإِذَا قَتَلَ وَأَخَذَ الْمَالَ يُقْتَلُ وَيُقْطَعُ وَلَا يُصْلَبُ وَهُوَ أَصَحُّ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ وَلَا تُفِيدُ تَوْبَتُهُ بَعْدَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ شَيْئًا وَهُوَ أَصَحُّ قَوْلَيْهِ أَيْضًا

**ترجمه:** اواې محمد ﷺ خپل قوم ته دَحضرت آدم علیه السلام دَ دواړو ځامنو هابیل اوقابیل قصه بغیرد څه کمی زیاتی واوروه بالحق د اُتْلُ سره متعلق دې کله چې دې دواړو دَ الله تعالی په نوم باندې قربانی اوکړه او هغه (قربانی) دَهابیل کړوو اودَ قابیل غله نو الله تعالی دَهغوی نه دَ یو یعنی هابیل قربانی قبوله کړه په دې طریقه چې دَ آسمان نه یو اور راغلو اودَ هابیل قربانی اوخوړله (وئی سوزوله) اود دویم قبوله نه کړې شوه اوهغه قابیل وو نوهغه غصه شو او حسد ئی په خپل زړه کښې پټ کړو(اودَ موقع په لټون کښې شو) کله چې حضرت آدم علیه السلام دَ حج دَ پاره تشریف یوړو نوهغه وئیل زه به تا ضرور قتلوم (هابیل) تپوس اوکړو ولې؟ (جواب یې ورکړو) ستاقربانی قبوله شوه زما نه. هابیل اووئیل چې الله تعالی خو هم دَ الله والوقربانی قبلوی که ته زما دَ قتل کولو دَپاره لاس اوچتوې نو زه به ستا دَ قتل کولودَپاره لاس نه اوچتوم.په لئن کښې لام قسمیه دې، زه ستادَ قتل په معامله کښې دَ الله تعالی نه ویریږم اوزه خو دا غواړم چې ته زما دَقتل گناه او خپله گناه دکومې چې ته اول مرتکب شوې مثلاً (حسد او نافرمانی والدین وغیره گناه) په خپل سرواخلې اودَ دوزخیانونه شې.او زه نه غواړم چه تا قتل کړم او ستا د قتل کولو گناه په خپل سر واخلم چه ددې په وجه زه د دوزخیانو نه شم، الله تعالی اوفرمائیل دَ ظالمانودَ ظلم هم دغه سزا ده. چنانچه دَ هغه نفس دې دَ خپل رور په قتلولو باندې تیارکړو اوآخرئی هغه مړکړو نو هغه دَ ده دَ قتل په وجه دَ زیان کارانو نه شو اودَهغه په پوهه کښې نه راتله چې په دې مړی څه اوکړی؟ څکه چې په مخ دَ زمکې دَ بنیادم دا ړومبې مړې وو. چنانچه هغه ئی په خپله شا باندې اوچت کړې وو. آخر الله تعالی یو کارغه راوُلیگلو چې په خپله منبوکه او پنجو ئی زمکه کنستله اوخپل ملکرې د بل کارغه مړی باندې یئ(خاوره) اچوله. تردې چې هغه ئی پټ کړو دې دَپاره چې هغه (قابیل) ته اوښائی چې دَخپل رور مړی څنگه پټ کړی. دې کتلوسره هغه اووئیل افسوس زمانه دَ دې کارغه غوندې هم اونه شوه چې دَ خپل رور مړې مې پټ کړې وې نوهغه دَخپل رور مړی په شاباندې گرځولوسره شرمنده شو(دویمه ترجمه) نوهغه دَخپل رور په قتل کولو تیاریدو باندې خپیمانه شو او دَهغه دَپاره ئی کنده اوکنستله او هغه ئی په کښې پټ کړو. اوهم دَدې حرکت دَ وجې نه کوم چې قابیل اوکړو په بنی اسرائیلو باندې مونږ دا فرمان اولیکلو چې کوم سړې څوک بغیردَدې نه چې هغه دَ چا قاتل وی یا دکفر په ذریعه یا دَ زناکارئی یا دَ غلاوغیره په ذریعه فساد خورونکې وی قتل کړی.نو لکه چې هغه ټو انسانان قتل کړل او چاچې څوک بچ کړو په دې طریقه چې دَهغه دَ قتل نه منع

شو نو هغه لکه چې دَ ټولو انسانانو ځان بچ کړو. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چې دا حکم دَ نفس د بې حرمتی اودَ هغه دَ حفاظت په اعتبارسره دې اودَهغوی يعنی بنی اسرائيلو ته زمونږ رسولان معجزاتو راوړلو سره راغلی وو خو بيا دَدې نه پس هم په دوی کښې اکثر خلق په زمکه کښې ظلم اوزياتې کونکی دی يعنی دَ کفر اوقتل وغيره په ذريعه دَ حد نه تجاوز کونکې دی. آئنده آيت دَ قبيله عرينه والو په باره کښې نازل شو. کله چې هغوی مدينې ته راغلل اوبيماران وو نوحضورپاك هغوی ته دَ دې خبرې اجازت ورکړو چې هغوی دې اوښانو له ورشی اودَهغوی متيازې او پئی دې اوڅکی کله چې هغوی صحت ياب شو نو ښاريان ئې قتل کړو اواوښان ئې بوتلل. هغه خلقو سزا چې دمسلمانانوسره محاربه کولوسره دالله تعالی اودَهغه رسول سره محاربه اوکړی او د شوکو کولو په ذريعه په ملک کښې د فساد خوررولو کوشش اوکړی هم دغه ده چې دوی قتل کړې شی او په سولئ کړې شی اودَهغوی خپه لاس دَ مخالف طرفونونه پرې کړې شی يعنی دَدوی ښې لاس اوګسه خپه (پرې کړې شی) يا هغوی جلاوطن کړې شی اَوْ دَ ترتيب احوال دَپاره دې. قتل هغه دَپاره دې چاچې صرف قتل کړې وی او په سولئ کول هغه چا دپاره دی چاچې قتل کړې وی اومال ئې اخستې وی اوقطع هغه چادَپاره چې مال ئې اخستې وی اوقتل ئې نه وی کړې او دَ وطن نه ويستل د هغه دَپاره دی چې صرف ويرول ئې کړی وی. دا حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل اوهم دغه دَامام شافعی رحمه الله مذهب دې اودَ امام شافعی رحمه الله په دواړو قولو کښې اصح قول دادې چې دَقتل نه پس درې ورځې په سولئ باندې زوړندول پکار دی او وئيلې شوی دی چې دَ قتل نه پس لږ ساعت په سولئ باندې زوړندول پکاردی او دَ وطن نه ويستلوسره به هغه څه هم شاملولې شی چې په سزاکښې دَ جلاوطن کولوپه شان وی هغه سزا حبس وغيره ده. دا مذکوره سزا دَهغوی دَپاره په دنياکښې رسوائی او په آخرت کښې عظيم عذاب دې اوهغه دَ اور عذاب دې. مګر دَ محاربينو او لارې شوکونکونه هغه خلق چا چې ستاسو هغوئ لره د ګرفتارولو نه وړاندې توبه اوکړه نو پوهه شئ چې الله تعالی معاف کونکې دې هغه ګناه دکومې چې هغوی ارتکاب کړې دې او په هغوی باندې رحم کونکې دې.

اِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ الرَّحِيْمِ سره تعبيراوفرمائيلو نه چې فلاتحدتوهم سره دې دَپاره چې کلام دَدې خبرې فائده ورکړی چې په توبې سره صرف حدود الله معاف کيږی نه چې حقوق العباد. زما په پوهه کښې هم داسې راغلې دی اوزه نه پوهيږم چې بل چا دې (نکتې) نه تعرض کړې وی او الله تعالی بهتر پيژندونکې دې. چنانچه کله چې قتل اوکړی اومال واخلی نو قتل کولې به شی او (لاس) به ترې هم کټ کولې شی او په سولې کولې به نه شی اودا دَ امام شافعی رحمه الله په دواړو قولوکښې دَ ټولو نه صحيح قول دې او دَ ګرفتارئی نه به پس ډاکوانوته په توکولوسره به هيڅ فائده نه کيږی اودا دَامام شافعی رحمه الله په دواړو قولونو

کښې زيات صحيح قول دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: اُتْلُ ته اولوله، تلاوت اوکړه تِلَاوَةٌ نه واحد مذکر حاضر صيغه ده.

**قوله**: تَبُوْءَ بَوْءٌ (ن) مضارع واحد مذکر غائب، ته حاصل کړه، ته راغونډ کړه، ته اوګټه.

**قوله**: طَوَّعت تَطْوِيْعٌ (تفعيل) نه ماضي واحد مؤنث غائب، هغه رغبت راپيدا کړو، هغه راضي کړو، هغه آماده کړو، هغه آسان کړو، (وَسَّعَتْ وَزَيَّنَتْ مِنْ طَاعَ المرعى له اِذَا اتَّسَعَ) (اعراب القرآن للدرويش)

**قوله**: سَوْءَة لاش، عيب، ستر.

**قوله**: على حمله أي حمل الجسد على ظهره، يعني خپل رور هابيل يې په خپله شا اوچت کړو، ګرځيدو او د ښخيدلو طريقه نه معلوميدو د وجې نه خپيمانه شو. د على حمله يو مطلب دا هم بيان کړې شوې دې چې د حمله د ضمير مرجع قتل اوګرځوزولې دشي او ترجمه دا شوه چې قابيل لره خپل نفس د هابيل په قتل کولو باندې تيار ولو باندې خپيمانه شو.

**قوله**: من حيث اِنْتِهَاكِ حُرْمَتِهَا، د دې تعلق د كَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جميعا سره دې يعنې چاچې يو نفس قتل کړو او د هغه بې حرمتي يې اوکړه نولکه چې هغه د ټولو نفوسو بې حرمتي اوکړه.

**قوله**: وصونها، د دې تعلق فكانما احيا الناس جميعا، سره دې يعنې چاچې د يو کس ځان بچ کړو لکه چې هغه د ټولو انسانانو ځانونه بچ کړل. مِنْ حيث اِنْتِهَاكِ حُرْمَتِهَا وَصَوْنِهَا دا جمله د لف او نشر مرتب په توګه ده.

**قوله**: عُرَنِيِّيْنَ، دا د عُرَنِيٌّ جمع ده دا د عربو د يوې قبيلې عرينة طرف ته منسوب ده عُرنيين کښې ياء نسبتي ده لکه جه جُهَنِيٌّ قبيله جهينه طرف ته چې منسوب دې. (جمل) عبدالرزاق رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او ابن جرير رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه د روايت په حواله سره ليکلي دي چې د بحرين اوسيدونکي قبيله عرينه څه خلق مراد دي. (احسن التفاسير)

**قوله**: اَوْ لِتَرْتِيْبِ الْاَحْوَالِ، يعنې اَوْ قرآن کښې چې چرته هم راغلې دې هغه د تخيير د پاره دې سوا د دې ځائې نه دلته د ترتيب د پاره دې.

**[اياتونه: ۳۵ - ٤٢]**

---

{يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ} خافوا عقابه بان تطيعوه {وَابْتَغُوْا} اطلبوا {اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ} ما يقربكم اليه من طاعته {وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ} لاعلاء دينه {لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ} تفوزون {اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ} ثبت {اَنَّ

لَهُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُوا بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} {يُرِيدُونَ} يَتَمَنَّوْنَ {أَنْ يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنْهَا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُقِيمٌ} دَائِمٌ {وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ} ال فيهما موصولة للمبتدا ولشبهه بالشرط ودخلت الْفَاء فِي خَبَره وَهُوَ {فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا} أَيْ يَمِين كُلّ مِنْهُمَا مِنْ الْكُوع وَبَيَّنَتْ السُّنَّة أَنَّ الَّذِي يُقْطَع فِيهِ رُبُع دِينَار فَصَاعِدًا وَأَنَّهُ إذَا عَادَ قُطِعَتْ رِجْله الْيُسْرَى مِنْ مَفْصِل الْقَدَم ثُمَّ الْيَد الْيُسْرَى ثُمَّ الرِّجْل الْيُمْنَى وَبَعْد ذَلِكَ يُعَزَّر {جَزَاءً} نُصِبَ عَلَى الْمَصْدَر {بِمَا كَسَبَا نَكَالًا} عُقُوبَة لَهُمَا {مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَزِيزٌ} غَالِب عَلَى أَمْره {حَكِيمٌ} في خلقه {فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهِ} رَجَعَ عَنْ السَّرِقَة {وَأَصْلَحَ} عَمَله {فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ} فِي التَّعْبِير بِهَذَا مَا تَقَدَّمَ فَلَا يَسْقُط بِتَوْبَتِهِ حَقّ الْآدَمِيّ مِنْ الْقَطْع وَرَدّ الْمَال نَعَمْ بَيَّنَتْ السُّنَّة أَنَّهُ إنْ عَفَا عَنْهُ قَبْل الرَّفْع إلَى الإمام يسقط الْقَطْع وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ {أَلَمْ تَعْلَمْ} الِاسْتِفْهَام فِيهِ لِلتَّقْرِيرِ {أَنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ} تَعْذِيبه {وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ} الْمَغْفِرَة لَهُ {وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} ومنه التعذيب والمغفرة {يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ لَا يَحْزُنْكَ} صُنْع {الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ} يَقَعُونَ فِيهِ بِسُرْعَةٍ أَيْ يُظْهِرُونَهُ إذَا وَجَدُوا فُرْصَة {مِنَ} لِلْبَيَانِ {الَّذِينَ قَالُوا آمَنَّا بِأَفْوَاهِهِمْ} بِأَلْسِنَتِهِمْ مُتَعَلِّق بِقَالُوا {وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوبُهُمْ} وَهُمْ الْمُنَافِقُونَ {وَمِنَ الَّذِينَ هَادُوا} قَوْم {سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ} الَّذِي افْتَرَتْهُ أَحْبَارهمْ سَمَاع قَبُول {سَمَّاعُونَ} مِنْك {لِقَوْمٍ} لِأَجْلِ قَوْم {آخَرِينَ} مِنْ الْيَهُود {لَمْ يَأْتُوكَ} وَهُمْ أَهْل خَيْبَر زَنَى فِيهِمْ مُحْصَنَانِ فَكَرِهُوا رَجْمهمَا فَبَعَثُوا قُرَيْظَة لِيَسْأَلُوا النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ حُكْمهمَا {يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ} الَّذِي فِي التَّوْرَاة كَآيَةِ الرَّجْم {مِنْ بَعْدِ مَوَاضِعِهِ} الَّتِي وَضَعَهُ اللَّه عَلَيْهَا أَيْ يُبَدِّلُونَهُ {يَقُولُونَ} لِمَنْ أَرْسَلُوهُمْ {إِنْ أُوتِيتُمْ هَذَا} الْحُكْم الْمُحَرَّف أَيْ الْجَلْد الَّذِي أَفْتَاكُمْ بِهِ مُحَمَّد {فَخُذُوهُ} فَاقْبَلُوهُ {وَإِنْ لَمْ تُؤْتَوْهُ} بَلْ أَفْتَاكُمْ بِخِلَافِهِ {فَاحْذَرُوا} أَنْ تَقْبَلُوهُ {وَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ فِتْنَتَهُ} إضْلَاله {فَلَنْ تَمْلِكَ لَهُ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا} فِي دَفْعهَا {أُولَئِكَ الَّذِينَ لَمْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ} مِنْ الْكُفْر وَلَوْ أَرَادَهُ لَكَانَ {لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ} ذل بالفضيحة والجزية {ولهم في الآخرة عذاب عظيم} هم {سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ أَكَّالُونَ لِلسُّحْتِ} بِضَمِّ الْحَاء وَسُكُونهَا أَيْ الْحَرَام كَالرِّشَا {فَإِنْ جَاءُوكَ} لِتَحْكُم بَيْنهمْ {فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ} هَذَا التَّخْيِير مَنْسُوخ بِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ} الْآيَة فيجب الحكم بينهم إذَا تَرَافَعُوا إلَيْنَا مَعَ مُسْلِم وَجَبَ إجْمَاعًا {وَإِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَضُرُّوكَ شَيْئًا وَإِنْ حَكَمْتَ} بَيْنهمْ {فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ} الْعَادِلِينَ فِي الْحُكْم أَيْ يُثِيبهُمْ {وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ فِيهَا حُكْمُ اللَّهِ} بالرجم اسْتِفْهَام تَعْجِيب أَيْ لَمْ يَقْصِدُوا بِذَلِكَ مَعْرِفَة الْحَقّ بَلْ مَا هُوَ أَهْوَن عَلَيْهِمْ {ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ} يُعْرِضُونَ عَنْ حُكْمك بِالرَّجْمِ الْمُوَافِق لِكِتَابِهِمْ {من بعد ذلك} التحكيم {وما أولئك بالمؤمنين}

**ترجمه:** اې ايمان والو! د الله تعالى نه يعنى د هغه د عذاب نه اوويرېږئ په داسې توګه چې د هغه اطاعت اوکړئ او د هغه د اطاعت په ذريعه د هغه قرب اولټوئ چې تاسو د هغه

مقرب جوړ کړی اوڅغه په لارکښې دَ هغه دَ دین دَ سرلوړئی پاره کوشش اوکړئی دې دپاره چې تاسو کامیاب شئی. بنه ځان پوهه کړئی د هغه خلقودپاره چاچې دَ کفر لاراختیارکړه که دهغوی په قبضه کښې دَ زمکې ټول دولت وی او دومره نور هم وی. دغه ټول دَ قیامت په ورځ دَ عذاب په عوض کښې ورکول غواړی نوبیابه هم دَهغوی نه قبول نه کړې شی اوهغوی ته به دردناک سزا ملاویږی هغوی به غواړی چې دَ اور نه اوځی خوورتلې به نه شی اودَهغوی دَپاره به دَ همیشه عذاب وی اوغل که سړې وی اوکه ښځه الف لام (السارق او السارقة) په دواړوکښې موصوله مبتداء مشابه بالشرط دې اودَدې وجې نه دَدې په خبرباندې فاء داخل ده اوهغه فاقطعوا ایدیهما دې. دَ دواړو لاسونه کټ کړئی یعنی دَهریود ښې لاس مړوند کښې کټ کړئی او سنت بیان کړې دې چې هغه مقدار دَ کوم په عوض چې (لاس) کټ کیږی څلورمه حصه دَدینار یادَدې نه زیات دې اوکه هغه بیا غلا اوکړی نودَهغه ګسه خپه به د ګیټې پورې کټ کولې شی بیا ګس لاس او بیا ښې خپه اودَدې نه به پس بیا تعزیری سزا ورکولې شی. دا دَهغوی دَکړو بدله ده اودَ الله تعالی دَطرف نه دهغوی دپاره دَ سزاپه توګه ده او الله تعالی په خپل حکم کښې غالب او دَخپل مخلوق په باره کښې حکمت والا دې. جزاءً دَ مصدریت دَ وجې نه منصوب دې بیاچاچې دَ ګناه نه پس توبه اوکړه یعنی دَ غلا نه منع شو اودَ خپل عمل اصلاح نې اوکړه نوالله تعالی به دَهغه توبه قبوله کړی الله تعالی معاف کونکې او رحم کونکې دې. (دَ فلاتحدوهم) په ځائی اِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ الرَّحِیمٌ سره دَتعبیرکولوهم دغه مطلب دې کوم چې سابق کښې بیان شو. لهذا دَ (سارق) په توبه کولو سره به نه خوبه د حق العباد به قطع ید ساقط شی او نه د (مسروقه) مال دَ واپسئی حق، البته دَ سنت نه داخبره معلومه شوې ده چې که چرې مسروق منه دَقاضی په عدالت کښې دَ مقدمه پیش کیدو نه وړاندې معافی اوکړه نوقطع یدبه ساقط شی او هم دغه دَامام شافعی رحمه الله مذهب دې آیا تاسو نه پوهیږئی؟ استفهام دَ تقریر دَپاره دې چې الله تعالی دَ زمکې او آسمان دَ سلطنت مالک دې چاته چې عذاب ورکول غواړی عذاب به ورکوی او څوک چې معاف کول غواړی معاف به ئې کړی او هغه په هرڅیز باندې قدرت لری او په هغې کښې تعذیب او مغفرت هم داخل دې. اې رسول ستاد پاره دې دَدغه خلقو طرزعمل دَ خفګان باعث نه وی چې کوم خلق دکفرپه باره کښې ډیر وړاندې کوی یعنی په ډیره تیزئی سره په دې کښې اخته کیږی اوکله هم چې موقع ملاویږی د کفر اظهارکوی که هغه دَ هغه خلقو نه وی مِن بیانیه چاچې په خپلو ژبوسره وئیلی چې مونږ ایمان راوړې دې. (بأفواههم) قالوا سره متعلق دې حالانکه هغوی دزړه نه ایمان نه دې راوړې اومنافقان دی یا دَهغه خلقو نه وی چاچې یهودی مذهب اختیارکړې دې اوهغه داسې خلق دی چې دَ قبولیت په غوږ سره دَ دروغوخبرې اوریدو عادت دی کوم چې دَهغوی احبار دَځان نه جوړې کړی دی. او دَیهودونه دَهغه خلقو دَپاره ستاسوجاسوسی کوی کوم چې تاسو خواله نه راځی

او هغه اهل خیبر دی. په هغوی کښې دوو واده کړې کسانو زناکړې وه خو هغه خلقو دَهغوی رجم کول ناخوښه کړل او هغه خلقو بنی قریظه دنبی علیه السلام په خدمت کښې دَهغوی باره کښې دَحکم معلومولو دَپاره راولیګل او په تورات کښې ذکر شوی حکم کښې بدلون کوی مثلاً دَ رجم په آیت کښې، دَ دې صحیح مفهوم متعین کیدو نه پس، هغه مفهوم کوم چې الله تعالی متعین کړې دې یعنی په هغې کښې بدلون کوی اوکوم خلق چې ئې راليګل هغوی ته وائی که دغه محرف حکم یعنی دَ کوړو وهلو محمد ﷺ فتوی درکړی نو قبول یې کړئی اوکه چرې دَ (محرف مطابق) فتوی درنه کړی بلکه دَهغې خلاف فتوی درکړی نو دَهغې دَ قبلولو نه ځان اوساتئی او الله تعالی چې څوک دَ ګمراهئی په فتنه کښې راګیرولو اراده اوکړی نو تاسو هغه دَ الله تعالی دَ ګرفت نه بچ کولو یعنی دَهغوی دَ دفاع دَپاره هیڅ نه شئ کولې. دا هغه خلق دی دَچا زړونو لره چې دَ کفرنه دَ الله تعالی دَپاکولو اراده نشته اوکه چرې الله (دَ پاکولو) اراده کوله نو ضرور به پاکیدل دَهغوی دَ پاره په دنیاکښې دَ رسوائی دَ جزیې سره لوئی ذلت دې اودَهغوی دَپاره په آخرت کښې لوئی عذاب دې اودا خلق غوږ کیخودو سره دروغ اوریدونکی اودَ حرام مال خوړونکی دی. مثلاً دَ رشوت په ذریعه که چرې دا خلق تاسو ته دَ فیصلې کولو دَپاره تاسو له راشی (که چرې غواړئ) نو دَهغوی په مینځ کښې فیصله اوکړه یا انکار اوکړه. دا اختیار دَ الله تعالی قول وَأَنِ احْكُم بَيْنَهُم په ذریعه منسوخ شو لهذا که هغوی مونږ له فیصله راوړی نو دَهغوی فیصله کول واجب دی. دَ امام شافعی رحمه الله په اقوالو کښې دا صحیح دې. اوکه چرې یو مسلمان سره مونږ له مقدمه راوړی نو په اتفاق سره فیصله کول واجب دی اوکه چرته ته انکار اوکړې نو هغوی ستا هیڅ نه شی کولې اوکه چرې ته دَهغوی په مینځ کښې فیصله اوکړې نو په انصاف سره صحیح صحیح فیصله کوه بیشکه الله تعالی په فیصله کښې انصاف کونکی خوښوی یعنی هغوی ته اجر ورکوی اودا خلق تا څنګه حَکم جوړوی حالانکه هغوی سره تورات شته په هغې کښې دَ الله تعالی دَ رجم حکم موجود دې. استفهام دَ تعجب دَپاره دې یعنی دَدې نه دَهغوی مقصد دَ حق پیژندګلو نه ده بلکه دَ هغوی دَپاره آسانی لټول دی بیا دا خلق ستاسو دَ رجم دَ فیصلې نه پس کو مه چې دَهغوی دَ کتاب مطابق ده ده کوی او په حقیقت کښې دا خلق ایمان نه لری.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: ثَبَتَ. **سوال**: لَوْ لَمْ أَنَّ لَهُ، کښې ثَبَتَ مقدر منلو څه فائده ده؟

**جواب**: لَوْ حرف شرط چونکه په فعل داخلیږی که چرې ثَبَتَ فعل مقدر او نه منلې شی نو دَ لَوْ په حرف باندې داخلیدل لازمیږی.

**قوله**: اَلْ الف لام موصوله دی په معنی کښې د اَلَّذِیْ سَرَقَ وَالَّتِیْ سَرَقَتْ دی اسم موصول

مبتداء په معنی شرط لره لره دې په دې وجه دَدې په خبر فاقطعوا باندې معنی دجزاء لره کیدو دَ وجې نه په فاء داخل دې.

**قوله**: نَصْبٌ عَلَى الْمَصْدَرِيَّةِ يعنی جزاءً مفعول مطلق کیدو دَ وجې نه منصوب دې أی يُجْزَوْنَ جزاءً.

**قوله**: فِي التَّعْبِيْرِ بهذا يعنی د فَمَنْ تاب من بعد ظلمه په جواب کښې يې فَلاَ تحدُّوا نه دې فرمائیلې بلکه فَاِنَ اللہ يتوب عليه يې فرمائیلې دې په دې کښې اشاره ده چې الله تعالی به دَ توبې دَ وجې نه حقوق العباد نه معاف کوی يعنی دَ آخرت سزا خو معاف کولې شی کوم چې حقوق الله دې مګر دَ دنیاسزا چې دَ لاس پرې کول دی اودَ مسروقه مال واپسی ده هغه به نه معاف کوی او ان الله غفور رحیم په دَتعبیرهم دغه مقصد دې.

**قوله**: لايَحْزُنْكَ صُنْعُ په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې دَ حزن اوملال تعلق د ذات سره نه وې بلکه دفعل سره وی هم دَدې مقصد دپاره مفسرعلام صنع اضافه کړې ده.

**قوله**: سَمّٰعُوْنَ دا دَ مبتداء محذوف خبر دې ای هم سمّٰعون.

**قوله**: من بعد مَوَاضِعِه، ای من بعد تحقیق مواضِعِه الّتی وضع الله يعنی دَ کلمې مفهوم دَ الله تعالی دَطرف نه متعین کیدو باوجود کلمه بۀ يې دَهغې دَ حقیقی مفهوم نه اخواکوله.

**قوله**: اَلسُّحْت، حرام دا سَحَتَهُ نه ماخوذ دې هغه وخت وئیلې شی کله چې یوڅیز دَ بیخ نه راؤویستلې شی حرام مال چونکه مسحوت البرکه وی په دې وجه دې ته سحت وئیلې شی. اَکّٰالون للسحت هغوئ ډیر حرام خواره دی.

**[ایاتونه: ٤٤-٥٠]**

{إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى} مِنَ الضَّلَالَة {وَنُور} بَيَان لِلْأَحْكَامِ {يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ} مِنْ بَنِي إِسْرَائِيل {الَّذِينَ أَسْلَمُوا} انْقَادُوا لِلَّهِ {لِلَّذِينَ هادوا والربانيون} العلماء منهم {وَالْأَحْبَار} الْفُقَهَاء {بِمَا} أَيْ بِسَبَبِ الَّذِي {اسْتُحْفِظُوا} اسْتَوْدَعُوهُ أَيْ اسْتَحْفَظَهُمْ اللَّه إِيَّاهُ {مِنْ كِتَاب اللَّه} أَنْ يُبَدِّلُوهُ {وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاء} أَنَّهُ حَقّ {فَلَا تَخْشَوُا النَّاس} أَيُّهَا الْيَهُود فِي إِظْهَار مَا عِنْدكُمْ مِنْ نَعْت مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والرجم وغيرها {واخشون} فِي كِتْمَانه {وَلَا تَشْتَرُوا} تَسْتَبْدِلُوا {بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا} مِنْ الدُّنْيَا تَأْخُذُونَهُ عَلَى كِتْمَانهَا {وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّه فَأُولَئِكَ هُمْ الكافرون} به {وَكَتَبْنَا} فَرَضْنَا {عَلَيْهِمْ فِيهَا} أَيْ التَّوْرَاة {أَنَّ النفس} تقتل {بالنفس} إذا قتلتها {والعين} تفقأ {بالعين والأنف} يجدع {بالأنف والأذن} تقطع {بالأذن والسن} تقلع {بالسن} وَفِي قِرَاءَة بِالرَّفْعِ فِي الْأَرْبَعَة {وَالْجُرُوح} بِالْوَجْهَيْنِ {قِصَاص} أَيْ يُقْتَصّ فِيهَا إذَا أَمْكَنَ كَالْيَدِ وَالرِّجْل وَنَحْو ذَلِكَ وَمَا لَا يُمْكِن فِيهِ الْحُكُومَة وَهَذَا

الْحُكْم وَإِنْ كَتَبَ عَلَيْهِمْ فَهُوَ مُقَرَّر فِي شَرْعنَا {فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ} أَيْ بِالْقِصَاصِ بِأَنْ مَكَّنَ مِنْ نَفْسه {فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُ} لِمَا أَتَاهُ {وَمَنْ لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ الله} في القصاص وغيره {فأولئك هم الظالمون} {وَقَفَّيْنَا} أَتْبعنا {عَلَى آثَارِهِمْ} أَيْ النَّبِيِّينَ {بِعِيسَى بن مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ} قَبْله {مِنَ التَّوْرَاةِ وَآتَيْنَاهُ الْإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى} مِنْ الضَّلَالَة {وَنُور} بَيَان لِلْأَحْكَامِ {وَمُصَدِّقًا} حَال {لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ} لِمَا فِيهَا مِنْ الْأَحْكَام {وهدى وموعظة للمتقين} {و} قُلْنَا {لِيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنجِيلِ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فِيهِ} مِنْ الْأَحْكَام وَفِي قِرَاءَة بِنَصْبِ يَحْكُم وَكَسْر لَامه عَطْفًا عَلَى مَعْمُول آتَيْنَاهُ {وَمَنْ لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هم الفاسقون} {وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {الْكِتَاب} الْقُرْآن {بِالْحَقِّ} مُتَعَلِّق بِأَنْزَلْنَا {مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ} قَبْله {مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا} شَاهِدًا {عَلَيْهِ} وَالْكِتَاب بِمَعْنَى الْكُتُب {فَاحْكُم بَيْنَهُم} بَيْن أَهْل الْكِتَاب إذَا تَرَافَعُوا إلَيْك {بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ} إلَيْك {وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ} عَادِلًا {عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ} أَيّهَا الْأُمَم {شِرْعَةً} شَرِيعَة {وَمِنْهَاجًا} طَرِيقًا وَاضِحًا فِي الدِّين يَمْشُونَ عَلَيْهِ {وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً} عَلَى شَرِيعَة وَاحِدَة {وَلَكِنْ} فَرَّقَكُمْ فِرَقًا {لِيَبْلُوَكُمْ} لِيَخْتَبِرَكُمْ {فِي مَا آتَاكُمْ} مِنْ الشَّرَائِع الْمُخْتَلِفَة لِيَنْظُر الْمُطِيع مِنْكُمْ وَالْعَاصِي {فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ} سَارِعُوا إلَيْهَا {إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا} بِالْبَعْثِ {فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ} مِنْ أَمْر الدِّين وَيَجْزِي كُلًّا مِنْكُمْ بعمله {وأن احكم بينهم بما انزل الله ولا تتبع أهواءهم واحذرهم} ل {أَنْ} لَا {يَفْتِنُوك} يُضِلُّوك {عَنْ بَعْضِ مَا أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ فَإِنْ تَوَلَّوْا} عَنْ الْحُكْم الْمُنْزَل وَأَرَادُوا غَيْره {فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُصِيبَهُمْ} بِالْعُقُوبَةِ فِي الدُّنْيَا {بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ} الَّتِي أَتَوْهَا وَمِنْهَا التَّوَلِّي وَيُجَازِيهِمْ عَلَى جميعها في الأخرى {وإن كثيرا من الناس لفاسقون} {أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء يَطْلُبُونَ مِنْ الْمُدَاهَنَة وَالْمَيْل إذَا تَوَلَّوْا اسْتِفْهَام إنْكَارِيّ {وَمَنْ} أَيْ لَا أَحَد {أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ} عِنْد قَوْم {يُوقِنُونَ} بِهِ خُصُّوا بِالذِّكْرِ لأنهم الذين يتدبرون.

**ترجمه:** مونږ تورات نازل کړو په کوم کښې چې دَ ګمراهئی نه هدایت اورنړا وه (یعنی) دَ احکامو بیان وو. دَبنی اسرائیلو ټولو انبیاء کرامو چې مسلمانان اودَالله تعالی دَحکم تابعدار وو. دَ یهودیانودَپاره به نی هم دَدې په ذریعه فیصلې کولې اودَهغوی علماء کرامو اوفقهاء کرامو به هم (دَدې په ذریعه فیصلې کولې) په دې سبب چې الله تعالی هغوی دَدې محافظ جوړکړی وو یعنی هغوی نی په دې باندې امین جوړکړې وو په دې توګه چې دَ هغوی نه دَ کتاب الله دَ حفاظت مطالبه کړې وه په دې کښې دبدلون کولونه. اوهغوی دَدې په حق کیدو باندې ګواه وو. نو اې یهودو تاسو دَ محمد ﷺ دَ هغه صفاتو او دَ رجم وغیره دَ اظهارباره کښې کوم چې تاسو سره دی دَ خلقو نه مه ویریږئی (بلکه) دَهغې دَ ټولوباره کښې زما نه ویریږئی اوزما آیاتونه دَ دنیا په لږه شان معاوضې په بدله کښې کوم چې تاسو دَدې دَ ټولو په عوض اخلئ مه خرڅوئی اوکوم خلق چې دَ الله تعالی په نازل کړې شوی قانون باندې فیصله نه

کوی هم هغوئ کافردی اومونږ په هغوی باندې په تورات کښې مقررکړې دی نفس به دنفس په بدله کښې قتلولې شی. کله چې (قاتل) هغه لره قتل کړی اودَ سترګې په بدله کښې به سترګه ویستلې شی اودَ پوزې په بدله کښې به پوزه پرې کولې شی اوغوږ به دَ غوږ په بدله کښې پرې کولې شی اوغاښ به دَ غاښ په بدله کښې ویستلې شی او په یوقراءت کښې څلورو واړو خایونوکښې په رفع سره دی او په زخمونوکښې برابری ده (جروح) کښې هم دواړه وجې(رفع او نصب) دی یعنی په دې کښې به برابری کیږی که ممکن وی لکه چې لاس خپې او ذکر وغیره کښې او په کوم کښې چې برابری ممکن نه وی په هغې کښې به دَ عادل دَ فیصلې اعتباروی. دا (مذکوره) حکم سره دَدې چې په هغوی باندې فرض کړې شوې دې مګر دا زمونږ په شریعت کښې هم ثابت دې بیا چې څوک دَ قصاص صدقه اوکړی په دې توګه چې هغه په خپل ذات باندې قدرت ورکړی نودَهغه دا عمل دَهغه دَ فعل (قتل) کفاره ده او کوم خلق چې دَ قصاص وغیره په معامله کښې دَ الله تعالی دَنازل کړې شوی قانون مطابق فیصله اونه کړی هم هغه ظالمان دی اومونږ دَ دغه نبیانو نه پس عیسی بن مریم ته دَهغه نه وړاندې کتاب دَ تورات تصدیق کونکې جوړولوسره اولیږلو اوهغوی ته مو انجیل ورکړو په کوم کښې چې دَ ګمراهئی نه لارخودنه وه اودَ احکامو بیان وو حال دادې چې هغې دَ ځان نه دَ سابق کتاب تورات یعنی دَ هغې دَ احکامو تصدیق کونکې دې اود پرهیزګارو خلقو دپاره سراسر هدایت او نصیحت وو، او مونږ حکم ورکړو چې اهل انجیل دې دَ هغه احکامومطابق فیصله کوی کوم چې مونږ نازل کړې دی اوپه یوقراءت کښې په عطف سره او کوم خلق چې دَالله تعالی دَ نازل کړی قانون مطابق فیصله نه کوی هم هغه فاسقان دی. اواې محمد ﷺ مونږ په تا کتاب قرآن په حقه سره نازل کړې دې(بالحق)انزلنا متعلق دی. اودَهغه کتاب تصدیق کونکې دې کوم چې دده نه وړاندې دې او په دې باندې ګواه دې په معنی کتاب دې لهذا تاسو دَاهل کتابو په مینځ کښې کله چې هغوی تاسوله فیصله راوړی نو تاسو دَ نازل شوی خدائی قانون په ذریعه فیصله اوکړی اوکوم حق چې تاسو له راغلې دې دَ دې نه مخ اړولوسره دَهغوی دَ خواهشاتو پیروی مه کوئی او په تاسو کښې هریودَپاره اې خلقو مونږ دَ یوشریعت او دین واضحه طریقه متعین کړې ده چې تاسو پرې عمل اوکړئی او که الله تعالی غوښتلې نوهغه تاسو یوامت هم جوړولې شوئې. دَ یوشریعت منونکی لیکن هغه ستاسو مختلف فرقې جوړې کړې دې دَپاره چې هغه تاسو په دغه مختلف شریعتونو کښې ازمیښت کړی کوم چې تاسو ته درکړې شوی دی اودې دَپاره چې هغه په تاسو کښې حکم منونکی او حکم نه منونکی اوګوری لهذا په نیکوکښې دَ وړاندې کیدو کوشش کوئی یعنی دَهغې طرف ته تندی کوئی. تاسو ټولو له دَ بعث نه پس هم دَ الله تعالی طرف ته واپس ګرځیدل دی. بیا به تاسو ته هغه دهغه څه اصل حقیقت اوښائی په څه کښې چې تاسو اختلاف کولو یعنی په دینی امورو کښې، او په تاسو کښې به هریوته دَهغه دعمل بدله

ورکړي او تاسو خلق د دوئ په مينځ کښې د نازل کړې شوي خدائي قانون په ذريعه فيصله کوئ او دَهغوي دَ خواهشاتو پيروي مه کوئ او په احتياط سره اوسيږئ چې چرته دا خلق دَهغې نه کوم چې په تاسو الله تعالى نازل کړې دَ بعض خبرونه منحرف نه کړي. نو که دا خلق دَ نازل کړې شوي حکم نه انحراف اوکړي او دَ هغې نه دَعلاوه اراده اوکړي نو پوهه شئ چې الله تعالى دَهغوي دَ بعض ګناهونو دَ وجې نه دکوم چې هغوي مرتکب شوي دي هغوي هم په دنيا کښې په مصيبت کښې اخته کولو اراده کړې ده په دې کښې انحراف هم دې اودَدې ټولو سزا خو به په آخرت کښې ورکوي او دا حقيقت دې چې په دوي کښې اکثر خلق فاسقان دي. که چرې دوي دَ خداي قانون نه انحراف کوي نو آيا ولې دوي بيا دَجاهليت فيصله غواړي (يبغون) په ياء او تاء سره دې او استفهام انکاري دې. حالانکه کوم خلق چې په الله تعالى باندې ايمان لري دَهغوي په نيز دَالله تعالى نه بهترينه فيصله کونکې هيڅوک نشته. او اهل ايمان ئې په خاص توګه ځکه ذکرکړل چې هم هغوي په دې (فيصله کښې) غور اوفکر کونکي دي.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: اَلَّذِيْنَ هَادُوْا دَدې تعلق ديحکم سره دې يعني يهوديانو متعلق به ئې فيصلې کولې.

**قوله**: اَلَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا، دَ النبيين صفت دې.

**قوله**: الرَّبَّانِيُّوْنَ، دا د خلاف قياس دَ رب طرف ته نسبت دې دَ راء په کسرې سره هم وئيلې شي.

**قوله**: اَلْاَحْبَار، دا په کسره او فتح سره دَ حبر جمع ده په معنى د فقهاء فراء وئيلى دي چې کسره فصيح ده دا دَتحبيرنه ماخوذ دې په معنى د تحسين.

**قوله**: اسْتُحْفِظُوْا، دَ اسْتِحْفَاظ نه ماضي مجهول جمع مذکرغائب هغوئ حفاظت کونکي مقررکړې شو يعني احبارته حکم ورکړې شوې وو چې هغوي دې دَ تورات دَ تحريف نه حفاظت اوکړي.

**قوله** :وفِي قِرَاءَةٍ بِالرَّفْعِ فِي الاَرْبَعَةِ څلورو واړو ځايونو کښې مبتداء او دَخبرکيدو دَ وجې په يو قراءت کښې مرفوع هم وئيلې شوي دي.

**قوله**: يُقْتَصُّ،دَ قصاص تفسير په يُقْتَصُّ سره دکولو مقصد حمل صحيح کول دي.

**قوله**: نحو ذلك،کالشفتين والأذنين والقدمين او په کوم زخم کښې چې برابري او مساوات ممکن نه وي مثلاً زخم لګول، يا دَ بدن دَ يوې حصې نه غوښه کوزول، ياهډوکي ماتول په دې کښې چونکه مساوات ممکن نه دې په دې وجه به دَ حاکم عادل فيصله معيار وي.

**قوله**. اي بالقصاص بان تمكن من نفسه دا تشريح دَ امام شافعي رحمه الله دَ مذهب مطابق

دي کنې امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ تَصَدَّقَ معنى معاف کول دي يعنى که چرې دَ مقتول وارثانو دَ قاتل قصاص معاف کړو نودا دَهغوى په حق کښې صدقه ده.

**قوله:** قلنا: **سوال:** دلته دَ قلنا محذوف منلو څه فائده ده؟

**جواب:** دې دَ پاره چې په قَفَّيْنَا باندې عطف صحيح شي.

**قوله:** ينصب ليحكم، دَ لام نه پس دأن مقدره دَ وجې دې يَحْكُمَ منصوب دې.

**قوله:** عطفًا على مَعْمُوْلِ آتينا، اوهغه معمول مقدر هدًى وموعظةً دي. آتَيْنَاهُ مفعول له كيدو دَ وجې نه منصوب دې تقديرى عبارت به داسې شى وآتَيْنَاهُ الإنجيلَ للهدى والموعظة وحكمهم به.

**[اياتونه: ٥١-٥٦]**

{يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُود وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاء} تُوَالُونَهُمْ وَتُوَادُّونَهُمْ {بَعْضهمْ أَوْلِيَاء بَعْض} لِاتِّحَادِهِمْ فِي الْكُفْر {وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ} مِنْ جُمْلَتهمْ {إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ} بموالاتهم الكفار {فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبهمْ مَرَض} ضَعْف اعْتِقَاد كَعَبْدِ اللّٰه بْن أُبَيّ الْمُنَافِق {يُسَارِعُونَ فِيهِمْ} فِي مُوَالَاتهمْ {يَقُولُونَ} مُعْتَذِرِينَ عَنْهَا {نَخْشَى أَنْ تُصِيبنَا دَائِرَة} يَدُور بِهَا الدَّهْر عَلَيْنَا مِنْ جَدْب أَوْ غَلَبَة وَلَا يَتِمّ أَمْر مُحَمَّد فلا يميرونا قال تعالى {فَعَسَى اللّٰه أَنْ يَأْتِي بِالْفَتْحِ} بِالنَّصْرِ لِنَبِيِّهِ بِإِظْهَار دِينه {أَوْ أَمْر مِنْ عِنْده} بِهَتْك سِتْر الْمُنَافِقِينَ وَافْتِضَاحهمْ {فَيُصْبِحُوا عَلَى مَا أَسَرُّوا فِي أَنْفُسهمْ} من الشك وموالاة الكفار {نَادِمِينَ} {وَيَقُول} بِالرَّفْعِ اسْتِئْنَافًا بِوَاوٍ وَدُونهَا وَبِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى يَأْتِي {الَّذِينَ آمَنُوا} لِبَعْضِهِمْ إِذَا هَتَكَ سِتْرهمْ تَعَجُّبًا {أَهٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمُوا بِاللّٰهِ جَهْد أَيْمَانهمْ} غَايَة اجْتِهَادهمْ فِيهَا {إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ} فِي الدين قال تعالى {حَبِطَتْ} بَطَلَتْ {أَعْمَالهمْ} الصَّالِحَة {فَأَصْبَحُوا} صَارُوا {خَاسِرِينَ} الدنيا بالفضيحة والآخرة بالعقاب {يٰأيها الذين آمنوا من يرتدد} بِالْفَكِّ وَالْإِدْغَام يَرْجِع {مِنْكُمْ عَنْ دِينه} إِلَى الْكُفْر إِخْبَار بِمَا عَلِمَ اللّٰه وُقُوعه وَقَدْ ارْتَدَّ جَمَاعَة بَعْد مَوْت النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَسَوْفَ يَأْتِي اللّٰه} بَدَلهمْ {بِقَوْمٍ يُحِبّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ} قَالَ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُمْ قَوْم هٰذَا وَأَشَارَ إِلَى أَبِي مُوسَى الأشعري رواه الحاكم في صحيحه {أذلة} عاطفين {على المؤمنين أعزة} اشداء {على الكافرين يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيل اللّٰه وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَة لَائِم} فِيهِ كَمَا يَخَاف الْمُنَافِقُونَ لَوْم الْكُفَّار {ذٰلِكَ فَضْل اللّٰه يُؤْتِيه مَنْ يَشَاء وَاللّٰه وَاسِع} كَثِير الْفَضْل {عَلِيم} بِمَنْ هُوَ أَهْله ونزل لما قال بن سلام يا رسول الله إن قومنا هاجرونا {إِنَّمَا وَلِيّكُمْ اللّٰه وَرَسُوله وَالَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاة وَيُؤْتُونَ الزَّكَاة وَهُمْ رَاكِعُونَ} خَاشِعُونَ أَوْ يُصَلُّونَ صَلَاة التَّطَوُّع {وَمَنْ يَتَوَلَّ اللّٰه وَرَسُوله وَالَّذِينَ آمَنُوا} فَيُعِينهُمْ وَيَنْصُرهُمْ {فَإِنَّ حِزْب اللّٰه هُمْ الْغَالِبُونَ} لِنَصْرِهِ إِيَّاهُمْ أَوْقَعه مَوْقِع فَإِنَّهُمْ بَيَانًا لِأَنَّهُمْ مِنْ حزبه اي اتباعه

ترجمه اې هغه خلقو چې ايمان موراوړې دې يهوديان اونصارې دوستان مه جوړوئې چې هغوی سره دَزړه نه دوستی او محبت اوکړئې. دوی خو په خپل مينځ کښې په کفرکښې دَ يوځائې کيدودَ وجې نه دَ يوبل دوستان دی، اوکه چرته تاسو کښې څوک دَ دوی نه خپل دوست جوړوی نوهغه به هم دَدوی نه شميرلې شي. يقيناً الله تعالى کافرانو سره دوستی کولوسره ظلم کونکوته دَنيغې لار خودنه نه کوی تاسو وينئې گورئې دَچا په زړونوکښې چې (نفاق) بيماری ده يعنی دَ عقيده کمزوری ده لکه چې عبدالله بن ابی منافق دَهغوی په دوستئی کښې وړانديوالې کوی اوعذر بيانولوسره وائی چې مونږته انديښنه ده چې مونږ چرته په څه چکرکښې راگيرنه شو يعنی دَزمانې گردش په مونږ قحط کالی يا مغلوبيت وانچوی او (بل خوا) دَ محمد ﷺ مشن کاميابئ ته اونه رسی نودا خلق به مونږ ته غله هم نه راکوی خولږې نه ده چې الله تعالى دَخپل نبی دَ نصرت په ذريعه دين غالب کړی هغه ته فتح ورکړی يا بل څه صورت دَخپل طرف نه دَ منافقانو پرده ښکاره کړی اوهغوی رسوا کولوسره ظاهرکړی، نودا (منافقان به) دَدې نفاق اودَ کفارو سره په دوستئی باندې کوم چې ئې په خپلو زړونوکښې پټه کړې ده خپيمانه به وی. هغه وخت به اهل ايمان په حيرانتياسره وائی (يقول؛ په رفع سره دَ استيناف په توگه واؤ سره اوبغير د واؤ او نصب سره په ياتی باندې دَعطف دَ وجې نه چې کله به د هغوی پرده ښکاره کړې شی. آيا هم دغه هغه خلق دی چې دير په زوره به ئې په الله تعالى باندې قسمونه خوړل چې بيشکه مونږ په دين کښې هم تاسو سره يو. دَدوې ټول نيک اعمال ضائع شو او په دنيا کښې دَ رسوائی دَ وجې او په آخرت کښې دَ عذاب دَ وجې به په زيان کارانوکښې وی. اې خلقو چې ايمان مو راوړلې دې په تاسو کښې چې څوک دَخپل دين نه کفرطرف ته اوگرځی (نواوگرځی) (يَرْتَدَّ) ادغام اوترك ادغام (دواړه جائزدی) په معنی د يَرْجِعُ دا دَهغه واقعې خبر ورکول دی دکومې دَ وقوع نه چې الله تعالى خبردې. چنانچه د حضورپاك دَ وفات نه پس يوجماعت مرتد شو ديرزر به الله تعالى دَهغوی په بدله کښې داسې خلق راپيدا کړی چې دَالله تعالى به خوښ وی اوالله تعالى به هغوی ته محبوب وی. رسول الله ﷺ دَحضرت ابوموسیٰ اشعری ﷺ طرف ته اشاره کولوسره اوفرمائيل هغه به دَده قوم وی دا حاکم په خپل صحيح کښې روايت کړې دې کوم به چې دَ مؤمنانو باره کښې نرم (مهربان) او دَکافرانو په معامله کښې به سخت وی اودَالله تعالى په لارکښې به جهادکوی او په دې معامله کښې به دَ يوملامت کونکی دَ ملامتيانه نه ويريږی لکه څنگه چې منافقان دَ کافرانو په معامله کښې ويريږی. دا مذکوره اوصاف دَالله تعالى فضل دې الله تعالى چې چاته غواړی ورکوی اوالله تعالى دَ لوئی فضل والا دې اودَ فضل اهل څوك دی؟ هغې لره هغه ښه پيژندونکې دې. (آئنده آيت هغه وخت نازل شو) کله چې عبدالله بن سلام عرض اوکړو يارسول الله ﷺ مونږ خو زمونږ قوم پريخودو (حضورپاك اوفرمائيل) ستاسورفيق خو په

حقیقت کښې صرف الله تعالی او دَهغه رسول او اهل ایمان دی څوک چې مونځ قائموی او زکوة ورکوی او هغوی عاجزی اختیاروی. یا نفلی مونځ کوی. اوچاچې الله تعالی دَهغه رسول او ایمان والا خپل رفیق جوړکړل نو هغه به دَ ده نصرت او اعانت کوی. (هغوئ دې پوهه شی) چې هم دَالله تعالی جماعت به دَهغه دَامداد دَ وجې غالب وی دَ اِنَّهُمْ په ځائې حِزْبُ الله دائی دَ بیانولو دَپاره اوفرمائیل چې داخلق دَهغه جماعت او دَهغه دَ متبعینو نه دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: تُوَالُوْنَهُمْ وَتُوَادُّوْنَهُمْ.

**قوله**: تُوَالُوْنَهُمْ په اصل کښې تُوَالِيُوْنَهُمْ وو ضمه په یاء باندې دشوارکیدو دَ وجې نه لام ته ورکړې شوه. واؤ او یاء دوه حروف ساکن جمع شو یاء حذف کړې شوه دَ لام کسره ساقط کیدو نه پس تُوَالُوْنَهُمْ شو. تُوَادُّوْنَ په اصل کښې تُوَادِدُوْنَ وو دَ دال په دال کښې ادغام اوکړې شو توادّون شو (دواړه صیغې مفاعله) نه مضارع جمع مذکر حاضر دی. اَوْلِيَاء، دَ وَلِيْ جمع ده دَوَلِیْ مختلف معنې راځی محبت کونکې، دوست، مددګار، نیزدې، ګاونډی، حلیف، تابع وغیره په دې وجه دَمعنی دَتعیین ضرورت راغلې، مفسر علام توادّوهم وئیلو سره دَمعنی تعیین اوکړو.

**قوله**: مِنْ جُمْلَتِهِمْ، د یهود او نصاریٰ نه په اجتناب کښې دَ شدت بیانولو دَپاره دا جمله راوړې ده. مطلب دادې حکمه کحکمهم.

**قوله**: اِنَّ اللهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ دا اِنَّهُمْ مِنْهُمْ علت دې.

**قوله**: يُسَارِعُوْنَ. دا دَ قلوبهم د ضمیر هم نه حال دې.

**قوله**: دَائِرَة، ګردش، مصیبت، دا دَ دورٌ نه مشتق دې. دَ کوم معنی چې دَ ګرځیدو راګرځیدو ده. دَائِرَة، دَهغه صفاتو نه دې دَ کوم موصوف چې ذکر نه وی، دائرة موصوف بِدَوْرِهَا دَدې صفت دې.

**قوله**: المِيْرَة، غله خوراك اى اليهود والنصارى لا يعطوننا الْمِيْرَةَ یعنی یهود او نصاریٰ به مونږ ته غله راکول بندی کړی.

[ایاتو نه: ٥٧ - ٦٦]

{يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَكُمْ هُزُوًا} مَهْزُوءًا بِهِ {وَلَعِبًا مِنْ} لِلْبَيَانِ {الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ} الْمُشْرِكِينَ بِالْجَرِّ وَالنَّصْبِ {أَوْلِيَاءَ وَاتَّقُوا اللَّهَ} بِتَرْكِ مُوَالَاتِهِمْ {إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} صَادِقِينَ فِي إِيمَانِكُمْ {وَ} الَّذِينَ {إِذَا نَادَيْتُمْ} دَعَوْتُمْ {إِلَى الصَّلَاةِ} بِالْأَذَانِ {اتَّخَذُوهَا} أَيْ

الصَّلَاة {هُزُوًا وَلَعِبًا} بِأَنْ يَسْتَهْزِئُوا بِهَا وَيَتَضَاحَكُوا {ذَلِكَ} الِاتِّخَاذ {بِأَنَّهُمْ} أَيْ بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ} وَنَزَلَ لَمَّا قَالَ الْيَهُود لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْ تُؤْمِن مِنَ الرُّسُل فَقَالَ {بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا} الْآيَة فَلَمَّا ذَكَرَ عِيسَى قَالُوا لَا نَعْلَم دِينًا شَرًّا مِنْ دِينكُمْ {قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ هَلْ تَنْقِمُونَ} تُنْكِرُونَ {مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ} إِلَى الْأَنْبِيَاء {وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ} عُطِفَ عَلَى أَنْ آمَنَّا الْمَعْنَى مَا تُنْكِرُونَ إِلَّا إِيمَانَنَا وَمُخَالَفَتَكُمْ فِي عَدَم قَبُوله الْمُعَبَّر عَنْهُ بِالْفِسْقِ اللَّازِم عَنْهُ وَلَيْسَ هَذَا مِمَّا يُنْكَر {قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ} أُخْبِرُكُمْ {بِشَرٍّ مِنْ} أَهْل {ذَلِكَ} الَّذِي تَنْقِمُونَهُ {مَثُوبَةً} ثَوَابًا بِمَعْنَى جَزَاء {عِنْدَ اللَّهِ} هُوَ {مَنْ لَعَنَهُ اللَّهُ} أَبْعَده عَنْ رَحْمَته {وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ} بِالْمَسْخِ {وَ} مَنْ {عَبَدَ الطَّاغُوتَ} الشَّيْطَان بِطَاعَتِهِ وَرُوعِيَ فِي مِنْهُمْ مَعْنَى مِنْ وَفِيمَا قَبْله لَفْظهَا وَهُمْ الْيَهُود وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ بَاء عَبَدَ وَإِضَافَته إِلَى مَا بَعْده اسْم جَمْع لِعَبْدٍ وَنَصْبه بِالْعَطْفِ عَلَى الْقِرَدَة {أُولَئِكَ شَرٌّ مَكَانًا} تَمْيِيز لِأَنَّ مَأْوَاهُمْ النَّار {وَأَضَلُّ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ} طَرِيق الْحَقّ وَأَصْل السَّوَاء الْوَسَط وَذِكْر شَرّ وَأَضَلّ فِي مُقَابَلَة قَوْلهمْ لَا نَعْلَم دِينًا شَرًّا مِنْ دِينكُمْ {وَإِذَا جَاءُوكُمْ} أَيْ مُنَافِقُو الْيَهُود {قَالُوا آمَنَّا وَقَدْ دَخَلُوا} إِلَيْكُمْ مُتَلَبِّسِينَ {بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا} من عندكم متلبسين {به} وَلَمْ يُؤْمِنُوا {وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا يَكْتُمُونَ} من النفاق {وَتَرَى كَثِيرًا مِنْهُمْ} أَيْ الْيَهُود {يُسَارِعُونَ} يَقَعُونَ سَرِيعًا {فِي الْإِثْمِ} الْكَذِب {وَالْعُدْوَانِ} الظُّلْم {وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ} الْحَرَام كَالرُّشَا {لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} عملهم هذا {لَوْلَا} هَلَّا {يَنْهَاهُمُ الرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ} مِنْهُمْ {عَنْ قَوْلِهِمُ الْإِثْمَ} الْكَذِب {وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يصنعون} ترك نهيهم {وَقَالَتِ الْيَهُودُ} لَمَّا ضُيِّقَ عَلَيْهِمْ بِتَكْذِيبِهِمْ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْد أَنْ كَانُوا أَكْثَر النَّاس مَالًا {يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ} مَقْبُوضَة عَنْ إِدْرَار الرِّزْق عَلَيْنَا كَنَّوْا بِهِ عَنْ البخل تعالى الله عن ذلك قال تعالى {غُلَّتْ} أُمْسِكَتْ {أَيْدِيهِمْ} عَنْ فِعْل الْخَيْرَات دُعَاء عَلَيْهِمْ {وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ} مُبَالَغَة فِي الْوَصْف بِالْجُودِ وَثَنَّى الْيَد لِإِفَادَةِ الْكَثْرَة إِذْ غَايَة مَا يَبْذُلهُ السَّخِيّ مِنْ مَاله أَنْ يُعْطِي بِيَدَيْهِ {يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ} مِنْ تَوْسِيع وَتَضْيِيق لَا اعْتِرَاض عَلَيْهِ {وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ} مِنَ الْقُرْآن {طُغْيَانًا وَكُفْرًا} لِكُفْرِهِمْ بِهِ {وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ} فَكُلّ فِرْقَة مِنْهُمْ تُخَالِف الْأُخْرَى {كُلَّمَا أَوْقَدُوا نَارًا لِلْحَرْبِ} أَيْ لِحَرْبِ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {أَطْفَأَهَا اللَّهُ} أَيْ كُلَّمَا أَرَادُوهُ رَدَّهُمْ {وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا} أَيْ مُفْسِدِينَ بِالْمَعَاصِي {وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ} بِمَعْنَى أَنَّهُ يُعَاقِبهُمْ {وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ آمَنُوا} بِمُحَمَّدٍ صلى الله عليه وسلم {واتقوا} الكفر {لكفرنا عنهم سيئاتهم ولأدخلناهم جنات النعيم} {وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ} بِالْعَمَلِ بِمَا فِيهِمَا وَمِنْهُ الْإِيمَان بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِمْ} مِنَ الْكُتُب {مِنْ رَبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ} بِأَنْ يُوَسِّع عَلَيْهِمْ الرِّزْق وَيُفِيض مِنْ كُلّ جِهَة {مِنْهُمْ أُمَّةٌ} جَمَاعَة {مُقْتَصِدَةٌ} تَعْمَل بِهِ وَهُمْ مَنْ آمَنَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَعَبْدِ اللّٰه بْن سَلَام وَأَصْحَابه {وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ سَاءَ} بِئْسَ {مَا} شَيْئًا {يَعْمَلُونَ}

ترجمه: اې خلقو چې ايمان مو راوړې دې تاسو نه وراندې اهل کتاب لره چاچې ستاسو دين ټوقې کولې او دتفريح سامان جوړکړې دې او من بيانيه دې اوکافران مشرکان (خپل) دوستان مه جوړوئې په معنی مهزوًا به دې يعنی مصدر په معنی د مفعول دې په نصب سره دې د هغوی نه ترك موالات کولوسره دالله تعالی نه اووېرېږئی که چرې تاسو مؤمنان يئې (يعنی) په خپل ايمان کښې رښتونی ئی اوهغه خلقولره هم چې کله تاسو دَ مونځ دپاره آذان کوئی نوهغوی دغه مونځ پورې ټوقې کوی اولوبې جوړوی په داسې طريقه چې دې پورې مسخرې کوی اودَ دې سپکاوې کوی اودَ هغوی دا استهزاء وغيره کول ددې وجې نه دی چې هغوئ ناپوهه خلق دی. کله چې يهودو نبی کريم ﷺ ته اووئيل چې په رسولانوکښې ته په چاباندې ايمان لرې؟ نو حضورپاك اوفرمائيل په الله تعالی باندې او په هغه څه باندې څه چې زمونږ طرف ته نازل کړې شوی دی (الآية) کله چې دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام ذکر اوفرمائيلونوونئی وئيل مونږ ستا دَ دين نه بل يودين هم بد نه ګڼړو، نو (راتلونکې) آيت نازل شو. دوی ته اووايه اې اهل کتاب تاسو مونږ صرف په دې وجه ناخوښه کوئی چې مونږ په الله تعالی باندې او په هغه څه کوم چې زمونږ طرف ته نازل کړې شوی دی ايمان لرو او په هغې باندې کوم چې په سابقه انبياء کرامو باندې نازل کړې شوی دی ايمان لرو او بيشکه په تاسو کښې اکثر فاسقان دی. دَ دې عطف په اَن آمَنَّا باندې دې معنی داده چې تاسو صرف زمونږ ايمان ناخوښه کوئی او تاسو سره زمونږ مخالفت دَ ايمان نه قبلولودَ وجې نه دې کوم چې فسق سره تعبيرکړې شوې دې کوم چې دَ ايمان عدم قبول لره لازم دې او دا دَ ناخوښه خبرونه نه دې. هغوی ته اووايه آيا زه درته هغه خلق اوښايم چې دَ سزا په اعتبار دالله تعالی په نيز دَهغوی نه ډيرخراب دی کوم چې تاسو ګڼړئی. مثوبةً په معنی جزاءً دې اوداهغه کس دې په چا چې الله تعالی لعنت کړې دې يعنی څوك ئی چې دَخپل رحمت نه لرې کړې دې. او په هغه باندې غضبناك شوې دې اوپه هغوی کښې يئ بعض مسخ کولوسره بيزوګان جوړکړل او بعض ئی خنزيران جوړکړل اوهغه کس دې چې دَ شيطان بندګی يئ اوکړه دَ هغه اطاعت ئی اوکړو، اوپه مِنْهُمْ کښې دَ مَنْ دَ معنې رعايت کړې دې اودَدې په ماقبل کښې دَ مَنْ دَ لفظ رعايت دې اوهغه يهوديان دی. اوپه يو قراءت کښې دَعَبْد دَ باء په ضمې اودَ دې د ما بعد طرف ته اضافت سره دې. عَبْد اسم جمع دې اودَ (طاغوت) نصب، په القردة باندې دَ عطف دَ وجې نه دې داهغه خلق دی چې دَچا درجې نورې هم زياتې خرابې دی مکانًا تميزدې ځکه چې دَدوی ځائی اور دې اودَ نيغې لار نه ډير ګمراه شوی دی (يعنی) دَ حق لارې نه، اودَ سواءُ اصل وسط دې او شَرٌّ او اَضَلُّ ذکر دَهغوی دَ قول لانعلم دينا شرًّا من دينکم په مقابله کښې دې اوکله چې دا منافقان يهوديان تاسو له راشی نو وائی چې مونږ ايمان راوړې دې حالانکه دکفر سره راغلی وو او هغوی ستاسو د

خوانه سره دَ کفرواپس ځی او ایمانْ ئی نه دې راوړې اوالله تعالی ته ښه معلوم دې هغه نفاق کوم چې دوی پټ کړې دې او تاسو دَدوی نه یعنی یهودیانو نه ډیر وینئ ګورئی چې دَ کذب ګناه او ظلم طرف ته ورمنډه وهی یعنی په ګناه کښې په تادئی سره ورداخلیږی اوحرام خوری لکه رشوت اویقینًا څه چې کوی ډیر خراب حرکت دې او ولې دَهغوی عالمان او د مشائخ ګناه یعنی د دروغ خبرې کولونه او حرام مال خوړلونه نه منع ترلی؟ دوی نه منع کول یقینًا ډیرخراب حرکت دې اوکله چې په یهودیانوباندې دَ نبی کریم ﷺ دَ تکذیب دَ وجې نه تنګدستی واچولې شوه حالانکه هغوی په خلقوکښې ډیرمالدار وو نوهغوی اووئیل چې دَ الله تعالی لاسونه بند شوې دی (یدالله مغلولة) سره دَ بخل طرف ته کنایه ده (حالانکه) الله تعالی دَ بخل نه بری دې الله تعالی اوفرمائیل دَهغوی لاسونه دَ نیکوکارونونه ترلی کړې شوی دی (دا) دَهغوی دَپاره بددعاده اودَ هغوی دَ بکواس په وجه په هغوی باندې لعنت اوکړې شو بلکه (حقیقت دادې) چې دَهغه دواړه لاسونه کولاؤ دی دا دَ سخاوت په صفت کښې مبالغه ده دَ کثرت فائده ورکولودَپاره یَدْ تثنیه راوړلې شوې دې څکه سخی چې دخپل مال نه دَ کوم څیز سخاوت کوی دهغې آخری درجه داده چې په دواړه لاسه ئی ورکړی اوچې څنګه غواړی خرچ کوی یئ که په ارت مټ وی اوکه په تنګ. په هغه باندې دَ چادَ ګوتې اوچتولو حق نشته. کوم څیز چې ستادَ رب دَ طرف نه په تا نازل کړې شوې دې (یعنی) قرآن یقینًا هغې په دوی کښې د اکثروکفراو سرکشئ کښې اضافه اوکړه دَهغوی دَدې (قرآن) نه دَ منکرکیدود وجې نه اودَ (دې په بدله) کښې مونږ دَهغوی په مینځ کښې ترقیامته پورې دښمنی اوبغض واچولو اوکله هم چې دا خلق د رسول الله ﷺ سره دَ جنګ اور تیزوی نوالله تعالی هغه یخوی یعنی کله هم چې هغوی دَ حملې کولو اراده کوی نوالله تعالی هغوی واپس شاته کوی. داخلق په زمکه کښې دَ فساد خورولوکوشش کوی یعنی دَ معصیت په ذریعه فساد کونکی دی اوالله تعالی فساد خورونکی نه خوښوی. مطلب دا چې هغه به دوی ته سزا ورکړی اوکه دَ دې (سرکشئ په ځائی) اهل کتاب په محمد ﷺ باندې ایمان راوړې وې اودَ کفرنه بچ شوی وې نو مونږ به دَهغوی ګناهونه معاف کړی وې اوهغوی به مودَ نعمتونونه ډک جنت کښې داخل کړې وې. که چرې دغه خلقو په تورات اوانجیل کښې ذکر شوی (احکام) باندې عمل کړې وې اوهغه ئی قائم کړې وې او هم دَ دغې نه په نبی باندې ایمان راوړل هم دی او هغه (نور) کتابونه ئی قائم کړې وې چې په هغوی باندې دَهغوی دَرب دَ طرف نه نازل کړې شوی دی نودَهغوی دَ پاره به دَآسمان نه هم رزق راوریدلو اولاندې دَ (زمکې) نه هم رزق راوتلو په داسې ترګه چې په هغوی به دَ رزق وسعت کولې شو او د څلور واړه طرفونو نه به هم رزق وې. په هغوی کښې څه خلق اعتدال خوښونکی هم دې چې په دې باندې عمل کوی اودا هغه خلق دی چې په نبی ﷺ باندې ایمان راوړې دې لکه عبدالله بن سلام اودَهغه ملګری، لیکن دَهغوی اکثرخلق سخت بدعمله دی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: لاتتخذوا الخ كلام مستانف دې، لاتتخذوا فعل مضارع مجزوم بلا، په دې كښې ضمير فاعل الذى اسم موصول اتخذوا فعل بافاعل دينكم مفعول به اول، هُزُواً معطوف عليه لعبا معطوف، معطوف بامعطوف عليه مفعول به ثاني، جمله صله شوه، موصول صله مفعول اول د لاتتخذوا، أَوْلِيَآءَ مفعول ثاني، لاتتخذوا ضمير فاعل او مفعول جواب نداء، او نداء دخپل منادى او جواب نداء سره جمله ندائيه شوه قُل د فعل محذوف مقوله.

قوله: مَهْزُوًّا به، يعنى هُزُواً مصدر، دمفعول په معنى كښې دې.

قوله: بالجرّ، جرپه الذين باندې د عطف د وجې نه دې.

قوله: النصبُ، او د كفار نصب، په اَلَّذِيْنَ اتخذوا باندې د عطف دوجې نه دې.

قوله: فقال بالله ومَآ اُنْزِلَ الينا (الاية) مطلب دادې چې د يهودو په جواب كښې رسول الله ﷺ د سورت بقره مذكوره آيت تلاوت كړو په كوم كښې چې دحضرت عيسى عليه السلام د نبوت هم ذكر دې.

قوله: تَنْقِمُوْنَ تاسو انكاركوئى، تاسو دښمنى كوئى تاسو عيبونه لټوئى، دا د نَقْمٌ نه ماخوذ دې اومضارع جمع مذكر حاضر دې.

قوله: المعنى ما تُنْكِرُوْنَ اِلاب ايمَانِنَا، ددې اضافې مقصد داخودل دى چې په هل تنقمون كښې استفهام انكارى دې.

قوله: ثوابًا په دې كښې اشاره ده چې مَثُوْبَة مصدر ميمى دې نه چې ظرف.

قوله: وَذُكِرَ شَرٌّ وَاَضَلُّ فى مُقَابَلَةِ الخ، ددې عبارت د اضافې مقصد د يوسوال مقدرجواب دې.

سوال: شرٌ واَضَلُّ د اسم تفضيل صيغې دى دكوم د پاره چې د مفضل عليه ضرورت وى په دغه آيت كښې يهود مفضل او مسلمانان مفضل عليه دى او مفضل اومفضل عليه په نفس وصف كښې شريك وى لهذا يهود اومسلمانان به په نفس شرارت او ضلالت كښې شريك وى خو يهود به د مسلمانانو نه په وصف شرارت اوضلالت كښې وړاندې شوى وى حالانكه دا خلاف واقعه دى؟

جواب: دلته د شرارت اوضلالت استعمال دمقابلې اومشاكلت په توګه سره شوې دې ځكه چې يهودو وئيلى وو لانعلم دينًا شرًا من دينكم لكه چې جزاء السيئة سيئة كښې جزاء ظلم ته مشاكلة سيئة وئيلې شوې دې.

**دویم جواب**: بعض وخت اسم تفضيل دَ نفس زياتي دَبيانولودَپاره هم راځي دغه وخت دي ته دَ مفضل عليه ضرورت نه وي يعني اسم تفضيل دَ اسم فاعل په معنى كښې راځي او په قرآن كريم كښې دَدې استعمال په كثرت سره دې.

**قوله**: مُقْتَصِدَة،دا د اقتصاد (افتعال) نه ماخوذ دې اسم فاعل واحد مؤنث، په نيغه لار قائم پاتې كيدل.

**[اياتونه:٦٧-٧٧]**

{يٰأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ} جَمِيع {مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ} وَلَا تَكْتُم شَيْئًا مِنْهُ خَوْفًا أَنْ تُنَال بِمَكْرُوه {وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ} أَيْ لَمْ تُبَلِّغ جَمِيع مَا أُنزِلَ إِلَيْك {فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ} بِالْإِفْرَادِ وَالْجَمْع لِأَنَّ كِتْمَان بَعْضهَا كَكِتْمَانِ كُلّهَا {وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ} أَنْ يَقْتُلُوك وَكَانَ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحْرَس حَتَّى نَزَلَتْ فَقَالَ انْصَرِفُوا فَقَدْ عَصَمَنِي اللّٰه رَوَاهُ الحاكم {إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ} {قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ} مِنَ الدِّين مُعْتَدّ بِهِ {حَتَّىٰ تُقِيمُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ} بِأَنْ تَعْمَلُوا بِمَا فِيهِ وَمِنْهُ الْإِيمَان بِي {وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ} مِنَ الْقُرْآن {طُغْيَانًا وَكُفْرًا} لِكُفْرِهِمْ بِهِ {فَلَا تَأْسَ} تَحْزَن {عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ} إِنْ لَمْ يُؤْمِنُوا بِك أَيْ لَا تَهْتَمّ بِهِمْ {إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا} هُمْ الْيَهُود مُبْتَدَأ {وَالصَّابِئُونَ} فِرْقَة مِنْهُمْ {وَالنَّصَارَىٰ} وَيُبْدَل مِنَ الْمُبْتَدَأ {مَنْ آمَنَ} مِنْهُمْ {بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَة خَبَر الْمُبْتَدَأ وَدَالّ عَلَى خبر إن {لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ} عَلَى الْإِيمَان بِاللّٰهِ وَرُسُله {وَأَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ رُسُلًا كُلَّمَا جَاءَهُمْ رَسُولٌ} مِنْهُمْ {بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنفُسُهُمْ} مِنَ الْحَقّ كَذَّبُوهُ {فَرِيقًا} مِنْهُمْ {كَذَّبُوا وَفَرِيقًا} مِنْهُمْ {يَقْتُلُونَ} كَزَكَرِيَّا وَالتَّعْبِير بِهِ دُون قَتَلُوا حِكَايَة لِلْحَالِ الْمَاضِيَة لِلْفَاصِلَةِ {وحسبوا} ظنوا {أ} ن {لَا تَكُونَ} بِالرَّفْعِ فَأَنْ مُخَفَّفَة وَالنَّصْب فَهِيَ نَاصِبَة أَيْ تَقَع {فِتْنَةٌ} عَذَاب بِهِمْ عَلَى تَكْذِيب الرُّسُل وَقَتْلهمْ {فَعَمُوا} عَنِ الْحَقّ فَلَمْ يُبْصِرُوهُ {وَصَمُّوا} عَنِ اسْتِمَاعه {ثُمَّ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ} لَمَّا تَابُوا {ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا} ثَانِيًا {كَثِيرٌ مِّنْهُمْ} بَدَل مِنَ الضَّمِير {وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ} فَيُجَازِيهِمْ بِهِ {لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ} سَبَقَ مِثْله {وَقَالَ} لَهُمْ {الْمَسِيحُ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ} فَإِنِّي عَبْد وَلَسْت بِإِلَه {إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ} فِي الْعِبَادَة غَيْره {فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ} مَنَعَهُ أَنْ يَدْخُلهَا {وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ} زَائِدَة {أَنصَارٍ} يَمْنَعُونَهُمْ مِنْ عَذَاب اللّٰه {لَّقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ ثَالِثُ} آلِهَة {ثَلَاثَةٍ} أَيْ أَحَدهَا وَالْآخَرَانِ عِيسَى وَأُمّه وَهُمْ فِرْقَة مِنَ النَّصَارَى {وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَإِن لَّمْ يَنتَهُوا عَمَّا يَقُولُونَ} مِنَ التَّثْلِيث وَيُوَحِّدُوا {لَيَمَسَّنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا} أَيْ ثَبَتُوا عَلَى الْكُفْر {مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم وَهُوَ النَّار {أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى اللَّهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُ} مِمَّا قَالُوا اسْتِفْهَام تَوْبِيخ {وَاللَّهُ غَفُورٌ} لِمَنْ تَابَ {رَّحِيمٌ} بِهِ {مَّا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ} مَضَتْ {مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ} فَهُوَ يَمْضِي مِثْلهمْ وَلَيْسَ بِإِلَه كَمَا زَعَمُوا وَإِلَّا لَمَا مَضَى {وَأُمُّهُ

صِدِّيقَة} مُبَالَغَة فِي الصِّدْق {كَانَا يَأْكُلَانِ الطَّعَامَ} كَغَيْرِهِمَا مِنَ النَّاس وَمَنْ كَانَ كَذٰلِكَ لَا يَكُون إِلٰهًا لِتَرْكِيبِهِ وَضَعْفه وَمَا يَنْشَأ مِنْهُ مِنَ الْبَوْل وَالْغَائِط {انْظُرْ} مُتَعَجِّبًا {كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْآيَات} عَلَى وَحْدَانِيَّتنَا {ثُمَّ انْظُرْ أَنّٰى} كَيْفَ {يُؤْفَكُونَ} يُصْرَفُونَ عَنِ الْحَقّ مَعَ قِيَام الْبُرْهَان {قُلْ أَتَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ} أَيْ غَيْره {مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيعُ} لِأَقْوَالِكُمْ {الْعَلِيمُ} بِأَحْوَالِكُمْ وَالِاسْتِفْهَام لِلْإِنْكَار {قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ} الْيَهُود وَالنَّصَارَى {لَا تَغْلُوا} تُجَاوِزُوا الْحَدّ {فِي دِينِكُمْ} غُلُوًّا {غَيْرَ الْحَقِّ} بِأَنْ تَضَعُوا عِيسَى أَوْ تَرْفَعُوهُ فَوْق حَقّه {وَلَا تَتَّبِعُوا أَهْوَاءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوا مِنْ قَبْلُ} بِغُلُوِّهِمْ وَهُمْ أَسْلَافهمْ {وَأَضَلُّوا كَثِيرًا} مِنَ النَّاس {وَضَلُّوا عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ} عَنْ طَرِيق الْحَقّ وَالسَّوَاء فِي الْأَصْل الْوَسَط

---

**ترجمه:** اې رسول! کوم څه چې ستا دَ رب دَ طرف نه په تاباندې نازل کړې شوی دی هغه ټول (خلقوته) اورسوه اودَدې ویرې نه چې دَدې وجې نه به تاته پریشانی پیداکیږي. دَدې نه هیڅ مه پټېږه اوکه چرې تا دا کاراونه کړو یعني څه چې ستا طرف ته نازل کړې شوی دی هغه ټول دې (خلقوته) اونه رسول نو تا دَهغه دَ رسالت حق ادا نه کړو. (رسالة) افراد اوجمع سره دې. ځکه چې دَ بعض پټېول دَ ټولو دَ پټولو په شان دی الله تعالی به تا دَ خلقو دَ شرنه بچ کړی چې تاقتل کړی او دَ نبی ﷺ حفاظت به کیدلو تردې چې آیت والله یعصمك من الناس نازل شو نو هغوی اوفرمائیل زما دَخوا نه لاړشئ ځکه چې الله تعالی زما حفاظت کړې دې، رواه حاکم، یقین ساته چې الله تعالی به کافرانو ته (ستا په مقابله کښې دکامیابۍ) لارنه ورښائي. تاسو اووایئ چې اې اهل کتاب تاسو معتدبه دین باندې قائم نه شئ ترکومې چې تاسو تورات او انجیل او دَدې (احکام) باندې قائم نه یئ چې کوم ستاسو رب ستاسو طرف ته نازل کړی دی په دې توګه چې څه په هغې کښې دی په هغې عمل اوکړئ او په دغه (احکام کښې) زما تصدیق کول هم شامل دی. کوم قرآن چې ستا دَ رب دَ طرف نه ستا طرف ته نازل کړې شوې دې هغه په کښې دَ ډیرو سرکشی او کفر کښې زیاتوی دَهغوی دَ انکار دَ وجې نه. که منکر قوم په رب باندې ایمان رانوړی نو ته افسوس مه کوه یعنی په دوئ باندې خفه کیږه مه او په دې کښې هیڅ شک نشته چې که مؤمن وی یا یهودیت اختیارونکې وی او هغه یهودیان دی. مبتداء دې او صابی اونصاری (یا وی)(صابی) دَ یهودو یوه فرقه ده او مَنْ آمَنَ دمبتداء نه بدل دې په دوی کښې چې څوک هم په الله تعالی باندې اوپه یوم آخرت باندې په حقیقت کښې ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی نو په آخرت کښې به نه په هغوی باندې وېره وی اونه غم (فلاخوف علیهم ولاهم یحزنون) دَ مبتداء خبر دې په کوم چې دَ إِنَّ په خبر باندې دال دې مونږ دَ بنی اسرائیلو نه په الله تعالی باندې او دَهغه په رسول باندې دَ ایمان راوړو پوخ عهد اخستې وو او مونږ دَهغوی طرف ته ډیر رسولان لیږلې وو (مګر) چې کله هم دَهغوی یو رسول دَ هغوی دَ نفس دَ خواهشاتو خلاف حق سره راغلې نو دَهغه تکذیب ئی کړې، په هغوی کښې دَ بعضو تکذیب یې اوکړو

اوپه هغوی کښې ئې بعض قتل کړل لکه چې حضرت زکریا علیہ السلام او حضرت یحیٰی علیہ السلام او دَ
قَتَلُوْا په ځائې یقتلون سره تعبیرحکایت حال دَ ماضیه په توګه دې اودَ فواصل رعایت هم
مقصود دې اوهغوی په خپل ګمان کښې دا اوګڼل چې څه فتنه به نه ښکاره کیږی یعنی
دَهغویٰ دَ رسولانو دَتکذیب اوقتل دَ وجې نه به په هغوی څه عذاب نه واقع کیږی. (الا
تَکونُ) په رفع سره دې. په دې صورت کښې به اَنْ مخففه عن المثقله وی اوپه نصب سره هم
دې په دې صورت کښې به اَن ناصبه وی اَن تکونَ په معنی اَن تقع دې. دَ حق نه ړانده
شوچې دې ته ګوری نه اوهم دَدې دَ اوریدونه کاڼه شو بیاچې کله هغوی توبة اوکړه نوالله
تعالی دَ هغوی توبه قبوله کړه بیادوباره دَهغوی نه اکثرخلق ړانده کاڼه شو او (کثیرٌمنهم) دعَمُوا
ضمیرنه بدل دې. دا خلق چې څه کوی الله تعالی هغه هرڅه وینی نودوی ته به دَدې سزا ورکړی.
یقینًا هغه خلقو کفراوکړو چا چې اووئیل چې الله هغه هم عیسی بن مریم دې هم دَدې قسم آیت
تیرشوې دې اوهغوی ته مسیح علیہ السلام وئیلی وو اې بنی اسرائیلو دَالله تعالی بندګی کوئی چې زما
هم رب دې اوستاسو هم رب دې ځکه چې زه بنده یم معبودنه یم. اوچاچې په عبادت کښې
غیردَ الله تعالی سره شریک کړو نوالله تعالی دَهغوی دَپاره جنت حرام کړو یعنی په جنت کښې په
داخلیدوباندې پابندی اولګوله اودَهغوی ځائې دوزخ دې اودَداسې ظالمانو هیڅوک امدادی
نشته چې هغوی دَ الله تعالی دَعذاب نه بچ کړې شی. مِن زائده دې یقینًا هغه خلقو کفر
اوکړو چاچې اووئیل الله تعالی دَ دریو معبودانونه یودې یعنی یو الله او نور دوه عیسی علیہ السلام
اودَهغه مور. دا دَ نصاریٰ یوه فرقه ده حالانکه دَ یوخدائی نه علاوه بل خدائی نشته که چرې
داخلق دَ تثلیث دَ بکواس نه منع نه شو اودَ توحید قائل نه شو نو چاچې په دوی کښې کفرکړې
وی یعنی په کفرباندې قائم ولاړ پاتې وی نو هغوی ته به دردناک سزا ورکولې شی اوهغه سزا
دَ اور ده نوبیابه داخلق دَ الله تعالی دَ وئیلو شوو خبرو باره کښې دَ الله تعالی نه توبه نه کوی
اودَهغه نه به معافی نه غواړی الله تعالی دَدې نه چاچې توبه اوکړه معافی کونکې او په هغوی
رحم کونکې دې. مسیح ابن مریم علیہ السلام دَدې نه علاوه هیڅ نه دې چې هغه یورسول دې دَهغه نه
وړاندې ډیر رسولان تیرشوی دی دې به هم دَهغوی په شان تیرشی هغه معبودنه دې لکه
څنګه چې هغه منله ده ګنی هغه به نه تیریدو دَهغه مور یوه نیکوکاره ښځه وه په صداقت
کښې مبالغه کونکې اوهغوی دواړو به خوراک کولو څنګه چې نور ساه والا خوراك کوی
اوڅوك چې داسې وی نوهغه معبودکیدې نه شی دَ خپل مرکب کیدو دَ وجې اودَ خپل
ضعف دَ وجې اودهغوی نه بول وبراز خارج کیدو دَ وجې نه. ګورئی امردَ تعجب دَپاره دې
مونږدَهغوی دَپاره په خپل وحدانیت باندې څنګه نښې بیانوی. بیا اوګوره دَ دلیل قائم کیدو
نه پس هم هغوی دَحق نه څنګه اولته واپس روان دی؟ ته هغوی ته اووایه چې تاسو الله تعالی

پرېږدئی اود بل چا بندګی کوئی چې نه ستاسو د نقصان مالکان دی اونه د نفع حالانکه هم الله تعالی د ټولو خبرې اورېدونکې اود ټولو په احوالو باندې پوهېدونکې دې. استفهام د انکار د پاره دې. ورته اووایه اې اهل کتاب یهود اونصاری دې ناحق په خپل دین کښې غلو نه کوی یعنی په خپل دین کښې دې د حد نه تجاوز نه کوی په داسې توګه چې د عیسیٰ علیه السلام سپکاوې اوکړی د هغه د مرتبې نه هغه زیات کړی اود هغه خلقو د خیالاتو تابعداری دې نه کوی چې تاسو نه وړاندې د خپلې غلو د وجې نه ګمراه شوی دی اوهغه د دوی اسلاف دی اوهغوی ډېر خلق ګمراه کړی دی اود نیغې لارې نه ګمراه شوی وو یعنی د حق لارې نه، د سواء معنی په حقیقت کښې د وسط ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** لِاَنَّ کِتْمَانَ بَعْضِهَا کَکِتْمَانِ کُلِّهَا، دا رسالات جمع راوړلو علت دې.

**قوله:** اَنْ یَّقْتُلُوْا جمله مقدر منلو مقصد د یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** د الله تعالی د قول والله یعصمك من الناس مطلب دې چې الله تعالی به حضور پاك ﷺ د ټولو انسانانو د طرف نه د هر قسم تکلیف نه محفوظ ساتی، حالانکه حضور پاك ته د انسانانو د طرف نه تکلیف اونقصان رسیدلې وو مثلاً په غزوه احد کښې د رسول الله ﷺ مخ مبارك زخمی کیدل، د رسول الله ﷺ غاښونه مبارك ماتیدل وغیره وغیره؟

**جواب:** د حفاظت نه مراد د قتل نه حفاظت دې نه چې د مطلق تکلیف نه حفاظت لهذا اوس څه اعتراض پاتې نه شو.

**قوله:** مِنَ الدِّیْنِ مُعْتَدٍّبِهٖ دا د سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** د یهود او نصاریٰ د مشرکانو باره کښې داسې وینا کول چې تاسو به هیڅ شی باندې نه یئې صحیح نه ده ځکه چې هغوی په کوم دین او مذهب باندې وو هغه هم یو شئ وو د دې جواب ورکړې شو؟

**جواب:** د شئ نه مراد د الله تعالی په نیز دین معتد به دې نه چې د هغوی اختیار کړې شوې دین او مذهب.

**قوله:** الصّٰبِئُوْنَ، د صَابِئٌ جمع ده اسم فاعل د دین نه خارجیدونکې کله چې به یو سړی اسلام راوړلو نو عربو به وئیل قَدْصَبَأَ هغه د دین نه اووتلو. دا فرقه په دې نوم سره ځکه یادیدله چې هغوی د یهودیت او نصرانیت نه وتلی وو اودستورو عبادت به ئې کولو دهغوی مرکز حران دې ابو اسحاق صابی هم د دې فرقې سره تعلق لرلو.

**قوله:** اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا په دې جمله کښې نهه ترکیبونه کیدې شی په دې کښې آسان درې

ترکیبونه دلته لیکلې شي: ① انّ حرف مشبه بالفعل ناصب، الذين اسم موصول آمنوا صله، موصول اوصله دَ اِنَّ اسم فلاخوف عليه ولاهم يحزنون، جمله دَ اِنَّ خبرمحذوف. ﴿وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِئُوْنَ وَالنَّصٰرٰى مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴾
② واو، استينافيه اَلَّذِينَ اسم موصول هَادُوا صله، موصول صله معطوف عليه، والصابئون معطوف عليه معطوف والنصاري معطوف دريواړه معطوفات مبدل منه شو مَنْ آمَنَ بالله واليوم الآخر جمله معطوف عليه، وعمل صالحًا معطوف، معطوف معطوف عليه بدل، بدل اومبدل منه مبتداء، فلاخوف عليهم ولاهم يحزنون جمله دَ مبتداء خبردې.
③ اِنَّ حرف مشبه بالفعل الذين اسم موصول آمنوا، صله، موصول معطوف عليه واوْ عاطفه الذين اسم موصول هادوا صله موصول صله معطوف عليه واوْ عاطفه الصابئون معطوف عليه معطوف واوْ حرف عطف النصاري معطوف دريواړو معطوفاتو مبدل منه مَنْ آمَنَ بالله بدل، بدل مبدل منه دَ اِنَّ اسم فلاخوف عليه ولاهم يحزنون، دَ انَّ خبر.

**قوله**: كَذَّبُوْهُ دا دَ كلما جزاء محذوف دې.

**قوله**: وَالتَّعْبِيْرُبه يعنى موقع دَ ماضى وه مګر يقتلون مضارع استعمال شوې دې يوخودَ حكايت حال ماضيه په توګه يعنى دَدې خودلودپاره چې لكه دَقتل معامله هغه وخت كيدله اودويم مقصد دَ فواصل رعايت دې.

**قوله**: تَقَعَ: په دې كښې اشاره ده چې تكون تامه دې لهذا دې ته دَخبر ضرورت نشته او فتنةٌ دَ تكون فاعل دې.

**قوله**: بَدَلٌ مِنَ الضَّمِيْرِ يعنى كثيرٌمنهم، د عَمُوا وصَمُّوا، ضميرنه بدل البعض دې. اوداهم كيدې شى چې كثيرٌمنهم، دأُولٰئِكَ مبتداء محذوف خبروى.

**قوله**: فِرْقَةٌ مِنَ النَّصَارٰي په دې كښې اشاره ده چې عيسىٰ عليه السلام ته ثالث ثلثة ويونكى دَ نصارى يوه فرقه ده دَدې نه علاوه نورې فرقې هم دى چې حضرت عيسىٰ عليه السلام إله منى لهذا په دواړو خبروكښې هيڅ تعارض نشته.

[ايات وقوله: ٧٨-٨٢]

{لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ بَنِيْ اِسْرَاۗءِيْلَ عَلٰي لِسَانِ دَاوٗدَ} بِأَنْ دَعَا عَلَيْهِمْ فَمُسِخُوا قِرَدَة وهم اصحاب ايلة {وعيسى بن مَرْيَمَ} بِأَنْ دَعَا عَلَيْهِمْ فَمُسِخُوا خَنَازِير وَهُمْ اصحاب المائدة {ذٰلِكَ} اللعن {بما عصوا وكانوا يعتدون} {كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ} أيْ لَا يَنْهَى بَعْضهمْ بَعْضًا {عَنْ} مُعَاوَدَة {مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ} فِعْلهمْ هٰذَا {تَرٰى} يَا مُحَمَّد {كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا} مِنْ أَهْل مَكَّة بُغْضًا لَكَ {لَبِئْسَ

مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ} مِنَ الْعَمَلِ لِمَعَادِهِمْ الموجب لهم {أَن سخط الله عليهم وفي العذاب هم خالدون} {وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ} مُحَمَّد {وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ} أَيْ الْكُفَّار {أَوْلِيَاءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ} خَارِجُونَ عَنْ الْإِيمَان {لَتَجِدَنَّ} يَا مُحَمَّد {أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا} مِنْ أَهْل مَكَّة لِتَضَاعُفِ كُفْرهمْ وَجَهْلهمْ وَانْهِمَاكهمْ فِي اتِّبَاع الْهَوَى {وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ ذَٰلِكَ} أَيْ قُرْب مَوَدَّتهمْ لِلْمُؤْمِنِينَ {بِأَنَّ} بِسَبَبِ أَنَّ {مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ} عُلَمَاء {وَرُهْبَانًا} عُبَّادًا {وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ} عَنْ اتِّبَاع الْحَقّ كَمَا يَسْتَكْبِر الْيَهُود وَأَهْل مَكَّة

**ترجمه:** دَ بنی اسرائیلو په کافرانو باندې دَ حضرت داؤد ﷺ په ژبه باندې لعنت اوکړې شو یعنی دَهغوی دَپاره بددعا اوکړې شوه چې دهغې د وجې هغوی دَ بیزوګانو په شکل کښې مسخ کړې شو اوهغوی دَ ایله اوسیدونکی وو. اودَ حضرت عیسی بن مریم ﷺ په ژبه باندې لعنت اوکړې شو په داسې طریقه چې حضرت عیسیٰ ﷺ دَهغوی دَپاره بددعا اوکړه دَ کوم په نتیجه کښې چې هغوی دَ خنزیرانو په شکل کښې مسخ کړې شو اوهغه اصحاب مائده وو. دا لعنت په دې وجه اوکړې شو چې هغوی نافرمانی کولو سره دَ حدنه تجاوز کړې وو. هغوی په خپل مینځ کښې یوبل دَ خرابو کارونو دکولو نه منع کول پرېخودې وو دَهغوی دا طرز عمل خراب وو کوم چې هغوی اختیار کړې وو. اې محمد ﷺ ته به دَ دوی نه هم ډېرخلق وینې چې ستاسو په دښمنئ کښې به دَ مکې کافرانو سره دوستی کوی. قسم دې (زما دَعزت او جلال) دَهغوی نفسونو چې کوم اعمال دَخپل آخرت دَپاره لیږلی دی هغه ډېرخراب اعمال دی کوم چې په هغوی باندې دَالله تعالی دَ خفګان سبب دې اوهغوی به همیشه په عذاب کښې وی. اوکه چرې فی الواقع داخلق په الله تعالی باندې او(دَهغه) په نبی محمد ﷺ اوپه هغه څیزباندې کوم چې په ده نازل کړې شوې دې ایمان لرلو نوکافران به ئې هیڅ کله دوستان نه جوړول خوپه هغوی کښې اکثردَ ایمان نه خارج شوی دی. اې محمد ﷺ تاسو دَ اهل ایمان په دښمنئ کښې دَ ټولو نه سخت به یهودیان اودَمکې مشرکان مومې دَهغوی دکفر د دوچنده کیدلو اودَهغوی دجهل اودَ هغوی په خواهشاتو کښې دَ ورګډیدودَ وجې او دَایمان والو دَپاره په دوستئ کښې دَ ټولو نه نیزدې هغه خلق اومومی چاچې اووئیل مونږ نصاری یو اودا یعنی په دوستئ کښې مؤمنانو سره دَهغوی نیزدې کیدل دَدې وجې نه دی چې په هغوی کښې علماء اوعبادت ګذار(تارك الدنیا) موجود دی اودَ حق دَبندګئ نه غرور نه کوی څنګه چې یهود او اهل مکه غرور کوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أَيْلَة: بحر طبریه په غاړه باندې دَیو کلی نوم دې.

**قوله:** مُعَاوَدَة دا ددې سوال مقدرجواب دې چې دَمنکردکولو نه پس دَهغې نه دَ نهی نه څه

فائده نشته او نه څه امر معقول دي، ځکه چې دَ کوم څيز وقوع او شوه دَهغې اصلي عدم ممکن نه دي. مُعَاوَدَة، مضاف محذوف منلوسره مفسرعلام اشاره اوکړه چې دَ منکر دوباره ارتکاب نه ممانعت مقصود دي.

**قوله**: فِعْلِهِمْ، دا دَ ما بيان دي.

**قوله**: هذا، دا مخصوص بالذم دي.

**قوله**: مِنْهُمْ اَيْ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ.

**قوله**: الموجب دادَ يو سوال جواب دي.

**سوال**: الموجب، مقدر منلو څه ضرورت دي؟

**جواب**: ځکه چې أن سخط الله، مخصوص بالذم دي او مخصوص بالذم دَفاعل بيان وي او سخط الله عليهم دَماقدمت بيان واقع کيدل صحيح نه دی ترکومې چې الموجب مضاف محذوف اونه منلې شي ځکه چې ماقدمت دَ اهل کتاب فعل دي او سخط د الله فعل دي لهذا حمل به صحيح نه شي.

**قوله**: مُحَمَّد ﷺ دادي سوال جواب دي چې اهل کتابو خو په نبي باندې ايمان لرلو؟ دَدې جواب ورکړې شو چې دَ نبي نه مراد محمد ﷺ دي او په النبي کښې الف لام دَعهد دي.

**قوله**: قِسِّيْسِيْنَ په رومي ژبه کښې عالم ته وئيلې شي.

نَزَلَتْ فِي وَفْدِ النَّجَاشِيِّ الْقَادِمِينَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَبَشَةِ قَرَأَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُورَةَ يس فَبَكَوْا وَأَسْلَمُوا

**پاره نمبر-۷ [وَإِذَا سَمِعُوا]**

**[اياتونه: ۸۳-۸۶]**

وَقَالُوا مَا أَشْبَهَ هَذَا بِمَا كَانَ يَنزِلُ عَلَى عِيسَى قَالَ تَعَالَى {وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَى الرَّسُولِ} مِنَ الْقُرْآنِ {تَرَى أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا} صَدَّقْنَا بِنَبِيِّكَ وَكِتَابِكَ {فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ} الْمُقِرِّينَ بِتَصْدِيقِهِمْ {و} قَالُوا فِي جَوَابِ مَنْ عَيَّرَهُمْ بِالْإِسْلَامِ مِنَ الْيَهُودِ {مَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَاءَنَا مِنَ الْحَقِّ} الْقُرْآنِ أَيْ لَا مَانِعَ لَنَا مِنَ الْإِيمَانِ مَعَ وُجُودِ مُقْتَضِيهِ {وَنَطْمَعُ} عُطِفَ عَلَى نُؤْمِنُ {أَنْ يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ} الْمُؤْمِنِينَ الْجَنَّةَ قَالَ تَعَالَى {فَأَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوا جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَذَلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ} بِالْإِيمَانِ {وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ}

**ترجمه**: (راتلونکي آيت) دَ حبشې نه راتلونکی دَ نجاشی دوفد متعلق نازل شوي دي. حضور پاک دَهغوی په وړاندې سورت ياسين اولوستلو نوهغوی په ژړا شو او اسلام ئې راوړلو او هغوی اووئيل چې (په تاسو باندې دنازليدونکي کلام) دهغه (کلام) سره څومره

مشابهت دې کوم چې په حضرت عیسیٰ علیه السلام نازل شوي وو. الله تعالیٰ اوفرمائیل اوچې کله هغوی داکلام قرآن اوري کوم چې په رسول الله ﷺ باندې نازل شوې دې تاسو گورئې چې دَ حق پېژندو دَ اثرَ وجې دَ هغوی دَ سترگو نه اوښکې بهیږي هغوی وائي اې زمونږ ربه! مونږ ایمان راوړو (یعنی) ستا دَ نبي او دَ کتاب تصدیق مو اوکړو نو ته مونږ هم دَ تصدیق کونکو سره اولیکه. (یعنی) هغه خلقو سره کوم چې (دَ مذکوره) دواړو څیزونو دَ تصدیق اقرار کونکي دي اودَ هغه خلقو په جواب کښې ئې اووئیل چا چې دوی ته په اسلام باندې پیغور ورکړې وو اوهغوی دَ یهودیانو نه وو اومونږ سره کوم یوعذر دې چې مونږ په الله باندې او په حق قرآن باندې کوم چې مونږ له راغلي دې ایمان رانوړو؟ یعنی دَ ایمان راوړو په لار کښې زمونږ دَ پاره څه مانع نشته حالانکه دَ ایمان مقتضي موجود دې اومونږ ولې امیداونه لرو. دَ دې عطف په نُؤْمِنُ باندې دې. دا چې زمونږ رب مونږ ته د نیکانو خلقو په جنت کښې ملگرتیانصیب کړي. الله تعالیٰ اوفرمائیل الله تعالیٰ هغوی ته دَ هغوی دَ دې وینا دَ وجې نه داسې جنتونه ورکړل په کوم کښې چې نهرونه بهیږي په هغې کښې به دوی همیشه وي اودَ ایمان والودا صله ده اوچاچې کفر اوکړو او زمونږ آیاتونه ئې دروغ گڼړل هم دغه خلق دوزخ والا دي.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: وَإِذَا سَمِعُوا (الآیة) واؤکه چرې استینافیه اومنلې شي نو دا کلام به مستانف شي اومفسرعلام قال تعالیٰ وئیلو سره دې ترکیب ته اشاره کړې ده اوکه چرې عاطفه اومنلې شي لکه چې دَ ابوسعود هم دغه رائې ده نو دَ دې عطف به په لایستکبرون باندې وي. ای ذلك بسبب أنهم لایستکبرون.

**قوله**: یَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا، داجمله مستانفه ده کوم چې دَ یوسوال مقدر جواب دې یعنی قرآن اوریدو سره کله چې دَ هغوی دغه مذکوره حالت کیږي نوهغوی څه وائي؟ دَ دې جواب دې یقولون ربنا آمنا الخ.

**قوله**: مُقْتَضِیَه یعنی کله چې دَ ایمان موجب موجود دې اوهغه په صالحینوکښې دَ داخلیدو دَ هغوی رغبت اوخواهش دې.

**قوله**: عَطْفٌ عَلَىٰ نُؤْمِنُ یعنی د نطمع عطف په نؤمن باندې دې نه چې د مبتداء محذوف خبر، أی نحن نطمع څکه چې حذف خلاف ظاهر دې.

**ایاتوله: ۸۷-۹۲**

وَنَزَلَ لَمَّا هَمَّ قَوْم مِنَ الصَّحَابَةِ أَنْ يُلَازِمُوا الصَّوْمَ وَالْقِيَامَ وَلَا يَقْرَبُوا النِّسَاءَ وَالطِّيبَ وَلَا يَأْكُلُوا اللَّحْمَ وَلَا يَنَامُوا عَلَى الْفِرَاشِ {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا} تَتَجَاوَزُوا أَمْرَ اللَّهِ {إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ} {وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا} مفعول والجار والمجرور قبله حال متعلق به

{واتقوا الله الذی أنتم به مؤمنون} {لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ} الْكَائِنِ {فِي أَيْمَانِكُمْ} هُوَ مَا يَسْبِقُ إِلَيْهِ اللِّسَانُ مِنْ غَيْرِ قَصْدِ الْحَلِفِ كَقَوْلِ الْإِنْسَانِ لَا وَاللَّهِ وَبَلَى وَاللَّهِ {وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمُ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ وَفِي قِرَاءَةٍ عَاقَدْتُمْ {الْأَيْمَانَ} عَلَيْهِ بِأَنْ حَلَفْتُمْ عَنْ قَصْدٍ {فَكَفَّارَتُهُ} أَيِ الْيَمِينِ إِذَا حَنِثْتُمْ فِيهِ {إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ} لِكُلِّ مِسْكِينٍ مُدٌّ {من أوسط ما تطعمون} منه {أهليكم} أَيْ أَقْصَدِهِ وَأَغْلَبِهِ لَا أَعْلَاهُ وَلَا أَدْنَاهُ {أَوْ كِسْوَتُهُمْ} بِمَا يُسَمَّى كِسْوَةً كَقَمِيصٍ وَعِمَامَةٍ وَإِزَارٍ وَلَا يَكْفِي دَفْعُ مَا ذُكِرَ إِلَى مِسْكِينٍ وَاحِدٍ وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيُّ {أَوْ تَحْرِيرُ} عِتْقُ {رَقَبَةٍ} أَيْ مُؤْمِنَةٍ كَمَا فِي كَفَّارَةِ الْقَتْلِ وَالظِّهَارِ حَمْلًا لِلْمُطْلَقِ عَلَى الْمُقَيَّدِ {فَمَنْ لَمْ يَجِدْ} وَاحِدًا مِمَّا ذُكِرَ {فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ} كَفَّارَتُهُ وَظَاهِرُهُ أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ التَّتَابُعُ وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيُّ {ذَلِكَ} الْمَذْكُورُ {كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ} وَحَنِثْتُمْ {وَاحْفَظُوا أَيْمَانَكُمْ} أَنْ تَنْكُثُوهَا مَا لَمْ تَكُنْ عَلَى فِعْلِ بِرٍّ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ كَمَا فِي سُورَةِ الْبَقَرَةِ {كَذَلِكَ} أَيْ مِثْلَ مَا بُيِّنَ لَكُمْ مَا ذُكِرَ {يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} هُ عَلَى ذلك {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ} الْمُسْكِرُ الَّذِي يُخَامِرُ الْعَقْلَ {وَالْمَيْسِرُ} الْقِمَارُ {وَالْأَنْصَابُ} الْأَصْنَامُ {وَالْأَزْلَامُ} قِدَاحُ الْاسْتِقْسَامِ {رِجْسٌ} خَبِيثٌ مُسْتَقْذَرٌ {مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ} الَّذِي يُزَيِّنُهُ {فَاجْتَنِبُوهُ} أَيِ الرِّجْسَ الْمُعَبَّرَ عَنْ هذه الأشياء ان تفعلوه {لعلكم تفلحون} {إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ} إِذْ أَتَيْتُمُوهُمَا لِمَا يَحْصُلُ فِيهِمَا مِنَ الشَّرِّ وَالْفِتَنِ {وَيَصُدَّكُمْ} بِالْاشْتِغَالِ بِهِمَا {عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ} خَصَّهَا بِالذِّكْرِ تَعْظِيمًا لَهَا {فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ} عَنْ إِتْيَانِهِمَا أَيِ انْتَهُوا {وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا} الْمَعَاصِيَ {فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ} عَنِ الطَّاعَةِ {فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَى رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ} الْإِبْلَاغُ الْبَيِّنُ وَجَزَاؤُكُمْ عَلَيْنَا {لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا} أَكَلُوا مِنَ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قَبْلَ التَّحْرِيمِ {إِذَا مَا اتَّقَوْا} الْمُحَرَّمَاتِ {وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ اتَّقَوْا وَآمَنُوا} ثَبَتُوا عَلَى التَّقْوَى وَالْإِيمَانِ {ثُمَّ اتَّقَوْا وَأَحْسَنُوا} الْعَمَلَ {وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ} بمعنى انه يثيبهم.

---

**ترجمه**: (وراندې آيت) هغه وخت نازل شو كوم وخت چې دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم يو جماعت دا اراده اوكړه چې هغوى به هميشه روژې ساتي او هميشه به په مونځ كښې مشغول وى او ښځو سره به صحبت نه كوى اونه به دَ خوشبو استعمال كوى اونه به غوښه خورى اونه به په بستره باندې اوده كيږى. اې ايمان والو كوم پاک څيزونه چې الله تعالى ستاسو دَپاره حلال كړې دى هغه حراموئى مه او دَ الله تعالى دَ حكم نه تجاوز مه كوئى الله تعالى د حد نه تجاوز كونكى نه خوښوى او الله تعالى چې كوم حلال مرغوب څيزونه تاسو ته دركړى دى دَهغې نه خورئى (حَلَالاً، دَكلوا) مفعول دې اودَدې ماقبل(مِمَّا رزقكم الله) متعلق مقدم حال دې اودَهغه الله تعالى نه ويريږئى په كوم چې تاسو ايمان لرئى الله تعالى ستاسو لغو (مهمل) قسمونو باندې نيول نه كوى. لغو هغه قسم ته وائى چې بغيردَ ارادې نه دَ ژبې په سبقت سره اووئيلې شى مثلاً خلق

وانی لا والله، بلی والله، خو چې کوم قسمونه تاسو بنه په قصد سره خوړلی یعني په قصد سره قسم
خوړلی. (عقدتم) کښې تخفیف او تشدید دواړه قراءتونه دی او په یو قراءت کښې عاقدتم
دې نودّ داسې قسم کفاره کله چې تاسو په دې کښې حانث شئ لسو مسکینانو باندې خوراک
کول دی هر یو مسکین ته یو مُد هغه درمیانه خوراک ورکول دی کوم چې تاسو په خپل بال بچ باندې
خوړلی د یعني درمیانه درجې، دغالب حالاتو په اعتبارسره، نه ډیر اعلی او نه
ډیر کمزورې یا هغوی ته کپړې ورکړلی هغه کپړې کوم ته چې (په عرف کښې) لباس اووئیلې
شي مثلاً قمیص پټکې او ازار او مذکوره څیزونه یو مسکین ته ورکول کافي نه دی او دا
دَامام شافعي رحمه الله مذهب دې یا یو مؤمن غلام آزادول دی لکه چې دَ قتل په کفاره او دَ
ظهار په کفاره کښې مطلق په مقیدباندې محمول کولو سره، کوم کس چې (مذکوره
دریواړو) نه په یو هم قدرت نه لری نو هغه کفاره درې ورځې روژې دی اودَدې نه په ظاهره
معلومیږي چې تسلسل شرط نه دې اوهم دغه دَ امام شافعي رحمه الله مذهب دې. دا ستاسو دَ
قسمونو کفاره ده. کله چې تاسو قسمونه اوخوړلی او مات ئې کړلی اودَخپلو قسمونو دَماتولو نه
حفاظت کوئی او چې قسم دَ څه خیر کار د یا دَخلقو په مینځ کښې اصلاح کولو باندې نه وی
لکه چې سورت بقره کښې دی. دغه شان لکه چې مذکوره (احکام یې) ستاسو دَپاره بیان کړل
الله تعالی ستاسو دَپاره خپل احکام بیانوی دې دَپاره چې تاسو دَهغه شکر اداکړئی. اې ایمان والو
دا شراب چې عقل مستور کړی او جواری اوبت او د قسمت معلومولو غشی خبیث گنده
شیطاني اعمال دی کوم چې هغه ښائسته کوی او وراندې کوی یې تاسو دې نه پرهیز
اوکړئی یعني دَ دغه گندگئی نه پرهیز اوکړئی کوم چې په دې نومونو سره یادولې شي.
امید دې چې تاسو ته به خلاصې ملاؤشي. شیطان خوداغواړی چې دَ شرابو او جوارئی په ذریعه
ستاسو په مینځ کښې بغض اوعداوت واچوی کله چې تاسو دَ دې ارتکاب اوکړئی ځکه چې
په دې سره شراو فساد راپیدا کیږی او تاسو په دی کښې مشغول کړی دَ الله تعالی دَیاد او
مونځ نه مو منع کړی. دَدې دواړو دَ عظمت دَ وجې نه په خاص توګه یې دَدې ذکر اوکړو
نو آیا تاسو به دَ دغه څیزونو نه منع شئ؟ یعني منع شئ دَالله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ خبره
اومنئ اودَ ګناه نه منع شئ اوکه چرې تاسودَ هغه دَ اطاعت نه حکم عدولی کوئی نو پوهه شئ
چې زمونږ په رسول باندې صفا صفا (حکم) رسول دی او بس او تاسو ته بدله درکول زمونږ ذمه
واری ده. کومو خلقو چې ایمان راوړې دې او نیک عملونه یې کړی دی هغوی دَحرمت نه وراندې
دشرابو او (مال) دَجوارئی نه چې څه خوړلی څکلی دی په هغې باندې به نیول نه وی په دې شرط
(چې بیا) به دَ حرام کړې شوو څیزونو نه بچ کیږی او ایمان ئې اولرلو او نیک عمل ئې اوکړو بیا
په تقوی او ایمان باندې ثابت قدم پاتې شو (دَ ممنوعاتو) نه ځان اوساتی او نیک عمل اوکړی
او الله تعالی نیک عمل کونکی خوښوی په دې معنی چې هغوی ته به دَ دې اجر ورکړی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: مُفْعُوْلٌ وَالْجَارُّ وَالْمَجْرُوْرُ قَبْلَهُ، حَالٌ مُتَعَلِّقٌ بِهٖ حَلَالًا طَيِّبًا موصوف صفت دَ كُلُوا مفعول به دې او ممارزقناكم د حلالا سره متعلق شو حال مقدم دې. تقديري عبارت دا دې كلوا شيئًا حَلَالًا طَيِّبًا حال كونه ممارزقكم الله، ځكه چې ممارزقكم په اصل كښې دَ نكرې صفت كيدو دَ وجې نه مقدم شو او حال واقع دې. مفسرعلام په مذكوره عبارت سره هم دې تركيب ته اشاره كړې ده.

**قوله**: الكَائِنِ، په دې كښې اشاره ده چې فِىٓ اَيْمَانِكُمْ، اللّغو صفت دې نه چې حال.

**قوله**: مَا يَسْبِقُ اِلَيهِ اللِّسَانَ مِن غَيْرِ قَصْدٍ دا دَ امام شافعي رحمه الله مذهب دې.

**قوله**: بما عَقَّدْتم اى وَثَّقْتم بالنية والقصد، د عَقَّدْتُمْ تعقيد (تفعيل) نه ماضى جمع مذكر حاضر تاسو غوټه اولګوله تاسو پوخ عهد اوكړو.

**قوله**: عَلَيْهِ، په دې كښې اشاره ده چې په مَا عَقَّدْتم كښې مَا موصوله ده او عَقَّدْتُمُ الْاَيْمَانَ جمله صله ده او چې كله صله جمله وى نو په دې كښې دِ ضمير عائد كيدل ضرورى وى او دغه عليه دې.

**قوله**: اِذَا حنثتم په دې كښې اشاره ده چې دَ نفس يمين د وجوب كفارې سبب نه دې بلكه قسم ماتول دَ كفارې سبب دې.

**قوله**: مُؤْمِنَةٌ، هذا عند الشافعي.

**قوله**: مُد دَ يومد مقدار ۶۸ تولې ۳ ماشې يا ۷۹۶ گرام ۶۸ ملى گرام وى.

**قوله**: كَفَّارَتُهُ، په دې كښې اشاره ده چې فَصِيَامُ مبتداء ده او كفارة دَ دې خبر محذوف دې.

**قوله**: خَبِيْثٌ مُسْتَقْذَرٌ دالرجس معنى دَ اكثرو په نيز دَ نجس ده او بعض حضراتو وئيلى دى چې رجس معنى اسم جمع ده هم دغه وجه ده چې دَ مفرد كيدو باوجود دَ متعدد خبر واقع دې. مفسرعلام مستقذرٌ اضافه كولو سره اشاره كړې ده چې دَ رجس نه مراد نجس طبعى نه دې بلكه نجس عقلى دې. زجاج وئيلى چې رجس په فتحې دَ راء اوكسرې دَ راء سره هر قبيح عمل ته وائى.

**قوله**: الرجس دا دَ يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: اِجْتَنِبُوْهُ كښې ضمير متعدد يعنى په ماقبل كښې ذكرشوې څلورو څيزونو طرف ته راجع دې حالانكه ضمير واحد دې.

**جواب**: دَ ضمير واحد مرجع الرجس دې چې دَاسم جمع كيدودَ وجې نه په حكم د متعدد كښې دې. مفسر علام أَنْ تَفْعَلُوهُ، إِذَا اتيتموهما، بالاشتغال دَدې دزيوارو كلمو اضافه كولوسره دَدې اعتراض جواب وركړې دې چې دَ منع اود حكم تعلق افعال سره وى نه چې د ذوات او اعيان سره.

**قوله**: تَبْتُوا مفسرعلام ثبتوا اضافه دَ تكرار دَ دفع دَپاره كړې ده.

**[اياتونه: ۹۴-۱۰۰]**

{يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ} لَيَخْتَبِرَنَّكُمْ {اللَّهُ بِشَيْءٍ} يُرْسِلهُ لَكُمْ {مِنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ} أَيْ الصِّغَار مِنْهُ {أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ} الْكِبَار مِنْهُ وَكَانَ ذَلِكَ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَهُمْ مُحْرِمُونَ فَكَانَتْ الْوَحْش وَالطَّيْر تَغْشَاهُمْ فِي رحالهم {وليعلم الله} عِلْم ظُهُور {مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ} حَال أَيْ غَائِبًا لَمْ يَرَهُ فَيَجْتَنِب الصَّيْد {فَمَنْ اعتدى بعد ذلك} النهي عنه فاصطاده {فله عذاب أليم} {يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ} مُحْرِمُونَ بِحَجٍّ أَوْ عُمْرَة {وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ متعمدا فجزاء} بالتنوين ورفع ما بعدها أَيْ فَعَلَيْهِ جَزَاء هُوَ {مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ} أَيْ شَبَهه فِي الْخِلْقَة وَفِي قِرَاءَة بِإِضَافَةِ جَزَاء {يَحْكُمُ بِهِ} أَيْ بِالْمِثْلِ رَجُلَانِ {ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ} لَهُمَا فِطْنَة يُمَيِّزَانِ بِهَا أشبه الأشياء به وقد حكم بن عَبَّاس وَعُمَر وَعَلِيّ رَضِيَ اللَّه عَنْهُمْ فِي النعامة ببدنه وبن عَبَّاس وَأَبُو عُبَيْدَة فِي بَقَر الْوَحْش وَحِمَاره ببقرة وبن عمر وبن عوف في الظبي بشاة وحكم بهاابن عَبَّاس وَعُمَر وَغَيْرهمَا فِي الْحَمَام لِأَنَّهُ يُشْبِههَا فِي الْعَبّ {هَدْيًا} حَال مِنْ جَزَاء {بَالِغَ الْكَعْبَةِ} أَيْ يَبْلُغ بِهِ الْحَرَم فَيُذْبَح فِيهِ وَيَتَصَدَّق بِهِ عَلَى مَسَاكِينه وَلَا يَجُوز أَنْ يُذْبَح حَيْثُ كَانَ وَنَصْبه نَعْتًا لِمَا قَبْله وَإِنْ أُضِيف لِأَنَّ إِضَافَته لَفْظِيَّة لَا تُفِيد تَعْرِيفًا فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِلصَّيْدِ مِثْل مِنَ النعم كالعصفور والجراد فعليه قيمة {أَوْ} عَلَيْهِ {كَفَّارَةٌ} غَيْر الْجَزَاء وَإِنْ وَجَدَهُ هِيَ {طَعَامُ مَسَاكِينَ} مِنْ غَالِب قُوت الْبَلَد مَا يُسَاوِي قِيمَة الْجَزَاء لِكُلِّ مِسْكِين مُدّ وفي قراءة بإضافته كَفَّارَة لِمَا بَعْده وَهِيَ لِلْبَيَانِ {أَوْ} عَلَيْهِ {عَدْلُ} مِثْل {ذَلِكَ} الطَّعَام {صِيَامًا} يَصُومهُ عَنْ كُلّ مُدّ يَوْم وَإِنْ وَجَدَهُ وَجَبَ ذَلِكَ عَلَيْهِ {لِيَذُوقَ وَبَالَ} ثِقَل جَزَاء {أَمْرِهِ} الَّذِي فَعَلَهُ {عَفَا اللَّهُ عَمَّا سَلَفَ} مِنْ قَتْل الصَّيْد قَبْل تحريمه {وَمَنْ عَادَ} إلَيْهِ {فَيَنْتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ وَاللَّهُ عَزِيزٌ} غَالِب عَلَى أمره {ذُو انْتِقَامٍ} مِمَّنْ عَصَاهُ وَأُلْحِق بِقَتْلِهِ مُتَعَمِّدًا فِيمَا ذُكِرَ الْخَطَأ {أُحِلَّ لَكُمْ} أَيُّهَا النَّاس حَلَالًا كُنْتُمْ أَوْ مُحْرِمِينَ {صَيْدُ الْبَحْرِ} أَنْ تَأْكُلُوهُ وَهُوَ مَا لَا يَعِيش إلَّا فِيهِ كَالسَّمَكِ بِخِلَافِ مَا يَعِيش فِيهِ وَفِي الْبَرّ كَالسَّرَطَانِ {وَطَعَامُهُ} مَا يَقْذِفهُ مَيِّتًا {مَتَاعًا} تَمْتِيعًا {لَكُمْ} تَأْكُلُونَهُ {وَلِلسَّيَّارَةِ} الْمُسَافِرِينَ مِنْكُمْ يَتَزَوَّدُونَهُ {وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ} وَهُوَ مَا يَعِيش فِيهِ مِنَ الْوَحْش الْمَأْكُول أَنْ تَصِيدُوهُ {مَا دُمْتُمْ حُرُمًا} فَلَوْ صَادَهُ حلال فللمحرم اكله كما بينته السنة {واتقوا الله الذي إليه تحشرون} {جَعَلَ اللَّهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ} الْمُحَرَّم {قِيَامًا لِلنَّاسِ} يَقُوم بِهِ أَمْر دِينهمْ بِالْحَجِّ إلَيْهِ وَدُنْيَاهُمْ بِأَمْنِ دَاخِله وَعَدَم التَّعَرُّض لَهُ وَجَبْي ثَمَرَات كُلّ شَيْء إلَيْهِ وَفِي قِرَاءَة قِيَمًا بِلَا أَلِف مَصْدَر قَامَ غَيْر مُعَلّ {وَالشَّهْرَ

الْحَرَامِ} بمعنى الأشهر الحرم ذو القعدة وذو الحجة والمحرم ورجب قيامًا لهم بأمنهم من القتال فيها {وَالْهَدْيَ وَالْقَلَائِدَ} قيامًا لهم بأمن صاحبهما من التعرض له {ذَٰلِكَ} الجعل المذكور {لِتَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ} فإن جعله ذلك لجلب المصالح لكم ودفع المضار عنكم قبل وقوعها دليل على علمه بما هو في الوجود وما هو كائن {اعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ} لأعدائه {وَأَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لأوليائه {رَّحِيمٌ} بهم {مَّا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ} لكم {وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ} تظهرون من العمل {وَمَا تَكْتُمُونَ} تخفون منه فيجازيكم به {قُل لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ} الحرام {وَالطَّيِّبُ} الحلال {وَلَوْ أَعْجَبَكَ} أي سرك {كَثْرَةُ الْخَبِيثِ فَاتَّقُوا اللَّهَ} في تركه {يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تفوزون

---

ترجمه: اې ایمان والوالله تعالی به ستاسو په یوڅیزباندې خامخا ازمیښت کوی کوم چې به هغه ستاسو دَ پاره رالیږی اوهغه وړوکې ښکاردې کوم ته به ستاسو رسیدل کیږی اوپه هغې کښې لوئی(ښکار) به ستاسو دَ نیزوپه نښه په وی اوداسې دَحدیبیه په مقام باندې اوشوه، حال داچې هغوی په حالت دَاحرام کښې وو. ځنګلی ځناور او مرغئی به دَهغوی خیموته ډیرې زیاتې راتلې دې دَپاره چې الله تعالی دَعلم ظهور په اعتبارسره دا اوګوری چې څوک دَ ده نه په غائبانه توګه باندې ویریږی. (بالغیب) دَ یخافه دَضمیرنه حال دې چې هغه دَ الله تعالی نه بغیردَ کتلو غائبانه ویریږی. دَ کوم په وجه چې هغه دَ ښکارنه ځان ساتی. بیا چاچې دَدې (یعنی) ښکار دَ ممانعت نه پس دَ حدنه تجاوز اوکړو اوښکارئی اوکړو نودَهغه دَپاره دردناک عذاب دې. اې ایمان والودَ حج یا عمرې دَپاره په حالت د احرام کښې ښکار مه کوئی اوکه تاسو کښې چاښه په قصد سره ښکاراوکړو نو په هغه باندې دَ ښکارکړې شوی ځناور په شان جزاء ده. جَزَاءٌ په تنوین سره اودَدې نه پس (یعنی قتل) په رفع سره دې یعنی په هغه باندې جزاء ده (او) هغه جزاء دَ قتل شوی ځناور په شان ده یعنی چې په خلقت کښې دهغې په شان وی. او په یو قراءت کښې دَ جَزَآءُ دَ مثلَ طرف ته په اضافت سره دې. دَدغه مثل فیصله دې تاسونه دوه عادلان سری اوکړی څوک چې پوهه(تجربه) لری چې دهغې په ذریعه دَ مشابه بالصید کیدو تمیزاوکړې شی. او ابن عباس اوعلی رضی الله عنهم په شترمرغ کښې د بدنه حکم ورکړې دې او ابن عباس او ابوعبید رضی الله عنهم ځنګلی غوا او حماروحشی کښې دَ غوا حکم ورکړې دې او ابن عمر او ابن عوف رضی الله عنهم دَ هوسئی په بدله کښې دَ چیلئ حکم ورکړې دې. او ابن عمر رضی الله عنهم وغیره دَ کونترې په بدله کښې دَ چیلئ حکم ورکړې دې ځکه چې کونتره اوبه راښکلوسره په نه ځکلو کښې دَ چیلئ په شان ده حال داچې هغه جزاء هدې ده. هَدْيًا دَ جزاء نه حال دې چې هغه دې حرم ته اورسولې شی دې دَپاره چې په حرم کښې ذبح کړې شی او دَ حرم په مسکینانو باندې صدقه کړې شی اوچرته چې غوارې هلته ذبح کول جائزنه دی او (بالغ

الكعبة) نصب خپل ماقبل (هديًا) صفت كيدو دَ وجې نه دې سره دَدې چې (بالغ الكعبة) كښې اضافت دې. ځكه چې دا اضافت لفظيه دې كوم چې دَ تعريف فائده نه وركوى اوكه دَ ښكار په ځناورو (ځاروو) كښې مثل نه وى مثلاً چرچڼړه، ملغ نو (په ښكاركونكى باندې) به دَ هغې قيمت واجب وى يا په هغه باندې كفاره ده نه چې جزاء، سره دَدې چې دَ هغې جزاء موجود وى او هغه كفاره دَ مسكينانو خوراك دې. دَ ښار غالب خوراك كوم چې دَ جزاء (دَ قيمت) برابروى هر مسكين ته يو مد او په يو قراءت كښې كَفَّارَةُ دَدې دَ مابعد طرف ته په اضافت سره اودا اضافت به بيانيه وى. يادَدې دَپاسه دَ دغه طعام برابر روژې دى دَهر مد په عوض كښې يوه روژه سره دَدې چې غله موجود وى دا په ده واجب دى دې دَپاره چې دغه سړې دَخپل فعل جزاء (مزه) اوڅكى. دَ ښكار دَ قتل دَحرمت نه وړاندې چې دَ ښكاركوم قتل صادرشوې دې الله تعالى هغه معاف كړو اوچاچې الله تعالى سره عداوت اوساتلو الله تعالى به دَهغه نه انتقام واخلى. الله تعالى په خپل امر كښې غالب اوخپله نافرمانى كونكونه دَ انتقام اخستونكې دې. دَ ښكار وژلو په مذكوره حكم كښې د خطأ وژلو حكم شامل كړې شوې دې. اې خلقو ستاسو دَ پاره دَ سمندر ښكار يعنى دَ هغې خوراک حلال كړې شوې دې كه تاسو محرم ئى اوكه غيرمحرم او سمندرى ځناورهغه دې چې هم په درياب كښې اوسيږى مثلاً كب په خلاف دَ هغې چې په اوچې اودرياب دواړوځايونوكښې اوسيږى مثلاً كيكړا (د اوبو يو چينجې چې د لړم په شانوى) اودَ درياب خوراک يعنى مرداره حلال كړې شوې ده او (دَ درياب خوراك) هغه دې كوم چې درياب مركړى او غاړې ته ئى اوغورزوى ستاسو دَفائدې دَپاره چې تاسو هغه اوخورئى او په تاسوكښې دَمسافرودَپاره چې هغوى دادَ لارې توښه جوړه كړى اوستاسو دَ پاره دَ اوچې دَ ځناورو ښكاركول حرام كړې شوى دى اودَ (اوچې ښكار) غيرمانوس مأكول (حلال) ځناوردى تركومې چې تاسود احرام په حالت كښې ئې نو كه دَهغې ښكار غيرمحرم اوكړو نودَ محرم دَپاره دَ هغې خوړل جائز دى. لكه چې سنت (حديث) بيان كړې دې اودَهغه الله تعالى نه ويريږئى دَچاپه مخكښې چې به تاسو ټول راجمع كولې شئ. او الله تعالى كعبه (يعنى) بيت محترم دَخلقو دَحالاتو صحيح كولو ذريعه جوړه كړې ده. چې دَدې په وجه خپله دينى معامله دَ حج په ذريعه صحيح كوى اوخپل دنياوى معاملات په حرم كښې داخليدونكى دَامن سره داخليدو په وجه اوده ته دچادځه قسم تعرض نه كولودَ وجې صحيح كوى اودَ هرڅيز پيدا وار هم ددې (كعبې) طرف ته راښكلې شى او په يو قراءت كښې قِيَمًا بغيردَ الف دَ قام مصدر دې دَدې عين كلمه معتل ده او اَلشَّهْرَ الْحَرَامَ د الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ په معنى كښې دې. (اوهغه) ذوالقعده، ذوالحجه او محرم او رجب دى. په دوئ مياشتو كښې دَدې د قتال نه مامون اوسيدو دَوجې (دې مياشتو ته أشهر الحرم وئيلى شى) او

دَ قربانئی (ځناور) اوهغه ځناور هم دَ کوم په غاړه کښې چې پټئ وی ددوئ د حالاتو صحیح کولو ذریعه ئی جوړه کړې ده. دَ مذکوره دواړو د مالکانو دَ تعرض نه د مامون پاتې کیدو دَ وجې دا فعل مذکوردَدې دَپاره دې چې تاسو دَدې خبرې یقین اوکړئ چې په آسمان اوزمکه کښې څه هم دی الله تعالی دغه ټولو باندې پوهیږی. بلاشبه دغه جعل مذکور ستاسو دَ مصلحت دَ حصول یا تاسو نه دَضرر لرې کولو دَپاره دَدې دَ واقع کیدو وړاندې کول دادلیل دې. دَ موجوده څیزونو او آئنده څیزونونه دالله تعالی په واقف کیدو باندې ښه ځان پوهه کړئ چې الله تعالی خپل دښمن ته سخت عذاب ورکونکې دې اوالله تعالی خپل دوستانو لره معاف کونکې دې او په هغوی باندې رحم کونکې دې اودَ رسول ذمه واری تاسو ته پیغام ورکول دی او بس او هغه ذات هغه عمل ښه پیژنی کوم چې تاسو په ظاهره باندې کوئی او کوم چې تاسو په پټه باندې کوئی نو هغه به تاسو ته په دې باندې بدله درکړی. تاسو اووایئ چې حلال اوحرام برابر کیدې نه شی سره دَدې چې دَحرامو کثرت تاپه تعجب کښې واچوی. نو اې دَعقل خاوندانو دَدې دَ پریخودو په باره کښې دَالله تعالی نه ویریږئ دې دَپاره چې تاسو خلاصې بیامومئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** حَالٌ، بالغیب د مَنْ موصول نه حال دې نه چې د یخافه دَ ضمیرنه ګنی دَالله تعالی غائب کیدل به لازم شی. غائبًا سره یئ هم دې ته اشاره کړې ده او بالغیب د غائبًا په معنی کښې دې لَمْ یَرَهُ د بالغیب تفسیر دې.

**قوله:** فَعَلَيْهِ جَزَاءٌ **سوال:** فَعَلَيْهِ دَ اضافې څه فائده ده؟

**جواب:** دَدې اضافې مقصد دَدې سوال جواب ورکول دی چې جزاء همیشه جمله وی حالانکه دلته جمله نه ده؟ دَ جواب حاصل دادې چې جزاء په اصل کښې علیه جزاء ده کوم چې جمله ده.

**قوله:** يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ: **سوال:** ذَوَا عَدْلٍ د یَحْکُمُ فاعل واقع کیږی حالانکه دَ صفت فاعل واقع کیدل صحیح نه دی؟

**جواب:** دَ یحکم فاعل محذوف دې یعنی رجلان، مفسرعلام رجلان محذوف منلوسره هم دې جواب طرف ته اشاره کړې ده یعنی رجلان ذواعدل، موصوف صفت دَ یحکم فاعل دې.

**قوله:** وإن وجده، أي الجزاءَ. په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې أوْعَلَيْهِ كَفَّارَةٌ کښې أوْ د تخییر دَپاره دې نه چې دَ ترتیب دَپاره.

**قوله:** وهي لِلْبَيَانِ، یعنی دکفارهٔ دَ طعام طرف ته دَ اضافت په صورت کښې به اضافت

بیانیه وی لکه چې خاتم فضة کښې اضافت بیانیه دې.

**قوله**: اَنْ تَاْكُلُوْهُ، د صید البحر تفسیر په تاکلوه سره کولو کښې یې اشاره اوکړه چې دَ صیدنه مراد د ښکار ځناور دې چې نه فعل اصطیاد، په دې وجه سره لفظ اکل مقدر منل ضروری دی ځکه چې نفس حیوان دَخپل ذات په اعتبارسره دحلت اوحرمت سره نه متصف کیږی بلکه فعل د حلت اوحرمت سره متصف کیږی. هم دَدې وجې نه مفسرعلام لفظ د تاکلوا مقدر منلې دې.

**قوله**: اَنْ تَصِيْدُوْهُ په دې کښې هم دې خبرې ته اشاره ده چې دَ نفس ښکارد حلت اوحرمت هیڅ مطلب نشته بلکه فعل صید حرام دې.

**قوله**: يَقُوْمُ به مفسرعلام د قيامًا تفسير په يقوم به سره کولو کښې دَ دې اعتراض جواب ورکړو چې د قيامًا حمل په كعبة البيت باندې صحیح نه دې.

**قوله**: عَيْنُهُ مُعْتَلٌ قِيَامًا په اصل کښې قوامًا وو. واؤدَ کسرې نه پس واقع کیدو دَوجې نه په یاء سره بدل شو.

**قوله**: الاَشْهُرَ الْحُرُمَ د والشهر الحرام تفسير په الاشهر الحرم سره کولوکښې اشاره ده چې الشهر الحرام کښې الف لام دَ جنس دې.

**[ایاتونه: ۱۰۱-۱۰۷]**

وَنَزَلَ لَمَّا أَكْثَرُوا سُؤَالَه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسلم {يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْاَلُوْا عَنْ اَشْيَاۤءَ اِنْ تُبْدَ} تُظْهَر {لَكُمْ تَسُؤْكُمْ} لِمَا فِيْهَا مِنَ الْمَشَقَّة {وَاِنْ تَسْاَلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ} فِي زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {تُبْدَ لَكُمْ} الْمَعْنَى إِذَا سَأَلْتُمْ عَنْ أَشْيَاء فِي زَمَنِه يَنْزِل الْقُرْآن بِإِبْدَائِهَا وَمَتَى أَبْدَاهَا سَاءَتْكُمْ فَلَا تَسْأَلُوا عَنْهَا قَدْ {عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا} عن مسألتكم فلا تعودوا {وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ} {قَدْ سَاَلَهَا} أَيْ الْأَشْيَاء {قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ} أَنْبِيَاءَهُمْ فَأُجِيبُوا بِبَيَانِ أَحْكَامِهَا {ثُمَّ اَصْبَحُوْا} صَارُوا {بِهَا كٰفِرِيْنَ} بِتَرْكِهِمْ الْعَمَل بِهَا {مَا جَعَلَ} شَرَعَ {اللّٰهُ مِنْ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَاۤئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ} كَمَا كَانَ أَهْل الْجَاهِلِيَّة يَفْعَلُونَهُ رَوَى الْبُخَارِيّ عَنْ سَعِيد بن المسيب قال البحيرة التي يمنع دَرّهَا لِلطَّوَاغِيتِ فَلَا يَحْلُبهَا أَحَد مِنْ النَّاس وَالسَّائِبَة الَّتِي كَانُوا يُسَيِّبُونَهَا لِآلِهَتِهِمْ فَلَا يُحْمَل عَلَيْهَا شَيْء وَالْوَصِيلَة النَّاقَة الْبِكْر تُبَكِّر فِي أَوَّل نِتَاج الْإِبِل بِأُنْثَى ثُمَّ تُثَنِّي بَعْد بِأُنْثَى وَكَانُوا يُسَيِّبُونَهَا لِطَوَاغِيتِهِمْ إنْ وَصَلَتْ إحْدَاهُمَا بِأُخْرَى لَيْسَ بَيْنهمَا ذَكَر وَالْحَام فَحْل الْإِبِل يَضْرِب الضِّرَاب الْمَعْدُودَة فَإِذَا قَضَى ضِرَابه وَدَعُوهُ لِلطَّوَاغِيتِ وَأَعْفَوْهُ مِنْ أَنْ يُحْمَل عَلَيْهِ شَيْء وَسَمَّوْهُ الْحَامِي {وَلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ} فِي ذَلِكَ وَفِي نِسْبَته إلَيْهِ وَأَكْثَرهمْ لَا يَعْقِلُونَ أَنَّ ذَلِكَ افْتِرَاء لِأَنَّهُمْ قَلَّدُوا فِيهِ آبَاءَهُمْ {وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ} أَيْ إلَى حُكْمه مِنْ تَحْلِيل مَا حَرَّمْتُمْ {قَالُوْا حَسْبُنَا} كَافِينَا {مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَاۤءَنَا} من الدين والشريعة قال تعالى {اَ} حسبهم

ذلك {ولوكان آباؤهم لايعلمون شيئا ولايهتدون} إلى الحق والاستفهام للإنكار {يأيها الذين آمنوا عليكم أنفسكم} أي احفظوها وقوموا بصلاحها {لايضركم من ضل إذا اهتديتم} قيل المراد لا يضركم من ضل من أهل الكتاب وقيل المراد غيرهم لحديث أبي ثعلبة الخشني سألت عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال ائتمروا بالمعروف وتناهوا عن المنكر حتى إذا رأيت شحا مطاعا وهوى متبعا ودنيا مؤثرة وإعجاب كل ذي رأي برأيه فعليك نفسك رواه الحاكم وغيره {إلى الله مرجعكم جميعا فينبئكم بما كنتم تعملون} فيجازيكم به {يأيها الذين آمنوا شهادة بينكم إذا حضر أحدكم الموت} أي أسبابه {حين الوصية اثنان ذوا عدل منكم} خبر بمعنى الأمر أي ليشهد وإضافة شهادة لبين على الاتساع وحين بدل من إذا أو ظرف لحضر {أو آخران من غيركم} أي غير ملتكم {إن أنتم ضربتم} سافرتم {في الأرض فأصابتكم مصيبة الموت تحبسونهما} توقفونهما صفة آخران {من بعد الصلاة} أي صلاة العصر {فيقسمان} يحلفان {بالله إن ارتبتم} شككتم فيها ويقولان {لانشتري به} بالله {ثمنا} عوضا نأخذه بدله من الدنيا بأن نحلف به أو نشهد كذبا لأجله {ولوكان} المقسم له أو المشهود له {ذاقربى} قرابة منا {ولا نكتم شهادة الله} التي أمرنا بها {إنا إذا} إن كتمناها {لمن الآثمين} {فإن عثر} اطلع بعد حلفهما {على أنهما استحقا إثما} أي فعلا ما يوجبه من خيانة أو كذب في الشهادة بأن وجد عندهما مثلا ما اتهما به وادعيا أنهما ابتاعاه من الميت أو وصى لهما به {فآخران يقومان مقامهما} في توجه اليمين عليهما {من الذين استحق عليهم} الوصية وهم الورثة ويبدل من آخران {الأوليان} بالميت أي الأقربان إليه وفي قراءة الأولين جمع أول صفة أو بدل من الذين {فيقسمان بالله} على خيانة الشاهدين ويقولان {لشهادتنا} يميننا {أحق} أصدق {من شهادتهما} يمينهما {وما اعتدينا} تجاوزنا الحق في اليمين {إنا إذا لمن الظالمين}

**ترجمه:** چې خلقو کوم وخت د حضورپاك نه په كثرت سره سوالونه كول شروع كړه نو دا آيت نازل شو. اې د ايمان والو د داسې (فضول) خبروسوال مه كوئى چې كه په تاسو باندې ښكاره كړې شي نو ستاسو ناخوښوى څكه چې په هغې كښې سختى وى اوكه چرې تاسو د نزول قرآن په وخت يعنى د رسول الله ﷺ د ژوند په زمانه كښې د دغه خبرو تپوس كوئى نو تاسو ته به جواب دركولې شى مطلب دا چې كله تاسو د حضورپاك د ژوند په زمانه كښې د دغه څيزونو باره كښې سوال كوئى نو قرآن به (د هغې جواب) ښكاره كولو باره كښې نازليږى اوكله چې قرآن د دغه څيزونو جواب ښكاره كړى نو ستاسو به خوښ نه وى. نو د داسې څيزونو باره كښې پوښتنه مه كوئى. الله تعالى ستاسو (په ماضى كښې) سوال كول معاف كړل بيا داسې حركت مه كوئى الله تعالى ډير معاف كونكې او ډير صبر كونكې دې. داسې خبرې تاسو نه وړاندې قومونو د خپل انبياء كرامو نه تپوس كړې وې د هغوى احكام بيانولو سره د هغې جواب ورکړې شو. بيا په هغه احكامو ترك عمل كولو سره د دغه احكامو منكر شو. الله

تعالی نه بحیره مشروع کړې ده او نه سائبه او نه وصیله او نه حام لکه چې څنګه به اهل جاهلیت کول. امام بخاری رحمه الله د سعید بن مسیب نه روایت کړې دې چې بحیره هغه څناورته وائی د کومو پئی لوشل چې به د بتانو په نوم باندې پریخودلې کیدل. هیڅ یو کس به د هغې نه پئی نه لوشل. او سائبه هغه څناور ته وائی کوم چې به هغوی د خپلو معبودانو په نوم باندې آزاد پریخودل نو هغه به د بوج اوړلو په کارنه شو راوستلې. او وصیله به ئی هغه خوانې اوښې ته وئیل چې په رومبی ځل به ئی ښځه بچې راوړو او بیابه ئی په دویم ځل هم ښځه بچې راوړو چې د هغې په مینځ کښې به نربچې نه وو او حام هغه اوښ چې لس ځل جفتی اوکړی کله چې به هغه د تعداد پوره کړو نو هغه به د بتانو په نوم باندې آزاد پریخودلې شو او په هغې باندې به ئی بوج اوړل پریخودل. په هغه باندې به ئی هیڅ څیز نه بار کولو او دهغه نوم به ئی حام کیخودلو. لیکن (دا) کافر په دې معامله دې طرف ته نسبت کولو کښې الله تعالی باندې د دروغو تهمتونه لګوی او په هغوی کښې اکثرخلق نه پوهیږی چې دا تهمت دې څکه چې هغوی په دې معامله کښې د خپلو پلارانو تقلید کوی او کله چې هغوی ته وئیلې شی چې هغه طرف ته راشئ کوم چې الله تعالی نازل کړی دی او د رسول طرف ته راشئ یعنی د هغه د حکم طرف ته کوم څه چې تاسو حرام کړی دی هغه حلالول دی نو وائی چې په کوم دین او شریعت باندې مونږ خپل پلاران او نیکونه موندلی دی هغه زمونږ د پاره کافی دې. الله تعالی اوفرمائیل آیا دابه د هغوی د پاره کافی شی سره د دې چې د هغوی پلارانو هیڅ نه پیژنی؟ او د حق لارې طرف ته هدایت بیاموندونکی نه وی. استفهام د انکار د پاره دې. اې ایمان والو تاسو خپل فکرکوئی یعنی خپل حفاظت کوئی او د دې د اصلاح د پاره تکړه شئ د چاګمراهی تاسو هیڅ نقصان نشی رسولې که چرې تاسو پخپله په نیغه لاریځ وئیلې شوی دی چې مراد اهل کتاب دی او وئیلی شوی دی چې مراد غیراهل کتاب دی. د ابوثعلبه خشنی رضی الله عنه د حدیث د وجې نه (ابوثعلبه رضی الله عنه فرمائی) چې ما د مذکوره آیت باره کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اوکړه نو حضورپاک صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل د ښې خبرې حکم کوه او د خرابې خبرې نه منع کوه او کله چې ته اوګورې چې د بخل تابعداری کولې شی او د خواهشاتو اتباع کولې شی او دنیا ته (په دین) باندې ترجیح ورکولې شی او هرسړې په خپله رائې کښې مست دې نو ته خپل فکرکوه (دا حاکم رحمه الله وغیره نقل کړې دې) ستاسو ټولو الله تعالی ته واپس کیدل دی نو هغه به تاسو ته هرهغه څه اوښائی څه چې تاسو کول چې هغه به د دغې جزاء درکړی. اې ایمان والو کله چې په تاسو کښې چاته مرګ راشی یعنی د دې اسباب ښکاره شی او د وصیت کولو وخت وی نو د هغې د پاره د شهادت (نصاب) دادې چې ستاسو په دله کښې دې دوه کسان عادلان سړی ګواهان جوړشی خبر په معنی د امر دې یعنی هغوی له ګواهی ورکول پکاردی او د شهادة اضافت د بین طرف ته د وسعت په

وجه دې او حين دَ إِذَا نه بدل دې يا دَ حَضَرَ ظرف دې اوکه دَ سفرپه دوران کښې تاسو له دَ مرګ مصيبت راشي نو ستاسود غير يعنى دَ غيرمسلمونه دې دوه ګواهان واغستلې شي که چرې تاسو (اې وارثانو) دَ دغه دواړو په باره کښې په شک کښې پريوځې نودا دواړه دَ مازيګر دَ مونځ نه پس ايسار کړئ (تحبسونهما) دآخران دَ ان صفت دې نوهغوى دې په الله تعالى باندې قسم اوخورى اودې وائى چې مونږ دَالله تعالى دَ قسم غوض نه غواړو چې دَدې په بدله کښې دنياوى عوض واخلو چې مونږ دَدنيادَپاره قسم اوخورو يادَدې دَ پاره چې دَ دروغو ګواهى ورکړو. اګرچې دَ چادَ فائدې دَپاره چې قسم خوړلې شى يا دَچا دَ فائدې دَپاره چې ګواهى ورکولې شى زمونږ خپلوان دې ولې نه وى اونه به مونږ دَالله تعالى ګواهى پټه کړو دَ کوم دَاداکولوچې مونږ ته حکم راکړې شوې دې که مونږ پټه کړه نو مونږ به په ګناهګارانو کښې شمير شو. نوکه دوئ قسم خوړلونه پس (په څه طريقه) دا پته اولګى چې هغه دواړه دګناه مستحق شوى دى يعنى هغوى دَ يوداسې فعل ارتکاب کړې وى چې خيانت يا کذب فى الشهادتين واجب کړى په داسې توګه چې مثلاً هغه څيزدَ کوم باره کښې چې په هغوى باندې تهمت لګولې شوې دې هغه دَهغوى سره راوځى او هغوى دا دعوىٰ کړى وى چې هغوى دَمړى نه دغه څيز اخستې دې يا مړى دَهغوى دَپاره دَدې وصيت کړې دې نو نور دوه ګواهان چې دَهغوى په ځائى وى قسم دَهغوى طرف ته متوجه کولوکښې دَهغه خلقو دَ طرف نه چې څوک دَ وصيت مستحق ګرځولې شوى دى أولين، دآخران نه بدل دې اوهغه وارثان دى چې دَ مړى اولياء يعنى دَ مړى خپلوان دى او په يوقراءت کښې أوّلِيْنَ دَ اول جمع ده دَالذين صفت يا بدل دې نوهغوى دې دَ ګواهانو په خيانت باندې دَالله تعالى قسم اوخورى او اودې وائى چې زمونږ شهادت دَهغوى دَ شهادت نه صحيح دې او مونږ په قسم کښې دَ حق نه تجاوزنه دې کړې، بيشکه مونږ به هغه وخت په ظالمانو کښې شميرلې کيږو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: أَشْيَاءَ دَ أَشْيَاءُ اصل شَيْئَاءُ وو په وزن دَ فَعْلَاءُ کحمراء، دَ عربو په نيزدَ دوو همزاوُ په مينځ کښې الف ثقيل النطق دې ددې دَ وجې نه ړومبې همزه چې لام کلمه ده قلب مکانى کولوسره يئ دَ شين نه مقدم کړه اوس دَدې وزن أشياء په وزن دَ لفعاء شو. اوس داد الف تانيث ممدوده دَ وجې نه غيرمنصرف شو. (اعراب القرآن)

**قوله**: ان تَسْئَلُوْا عنها حين يُنَزَّلُ القرآنُ اَنْ تُبْدَلَكُمْ: ان حرف شرط، تسئلوا فعل شرط، عنها دَ تسئلوا متعلق ها ضمير ماسبق کښې مذکور اشياء طرف ته راجع دې. حين ينزل القرآن، دَ تسئلوا ظرف دې او تُبْدَلکم جواب شرط دې.

**قوله**: اَلْمَعْنٰى إِذَا سَئَلْتُمُ الخ دَمفسرعلام مقصد دَدې عبارت په اضافې سره دا خودل دی چې دلته دوه شرطيه جملې اونهی دی په اصل کښې نهی چې مقدم ده دَ دواړو جملونه روستو پکارده او په دواړو شرطيه جملوکښې ړومبې جمله مؤخر او دويمه مقدم کيدل پکاردی، نهی سره دَدې دَ نتيجې دَاهتمام زجر دَ وجې نه مقدم کړې شوه اودا تقديم اوتاخير دَ معنی په اعتبار سره دې ځکه چې واؤ دَ ترتيب تقاضانه کوی.

**قوله**: إِذَا سَئَلْتُمْ عَنْ أَشْيَاءَ، داد جمله ثانيه معنی ده اومتیٰ أبداها ساتکم دا دَ جملهٔ اولی معنی ده.

**قوله**: فَلَا تَسْئَلُوا عَنْهَا دا معنٰی نهی ده.

**قوله**: إذاسئلتم عَنْ أَشْيَاءَ شرط دې، يُنَزَّلُ القرآنَ عن إبدائها دَدې جزا ده.

**قوله**: عن مَسْئَلَتِكُمْ په دې کښې اشاره ده چه دَ عنها ضمير مسئلة طرف ته واپس کيږی کوم چې دَ يسئلون نه مفهوم دې.

**قوله**: شَرَعَ، دَ جَعَلَ تفسير په شرع سره يې اشاره اوکړه چې جَعَلَ دشَرَعَ معنې ده متضمن کيدو دَ وجې متعدی په يومفعول دې او هغه بحيرة دې من زائده دې.

**قوله**: بَحِيْرَةٌ، دَباء فتحه اود حاء کسره په وزن دَ فعيلة په معنی دمفعولة دَدې په آخره کښې تاء په غيرقياسی توګه لاحق شوې ده داځکه چې دا دَ وصفيت نه اسميت طرف ته منتقل کړې ده دَ کوم دَ وجې نه چې په منزله دَجامدشو. دَ بحيره په تعريف کښې دَعلماؤ ډير اختلاف دې. دَ دغه ټولونه يوقول دادې کوم چې قوی دې. کومه اوښه چې پنځه ځل بچې راوړی او پنځه واړه نران وی نودَهغې غوږ به يې اوخيرلو او دَ بتانو په نوم به ئی آزاده پريخودله او په هغې باندې بوج اوړل او سورلی کول به يې حرام ګنړل، اوهيڅ يوکس به هغه دَ وابنو او اوبونه نه منع کوله. (اعراب القرآن للدرويش)

**قوله**: سَائِبَة، دا سابَ يسيبُ نه اسم فاعل دې آزادول، دَدې به دا صورت وو چې دَ جاهليت په زمانه کښې به داسې نذر منلې شومثلاً که زه دَ سفرنه صحيح سلامت واپس راغلم يا زه دَ بيمارئی نه روغ شوم نوزما اوښه آزاده ده په دې طريقه پريخودې شوې اوښې ته به ئی سائبه وئيل. (اعراب القرآن ايضاً)

**قوله**: الباکر په فتح دَ باء اوکاف ځوانه اوښه تَبَكَّرَ فِي أَوَّلِ نِتَاجِ الإِبِلِ بِالْأُنْثَى أي تَلِدُ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ بِالْأُنْثَى هغه ځوانه اوښه کومې چې ړومبې بچې ښځه راوړې وی.

**قوله**: وَصِيْلَة، هغه ځوانه اوښه چې په ړومبی ځل ئی ماده بچې پيدا شوې وی او په دويم ځل

هم نسخه راوړی چې مسلسل نسخه بچی راوړی په دې وجه دغه اوښې ته وصیله وائی داسې اوښه به عربو د بتانو په نوم آزاده پریخودله او د هغې نه به ئی د هیڅ قسم خدمت نه اخستلو.

**قوله**: حام، حمی یحمی حَمْیًا وحِمَایَةً په معنیٰ ایساریدو، اسم فاعل اِذَا مُنِعَ بعض حضراتو وئیلی دی چې حام هغه اوښ د کوم نه چې لس بچی پیدا شوې وی نولکه چې د هغه شا د بوج اوړلو او سورلئ نه محفوظ شوه أي لا یرکب ولا یحمل ولا یمنع من ماء ولا مرعی.

**قوله**: واِضَافَةُ شَهَادَةِ بَيْنِ على الاتساع يعنى ظرف د فاعل قائمقام اتساعا کړې شوې دې لهذا دا اعتراض ختم شو چې مصدر فاعل یا مفعول طرف ته مضاف کیږی.

**ایاتونه:١٠٨]**

الْمَعْنَى لِيُشْهِد الْمُحْتَضِر عَلَى وَصِيَّته اثْنَيْنِ أَوْ يُوصِي إِلَيْهِمَا مِنْ أَهْل دِينه أَوْ غَيْرهمْ إِنْ فَقَدَهُمْ لِسَفَرٍ وَنَحْوه فَإِنْ ارْتَابَ الْوَرَثَة فِيهِمَا فَادَّعَوْا أَنَّهُمَا خَانَا بِأَخْذِ شَيْء أَوْ دَفْعه إِلَى شَخْص زَعَمَا أَنَّ الْمَيِّت أَوْصَى لَهُ بِهِ فَلْيَحْلِفَا إِلَى آخِره فَإِنْ اطَّلَعَ عَلَى أَمَارَة تَكْذِيبهمَا فَادَّعَيَا دَافِعًا لَهُ حَلَفَ أَقْرَب الْوَرَثَة عَلَى كَذِبهمَا وَصِدْق مَا ادَّعَوْهُ وَالْحُكْم ثَابِت فِي الْوَصِيَّيْنِ مَنْسُوخ فِي الشَّاهِدَيْنِ وَكَذَا شَهَادَة غَيْر أَهْل الْمِلَّة مَنْسُوخَة وَاعْتِبَار صَلَاة الْعَصْر لِلتَّغْلِيظِ وَتَخْصِيص الْحَلِف فِي الْآيَة بِاثْنَيْنِ مِنْ أَقْرَب الْوَرَثَة لِخُصُوصِ الْوَاقِعَة الَّتِي نَزَلَتْ لَهَا وَهِيَ مَا رَوَاهُ الْبُخَارِيّ أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي سَهْم خَرَجَ مَعَ تَمِيم الدَّارِيّ وَعَدِيّ بْن بَدَاء أَيْ وَهُمَا نَصْرَانِيَّانِ فَمَاتَ السَّهْمِيّ بِأَرْضٍ لَيْسَ فِيهَا مُسْلِم فَلَمَّا قَدِمَا بِتَرِكَتِهِ فَقَدُوا جَامًا مِنْ فِضَّة مُخَوَّصًا بِالذَّهَبِ فَرُفِعَا إِلَى النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلَتْ فَأَحْلَفَهُمَا ثُمَّ وُجِدَ الْجَام بِمَكَّة فَقَالُوا ابْتَعْنَاهُ مِنْ تَمِيم وَعَدِيّ فَنَزَلَتْ الْآيَة الثَّانِيَة فَقَامَ رَجُلَانِ مِنْ أَوْلِيَاء السَّهْمِيّ فَحَلَفَا وَفِي رِوَايَة التِّرْمِذِيّ فَقَامَ عَمْرو بْن الْعَاصِ وَرَجُل آخَر مِنْهُمْ فَحَلَفَا وَكَانَ أَقْرَب إِلَيْهِ وَفِي رِوَايَة فَمَرِضَ فَأَوْصَى إِلَيْهِمَا وَأَمَرَهُمَا أَنْ يَبْلُغَا مَا تَرَكَ أَهْله فَلَمَّا مَاتَ أَخَذَا الْجَام وَدَفَعَا إِلَى أَهْله مَا بَقِيَ {ذَلِكَ} الْحُكْم الْمَذْكُور مِنْ رَدّ الْيَمِين عَلَى الْوَرَثَة {أَدْنَى} أَقْرَب إِلَى {أَنْ يَأْتُوا} أَيْ الشُّهُود أَوْ الْأَوْصِيَاء {بِالشَّهَادَةِ عَلَى وَجْهِهَا} الَّذِي تَحَمَّلُوهَا عَلَيْهِ مِنْ غَيْر تَحْرِيف وَلَا خِيَانَة {أَوْ} أَقْرَب إِلَى أَنْ {يَخَافُوا أَنْ تُرَدّ أَيْمَان بَعْد أَيْمَانهمْ} عَلَى الْوَرَثَة الْمُدَّعِينَ فَيَحْلِفُونَ عَلَى خِيَانَتهمْ وَكَذِبهمْ فَيَفْتَضِحُونَ وَيَغْرَمُونَ فَلَا يَكْذِبُوا {وَاتَّقُوا اللَّه} بِتَرْكِ الْخِيَانَة وَالْكَذِب {وَاسْمَعُوا} مَا تُؤْمَرُونَ بِهِ سَمَاع قَبُول {وَاللَّه لَا يَهْدِي الْقَوْم الْفَاسِقِينَ} الْخَارِجِينَ عَنْ طَاعَته إِلَى سَبِيل الْخَيْر

**ترجمه**: (دمذکوره دواړو آیاتونو) مطلب دادې چې مرګ ته نیزدې سړې دې په خپل وصیت باندې دوه سړی ګواه جوړکړی د خپل ملت یا د غیرملت دوه سړی دې وصی جوړکړی که د سفروغیره د وجې نه د خپل ملت ګواه نه وی اوکه وارثان د وصیانو په باره کښې څه شك شبه اوکړی اودعویٰ اوکړی چې دې دواړو د ترکې نه) څه څیزاخستې دې یائې داسې سړی له څه ورکړی دی د چاباره کښې چې دوی دعویٰ کوی چې مړی د ده دپاره وصیت کړې وو نود دغه دواړو نه دې قسم واخستلې شي که د علاماتونه د دغه دواړو

وصیانو دَ دروغوځه پته اولګی په داسې توګه چې هغه دواړه موصیٰ له ته د ورکولودعوی اوکړی نودَ وارثانو نیزدې سرې دې دَهغوی په کذب اودَ ورثاؤ دَدعویٰ په صداقت باندې قسم اوخوری او حکم دَ وصیانو په سرو باره کښې باقی دې اودَ شاهدینو باره کښې منسوخ دې. دغه شان دَ غیراهل ملت دَ شهادت باره کښې آیت منسوخ دې. اودَ مازیګردَ مانځه دَ وخت تعین دَ تغلیظ دَپاره دې او (دَ مړی) د نیزدې ورثاؤ تخصیص دَ هغه مخصوص واقعې دَ وجې نه دې دَ کوم باره کښې چې آیت نازل شو اودغه (واقعه) هغه ده کومه چې بخاری روایت کړې ده. چې دَ بنی سهم یو سړې د تمیم داری او عدی بن بداء سره (دَتجارت دَپاره) اووتلو اودا دواړه نصرانی وو. دَ سهمی انتقال په داسې زمکه کښې اوشو چې هلته څوك مسلمان نه وو نو (مذکوره) آیت نازل شو. کله چې دې دواړو حضراتو (دَملك شام نه) دَ مرحوم ترکه راوړه او راغلل نودَ چاندئی یوه پیالئ په کومه چې دَ سرو زرو نقش اونګارو و ، دوئ واخستله. دا دواړه (تمیم داری اوعدی)دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې پیش کړې شو نوهغه وخت مذکوره آیت نازل شو. دې دواړو نه قسم واخستې شو روستوهغه پیالئ په مکه کښې اولیدلې شوه. نوهغه سړی (چاسره چې پیالئ وه) اووئیل چې ما دا دَ تمیم داری او عدی نه اخستې ده. نو مذکوره آیت نازل شو. دَ سهمی دَ اولیاؤ نه دوه کسان اودریدل اوقسم ئی اوخوړلو (چې دا پیالئ زمونږ دَ مورث ده) اودَ ترمذی په یوروایت کښې دی چې عمرو بن عاص اوهم دَدوی نه یوبل سړې اودریدو او دواړو قسم اوخوړلو اودا دواړه دَ مړی نیزدې خپلوان وو (دَ ترمذی) یو (روایت) کښې دی چې کله سهمی بیمارشو نو دواړه یئ وصی جوړکړل اوهغوی ته ئی اووئیل چې متروکه مال دَهغه وارثانوته اورسوئی کله چې دَ هغه انتقال اوشو(دَ مړی متروکه مال نه) یوه پیالئ واخسته اوباقی مال ئی دَ مړی وارثانوته اورسولو. دامذکوره حکم یعنی دَ قسم حق وارثانوته واپس کول دَدې خبرې نیزدې ذریعه ده چې شاهد یا اوصیاء به دا شهادت دَ کوم چې دوی متحمل شوی هغوئ به صفاصفا بغیردَ څه تحریف اوخیانت نه اداکړی یادې خبرې ته ډیره نیزدې ده هغه دې دَدې خبرې خوف اوکړئ چې چرته (دَهغوی) دَقسمونو کوم چې د مدعی دَ واریانو خلاف دی تردید اونه کړې شی په داسې توګه ورثاء (دَ اوصیاء) په دروغ وئیلو او خیانت باندې قسم اوخوری دَ کوم په وجه چې به هغوی رسوا شی او تاوان به ورکول وی نوهغوی به دروغ نه وائی اوخیانت اوکذب پرېخودو سره دَ الله تعالی نه اوویرېږی اود څه حکم چې ورکړې شی هغه دَ قبلولوپه غوږ سره واؤری الله تعالی دَ فاسقانو خلقو یعنی دَهغه دَ طاعت نه دَ خارجیدونکو د خیبر طرف ته لارخودنه نه کوی.

.......

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: المعنى يعنى دَ مذكوره دواړو آخرى آياتونو معنى.

**قوله**: لِيُشْهِدِ المحتضَرالخ په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چې شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ مصدر په معنى دَ امردې يعنى مرګ ته نيزدې سړى له پكاردى چې په خپل وصيت باندې دوه سړى ګواهان جوړ كړى.

**قوله**: أو يُوْصِي إلَيْهِمَا، په دې اضافې سره اشاره بيئ اوكړه چې دَ آيت دوه تفسيرونه دى دَ خازن عبارت دادې، واختلفوا فى هذين الاثنين فقيل هما الشاهدان الذان يشهدان على وصية الوصى وقيل هما وصيان لأنّ الآية نزلت فيهما ولأ نه تعالى قال فيقسمان بالله والشاهد لايلزمه اليمين، مطلب دا چې دَ شهادةِ إثنين نه څه مراد دې؟ بعض حضراتو وئيلى دى چې دَ اثنان نه هغه دوه شاهدان مراد دى كوم چې موصى دَ مرګ په وخت په وصيت باندې ګواه جوړ كړى وى، اوبعض حضراتو وئيلى دى چې پخپله وصيان مراد دى ځكه چې مذكوره واقعه هم اوصياء سره متعلق ده. دويمه خبره دا چې په ګواهانو باندې قسم لازم نه شو بل صورت كښې به شهادت په معنى دَ حضوربه وى مثلاً ته اووائى شهدت وَصِيَّةَ فلان په معنى د حضرتها.

**[اياتونه: ۱۰۹-۱۱۵]**

---

اذكر {يَوْمَ يَجْمَعُ اللَّهُ الرُّسُلَ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {فَيَقُولُ} لَهُمْ تَوْبِيخًا لِقَوْمِهِمْ {مَاذَا} أَيْ الَّذِي {أُجِبْتُمْ} بِهِ حِين دَعَوْتُمْ إِلَى التَّوْحِيد {قَالُوا لَا عِلْمَ لَنَا} بِذَلِكَ {إِنَّكَ أَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ} مَا غَابَ عَنْ الْعِبَاد وَذَهَبَ عَنْهُمْ عِلْمه لِشِدَّةِ هَوْل يَوْم الْقِيَامَة وَفَزَعهمْ ثُمَّ يَشْهَدُونَ عَلَى أُمَمهمْ لَمَّا يَسْكُنُونَ اذكر {إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَى وَالِدَتِكَ} بِشُكْرِهَا {إِذْ أَيَّدْتُكَ} قَوَّيْتُك {بِرُوحِ الْقُدُسِ} جِبْرِيل {تُكَلِّمُ النَّاسَ} حَال مِنْ الْكَاف فِي أَيَّدْتُك {فِي الْمَهْدِ} أَيْ طِفْلًا {وَكَهْلًا} يُفِيد نُزُوله قَبْل السَّاعَة لِأَنَّهُ رُفِعَ قَبْل الْكُهُولَة كَمَا سَبَقَ فِي آل عِمْرَان {وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ} كَصُورَةِ {الطَّيْرِ} وَالْكَاف اسْم بِمَعْنَى مِثْل مَفْعُول {بِإِذْنِي فَتَنْفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي} بِإِرَادَتِي {وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَى} مِنْ قُبُورهمْ أَحْيَاء {بِإِذْنِي وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَنْكَ} حِين هَمُّوا بِقَتْلِك {إِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} الْمُعْجِزَات {فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ إِنْ} مَا {هَذَا} الَّذِي جِئْت بِهِ {إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ} وَفِي قِرَاءَة سَاحِر أَيْ عِيسَى {وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ} أَمَرْتهمْ عَلَى لِسَانه {أَنْ} أَيْ بِأَنْ {آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي} عِيسَى {قَالُوا آمَنَّا} بِهِمَا {وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ} اذكر {إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيعُ} أَيْ يَفْعَل {رَبُّكَ} وَفِي قِرَاءَة بِالْفَوْقَانِيَّة وَنُصِبَ مَا بَعْده أَيْ تَقْدِر أَنْ تَسْأَلهُ {أَنْ يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِنَ السَّمَاءِ قَالَ} لَهُمْ عِيسَى {اتَّقُوا اللَّهَ} فِي اقْتِرَاح الْآيَات {إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} {قَالُوا نُرِيدُ} سُؤَالهَا مِنْ أَجْل {أَنْ نَأْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ} تَسْكُن {قُلُوبُنَا} بِزِيَادَةِ الْيَقِين {وَنَعْلَمَ}

نزداد عِلمًا {أَنْ} مُخففة أيْ أنّك {قَدْ صدقتنا} في ادعاء النبوة {ونكون عليها من الشاهدين} {قَالَ عيسى بن مَرْيَمَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِنَ السَّمَاءِ تَكُونُ لَنَا} أيْ يَوْم نُزولها {عِيدًا} نُعظّمهُ وَنُشرّفهُ {لِأَوَّلِنَا} بَدَل مِنْ لَنَا بِإِعَادَةِ الْجَارّ {وَآخِرِنَا} مِمَّنْ يَأتِي بَعْدنَا {وَآيَةً مِنْكَ} على قدرتك ونبوتي {وارزقنا} إياها {وأنت خير الرازقين} {قَالَ اللَّهُ} مُسْتجيبًا لَهُ {إِنِّي مُنَزِّلُهَا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {عَلَيْكُمْ فَمَنْ يَكْفُرْ بَعْدُ} أيْ بَعْد نُزُولهَا {مِنْكُمْ فَإِنِّي أُعَذِّبُهُ عَذَابًا لَا أُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِينَ} فَنَزلَتْ الْمَلَائِكَة بِهَا مِنَ السَّمَاء عَلَيْهَا سَبْعَة أَرْغِفَة وَسَبْعَة أَحْوَات فَأَكَلُوا منها حتى شبعوا قاله بن عَبَّاس وَفِي حَدِيث أُنْزِلَتْ الْمَائِدَة مِنَ السَّمَاء خُبْزًا وَلَحْمًا فَأُمِرُوا أَنْ لَا يَخُونُوا وَلَا يَدَّخِرُوا لِغَدٍ فَخَانُوا وَادَّخَرُوا فَمُسِخُوا قِرَدَة وَخَنَازِير

---

**ترجمه**: یاد کړه هغه ورځ په کومه ورځ چې به الله تعالی ټول رسولان را جمع کړی هغه به د قیامت ورځ وی. دهغوی د امتونو رټنه کولو دپاره به دهغوی نه پوښتنه اوکړی کله چې تاسو دوی ته دتوحید دعوت ورکړې وو نو تاسو ته ددوی د طرف نه څه جواب ملاوشوې وو؟ انبیاء به جواب ورکړی چې مونږ ته ددې هیڅ خبرنشته هم ته پټې خبرې ښه پیژنې (یعنی) هغه ځیزونه کوم چې د بندیګانونه پټ دی د قیامت د ورځې د خطرې او ویرې د وجې نه (د امتونو د جواب) ذهول به اوشی اوکله چې هغوی په آرام شی نو د خپلو خپلو امتونو خلاف به ګواهی ورکړی. هغه وخت یاد کړه کوم وخت چې به الله تعالی عیسی ابن مریم ته اوفرمائی. اې عیسی ابن مریم ته شکریه سره هغه نعمتونه یاد کړه چې ما په تا باندې او ستا په مور باندې کړې وو. کوم وخت چې ما د روح القدس حضرت جبرائیل په ذریعه ستا امداد کړې وو تا په زانګو یعنی ماشوموالی کښې دخلقو سره خبرې کولې (تکلم الناس) أیدتك د کاف ضمیر نه حال دې اوپه لوئی عمر کښې هم، ددې نه د حضرت عیسی عليه السلام د قیامت نه وړاندې نازلیدل مستفاد کیږی ځکه چې هغه دکهولت د عمر نه وړاندې اوچت کړې شوې وو لکه چې په سورت آل عمران کښې تیرشوی دی اوکله چې ما تا ته د کتاب او حکمت خبرې او تورات او انجیل خودلی وو اوکوم وخت چې به تاد خاورې نه زما په اجازت باندې د مرغئی شکل جوړولو (کهیئة) کښې کاف اسم دې او مفعول دې په معنی د مثل بیا به تا په هغې کښې پوکې وهلو او هغه به زما په ارادې سره مرغئی کیدله یعنی الوتله به او تا به د مور نه پیداشوې ړوند او برګی مرض والا زما په اجازت سره ښه کولو اوکوم وخت چې به تا مړی د قبرونو نه زما په اجازت ژوندی راویستل او ما بنی اسرائیل تا نه منع کړل کله چې هغوی ستا د قتل اراده کړې وه. کله چې ته هغوی ته معجزې سره راغلې وې نو په هغوی کښې چې کوم کافر وو هغوی اووئیل دا تا چې څه راوړی دی دا خو ښکاره جادو دې. او په یو قراءت کښې ساحر دې یعنی عیسی عليه السلام او چې کله ما حواریانو ته اشاره اوکړه یعنی د عیسی عليه السلام په خله نې هغوی ته حکم ورکړو چې په ما او زما په رسول باندې ایمان راوړئی نو هغوی اووئیل چې مونږ په دواړو ایمان راوړې دې. اوته

گواه اوسيږه چې مونږ مسلمانان يو. هغه وخت دَ يادولو قابل دي چې كوم وخت حواريانو اووئيل اې عيسى ابن مريم آيا ستا رب داسې كولې شي چې په مونږ باندې دَ آسمان نه يوه خوانچې رانازل كړي او په يو قراءت كښې تستطيعُ په تاء سره دې او مابعد يعنى (ربّك) په نصب سره دې. يعنى آيا ته دَ هغه نه (دَ خوانچې) سوال كولې شې. عيسى عليه السلام هغوى ته اووئيل تاسو دَ خپلې خوښې معجزې غوښتلو باره كښې دَ الله تعالى نه اووېرېږئ كه چرې تاسو (په حقيقت كښې) مؤمنان يئ هغوى اووئيل زمونږ مقصد دَ خوانچې دَ غوښتلونه دادې چې مونږ دَ هغې نه اوخورو او دَ يقين په اضافې سره زمونږ زړه مطمئن شى اوزمونږ دا يقين نور هم زيات شى چې تا دَ نبوت په دعوى كښې مونږ ته رښتيا وئيلى دى أن مخففه (عن الثقيلة) دې. اې أنّك او مونږ په نبوت باندې دِ گواهى وركونكو نه شو. حضرت عيسى ابن مريم عليه السلام دعا اوكړه اې الله اې زمونږ پروردگار ته زمونږ دَ پاره دَ آسمان نه خوانچې نازل كړه دې دَ پاره چې دَ خوانچې دَ نازليدلو ورځ زمونږ دَ پاره دَ خوشحالئ ورځ شى دې دَ پاره چې مونږ دَ دغه ورځې تعظيم او توقير اوكړو او زمونږ دَ وراندينو دَ پاره لِأَوَّلِنَا اعادة جارسره د لَنَا نه بدل دې او زمونږ نه روستو راتلونكو دَ پاره (يعنى) څوك چې زمونږ نه پس راځى او ستا دَ پاره ستا په قدرت باندې او زما په نبوت باندې يوه نخښه شى. اودغه خوانچې زمونږ دَ پاره رزق جوړ كړه اوته دَ وركونكونه بهتر وركونكې يئ. الله تعالى دَ حضرت عيسى عليه السلام دعا قبولو سره اوفرمائيل چې زه دَ دغه خوان په تاسو باندې نازلونكې يم تخفيف اوتشديد سره نو دَ دې نه پس يعنى دَ دې دَ نازلولو نه پس څوک چې په تاسو كښې ناشكرى اوكړى نوزه به هغه ته سخته سزا وركوم چې هغه سزا به دَ دنيا جهان والو كښې هيچا ته هم نه وركوم. دَ آسمان نه فرښتو خوان راوړو په كوم كښې چې اووه روټئ او اووه كبان وو ټولو دَ دې نه خوراك اوكړو تردې چې ټول ماړه شو. ابن عباس رضي الله عنه فرمائى دَ آسمان نه يوه خوانچې نازل كړې شوه چې په هغې كښې روټئ او غوښه وه هغوى ته حكم وركړې شو چې خيانت مه كوئى اومه دَ صباد پاره ذخيره كوئى خو هغوى خيانت هم اوكړو او ذخيره ئى هم اوكړه نوهغه خوانچې اوچته كړې شوه اوهغوى دَ بيزوگانو او خنزيرانو په شكل كښې مسخ كړې شو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**. تَوْبِيْخًا لِقَوْمِهِمْ. دا عبارت دَ يو سوال جواب دې چې الله تعالى خو علاّم الغيوب دې هغه ته دَ يو څيز باره كښې دَ سوال كولو ضرورت نشته؟ جواب دادې چې سوال به دَ رټنې (توبيخ) دَ پاره به وى لكه چې دَ الله تعالى قول إِذَا الْمَوْءُدَةُ سُئِلَتْ بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ كښې سوال توبيخى دې.

**قوله**. أَيِ الَّذِي دا دَ يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** ذَا اسم اشاره دَ محسوس دَپاره ده دلته ددې مشاراليه جواب دې کوم چې غیرمحسوس دې؟

**جواب:** دادې چې ذَا په معنی د الذی اسم موصول دې فلا اعتراض.

**قوله.** ذَهَبَ عَنْهُمْ عِلْمُهُ الخ دادَ یوسوال جواب دې.

**سوال.** انبیاء کرامو ته چې په دنیاکښې دَدعوت توحید په جواب کښې دَهغوی امتونو څه جواب ورکړې وو دا خوهغوی ته معلومیدل پکاروو بیا دَ انبیاء کرامو په محشرکښې دَالله په مخامخ دا ویناکول چې مونږ ته پته نشته چې زمونږ امتونو مونږ ته څه جواب راکړې وو؟ ددې نه کذب لازمیږی چې دَ انبیاء کرامو دَ شان خلاف دی اوهغه هم دَالله تعالی په مخکښې؟

**جواب:** دَعلم نفی دَ کذب دَ وجې نه ده بلکه دَ قیامت دَ خطرې او ویرې دَ وجې نه به وی څکه چې دَ قیامت په ورځ به په هریونفس باندې دَ الله تعالی د جلال دومره هیبت راخور وی چې دَ انبیاء کرامو دَ ذهن نه به هم ذهول اوشی الله تعالی فرمائی تذهل کُلُّ مرضعة عمّا أرضعت مګرداجواب ضعیف دې څکه چې الله تعالی دَ انبیاء کرامو باره کښې فرمائیلی دی لایحزنهم الفزع الأکبر. امام فخرالدین رازی رحمه الله دَ مذکوره اعتراض دا جواب ورکړې دې، د انبیاؤ د جواب نه چپ پاتې کیدل او انکار به د ادت او تعظیم په وجه وی، لکه چه صحابه کرامو به د نبی کریم ﷺ د سوال په جواب کښې اکثر الله اعلم فرمائیلو حالانکه هغوئ ته به دَ بعض سوالونو جوابونه معلوم وو.

**قوله:** طِفْلاً فِي الْمَهْدِ تفسیرپه طفلاً سره کولوکښې یئ اشاره اوکړه چې دَمهد نه مراد دَ ماشوموالی حالت دې نه چې نفس مهد څکه چې دَمهد مقابله کَهْلاً سره ذکر کړې وه مقصد دَ نقصان عقل او کمال عقل تقابل دې.

**قوله:** أَكْمَهَ دَ مور نه ړوند راپیداشوې، کَمَهٌ نه صیغه دصفت مشبه.

**قوله:** أبرص، برص یعنی برګې مرض دا یوقسم مشهور مرض دې.

**قوله:** أَمَرْتُهُمْ علی لسانه دادَ هغه سوال جواب دې چې حواریان خو نبیان نه وو بیا دَدوی طرف ته دَ وحی کولو څه مطلب دې؟ دَ جواب حاصل دادې چې نیغ په نیغه وحی مراد نه ده بلکه دَحضرت عیسی علیه السلام په واسطه هغوی ته حکم کول مراد دی. فلااشکال.

**قوله:** تَسْتَطِيعُ رَبَّكَ أی سوال رَبِّكَ حذف مضاف سره څکه چې دَ ذات رب نه دَ سوال کرلوهیڅ مطلب نشته.

**قوله.** مِنْ أَجْلِ په دې کښې اشاره ده چې اَن نـاكل، مفعول لأجله دې.

**[ایاتونه:۱۱۶-۱۲۰]**

{و} اذْكُرْ {إِذْ قَالَ} أَيْ يَقُول {اللَّه} لِعِيسَى فِي الْقِيَامَة تَوْبِيخًا لِقَوْمِهِ {يَا عِيسَى بن مَرْيَم أَأَنْت قُلْت لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّي إِلَهَيْنِ مِنْ دُون اللَّه قَالَ} عِيسَى وَقَدْ أُرْعِدَ {سُبْحَانك} تَنْزِيهًا لَك عَمَّا لَا يَلِيق بِك مِنْ شَرِيك وَغَيْره {مَا يَكُون} مَا يَنْبَغِي {لِي أَنْ أَقُول مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ} خَبَر لَيْسَ وَلِي لِلتَّبْيِينِ {إِنْ كُنْت قُلْته فَقَدْ عَلِمْته تَعْلَم مَا} أُخْفِيه {فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَم مَا فِي نَفْسك} أَيْ مَا تخفيه من معلوماتك {إِنَّك أَنْت علام الغيوب} {مَا قُلْت لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتنِي بِهِ} وَهُوَ {أَنْ اُعْبُدُوا اللَّه رَبِّي وَرَبّكُمْ وَكُنْت عَلَيْهِمْ شَهِيدًا} رَقِيبًا أَمْنَعهُمْ مِمَّا يَقُولُونَ {مَا دُمْت فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتنِي} قَبَضْتنِي بِالرَّفْعِ إِلَى السَّمَاء {كُنْت أَنْت الرَّقِيب عَلَيْهِمْ} الْحَفِيظ لِأَعْمَالِهِمْ {وَأَنْت عَلَى كُلّ شَيْء} مِنْ قَوْلِي لَهُمْ وَقَوْلهمْ بَعْدِي وَغَيْر ذَلِكَ {شَهِيد} مُطَّلِع عَالِم بِهِ {إِنْ تُعَذِّبهُمْ} أَيْ مَنْ أَقَامَ عَلَى الْكُفْر مِنْهُمْ {فَإِنَّهُمْ عِبَادك} وَأَنْت مَالِكهمْ تَتَصَرَّف فِيهِمْ كَيْفَ شِئْت لَا اعْتِرَاض عَلَيْك {وَإِنْ تَغْفِر لَهُمْ} أَيْ لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ {فَإِنَّك أَنْت الْعَزِيز} عَلَى أَمْره {الْحَكِيم} فِي صُنْعه {قَالَ اللَّه هَذَا} أَيْ يَوْم الْقِيَامَة {يَوْم يَنْفَع الصَّادِقِينَ} فِي الدُّنْيَا كَعِيسَى {صِدْقهمْ} لِأَنَّهُ يَوْم الجزاء {لَهُمْ جَنَّات تَجْرِي مِنْ تَحْتهَا الْأَنْهَار خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا رَضِيَ اللَّه عَنْهُمْ} بِطَاعَتِهِ {وَرَضُوا عَنْهُ} بِثَوَابِهِ {ذَلِكَ الْفَوْز الْعَظِيم} وَلَا يَنْفَع الكاذبين في الدنيا صدقهم فيه كالكفار لما يُؤْمِنُونَ عِنْد رُؤْيَة الْعَذَاب {لِلَّهِ مُلْك السَّمَاوَات وَالْأَرْض} خَزَائِن الْمَطَر وَالنَّبَات وَالرِّزْق وَغَيْرهَا {وَمَا فِيهِنَّ} أَتَى بِمَا تَغْلِيبًا لِغَيْرِ الْعَاقِل {وَهُوَ عَلَى كُلّ شَيْء قَدِير} وَمِنْهُ إِثَابَة الصَّادِق وَتَعْذِيب الْكَاذِب وَخَصَّ الْعَقْل ذاته فليس عليها بقادر

ترجمه: اوهغه وخت هم قابل ذکردې چې الله تعالی به دقيامت په ورځ حضرت عيسی عليه السلام ته د هغه د قوم د رټنې دپاره فرمائی چې اې عيسی ابن مريم عليه السلام آيا تادې خلقوته وئيلی وو چې ما اوزما مور دالله تعالی نه علاوه معبودا وګرځوئ حضرت عيسی عليه السلام به په رچيد وسره عرض اوکړی ته خو د هرهغه څيز (يعنی) شريك وغيره نه پاک ئی کوم چې ستاد شان سره نه ښائی اوزما دپاره هيڅ کله داسې خبره کول لائق نه دی د کومې د کولوچې زما څه حق نشته (حق) د ليس خبردې. او (لی) د تبيين دپاره (زائد) دې. که چرې ما (داخبره) کړې وی نوتاته به ددې علم وی ځکه چې ته خوزما دزړه په خبره هم پوهيږې اوزه ستا د زړه په خبره نه پوهيږم يعنی ستا د پټ معلوماتو ماته علم نشته. دټولو مغيباتو هم ته پيژندونکې ئی. ما خو دوی ته صرف هم هغه خبره کړې ده دکومې چې تاماته حکم کړی وو اوهغه دا چې تاسو دالله تعالی بندګی اختيارکړئ چې زما او ستاسود (ټولو) رب دې زه ددوئ نګران ووم ترکومې چې زه په دوی کښې موجود ووم هغوی مې د داسې خبرې دکولو نه منع کړی وو اوکله چې تا زه د رفع آسمانو په ذريعه واپس راوغوښتم نوهم ته د هغوی د اعمالوخيال ساتونکې وې اوته خودهرڅيزنه خبردارئی(که) هغه زما خبره وی کومه چې مې هغوی سره کړې وی يادهغوی خبره کومه چې هغوی زما نه پس کړې وی وغيره وغيره. په هغوی کښې چې څوك په کفرباندې قايم

پاتې شو که ته هغوی له سزا ورکړې نو ستا بندیګان دی او ته دهغوی مالك ئې په هغوی کښې چې څنګه غواړې د تصرف اختیار لرې په تا باندې هیڅ اعتراض نشته او که چرې ته هغوی معاف کړې نو ته په دې باندې غالب ئې او په خپل صنعت کښې حکمت والا ئې. الله تعالی به او فرمائي چې دا د قیامت ورځ هغه ورځ ده چې په دې ورځ به په دنیا کښې رښتیا اختیار ونکوته به دهغوی رښتیا نفع او رسوی لکه چې عیسی علیه السلام څکه چې دا د بدلې ورکولو ورځ ده هغوی ته به داسې باغونه ملاویږی د کوم لاندې چې به نهرونه جاری وی په کوم کښې چې به هغوی دهمیشه همیشه دپاره اوسیږی. الله تعالی دهغوی نه دهغوی د اطاعت د وجې نه خوشحاله او هغوی دهغه نه په اجر ورکولو باندې راضی هم دغه لویه کامیابی ده او په دنیا کښې دروغژنو ته به په قیامت کښې دهغوی رښتیا هیڅ فائده ورنه کړی لکه کافران چې کله عذاب اووینی نو ایمان به راوړی. د زمکې او د آسمانونو او په دې کښې چې څه دی د ټولو بادشاهی هم دالله تعالی ده (یعنی) باران بوټی او رزق وغیره خزانې ټولې هم دهغه ملك دې (په ځائی دمَنْ) د مَا استعمال غیر ذوی العقول ته غلبه ورکولو د وجې نه دې او هغه په هرڅیز باندې قادر دې او هم دهغوی نه رښتونی ته اجر ورکول او دروغژن ته سزا ورکول هم دی او عقل الله تعالی لره (تحت القدرة) کیدو نه خارج کړو چنانچې هغه په خپل ذات باندې قدرت نه لری.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: أی یَقُوْلُ، د قَالَ ماضی تفسیرپه یَقُوْلُ دمضارع کولوسره ددې سوال جواب ورکړې شو چې د سیاق او سباق نه معلومیږی چې مذکوره مکالمه به د قیامت په ورځ وی او قَالَ نه معلومیږی چې په دنیاکښې شوې ده. دقَالَ تفسیرپه یقول سره کولوکښې دا خودل دی چې ماضی په معنی د مضارع دې.

**قوله**: تَوْبِیْخًا لِقَوْمِه، ددې اضافې مقصد هم د یو سوال مقدرجواب دی.

**سوال**: سوال دادې چه الله تعالی علام الغیوب دې دهغه نه هیڅ څیز پټ نه دې او په دې کښې دحضرت عیسی علیه السلام خپل امت ته وئیل یا نه وئیل هم دی.

**جواب**: د جواب خلاصه داده چې دا سوال د استفهام دپاره نه دې بلکه د توبیخ دپاره دې لهذا اوس څه اعتراض پاتې نه شو.

**قوله**: لِقَوْمِه اضافه کولو کښې اشاره یئ اوکړه چې تقصیر او کوتاهی خو د قوم وه نه چې د حضرت عیسی علیه السلام.

**قوله**: أُرْعِدَ عیسی علیه السلام د ویرې د وجې اورچیدلو.

**قوله**: وَلِیُ لِلتَّبْیِیْنِ په دې کښې په هغه خلقو باندې رددې کوم چې لی لره د حق سره متعلق ګرځوئ او د رد وجه داده چې په جارباندې د مجرورد صلې تقدیم ممتنع دې.

**قوله**: بِالرَّفۡعِ إِلَى السَّمَاءِ په دې عبارت کښې اشاره ده چې دلته توفی معنی دَ مرګ نه ده ځکه چې دَ توفی معنی أخذ الشئ وافیا، یو څیز پوره پوره اخستل دی، مرګ هم دَدې یو قسم دې نه چې عین مرګ لهذا اوس دا اعتراض ختم شو چې په ظاهره معلومیږی چې تو فَیْتَنِی نه مراد مرګ وی حالانکه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام انتقال نه دې شوې.

**قوله**: وخصّ العقلُ ذاته تعالى، دَدې عبارت دَ اضافې مقصد دَ یو سوال جواب دې.

**سوال**: دادې چې على كل شئ قدير کښې پخپله الله تعالی هم په شئ کښې داخل دې ځکه چې که الله تعالی په شئ کښې داخل اونه منلې شی نودَ الله تعالی لاشئ کیدل لازمیږی راځی کوم چې ظاهره البطلان دې لهذا الله تعالی دَ اشیاء یو فرد منل ضروری دی أوكل شئ هالك نه معلومیږی چې هرشئ هلاکیدونکې دې. ؟

**جواب**: دَ جواب حاصل دادې چې الله تعالی شئ خو دې مګر دَ نورو څیزونو په شان نه دې لهذا عقل دَ الله تعالی ذات دَ څیزونو نه خاص کړو یعنی الله تعالی په هرشئ باندې قادردې مګر په خپل ذات باندې قادر نه دې ځکه چې دَ قدرت تعلق دَممکناتو سره وی نه چې واجباتو او محالاتو سره. لهذا دَ شئ نه مراد كل موجود ممکن ایجاده دې. (جمل)

## [٦] سورة الانعام

## مكيه الا وماقدرالله، الايات الثلث والا قل تعالوا الايات الثلث وهي مائة وخمس اوست وستون اية.

سورت انعام مکی دې مګر دَوماقدرواالله نه درې آیاتونه او قل تعالوا نه درې آیاتونه اودَدې تعدار ۱۶۵ یا ۱۶۶ ایات دی.

**[٦] ایاتونه: ۱-۱۰**

{الْحَمْدُ} وَهُوَ الْوَصْفُ بِالْجَمِيلِ ثَابِت {لِلّٰهِ} وَهَلِ الْمُرَاد الْإِعْلَام بِذَلِكَ لِلْإِيمَانِ بِهِ أَوِ الثَّنَاء بِهِ أَوْ هُمَا احْتِمَالَات أَفْيَدهَا الثَّالِث قَالَهُ الشَّيْخ فِي سُورَة الْكَهْف {الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَات وَالْأَرْض} خَصَّهُمَا بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُمَا أَعْظَم الْمَخْلُوقَات لِلنَّاظِرِينَ {وَجَعَلَ} خَلَقَ {الظُّلُمَات وَالنُّور} أَيْ كُلّ ظُلْمَة وَنُور وَجَمَعَهَا دُونه لِكَثْرَةِ أَسْبَابهَا وَهَذَا مِنْ دَلَائِل وَحْدَانِيّته {ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا} مَعَ قِيَام هَذَا الدَّلِيل {بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ} يُسَوُّونَ غَيْره فِي العبادة {هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ طِين} بِخَلْقِ أَبِيكُمْ آدَم مِنْهُ {ثُمَّ قَضَى أَجَلًا} لَكُمْ تَمُوتُونَ عِنْد انْتِهَائِهِ {وَأَجَل مُسَمًّى} مَضْرُوب {عِنْده} لِبَعْثِكُمْ {ثُمَّ أَنْتُمْ} أَيّهَا الْكُفَّار {تَمْتَرُونَ} تَشُكُّونَ فِي الْبَعْث بَعْد عِلْمكُمْ أَنَّهُ ابْتَدَأَ خَلْقكُمْ وَمَنْ قَدَرَ عَلَى الِابْتِدَاء فَهُوَ عَلَى الْإِعَادَة أَقْدَر {وهوالله} مستحق للعبادة {في السماوات وفي الأرض يَعْلَم سِرّكُمْ وَجَهْركُمْ} مَا تُسِرُّونَ وَمَا تَجْهَرُونَ بِهِ بَيْنكُمْ {وَيَعْلَم مَا تَكْسِبُونَ} تَعْمَلُونَ مِنْ خَيْر وَشَرّ {وَمَا تَأْتِيهِمْ} أَيْ أَهْل مَكَّة {مِنْ} صِلَة {آيَة من آيات ربهم} من القرآن {إِلَّا كَانُوا

عنها معرضين} {فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ} بالقرآن {لَمَّا جَاءَهُمْ فَسَوْفَ يأتيهم أنباء} عواقب {ما كانوا به يستهزئون} {أَلَمْ يَرَوْا} فِي أَسْفَارِهِمْ إِلَى الشَّام وَغَيْرِهَا {كَمْ} خَبَرِيَّة بِمَعْنَى كَثِيرًا {أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ قَرْنٍ} أُمَّة مِنَ الأُمَم الْمَاضِيَة {مَكَّنَّاهُمْ} أَعْطَيْنَاهُمْ مَكَانًا {فِي الْأَرْضِ} بِالْقُوَّةِ وَالسَّعَة {مَا لَمْ نُمَكِّنْ} نُعْطِ {لَكُمْ} فِيهِ الْتِفَات عَنِ الْغَيْبَة {وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ} الْمَطَر {عَلَيْهِمْ مِدْرَارًا} مُتَتَابِعًا {وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمْ} تَحْت مَسَاكِنِهِمْ {فأهلكناهم بذنوبهم} بتكذيبهم الأنبياء {وأنشأنا من بعدهم قرنا آخرين} {وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا} مَكْتُوبًا {فِي قِرْطَاسٍ} رَقّ كَمَا اقْتَرَحُوهُ {فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ} أَبْلَغ مِنْ عَايَنُوهُ لِأَنَّهُ أَنْفَى لِلشَّكِّ {لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ} مَا {هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ} تعنتا وعنادا {وَقَالُوا لَوْلَا} هَلَّا {أُنْزِلَ عَلَيْهِ} عَلَى مُحَمَّد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مَلَكٌ} يُصَدِّقهُ {وَلَوْ أَنْزَلْنَا مَلَكًا} كَمَا اقْتَرَحُوا فَلَمْ يُؤْمِنُوا {لَقُضِيَ الْأَمْرُ} بِهَلَاكِهِمْ {ثُمَّ لَا يُنْظَرُونَ} يُمْهَلُونَ لِتَوْبَةٍ أَوْ مَعْذِرَة كَعَادَةِ اللّٰه فِيمَنْ قَبْلهمْ مِنْ إِهْلَاكهمْ عِنْد وُجُود مُقْتَرَحهمْ إِذَا لَمْ يُؤْمِنُوا {وَلَوْ جَعَلْنَاهُ} أَيْ الْمُنَزَّل إِلَيْهِمْ {مَلَكًا لَجَعَلْنَاهُ} أَيْ الْمَلَك {رَجُلًا} أَيْ عَلَى صُورَته لِيَتَمَكَّنُوا مِنْ رُؤْيَته إِذْ لَا قُوَّة لِلْبَشَرِ عَلَى رُؤْيَة الْمَلَك {و} لَوْ أَنْزَلْنَاهُ وَجَعَلْنَاهُ رَجُلًا {لَلَبَسْنَا} شَبَّهْنَا {عَلَيْهِمْ مَا يَلْبِسُونَ} عَلَى أَنْفُسهمْ بِأَنْ يَقُولُوا مَا هَذَا إِلَّا بَشَر مِثْلكُمْ {وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِنْ قَبْلِكَ} فِيهِ تَسْلِيَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَحَاقَ} نَزَلَ {بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ} وَهُوَ الْعَذَاب فَكَذَا يَحِيق بِمَنْ اسْتَهْزَأَ بِك

**ترجمه:** هرتعریف دَالله تعالی دَپاره ثابت دي (او) یاخودَدي جملې خبریه نه مراد دَحمدپه ثبوت باندې دَایمان خبر ورکول دی یامراد انشاء حمد (تعریف کول) دی. یادواړه مراد دی (دا درې) احتمالات دی دریم صورت ډیر مفید دې. دا شیخ جلال الدین محلی رحمه الله په سورت کهف کښې بیان کړې دې. چاچې آسمانونه اوزمکې پیداکړې دی دا دواړه ئې په خاص توګه ځکه بیان کړی دی چې دا دواړه دَ کتونکو په نظرکښې دَټولومخلوقاتونه لوئې دی او چاچې تیارې او رڼاګانې پیداکړې یعنې هرظلمت او نور، ظلمات ئې جمع راوړې دې نه چې نور، دَ ظلمات اسباب کثیرکیدودَوجې نه اوداَ الله تعالی دَ وحدانیت دَ دلائلونه دې بیاهم کافران دَدې دلیل دَقائمیدوباوجود غیرالله دَخپل رب برابر ګرځوی یعنې غیرالله په عبادت کښې دَالله تعالی برابرګرځوی. هغه داسې ذات دې چې هغه تاسو دَ خاورې نه پیدا کړئ ستاسو نیکه آدم علیه السلام ئې دَ خاورې نه پیداکړو بیاهغه ستاسو دَ پاره موده مقررکړې دَ کومې په پوره کیدو چې به تاسومړه کیږئ اودویم وخت خاص دَالله تعالی په نیزمعین دې کوم چې ستاسو دَ بعث یعنې واپس راژوندی کیدو دې. بیاهم اې کافرانوتاسو شک کوئ. (یعنی) په بعث بعدالموت کښې شک کوئ سره دَدې چې تاسو په دې خبره پوهیږئ چې هغه تاسو دَ شروع نه پیداکړئ او څوک چې په شروع کښې په

پیدا کولوباندې قادر دې هغه دوباره پیدا کولوباندې په طریق اولی قادر دې. هم هغه الله دَ عبادت لائق دې په آسمانونو اوزمکه کښې ستاسوپه پټو او ښکاره خبرو باندې پوهیږي یعنی کومې چې تاسو په خپل مینځ کښې پټې ساتل غواړئ او ښکاره کوئی یې او څه چې تاسو کوئی هغه پیژني. (یعني) کوم خیراوشرچې تاسو کوئی هغې نه خبردار دې. اواهل مکه له چې دَ قرآن کوم یوآیت هم راغلې دې دَهغې نه ډډه کوي. په مِنْ آيَةٍ کښې مِن زائده دې هغوی حق یعني قرآن دروغ اوګنړلو کله چې هغوی ته راغلې. ډیر زر به هغوی ته دَخپل انجام خبر ملاؤ شي په کوم پورې چې به دوی مسخرې کولې آیا دا خلق شام وغیره ته دخپل دَ سفر په وخت کښې نه ګوري چې مونږ دَهغوی نه وړاندې تیرشوو امتونو نه څومره امتونه هلاک کړي دي. کَمْ خبریه په معنی دکثیر دې. چاته چې مونږ په دنیاکښې داسې قوت او وسعت ورکړې وو کوم چې مونږ تاسو ته نه دې درکړې. په دې کښې دَغیبت نه (خطاب) طرف ته التفات دې اومونږ په هغوی باندې ښه مسلسل بارانونه اووَرول اومونږ دَهغوی لاندې نهرونه اوبهیول. بیا مونږ هغوی دَ انبیاء دَتکذیب په جرم کښې هلاک کړل اومونږ دَهغوی نه پس نور قومونه پیداکړل. اوکه مونږ دَهغوی دَتجویزمطابق په کاغذباندې لیکلې شوې څه نازل کړې وې بیا به دې خلقو خپل لاسونه هغې له اوړلې هم وې (لَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ) دَعاینوه نه أبلغ دې ځکه چې لاس لګولوسره کتل دَ شك ډیرنفي کونکې دي. بیا هم دا کافران خلق دَتعصب اوعناددَ وجې وائی چې دا هیڅ هم نه دی صرف ښکاره جادو دې اودَ دغه خلقو وینا ده چې په محمد ﷺ باندې یوه فرښته ولې نازل نه کړې شوه چې دَهغه تصدیق ئی کولې اوکه چرې مونږ دَهغوی دَ غوښتنې مطابق څه فرښته نازل کړې وې (بیابه هم) دوی ایمان نه راوړلو نودوی به هلاك کړې شوې وې.اودَدوی قصه به ختمه کړې شوې وه. بیابه دوی ته دَتوبې یا معذرت مهلت نه شو ورکولې لکه څنګه چې وړاندې امتونو دَ فرمائشي معجزو ښکاره کیدونه پس هغوی ایمان رانوړو نودَهغوی هلاکول دَ الله تعالی دستور دې. که مونږ دَهغوی طرف ته فرښته نازلولې نوښکاره خبره ده چې هغه فرښته به په انساني شکل کښې وه دې دَپاره چې دوی هغه اولیدلې شي ځکه چې په دوی کښې دَ فرښتې دکتلو طاقت نشته. اوکه چرې مونږ دَهغوی طرف ته فرښته نازل کړې وې او په انساني شکل کښې مو ساتلې نو مونږ به په دوی باندې اشتباه اچوله لکه څنګه چې اوس دوی ته اشتباه کیږي چې وائی دا خو هم ستاسوپه شان انسان دې. په حقیقت کښې تانه وړاندې چې کوم انبیاء تیرشوی دی هغوی پورې هم ټوقې کړې شوې دي. په دې کښې نبي ﷺ ته تسلي ده نوهغوی هم هغه عذاب راګیرکړل په کوم پورې چې هغوی ټوقې کړی وې اوهغه عذاب وو، دغه شان خوك تاپورې ټوقې کوی نوهغوی به هم عذاب راګیر کړي.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: هَلِ الْمُرَادُ الْإِعْلَامُ بِذَلِكَ، دَدې سواليه جمله نه دَ شارح علام مقصد دا خودل دی چې الحمد (ثابت) لله، جمله خبريه په ذريعه چې د ثبوت دَحمد خبرورکړې شوې دې، ددې نه درې څيزونه مراد کيدې شی. ① ياخودَدې خبرې خبر ورکول دی چې دَالله تعالی اوصاف کماليه ازلی اوابدی دی او زمونږ په دې باندې ايمان دې. په استمرار باندې به دلالت دَ جمله اسميه دَ وجې نه وی په دې صورت کښې به جمله لفظًا اومعنىً خبريه وی.② يا مقصد إنشاء حمددې هم دا مفسرعلام أوالثناء به سره تعبيرکړې دې. په دې صورت کښې به جمله لفظًا خبريه او معنىً انشائيه وی. ③ چې دواړه مقصود وی دَدې طرف ته يې خپل قول أَوْهُمَا سره اشاره فرمائيلې ده. په دې صورت کښې به په دواړو معانيو کښې استعمال حقيقةً وی او په ړومبی صورت کښې به په خبرکښې حقيقت او انشاء حمد کښې به مجازوی. او په دويم صورت کښې په انشاء حمدکښې حقيقت اوپه خبر کښې به مجازوی. مطلب دا چې په ړومبو دواړو صورتونوکښې په يوکښې دَجملې استعمال بالاصل او دويم کښې بالتبع وی او په دريم صورت دواړو کښې دَ جملې استعمال بالاصل وی هم په دې وجه دريم صورت دَ ړومبو دواړونه ډيرفائده منددې ځکه چې په دواړو کښې استعمال مقصود بالذات دې. (دَنور تفصيل دَپاره سورت کهف اوګورئ)

**قوله**: خَلَقَ، دَجَعَلَ تفسير په خَلَقَ سره کولوکښې يئ اشاره کړې ده چې جَعَلَ په معنی دَ خَلَقَ وأنشأ دې نه چې په معنی د صَيَّرَ هم دغه وجه ده دَيومفعول طرف ته متعدی دې.

**قوله**: لِكَثْرَةِ أَسْبَابِهَا دَ ظلمت اسباب چونکه ډيردی په دې وجه ظلمات جمع راوړلې شوې ده اودَ نور قسم خو هم يودې نوځکه دا واحد راوړلې شوې دې.

**قوله**: عَوَاقِبُ: **سوال**: دَ عواقبُ مضاف محذوف منلوڅه فائده ده؟

**جواب**: ځکه چې نفس انباء خو به هم په دنياکښې معلوم شی خودَدې انجام او نتيجه به په آخرت معلومه شی هم دَدې فائدې دَپاره لفظ عواقب محذوف منلې شوې دې.

**قوله**: لِأَنَّهُ أَنْفَى لِلشَّكِّ يعنی دَ کتلوپه ځائی دَلمس استعمال په نفی د شك کښې زيات مؤثردې ځکه چې په کتلوکښې خود جادو يا د نظر بندئ دهوکه هم کيدې شی مګر په لمس لاس لګولو سره معلومولو کښې ددهوکې او مغالطې انديښنه نه وی.

**قوله**: لَلَبَسْنَا، دا دَ شرط محذوف جواب دې تقديری عبارت دادې أی لَوْجَعَلْنَاهُ رَجُلًا لَلَبَسْنَا.

[اياتونه: ١١-٢٠]

{قُلْ} لَهُمْ {سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ} الرُّسُل مِنْ هَلَاكِهِمْ بالعذاب لِيعتبروا {قُلْ لِمَنْ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ قُلْ لِلَّهِ} إنْ لَمْ يَقُولُوهُ لَا جَوَاب غَيْره {كَتَبَ عَلَى نَفْسِه} قَضَى عَلَى نَفْسه {الرَّحْمَةَ} فَضْلًا مِنْهُ وَفِيهِ تَلَطُّف فِي دُعَائِهِمْ إلَى الْإِيمَان {لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ} لِيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ {لَا رَيْبَ} شَكّ {فِيهِ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ} بِتَعْرِيضِهَا لِلْعَذَابِ مُبْتَدَأ خَبَره {فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ} {وَلَهُ} تعَالَى {مَا سَكَنَ} حَلَّ {فِي اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ} أَيْ كُلّ شَيْء فَهُوَ رَبّه وَخَالِقه وَمَالِكه {وَهُوَ السَّمِيعُ} لِمَا يُقَال {الْعَلِيمُ} بِمَا يفعل {قُلْ} لَهُمْ {أَغَيْرَ اللَّهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا} أَعْبُدهُ {فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} مُبْدِعهمَا {وَهُوَ يُطْعِمُ} يَرْزُق {وَلَا يُطْعَمُ} يُرْزَق {قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ} لِلَّهِ مِنْ هَذِهِ الْأُمَّة {و} قِيلَ لِي {لَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ} به {قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي} بِعِبَادَةِ غَيْره {عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {مَنْ يُصْرَفْ} بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ أَيْ الْعَذَاب وَلِلْفَاعِلِ أَيْ اللّٰه وَالْعَائِد مَحْذُوف {عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُ} تَعَالَى أَيْ أَرَادَ لَهُ الْخَيْر {وَذَلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ} النَّجَاة الظَّاهِرَة {وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ} بَلَاء كَمَرَضٍ وَفَقْر {فَلَا كَاشِفَ} رَافِع {لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ} كَصِحَّةٍ وَغِنًى {فَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ مَسّك بِهِ وَلَا يَقْدِر عَلَى رَدّه عَنْك غَيْره {وَهُوَ الْقَاهِرُ} الْقَادِر الَّذِي لَا يُعْجِزهُ شَيْء مُسْتَعْلِيًا {فَوْقَ عِبَادِهِ وَهُوَ الْحَكِيمُ} فِي خَلْقه {الْخَبِيرُ} ببواطنهم كظواهرهم ونزل لَمَّا قَالُوا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ائْتِنَا بِمَنْ يَشْهَد لَك بِالنُّبُوَّةِ فَإِنَّ أَهْل الْكِتَاب أَنْكَرُوك {قُلْ} لَهُمْ {أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً} تَمْيِيز مُحَوَّل عَنْ الْمُبْتَدَأ {قُلِ اللَّهُ} إنْ لَمْ يَقُولُوهُ لَا جَوَاب غَيْره هُوَ {شَهِيدٌ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ} عَلَى صِدْقِي {وَأُوحِيَ إِلَيَّ هَذَا الْقُرْآنُ لِأُنْذِرَكُمْ} أُخَوِّفكُمْ يَا أَهْل مَكَّة {بِهِ وَمَنْ بَلَغَ} عُطِفَ عَلَى ضَمِير أُنْذِركُمْ اي بلغه القرآن من الإنس والجن {أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللَّهِ آلِهَةً أُخْرَى} اسْتِفْهَام إنْكَارِيّ {قُلْ} لَهُمْ {لَا أَشْهَدُ} بِذَلِكَ {قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَإِنَّنِي بَرِيءٌ مِمَّا تُشْرِكُونَ} مَعَهُ مِنْ الْأَصْنَام {الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ} أَيْ مُحَمَّدًا بِنَعْتِهِ فِي كِتَابهمْ {كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمُ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ} مِنْهُمْ {فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ} بِهِ

**ترجمه**: ته هغوی ته اووایه په زمکه کښې اوګرځئ رااوګرځئ بیا اوګورئ چې د رسولانوتکذیب کونکو څه انجام شو دې دپاره چې تاسو عبرت حاصل کړئ. ته دَهغوی نه پوښتنه اوکړه چې په آسمانونواوزمکه کښې چې څه دی هغه دَ چادی؟ که هغوی د دې جواب درنه کړی نوورته اووایه چې دَ الله تعالی دی. ځکه چې دَدې نه علاوه دَدې (صحیح) جواب نشته. از راه کرم هغه په خپل ځان باندې رحمت لازم کړې دې په دې کښې هغوی ته په دعوت ورکولوکښې نرمی ده تاسو به الله تعالی دَ قیامت په ورځ راجمع کوی دې دپاره چې تاسو ستاسو دَ اعمالوبدله درکړی په دې کښې هیڅ شک نشته چې کوموخلقو خپل ځان عذاب ته وراندې کولوسره هم خپل نقصان کړې دې دا ایمان راوړونکی نه دی. (الذین الخ) مبتداء ده

(فهم لا یؤمنون) دَ مبتداء خبر دې اوهم دَالله تعالی دې هرهغه څیز کوم چې په شپه او ورځ کښې اوسیږی دې یعنی دَهرشی هم هغه رب دې اوهم هغه ئی خالق دې اوهم هغه ئی مالك دې او څه وینا چې کولې شی دَهغې اوریدونکې دې او په هغې باندې پوهیدونکې دې. آیا زه دَ الله تعالی نه سوا دَ بل چابندګی اوکړم هغه الله تعالی چې دَ آسمانونو اود زمکې پیداکونکې دې او هغه په خلقو خوراک کوی اوپه هغه باندې څوک خوراک نه کوی (هیڅ کله) نه، ته ورته اووایه چې ماته حکم راکړې شوې دې چې زه په دې امت کښې دَ ټولو نه رومبې اسلام راوړونکې شم او ماته وئیلی شوی دی چې ته هیڅ کله دَ شرک کونکونه مه کیږه. ته ورته اووایه چې څه دَ لوئی ورځې دَعذاب نه ویریږم اوهغه دَ قیامت ورځ ده که چرې زه دَغیرالله بندګی کولوسره دَ خپل رب نافرمانی اوکړم او کوم کس چې دَ دغه ورځې دَعذاب نه بچ کړې شو (یصرف) کښې مجهول او معروف دواړه قراءتونه دی (دَمعروف په صورت کښې) به فاعل الله تعالی وی اوعائدبه محذوف وی یقینًا الله تعالی په هغه باندې دیر لوئی رحم اوکړو یعنی دَهغه دَپاره ئی دَ خیراراده کړې ده هم دغه لویه کامیابی ده ښکاره کامیابی ده. اوکه چرې الله تعالی تاته په څه ازمیښت مثلاً بیمارئی او دَ فقر په ذریعه تکلیف دررسول اوغواړی نوهغه دَ الله تعالی نه بغیربل څوک نه شی لرې کولې اوکه چرې تاته څه خیر مثلاً صحت دراورسوی نوهغه په هرڅیزباندې قادردې او دَدې نه هغه څه هم دی کوم چې تاته دراورسیدل اوستانه دَ الله تعالی نه بغیر دَدې لرې کونکې هیڅوك نشته اوهغه په خپل بندیګانوباندې داسې قادر دې چې هیڅ څیزدَ غالب کیدو دَ وجې نه هغه عاجزکولې نه شی اوهغه دَ خپل مخلوق باره کښې باحکمت اودَهغوی دَ پټو رازونونه دَ هغوی دَ ښکاره په شان خبرلرونکې دې اوکله چې (اهل مکه) حضورپاك ته اووئیل هغه سړې پیش کړه چې ستادَ نبوت ګواهی ورکړی څکه چې اهل کتاب ستاسو (دَ نبوت) نه انکارکړې دې نودا آیت نازل شو. ته دَهغوی نه پوښتنه اوکړه چې دَ چا ګواهی دَټولونه لویه ده؟ (شهادةً) دَ مبتداء نه نقل کیدوسره تمیزدې که چرې هغوی دا جواب درنه کړی نوته ورته اووایه چې زما په صداقت باندې زما او ستاسو په مینځ کښې هم الله تعالی ګواه دې څکه چې دَدې نه علاوه بل هیڅ جواب نشته. اودا قرآن ماته دَوحی په توګه رالیږلې شوې دې دې دَپاره چې اې اهل مکه زه تاسو اوهغه کس دَدې په ذریعه اویروم چاته چې قرآن رسیدلې دې. دَ(من بلغ) عطف دَ انذرکم په ضمیرباندې دې یعنی چاته چې قرآن رسیدلې دې که هغه دَ انسانانو نه وی اوکه دَ پیریانونه وی آیا تاسو به بالکل هم دغه ګواهی ورکړئی چې الله تعالی سره نور معبودان هم شته. استفهام انکاری دې ته هغوی ته اووایه چې زه دا ګواهی نه ورکوم ته ورته اووایه چې هغه خو بس هم یو معبود دې اوبیشکه زه دَ دغه بتانونه بری یم کوم چې تاسوته هغه سره شریکوئی. کومو خلقوته چې مونږ کتاب ورکړې دې هغه محمد ﷺ په خپل کتاب کښې دَهغه دَ صفاتودَ موجود کیدو دَوجې نه

داسې پېژني لکه څنګه چې خپل ځامن پېژني په هغوی کښې چې کومو خلقو خپل ځانونه په نقصان کښې واچول په دې باندې ایمان راوړونکی نه دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ مبتدا ء فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ خبر.

**سوال**: په خبر باندې فاء په څه وجه داخل ده؟

**جواب**: ځکه چې په موصول کښې شائبۀ دشرط ده دَ څه دَ وجې نه چې په خبر کښې شائبه د جزاء ده هم په دې وجه فاء داخل ده.

**قوله**: حَلَّ، دَسَكَنَ تنسیر په حَلَّ په معنی د استقرّ سره کولو کښې یې اشاره کړې ده چې سکون سره دَدې چې دَ حرکت ضد ته وائی لیکن دلته مطلقًا استقرار مراددې. دَادَ عربو قول تقیکم الحر د قبیل نه دې أی تقیکم الحر والبردَ.

**قوله**: العَائِدُ مَحْذُوفٌ دا به يَصْرِف معروف لوستلو په صورت کښې وی. ظاهر داده چې العذابَ محذوف وی ځکه چې نحوی قاعده ده چه غیرموصول طرف ته دَ عائد حذف جائزنه دې.

**قوله**: النَّجَاةُ الظَّاهِرَةُ ځکه چې داکامیابی به بالکل ښکاره اودَهمیشه دَپاره به وی په خلاف دَ دنیاوی کامیابئ.

**قوله**: مُسْتَعْلِيًا، په دې کښې اشاره ده چې فوقَ عبادہ د القاهِرُ د ضمیرنه حال دې او استعلاءٌ نه مراد علوفی القدرة والشان دې.

**قوله**: قلِ الله، أی قل الله أکبر، لفظ اکبر محذوف دې ځکه چې مقوله مفرد نه وی.

**قوله**: هو شهيدٌ په دې کښې اشاره ده چې شهيدٌ هو مبتداء محذوف خبردې.

**سوال**: الله مبتداء او شهيد خبر منلو کښې څه قباحت دې؟ حالانکه په دې صورت کښې به د هُوَ مبتداء محذوف منلو ضرورت هم نه وی؟

**جواب**: الله مبتداء او شهيدٌ خبر ګرځول ځکه صَحیح نه دی چې الله شهيدٌ دَ أیُّ شیٍٔ أکبر شهادةً جواب واقع کیدل به صحیح نه وی ځکه چې تقدیری عبارت به داوی أیُّ شیٍٔ أکبر شهادة الله شهيد بيني وبينكم په دې کښې جواب دَ سوال مطابق نه دې.

**قوله**: عَطْفٌ عَلٰی ضمائر أُنْذِرَكُمْ یعنی دَمَنْ بَلَغَ عطف دَ أنذركم په ضمیر مفعول كُمْ باندې دې نه چې أنذرُ ضمیر مستتر فاعل باندې.

**قوله**: اي بَلَغَهُ القرآنُ په دې کښې دَ بَلَغَ د ضمیر دَفاعل دَتعین طرف ته اشاره ده.

**[ایاتونه: ۲۱ - ۳۰]**

{وَمَنْ} أيْ لَا أحَد {أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللهِ كَذِبًا} بِنِسبة الشريك له {أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ} القُرآن {إِنَّهُ} أيْ الشَّأن {لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ} بِذَلِكَ {وَ} اذكُر {يَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا} تَوْبِيخًا {أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ} أنَّهُمْ شُرَكَاء اللهِ {ثُمَّ لَمْ تَكُنْ} بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ {فِتْنَتُهُمْ} بِالنَّصْبِ وَالرَّفْعِ أيْ مَعْذِرَتهمْ {إِلَّا أَنْ قَالُوا} أيْ قَوْلهمْ {وَاللهِ رَبِّنَا} بِالْجَرِّ نَعْت وَالنَّصْب بِنِدَاء {مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ} قال تعالى {انْظُرْ} يَا مُحَمَّد {كَيْفَ كَذَبُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ} بِنَفْيِ الشِّرْك عَنْهُمْ {وَضَلَّ} غَابَ {عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ} عَلَى اللهِ مِنْ شُرَكَاء {وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ} إذَا قَرَأْت {وَجَعَلْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً} أَغْطِيَة لِ {أَنْ} لَا {يَفْقَهُوهُ} يَفْهَمُوا الْقُرْآن {وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا} صَمَمًا فَلَا يَسْمَعُونَهُ سَمَاع قَبُول {وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا حَتَّى إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ} مَا {هَذَا} الْقُرْآن {إِلَّا أَسَاطِيرُ} أَكَاذِيب {الْأَوَّلِينَ} كَالْأَضَاحِيكِ وَالْأَعَاجِيب جَمْع أُسْطُورَة بِالضَّمِّ {وَهُمْ يَنْهَوْنَ} النَّاس {عَنْهُ} عَنْ اتِّبَاع النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَيَنْأَوْنَ} يَتَبَاعَدُونَ {عَنْهُ} فَلَا يُؤْمِنُونَ بِهِ وَقِيلَ نَزَلَتْ فِي أَبِي طَالِب كَانَ يَنْهَى عَنْ أَذَاهُ وَلَا يُؤْمِن بِهِ {وَإِنْ} مَا {يُهْلِكُونَ} بِالنَّأْيِ عَنْهُ {إِلَّا أَنْفُسَهُمْ} لِأَنَّ ضَرَره عَلَيْهِمْ {وَمَا يَشْعُرُونَ} بِذَلِكَ {وَلَوْ تَرَى} يَا مُحَمَّد {إِذْ وُقِفُوا} عُرِضُوا {عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا} لِلتَّنْبِيهِ {لَيْتَنَا نُرَدُّ} إِلَى الدُّنْيَا {وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ} بِرَفْعِ الْفِعْلَيْنِ اسْتِئْنَافًا وَنَصْبهمَا فِي جَوَاب التَّمَنِّي وَرَفْع الْأَوَّل وَنَصْب الثَّانِي وَجَوَاب لو رأيت امرا عظيما قال تعالى {بَلْ} لِلْإِضْرَابِ عَنْ إِرَادَة الْإِيمَان الْمَفْهُوم مِنَ التَّمَنِّي {بَدَا} ظَهَرَ {لَهُمْ مَا كَانُوا يُخْفُونَ مِنْ قَبْلُ} يَكْتُمُونَ بِقَوْلِهِمْ {وَاللهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ} بِشَهَادَةِ جَوَارِحهمْ فَتَمَنَّوْا ذَلِكَ {وَلَوْ رُدُّوا} إِلَى الدُّنْيَا فَرْضًا {لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ} مِنَ الشِّرْك {وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ} فِي وَعْدهمْ بالإيمان {وَقَالُوا} أيْ مُنْكِرُو الْبَعْث {إِنْ} مَا {هِيَ} اي الحياة {إلا حياتنا الدنيا وما نحن بمبعوثين} {وَلَوْ تَرَى إِذْ وُقِفُوا} عُرِضُوا {عَلَى رَبِّهِمْ} لَرَأَيْت أَمْرًا عَظِيمًا {قَالَ} لَهُمْ عَلَى لِسَان الْمَلَائِكَة تَوْبِيخًا {أَلَيْسَ هَذَا} الْبَعْث وَالْحِسَاب {بِالْحَقِّ قَالُوا بَلَى وَرَبِّنَا} إِنَّهُ لَحَقّ {قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ} بِهِ فِي الدُّنْيَا

---

**ترجمه:** او د هغه چا نه لوئ بې انصافه به څوک وی؟ چې په الله تعالی باندې دَهغه طرف ته دَشريك نسبت كولو سره دَ دروغو بهتان اولګوی؟ هيڅوك نشته يا دَهغه آياتونه (يعني) قرآن دروغ اوګڼري. يقيني خبره ده چې دا قسم ظلم كونكې هيڅ كله فلاح نه شي بيا موندلې. هغه ورځ ياده كړئ په كومه ورځ چې به مونږ ټول راجمع كړو. بيا به دَ دغه مشركانو نه دَ رټنې په توګه تپوس اوكړو چې ستاسو هغه شريكان چرته دی دَ چا باره كښې چې تاسو يقين لرلو چې هغوی دَ الله تعالی سره شريك دی. بيا به هغوی سره دَدې نه سوا بل هيڅ عذر (جواب) باقی نه وی چې دا سې به وائي اې زمونږ ربه مونږ مشركان نه وو (تكن) په تاء او ياء سره دي. (او) (فتنتهم)

په نصب او رفع سره دي اوډ (فتنة) معنی معذرةً ده. (رَبِّنَا) په جرسره دَالله تعالی صفت کیدوډ وجې اوپه نصب سره دَ نداء دَ وجې، الله تعالی فرمائی اې محمد ﷺ اوګوره هغوی دَ خپلو شریکانو انکاراوکړو او په خپلو ځانونوباندې یې څنګه دروغ اووئیل. او په کومو شریکانو سره چې دې خلقو په الله تعالی باندې بهتان تړلو هغه ټول به دَهغوی نه غیب شی. اوډ دې مشرکانو نه څه داسې هم دی چې ستاسو (خبرې) طرف ته کله چې تاسو تلاوت کوئی غوږ ایږدی او مونږ دَهغوی په غوږونو باندې پردې اچولې دی دې دَپاره چې هغوی په دې قرآن باندې پوهه نه شی اودَهغوی په غوږونو کښې دروندوالې یعنی ثقل دې دَ کوم دَ وجې نه چې ئې هغوی دَ قبلولو په غوږ نه اوری که هغوی څه نخښه اووینی په هغې ایمان راوړونکی نه دی تردې چې داخلق کله تاله راځی نوتاسره جګړې کوی اوداخلق کوم چې کافران دی وائی چې دا قرآن دَ پخوانو خلقو دَ دروغو قصونه علاوه هیڅ نه دی. (أَسَاطِيْر) په وزن دَ أَضَاحِيك او أَعَاجِيب (أساطير) أُسْطُورَة جمع ده (همزه) په ضمې سره اودوی خلق ستاسو نه یعنی ستاسو دَ اتباع نه منع کوی اوپخپله هم دَهغې نه لرې اوسیږی دَ څه دهغې په وجه داخلق په تاباندې ایمان نه راوړی. او وئیلی شوی دی چې دا آیت دَ ابوطالب په باره کښې نازل شو چې (خلق) به یې د حضورپاك دَ تکلیف رسولونه منع کول او پخپله ئې ایمان نه راوړلو او دَ حضورپاك نه لرې لرې اوسیدو سره پخپله ځان په هلاکت کښې اچوی. ځکه چې دَدې نقصان به هغوی ته رسیږی خودوی په دې نه پوهیږی. اې محمد ﷺ افسوس چې تادَدوی هغه حالت لیدلو کوم وخت چې به دوی دوزخ ته وړاندې کولې شی نوهغه وخت به وائی چې افسوس مونږ دنیا ته واپس کړې شو اومونږ دَ خپل رب آیاتونه دروغ اونه ګڼړو او په ایمان والوکښې شامل شو. دَ دواړو فعلونو په رفع سره جمله مستانفه کیدو دَ وجې او جواب تمنی کیدوډ وجې دواړه په نصب سره دی اوډ اول رفع او دَ ثانی نصب هم جائزدې. اوډ لَوْ جواب لَرَأَيْتَ أَمْرًا عَظِيْمًا (محذوف) دې الله تعالی اوفرمائیل بلکه کوم څیز (شرك) چې ئې دَدې نه وړاندې پټولو هغه څیز (نن) دَهغوی مخې ته راغلې دې یعنی دَخپل قول والله ربنا ماكنا مشركين په ذریعه ئې پټولو. هغه به دَهغوی دَ انداموپه ذریعه ښکاره شی نو هغه وخت به ددې تمنا کوی. او فرض کړه که هغوی دنیا ته واپس هم کړې شی نو هغوی به هم هغه شرك کوی دکوم نه چې منع کړې شوی دی اویقینًا داخلق په خپلو وعدو او ایمان کښې بالکل دروغژن دی اومنکرین بعث دا وائی چې صرف هم دغه دَ دنیاژوندزمونږ بیا ژوندې اومونږ راژوندی کیدونکې نه یو اوکه چرې تاسو هغه وخت اوګورئی کوم وخت چې هغوی دَخپل رب په مخې ته پیش کولې شی نو تاسو به یو امر عظیم اوګورئی (الله تعالی) به دَ فرښتو په ذریعه دَ رټنې په نوګه هغوی ته وائی آیا دا بعث اوحساب حق نه دې؟ نوهغه خلق به وائی بیشکه قسم دې اې

زمونږ ربه یقیناً حق دي. الله تعالی به فرمائی نو تاسو هغه عذاب مزه او څکئ د کوم چې تاسو په دنیا کښې انکار کولو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: اُنهم شُرَکَــاءُ الله، په دې کښې اشاره ده چې دَ تَزْعُمُوْنَ دواړه مفعول دَماقبل دَ دلالت دَ وجې نه محذوف دی.

**قوله**: بالنَّصْبِ والرَّفْعِ فتنتَهم باندې نصب دَ کان دخبر مقدم کیدو دَ وجې نه دې. او اِلاَّ أن قالُوا اسم مؤخر کیدو دَوجې نه ګنی محلاً مرفوع دې او رفع دَدې نه دَ برعکس کیدو دَ وجې نه دہ.

**قوله**: أی مَعْذِرَتُهُمْ دا د فتنة تفسیر دې.

**قوله**: أی قَوْلُهُمْ په دې کښې اشاره ده چې په (أن قالوا) کښې أن مصدریه دې دې دَپاره چه استثناء صحیح شی.

**قوله**: بالجرّ نَعْتٌ والنَّصْبِ نداءٌ یعنی رَبَّنَا کښې دوه قراءتونه دی که چرې ربنا دَلفظ الله صفت وی نو په دې به جروی او که چرې یاد حرف نداء محذوف منادیٰ وی نو نصب به وی أی ربَّنَا.

**قوله**: الأسطورة، أی مـاسَطَرهُ الأوّلون مِنَ الأکـاذیب.

**قوله**: یَنْأَون مضارع جمع مذکر غائب (ف) نأیًا لرې کیدل.

**قوله**: یاللتنبیه أي مثل، ألا أوأما.

**قوله**: استینـافًا، یعنی لانکذب الخ دَسوال مقدر جواب دې أی مَـا ذاتفعلون لورددتم؟ أی لا نکذبُ ونکونُ من المؤمنین او دَ واؤ نه پس د أن تقدیر سره جواب تمنی واقع کیدو دَ وجې نه منصوب دې او یو قراءت په رفع سره نکذبُ او په نصب د نکونَ سره دې. دَاول رفع د تمنی او دَدې دَ جواب په مینځ کښې خبر واقع کیدو دَ وجې نه دې او ثانی یعنی د نکونَ نصب د جواب تمنی واقع کیدو دَوجې نه، دَ لوترې جواب محذوف دې لکه چې مفسر علام لَرَأیْتَ أمْرًا عظِیمًا وئیلو سره ښکاره کړې دې.

**قوله**: بل للاضراب، أی لابطـال مـا یُفْهَمُ من التمنی یعنی دَ تمنا دایمان نه اضراب دې ځکه چې دَهغوی دا تمنا به دَ عزم او تصدیق دَ وجې نه نه وی بلکه دَ اندامونو دَ شهادت په سبب د زجر او رسوائۍ دَ وجې نه وی.

**قوله**: وقـالوا، دَدې عطف په لَعَادُوْا باندې دې أی لورُدُّوا لَعَـادوا لِمـا نُهُوا عنه وقـالوا.

[ایاتونه: ۳۱-۴۱]

{قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللّٰه} بِالْبَعْثِ {حَتّٰى} غَايَة لِلتَّكْذِيبِ {إِذَا جَاءَتْهُمُ السَّاعَةُ} الْقِيَامَة {بَغْتَةً} فَجْأَة {قَالُوا يَا حَسْرَتَنَا} هِيَ شِدَّة التَّأَلُّم وَنِدَاؤُهَا مَجَاز أَيْ هٰذَا أَوَانك فَاحْضُرِي {عَلٰى مَا فَرَّطْنَا} قَصَّرْنَا {فِيهَا} أَيْ الدُّنْيَا {وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُورِهِمْ} بِأَنْ تَأْتِيهِمْ عِنْد الْبَعْث فِي أَقْبَح شَيْء صُورَة وَأَنْتَنه رِيحًا فَتَرْكَبهُمْ {أَلَا سَاءَ} بِئْسَ {مَا يَزِرُونَ} يَحْمِلُونَهُ حَمْلهمْ ذٰلِكَ {وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا} أَيْ الِاشْتِغَال بِهَا {إِلَّا لَعِبٌ وَلَهْوٌ} وَأَمَّا الطَّاعَة وَمَا يُعِين عَلَيْهَا فَمِنْ أُمُور الْآخِرَة {وَلَلدَّارُ الْآخِرَةُ} وَفِي قِرَاءَة وَلَدَار الْآخِرَة أَيْ الْجَنَّة {خَيْرٌ لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ} الشِّرْك {أَفَلَا يَعْقِلُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء ذٰلِكَ فَيُؤْمِنُونَ {قَدْ} لِلتَّحْقِيقِ {نَعْلَمُ إِنَّهُ} أَيْ الشَّأْن {لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ} لَك مِنْ التَّكْذِيب {فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ} فِي السِّرّ لِعِلْمِهِمْ أَنَّك صَادِق وَفِي قِرَاءَة بِالتَّخْفِيفِ أَيْ لَا يَنْسُبُونَك إِلَى الْكَذِب {وَلٰكِنَّ الظَّالِمِينَ} وَضَعَهُ مَوْضِع الْمُضْمَر {بِآيَاتِ اللّٰه} الْقُرْآن {يَجْحَدُونَ} يُكَذِّبُونَ {وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ} فِيهِ تَسْلِيَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَصَبَرُوا عَلٰى مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا حَتّٰى أَتَاهُمْ نَصْرُنَا} بِإِهْلَاكِ قَوْمهمْ فَاصْبِرْ حَتّٰى يَأْتِيك النَّصْر بِإِهْلَاكِ قَوْمك {وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللّٰه} مَوَاعِيده {وَلَقَدْ جَاءَكَ مِنْ نَبَإِ الْمُرْسَلِينَ} مَا يَسْكُن بِهِ قَلْبك {وَإِنْ كَانَ كَبُرَ} عَظُمَ {عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ} عَنْ الْإِسْلَام لِحِرْصِك عَلَيْهِمْ {فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا} سَرَبًا {فِي الْأَرْضِ أَوْ سُلَّمًا} مِصْعَدًا {فِي السَّمَاءِ فَتَأْتِيَهُمْ بِآيَةٍ} مِمَّا اقْتَرَحُوا فَافْعَلْ الْمَعْنَى أَنَّك لَا تَسْتَطِيع ذٰلِكَ فَاصْبِرْ حَتّٰى يَحْكُم اللّٰه {وَلَوْ شَاءَ اللّٰه} هِدَايَتهمْ {لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى} وَلٰكِنْ لَمْ يَشَأْ ذٰلِكَ فَلَمْ يُؤْمِنُوا {فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ} بِذٰلِكَ {إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ} دُعَاءَك إِلَى الْإِيمَان {الَّذِينَ يَسْمَعُونَ} سَمَاع تَفَهُّم وَاعْتِبَار {وَالْمَوْتٰى} أَيْ الْكُفَّار شَبَّهَهُمْ بِهِمْ فِي عَدَم السَّمَاع {يَبْعَثُهُمُ اللّٰه} فِي الْآخِرَة {ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ} يُرَدُّونَ فَيُجَازِيهِمْ بِأَعْمَالِهِمْ {وَقَالُوا} أَيْ كُفَّار مَكَّة {لَوْلَا} هَلَّا {نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ} كَالنَّاقَةِ وَالْعَصَا وَالْمَائِدَة {قُلْ} لَهُمْ {إِنَّ اللّٰه قَادِرٌ عَلٰى أَنْ يُنَزِّلَ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف {آيَةً} مِمَّا اقْتَرَحُوا {وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ} أَنَّ نُزُولهَا بَلَاء عَلَيْهِمْ لِوُجُوبِ هَلَاكهمْ إِنْ جَحَدُوهَا {وَمَا مِنْ} زَائِدَة {دَابَّةٍ} تَمْشِي {فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ} فِي الْهَوَاء {بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ} فِي تَدْبِير خَلْقهَا وَرِزْقهَا وَأَحْوَالهَا {مَا فَرَّطْنَا} تَرَكْنَا {فِي الْكِتَابِ} اللَّوْح الْمَحْفُوظ {مِنْ} زَائِدَة {شَيْءٍ} فَلَمْ نَكْتُبهُ {ثُمَّ إِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ} فَيَقْضِي بَيْنهمْ وَيَقْتَصّ لِلْجَمَّاءِ مِنَ الْقَرْنَاء ثُمَّ يَقُول لَهُمْ كُونُوا تُرَابًا {وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا} الْقُرْآن {صُمٌّ} عَنْ سَمَاعهَا سَمَاع قَبُول {وَبُكْمٌ} عَنْ النُّطْق بِالْحَقِّ {فِي الظُّلُمَاتِ} الْكُفْر {مَنْ يَشَإِ اللّٰه} إِضْلَاله {يُضْلِلْهُ وَمَنْ يَشَأْ} هِدَايَته {يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ} طَرِيق {مُسْتَقِيمٍ} دِين الْإِسْلَام {قُلْ} يَا مُحَمَّد لِأَهْلِ مَكَّة {أَرَأَيْتَكُمْ} أَخْبِرُونِي {إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللّٰه} فِي الدُّنْيَا {أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ} الْقِيَامَة الْمُشْتَمِلَة عَلَيْهِ بَغْتَة {أَغَيْرَ اللّٰه تَدْعُونَ} لَا {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي أَنَّ الْأَصْنَام تَنْفَعكُمْ فَادْعُوهَا {بَلْ إِيَّاهُ} لَا غَيْره {تَدْعُونَ} فِي الشَّدَائِد {فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ} أَنْ يَكْشِفهُ عَنْكُمْ مِنَ الضُّرّ وَنَحْوه

{إِنْ شَاءَ} كشفه {وَتَنْسَوْنَ} تتركون {مَا تُشْرِكُونَ} مَعَهُ مِنَ الْأَصْنَام فَلَا تدعوله

**ترجمه** يقينًا هغه خلق په نقصان كښې پريوتل چاچې دَ بعث (نه دَانكار په ذريعه) دَالله تعالى دَ ملاقات تكذيب اوكړو. (حتى) دَتكذيب غايت دې. تردې چې كله قيامت ناڅاپې په هغوى راشي نو دا خلق به وائي چې افسوس ارمان په دنيا كښې زمونږ په كوتاهئ باندې دَ شدت الم اظهار دې اوحسرت اوارمان ته نداء كول مجازدې. (يعنى) اې حسرت دا ستادَحاضرئى وخت دې لهذا ته حاضر شه اودَهغوى حال به دا وى چې دَخپلو ګناهونو بوج به ئې په خپلو شاګانو باندې اوچت كړې وى داسې دَبعث په وخت به دَهغوى اعمال ډيرخراب صورت اوډيرخراب بوئى سره راشي اوپه هغوى دَپاسه به سورشي. ښه واوړئى خراب به وى هغه څيز كوم چې به هغوى راباركړې وى. يعنى دَهغوى دا اعمال اوچتول (به خراب وى) دنياوى ژونديعنى په هغې كښې مشغوليدل دَ لهولعب نه سوا بل هيڅ نه دى طاعات او په دې باندې امدادكونكى څيزونه نودا د امور آخرت نه دى اودَ آخرت كوردَ شرك نه دَ بچ كيدونكودَپاره بهتردى. او په يو قراءت كښې وَلَدَارُالآخرةِ (په اضافت سره دې) يعنى جنت آيا داخلق نه پوهيږى؟ چې ايمان راوړى (يعقلون) په ياء او تاء سره دې مونږ ښه پوهيږو چې ستا دَتكذيب خبرې تاخفه كوى نو دا خلق (په حقيقت) كښې ستاتكذيب نه كوى بلكه دَ الله تعالى دَ آياتونواودَ قرآن تكذيب كوى. دَ زړه نه داخبره پيژندلودَ وجې نه چې ته رښتونې ئې او په يوقراءت كښې (يكذبوك) په تخفيف سره دې يعنى دكذب نسبت ستاسو طرف ته نه كوى بلكه په حقيقت كښې دَالله تعالى طرف ته كوى. دَاسم ضميرپه ځائى اسم ظاهرراوړلې شوې دې. تاسو نه وړاندې دَ ډيرو رسولانوتكذيب كړې شوې دې. په دې كښې دَنبى ﷺ دَپاره تسلى ده نوهغوى په دې باندې صبراوكړو اوهغوى ته تكليفونه اورسولې شو تردې چې زمونږ امدد هغوى ته اورسيدو، دَهغوى قوم هلاك كړې شو لهذا تاسو هم صبراوكړئى ترهغه وخته پورې چې ستاسوقوم هلاك كړې شي او ستاسو امداد اوكړې شي اودَالله تعالى خبريعنې وعدې لره هيڅوك بدلونكې نشته. اوتاسو له دَبعض رسولانو خبرونه راغلى دى په كوم سره چې به ستاسو دَ زړه تسكين اوشي اوكه چرې دَهغوى دَ اسلام نه اعراض ستاسو په هغوى باندې د حريص كيدودَ وجې نه په تاسو باندې سخت تيريږى نوكه چرې تاسو نه كيدې شى نو په زمكه كښې سورنګ جوړكړئى يا آسمانونوته پاوړئى اولګوئى اوكه دَهغوى فرمائشى معجزه راوړلې شئ نو راوړئى يئ، مطلب دادې چې تاسونه به اونه شى لهذا دَالله تعالى دَحكم راتلوپورې صبراوكړه اوكه الله تعالى ته دَهغوى هدايت مقصود وې نوهغه ټول به ئې (لار) دَ هدايت باندې جمع كړې وى ليكن هغه اونه غوښتل دَ كوم په وجه چې دې خلقو ايمان رانوړو. نوته په دې معامله كښې دَ نادانونه مه كيږه. ستاپه دعوت باندې هم هغه خلق لبيك

وائی چې دعبرت او پوهیدلو په ارادې سره اوري. اومړو یعنی کافر لره به کافران نی دعدم سماع د وجې نه د مړو سره تشبیه کړل. الله تعالی په آخرت کښې راژوندی کوی بیا به ټول دالله تعالی طرف ته راواپس کړې شی اودهغوی داعمالو بدله به ورکولې شی. اودمکې کافرانو اووئیل چې په هغوی باندې دهغوی د رب د طرف نه څه نخښه مثلاً اوښه همسا او خوانچې ولې نازل نه کړې شوه؟ تاسو هغوی ته اووایئی چې الله تعالی ته بیشکه ددې قدرت حاصل دې چې مطلوبه معجزه نازل کړی (ینزل) په تشدید اوتخفیف سره دې لیکن اکثرخلق ددې حقیقت نه خبرنه دی. یقیناً ددې نزول به دهغوی دپاره ازمیښت وی اودغه معجزولره د نه منلو په صورت کښې به دهغوی دهلاکت واجب کیدو د وجې نه په زمکه باندې تګ کونکو څناورو څه قسم من زائده دې او نه په هوا کښې په وزرو باندې الوتونکو مرغو څه قسم داسې چې د هغوی په تخلیق اودهغوی د رزق اودهغوی داحوالو منصوبه بندئی کښې ستاسو په شان نه وی مونږ هیڅ یو څیز نه دې پریخودې چې په لوح محفوظ کښې مو نه وی لیکلې من زائده دې بیا به ټول د خپل پروردګار طرف ته راجمع کولې شی. اوهغه به ددوی په مینځ کښې فیصله کوی اود بې ښکرو څناورو بدله د ښکرو والا څناورونه اغستلې شی بیابه هغوی ته الله تعالی اوفرمائی خاورې شئ. او کوم خلق چې زمونږد آیاتونود قرآن تکذیب کوی هغوی ددې د قبولیت په غوږونو داوریدونه کاڼه دی اودَ حق خبرې کولونه ګونګیان دی دکفرپه تیاروکښې دی الله تعالی چې څوک ګمراه کول غواړی هغه لره ګمراه کوی اوچاته چې هدایت ورکول غواړی هغه په نیغه لار یعنی په دین اسلام باندې روانوی. اې محمد ﷺ ته د اهل مکه نه تپوس اوکړه چې ماته اوښایئی چې که چرې تاسوته په دنیاکښې عذاب راشی یاناڅاپه قیامت راشی کوم چې په عذاب باندې مشتمل وی نوآیا تاسو به دالله تعالی نه بغیرله چاته آواز اوکړئی؟ نه، که چرې تاسو په دې خبره کښې رښتونی یئ چې بت به تاسو ته نفع درکړی نوهغوی ته چغه اووهئی بلکه خاص هم هغه نه دهغه غیرپه تکلیفونو کښې رابلئ که چرې هغه دا مصیبت اخواکول اوغواړی نود کوم د اخواکولو دپاره چې دهغه نه دعاکوئی اخوا کولې شی اوکوم بتان چې تاسوهغه سره شریکوئ نوهغه تاسو هیرکړئ (او) هغوی به نه رابلئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: حتی غَایَةٌ للتکذیب، مطلب دادې چې حتی دتکذیب غایت دې نه چې د خَبَرْ څکه چې دوئ د خسران هیڅ غایت نشته په خلاف دتکذیب چې په دنیاکښې خو دتکذیب سلسله جاری پاتې کیدې شی مګر دقیامت د قائمیدو نه پس به دتکذیب سلسله موقوف شی.

**قوله**: بَغْتَةًدا د بَاغتةً په معنی کښې حال دې.

**قوله**: يٰحَسْرَتَنَا مجازًڅکه چې آواز خو هغه څه ته ورکولې شی په څه کښې چې دمتوجه کیدو

صلاحيت وي. په حسرت کښې دَمتوجه کيدو صلاحيت نه وي لهذا حسرت دَعقلاء په درجې رابنکه کيدوسره آواز ورکړې دي.

**قوله**: أي الدنيا دا دَفيها دَ ضميردَ مرجع اظهاردې حالانکه په ماقبل قريب کښې چرته دَ دنياذکرنشته چونکه په ذهنی توګه دنيامعلوم اومتعين ده په دې وجه ضميردَدې طرف ته راګرځولې شوې دې لهذا دَ اضمارقبل الذکر اعتراض نه راځي.

**قوله**: حَمْلُهُمْ ذلك دامخصوص بالذم دې.

**قوله**: وَلَدارالآخِرَة، په دې کښې اضافت د موصوف الى الصفت دې کوم چې اضافت الشئ الى نفسه دَقبيل نه دې لهذا مضاف اليه محذوف منلوسره تقديرى عبارت به داسې شى وَلَدارالساعةِالآخرة.

**قوله**: ذلك داد يعقلون مفعول دې.

**سوال**: فى البرِّ دَ اضافې څه فائده ده؟

**جواب**: دَدې مقصد تعارض جواب کول دی. (تعارض) په لايکذبوك او يجحدون کښې تعارض دې ځکه چې دَ لايکذبون مطلبّ دې تکذيب نه کول اود يجحدون مطلب دې تکذيب کول؟ (جواب) يعنى تکذيب نه کوى په زړه سره اوتکذيب کوى په ژبې سره.

**قوله**: وَضعَهُ مَوْضِعَ المُضْمَرِ مطلب دادې چې لكنهم په ځائى لكن الظلمين استعمال شوې دې. حالانکه ضميرکافى وو مګر جونکه مقصد دَ کافرانو صفت ظلم بيانول وو کوم چې هم ضميرسره نه شو کيدلې. دَدې دَپاره دَدې ضمير په ځائى اسم ظاهر راوړلې دې.

**قوله**: يكذبون، يَجْحَدُونَ تفسير بكذبون سره کولوکښې اشاره ده چې يجحدون تعديه بالباء، يكذبون معنې ته متضمن کيدودَ وجې نه دې.

**قوله**: فَافْعَلْ دا دَاستطعت جواب دې اودا جمله شرطيه کيدو سره وَإِنْ كانَ كَبُرَ جواب دې.

**قوله**: فى الظلمت دادَ مبتداء خبر ثالث دې.

**قوله**: فَادْعُوْهُ دا دَ إن كنتم صادقين جواب محذوف دې.

[ايالتونه: ٤٢-٥٠]

{وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَى أُمَمٍ مِنْ} زائدة {قَبْلِك} رُسُلًا فَكَذَّبُوهُمْ {فَأَخَذْنَاهُمْ بِالْبَأْسَاءِ} شِدَّة الْفَقْر {وَالضَّرَّاءِ} الْمَرَض {لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ} يَتَذَلَّلُونَ فَيُؤْمِنُونَ {فَلَوْلَا} فَهَلَّا {إِذْ جَاءَهُمْ بَأْسُنَا} عَذَابنَا {تَضَرَّعُوا} أَيْ لَمْ يَفْعَلُوا ذَلِكَ مَعَ قِيَام الْمُقْتَضِي لَهُ {وَلَكِنْ قَسَتْ قُلُوبهمْ} فَلَمْ تَلِنْ لِلْإِيمَانِ {وَزَيَّنَ لَهُمْ الشَّيْطَان مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} مِنْ الْمَعَاصِي فَأَصَرُّوا عَلَيْهَا {فَلَمَّا نَسُوا} تَرَكُوا {مَا ذُكِّرُوا} وُعِظُوا وَخُوِّفُوا {بِهِ} مِنْ الْبَأْسَاء

والضَّرَّاء فَلَمْ يَتَّعِظُوا {فَتَحْنَا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ} مِنَ النِّعَم اسْتِدْرَاجًا لَهُمْ {حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا} فَرَح بَطَر {أَخَذْنَاهُمْ} بِالعَذَابِ {بَغْتَةً} فَجْأَة {فَإِذَا هُمْ مُبْلِسُونَ} آيِسُونَ مِن كُلّ خَيْر {فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا} أَيْ آخِرهمْ بِأَنْ اسْتُؤْصِلُوا {وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} عَلَى نَصْر الرُّسُل وَإِهْلَاك الكَافِرِينَ {قُلْ} لِأَهْلِ مَكَّة {أَرَأَيْتُمْ} أَخْبِرُونِي {إِنْ أَخَذَ اللَّهُ سَمْعَكُمْ} أَصَمَّكُمْ {وَأَبْصَارَكُمْ} أَعْمَاكُمْ {وَخَتَمَ} طَبَعَ {عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ} فَلَا تَعْرِفُونَ شَيْئًا {مَنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُمْ بِهِ} بِمَا أَخَذَهُ مِنْكُمْ بِزَعْمِكُمْ {انْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ} نُبَيِّن {الْآيَاتِ} الدَّلَالَات عَلَى وَحْدَانِيَّتنَا {ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُونَ} يُعْرِضُونَ عَنْهَا فَلَا يُؤْمِنُون {قُلْ} لَهُمْ {أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ بَغْتَةً أَوْ جَهْرَةً} لَيْلًا أَوْ نَهَارًا {هَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الظَّالِمُونَ} الكَافِرُونَ أَيْ مَا يُهْلَك إِلَّا هُمْ {وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ} مَنْ آمَنَ بِالْجَنَّةِ {وَمُنْذِرِينَ} مَنْ كَفَرَ بِالنَّارِ {فَمَنْ آمَنَ} بِهِمْ {وَأَصْلَحَ} عَمَله {فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الآخِرَة {وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ} يَخْرُجُونَ عَنْ الطَّاعَة {قُلْ} لَهُمْ {لَا أَقُولُ لَكُمْ عِنْدِي خَزَائِنُ اللَّهِ} الَّتِي مِنْهَا يَرْزُق {وَلَا} إِنِّي {أَعْلَمُ الْغَيْبَ} مَا غَابَ عَنِّي وَلَمْ يُوحَ إِلَيَّ {وَلَا أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ} مِنَ الْمَلَائِكَة {إِنْ} مَا {أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ} الكَافِر {وَالْبَصِيرُ} الْمُؤْمِن لَا {أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ} فِي ذَلِكَ فَتُؤْمِنُونَ

---

**ترجمه:** اومونږ تانه وړاندې (ډيرو) قومونوته رسول ليګلي وو مِنْ زائده دې نوهغوی دَ دوی تکذيب اوکړو نومونږ هغوی په بيمارئی اوتنګدستئی کښې راګيرکړل دې دَ پاره چې هغوی سست شی (يعنی) عاجزی اوکړی او ايمان راوړی. نوچې کله هغوی ته زمونږ عذاب اورسيدو نوهغوی عاجزی ولې اختيارنه کړه؟ يعنی هغوی عاجزی اختيار نه کړه حالانکه دَهغې مقتضی موجود وه ليکن دَهغوی زړونه (نور سخت شو دَځه دَ وجې نه چې دَ ايمان راوړو دَپاره نرم نه شو او شيطان دَهغوی خراب اعمال دَهغوی په نظرکښې ښائسته کولوسره پيش کول اوهغوی هم په دغه اعمالو باندې کلك ولاړ وو. بياچې کله هغوی دا نصيحت هيرکړو کوم چې هغوی ته شوې وو اودَ کوم په ذريعه چې دَ مصيبتونو او غمونو سره يرولې شوی وو نوهغوی نصيحت حاصل نه کړو. نو مونږ دَهغوی دَ پاره دَ سستيدو په توګه په هغوی باندې دَهرقسم خوشحالئ دروازې کولاؤکړې تردې چې کله هغوی په بخششونوکښې کبرپه طريقه مست او راګيرشو نو مونږ هغوی ناڅاپې په عذاب کښې راؤنيول (نو اوس صورت حال دا شو) چې هغوی دَهرخير نه نااميده شو. چنانچې هغه ظالم قوم جرړه پرې کړې شوله (يعنی) دَهغوی دَ آخری کس هم جرړه پرې کړې شوه په داسې توګه چې هغوی ټی ټول دَ بيخه راويستل ونی غورزول اودَ رسولانو په نصرت اودکافرانو په هلاکت تعريف هم دَ رب العالمين دَپاره دې (اې محمد ﷺ) اهل مکه ته اووايه چې تاسو ماته اوښايئې که چرې الله تعالی ستاسو نه دَ اوريدو طاقت واخلی (يعنی) تاسو کاڼره کړی او ستاسو بينائی ختمه کړی په

داسې طريقه چې تاسو رانده کړی او ستاسو په زړونو باندې مهراولګوی چې تاسو په هيڅ نه پوهيږئ دَالله تعالى نه بغيرستاسو په خيال کښې بل څوک معبودشته چې ستاسو دغه ختم کړې شوې قوتونه په ځائې کړی؟ ګورئی مونږ په خپل وحدانيت باندې څنګه بار بار دليلونه پيش کوو بياهم (هغوی) دې نه ډډه کوی دَ کوم په وجه چې هغوی ايمان نه راوړی. ته دَهغوی نه تپوس اوکړه چې تاسوکله سوچ کړې دې که چرې په تاسو باندې دَالله تعالى عذاب ناڅاپی يا په ښکاره دَ ورځې يا دَ شپې راشی نودَ ظالمانو اوکافرانونه علاوه به څوک هلاکيږی؟ يعنی دکافرانونه بغيربه بل هيڅوک نه هلاکيږی. مونږ رسول صرف دَدې دَپاره ليګو چې دَ ايمان راوړونکوته دَ جنت زيرې واوروی اوکافران دَ دوزخ نه اوويره وی نو چې چاپه هغوی ايمان راوړو اودَ خپل عمل اصلاح ئې اوکړه دَهغوی دَپاره په آخرت کښې دَ هيڅ قسم غم او خفګان موقع نشته اوڅوک چې زمونږ آياتونه دروغ اوګڼړی نوهغوی ته دَخپل ګناه دَعمل دَ وجې نه سزا ملاويږی يعنی دَهغوی دَ طاعت دَحدنه دَ وتلودَ وجې نه، (اې محمد ﷺ) ته دوی ته اووايه چې زه تاسو ته نه وايم چې ماسره دَ الله تعالى خزانې دی دکومونه چې هغه رزق رکوی او نه زه دَغيب علم لرم يعنی کوم چې مانه غائب دی اوحال داچې زما طرف ته(دَهغې باره کښې) وحی نه وی راليګلې شوې اونه زه داوايم چې دَ فرښتونه زه يوه فرښته يم زه خو صرف دَهغې وحی پيروی کوم کومه چې زما طرف ته وحی کولې شی. بيا دَهغوی نه تپوس اوکړه چې رانده (يعنی) کافر او بينا (يعنی) مؤمن دواړه برابرکيدې شی؟ نه، آيا تاسو په دې کښې غورنه کوئی؟ چې ايمان راوړئی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: مِن زائدةٌ، مِن قَبْلِكَ کښې مِن زائده دې ځکه چه ظرف دَحرف جر متقاضی نه دې.

**قوله**: رُسُلاً، دا دَ اَرْسَلْنَا مفعول محذوف دې.

**قوله**: فَكَذَّبُوْهُمْ: **سوال**: فَكَذَّبُوْهُمْ محذوف منلوکښې څه ضرورت پيښ شوې؟

**جواب**: دې دَپاره چې دَ فاخذناهم تفريع صحيح شی. تقديری عبارت به داشی، وَلَقَدْاَرْسَلْنَا إلى امم من قبلك رُسُلاً فَكَذَّبُوْهُمْ فاخذناهم ګنی صرف ارسال په رسل باندې دَمواخذه هډو سوال نه پيدا کيږی.

**قوله**: اخذهٔ منكم: **سوال**: اخذهٔ کښې ضمير واحد دَ څه دَپاره راوړلې شوې دې حالانکه دَدې مرجع جمع ده؟

**جواب**: ماخوذ دَ مذکور دَتاويل دَ وجې نه ضمير واحد راوړلې شوې دې.

**قوله**: بزعمكم: تعلق مَن الٰهٌ سره دې يعنی هغه اله کوم چې تاسو اله ګڼئ

.......

[ایاتونه: ۵۱ - ۵۵]

{وَأَنْذِرْ} خَوِّفْ {بِهِ} أَيْ الْقُرْآن {الَّذِينَ يَخَافُونَ أَنْ يُحْشَرُوا إِلَى رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُمْ مِنْ دُونِه} أَيْ غَيْرِه {وَلِيٌّ} يَنْصُرُهُمْ {وَلَا شَفِيعٌ} يَشْفَعُ لَهُمْ وَجُمْلَةُ النَّفْيِ حَال مِنْ ضَمِير يُحْشَرُوا وَهِيَ مَحَلّ الْخَوْف وَالْمُرَاد بِهِمْ الْمُؤْمِنُونَ الْعَاصُونَ {لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ} اللّٰه بِإِقْلَاعِهِمْ عَمَّا هُمْ فِيهِ وَعَمَل الطَّاعَات {وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ} بِعِبَادَتِهِمْ {وَجْهَه} تَعَالَى لَا شَيْئًا مِنْ أَغْرَاض الدُّنْيَا وَهُمْ الْفُقَرَاء وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ طَعَنُوا فِيهِمْ وَطَلَبُوا أَنْ يَطْرُدَهُمْ لِيُجَالِسُوهُ وَأَرَادَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ طَمَعًا فِي إِسْلَامِهِمْ {مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِنْ} زَائِدَة {شَيْءٍ} إِنْ كَانَ بَاطِنهمْ غَيْر مَرْضِيّ {وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ} جَوَاب النَّفْي {فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ} إِنْ فَعَلْت ذٰلِكَ {وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا} ابْتَلَيْنَا {بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ} أَيْ الشَّرِيف بِالْوَضِيعِ وَالْغَنِيّ بِالْفَقِيرِ بِأَنْ قَدَّمْنَاهُ بِالسَّبْقِ إِلَى الْإِيمَان {لِيَقُولُوا} أَيْ الشُّرَفَاء وَالْأَغْنِيَاء مُنْكِرِينَ {أَهٰؤُلَاءِ} الْفُقَرَاء {مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِنَا} بِالْهِدَايَةِ أَيْ لَوْ كَانَ مَا هُمْ عَلَيْهِ هُدًى مَا سَبَقُونَا إِلَيْهِ قَالَ تَعَالَى {أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ} لَهُ فَيَهْدِيهِمْ بَلَى {وَإِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِنَا فَقُلْ} لَهُمْ {سَلَامٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ} قَضَى {رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ أَنَّهُ} أَيْ الشَّأْن وَفِي قِرَاءَة بِالْفَتْحِ بَدَل مِنَ الرَّحْمَة {مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوءًا بِجَهَالَةٍ} مِنْهُ حَيْثُ ارْتَكَبَهُ {ثُمَّ تَابَ} رَجَعَ {مِنْ بَعْدِهِ} بَعْد عَمَله عَنْهُ {وَأَصْلَحَ} عَمَله {فَإِنَّهُ} أَيْ اللّٰه {غَفُورٌ} لَهُ {رَحِيمٌ} بِهِ وَفِي قِرَاءَة بِالْفَتْحِ أَيْ فَالْمَغْفِرَة لَهُ {وَكَذٰلِكَ} كَمَا بَيَّنَّا مَا ذُكِرَ {نُفَصِّلُ} نُبَيِّن {الْآيَاتِ} الْقُرْآن لِيَظْهَر الْحَقّ فَيُعْمَل بِهِ {وَلِتَسْتَبِينَ} تَظْهَر {سَبِيلُ} طَرِيق {الْمُجْرِمِينَ} فَتُجْتَنَب وَفِي قِرَاءَة بِالتَّحْتَانِيَّة وَفِي أُخْرَى بِالْفَوْقَانِيَّة وَنَصْب سَبِيل خِطَاب لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ترجمه: او تاسو دَ قرآن په ذريعه داسې خلق اوويروئی چې دَدې خبرې انديښنه لری چې هغوی به دَخپل رب مخې ته په داسې حالت کښې حٔی چې دَهغوی به دَهغه نه علاوه بل هيڅوک ولی نه وی چې دَهغوی امداد اوکړی شی او نه شفيع چې دَ هغوی سفارش اوکړې شی او جمله منفيه دَ يُحۡشَرُوا دَ ضميرنه حال دې او هم دغه دَ ويرې محل دې او دې نه مراد عصاة المؤمنين دې. طمع ده چې هغوی خپل معمولات پريږدی او دَ طاعت اعمال اختيار ولو سره دَ الله تعالى نه دَ ويرې لار إختيار کړی. او هغه خلق دَ (مجلس نه) مه اوباسه چې سحر مابنام دَ خپل رب عبادت کوی دَهغوی مقصد خپل عبادت نه صرف دَ الله تعالى ذات دې نه چې دَ دنيا نور څه غرض او هغه فقيران (نادار) وو او مشرکانو به دَهغوی باره کښې پيغورونه کول او دَدې خبرې غوښتنه به ئې کوله چې نبی عليه السلام دَ (مجلس) نه اوباسی دې دَپاره چې هغوی نبی عليه السلام په مجلس کښې کينی. او حضور پاك دَهغوی دَ اسلام راوړلو په خواهش دَدې اراده هم کړې وه. که دَ دغه فقيرانو باطن ناخوښه وی نو دَدوی ذره برابر حساب ستا په ذمه نشته مِنۡ زائده دې او نه يوه ذره حساب ستا دَهغوی په ذمه دې چې ته هغوی دَ

(مجلس نه) اوباسې. دا جواب نفی دې که چرې تاداسې اوکړل نو ستا شميره په ظالمانو کښې اوشي. اوهم دغه شان مونږ بعضې دَ بعضو په ذريعه په امتحان کښې اچولی دی يعنی شريف دَ کمينه په ذريعه او مالدار دَ فقيرپه ذريعه په داسې توګه چې مونږ هغوی دَ ايمان طرف ته په سبقت کولوکښې مقدم کړی دی دې دَپاره چې شريفان او غنيان منکران اووائی چې آيا هم دا فقيران دی په چاباندې چې په مونږ کښې الله تعالی دَ هدايت انعام کړې دې يعنی په کومه (طريقه) چې دوی دی که چرې هغه هدايت وې نو دَهغې طرف ته به زمونږ نه دوی سبقت نه کولو. الله تعالی اوفرمائيل آياداخبره نه ده چې الله تعالی خپل شکرکونکی ښه پيژنی چې هغوی ته هدايت ورکړی او ولې نه، اوکله چې هغه خلقو(چا چې) زمونږ په آياتونوباندې ايمان راوړې دې تاسوله راشی نوهغوی ته اووايه په تاسو دې سلامتی وی ستاسورب په خپله ذمه رحمت لازم کړې دې. دا دَهغه رحم اوکرم دې که په تاسو کښې څوک دَ ناپوهۍ دَ وجې دَڅه ګناه ارتکاب اوکړی(او) بيا دَدغه ارتکاب نه پس هغه دَ دغه ګناه نه توبه اوکړه اودَخپل عمل اصلاح ئې اوکړه نوالله تعالی هغه معاف کوی او په يوقراءت کښې دَهمزه دَ فتحې سره دې (يعنی) دَهغه دَپاره مغفرت دې اوڅنګه چې مونږ دا مذکوره مضمون بيان کړې دې هم دغه شان مونږ دَ قرآن پاك آياتونه ښکاره ښکاره بيانوو. دې دَپاره چې حق ښکاره شی او په دې عمل اوکړې شی اودې دپارهٔ چې دَ مجرمانو لار بالکل واضحه شی اودَهغې نه ډډه اوکړې شی. او په يوقراءت کښې (يَسْتَبِيْنَ) په ياء تحتانيه سره دې اوپه دويم قراءت کښې په تاء فوقانيه سره او سبيل په نصب سره دې. (په دې صورت کښې) به خطاب دَ نبی عليه السلام دَپاره وی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: وَالْجُمْلَةُ النَّفْيُ حَالٌ مِنْ ضَمِيْرِ يُحْشَرُوْا په دې کښې اشاره ده چې جمله منفيه الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ صفت نه دې څکه چې الذين معرفه ده اوجمله منفيه نکره اودَ نکره د معرفې صفت نه واقع کيږی نه اونه دَ يحشروا د ضمير صفت دې څکه چې مشهوره قاعده ده الضمير لايوصف ولايوصف به بلکه دَ يحشروادَضميرنه حال دې.

**قوله**: وَهِيَ مَحَلُّ الْخَوْفِ دَدې اضافې مقصد دَ يوسوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دَحشرنه ويرولونه څه مقصددې؟ سره دَدې چې حشرخو لامحاله واقع کيدونکې دې دَدې نه ويرول ممکن نه دی چې انداز مفيد شی.

**جواب**: محل انداز يعنی مخوف به په داسې حالت کښې حشردې چې دَهغوی به څوك والی اوامدادی نه وی. دَ الذين يخافونه نه مراد ګناهګار مؤمنان دی چې څوك دَحشر يقين اوعقيده نه لری دَهغه ويرول بې فائدې دی اوکوم چې دَ اول نه متقی دې هغه ويرول

تحصيل حاصل دي لهذا متعين شوچې دَ چادَ ويرولوحكم وركولې شى هغه عصاة المؤمنين دى.

**قوله**: جواب النفى، يعنى فَتَطْرُدَهُمْ د مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ جواب دې داد تطردَ دَ نصب دَ وجې بيان دې.

**قوله**: إن كَانَ بَاطِنُهُمْ غَيْرَ مَرْضِيّ، يعنى بقول المشركين.

**قوله**: إِنْ فَعَلْتَ ذٰلِكَ، په دې كښې اشاره ده چې فتكون دَشرط محذوف جزا مقدم ده لهذا جواب نفى د تكرار ويره ختمه شوه.

**قوله**: بالسبق أى بسبب السبق.

**قوله**: ليقولوا كښې لام دَ عاقبت دې لهذا دا اعتراض ختم شو چې دَ ابتلاء علت قول مذكور كرځول صحيح نه دى.

**قوله**: قضى، دكتبَ تفسير په قضىٰ سره كولو كښې يئ اشاره اوكړه چې مراد وعده مؤكده ده نه چې فرض اولازم.

**قوله**: وفى قِرَاءَةٍ بِالْفَتْحِ دَ فتحې په صورت كښې د رحمة نه بدل دې اودَ كسرې په صورت كښې به جمله مستانفه وى چې دَ سوال مقدر جواب وى يعنى دَرحمت په باره كښې سوال اوشو ماهى؟ او مَن عمل الخ پوره جمله دَ سوال مقدر جواب دې.

**قوله**: فالمغفرةُ له په دې كښې اشاره ده چې أنّهُ كښې أنْ سره دَ خپل اسم مبتداء دې او لَهُ دَدې خبردې.

**قوله**: لِيَظْهَرَ الْحَقُّ، دې كښې اشاره ده چې دَ لتستبين په عطف علت مقدره باندې دې لهذا په سابق باندې دَ عطف دعدم صحت شبه ختمه شوه. دَ آيات تفصيل په صيغه دَ مضارع كولو مقصد استمرار دې لهذا تخصيص بالمستقبل اعتراض ختم شو.

**قوله**: وفى قراءةٍ بالتحتانية يعنى په يوقراءت كښې ليستبين په ياء تحتانيه سره دې او السبيل دَدې فاعل دې او سبيل چونكه مذكر اومؤنث په دواړه طريقو استعماليږى لهذا دَعدم مطابقت اعتراض به هم نه وى اودَ السبيل دَ نصب په صورت كښې به دَ تستبين مفعول وى. دَ صيغه خطاب په صورت كښې به مخاطب حضورپاك ﷺ وى.

[اياتونه: ۵۶-۶۰]

{قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ} تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللّٰهِ قُلْ لَا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ} فِي عِبَادَتِهَا {قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا} إنْ اتبعتها {وما أنا من المهتدين} {قُلْ إِنِّي عَلَى بَيِّنَةٍ} بَيَان {مِنْ رَبِّي و} قد {كذبتم به} بِرَبِّي حَيْثُ أَشْرَكْتُمْ {مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ} مِنَ الْعَذَاب {إِنْ} مَا {الْحُكْمُ} فِي ذلك وغيره {إلا

لله يقضي} القضاء {الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفَاصِلِينَ} الحَاكِمِينَ وَفِي قِرَاءَة يَقُصّ أَيْ يَقُول {قُلْ} لَهُمْ {لَوْ أَنَّ عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ لَقُضِيَ الْأَمْرُ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ} بِأَنْ أَعْجَلَهُ لَكُمْ وَأَسْتَرِيح وَلَكِنَّهُ عِند الله {وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالظَّالِمِينَ} مَتَى يُعَاقِبهُمْ {وَعِنْدَهُ} تَعَالَى {مَفَاتِحُ الْغَيْبِ} خَزَائِنه أَوْ الطُّرُق الْمُوَصِّلَة إِلَى عِلْمه {لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ} وَهِيَ الْخَمْسَة الَّتِي فِي قَوْله {إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ} الآيَة كَمَا رَوَاهُ الْبُخَارِيّ {وَيَعْلَمُ مَا} يَحْدُث {فِي الْبَرِّ} القِفَار {وَالْبَحْرِ} القُرَى الَّتِي عَلَى الْأَنْهَار {وَمَا تَسْقُطُ مِنْ} زَائِدَة {وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ} عُطِفَ عَلَى وَرَقَة {إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ} هُوَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ وَالِاسْتِثْنَاء بَدَل اشْتِمَال مِنَ الِاسْتِثْنَاء قبله {وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُمْ بِاللَّيْلِ} يَقْبِض أَرْوَاحكُمْ عِند النَّوْم {وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ} كَسَبْتُمْ {بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ} أَيْ النَّهَار بِرَدّ أَرْوَاحكُمْ {لِيُقْضَى أَجَلٌ مُسَمًّى} هُوَ اجل الْحَيَاة {ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ} بِالْبَعْثِ {ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ} فيجازيكم به

---

**ترجمه**: (اې محمد ﷺ هغوی ته) اووایه دَالله تعالی نه سوا تاسوچې د چا بندګی کوئی دَهغوی دَ بندګئی نه زه منع کړې شوې يم (اوهغوی ته داهم) اووایه چې دَهغوی بندګی کولوکښې به زه ستاسو دَخواهشاتو تابعداری نه کوم که مادَ خواهشاتو تابعداری اوکړه نوزه به ګمراه شم اوزه به په هدایت یافته خلقوکښې پاتې نه شم. اووایه چې زه دَخپل رب دَ طرف نه په روښانه دلیل باندې يم اوتاسو زما رب پريخودې دې ځکه چې تاسو شرك اوکړو. دَ کوم عذاب چې تاسو تادی کوئی هغه زماپه اختیارکښې نه دې په دې معامله کښې اوپه نورو معاملاتوکښې صرف هم دَیوالله حکم چليږی هم هغه په حقه سره فیصله کوی اوهم هغه بهترفیصله کونکې دې. او په یوقراءت کښې دَ (یقض) په ځائې باندې یقصُ دې په معنی دَ یقول. اووایه که چرې هغه څيز دکوم چې تاسو تادی کوئی زما په اختیارکښې وې نوزما او ستاسو په مينځ کښې به فيصله شوې وه. په داسې توګه چې ما به په هغې کښې ستاسودَپاره تادی کړې وې او آرام به مې حاصل کړې وې ليکن هغه دَالله تعالی په اختیارکښې دې او هم الله تعالی ډير پوهيږی چې ظالمانوته کله سزا ورکول دی هم هغه سره دَ غيبودَ خزانو کنجیانې دی یا دَغیب علم ته د رسيدلو طريقې هم د هغه سره دی هغې لره دَ هغه نه علاوه بل څوك نه پيژنی اوهغه پنځه دی دکومو ذکرچې دَالله تعالی قول﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ (الآية) کښې دی کما رواه البخاری. او په بحروبرکښې چې څه ښکاره کيږی هغه ئې پيژنی(یعنی) په کولاؤ ميدانونو او هغه کلوکښې چې دَنهرونو په غاړه واقع دی. دَ ونې نه پریوتونکې یوه پاڼړه داسې نشته دکومې علم چې هغه ته نه وی اونه یوه دانه کومه چې دَزمکې په تياروکښې وی اونه اوچې اونه لمده چې په کتاب مبين (یعنی) لوح محفوظ کښې نه وی ددې عطف په وَرَقَةٍ باندې دې او (دويمه)استثناء دَخپل ماقبل استثناء نه بدل الاشتمال دې هم هغه ذات دې چې دَ شپې په خوب کښې ستاسو روحونه قبض کوی او دَ ورځې چې څه تاسو کوئې دَهغې نه هغه ښه خبردې.

ستاسو روحونه راواپس کړی (په دویمه) ورځ تاسو راژوندی کوی دې دپاره چې تاسو دَ ژوند موده پوره کړئی اوهغه دَ مدت حیات دې. آخر دَ بعث په ذریعه هم دغه طرف ته ستاسو واپسی ده بیا به هغه تاسو ته اوښائی چې تاسو څه کول او دَهغې به تاسو ته بدله درکړی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: قدکَذَّبْتُمْ **سوال**: قدمحذوف منلو څه ضرورت پیښ شو؟

**جواب**: ماضی چونکه بغیر دَقدنه حال واقع کیدې نه شی په دې وجه دلته قدمقدر او منلې شو.

**قوله**: القَضاءَالحَقَّ.

**سوال**. القضاءَ محذوف منلو څه ضرورت پیښ شو؟

**جواب**: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې الحَقّ دَمصدرمحذوف صفت کیدو دَ وجې نه منصوب دې لهذا اوس داسوال ختم شو چې الحَقّ دَ لفظ صفت کیدو دَ وجې نه مجرور دې.

**قوله**: وفي قراءة يَقُصُّ، أي يقص الحق بمعنى يقول الحق.

**قوله**: المَفَاتِحُ دا مفتح بكسرالميم جمع ده کنجی، چابی اوویلی شوی دی چې د مَفتح بفتح الميم جمع دد په معنی دَ خزانې.

**قوله**: القَفْر خالی زمکه کولاؤ میدان، القفار والقفور، دَقفرجمع ده.

**قوله**. الطُرُقُ المُوْصِله إلى عَلْمِه، دا استعاره بالکنایه په توګه دې.

**قوله**: بَدَلُ الاشْتِمَال مِنَ الإسْتِثْنَاءِ قبلهُ، یعنی إلّا في كتاب مبين داد استثناء اول یعنی د إلّا يعلمها نه بدل الاشتمال دې. دا په صاحب کشاف باندې رددې څکه چې صاحب کشاف استثناء ثانی دَ اول تاکید ګرځولې دې.

[ایاتوله: ٦١-٧٠]

{وَهُوَ الْقَاهِرُ} مُسْتَعْلِيًا {فَوْقَ عِبَادِهِ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً} مَلَائِكَةً تُحْصِي أَعْمَالَكُمْ {حَتَّى إِذَا جَاءَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ} وَفِي قِرَاءَةٍ تَوَفَّاهُ {رُسُلُنَا} الْمَلَائِكَةُ الْمُوَكَّلُونَ بِقَبْضِ الْأَرْوَاحِ {وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ} يُقَصِّرُونَ فِيمَا يُؤْمَرُونَ بِهِ {ثُمَّ رُدُّوا} أَيِ الْخَلْقُ {إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ} مَالِكِهِمْ {الْحَقِّ} الثَّابِتِ الْعَدْلِ لِيُجَازِيَهُمْ {أَلَا لَهُ الْحُكْمُ} الْقَضَاءُ النَّافِذُ فِيهِمْ {وَهُوَ أَسْرَعُ الْحَاسِبِينَ} يُحَاسِبُ الْخَلْقَ كُلَّهُمْ فِي قَدْرِ نِصْفِ نَهَارٍ مِنْ أَيَّامِ الدُّنْيَا لِحَدِيثٍ بِذَلِكَ {قُلْ} يَا مُحَمَّدُ لِأَهْلِ مَكَّةَ {مَنْ يُنَجِّيكُمْ مِنْ ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ} أَهْوَالِهِمَا فِي أَسْفَارِكُمْ حِينَ {تَدْعُونَهُ تَضَرُّعًا} عَلَانِيَةً {وَخُفْيَةً} سِرًّا تَقُولُونَ {لَئِنْ} لَامُ قَسَمٍ {أَنْجَيْتَنَا} وَفِي قِرَاءَةٍ أَنْجَانَا أَيِ اللَّهُ {مِنْ هَذِهِ} الظُّلُمَاتِ وَالشَّدَائِدِ {لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ} الْمُؤْمِنِينَ {قُلْ} لَهُمْ

{اللّٰهُ يُنَجِّيكُمْ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ {مِنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ} غَمٍّ سِوَاهَا {ثُمَّ أَنْتُمْ تُشْرِكُونَ} به {قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ} مِنَ السَّمَاءِ كَالْحِجَارَةِ وَالصَّيْحَة {أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ} كَالْخَسْفِ {أَوْ يَلْبِسَكُمْ} يَخْلِطَكُمْ {شِيَعًا} فِرَقًا مُخْتَلِفَةَ الْأَهْوَاءِ {وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ} بِالْقِتَالِ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا نَزَلَتْ هَذَا أَهْوَنُ وَأَيْسَرُ وَلَمَّا نزل ما قبله أَعُوذُ بِوَجْهِكَ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَرَوَى مُسْلِمٌ حَدِيثَ سَأَلْتُ رَبِّي أَلَّا يَجْعَلَ بَأْسَ أُمَّتِي بَيْنَهُمْ فَمَنَعَنِيهَا وَفِي حَدِيثٍ لَمَّا نَزَلَتْ قَالَ أَمَا إِنَّهَا كَائِنَةٌ وَلَمْ يَأْتِ تَأْوِيلُهَا بَعْدُ {انْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ} نُبَيِّنُ لَهُمْ {الْآيَاتِ} الدَّلَالَاتِ عَلَى قُدْرَتِنَا {لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ} يَعْلَمُونَ أَنَّ مَا هُمْ عليه باطل {وَكَذَّبَ بِهِ} بِالْقُرْآنِ {قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ} الصِّدْقُ {قُلْ} لَهُمْ {لَسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيلٍ} فَأُجَازِيكُمْ إِنَّمَا أَنَا مُنْذِرٌ وَأَمْرُكُمْ إِلَى اللّٰهِ وَهَذَا قَبْلَ الأمر بالقتال {لِكُلِّ نَبَإٍ} خَبَرٍ {مُسْتَقَرٌّ} وَقْتٌ يَقَعُ فِيهِ وَيَسْتَقِرُّ وَمِنْهُ عَذَابُكُمْ {وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ} تَهْدِيدٌ لَهُمْ {وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا} الْقُرْآنِ بِالِاسْتِهْزَاءِ {فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ} وَلَا تُجَالِسْهُمْ {حَتَّى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ وَإِمَّا} فِيهِ إِدْغَامُ نُونِ إِنْ الشَّرْطِيَّةِ فِي مَا الْمَزِيدَةِ {يُنْسِيَنَّكَ} بِسُكُونِ النُّونِ وَالتَّخْفِيفِ وَفَتْحِهَا وَالتَّشْدِيدِ {الشَّيْطَانُ} فَقَعَدْتَ مَعَهُمْ {فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَى} أَيْ تَذْكِرَةٍ {مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ} فِيهِ وَضْعُ الظَّاهِرِ مَوْضِعَ الْمُضْمَرِ وقال المسلمون إن قمنا كلما خَاضُوا لَمْ نَسْتَطِعْ أَنْ نَجْلِسَ فِي الْمَسْجِدِ وَأَنْ نَطُوفَ فَنَزَلَ {وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ} اللّٰهَ {مِنْ حِسَابِهِمْ} أَيِ الْخَائِضِينَ {مِنْ} زَائِدَةٌ {شَيْءٍ} إِذَا جَالَسُوهُمْ {وَلَكِنْ} عَلَيْهِمْ {ذِكْرَى} تَذْكِرَةٌ لَهُمْ وَمَوْعِظَةٌ {لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ} الخوض {وَذَرْ} اُتْرُكْ {الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ} الَّذِي كُلِّفُوهُ {لَعِبًا وَلَهْوًا} بِاسْتِهْزَائِهِمْ بِهِ {وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا} فَلَا تَتَعَرَّضْ لَهُمْ وَهَذَا قَبْلَ الْأَمْرِ بِالْقِتَالِ {وَذَكِّرْ} عِظْ {بِهِ} بالقرآن الناس ل {أَنْ} لَا {تُبْسَلَ نَفْسٌ} تُسْلَمَ إِلَى الْهَلَاكِ {بِمَا كَسَبَتْ} عملت {لَيْسَ لَهَا مِنْ دُونِ اللّٰهِ} أَيْ غَيْرِهِ {وَلِيٌّ} نَاصِرٌ {وَلَا شَفِيعٌ} يَمْنَعُ عَنْهَا الْعَذَابَ {وَإِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ} تَفْدِ كُلَّ فِدَاءٍ {لَا يُؤْخَذْ مِنْهَا} مَا تَفْدِي بِهِ {أُولَئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا لَهُمْ شَرَابٌ مِنْ حَمِيمٍ} مَاءٍ بَالِغٍ نِهَايَةَ الْحَرَارَةِ {وَعَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِمٌ {بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ} بكفرهم

---

**ترجمه**: هغه په خپلو بنديګانو باندې په پوره توګه سره غالب دې او په تاسو باندې نګراني فرښتې راليږي کومې چې ستاسو دَ اعمالو حساب ساتي ترڅو چې کله په تاسو کښې دَ چا دَ مرګ وخت رانيزدې شي نو زمونږ ليږلي شوي فرښتې کومې چې په روح قبض کولو باندې مقررې دَ هغه روح قبض کوي. په يو قراءت کښې توفاه دې دکوم کارچې هغوی ته حکم ورکولې شي هغوی په هغې کښې ذره برابر کوتاهي نه کوي. بيا به مخلوق دَ خپل مالک برحق طرف ته واپس شي چې باقي پاتې کيدونکې عادل دې دې دَ پاره چې هغوی له بدله ورکړي. ښه واوُره په دوئ کښې دَ هغه فيصله نافذ ده او هغه په حساب اخستلو کښې ډير تيز دې او دَ پوره مخلوق به حديث په رنړا کښې دَ دنياوي ورځو په اعتبار سره په نيمه ورځ کښې حساب اخلي. اې

محمد ﷺ دَ اهل مکه نه تپوس اوکړه چې دَ صحرااو سمندردَتیاروډ خطرونه ستاسو دَ سفرپه وخت تاسو څوک بچ کوی؟ (او څوك دي هغه) چې تاسو ئې په عاجزئی سره په زوره زوره او په پټه پټه رابلئ وایئ قسم دي لام قسمیه دې که چرې تامونږ دَدې تیارو اوتکلیف نه بچ کړو نومونږ به شکرگذار مؤمنان جوړشو او په یوقراءت کښې أَنجَانَا دې یعنی که الله تعالی مونږ بچ کړو. ته دوی ته اووایه چې الله تعالی به تاسو دَهرمصیبت نه اودَدې نه علاوه دَهرغم نه خلاصې درکړی بیاتاسو نور هغه سره شریکان گرځوئی. (يُنجِيكُمْ) په تخفیف اوتشدیدسره دې. ته ورته اووایه هغه په دې خبره باندې قادردې چې په تاسو باندې دَپاسه (یعنی) دَ آسمان نه عذاب راولیږی مثلاً کانړی اوچغه یاستاسو دَخپولاندې مثلاً په زمکه کښې مو ورخښ کړی یاتاسو دَ مختلفو خیالاتوډلې ډلې کړی او دَ جنګ په ذریعه یوې ډلې ته دَ بلې ډلې دَ طاقت مزه دراوڅکئ کله چې دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا أَهْوَنُ او آسان دی اوکوم وخت چې دَدې ماقبل نازل شو نوحضورپاك اوفرمائیل زه ستاپه ذات سره پناه غوارم(رواه البخاری) او مسلم یوحدیث روایت کړې دې چې زه درخواست کوم چې اې زما ربه ته زما دَ امت په خپل مینځ کښې اختلاف مه اچوه نوالله تعالی زه منع کړم او په یوحدیث شریف کښې دی چې کوم وخت داآیت نازل شو نوحضورپاك اوفرمائیل دا (منازعت) به بهرحال کیږی او تردې وخته پورې د دې تاویل نه دې راغلې. تاسو گورئی چې مونږ کوم کوم قسم په خپل قدرت دلالت کونکې نخښې بیانوو دې دَپاره چې هغوی په دې خبرد باندې پوهه شی چه په څه چې هغوی قائم دی هغه باطل دی. دَدې قرآن ستا قوم تکذیب اوکړو حالانکه دا رښتونې دې. ته هغوی ته اووایه چې زه په تاسو باندې مسلط کړې شوې نه یم چې زه تاسوته دَدې بدله درکړم زه خو صرف ویرونکې یم اوستاسو معامله خود الله تعالی سره ده. اوداحکم دَجهاددَحکم نه دَ وړاندې دې. دَهرخبروخت مقرردې چې په هغې کښې واقع او ښکاره شی اوهم دَدې نه ستاسو عذاب هم دې او تاسو به ډیرزر دَانجام نه خبرشئ دادَهغوی دَپاره دهمکی ده (اواې محمد ﷺ) کوم وخت چې ته اوگورې چې خلق زمونږ په آیاتونوپه قرآن کښې نکته چینی کوی نودَهغوی نه ډډه اوکړه اوهغوی سره مه کینه تردې چې هغوئ په نورو خبروکښې اخته شی اوکه شیطان تانه هیرکړی (إِمَّا) کښې د إِنْ شرطیه په مَا زانده کښې ادغام دې. (يُنسِيَنَّكَ) دَ نون په سکون اوتخفیف سره اودَ نون په تشدیداوفتحې سره (هم) دې چې ته هغوی سره کینې نو په یاد راتلوسره داسې ظالمانوخلقوسره مه کینه. په دې کښې اسم ظاهردَ اسم ضمیرپه ځائی کیخودلې شوې دې مسلمانانو اووئیل چې کله هغوی نکته چینی کوی اومونږدَهغوی نه پاسو نومونږ نه په جمات کښې کیناستې شو اونه طواف کولې شو نو (داآیت نازل شو) اوڅوک چې دَالله

تعالى نه ويريږي نود نكته چينئ كونكود حساب به دهغوى نه هيڅ مواخذه نه كيږي كله چې هغوى دوى سره ناست وى (مِنْ شيءٍ) كښې من زائده دې مګر دهغوى په ذمه د هغوى دپاره تذكيرا ونصيحت دې كيدې شى چې هغوى د نكته چيننى نه منع شى. اودداسې خلقونه تاسو په ډډه شئ چاچې خپل دين دكوم چې هغوى مكلف كړى دې دى مسخرې كولوسره لوبې توقې جوړې كړى دى اوهغوى دنياوى ژوند په دهوكه كښې اچولى دى. لهذا ته هغوى ته هيڅ تعارض مه كوه. دا حكم د جهاد دحكم نه وړاندې دې اوددې قرآن په ذريعه خلقو ته نصيحت كوه هسې نه چې نفس د خپلو د كړو د وجې نه هلاكت ته حواله كړې شى چې دهغه دپاره به دالله تعالى نه سوا نه څوك امدادى وى اونه سفارشى چې هغه دعذاب نه بچ كړې شى اوكه چرې دغه كس پوره دنياهم په فديه كښې وركړى نوبيابه هم هغه قبوله نه كړې شى هم دا هغه خلق دى چې د خپلو كړو په سبب راګيرشوى دى. دهغوى د څكلودپاره به ډيرې زياتې ګرمې اوبه وى اودهغوى دكفر په سبب به دردناك عذاب زغمى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: وَهُوَالْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ، داكلام مستانف دې په خپل مخلوق باندې د قهراوغلبې بيانولودپاره راوړلې شوې دې. هُوَ مبتداء ده القاهرُ ددې خبردې فوقَ ظرف د مستعليًا محذوف سره متعلق دې كوم چې حال دې.

**قوله** حَتّٰى إذا جاء الخ دا دحفظ اعمال غايت دې يعنى په ژوندون كښې حفاظت كوى ترمرګه پورې.

**قوله**: الْمَلٰٓئِكَةُ أى ملك الموت وَأعْوَانُهٗ.

**قوله**. حين لفظ حين مقدرمنلو كښې يئ اشاره اوكړه چې تدعونَهٗ، د نُنْجيكم دضمير مفعول نه حال دې.

**قوله**. الظلمت والشدائد، ددې اضافې مقصدد هذه اسم اشاره مؤنث د مشار اليه تعيين دې.

**قوله**: هذا مبتداء دد او أهْوَنَ وأيْسَرُ، معطوف عليه يا معطوف دمبتداء خبردې.

**قوله**: عَلَيْهِمْ ذكرى، دمبتداء كيدو د وجې نه محلاً مرفوع دې ددې خبرمحذوف دې.

**قوله**: يكفرهم دې سره اشاره اوكړه چې بما كانوا يكفرون كښې ما مصدريه ده نه چې موصوله لهذا د عدم عائد اعتراض به نه وارديږى.

[ ایاتو نه: ۷۱ - ۸۲]

{قل أندعوا} أنعبد {مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنْفَعنا} بعبادته {وَلَا يَضُرُّنَا} بتركها وهو الأصنام {وَنُرَدُّ عَلَى أَعْقَابِنَا} نرجع مشركين {بَعْدَ إِذْ هَدَانَا اللَّهُ} إلى الإسلام {كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ} أضلته {الشَّيَاطِينُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ} متحيرا لا يدري أين يذهب حال من الهاء {لَهُ أَصْحَابٌ} رفقة {يَدْعُونَهُ إِلَى الْهُدَى} أي ليهدوه الطريق يقولون له {ائْتِنَا} فلا يجيبهم فيهلك والاستفهام للإنكار وجملة التشبيه حال من ضمير نرد {قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ} الذي هو الإسلام {هُوَ الْهُدَى} وما عداه ضلال {وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ} أي بأن نسلم {لرب العالمين} {وَأَنْ} أي بأن {أَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَاتَّقُوهُ} تعالى {وَهُوَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ} تجمعون يوم القيامة للحساب {وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ} أي محقا {و} اذكر {يَوْمَ يَقُولُ} للشيء {كُنْ فَيَكُونُ} هو يوم القيامة يقول للخلق قوموا فيقوموا {قَوْلُهُ الْحَقُّ} الصدق الواقع لا محالة {وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ} القرن النفخة الثانية من إسرافيل لا ملك فيه لغيره {لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلَّهِ} {عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ} ما غاب وما شوهد {وَهُوَ الْحَكِيمُ} في خلقه {الْخَبِيرُ} بباطن الأشياء كظاهرها {وَ} اذكر {إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ} هو لقبه واسمه تارخ {أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً} تعبدها استفهام توبيخ {إِنِّي أَرَاكَ وَقَوْمَكَ} باتخاذها {فِي ضَلَالٍ} عن الحق {مُبِينٍ} بين {وَكَذَلِكَ} كما أريناه إضلال أبيه وقومه {نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ} ملك {السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} ليستدل به على وحدانيتنا {وليكون من الْمُوقِنِينَ} بها وجملة وكذلك وما بعدها اعتراض وعطف على قال {فَلَمَّا جَنَّ} أظلم {عَلَيْهِ اللَّيْلُ رَأَى كَوْكَبًا} قيل هو الزهرة {قَالَ} لقومه وكانوا نجامين {هَذَا رَبِّي} في زعمكم {فَلَمَّا أَفَلَ} غاب {قَالَ لَا أُحِبُّ الْآفِلِينَ} أن أتخذهم أربابا لأن الرب لا يجوز عليه التغير والانتقال لأنهما من شأن الحوادث فلم ينجع فيهم ذلك {فَلَمَّا رَأَى الْقَمَرَ بَازِغًا} طالعا {قَالَ} لهم {هَذَا رَبِّي فَلَمَّا أَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَمْ يَهْدِنِي رَبِّي} يثبتني على الهدى {لَأَكُونَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّالِّينَ} تعريض لقومه بأنهم على ضلال فلم ينجع فيهم ذلك {فَلَمَّا رَأَى الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هَذَا} ذكره لتذكير خبره {رَبِّي هَذَا أَكْبَرُ} من الكوكب والقمر {فَلَمَّا أَفَلَتْ} وقويت عليهم الحجة ولم يرجعوا {قَالَ يَا قَوْمِ إِنِّي بَرِيءٌ مِمَّا تُشْرِكُونَ} بالله من الأصنام والأجرام المحدثة المحتاجة إلى محدث فقالوا له ما تعبد قال {إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ} قصدت بعبادتي {لِلَّذِي فَطَرَ} خلق {السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ} أي الله {حَنِيفًا} مائلا إلى الدين القيم {وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ} به {وَحَاجَّهُ قَوْمُهُ} جادلوه في دينه وهددوه بالأصنام أن تصيبه بسوء إن تركها {قَالَ أَتُحَاجُّونِّي} بتشديد النون وتخفيفها بحذف إحدى النونين وهي نون الرفع عند النحاة ونون الوقاية عند القراء أتجادلونني {فِي} وحدانية {اللَّهِ وَقَدْ هَدَانِ} تعالى إليها {وَلَا أَخَافُ مَا تُشْرِكُونَ} {بِهِ} من الأصنام أن تصيبني بسوء لعدم قدرتها على شيء {إِلَّا} لكن {أَنْ يَشَاءَ رَبِّي شَيْئًا} من المكروه يصيبني فيكون {وَسِعَ رَبِّي كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا} أي وسع علمه كل شيء {أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ} هذا فتؤمنون {وَكَيْفَ أَخَافُ مَا أَشْرَكْتُمْ} بالله وهي لا تضر ولا

نفع {وَلَا تَخَافُونَ} أَنتُمْ مِنَ اللهِ {أَنَّكُمْ أَشْرَكْتُمْ بِاللَّهِ} فِي الْعِبَادَةِ {مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ} بِعِبَادَتِهِ {عَلَيْكُمْ سُلْطَانًا} حُجَّةً وَبُرْهَانًا وَهُوَ الْقَادِرُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ {فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِالْأَمْنِ} أَنَحْنُ أَمْ أَنتُمْ {إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ} مَنِ الْأَحَقُّ بِهِ أَيْ وَهُوَ نحن فاتبعوه قال تعالى {الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا} يَخْلِطُوا {إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ} أَيْ شِرْكٍ كَمَا فُسِّرَ بِذَلِكَ فِي حَدِيثِ الصحيحين {أولئك لهم الأمن} من العذاب {وهم مهتدون}

**ترجمه:** ته ورته اووایه چې آیا مونږ دَالله تعالی نه علاوه دَداسې څیزونو بندګی اوکړو چې نه دَهغې په بندګئی کولو سره مونږ ته نفع رسولې شي او نه په ترک بندګئی سره مونږ ته څه نقصان رسولې شي اوهغه بتان دی اوحال دادې چې الله تعالی مونږ ته دَ اسلام نیغه لارخودلې ده نوآیا مونږ مشرکان شو او اولټه خپې واپس اوګرځو دَهغه سړی په شان کوم چې شیطان په صحراګئبې ورک (ګډوډ) کړې وی اوهغه حیران ګرځی اونه پوهیږی چې کوم طرف ته لاړشي. حیران استهوانهُ دَ ضمیرنه حال دې اودَهغه ملګری هغه نیغې لارې طرف ته رابلې هغه ته وائی چې مونږ له راشه اوهغه هغوئ ته جواب ورنه کړی دَ کوم په نتیجه ګئبې هغه چې هلاک شي. استفهام دَانکاردَ پاره دې اوجمله تشبیه د نُرَدُّ ضمیرنه حال دې. اووایه چې په حقیقت ګئبې نیغې لارې ته هدایت کول صرف دَالله تعالی دی اوهغه اسلام دې. دې نه علاوه څه چې دی هغه ګمراهی ده اودَهغه دَ طرف نه مونږ ته داحکم ملاؤشوې دې چې مونږ دَ رب العالمین په وړاندې سرتسلیم ښکته کړو اومونځ قائم کړئ اودَ الله تعالی نه اوویریږئ اوهغه هغه ذات دې چې تاسو به دَ قیامت په ورځ هم دَهغه طرف ته راجمع کولې شئ. اوهم هغه ذات دې چې آسمانونه اوزمکه یئ په حق سره (په یو مقصد) پیداکړی دی اوهغه ورځ یاده کړئی په کومه ورځ چې هغه شئ ته اووائی شه نوهغه به شي اوهغه دَ قیامت ورځ ده په کومه ورځ چې به مخلوق ته وائی پاڅیږئی نو پاڅیږی به. دَهغه فرمان حق دې یعنی رښتیادې او لامحاله واقع کیدونکې دې او په کومه ورځ چې په شپیلۍ کئبې دویم پوکې دَ اسرافیل علیه السلام په ذریعه پوک وهلې شي بادشاهی به هم دَالله تعالی وی په هغه ورځ به دَ چا حکومت نه وی (لکه چې دَالله تعالی فرمان دې) لِمَنِ الملك اليوم لله، دَ پټو اوښکاره څیزونو پیژندونکې دې هغه دَ خپل مخلوق باره کئبې حکیم دې اودَ څیزونو دَ باطن نه دَهغې دَ ښکاره په شان خبردې اوهغه وخت یادکړه کوم وخت چې حضرت ابراهیم علیه السلام خپل پلار آزر ته کوم چې دَهغه لقب وو اودَ هغه نوم تارخ وو اووئیل آیا ته بتان معبود ګرځوې دَ کوم چې ته بندګی کوې. دا استفهام توبیخی دې بیشکه څه تا او ستا قوم دَدې بتانودَ عبادت دَ وجې نه دَ حق نه لرې په صریح ګمراهئی کئبې ګورم اولکه څنګه چې مونږه حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَ هغه دَ پلار اودَهغه دَ قوم ګمراهی اوخودله دغه شان مونږ حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَ آسمانونو او زمکې دَ سلطنت نظام اوخودلو دې دَپاره چې هغه دَدې په ذریعه زمونږ په وحدانیت باندې استدلال اوکړی

او دې دَپاره چې دَ دې په ذريعه (كامل) يقين كوونكو نه شي. او كذلك او دَدې مابعد جمله معترضه ده او قَالَ إِبرَاهِيمُ باندې عطف دې چې كله په هغه باندې دَ شپې تياره خوره شوه نو هغه يو ستورې اوليدلو وئيلې شوى دى چې هغه زهره وو خپل قوم ته چې دستورو عبادت به ئې كولو اووئيل ستاسو په خيال كښې دا زما رب دې خو چې كله هغه ډوب شو نو وئې وئيل زه ډوبيدونكى سره محبت نه كوم چې هغه خپل رب جوړ كړم ځكه چې په رب باندې تغير او انتقال نه راځى ځكه چې داخو دَ محدثاتو صفت دې ليكن دا دليل په هغوى موثر ثابت نه شو. بيائې چې كله سپوږمئې پرقيدونكې اوليدله نو هغوى ته ئې اووئيل دا زما رب دې بيا چې كله هغه ډوبه شوه نو وئې وئيل كه چرې زما رب زما لارخودنه نه كوله (يعني) هدايت باندې زه ثابت قدم نه ساتلم نو زه به په ګمراه خلقو كښې شامل شوې ووم (دا) په قوم باندې تعريض دې چې هغوى په ګمراهئ باندې دى. دې خبرې هم په هغوى څه اثر اونه كړو بيا چې كله ئې نمر روښانه اوليدلو نو وئې وئيل هذا دَدې خبر مذكر كيدودَ وجې نه مذكر راوړلې دې دا زما رب دې دادَ ټولو ستورو او سپوږمئې نه لوئې دې بيا چې كله هغه هم ډوب شو او په هغوى باندې حجت پوره شو خو هغوى رجوع او نه كړه نو حضرت ابراهيم عليه السلام اووئيل اې زما دَ قوم خلقو زه دَدې بتانو اودَ فناكيدونكو اجسامونه چې دَ فناكونكى محتاج دى برى يم كوم چې تاسو الله تعالى سره شريک ګرځوئې. هغوى اووئيل ته دَ چاپندګى كول غواړې وئې وئيل چې ماخو خپل مخ يوشان كيدوسره يعنى دين قيم طرف ته مائل كيدوسره هغه ذات طرف ته كړې دې چا چې آسمان اوزمكې پيداكړى دى يعنى دَالله تعالى طرف ته اوزه هيڅ كله هغه سره دَ شرك كونكو نه يم نو دَهغه قوم هغه سره حجت كول شروع كړل يعنى هغه سره يئ دَهغه دَ دين په باره كښې جګړې كړې اوهغه ئې دَ بتانو نه ويرولو كه چرې دا ئې پريخودل نو هغه ته به نقصان اورسوى. نو (حضرت ابراهيم عليه السلام) اوفرمائيل آياتاسو ماسره دَ الله تعالى دَ وحدانيت باره كښې جګړې كوئې. (أَتُحَاجُّونِّي) دَنون په تشديد او تخفيف سره دې دَ دواړو نه يوحذف كولوسره اودا دَ نحويانو په اصطلاح كښې نون رفع دې اودَ قاريانو په اصطلاح كښې نو وقايه دې اوالله تعالى دَ هدايت طرف ته زما لارخودنه كړې ده اوزه ستاسو هغه سره شريك ګرځولې بتانو نه ويريږم چې هغوئ به ماته تكليف راورسوى ځكه چې دوى ته په هيڅ څيز باندې قدرت حاصل نه دې اوكه زما رب اوغواړى چې ماته څه تكليف راورسوى نو هغه كيدې شى زما دَ رب علم په هرڅيز باندې خوردې آيا تاسو دَدې نه نصيحت نه حاصلوئې چې ايمان راوړئې؟ اوزه دَهغه څيزونونه څنګه اوويريږم كوم چې تاسو دَالله تعالى شريكان ګرځولى دى اوهغوئ نه نقصان رسولى شى اونه نفع حالانكه تاسو دَ الله تعالى نه نه ويريږئې چې تاسو په عبادت كښې هغوئ دَا لله تعالى شريكان ګرځولى دى دَ كومو

دَ عبادت باره کښې چې الله تعالی په تاسو باندې څه دلیل یا حجت نه دې قائم کړې هغه په مرڅيزباندې قادردې. نو اوښایئې په دوارو فریقو کښې دَ امن کوم یوزیات مستحق دې مونږ یا تاسو؟ که چرې تاسو پوهیږئ چې دَدې زیات څوك مستحق دې او هغه هم مونږ یو لهذا تاسو دَدې اتباع اوکړئ. الله تعالی اوفرمائیل چې دَ عذاب نه دَامن حقدار خو هم هغه دی چې ایمان ئې راوړې دې او هغوی خپل ایمان دشرک سره ګنده کړې نه دې لکه چې دَصحیحین په حدیث کښې دَظلم تفسیر په شرك سره کړې شوې دې او هم هغوئ هدایت بیاموندونکی دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: قُلْ أَنَدْعُوا، همزهٔ استفهام انکاری دَ توبیخ دَپاره ده اودَ نَدْعُوا په آخرکښې الف مشابه دَ جمع دَ وجې نه دې دا رسم الخط دمصحف عثمانی مطابق دې.

**قوله**: نُرَدُّ، مضارع مجهول متکلم دَدې عطف په نَدْعُوا باندې دې دَانکارلاندې داخل دې. نحنُ دَدې نائب فاعل مستتردې نَرجع دَ نُرَدُّ تفسیردې مشرکین دَ نُرَدُّ دضمیرنه حال دې.

**قوله**: استهوَتْهُ، دا د اِسْتِهْوَاءٌ نه ماضی واحدمؤنث غائب، هُ ضمیرمفعولی دې هغه ګمراه کړو.

**قوله**: حَيْرَانَ، په معنی د متحیر صیغه صفت مشبه دَدې مؤنث حیری دې.

**قوله**: كَالَّذِي استهوَتْهُ، دا جمله دنُرد د ضمیرنائب فاعل نه حال دې تقدیری عبارت دادې نُرَدُّ مُشبِهِيْنَ الذی استهوته الشیاطین او حیرانَ داستهوتهُ ضمیرمفعولی نه حال دې.

**قوله**: ذُكِّرَ لِتَذْكِيْرِ خَبَرِه، دادَ یو اعتراض جواب دې.

**اعتراض**: دَ هذا مرجع الشمس دې چې مؤنث سماعی دې لهذا اسم اشاره هم هذه پکاردی ودَپاره چې اسم اشاره او مشار الیه کښې مطابقت راشي.

**جواب**: کله چې په اسم اشاره او مشار الیه کښې مطابقت نه وی نودَخبررعایت کولې شي.

**[ایاتونه: ۸۳-۹۰]**

{وَتِلْكَ} مُبْتَدَأ وَيُبْدَل مِنْهُ {حُجَّتُنَا} الَّتِي احْتَجَّ بِهَا إبْرَاهِيم عَلَى وَحْدَانِيَّة اللَّه مِنْ أُفُول الْكَوْكَب وَمَا بَعْده وَالْخَبَر {آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ} أَرْشَدْنَاهُ لَهَا حُجَّة {عَلَى قَوْمه نَرْفَع دَرَجَات مَنْ نَشَاء} بِالْإِضَافَةِ وَالتَّنْوِين فِي الْعِلْم وَالْحِكْمَة {إنَّ رَبّك حَكِيم} فِي صُنْعه {عَلِيم} بِخَلْقِهِ {وَوَهَبْنَا لَهُ إسْحَاق وَيَعْقُوب} ابْنه {كُلًّا} مِنْهُمَا {هَدَيْنَا وَنُوحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْل} أَيْ قَبْل إبْرَاهِيم {وَمِنْ ذُرِّيَّته} أَيْ نُوح {دَاوُد وَسُلَيْمَان} ابْنه {وَأَيُّوب وَيُوسُف} بْن يَعْقُوب {وَمُوسَى وَهَارُون وَكَذَلِكَ} كَمَا جَزَيْنَاهُمْ {نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ} {وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَى} ابْنه {وَعِيسَى} ابْن مَرْيَم يُفِيد أَنَّ الذُّرِّيَّة تَتَنَاوَل أَوْلَاد الْبِنْت {وَإِلْيَاس} ابْن أَخِي هَارُون أَخِي مُوسَى {كُلّ} مِنْهُمْ {مِنْ الصَّالِحِينَ} {وَإِسْمَاعِيل} ابْن إبْرَاهِيم {وَالْيَسَع} اللَّام زَائِدَة {وَيُونُس وَلُوطًا}

بن هَارَانِ أَخِي إِبْرَاهِيم {وَكُلًّا} مِنْهُمْ {فَضَّلْنَا عَلَى العالمين} بالنبوة {وَمِنْ آبَائِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ} عُطِفَ عَلَى كُلًّا أَوْ نُوحًا وَمِنْ لِلتَّبْعِيضِ لِأَنَّ بَعْضَهُمْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَلَد وَبَعْضهمْ كَانَ فِي وَلده كافر {واجتبيناهم} اخترناهم {وهديناهم إلى صراط مستقيم} {ذَلِكَ} الدِّين الَّذِي هُدُوا إِلَيْهِ {هُدَى اللَّه يَهْدِي بِهِ مَنْ يَشَاء مِنْ عِبَاده وَلَوْ أَشْرَكُوا} فرضا {لحبط عنهم ما كانوا يعملون} {أُولَئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمْ الْكِتَاب} بِمَعْنَى الْكُتُب {وَالْحُكْم} الْحِكْمَة {وَالنُّبُوَّة فَإِنْ يَكْفُر بِهَا} أَيْ بِهَذِهِ الثَّلَاثَة {هَؤُلَاءِ} أَيْ أَهْل مَكَّة {فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا} أَرْصَدْنَا لَهَا {قَوْمًا لَيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ} هُمْ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَار {أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى} هُمْ {اللَّه فَبِهُدَاهُمْ} طَرِيقهمْ مِنْ التَّوْحِيد وَالصَّبْر {اقْتَدِهْ} بِهَاءِ السَّكْت وَقْفًا وَوَصْلًا وَفِي قِرَاءَة بِحَذْفِهَا وَصْلًا {قُلْ} لِأَهْلِ مَكَّة {لَا أَسْأَلكُمْ عَلَيْهِ} أَيْ الْقُرْآن {أَجْرًا} تُعْطُونِيهِ {إِنْ هُوَ} مَا الْقُرْآن {إِلَّا ذِكْرَى} عِظَة {لِلْعَالَمِينَ} الْإِنْس وَالْجِنّ

**ترجمه:** دا زمونږ حجت دې چې مونږ ابراهيم عليه السلام ته ورکړو (یعنی) مونږ دَ حضرت ابراهیم عليه السلام دَ حجت طرف ته رهنمائی اوکړه په کوم سره چې حضرت ابراهیم عليه السلام دَ الله تعالی په وحدانیت دَ ستورود ډوبیدو اودَ مابعدنه استدلال اوکړو او په خپل قوم ئې حجت قائم کړو. تلك مبدل منه او حجتنا بدل دې، بدل مبدل منه مبتداء شوه او آتينا ابراهيم دَ مبتداء خبردې اومونږ چې دَ چاد پاره غواړو په علم اوحکمت کښې درجات اوچتوو. (ترفع درجات) په اضافت (یعنی بغیر تنوین) اوتنوین سره دې. بیشکه ستا رب په خپل صنعت کښې باحکمت (او) دَ خپل مخلوق دَحالاتونه خبر دې. او مونږ ابراهيم عليه السلام ته اسحاق عليه السلام او يعقوب بن اسحاق عليه السلام ورکړو او مونږ په هغوی کښې هريوته هدايت ورکړو اودَ ابراهيم عليه السلام نه وړاندې مونږ نوح عليه السلام ته هدايت ورکړو اودَنوح عليه السلام دَ ذريت نه داؤد عليه السلام اوسليمان عليه السلام بن داؤد او ايوب عليه السلام او يوسف عليه السلام بن يعقوب عليه السلام ته اوموسى عليه السلام ته اوهارون عليه السلام ته هدايت ورکړو اولکه څنګه چې مونږ دوی ته بدله ورکړه هم دغه شان مونږ نيکانوخلقو ته بدله ورکوو. اوزکريا عليه السلام ته اودَهغه ځوئی يحيى ته او عيسى ابن مريم عليه السلام ته (هدايت ورکړو) دې نه داخبره مستفادکيږی چې دَ لور اولاد هم په ذريت کښې شامل دې او دَ موسىٰ د رور د هارون عليه السلام وراره الياس عليه السلام (ته مو هدايت ورکړو) اوداټول دَ نيکانوخلقونه وو او اسماعيل عليه السلام ابن ابراهيم ته او يسع عليه السلام (اليسع) کښې لام زائده دې او يونس ته اودَ ابراهيم رور هاران ځوئی لوط عليه السلام ته مونږ دَدوی نه هريو ته په دنیاوالوباندې دَ نبوت په ذريعه فضيلت ورکړو. بل دَ دوی پلاران اونيکونه اودَهغوی اولاد او دَهغوی دَ رونړو نه (ډيروته انعام ورکړو) عطف ياخو په کلاً باندې دې ياپه نوحاً باندې اومِنْ دَ تبعيض دَپاره دې ځکه چې په دوی کښې دَ بعضو اولادنه وو اوپه دوی کښې دَبعضو اولاد کافران وو. او مونږ هغوی منتخب کړل او نيغه لارموورته اوخودله دا دين دکوم طرف ته چې دَهغوی رهنمائی اوکړې شوه دَالله تعالی هدايت

دي دَدې په ذريعه په خپلو بندیګانو کښې چا له چې غواړي لارخودنه کوی اوکه فرض کړه که هغوی شرک کړې وې نو دَهغوی ټول کړه به غرق کړې شوې وو. داخلق داسې وو چې مونږ هغوی ته کتاب په معنی دکتب اوحکمت اونبوت ورکړو اوکه چرې دا مکې والادَدريواړو انکار کوی (نوکوی دې) مونږ دَ دې (نعمتونو) دَپاره داسې خلق مقرر کړی دی څوک چې دَدې نه منکرنه دی اوهغه مهاجرین او انصار دی (اې محمد ﷺ) هم دغه هغه خلق ووچاته چې الله تعالی هدایت ورکړې وو نوته هم دَدوی دَ توحید او صبر په طریقه لاړشه وقفًا وصلاً دَها، په سکوت سره او په یو قراءت کښې حالت وصل کښې د باء په حذف سره، ته اهل مکه ته اووایه چې زه په قرآن باندې تاسو نه هیڅ اجرت نه غواړم کوم چې تاسو ماته راکوئی دا قرآن خو یونصیحت دې دَدنیاوالودَپاره که انسانان دی او که پیریان.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: وَيُبْدَلُ منهُ، په دې کښې اشاره ده چې تلك اسم اشاره ده حجتنا مشارالیه دواړه یوځائی مبتداء دی او آتیناها دَدې خبر، (دویم ترکیب) تلك مبتداء حجتنا خبر اول او آتیناه جمله خبر ثانی.

**قوله**: التي احتَجّ دادَ تلك دَ مشار الیه بیان دې.

**قوله**: أَرْشَدْنَاهُمَا: **سوال**: دَ آتینا تفسیر په اَرْشَدْنَا سره دکولو څه فائده ده؟

**جواب**: چونکه حجت دَ ورکړې څیزنه دې په دې وجه یې دَ آتینا تفسیر په اَرْشَدْنَا سره کړې دې.

**قوله**: حُجَّةً عَلى قَوْمِه: **سوال**: لفظ حُجَّةً محذوف دَڅه وجې نه اومنلې شو؟

**جواب**: دې خبرې ته دَاشارې کولودَپاره چې علی قومه، د حجة محذوف متعلق دې نه چې دَ آتینا، څکه چې دَ إيتاء صله علی نه راځی.

**قوله**: أي نوح، دَدې اضافې مقصد د ذریته دَ ضمیر مرجع متعین کول دی او هغه نوح دې نه چې ابراهیم څکه چې یونس او لوط د ابراهیم عليه السلام دَ ذریت نه نه دی حالانکه دَدې دواړو عطف په مذکورین باندې دې.

**قوله**: ابن أخي هارون أخي موسى: **سوال**: الیاس ابن أخي موسىٰ مختصر تعبیریې پریخودو او مذکوره اوږد تاویل تعبیر یې ولې اختیارکړو؟

**جواب**: په دې تعبیرکښې دې طرف ته اشاره ده چې حضرت هارون عليه السلام دَحضرت موسىٰ عليه السلام حقیقی رور نه دې بلکه دَمورشریك رور ئی دې مګردا قول ضعیف دې.

**قوله**: اليسع اللام زائدة، الیسع باندې الف لام زائده دې څکه چې علم باندې الف لام نه داخلیږی.

**قوله**: لِأَنَّ بَعْضَهُمْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَلَدٌ وَبَعْضُهُمْ كَانَ فِي وَلَدِهِ كَافِرٌ لِأَنَّ نه ومن آبائهم کښې د مِنْ تبعیضیه کیدو د وجه بیان کړې شوې ده ځکه چې که من تبعیضیه اونه منلې شي نو په آیت کښې د ذکرشوو ټولو خلقو اولاد به په هدایت یافته لازمیږي، حالانکه د بعضو خو په هغوی کښې اولاد نشته مثلاً دحضرت یحیٰی علیه السلام او په هغوی کښې بعضو د بعضې اولاد کافران کیدل متعین دي لکه دحضرت نوح علیه السلام ځوئې کنعان.

**قوله**: اُقْتَدِهْ: **سوال**: ددې نه معلومیږي چې نبی علیه السلام د سابقین انبیاء کرامو تابع وو نبی علیه السلام ته د دوی د اقتداء حکم ورکولې شي.

**جواب**: من التوحيد والصبر اضافه هم ددې سوال جواب دې اقتداء اومتابعت صبر على الايذاء وتوحید کښې مراد دې نه چې مرفوع دین کښې.

**قوله**: هَاءِ السَّكْتِ، هغه هاء ته وائی چې د کلمې د وقف په وخت زائده کولې شي اوآخری حرف متحرك وي. وئیلې شوي دي چې اقتده کښې هاء د مصدرد ضمیرده أی اقتدالاقتداء. (حاشیه جلالین)

**قوله**: وَقْفًا وَوَصْلًا، یعنی وصل د وقف تابع کولو سره.

**قوله**: وَبِحَذْفِهَا د اد اصل مطابق دي.

**[ایاتونه: ۹۱-۹۴]**

{وَمَا قَدَرُوا} أَيِ الْيَهُود {اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ} أَيْ مَا عَظَّمُوهُ حَقَّ عَظَمَته أَوْ مَا عَرَفُوهُ حَقّ مَعْرِفَته {إِذْ قَالُوا} لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ خَاصَمُوهُ فِي الْقُرْآن {مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِنْ شَيْءٍ قُلْ} لَهُمْ {مَنْ أَنْزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي جَاءَ بِهِ مُوسٰى نُورًا وَهُدًى لِلنَّاسِ يَجْعَلُونَهُ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء فِي الْمَوَاضِع الثَّلَاثَة {قَرَاطِيس} أَيْ يَكْتُبُونَهُ فِي دَفَاتِر مُقَطَّعَة {يُبْدُونَهَا} أَيْ مَا يُحِبُّونَ إِبْدَاءَهُ مِنْهَا {وَيُخْفُونَ كَثِيرًا} مِمَّا فِيهَا كَنَعْتِ مُحَمَّد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَعُلِّمْتُمْ} أَيُّهَا الْيَهُود فِي الْقُرْآن {مَا لَمْ تَعْلَمُوا أَنْتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ} مِنَ التَّوْرَاة بِبَيَانِ مَا الْتَبَسَ عَلَيْكُمْ وَاخْتَلَفْتُمْ فِيهِ {قُلِ اللّٰهُ} أَنْزَلَهُ إِنْ لَمْ يَقُولُوهُ لَا جَوَاب غَيْره {ثُمَّ ذَرْهُمْ فِي خَوْضِهِمْ} بَاطِلِهِمْ {يَلْعَبُونَ} {وَهٰذَا} الْقُرْآن {كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ مُصَدِّقُ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ} قَبْله مِنَ الْكُتُب {وَلِتُنْذِرَ} بِالتَّاء وَالْيَاء عُطِفَ عَلَى مَعْنَى مَا قَبْله أَيْ أَنْزَلْنَاهُ لِلْبَرَكَةِ وَالتَّصْدِيق وَلِتُنْذِرَ بِهِ {أُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا} أَيْ أَهْل مَكَّة وَسَائِر النَّاس {وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهٖ وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ} خَوْفًا مِنْ عِقَابهَا {وَمَنْ} أَيْ لَا أَحَد {أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا} بِادِّعَائِهِ النُّبُوَّة وَلَمْ يُنَبَّأْ {أَوْ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ وَلَمْ يُوحَ إِلَيْهِ شَيْءٌ} نَزَلَتْ فِي مُسَيْلِمَة {وَمَنْ قَالَ سَأُنْزِلُ مِثْلَ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ} وَهُمُ الْمُسْتَهْزِئُونَ قَالُوا لَوْ نَشَاء لَقُلْنَا مِثْل هٰذَا {وَلَوْ تَرٰى} يَا مُحَمَّد {إِذِ الظَّالِمُونَ} الْمَذْكُورُونَ {فِي غَمَرَاتِ} سَكَرَات {الْمَوْتِ

وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُوا أَيْدِيهِمْ} إِلَيْهِمْ بِالضَّرْبِ وَالتَّعْذِيبِ يَقُولُونَ لَهُمْ تَعْنِيفًا {أَخْرِجُوا أَنفُسَكُمْ} إِلَيْنَا لِنَقْبِضَهَا {الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ} الْهَوَانِ {بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ} بِدَعْوَى النُّبُوَّةِ وَالْإِيحَاءِ كَذِبًا {وَكُنتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ} تَتَكَبَّرُونَ عَنِ الْإِيمَانِ بِهَا وَجَوَابُ لَوْ رَأَيْتَ أَمْرًا فَظِيعًا {و} يُقَالُ لَهُمْ إِذَا بُعِثُوا {لَقَدْ جِئْتُمُونَا فُرَادَى} مُنْفَرِدِينَ عَنِ الْأَهْلِ وَالْمَالِ وَالْوَلَدِ {كَمَا خَلَقْنَاكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ} أَيْ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا {وَتَرَكْتُم مَّا خَوَّلْنَاكُمْ} أَعْطَيْنَاكُمْ مِنَ الْأَمْوَالِ {وَرَاءَ ظُهُورِكُمْ} فِي الدُّنْيَا بِغَيْرِ اخْتِيَارِكُمْ {و} يُقَالُ لَهُمْ تَوْبِيخًا {مَا نَرَى مَعَكُمْ شُفَعَاءَكُمُ} الْأَصْنَامَ {الَّذِينَ زَعَمْتُمْ أَنَّهُمْ فِيكُمْ} أَيْ فِي اسْتِحْقَاقِ عِبَادَتِكُمْ {شُرَكَاءُ} لِلَّهِ {لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ} وَصْلُكُمْ أَيْ تَشَتَّتَ جَمْعُكُمْ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالنَّصْبِ ظَرْفٌ أَيْ وَصْلُكُمْ بَيْنَكُمْ {وَضَلَّ} ذَهَبَ {عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ} فِي الدُّنْيَا مِنْ شَفَاعَتِهَا

---

**ترجمه**: یهودوله چې څنګه دَالله تعالی قدرکول پکاروو یعنی چې څنګه تعظیم کول پکاروو هغه شان ئې اونه کړو یا چې څنګه دَ معرفت حق وو هغه شان حق ئې ادانه کړو. کله یئ چې د نبی ﷺ سره په قرآن کښې مخاصمت کولو سره اووئیل چې الله تعالی په یوانسان باندې هم څه څیزنه دې نازل کړي. ته دَهغوی نه تپوس اوکړه چې هغه کتاب چانازل کړو کوم چې موسی ﷺ راوړې ووهغه کیفیت داوو چې هغه دَخلقو دَپاره هدایت وو کوم چې تاسو په متفرق پاڼړو کښې کیخودوسره پریخودې دې یعنی هغه مو په متفرق اوراق یعنی پاڼړو کښې لیکلې کیخودې دې. (تجعلونَهٗ) په دریواړو مقاماتو کښې په یاء اوتاء سره دې کوم چې تاسو ظاهروئ یعنی په هغې کښې چې کومې خبرې تاسو ظاهرول خوښوئی هغه ښکاره کوئی او دَدې ډیرزیاتې خبرې تاسو پټوئی مثلاً دَ محمد ﷺ صفات (علامات) او اې یهودیانو تاسو ته په قرآن کښې ډیرڅه خودلې شوی دی هغه څیزونه ئې بیان کړل کوم چې ستاسو دَپاره مشتبه شو او په کومو کښې چې تاسو اختلاف کړې دې دَکوم چې په تورات کښې نه تاسو ته علم وو اونه ستاسو پلارانو اونیکونو ته که چرې هغوی جواب ورنه کړی (اقرار اونه کړی) نو ته ورته پخپله اووایه داالله تعالی نازل کړې دې بیا هغوی په خپلو خرافاتو کښې لوبوکولو دَپاره پریږده دا (هم داسې) کتاب دې کوم چې مونږ نازل کړې دې ډیر دَ لوئی برکت والا دې اودَ خپل ځان نه دَ مخکینو کتابونو تصدیق کونکې دې (اودَدې دَپاره نازل کړې شوې دې) چې دَمکې والوته اودَ دې دَ اطرافووالو لره یعنی اهل مکه اوټول خلق اوویروې (ینذرَ په تاء او یاء سره دې دَخپل ماقبل په معنی باندې عطف دې یعنی مونږ دا دَبرکت دَپاره اوتصدیق دَپاره اودَدې په ذریعه دَ ویرولو دَپاره نازل کړې دې کوم خلق چې په آخرت باندې ایمان لری په هغه دې (قرآن) باندې هم ایمان لری اوهغوی دَآخرت دَعذاب دَ ویرې نه دَخپلو مونځونو پابندی کوی اودَ هغه چا نه به لوئی ظالم څوک وی هیڅوک به نه وی چې په الله تعالی باندې یئ دَ دروغو بهتان اولګولو دَ نبوت دعوی ئې اوکړه حالانکه هغه نبی نه دې یا اووائی چې په ما باندې وحی نازل

کړې شوې ده حالانکه په هغه باندې هیڅ څیزنه دې نازل کړې شوې (دا آیت) د مسیلمه کذاب په باره کښې نازل شو اوهغه سړې چې داسې اووائي چې څنګه دَالله تعالی کلام نازل شوې دې زه هم داسې کلام راوړلې شم او (داسې ویناکونکې) توقې مسخرې کونکی دی (اوبعض) وینا کونکو اوویل که چرې مونږ اوغواړو نو مونږ هم داسې کلام راوړلې شو. افسوس اې محمد ﷺ چې تا دغه مذکوره ظالمان په داسې حالت کښې لیدلي وې چې کوم وخت هغوی دَ مرګ په سختو کښې وی او فرښتې ئې وهی ټکوی اودَ عذاب دَپاره دَهغوی طرف ته لاس وړاندې کولوسره په سختئی وائي خپل روحونه زمونږ طرف ته راوباسئ دې دَپاره چې مونږ په هغې قبضه اوکړو نن به تاسو دَ دغه خبرو بدل کښې دکوم چې تاسو دَنبوت او دوحی نازلیدو ناحقه دعویٰ کولوسره په الله تعالی باندې دَ دروغو تهمت لګولې وو دَ ذلت نه ډک عذاب به درکولې شی اودَهغه دَ آیاتونو په مقابله کښې به موتکبر کولو. (یعنی) په هغې باندې دَ ایمان راوړلونه به مو کبرکولو اودَ لَوْ جواب لَرَأَيْتَ امرًا فظيعًا (محذوف) دې نوتا به یو ویرونکې نظاره لیدلې وې اوکله چې دوی دوباره راژوندی کړې شی نو دوی ته به وئیلی شی چې تاسو راغلئ یوازې مونږ له بغیردَ مال او اهل وعیال نه لکه څنګه چې په شروع کښې مونږ تاسو پیداکړی وئ بربنډې خپې، ناسنته او کوم څه چې مونږ تاسو ته مال (اومتاع په دنیاکښې) درکړې وو هغه ټول مو په دنیاکښې مجبوراً شاته پریخودل اوراغلئ اوهغوی ته به توبیخاً وئیلی شی مونږ تاسو سره ستاسو سفارشی بتان نه وینو دَ چاباره کښې چې ستاسو عقیده وه چې هغوی ستاسو دَعبادت په استحقاق کښې دَالله تعالی سره شریک دی. واقعی ستاسو په مینځ کښې خو قطع تعلق ثابت شو یعنی ستاسو هغه ګنړه ګډه وډه شوه او په یو قراءت کښې په نصب سره ظرف دې یعنی ستاسو دَخپل مینځ تعلقات اوستاسو هغه دعوی ختمه شوه کومه چې تاسو په دنیاکښې دَهغوی دَ سفارش په باره کښې کوله.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اى اليَهُوْدُ، دَمَاقَدَرُوْا فاعل یهودښکاره کولوسره دَمشرکانو احتمال دفع کړو ځکه چې تجعلونه قراطيس دَمشرکانودَحال سره مناسب نه دې چونکه مشرکان هډو اهل کتاب نه وو چې قراطیس ئې متفرق کولو.

**قوله**: فِي الْمَوَاضِعِ الثَّلٰثَةِ، أى تجعلونه،تبدونها،تخفونها.

**قوله**: قَرَاطِيْسَ، دَ قرطاس جمع ده جدا جدا پاڼې.

**قوله**: أي يَكْتُبُوْنَهُ فِي دَفَاتِرَ.

**سوال**: دَ قراطيس حمل په الكتاب باندې صحيح نه دې ځکه چې د تجعلونه قراطيس څه مطلب نشته؟

**جواب:** مفسرعلام مذکوره عبارت محذوف منلوسره هم دَدې اعتراض جواب کړې دې یعنی هغوی به تورات په متفرقو دفاتروکښې لیکلو.

**قوله:** أَنْزَلَهُ په دې کښې اشاره ده چې الله مبتداء دې اوأنزله خبرمحذوف دې. قرینه مَنْ أنزل ده أنزل محذوف منلوسره دَ یوسوال جواب هم مقصوددې.

**سوال:** الله، د قل فعل امر مقوله ده اودَ مقولې دَ پاره جمله کیدل ضروری دی حالانکه لفظ الله مفرددې؟

**جواب:** لفظ الله نه پس أنزل محذوف دې الله أنزل جمله دَ قل مقوله ده.

**قوله:** عَطْفٌ عَلٰى مَعْنٰى مَاقَبْلَهُ دادَ ماقبل په معنی باندې عطف دې نه چې دَ محذوف علت، تقدیری عبارت دادې وأنزلناه لتنذر الخ ځکه چې حذف دَ ضرورت په وخت کیږی اودلته ضرورت نشته.

**قوله:** وَلَوْ تَرٰى يَا مُحَمَّدُ، دَ ترى مفعول د الظلمون دَ دلالت دَ وجې نه محذوف دې. أى ترى الظالمين يا محمد.

**قوله:** حُفَاةً، عراةً، غُرلاً، دَ حُفَاة واحد حافٍ وحافى برېنډې خپې، دَعُراة واحد عار، برېنډبدن، دَغُرلاً واحد أَغْرَل ناسنته.

**قوله:** بَيْنَكُمْ، که چرې بينکم مرفوع اولوستلې شی نودَ تقطع فاعل به شی اوکه چرې منصوب اولوستلې شی نو دَ ظرف په بناباندې به وی اوفاعل به په تقطع کښې ضمیرشی چې دَاتصال طرف ته راجع دې په کوم چې ماقبل یعنی شرکاء دلالت کوی. مفسرعلام هم دې طرف ته په خپل قول أی وَصْلُكُمْ بَيْنَكُمْ سره اشاره کړې ده.

**[ایاتوله: ۹۵-۱۰۰]**

{إِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ} شاقّ {الْحَبِّ} عَنِ النَّبَاتِ {وَالنَّوٰى} عَنِ النَّخْلِ {يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ} كالإنسان والطائر من النطفة والبيضة {مِن الحى ذٰلِكُمُ} الْفَالِقُ الْمُخْرِجُ {اللّٰهُ فَأَنّٰى تُؤْفَكُونَ} فَكَيْفَ تُصْرَفُونَ عَنِ الإِيمَانِ مَعَ قِيَامِ الْبُرْهَانِ {فَالِقُ الْإِصْبَاحِ} مَصْدَرٌ بِمَعْنَى الصُّبْحِ أَيْ شَاقّ عَمُودِ الصُّبْحِ وَهُوَ أَوَّلُ مَا يَبْدُو مِنْ نور النهار عن ظلمة الليل {وجاعل اللَّيْلِ سَكَنًا} تَسْكُنُ فِيهِ الْخَلْقُ مِنَ التَّعَبِ {وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ} بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى مَحَلِّ اللَّيْلِ {حُسْبَانًا} حِسَابًا لِلْأَوْقَاتِ أَوِ الْبَاءُ مَحْذُوفَةٌ وَهُوَ حَالٌ مِنْ مُقَدَّرٍ أَيْ يَجْرِيَانِ بِحُسْبَانٍ كَمَا فِي آيَةِ الرَّحْمٰنِ {ذٰلِكَ} الْمَذْكُورُ {تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ} فِي مُلْكِهِ {الْعَلِيمِ} بِخَلْقِهِ {وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ} فِي الْأَسْفَارِ {قَدْ فَصَّلْنَا} بَيَّنَّا {الْآيَاتِ} الدَّلَالَاتِ عَلَى قُدْرَتِنَا {لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ} يتدبرون {وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَكُمْ} خَلَقَكُمْ {مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ} هِيَ آدَم

{فَمُسْتَقَرٌّ} مِنكُمْ فِي الرَّحِم {وَمُسْتَوْدَعٌ} مِنكُمْ فِي الصُّلْب وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ الْقَاف أَيْ مَكَان قَرَار لَكُمْ {قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَفْقَهُونَ} مَا يُقَال لَهُمْ {وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا} فِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة {بِهِ} بِالْمَاءِ {نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ} يَنْبُت {فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ} أَيْ النَّبَات شَيْئًا {خَضِرًا} بِمَعْنَى أَخْضَر {نُخْرِجُ مِنْهُ} مِنْ الْخَضِر {حَبًّا مُتَرَاكِبًا} يَرْكَب بَعْضه بَعْضًا كَسَنَابِلِ الْحِنْطَة وَنَحْوهَا {وَمِنَ النَّخْلِ} خَبَر وَيُبْدَل مِنْهُ {مِنْ طَلْعِهَا} أَوَّل مَا يَخْرُج مِنْهَا وَالْمُبْتَدَأ {قِنْوَانٌ} عَرَاجِين {دَانِيَةٌ} قَرِيب بَعْضهَا مِنْ بَعْض {و} اخرجنا به {جنات} بَسَاتِين {مِنْ أَعْنَابٍ وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا} وَرَقهمَا حَال {وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ} ثَمَرهَا {انْظُرُوا} يَا مُخَاطَبُونَ نَظَر اعْتِبَار {إِلَى ثَمَرِهِ} بِفَتْحِ الثَّاء وَالْمِيم وَبِضَمِّهِمَا وَهُوَ جَمْع ثَمَرَة كَشَجَرَة وَشَجَر وَخَشَبَة وَخُشُب {إِذَا أَثْمَرَ} أَوَّل مَا يَبْدُو كَيْفَ هو {و} إلى {ينعه} نُضْجه إِذَا أَدْرَكَ كَيْفَ يَعُود {إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ لَآيَاتٍ} دَلَالَات عَلَى قُدْرَته تَعَالَى عَلَى الْبَعْث وَغَيْره {لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ} خُصُّوا بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُمْ الْمُنْتَفِعُونَ بِهَا فِي الْإِيمَان بِخِلَافِ الْكَافِرِينَ {وَجَعَلُوا لِلَّهِ} مَفْعُول ثَانٍ {شُرَكَاءَ} مَفْعُول أَوَّل وَيُبْدَل مِنْهُ {الْجِنَّ} حَيْثُ أَطَاعُوهُمْ فِي عِبَادَة الْأَوْثَان {و} قد {خلقهم} فكيف يكونون شُرَكَاء {وَخَرَقُوا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد أَيْ اخْتَلَقُوا {لَهُ بَنِينَ وَبَنَاتٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ} حَيْثُ قَالُوا عُزَيْر بن الله وَالْمَلَائِكَة بَنَات الله {سُبْحَانَهُ} تَنْزِيهًا لَهُ {وتعالى عما يصفون} بان له ولدا

**ترجمه:** بیشکه تخم شلولوسره بوټی راویستونکې او هډوکې څیرلوسره دَ کهجورې ونه راویستونکې هم الله تعالی دې هغه دَ ساه والا دَ بې ساه والانه لکه انسان اومرغنی دنطفې او هګئی نه او بې ساه مثلاً نطفه او هګئی دَ ساه والا نه راویستونکې دې. دا شلونکې او راویستونکې الله تعالی دې نوتاسو څرته اولټه روان یئې اوتاسودِدلیل دَ موجودیدونه باوجودخَنګه دَ ایمان نه راوړئی. هغه دَ «شپې پرده څیرلوسره» دَسحرراویستونکې دې.
«الاصباح» مصدر په معنی صبح دې یعنی هغه دَ سحرستن «صبح کاذب» شلونکې دې او دَ سحر ستن دَتیارې شپې نه راوتونکې ورځ هغه رنړا ته وائی چې په شروع کښې راښکاره کیږی اوشپه ئی دَ آرام څیز جوړکړو چې په دې کښې مخلوق دَ ستومانتیانه آرام حاصلوی اودَ ضبط اوقات دَ پاره یې دَنمر سپوږمئی حساب مقررکړو. په نصب سره دَاللَّیل په محل عطف دې یا باء محذوف ده «ای بِحُسْبَانٍ» په دې صورت کښې به دَمقدرنه حال وی ای بحریان بِحُسْبَانٍ لکه چې په سورت رحمن کښې دی دا مذکوره «حساب» په خپل ملك کښې دغالب دَ خپل مخلوق په باره کښې دَ باخبرمقررکړې شوې دې اوهغه داسې دې چې ستاسودَپاره ئی ستوری پیداکړل دې دَپاره چې تاسو دَدې په ذریعه دَ بحروبرپه تیارو کښې دسفرپه دوران کښې رهنمائی حاصله کړئی. بیشکه مونږ په خپل قدرت باندې دلالت کونکی دلائل ښکاره ښکاره بیان کړل دَ داسې خلقو دَپاره چې غور اوفکرکوی اوهغه داسې ذات دې چاچې تاسو دَ یوسړی نه پیداکړئی «او» هغه حضرت آدم علیه السلام دې. پس دَمور رحم

ستاسو دَپاره دَ حصار يدو ځائی دې او (دَپلار شا) ستاسو دَپاره دَامانت ځائی دې او په يو قراءت کښې دَ قاف په فتحې سره دې يعنی ستاسو دَپاره دَ قرارځائی، **بيشکه مونږ دلائل دَ پوهه خلقو دَپاره ښکاره ښکاره بيان کړل. هغه داسې ذات دې چې دَآسمان** (اوريځو) **نه ئې اوبه رااورولې** په دې کښې دَ غائب نه (دَتکلم طرف ته) التفات دې **اودَدغه اوبو په ذريعه راټوکيدونکی هرقسم شينکې راوټوکول بيا مونږ دَ دغه شينکو نه يو شين څيز**(فصل) **راوټوکولو**، خضرًا په معنی د أخضر دې **مونږ دَ دغه فصل نه قط په قط اينختې دانې پيدا کړې چې** خپل مينځ کښې په يوبل باندې ورختلې وی لکه دَغنمو وغيره وګی اوپلی **اودَ کهجور غونچې** (من النخل)خبر (مقدم) دې اومَن طلعِها ددې نه بدل دې (طلعْ) هغه څيز ته وائی چې په شروع کښې د کهجورې ونې نه دَ خپلو غلافونو نه راوځی **او قنوان** دانية مبتداء مؤخره قنوان په معنی دَعراجين په معنی دَ ښاخ عَرَاجين دَ عرجون جمع ده دکوم معنی چې ښاخ ده **کوم چې په ټيټو ښاخونو کښې وی** يوبل سره نيزدې وی **اومونږ په اوبوسره دَ انګورو، زيتونو اود انارو باغونه راپيدکړل چې دَدې دواړو پاڼې دَيوبل په شان وی.** (مشتبهًا) حال دې اودَهغې ميوې يوشان نه دی. **اې مخاطبينو! دَدې ميوې دَعبرت په سترګوا وګورئی په** (ثمر) کښې ثاء اودَميم په فتحې اودَ دواو په ضمې سره دې دا دَثَمَرَةٌ جمع ده لکه د شَجَرَةٌ جمع شَجَرٌ ده اودَ خَشَبَةٌ جمع خَشَبٌ ده. **کله چې هغه په رومبی ځل ميوه راوړی نوهغه څنګه وی؟ اودَهغې دَ پخيدو**(حالت) **ته اوګورئی** کله چې هغه دَ فائدې اخستې شی نو څنګه وی؟ **بيشکه په دې کښې دَايمان والو دَپاره** دَ بعث بعدالموت وغيره **دلائل دی.** دَ مؤمنانو ذکر په خاص توګه ځکه کړې شوې دې چې دَ کافرانو خلاف مؤمنان دَدې دلائلو نه دَايمان په باره کښې استفاده کوی **اوخلقو پيريان دَ الله تعالى شريک ګرځولی دی** الله دَ جَعَلُوا مفعول ثانی دې او شرکاء مفعول اول دې اوالجنّ دَ شرکاء نه بدل دې ځکه چې هغوی دَبتانو په عبادت کولو کښې دَهغوی اطاعت کړې دې **حالانکه پخپله دغه خلق هم الله تعالى پيد کړی دی نو پيريان دَهغه څنګه شريکيدې شی؟ اودې خلقو دَالله تعالى دَپاره بغيردَپوهې نه ځامن اولونړه مقرر کړی دی** (خرقوا) په تخفيف اوتشديد سره دې ځکه چې هغوی اووئيل عزير عليه السلام دَالله تعالى ځوئی دې او فرښتې دَالله تعالى لونړه دی. **الله تعالى دَدې نه پاک دې اود هغه صفتونو نه اوچت دې کوم چې دوی بيانوی** چې دَ هغه اولاد دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** يُخرِجُ الحيَّ مِنَ الميّت دا جمله کلام مستانف قائمقام دَماقبل د علت ده اوداهم احتمال دې چې دَ إنَّ خبرثانی وی، اودَحيّ نه هرهغه څيزمراددې په کوم کښې چې نمو وی که هغه ساه والا وی اوکه بې ساه، اودَميّت نه هرهغه څيز مراد دې په کوم کښې چې نمو نه وی.

**قوله**: مُخْرِج، دَدې عطف په فَالِقُ باندې دې هم په دې وجه بې د مخرج په ځائې مخرج دَاسم فاعل صيغه راوړلې ده دې دَپاره چې عطف صحيح شي او يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ دفالق الحب والنوى بيان دې. هم په دې وجه واؤ ترك كولو سره بې يُخرج وئيلې دې.

**سوال**: ومخرج الميت من الحيّ بيان ولې نه شي واقع كيدې؟

**جواب**: ځكه چې فالق الحب والنوى، اِخْرَاجُ الحيّ من الميت دَ جنس نه دې نه چې دَدې عكس حالانكه دَبيان او مبين مفهوم كښې مطابقت ضروري دې.

**قوله**: فكيف تصرفون الخ، د أنّى تؤفكون تفسير په كيف تصرفون سره كولو بې كښې اشاره اوكړه چې دا استفهام انكاري دې.

**قوله**: مصدرٌ يعنى الإصباح، دَ افعال مصدر دې دَ كوم معنى چې دخول فى الصبح ده مګر دلته دامعنى مراد نه ده بلكه مراد نفس صبح دې. مصدر وئيلو سره دَمصدر اثر يعنى صبح مراد دې اودَ كوفيينو په نيز دَ جاعل په ځائې جَعَلَ دې ځكه چې دَهغوى په نيز دَفعل عطف په اسم باندې جائز دې.

**قوله**: عَلٰى مَحَلِّ اللَّيْلِ، دَليل محل دَجاعل مفعول كيدو دَ وجى نه منصوب دې.

**قوله**: هوحَالٌ مِنَ الْمُقَدَّرِ يعنى حُسْبَانًا دَ يَجْرِيَانِ مقدر نه حال دې. كه چرې مفسرعلام دَ مقدرنه حال كيدو په ځائې مقدر سره متعلق دې فرمائيلې وې نو ډيره به بهتروه.

**قوله**: قِنْوَانٌ، دا قنْوٌ جمع ده په معنى د غونچې.

**[اياتونه:۱۰۱-۱۱۰]**

هو {بديع السماوات والأرض} مُبْدِعهمَا مِنْ غَيْر مِثَال سَبَقَ {أَنَّى} كَيْفَ {يَكُون لَهُ وَلَد وَلَمْ تَكُنْ لَهُ صَاحِبَة} زَوْجَة {وَخَلَقَ كُلّ شَيْء} مِنْ شَأنه أنْ يُخلَق {وهوبكل شيء عليم} {ذَلِكُمْ اللَّه رَبّكُمْ لَا إلَه إلَّا هُوَ خَالِق كُلّ شَيْء فَاعْبُدُوهُ} وَحِّدُوهُ {وَهُوَ عَلَى كل شيء وكيل} حفيظ {لَا تُدْرِكهُ الْأَبْصَار} أَيْ لَا تَرَاهُ وَهٰذَا مَخْصُوص لِرُؤْيَةِ الْمُؤْمِنِينَ لَهُ فِي الْآخِرَة لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وُجُوه يَوْمئِذٍ نَاضِرَة إلَى رَبّهَا نَاظِرَة} وَحَدِيث الشَّيْخَيْنِ إنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ الْقَمَر لَيْلَة الْبَدْر وَقِيلَ الْمُرَاد لَا تُحِيط بِهِ {وَهُوَ يُدْرِك الْأَبْصَار} أَيْ يَرَاهَا وَلَا تَرَاهُ وَلَا يَجُوز فِي غَيْره أَنْ يُدْرِك الْبَصَر وَهُوَ لَا يُدْرِكهُ أَوْ يُحِيط بِهِ عِلْمًا {وَهُوَ اللَّطِيف} بِأَوْلِيَائِهِ {الْخَبِير} بِهِمْ قُلْ يَا مُحَمَّد لَهُمْ {قَدْ جَاءَكُمْ بَصَائِر} حجج {من ربكم فمن أبصر} ها فَآمَنَ {فَلِنَفْسِهِ} أَبْصَرَ لِأَنَّ ثَوَاب إبْصَاره لَهُ {وَمَنْ عَمِيَ} عَنْهَا فَضَلَّ {فَعَلَيْهَا} وَبَال إضلاله {وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ} رَقِيب لِأَعْمَالِكُمْ إنَّمَا انا نذير {وَكَذَلِكَ} كَمَا بَيَّنَّا مَا ذُكِرَ {نُصَرِّف} نُبَيِّن {الْآيَات} لِيَعْتَبِرُوا {وَلِيَقُولُوا} أَيْ الْكُفَّار فِي عَاقِبَة الأمر {دارست} ذَاكَرْت أَهْل الْكِتَاب وَفِي قِرَاءَة دَرَسْت أَيْ كتب الماضين وجئت بهذا منها {ولنبينه

لقوم يعلمون} {اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ} أيْ القرآن {لا إله إلا هو وأعرض عن المشركين} {وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكُوا وَمَا جَعَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا} رَقِيبًا فَتُجَازِيهِمْ بِأعْمَالِهِمْ {وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيلٍ} فَتُجْبِرهُمْ عَلَى الإيمَان وَهَذَا قَبْل الأمْر بِالْقِتَالِ {وَلَا تَسُبُّوا الَّذِينَ يَدْعُونَ} هُمْ {مِنْ دُونِ اللَّهِ} أيْ الأصْنَام {فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا} اعْتِدَاء وَظُلْمًا {بِغَيْرِ عِلْمٍ} أيْ جَهْلًا مِنْهُمْ بِاللَّهِ {كَذَلِكَ} كَمَا زَيَّنَّا لِهَؤُلَاءِ مَا هُمْ عَلَيْهِ {زَيَّنَّا لِكُلِّ أُمَّةٍ عَمَلَهُمْ} مِنْ الْخَيْر وَالشَّرّ فَأَتَوْهُ {ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ مَرْجِعُهُمْ} فِي الآخِرَة {فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} فَيُجَازِيهِمْ بِهِ {وَأَقْسَمُوا} أيْ كُفَّار مَكَّة {بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ} أيْ غَايَة اجْتِهَادهمْ فِيهَا {لَئِنْ جَاءَتْهُمْ آيَةٌ} مِمَّا اقْتَرَحُوا {لَيُؤْمِنُنَّ بِهَا قُلْ} لَهُمْ {إِنَّمَا الْآيَاتُ عِنْدَ اللَّهِ} يُنَزِّلهَا كَمَا يَشَاء وَإِنَّمَا أَنَا نَذِير {وَمَا يُشْعِرُكُمْ} يُدْرِيكُمْ بِإِيمَانِهِمْ إذَا جَاءَتْ أيْ أَنْتُمْ لَا تَدْرُونَ ذَلِكَ {أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ} لِمَا سَبَقَ فِي عِلْمِي وَفِي قِرَاءَة بِالتَّاءِ خِطَابًا لِلْكُفَّارِ وَفِي أُخْرَى بِفَتْحِ أَنَّ بِمَعْنَى لَعَلَّ أَوْ مَعْمُولَة لِمَا قَبْلهَا {وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ} نُحَوِّل قُلُوبهمْ عَنْ الْحَقّ فَلَا يَفْهَمُونَهُ {وَأَبْصَارَهُمْ} عَنْهُ فَلَا يُبْصِرُونَهُ فَلَا يُؤْمِنُونَ {كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ} أيْ بِمَا أُنْزِلَ مِنْ الْآيَات {أَوَّلَ مَرَّةٍ وَنَذَرُهُمْ} نَتْرُكهُمْ {فِي طُغْيَانِهِمْ} ضَلَالهمْ {يَعْمَهُونَ} يَتَرَدَّدُونَ مُتَحَيِّرِينَ

---

**ترجمه**: هغه دَ آسمانونو او زمکو دَ سابقه نمونونه بغیر پیدا کونکې دې دَهغه اولاد څنګه کیدې شی دَهغه خو ښځه شته نه او هغه هرهغه څیز پیدا کړې دې دَ کوم چې شان مخلوق کیدل دی او هغه دَهر څیز نه ښه واقف دې. دا دې الله تعالی ستاسو رب دَهغه نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته هغه دَ هر څیز پیدا کونکې دې لهذا هم یوازې دَهغه بندګی کوئی هغه دَ هر څیز محافظ دې سترګې دَهغه ادراک نه شی کولې یعنی هغه نه شی لیدلې او دَ عدم رؤیت نه په آخرت کښې دَمؤمنینو رویت مستثنی دې. لهذا دَالله تعالی قول ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ او دَ شیخینو حضراتو دَ حدیث دَ وجې نه چې تاسو به ډیر زر خپل رب داسې او وینئ څنګه چې په څوارلسمه شپه سپوږمۍ وینئ. او ونیلی شوی دی چې احاطه نه شی کولې او هغه دَ ټولو سترګو ادراک کوی یعنی ګوری یې او هغه سترګې الله تعالی نه شی لیدلې. دَهغه نه علاوه دَبل چا داسې شان نشته چې هغه سترګې او وینی او دغه سترګې هغه او نه وینی یا دَ (لاتدرکه) مطلب دَهغې علمی احاطه نه کول دی هغه په خپلو دوستانو باندې مهربان دې او دَهغوی نه خبردار دې. بیشکه تاسو ته ستاسو دَ رب دَطرف نه (دَحق لیدلو) دلائل راغلی دی نو چا چې دا اولیدل او ایمان ئې راوړو نو هغه هم دَخپلې فائدې دَپاره اولیدل څکه چې دَ دې کتلو ثواب به هم دده نه ملاویږی او څوک چې دَ هغې نه ړوند پاتې شو نو هغه ګمراه شو نو دَهغه دَ ګمراهئ وبال او نقصان به هم په هغه باندې وی او زه ستاسو نګران نه یم (یعنی) ستاسو دَ اعمالو نګران نه یم زه خو صرف خبرداری کونکې یم. لکه څنګه چې مونږ مذکوره احکام بیان کړل هم دغه شان مونږ په مختلفو اړخونو دلائل بیانوو دې دَپاره چې داخلق عبرت

حاصل کړی اوچې آخرکارکافران اووائی چې تاسو اهل کتاب سره مذاکره کړې ده او په یوقراءت کښې دَرَسْتَ (بغیردَ الف دې) یعنی تاسو دَ تیروشوو خلقو کتابونه لوستلی دی اودا تاسو هم دَهغې نه بیان کړی دی اودې دَپاره چې مونږ داد هوښیارو خلقودَپاره ښه ښکاره کړو تاسو دَدې قرآن اتباع کوئی چې تاسو له ستاسو دَ رب دَ طرف نه وحی کړې شوې دې چې دَهغه نه علاوه بل هیڅوک دَ عبادت لائق نشته اوتاسو دَ مشرکانونه ځان ددې ته کړئی اوکه الله تعالی ته منظورو ه نودوی به شرک نه کولو اومونږ ته په دوی باندې نگران نه ئی جوړکړې. پس دوی ته به دَ دوی دَاعمالوبدله هم مونږ ورکوو اوته په دوی باندې اختیارمندنه ئی چې ته دوی په ایمان راوړوباندې مجبور کړې اودا حکم دَ جهاددَ حکم نازلیدونه وړاندې دې اوتاسو دَدوی معبودانوته بد مه وایئې دَ چاچې دویٔ دَ الله تعالی نه علاوه بندګی کوی یعنی دَ بتانو. ځکه چې هغوی به دَ جهالت او عناد اوظلم دَ وجې نه دَالله تعالی په شان کښې ګستاخی اوکړی. لکه څنګه چې دَهغوی اعمال دَهغوی دَ پاره ښائسته کړې شوی دی دغه شان دَهرامت دَپاره مونږ دَهغوی اعمال ښائسته کړی دی که هغه عمل دَخیر وی اوکه دَ شر نوهغوی هم هغه کوی. بیا هغوی له خپل رب طرف ته په آخرت کښې واپس تلل دی نوهغه څه چې هغوی کول هغه به یې هغوی ته اوښائی . یعنی هغه به هغوی ته دَ هغوی دَ اعمالو سزاورکړی اودَمکې کافرانو ډیرکلک قسمونه اوخوړل یعنی هغوی په خپلو قسمونو ډیر زور پیداکولوسره اووئیل که چرې مونږ له زمونږ دَ تجویزکړې نخښونه څه نخښې راشی نومونږ به په هغویٔ باندې مخامخ ایمان راوړو. تاسو هغوی ته اووایئې چې نخښې دَالله تعالی په قبضه کښې دی هغه چې څنګه غواړی ظاهرد وی زه خو صرف خبر ورکونکې یم (اې مسلمانانو) کله چې هغه فرمائشی نښانې راشی نوتاسوته دَهغې دَ ایمان باره کښې څه خبردې؟ یعنی تاسو ته دَهغې علم نشته (چې هغوی به ایمان راوړی) یعنی کله چې هغه (فرمائشی) نخښې راشی نوزما دَ ازلی علم په اعتبارسرد به هغوی ایمان نه راوړی او په یوقراءت کښې په تاء سره (لاتؤمنون) دې کافرانوته خطاب کولوسره او دویم قراءت کښې دانٔ په فتحې سره دَ لَعَلَّ په معنی کښې دې یادَخپل ماقبل معمول دې (یعنی) دَیشعرکم مفعول دې اومونږ دَهغوی زړونه دَحق نه ګرځوو دَڅه په وجه چې هغوی نه پوهیږی اودَهغوی سترګې دَحق نه اړوو دَ څه په وجه چې هغوی حق نه ګوری نوایمان هم نه راوړی لکه څنګه چې هغوی په نازل کړې شوو آیاتونرباندې په رومبی ځل ایمان نه وو راوړې اومونږ به هغوی دَهغوی په ګمراهئ کښې حیران پریږدو یعنی په تردد او حیرانئ کښې به متحیرپاتی شی.

### د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بَدِيْعُ السموات والأرض، بدیع السموات دَمبتداء محذوف خبردې أی هُوبدیع السموات، یا بدیع السموات مبتداء ده اودَدې خبر آنّٰی یکونُ لہٗ وَلَدٌ دې. بدیع په معنی دَ مُبْدِع هم استعمالیږی

لکه چې سمیعٌ په معنی دَ مُسمِعٌ په کثرت سره استعمالیږي او بعض حضرات وئیلي دي چې بدیع السموات کښې د صفت مشبه اضافت دَ فاعل طرف ته دې دَدې اصل بدیعٌ سمواتُه وَأرضُهُ دې.

**قوله**: من شأنه أن يخلق، دَدې اضافې مقصد دَ يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دَ الله تعالى قول وخلق كل شئ کښې دَالله تعالى ذات اوصفات هم شامل دي که نه؟ که چرې نه وي نو دَ الله تعالى ذات او صفات لاشئ کيدل به لازم شي کوم چې محال دی او که چرې داخل دې نو دَالله تعالى ذات اوصفات مخلوق کيدل لازميږي.

**جواب**: دَجواب حاصل دادې چې خلق كل شئ کښې شئ عام خص منه البعض دې أى هو خالق كل شئ ما عدا ذاته وصفاته.

**قوله**: وهذا مَخْصُوْصٌ برؤية المُؤمِنِيْنَ له في الآخِرَةِ دَدې اضافې مقصد دَ معتزله دَ امتناع رؤيت باري عقيده ردکول دی دَ معتزلو عقيده ده چې په آخرت کښې به هم دَالله تعالى رويت نه کيږي دَ اهل سنت والجماعة عقيده ده چې آخرت کښې به مؤمنينو ته دَباری تعالى رويت کيږي.

**قوله**: وقيل المراد تحيط به، او که چرې دَ لاتدركه الأبصار نه عدم احاطه مراد وی نو په دې صورت کښې به مخصوص نه وي بلکه عموم به په خپل اطلاق باندې باقي پاتې وي ځکه چې دَالله تعالى دَحقيقت ادراك نه په دنيا کښې چاته کيدې شي او نه په آخرت کښې.

**قوله**: أويُحِيْطُ بها علمًا دا دَ ادراك دَ دويمې معنى بيان دې.

**قوله**: قل يا محمد: **سوال**: دلته قل يا محمد مقدر منلو څه وجه ده؟

**جواب**: وجه داده چې په دې اضافې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې مذکوره کلام دَرسول الله ﷺ دَ ژبې مبارکې نه صادر شوی دی دا اعتراض به کيدو چې وَمَا أنا عليكم بحفيظ څه معنى ده؟ ځکه چې دَحفظ نفى دَالله تعالى نه جائز نه ده.

**قوله**: لِيَعْتَبِرُوْا: **سوال**: مفسر علام لِيَعْتَبِرُوْا ولې مقدر منلې دې؟

**جواب**: دې دَپاره چې دَ وَلِيَقُوْلُوا عطف صحيح شي.

**قوله**: نُبَيِّنَهُ بيين (تفعيل) نه مضارع جمع متكلم مونږ بيانوکړو مونږ ښکاره کوو لِنُبَيِّنَهُ کښې لام دَتعليل دې ځکه چې دَ تصريف نه مقصود هم تبيين دې دَدې ضمير دَ آيات طرف ته راجع دې اوآيات دَ قرآن دَ معنى په تاويل کښې دې لهذا دَ ضمير عدم مطابقت اعتراض ختم شو.

**قوله**: فَأْتُوهُ: **سوال**: مفسر علام فَأْتُوهُ ولې مقدر منلې؟

**جواب**: دې دَپاره چې ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِم الخ عطف صحيح شي ځکه چې معطوف وعده او وعيد دې او دا په عمل د خير او شر باندې مرتب کيږي نه چې په مطلق تزيين باندې.

**قوله**: أي أَنتُمْ لاَ تَدْرُوْنَ ذلك دا مؤمنانو ته خطاب دې په دې کښې مؤمنان دَ مشرکانو دَ فرمائشي معجزاتو دَ خواهش نه منع کړې شوي دي. مؤمنانو به دا خواهش وو چې کاش الله تعالی دَ مشرکانو فرمائشي معجزات دَ رسول الله ﷺ په لاس مبارك باندې ښکاره کړي نو ډير به ښه وي، دې دَپاره چې دَ مکې مشرکان ايمان راوړي. دَداسې تمنا باره کښې وئيلې شي چې اې مسلمانانو تاسو چې دَ مشرکانو دَ فرمائشي معجزاتو باره کښې تمناکوئي تاسو ته څه معلومه ده چې دا خلق به فرمائشي معجزه ليدلو سره ايمان راوړي زمونږ دَ ازلي علم په اعتبار سره دا خلق فرمائشي معجزه کتلو سره هم ايمان راوړونکي نه دي. دَ ظاهر مفهوم تقاضا خو دا وه چې داسې ئې وئيلې وې مَا يُدرِيكم أنها إذا جاءت يؤمنون بغير دَ لا نه هم په دې وجه بعض مفسرينو لا ته زائده وئيلې دی مطلب دا دې چې تاسو ته څه معلومه ده چې مشرکان به فرمائشي معجزه ليدلو سره ايمان راوړي.

مفسر علام دَدې دوه توجيهات کړي دي يو دا چې په مايشعركم کښې مَا استفهام انکاري دې أي لاتدرون بأنها إذا جاءت الآيات لايؤمنون، فلذلك تتمنون ونحن نعلم ذلك فلاتتمنى بها يعنى تاسو ته پته نشته چې که فرمائشي معجزات هم راشي بيابه هم يقينًا داخلق ايمان نه راوړي لکه چې زما په ازلي علم کښې دي.

دويمه توجيه يې په فتح د أَنَّ سره په معنى دلَعَلَّ سره بيان کړې ده دَدې خلاصه دا ده چې د يشعركم مفعول ثاني محذوف دې أی مايشعركم بإيمانهم او أَنَّ په معنى د لَعَلَّ، أی لَعَلَّهم إذا جاءتهم آيةٌ لا يؤمنون او لعلَّ په دغه وخت د اشفاق يعني د توقع دَپاره وی او توقع په خدائی کلام کښې دَ يقيني وقوع دَپاره راځي يعني که دَهغوی فرمائشي معجزې هم راشي نو بيابه هم يقينًا هغوی ايمان نه راوړی. دَ مذکوره دواړو توجيهاتو سره به کلام دَ ظاهر مطابق شي اوکومو مفسرينو حضراتو چې لايؤمنون کښې لا زائده ګرځولې ده دَهغوی مقصد هم کلام دَظاهر مطابق جوړول دی. إنَّ بالكسر په صورت کښې به جمله مستانفه شي چې هميشه دَ سوال مقدر جواب وی. لکه چې سوال اوشو مايُشعركم مايكون منهم، دَدې جواب ورکړې إنها إذا جاءت لايؤمنون.

**قوله**: ونُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ دَدې عطف په لا يؤمنون باندې دې اى وَمَا يشعركم إنّا حينئذٍ نقلب أفئدتهم عن الحق فلا يفهمونه وأبصارهم فلا يبصرونهُ فلا يؤمنون بهَا.

**تسهيل المشكل**: وَمَا يُشعِرُكم أَنَّهَا إذا جاءت لايؤمنون، إنَّهَا ابو عمران بن كثير رحمه الله

اومجاهد رحمه الله انها بكسرالهمزه لوستلي دي. دَ ابن مسعود رضي الله عنه په قرامت سره هم دَدې تائيد كيږي مجاهد رحمه الله اوابن زيد رحمه الله وئيلي چې دی چې دَدې مخاطب مشرکين دی اوفراء رحمه الله وغيره وئيلی دی چې دَدې مخاطب مؤمنين دی ځکه چې کله مشرکانو دَ فرمائشي معجزو مطالبه کولوسره حضورپاک ﷺ ته اووئيل که فلانکي قسم معجزه اوښايې نومونږ به ايمان راوړو نوهغه وخت دَ مسلمانانو خواهش وو چې افسوس حضورپاك مشرکانوته دَهغوی مطلوبه معجزه اوښائی. دَدې خواهش په رڼړا کښې صحابه کرامو رضي الله عنهم حضورپاك ته عرض اوکړو لونزلت الآية لعلهم يؤمنون نودَدې په جواب کښې الله تعالی اوفرمائيل وَمَا يُشعِرُكُم أنها إذا جاءت لايؤمنون. او اهل مدينه او اعمش حمزه کسائي او عاصم وغيرهم رحمهم الله أنّها په فتح سره لوستلې دې اوخليل رحمه الله وئيلی دی چې أنّها په معنی د ډير اوعرب وائي ائتِ السوق أنّكَ تشترى لنا شيئًا ای لعلك فراء رحمه الله اوکسائي رحمه الله وئيلی دی چې لايؤمنون کښې لا زائده ده او دَ آيت معنی ده ومايشعركم انها ای الايات،اذاجاءت يؤمنون اودا هم داسې دی لکه مَامَنعكَ ان لاتسجد کښې لا زائده ده مګر زجاج وغيره دې ته ضعيف وئيلی دی او نحاس وئيلی دی چې کلام کښې حذف دې اوتقديری عبارت دادې انها إذا جَاءت لا يؤمنون او يؤمنون بيا دا زائدمقدر دَ علم سامع دَ وجې نه حذف کړې شو.

## پاره نمبر-۸ [وَلَوْأَنَّنَا]

### [اياتونه: ۱۱۱ - ۱۲۱]

{وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ} كَمَا اقْتَرَحُوا {وَحَشَرْنَا} جَمَعْنَا {عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا} بِضَمَّتَيْنِ جَمْع قَبِيل أَيْ فَوْجًا فَوْجًا وَبِكَسْرِ الْقَاف وَفَتْح الْبَاء أَيْ مُعَايَنَة فَشَهِدُوا بِصِدْقِك {مَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا} لِمَا سَبَقَ فِي عِلْم الله {إِلَّا} لَكِنْ {أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ} إِيمَانهمْ فَيُؤْمِنُوا {وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ} ذَلِكَ {وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا} كَمَا جَعَلْنَا هَؤُلَاءِ أَعْدَاءَك وَيُبْدَل مِنْهُ {شَيَاطِينَ} مَرَدَة {الْإِنْسِ وَالْجِنِّ يُوحِي} يُوَسْوِس {بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ} مُمَوَّهه مِنْ الْبَاطِل {غُرُورًا} أَيْ لِيَغُرُّوهُمْ {وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ} أَيْ الْإِيحَاء الْمَذْكُور {فَذَرْهُمْ} دَعْ الْكُفَّار {وَمَا يَفْتَرُونَ} مِنْ الْكُفْر وَغَيْره مِمَّا زُيِّنَ لَهُمْ وَهَذَا قَبْل الأمر بالقتال {وَلِتَصْغَىٰ} عُطِفَ عَلَى غُرُورًا أَيْ تَمِيل {إِلَيْهِ} أَيْ الزُّخْرُف {أَفْئِدَةُ} قُلُوب {الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوا} يَكْتَسِبُوا {مَا هُمْ مُقْتَرِفُونَ} مِنْ الذُّنُوب فَيُعَاقَبُوا عَلَيْهِ وَنَزَلَ لَمَّا طَلَبُوا مِنْ النَّبِيّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَجْعَل بَيْنه وَبَيْنهمْ حَكَمًا قُلْ {أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي} أَطْلُب {حَكَمًا} قَاضِيًا بَيْنِي وَبَيْنكُمْ {وَهُوَ الَّذِي أَنْزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ} الْقُرْآن {مُفَصَّلًا} مُبَيَّنًا فِيهِ الْحَقّ مِنْ الْبَاطِل {وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ} التَّوْرَاة كَعَبْدِ الله بْن سَلَام وَأَصْحَابه {يَعْلَمُونَ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ} بِالتَّخْفِيفِ

وَالتَّشْدِيد {مِنْ رَبِّكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ} الشَّاكِّينَ فِيهِ وَالْمُرَاد بِذَلِكَ التَّقْرِير لِلْكُفَّارِ أَنَّهُ حق {وتمت كلمات رَبِّك} بِالْأَحْكَامِ وَالْمَوَاعِيد {صِدْقًا وَعَدْلًا} تَمْيِيز {لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ} بِنَقْصٍ أَوْ خلف {وَهُوَ السَّمِيعُ} لِمَا يُقَال {الْعَلِيمُ} بِمَا يُفْعَل {وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ} أَيْ الْكُفَّار {يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دِينه {إِنْ} مَا {يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ} فِي مُجَادَلَتهمْ لَك فِي امر الميتة إِذْ قَالُوا مَا قَتَلَ اللَّهُ أَحَقّ أَنْ تَأْكُلُوهُ مِمَّا قَتَلْتُمْ {وَإِنْ} مَا {هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ} يَكْذِبُونَ فِي ذَلِكَ {إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ} أَيْ عَالِم {مَنْ يَضِلُّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ} فَيُجَازِي كلا منهم {فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ} أَيْ ذبح على اسمه {إِنْ كُنْتُمْ بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ} {وَمَا لَكُمْ أَ} ن {لَا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ} مِنَ الذَّبَائِح {وَقَدْ فُصِّلَ} بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَلِلْفَاعِلِ فِي الْفِعْلَيْنِ {لَكُمْ مَا حُرِّمَ عَلَيْكُمْ} فِي آيَة {حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ} {إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ} مِنْهُ فَهُوَ أَيْضًا حَلَال لَكُمْ الْمَعْنَى لَا مَانِع لَكُمْ مِنْ أَكْل مَا ذُكِرَ وَقَدْ بَيَّنَ لَكُمْ الْمُحَرَّم أَكْله وَهَذَا لَيْسَ مِنْهُ {وَإِنَّ كَثِيرًا لَيُضِلُّونَ} بِفَتْحِ الْيَاء وَضَمّهَا {بِأَهْوَائِهِمْ} بِمَا تَهْوَاهُ أَنْفُسهمْ مِنْ تَحْلِيل الْمَيْتَة وَغَيْرهَا {بِغَيْرِ عِلْمٍ} يَعْتَمِدُونَهُ فِي ذَلِكَ {إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ} الْمُتَجَاوِزِينَ {وَذَرُوا} اُتْرُكُوا {ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ} عَلَانِيَته وَسِرّه والإثم قيل الزنى وَقِيلَ كُلّ مَعْصِيَة {إِنَّ الَّذِينَ يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ} فِي الْآخِرَة {بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ} يَكْتَسِبُونَ {وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ} بِأَنْ مَاتَ أَوْ ذُبِحَ عَلَى اسْم غَيْره وَإِلَّا فَمَا ذَبَحَهُ الْمُسْلِم وَلَمْ يُسَمّ فِيهِ عَمْدًا أَوْ نِسْيَانًا فَهُوَ حَلَال قَالَهُ بن عَبَّاس وَعَلَيْهِ الشَّافِعِيّ {وَإِنَّهُ} أَيْ الْأَكْل مِنْهُ {لَفِسْقٌ} خُرُوج عَمَّا يَحِلّ {وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ} يُوَسْوِسُونَ {إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ} الْكُفَّار {لِيُجَادِلُوكُمْ} فِي تَحْلِيل الْمَيْتَة {وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ} فِيهِ {إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ}

**ترجمه**: اوکه چرې مونږ په هغوی باندې فرښتې نازل کړې وې او دهغوی دَ تجویز مطابق مړو هغوی سره خبرې کړې وې او مونږ دَهغوی دَسترګو په وړاندې (دَټولې دنیا) هرقسم څیزونه راجمع کړې وې قُبُلاً دَ قاف او باء په ضمې سره د قبیلٌ جمع ده په معنی د ډلې او په یو قراءت کښې دَقاف په کسرې او د باء فتحې سره دې په معنی مخامخ (دَسترګو په وړاندې) او هغوی ستاد صداقت ګواهی ورکړې کیږی نو بیا هم دَالله تعالی دَازلی علم مطابق دوی ایمان راوړونکی نه دی اِلاّ چې دَالله تعالی دَ رضا تقاضا هم دغه وی نو ایمان راوړلې شی. لیکن په دوی کښې زیات تر خلق په دې معامله کښې دَ جهالت خبرې کوی څنګه چې مونږ داخلق ستاسو دښمنان جوړکړی دی دغه شان مونږ انسانی سرکش شیطانان او پیریان شیطانان دَهرنبی دښمنان جوړکړی دی او شیطین الانس الخ د(عدوٌ) نه بدل دې چې په خپل مینځ کښې د یوبل سره دَ وسوسې په ذریعه خوږې او ښائسته خبرې کوی. په باطل سره ملمع کړې شوې خبرې دې دَپاره چې هغوی په فریب کښې اخته کړې. که چرې ستا دَرب رضا نه وه نو دوی به د وسوسې (مذکوره بې) جرات نه شوکولې نو ته کافران او دَ هغوی دَ ځان نه جوړې شوې خبرې

(يعنى) كفروغيره كوم چې دَهغوى دَپاره ښائسته كړې شوې دي (دَهغوئ په حالت باندې)
پريږدى اودا حكم دَ جهادنه دَ وړاندې دې اودې دَپاره چې دَهغه خلقو زړه چې په آخرت باندې
ايمان نه لرى دغه خوږو اوپه ظاهره خبرو طرف ته مائل شى دَ (لتصغیٰ) عطف په غروراً
باندې دې دَپاره چې هغوى دَ كومو ګناهونو مرتكب كول غواړى مرتكب شى دَ كوم
په وجه چې به هغوى ته سزا وركولې شى. اوكله چې مشركانو دَحضورپاك اودَخپل ځان
په مينځ كښې حكم طلب كړو نودا آيت نازل شو نوآيا زه دَ الله تعالى نه علاوه بل څوك دَ ځان
اوستاسو په مينځ كښې دَ فيصلې كولودَپاره طلب كړم حالانكه هغه داسې ذات دې چاچې تاسو
له يوتفصيلى كتاب (قرآن) نازل كړو په كوم كښې چې حق دَباطل نه جداكړې شوې دې.
اوهغه خلق چاته چې مونږ كتاب تورات وركړې دې لكه عبدالله بن سلام اودَهغه ملګرى په دې
خبره پوهيږى چې قرآن ستا دَ رب دَ طرف نه په حق سره نازل كړې شوې دې. په (منزل) كښې تخفيف
اوتشديد دواړه جائز دى لهذا ته دَ قرآن باره كښې دَ شك كونكونه مه كيږه او مرادپه
مذكوره بيان سره په كافرانودَ قرآن دَحق كيدو اقرار كول دى اوستادَ رب كلام احكام
مواعيد د صداقت اوعدالت په اعتبارسره كامل دې. (صدقاً وعدلاً) تميزدې دَهغه په كلام كښې
نقص يا خلاف واقعه ثابتولوسره هيڅوك تبديلى كونكې نشته څه چې وئيلى شى هغه دَهغې
اوريدونكې دې او څه كولې شى دَهغې پيژندونكې دې او په دنياكښې زيات تر خلق كافران
داسې دى كه چرې ته دَهغوى د وينا تابعدارى نوهغوى به تا دَ الله تعالى دَ لارې يعنى دين نه بې
لارې كړى داخلق دَمردارې باره كښې تاسو سره مباحثه كښې صرف دخپلو خيالاتوتابعدارى
كوى او هغوى اووئيل كوم چې الله تعالى قتل كړو هغه د خوراك زيات لائق دې په نسبت
دَهغې كوم چې تا پخپله قتل كړې وى داخلق صرف قياسى خبرې كوى. (يعنى) هغوى په دې
باره كښې دروغ وائى يقينى ستا رب هغه كس ډير ښه پيژنى كوم چې دَهغه دَ لارې نه بې لارې
شوې دې اوهغه هم ښه پيژنى كوم چې په نيغه لارتلونكى دى. چنانچه په دوى كښې به هريوته
هغه بدله وركړى نو چې په كوم ځناور دَهغه نوم اخستې شوې دې يعنى دَهغه په نوم باندې ذبح
كړې شوې دې تاسو ته دَهغې نه دَخوراك كولو اجازت دې كه چرې تاسو دَهغه په احكامو ايمان
لرئى. آخر څه وجه ده چې تاسو دَداسې حلال كړې شوى ځناور نه خوراك اونه كړئى په كوم چې دَ الله
تعالى نوم اخستې شوې دې حالانكه الله (آية) حُرِّمَتْ عليكم الميتة كښې دَهغه ټولو ځناورو تفصيل
بيان كړې دې چې په تاسو باندې حرام كړې شوى دى (فُصِّلَ وحرمت) كښې مجهول او معروف
دواړه قراءتونه دى په دواړو فعلونوكښې، مګر هغه هم كله چې تاسودَهغې دَپاره سخت
مجبوره شئ نوستاسو دَپاره حلال دى مطلب داچې دَمذكوره څيزونو نه خوړل تاسو دَپاره
هيڅ منع نه دى ستاسودَپاره هغه څيزونه بيان كړې شوى دى دَ كوم خوارك چې ستاسو
دَپاره حرام كړې شوې دې اوداهغې نه نه دى. اودا يقينى خبره ده چې دَډيرو زياتوخلقو حال

دادې چې دَعلم نه بغیره کوم چې دوئ په دې باره کښې اعتماد اوکړی صرف دَخپلو خواهشاتویعنی دَخپل نفس دَخواهش مطابق دَ مردارې وغیره دَ حلال کیدو باره کښې خلق گمراه کوی (لیضلون) دیاء په فتحه اوضمې سره دی. بیشکه ستارب دَحق نه تجاوز کونکونه ښه خبردې. (یعنی) دَحلال نه دَحرام طرف ته تجاوز کونکی (ښه) پیژنی (اې مسلمانانو) تاسو دَ ظاهری گناه نه هم بچ شئی اودَ باطنی گناه نه هم (یعنی) علانیه گناه نه هم اودَ پټې گناه نه هم. او وئیلې شوی دی چې دَ اثم نه مراد زنا ده او وئیلی شی دی چې (اثم) هره یوه گناه ده په دې کښې څه شک نشته چې کوم خلق دَ گناه ارتکاب کوی هغوی ته به په آخرت کښې دَهغوی دَکړو سزا ورکړې کیدې شی اودَهغه ځناورنه مه خورئې په کوم چې (دَ ذبح کړې په وخت) دَالله تعالی نوم نه وی اخستې شوې په داسې توگه چې (پخپله) مړشوې وی یا دَغیرالله په نوم باندې ذبح شوې وی گنی کوم چې مسلمان ذبح کړې وی او په هغې باندې ئې قصداً یا په هیره سره دَالله تعالی نوم نه وی اخستې نوهغه حلال دې دادَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما قول دې اوهم دغه دَامام شافعی رحمه الله هم مذهب دې. بیشکه دا (یعنی) دې نه خوراك كول فسق دې (یعنی) دَحلال نه (حرام طرف ته) تجاوز کول دی او یقیناً شیطانان دَ خپلو دوستانوکافرانو په زړونوکښې وسوسې اچوی دې دَپاره چې هغوی تاسو سره دَمردار په حلال کیدو کښې (تاسوسره) مجادله اوکړی اوکه تاسو په دې معامله کښې دَهغوی اطاعت اوکړئې نوتاسو به مشرکان شئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: جَمْعُ قبیل، قُبُلٌ دَقَبِیلٌ جمع ده لکه چې رُغُفٌ چې دَ رغیف جمع ده په معنی د جماعت ډله او دَ بعضو په نیز دَقِبَلٌ جمع ده په معنی دَ سترگو په وړاندې، قُبُلاً دَكُلٌ نه حال دې.

**قوله**: شیطین دعَدوًّا نه بدل دې.

**قوله** مَرَدَة دَدې اضافې مقصد داخودل دی چې دَ شیاطین حقیقی معنی مرادنه ده ځکه چې انسان حقیقی شیطان نه وی بلکه دَ سرکشئی دَ وجې نه انسان ته شیطان وئیلې شی.

**قوله**: یُوَسْوِسُ،دَ یوحی تفسیر په یُوَسْوِسُ سره کولو مقصد دَ یوسوال جواب دې.

**سوال**: دَ وحی نسبت شیطان طرف ته کول جائزنه بلکه محال دی؟

**جواب**: دَ وحی نه مرادوسوسه ده لهذا هیڅ اعتراض نشته.

**قوله**: جَعَلْنَا هؤلاءِ اَعْدَائِكَ، دَدې عبارت دَ اضافې مقصددې خبرې ته اشاره کول دی جه جَعَلَ په معنی صَیَّرَ دې چې دوه مفعوله نه غواړی اول مفعول عدوًّا دې کوم چې مؤخردې

او لكل نبي مفعول ثاني دې كوم چې مقدم دې او شيطين الانس والجن د عدوًا نه بدل دې او بعض حضراتو عدوًا ته مفعول ثاني وئيلې دې اوشيطين مفعول اول دې او لكل به د محذوف سره متعلق شي او د عدوًا نه حال دې.

**قوله**: مَرَدة، داد مَارِدٌ جمع ده په معنى د سركش.

**قوله**: لِيَغُرُّوهم په دې كښې اشاره ده چې غرورًا مفعول له دې.

**قوله**: عَطْفٌ على غرورًا: لتصغى عطف دې په غرورًا باندې لتصغى چونكه د غرورًا علت دې لهذا معطوف اومعطوف عليه كښې د عدم مناسبت اعتراض هم نه شي كيدې.

**قوله**: المُرَادُبِذالكَ التَّقْرِيْرُ اِنَّهُ حَقٌّ دَدې اضافې مقصد د يوې شبهې جواب لرې كول دي.

**شبه يا سوال**: فلاتَكُوْنَنَّ من المُمْتَرِيْنَ كښې حضورپاك ﷺ لره قرآن دَ الله تعالى دَ طرف نه كيدوكښې دَ شك كولونه منع كړې شوې دې حالانكه دَهغوى دَ شك كولو هډوسوال نه رو ځكه چې قرآن پاك خو به هم پخپله په حضورپاك نازليدلو بيا دَ شك څه مطلب دې؟

**جواب**: دَجواب حاصل دادې چې دَامتراء تعلق د حقانيت قرآن په باره كښې دَ كفارو اهل كتاب دَعلم سره دې يعنى په كافرانوباندې قرآن حق او دَالله تعالى دَ طرف نه دكيدو اقرار كول دى دَدې دويم جواب دادې چې په كلام كښې تعريض دې خطاب اګر چې هم حضورپاك ته دې مګرمراد ترې كافران اهل كتاب دى.

**قوله**: تَمَّتْ، أي بلغت الغاية أخبارهم ومواعيده.

**قوله**: صدقًا وعدلاً: د صدقًا تعلق د مواعيد سره دې اودَعدلاً تعلق د احكامو سره دې دا لف اونشر دَغيرمرتب په توګه دې.

**قوله**: أي عالم، مفسرعلام ظاهرته نصب نه وركوى إلاّ فى مسئلة الكحل كما تقرر فى النحو، حالانكه دلته اعلم مَنْ يضل ته نصب وركوى ځكه چې مَنْ يضل په محل دَنصب كښې دې.

**جواب**: من يضل دَ اعلم دَ وجې نه منصوب نه دې بلكه أعلم په معنى دَعالم دې.

دَأعلم تفسيرپه عالم سره كولوكښې دَيو اعتراض جواب وركړې دې.

**اعتراض**: اسم تفضيل اسم

**[اياتوله:۱۲۲ - ۱۲۹]**

وَنَزَلَ فِي أَبِي جَهْل وَغَيْره {أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا} بِالْكُفْرِ {فَأَحْيَيْنَاهُ} بِالْهُدَى {وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاس} يَتَبَصَّر بِهِ الْحَقّ مِنْ غَيْره وَهُوَ الْإِيمَان {كَمَنْ مَثَله} مَثَل زَائِدَة أَيْ كَمَنْ هُوَ {فِي الظُّلُمَات لَيْسَ بِخَارِجٍ مِنْهَا} وَهُوَ الْكَافِر لَا {كَذَلِكَ} كَمَا زُيِّنَ لِلْمُؤْمِنِينَ الْإِيمَان {زُيِّنَ لِلْكَافِرِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} مِنْ

الْكُفر وَالْمَعَاصِي {وكذلك} كما جعلنا فساق مكة اكابرهم {جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا لِيَمْكُرُوا فِيهَا} بِالصَّدِّ عَنِ الْإِيمَان {وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنْفُسِهِمْ} لِأَنَّ وَبَاله عَلَيْهِمْ {وَمَا يَشْعُرُونَ} بِذَلِكَ {وَإِذَا جَاءَتْهُمْ} أَيْ أَهْل مَكَّة {آيَة} عَلَى صِدْق النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {قَالُوا لَنْ نُؤْمِن} بِهِ {حَتَّى نُؤْتَى مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُل اللَّه} مِنَ الرِّسَالَة وَالْوَحْي إِلَيْنَا لأنا اكثر مالا واكبر سنا قال تعالى {الله أعلم حيث يجعل رسالاته} بِالْجَمْعِ وَالْإِفْرَاد وَحَيْثُ مَفْعُول بِهِ لِفِعْلٍ دَلَّ عَلَيْهِ أَعْلَم أَيْ يَعْلَم الْمَوْضِع الصَّالِح لِوَضْعِهَا فِيهِ لَيَضَعَهَا وَهَؤُلَاءِ لَيْسُوا أَهْلًا لَهَا {سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا} بِقَوْلِهِمْ ذَلِكَ {صَغَار} ذُلّ {عِنْدَ اللَّه وَعَذَاب شَدِيد بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ} أَيْ بسبب مكرهم {فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ} بِأَنْ يَقْذِف فِي قَلْبه نُورًا فَيَنْفَسِح لَهُ وَيَقْبَلهُ كَمَا وَرَدَ فِي حَدِيث {وَمَنْ يُرِدْ} اللّٰه {أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَل صَدْره ضَيِّقًا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد عَنْ قَبُوله {حَرَجًا} شَدِيد الضِّيق بِكَسْرِ الرَّاء صِفَة وَفَتْحهَا مَصْدَر وُصِفَ بِهِ مُبَالَغَة {كَأَنَّمَا يَصَّعَّد} وَفِي قِرَاءَة يَصَّاعَد وَفِيهِمَا إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الصَّاد وَفِي أُخْرَى بِسُكُونِهَا {فِي السَّمَاء} إِذَا كُلِّفَ الْإِيمَان لِشِدَّتِهِ عَلَيْهِ {كَذَلِكَ} الْجَعْل {يَجْعَل اللّٰه الرِّجْس} العذاب اوالشيطان اي يسلطه {على الذين لا يؤمنون} {وَهَذَا} الَّذِي أَنْت عَلَيْهِ يَا مُحَمَّد {صِرَاط} طَرِيق {رَبّك مُسْتَقِيمًا} لَا عِوَج فِيهِ وَنَصْبه عَلَى الْحَال الْمُؤَكِّدَة لِلْجُمْلَةِ وَالْعَامِل فِيهَا مَعْنَى الْإِشَارَة {قَدْ فَصَّلْنَا} بَيَّنَّا {الْآيَات لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ} فيه ادغام التاء في الأصل الذَّال أَيْ يَتَّعِظُونَ وَخُصُّوا بِالذِّكْرِ لِأَنَّهُمْ الْمُنْتَفِعُونَ {لَهُمْ دَار السَّلَام} أَيْ السَّلَام وَهِيَ الْجَنَّة {عند ربهم وهو وليهم بما كانوا يعملون} {وَ} اذكر {يَوْم نَحْشُرهُمْ} بِالنُّونِ وَالْيَاء أَيْ اللّٰه الْخَلْق {جَمِيعًا} وَيُقَال لَهُمْ {يَا مَعْشَر الْجِنّ قَدْ اسْتَكْثَرْتُمْ مِنَ الْإِنْس} بِإِغْوَائِكُمْ {وَقَالَ أَوْلِيَاؤُهُمْ} الَّذِينَ أَطَاعُوهُمْ {مِنَ الْإِنْس رَبّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضنَا بِبَعْضٍ} انْتَفَعَ الْإِنْس بِتَزْيِينِ الْجِنّ لَهُمْ الشَّهَوَات وَالْجِنّ بِطَاعَةِ الْإِنْس لَهُمْ {وَبَلَغْنَا أَجَلنَا الَّذِي أَجَّلْت لَنَا} وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة وَهَذَا تَحَسُّر مِنْهُمْ {قَالَ} تَعَالَى لَهُمْ عَلَى لِسَان الْمَلَائِكَة {النَّار مَثْوَاكُمْ} مَأْوَاكُمْ {خَالِدِينَ فِيهَا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّه} مِنَ الْأَوْقَات الَّتِي يَخْرُجُونَ فِيهَا لِشُرْبِ الْحَمِيم فَإِنَّهُ خَارِجهَا كَمَا قَالَ تَعَالَى {ثُمَّ إن مرجعهم لإلى الجحيم} وعن ابن عَبَّاس أَنَّهُ فِيمَنْ عَلِمَ اللّٰه أَنَّهُمْ يُؤْمِنُونَ فَمَا بِمَعْنَى مَنْ {إِنَّ رَبّك حَكِيم} فِي صُنْعه {عَلِيم} بِخَلْقِهِ {وَكَذَلِكَ} كَمَا مَتَّعْنَا عُصَاة الْإِنْس وَالْجِنّ بَعْضهمْ بِبَعْضٍ {نُوَلِّي} مِنَ الْوِلَايَة {بَعْض الظَّالِمِينَ بَعْضًا} أَيْ عَلَى بَعْض {بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ} مِنَ المعاصي

**ترجمه**: او (وړاندېنې آیت) دَ ابوجهل وغیره په باره کښې نازل شو، آیا هغه سړی چې دکفرد وجې نه مړوې اوبیامونږ هغه دَ هدایت په ذریعه راژوندې کړې وی او هغه ته موداسې نور ورکړې وی چې دَهغې په رڼاسره دَخلقو په مینځ کښې ګرځی (یعنی) دَهغه نور په ذریعه حق اوباطل وینی او هغه (نور) دَایمان دې د هغه چا په شان لفظ (مثل) زائددې کیدې شی چې څوک په تیارو کښې ورک شوې وی؟ او دَتیارو نه هډو راوځی نه او هغه کافردې نه شی کیدې لکه څنګه چې دَ مؤمنانو دَپاره ایمان ښائسته جوړکړې شوې دې دغه شان دکافرانو دَپاره

دَهغوی اعمال یعنی کفر او ګناه ښائسته جوړ کړې شوی دی. او څنګه چې مونږ دَ مکې مشران فاسق (دَ حدنه تجاوز کونکی) جوړ کړل دغه شان په هر کلی کښې دَهغې مجرمان دَایمان نه منع کولو سره فاسقان (دَحدنه تجاوز کونکی) جوړ کړل دې دَپاره چې هغه خلق هلته د فریب او کړی او دغه خلق هم دخپل ځان سره مکر کوی ځکه چې دَهغې وبال به هم په هغوی راپریوتونکې دې او هغوی ته دَدې هډو احساس نشته. او کله چې مکې والو ته دَ نبی ﷺ دَ صداقت څه نخښې راشی نو وائی چې مونږ به په دې باندې هیڅ کله هم ایمان رانوړو تر هغه وخته پورې چې مونږ ته هم هغه شان رسالت رانه کړې شی څنګه چې دَ الله تعالی رسولانو ته ورکړې کیدې شی او تر هغه وخته پورې چې مونږ ته خبرداری رانه کړې شی ځکه چې مونږ دَهغوی نه په مال او عمر کښې زیات یو. الله تعالی فرمائی داخبره خو الله تعالی ښه پیژنی چې خپله پیغمبری چاله ورکړی (رسالات) جمع او افراد سره دې او حیث هغه فعل مفعول به دې په کوم چې أَعْلَمُ دلالت کوی یعنی هغه مناسب موقع ښه پیژنی چې چرته خپل پیغام اولیږی نو هم هغه ځائی ته خپل پیغام ورلیږی او دا خلق دَدې اهل نه دی. دیرزر به دغه خلقو ته چې مذکوره خبره کولو سره ئې دَجرم ارتکاب کړې دې دَالله تعالی په نیز دَهغوی دَمکر او دهوکې په سبب ذلت او سخت عذاب اورسی. کوم سړې چې الله تعالی په هدایت باندې روان کړی نو دَهغه سینه دَاسلام دَپاره کولاووی په داسې توګه چې دَ هغه په زړه کښې نور اچوی چې دهغې وجه دَهغه زړه کولاؤ شی او دا (اسلام) قبلوی. لکه چې په حدیث کښې راغلی دی او څوک چې الله تعالی بې لارې کول غواړی دَهغه سینه دَ اسلام دَ قبلولو نه ډیره تنګه کړی (ضَيِّقًا) په تخفیف او تشدید سره دې (حَرَجًا) د په راء کسرې سره صفت دې او دَدې په فتحې سره مصدر دې دَ مبالغې په توګه صفت راوړلې شوې دې. (دهٔ ته د اسلام په تصور سره) کله چې هغه دَ ایمان مکلف جوړ کړې شی نو اسلام په هغه باندې دَ دروندوالی دَ وجې هغه ته داسې معلومیږی چې دَ(هغه روح) دَآسمان طرف ته ځیژی. او په یو قراءت کښې دَ(يَصَّعَدُ) په ځائی يَصَّاعَدُ دې او په دواړو صورتو کښې دَتاء په صاد کښې ادغام دې او یو بل قراءت کښې دَ صاد په سکون سره دې دَ فعل مذکور په شان الله تعالی ایمان نه راوړونکو باندې عذاب یا شیطان مسلط کوی او اې محمد ﷺ په کوم باندې چې ته ئې هم دغه ستا دَ رب نیغه لاره په هغې کښې هیڅ قسم کوږوالې نشته. په دې باندې نصب دَ جمله حال مؤکده کیدو دَ وجې نه دې او په دې کښې عامل اسم اشاره دې دَخپلې معنی په اعتبار سره او مونږ نصیحت حاصلونکو دَپاره آیاتونه ښکاره ښکاره بیان کړی دی په دې کښې اصل کښې دَتاء په ذال کښې ادغام دې یذکرون په معنی په یتعظون دې او د تخصیص وجه دا ده چې هم دغه خلق دَ آیات نه نفع حاصلوی او هم دَدوی دَپاره ددوی رب سره دَ سلامتیا کور یعنی جنت دې او هم هغه د دویٔ ولی دې دَهغوی دَ اعمالو دَ وجې نه هغه ورځ یاده کړئ په کومه ورځ چې به مونږ ټول راجمع

کوو، نون او یاء سره، یعنی الله تعالی به خپل ټول مخلوق جمع کړی او هغوی ته به وئیلی شی ای دَ پیریانو جماعت تاسو دَ اغواء په ذریعه دیرزیات انسانان خپل منونکی جوړکړل. دَ انسانانو نه به دپیریانو هغه دوستان چاچې دَهغوی اطاعت اوکړو اووائی ای زمونږ پروردګار زمونږ نه هریودَ بل نه ښه فائده اوچته کړه (یعنی) انسانانودَ پیریانونه فائده اوچته کړه دپیریانو دانسانانودَپاره شهوتونه ښکلې جوړولودَ وجې نه او پیریانو (فائده اوچته کړه) دَ انسانانودَ هغوی تا بعدارئ کولو دَ وجې نه اومونږخپل هغه مقرر میعاد ته اورسیدو کوم چې تازمونږ دَ پاره مقررکړې دې اوهغه دَ قیامت ورځ ده اوداد‌هغوی دَطرف نه د حسرت اظهار دې الله تعالی به هغوی ته دَ فرښتو په ذریعه اوفرمائی چې دوزخ ستاسو دَ اوسیدو ځائی دې تاسو به همیشه په هغې کښې پراته ئی مګر دومره موده چې الله تعالی اوغواړی چې هغوی په دغه موده کښې دَ ګرمو اوبو څکلودَپاره اوځی څکه چې ګرمې اوبه به دَ دوزخ نه بهر وی لکه چې الله تعالی اوفرمائیل بیابه دَهغوی دَ دوزخ طرف ته واپس کیږی. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چې دا استثناء دَهغه خلقو په باره کښې ده دَ چا په باره کښې چې الله تعالی ته معلوم دی چې هغوی به ایمان راوړی نو (په دې صورت کښې) مَا، دَ من په معنی کښې وی یقینًا ستارب په خپل صنعت کښې حکیم اودَ خپل مخلوق په باره کښې علیم دې اودغه شان (یعنی) څنګه چې نافرمانه انسانانو او پیریانولره دَیوبل نه فائده حاصلونکی جوړکړل هم دغه شان به مونږ بعض ظالمان دَ بعضودَپاره امدادیان جوړکړو دَهغوی دَبدو اعمالودَ وجې نه کوم چې به هغوی کول.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: مِثْلُ زَائِدَةٌ، دې دَپاره چې دَ تکرار شبه باقی پاتې نه شی دَ زائد کیدودویمه وجه داده چې مثل صفت دې که چرې مثل زائدا ونه منلې شی نودَ صفت په ظلمات کښې کیدل لازمیږسی حالانکه ظلمات ذات دې نه چې صفت.

**قوله**: ضَيِّقًا بِالتخفيف، مصدردې په دې صورت کښې به حمل مبالغةً زید عدل دَ قبیل نه دَ مجاز په توګه وی اوکه چرې په تشدید سره وی نوصفت مشبه به شی.

**قوله**: حَرِجًا: دَ راء په کسرې سره دَ صفت مشبه صیغه دَ اختلاف لفظ دَ وجې نه په تکرارکښې یوقسم خوبی پیدا شوې ده اوباقی حضراتو دَ راء په فتحې سره لوستلې دې په دې صورت کښې به دَ حرجة جمع وی په معنی شدة الضيق اوکه چرې مصدروی نوحمل به مبالغةً وی.

**قوله**: يَصَّعَّدُ: باب تفعل نه اود يصاعد باب تفاعل نه.

**قوله**: من الولاية بفتح الواو په معنی د النصرة اود واؤ کسرې سره دې نو په معنی سلطان او دویمه معنی دمقام په مناسبت سره ډیره اعتبار ده هم په دې معنی باندې د مصنف علیه الرحمة قول علی البعض دلالت کوی.

**[ایاتونه: ۱۳۰-۱۴۰]**

{يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ} أَيْ مِنْ مَجْمُوعِكُمْ أَيْ بَعْضِكُمْ الصَّادِق بِالْإِنْسِ أَوْ رُسُل الْجِنّ نُذُرهمْ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ كَلَام الرُّسُل فَيُبَلِّغُونَ قَوْمهمْ {يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا قَالُوا شَهِدْنَا عَلَىٰ أَنفُسِنَا} ان قد بلغنا قال تعالى {وغرتهم الحياة الدنيا} فلم يؤمنوا {وشهدوا على أنفسهم أنهم كانوا كافرين} {ذَٰلِكَ} أَيْ إرْسَال الرُّسُل {أَن} اللَّام مُقَدَّرَة وَهِيَ مُخَفَّفَة أَيْ لِأَنَّهُ {لَّمْ يَكُن رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرَىٰ بِظُلْمٍ} مِنْهَا {وَأَهْلُهَا غَافِلُونَ} لَمْ يُرْسَل إلَيْهِمْ رَسُول يُبَيِّن لَهُمْ {ولكل} من العالمين {دَرَجَات} جَزَاء {مِّمَّا عَمِلُوا} مِنْ خَيْر وَشَرّ {وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء {وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ} عَنْ خَلْقه وَعِبَادَتهمْ {ذُو الرَّحْمَةِ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ} يَا أَهْل مَكَّة بِالْإِهْلَاكِ {وَيَسْتَخْلِفْ مِن بَعْدِكُم مَّا يَشَاءُ} مِنْ الْخَلْق {كَمَا أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ آخَرِينَ} أَذْهَبَهُمْ ولكنه ابقاكم رحمة لكم {إِنَّمَا تُوعَدُونَ} مِنْ السَّاعَة وَالْعَذَاب {لَآتٍ} لَا مَحَالَة {وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ} فَائِتِينَ عَذَابنَا {قُلْ} لَهُمْ {يَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ} حَالَتكُمْ {إِنِّي عَامِلٌ} عَلَى حَالَتِي {فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن} مَوْصُولَة مَفْعُول الْعِلْم {تَكُونُ لَهُ عَاقِبَةُ الدَّارِ} أَيْ الْعَاقِبَة الْمَحْمُودَة فِي الدَّار الْآخِرَة أَنَحْنُ أَمْ أَنْتُمْ {إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ} يَسْعَد {الظالمون} الكافرون {وَجَعَلُوا} أَيْ كُفَّار مَكَّة {لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ} خَلَقَ {مِنَ الْحَرْثِ} الزَّرْع {وَالْأَنْعَامِ نَصِيبًا} يَصْرِفُونَهُ إلَى الضِّيفَان وَالْمَسَاكِين وَلِشُرَكَائِهِمْ نَصِيبًا يَصْرِفُونَهُ إلَى سَدَنَتهَا {فَقَالُوا هَٰذَا لِلَّهِ بِزَعْمِهِمْ} بِالْفَتْحِ وَالضَّمّ {وَهَٰذَا لِشُرَكَائِنَا} فَكَانُوا إذَا سَقَطَ فِي نَصِيب اللَّه شَيْء مِنْ نَصِيبهَا الْتَقَطُوهُ أَوْ فِي نَصِيبهَا شَيْء مِنْ نَصِيبه تَرَكُوهُ وَقَالُوا إنَّ اللَّه غَنِيّ عَنْ هَذَا كَمَا قَالَ تَعَالَى {فَمَا كَانَ لِشُرَكَائِهِمْ فَلَا يَصِلُ إِلَى اللَّهِ} أَيْ لِجِهَتِهِ {وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَىٰ شُرَكَائِهِمْ سَاءَ} بِئْسَ {مَا يَحْكُمُونَ} حُكْمهمْ هذا {وَكَذَٰلِكَ} كَمَا زُيِّنَ لَهُمْ مَا ذُكِرَ {زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ} بِالْوَأْدِ {شُرَكَاؤُهُمْ} مِنْ الْجِنّ بِالرَّفْعِ فَاعِل زَيَّنَ وَفِي قِرَاءَة بِبِنَائِهِ لِلْمَفْعُولِ وَرَفْع قَتْل وَنَصْب الْأَوْلَاد بِهِ وَجَرّ شُرَكَائِهِمْ بِإِضَافَتِهِ وَفِيهِ الْفَصْل بَيْن الْمُضَاف والمضاف إليه بالمفعول ولا يضر وإضافته الْقَتْل إلَى الشُّرَكَاء لِأَمْرِهِمْ بِهِ {لِيُرْدُوهُمْ} يُهْلِكُوهُمْ {وليلبسوا} يخلطوا {عليهم دينهم ولو شاء الله ما فعلوه فذرهم وما يفترون} {وَقَالُوا هَٰذِهِ أَنْعَامٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ} حَرَام {لَّا يَطْعَمُهَا إِلَّا مَن نَّشَاءُ} مِنْ خَدَمَة الْأَوْثَان وَغَيْرهمْ {بِزَعْمِهِمْ} أَيْ لَا حُجَّة لَهُمْ فِيهِ {وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا} فَلَا تُرْكَب كَالسَّوَائِبِ وَالْحَوَامِي {وَأَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُونَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا} عِنْد ذَبْحهَا بَلْ يَذْكُرُونَ اسْم أَصْنَامهمْ وَنَسَبُوا ذَلِكَ إلَى اللَّه {افْتِرَاءً عَلَيْهِ سَيَجْزِيهِم بِمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ} عليه {وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ الْأَنْعَامِ} الْمُحَرَّمَة وَهِيَ السَّوَائِب وَالْبَحَائِر {خَالِصَةٌ} حَلَال {لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا} أَيْ النِّسَاء {وَإِن يَكُن

مَيْتَةً} بِالرَّفْعِ وَالنَّصْبِ مَعَ تَأْنِيثِ الْفِعْلِ وَتَذْكِيرِه {فَهُمْ فِيهِ شُرَكَاءُ سَيَجْزِيهِمْ} الله {وَصْفَهُمْ} ذٰلِكَ بِالتَّحْلِيلِ وَالتَّحْرِيمِ أَيْ جَزَاءَهُ {إِنَّهُ حَكِيمٌ} فِي صُنْعِه {عليم} بخلقه {قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُوا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ {أَوْلَادهمْ} بِالْوَأْدِ {سَفَهًا} جَهْلًا {بِغَيْرِ عِلْمٍ وَحَرَّمُوا مَا رزقهم الله} مما ذكر {افتراء على الله قد ضلوا وما كانوا مهتدين}

**ترجمه**: اې دَ پیریانواوانسانانوډلې آیا تاسول ته هم ستاسونه رسولان نه وو راغلي؟ یعني ستاسودَ مجموعې نه کوم چې په انسانانوباندې صادق دې یادَ پیریانود رسولانو نه وو هغه خبرورکونکي پیریان مراد دی چې (دَ انساني) رسولانو کلام به یې اوریدلو او خپل قوم ته به یې رسول. چې تاسو ته به یې زما آیاتونه لوستل او تاسوبه یې ددې ورځې دَ راتلونه خبرولې هغوی به وائی (او) مونږ پخپله دَخپل ځان خلاف ګواهي ورکوو چې هغوی مونږ ته پیغام رسولې وو. الله تعالی به فرمائی چې دوی دَ دنیاژوند په دهوکه کښې اچولې وو دَ څه په وجه چې هغوی ایمان رانوړو اوهغوی به دَ ځان خلاف ګواهي ورکوی چې هغوی کافران وو. دا دَ رسولانو رالیږل دَدې وجې نه دی چې ستارب هیڅ یو کلی په داسې حال کښې هلاکول نه غواړی چې هغوی ناخبروی اوچې هغوی له چرته رسول نه وی لیږلې شوې هغه دَهغوی خبرونکې وی اوهر نیك اوبد عمل کونکی ته به (دَهغه دَعمل) بدله ملاویږی اوستا رب دَهغوی دَ عمل نه ناخبره نه دې (یعملون) یاء او تاء سره دې اوستارب دَخپل مخلوق نه اودَهغوی دَعبادت نه مستغني دې دَ رحمت والا دې اې اهل مکه که چرې هغه اوغواړی نوتاسو به هلاك کړی او نیست اونابود به موکړی اوتاسو نه پس چې کوم مخلوق غواړی ستاسو خلیفه به یې جوړکړی لکه چې تاسو ئې دَ نورو قومونودَنسل نه پیداکړئی کوم چې هغه هلاك کړل خو صرف په خپل فضل سره ئې تاسو باقي اوساتلې. یقینًا تاسوسره چې دَکوم قیامت او عذاب وعده کولې شی هغه خامخا راتلونکې دې او تاسو (مونږ) لره عاجزکونکې نه یئې یعني تاسو زمونږ دَعذاب نه بچ وتلې نه شئ (اې محمد ﷺ) ته هغوی ته اووایه اې زما قومه تاسو په خپله طریقه سره عمل کوئی زه په خپله طریقه عمل کوم تاسو ته به ډیره زر معلومه شی چې دَچا دَ آخرت په کورکښې انجام بهتردې؟ مَن موصوله دَتعلمون مفعول دې یعني په آخرت کښې ښوك دَ انجام په اعتبارسره بهتردې؟ مونږ یا تاسو، دا یقیني خبره ده چې ظالمان کافران به کامیاب نه شی اودَمکې کافرانودَالله تعالی د پیداکړې شوې فصل اوڅاروونه یوه حصه دَهغه(الله تعالی)دپاره مقررکړې ده کومه چې هغوی دَمیلمانو او مسکینانودَپاره خرچ کوی اویوه حصه یې دَخپلو معبودانودَپاره مقررکړې ده کومه چې هغوی دَ کعبه دَ خادمانودَپاره خرچ کوی او په خپل ګمان سره وائی چې دادَالله تعالی دَپاره ده (زعم) دَزاء په فتحې او ضمې سره دې اودا زمونږ دَمعبودانودَپاره ده. کَه دَ الله تعالی په حصې کښې به څه

دَ بتانو د حصې نه کښې پريوتل نو او چتول به ئې او که دَ بتانو په حصې کښې به يئ څه دَ الله تعالى په حصه کښې پريوتل نو پريخودل به ئې او وئيل به ئې الله تعالى دَدې نه بې پرواه دې لکه چې الله تعالى فرمائي بيا چې کومه دَهغوى دَبتانو حصه وى نو هغه الله تعالى ته نه رسى او کومه چې دَ الله تعالى حصه ده هغه دَدوى بتانو ته رسى کومه فيصله چې دا خلق کوى څومره ناخوښه ده او څنګه چې مذکوره څيزونه دَهغوى دَپاره ښائسته جوړکړې شوى دى دغه شان دَ ډيرو مشرکانو دَپاره دَ ژوندى خښولو په ذريعه دَهغوى دَ اولاد قتل کول دَهغوى پيريانو معبودانو ښکلې جوړکړى دى. (شرکاء) په رفع سره دَ زَيَّنَ فاعل کيدو دَ وجې نه او په يو قراءت کښې (زُيِّنَ) دمجهول صيغې سره او دَ قتل په رفع او (زين دَ وجى نه) دَ الاولاد په نصب سره او دَ شرکاء دَ جرسره، دَدې دَ اضافت دَ وجې نه او په دې کښې مضاف او مضاف اليه يه مينځ دَمفعول فصل دې او په دې کښې هيڅ قباحت نشته او دَ قتل اضافت دَ شرکاء طرف ته دَهغوى دَ حکم کولو دَ وجې نه دې دې دَپاره چې هغوى دا برباد کړى او دې دَپاره چې دوئ لره دَدوى دين په دوى باندې مشتبه جوړکړى او که چرې الله تعالى ته منظور وه نو هغوى به دا سې نه کول. لهذا هغوى او دَهغوى دَ ځان نه جوړې کړې شوې خبرې پريږده او هغوى دا وائي چې دا څه څناور او فصل فصل يئ دى دَ کوم استعمال چې منع دې د دغه بتانو دَ خادمانو نه شوې صرف هغه کسان خوراك کولې شى چاته چې مونږ اجازت ورکړو (دا پابندى) دَهغوى دَخپل ګمان په اعتبار سره ده يعنى هغوى سره په دې باندې هيڅ دليل نشته او څه څناورى چې په هغوى باندې سورلى منع ګرځولې شوې ده چې په دې باندې سورلى نه شى کيدې لکه سوائب او حوامى او څه څناوردى چې دَ ذبح په وخت په هغې باندې دَ الله تعالى نوم نه اخلى بلکه په هغې باندې دَخپلو بتانو نومونه اخلى او دَهغى نسبت دوئ دَالله تعالى طرف ته کوى صرف په الله تعالى باندې دَ افتراء کولو په توګه الله تعالى به ډير زر هغوى ته دَ دغه درغو جوړونکو سزا ورکړى. او هغوى وائى چې کوم څه دَ دغه حرام کړې شوو څناورو په خيټه کښې دى هغه سوائب او بحائر دى هغه زمونږ دَ سړو دَپاره په خاص توګه حلال دى او زمونږ دَ ښځو دَپاره حرام دى او که چرې هغه مړه مرداره وى (ميتة) په رفع او نصب سره دَ فعل (يکن) په تذکير او تانيث سره نو په دې کښې ټول برابر شريك دى. ډير زر به الله تعالى دَ دوى دَ دې تحليل او تحريم دَ ځان نه جوړو شوو خبرو سزا ورکړى. يقينًا هغه په خپل صنعت کښې حکيم (او) دَخپل مخلوق باره کښې خبردار دې. يقينًا هغه خلق په خساره کښې پريوتل چاچې خپل اولاد ژوندې خښ کړو او دَ جهالت او بې وقوفتيا دَ وجې نه ئې قتل کړو (قتلوا) دَ تاء په تشديد او تخفيف سره دې او دَ الله تعالى ورکړې شوې مذکوره رزق په الله تعالى باندې دروغ جوړولو سره حرام او ګرځولو يقينًا هغوى ګمراه شو او نيغه لاره موندونکى نه دى.

..........

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: يقال لهم دَدي اضافي مقصد داخودل دی چې دَ يامعشرالجن عامل محذوف دي اوهغه يقال دي نه چې ماقبل كښې مذكور نحشرهم،المعشر په معنى دَ جماعت اودَدي جمع مَعَاشِر ده دَ جن نه مراد شيطانان دی.

**قوله**: اسْتَكْثَرْتُمْ سين، تاء دَ كثرت د تاكيد دَپاره دی.

**قوله**: بِإِغْوَائِكُمْ په دې كښې حذف دَ مضاف طرف ته اشاره ده، أي باغواءت الإنس.

**قوله**: من مَجْمُوعِكُمُ الصَّادِقِ بِالإِنْسِ دَدې عبارت د اضافې مقصد دَيوسوال جواب دې.

**سوال**: رسول انسان وی نه چې پيرې حالانكه د رسُلٌ منكم نه معلوميږی چې رسول دَ جناتو نه هم وی څكه چې خطاب انس اوجن دواړو ته دې.

**جواب**: په خطاب كښې چې كله ثقلين راجمع شی لكه چې دلته جمع دی نو منكم وئيل صحيح وی سره دَدې چې مراد هم يووی لكه يخرج منهما اللؤلؤ والمرجان كښې تريخ درياب مراددې څكه چې درياب تريخ نه مرغلرې راوځی نه چې دَ خوږ درياب نه خوبيا هم منهما وئيل صحيح دی. منكم اى من مجموعكم الصادق بالانس مطلبٌ دادې چې منكم نه مراد مجموعه مخاطبين دی او په مجموعه كښې انس هم داخل دې. لهذا منكم به هغه وخت هم صادق وی كله چې صرف هم يوفريق مراد وی هغه دلته انس دې. رسلٌ سره بل جواب طرف ته اشاره ده. دَ رسلٌ نه رسول اصطلاحي مرادنه دې بلكه لغوی معنى قاصد مراددې اوداهغه جنات وو كومو چې دَ رسول الله ﷺ هغه قرآن اوريدلې وو لكه چې هغوی دَحضورپاك قاصدان اونذيررو.

**قوله**: ذلك، دادَ مبتداء محذوف خبردې تقديری عبارت دادې الأمرذلك د مبتداء محذوف دَ يوسوال جواب دې. سوال دادې چې په ان لم يكن سره علت بيانيږی اَنْ اصل كښې لِأَنْ دې اوعلت دَ حكم وی اوذلك حكم نه دې. دَ جواب حاصل دادې چې ذلك دَ مبتداء محذوف خبردې أي الأمرذلك او په دې كښې حكم دې لهذا علت بيانول صحيح شو. لام مقدر منلوسره دَ عدم ربط اعتراض هم ختم شو.

**قوله**: قوم آخرين، نه مراد اهل سفينة نوح عليه السلام دی.

**قوله**: وَلَا يَضُرُّ، دَدې كلمې دَ اضافې مقصد صاحب كشاف او په هغه حضراتو باندې ردكول دی چې مصدر مضاف الى فاعل په مينځ فصل دَمفعول بلاضرورت شعری نه ناجائزوائی.

**تفصيل:** وكذلك زَيَّنَ لكثيرٍ من المشركين قَتْلَ أَوْلَادِهِم شركاؤهم، په دې آيت کښې متعدد قراءتونه دي. مکتوبه قراءت دَ جمهورو قراءت دې. زَيَّنَ معروف اوشرکاؤهم دَدې فاعل دې قَتْلَ دَ زَيَّنَ مفعول دې په دې قراءت باندې هيڅ اعتراض نشته دې. يوبل قراءت دَ ابن عامر دې دا قراءت هم دَ قراءت سبعه نه دې. دَ ابن عامر قراءت داسې دې وكذلك زُيِّنَ لكثيرٍ من المشركين قتلُ اولادهم شركائِهِمْ زُيِّنَ فعل مجهول، قَتْلُ، دَ زُيِّنَ فعل مجهول نائب فاعل کيدو دَ وجې نه مرفوع او اَوْلَادَهم مفعول کيدو دَ وجې منصوب اوشرکائِهِمْ دَ قَتْلُ مضاف اليه کيدو دَ وجې نه مجرور دې. په دې صورت کښې د قتلُ مضاف او شرکاء مضاف اليه په مينځ اولادَهم دَ مفعول فصل لازم راځي کوم چې بلاضرورت شعري په کلام منثور کښې جائزنه دې اوهغه هم په قرآن کښې چې دَ خپل لفظ اومعنى په اعتبارسره په فصاحت او بلاغت کښې حد د اعجاز ته رسيدلې دې. دَهغې دَنه صحيح کيدو وجه دَ نحويان په نيزداده چې مضاف اومضاف اليه په مينځ فصل بلاضرورت شعري جائزنه دې ځکه چې مضاف اليه دَمضاف دَپاره په منزله دَ جز وي ځکه چې مضاف اليه دَمضاف دَتنوين په ځائي واقع کيږي لهذا څنګه چې دَ اسم د اجزاؤ په مينځ کښې فصل جائزنه دې دغه شان مضاف اومضاف اليه په مينځ کښې فصل صحيح نه دې اوداد بصرياتو قول دې البته دَ کوفيانو په نيز که چرې مضاف مصدر اومضاف اليه دَدې فاعل وي اوفصل دَمفعول وي لکه چې دَ ابن عامر په مذکوره قراءت کښې دې نو دا جائزدې. لابضره وئيلوسره مفسرعلام دَدې جواب طرف ته اشاره کړې ده (اعراب القرآن) ابن مالك رحمه الله هم دَ کافيه په شرح کښې دې فصل ته بلاضرورت شعري جائزوئيلى دى، قال، اضافةُ المصدر الى الفاعل مفعولا بينهما بمفعول المصدر جائزة.

**قوله:** واِضَافَةُ القَتْلِ إلى شُرَكَائِهِمْ لأَمْرِهِمْ به، اضافة القتل مبتداء دې او لأمرهم به دَدې خبردې. مطلب دادې چې دَقتل اضافت دَ شرکاؤ طرف ته مجازى دې اصل قاتلانو خو مشرکان دى مګرچونکه دَقتل حکم ورکونکى شرکاء دى په دې وجه دَ قتل اضافت دَ شرکاء طرف ته دَهغوى امر کيدو دَ وجې نه کړې شوې دې هم دې ته اسنادمجازى وائى. لکه بنى الأميرُ المدينة کښې دَبناء اضافت دَامير طرف ته مجازى دې دهغه دَ بناء حکم ورکولو دَ وجې نه.

**قوله:** بالرَّفْعِ والنَّصْبِ که چرې کان تامه وى نو ميتة به مرفوع وى اوکه چرې ناقصه وى نو نصب به وى.

[ايا تونه: ١٤١ - ١٤٤]

{وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَ} خلق {جَنَّاتٍ} بساتين {مَعْرُوشَاتٍ} مبسوطات على الأرض كالبطيخ {وَغَيْرَ مَعْرُوشَاتٍ} بأن ارتفعت على ساق كالنخل {و} انشأ {النخل والزرع مختلفا أكله} ثمره وحبه في الهيئة والطعم {وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا} ورقهما حال {وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ} طعمهما {كُلُوا مِنْ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ} قبل النضج {وَآتُوا حَقَّهُ} زكاته {يَوْمَ حَصَادِهِ} بالفتح والكسر من العشر أو نصفه {وَلَا تُسْرِفُوا} بإعطاء كله فلا يبقى لعيالكم شيء {إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ} المتجاوزين ما حد لهم {وَ} أنشأ {مِنَ الْأَنْعَامِ حَمُولَةً} صالحة للحمل عليها كالإبل الكبار {وَفَرْشًا} لا تصلح له كالإبل الصغار والغنم سميت فرشا لأنها كالفرش للأرض لدنوها منها {كُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ} طرائقه من التحريم والتحليل {إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ} بين العداوة {ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ} أصناف بدل من حمولة وفرشا {مِنَ الضَّأْنِ} زوجين {اثْنَيْنِ} ذكر وأنثى {وَمِنَ الْمَعْزِ} بالفتح والسكون {اثْنَيْنِ قُلْ} يا محمد لمن حرم ذكور الأنعام تارة وإناثها أخرى ونسب ذلك إلى الله {آلذَّكَرَيْنِ} من الضأن والمعز {حَرَّمَ} الله عليكم {أَمِ الْأُنْثَيَيْنِ} منهما {أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنْثَيَيْنِ} ذكرا كان أو أنثى {نَبِّئُونِي بِعِلْمٍ} عن كيفية تحريم ذلك {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فيه المعنى من أين جاء التحريم فإن كان من قبل الذكورة فجميع الذكور حرام أو الأنوثة فجميع الإناث أو اشتمال الرحم فالزوجان فمن أين التخصيص والاستفهام للإنكار {وَمِنَ الْإِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ قُلْ آلذكرين حرم أم الأنثيين أما اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنْثَيَيْنِ أَمْ} بل {كُنْتُمْ شُهَدَاءَ} حضورا {إِذْ وَصَّاكُمُ اللَّهُ بِهَذَا} التحريم فاعتمدتم ذلك لا بل أنتم كاذبون فيه {فَمَنْ} أي لا أحد {أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا} بذلك {ليضل الناس بغير علم إن الله لا يهدي القوم الظالمين}

**ترجمه:** او هم هغه ذات دې چا چې باغونه پيدا كړل زيلي والا په زمكه باندې خوريدونكي هم مثلاً خربوزې وغيره او دَ تنې والا هم كوم چې په تنه باندې قائم وى مثلاً دكهجورې ونې وغيره اوكهجورې اوفصل ئې پيدا كړو چې دَهغې ميوې او دانې په شكل اوصورت او په خوند كښې مختلف وى. او زيتون اوانار (يې پيدا كړل) دكوموپاڼې چې يوبل سره ملاوېږى اودهغې خوند جدا جداوى. ميوې دَ لګيدونه پس دَ پخيدونه وړاندې خورئى (اوروستوهم) اودَهغې دَ پرې كولوپه وخت دَهغې حق زكوة اداكوئى (حَصاد) په فتحې اوكسرې سره دې (مراد) عشر يا نصف عشر دې او (انفاق كښې) اسراف مه كوئى چې ټول پيداوار وركړنى اوستاسودَ بال بچ دَپاره هيڅ هم باقى پاتې نه شي. الله تعالى په متعين كړې شوى څيز كښې تجاوزكونكى نه خوښوى. څه ځناورئى داسې پيدا كړل چې دَ بوج اوړلولائق دى مثلاً غټ اوښان او څه واره دَ بوج اوړلوقابل دى لكه دَاوښانو بچى چيلئى. دې ته دَ فرش ويلو وجه داده چې دا زمكې دَپاره زمكې ته نيزدې كيدودَ وجې دَ فرش په شان وى چې الله

تعالى تاسو ته درکړي دي دَهغې نه خورئ (څکئ) او په حلال حراملو کښې دَ شيطان دَ طريقوتابعداري مه کوئ يقينًا هغه ستاسو ښکاره دښمن دې (پيدائي کړل) اته قسمونه (ثمانية أزواج)د حمولة وفرشًا نه بدل دې دَ ګډو نراوښځې جوړه، دَ چيلو جوړه (المعز) دَعين په فتحې اوسکون سره، اې محمد ﷺ ته دَ دغه خلقو نه تپوس اوکړه چاچې کله دَ څناورو نران حرام کړل اوکله دَهغې ښځې اودَدې (حرمت) نسبت ئې دَ الله تعالى طرف ته اوکړوآيا يادَ ګډو اوچيلو مذکوره دواړه قسمه نران الله ستاسو دَپاره حرام کړي دي يا دَهغې ښځې؟ يا هغه چې د دواړو ښځوپه خيټه کښې دي که نر وي اوکه ښځه تاسو ماته دَهغې دَتحريم کيفيت په څه دليل سره اوښايئ که چرته تاسو په دې کښې رښتونی ئی. مطلب داچې تحريم دَ کوم ځائې نه راغلو؟ که دَ نرکيدو دَوجې نه دی نوټول نران حرام کيدل پکاردي ياکه دَ ښځې کيدو دَ وجې نه وی نو ټولې ښځې حرام کيدل پکاردي (ياکه تحريم دَ بچې) په رحم کښې دَ کيدو دَ وجې نه راغلې وي نو (نراوښځه) دواړه قسمونه د حرام کيدل پکاردي، مګر داتخصيص دَ کوم ځائې نه راغلو؟ او استفهام انکاري دې او په اوښانوکښې دوه قسمونه او په غواګانوکښې دوه قسمونه ته دوی نه تپوس اوکړه چې الله تعالى دا دواړه نران حرام کړي دی که دواړه ښځې؟ يا هغه (بچې) کوم چې ښځې څناورپه خيټه کښې ګرځوی آيا تاسو حاضر وئې چې الله تعالى تاسوته دَ دغه تحريم حکم درکړوچې تاسو په دې باندې يقين اوکړو داسې نه ده بلکه تاسو په دې معامله کښې دروغ وايئې نودَ هغه چا نه به لوئی ظالم څوک وی؟ هيڅوک نشته چاچې په دې معامله کښې په الله تعالى باندې بهتان اولګولو دې دَپاره چې خلق بې دليله ګمراه کړي. الله تعالى ظالمانو خلقو ته هدايت نه ورکوي.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: مَعْرُوْشَات، اسم مفعول جمع مؤنث، واحد معروشة په شپولونوباندې ورختلې زيلئی، حضرت ابن عباس ﷺ فرمائيلی دی چې مطلق زيلوته وئيلې شی که شپولونوباندې ورخيژولې شوی وی اوکه نه، په دې کښې انګور تربوز خربوز کدو وغيره هرقسم زيلئ راځی.

**قوله**: أُكُلُهُ. ضمير مضاف اليه د زرع طرف ته راجع دې نه چې دَ نخل طرف ته ځکه چې نخل مؤنث سماعي دې اودَ أكُلُهُ ضمير مذکردې دَ کوم دَ وجې نه چې به مطابقت نه وی باقي په زرع باندې قياس کولې شی.

**قوله**: قَبْلَ النَّضْجِ دادَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: إِذَا أَثْمَرَ ددې په ظاهر څه فائده نه معلوميږی ځکه چې دَ خوراك تعلق دَ ميوې راتلونه پس وی د ميوو راتلونه وړاندې خوړل هډو ممکن نه دی؟

**جواب**: قبل النضج اضافه هم دَدې سوال جواب دې مطلب دادې چې په عام توګه باندې دا وهم راځی چې دَ میوې خوړلو تعلق دَ پخیدونه پس کیږی حالانکه بعض میوې دَ پخیدونه وړاندې هم خوړلې شی.

**قوله**: وَأَنشأ من الانعام، لفظ أنشأ مقدر منلو سره یې اشاره اوکړه چې دَ من الانعام عطف په جنت باندې دې ځکه چې په نیزدې باندې عطف کولو سره به معنی فاسد شی.

**قوله**: بَدَلٌ مِنْ حَمُوْلَة، دا په هغه خلقو باندې رددې څوك چې ثمانية أزواج دفعل مقدر مفعول ګرځولو سره تقدیر عبارت کلوا ثمانية ازواج منی ځکه چې تقدیر بغیر دَ ضرورت نه جائز نه دې.

**قوله**: من الضأن دا دَ ثمانية أزواج نه بدل دې ضأن دَ ضائن جمع ده.

**قوله**: زوجين اثنين: **سوال**: زوجين دَ زوجٌ تثنيه ده او زوج جوړې ته وائی چې په دوو باندې مشتمل وی لهذا دَ زوجين مطلب به داشی چې څلور، نو په دې صورت کښې به دَ زوجين صفت اثنين راوړل صحیح نه وی؟

**جواب**: دَ زوج دوه معنې دی ① زوج هغې ته وائی چې دهغې سره دَدې دَجنس دویم وی دَهغې دَپاره دَدوو کیدل ضروری نه دی لکه خاوند ته زوج وائی. ② دویمه معنی جوړه هغه وخت به دَ زوجين معنی وی څلور دَدې معنې په اعتبار سره به دَ زوجين صفت اثنين راوړل صحیح نه وی دلته اوله معنی مراد ده.

**قوله**: ءالذكرين دَ حرّم مفعول به مقدم دې او ام حرف عطف دې الانثيين به ذکرين باندې معطوف دې جمله دَ قل مقوله کیدو دَوجې نه په محل کښې دَنصب ده. (لغات القرآن للدرويش)

**[ایاتوله: ١٤٥ - ١٥٠]**

{قل لا أجد فيما أوحي إلي} شيئا {محرما على طاعم يطعمه إلا أن يكون} بالياء والتاء {ميتة} بالنصب وفي قراءة بالرفع مع التحتانية {أو دما مسفوحا} سائلا بخلاف غيره كالكبد والطحال {أو لحم خنزير فإنه رجس} حرام {أو} إلا أن يكون {فسقا أهل لغير الله به} أي ذبح على اسم غيره {فمن اضطر} إلى شيء مما ذكر فأكله {غير باغ ولا عاد فإن ربك غفور} له ما أكل {رحيم} به ويلحق بما ذكر بالسنة كل ذي ناب من السباع ومخلب من الطير {وعلى الذين هادوا} أي اليهود {حرمنا كل ذي ظفر} وهو ما لم تفرق أصابعه كالإبل والنعام {ومن البقر والغنم حرمنا عليهم شحومهما} الثروب وشحم الكلى {إلا ما حملت ظهورهما} أي ما علق بها منه {أو} حملته {الحوايا} الأمعاء جمع حاوياء أو حاوية {أو ما اختلط

{بِعَظْمٍ} مِنْهُ وَهُوَ شَحْم الأَلْيَة فَإِنَّهُ أُحِلَّ لَهُمْ {ذَٰلِكَ} التَّحْرِيم {جَزَيْنَاهُم} بِهِ {بِبَغْيِهِمْ} بِسَبَبِ ظُلْمِهِمْ بِمَا سَبَقَ فِي سُورَة النِّسَاء {وَإِنَّا لَصَادِقُونَ} فِي أَخْبَارنَا وَمَوَاعِيدنَا {فَإِن كَذَّبُوكَ} فِيمَا جِئْت بِهِ {فَقُل} لَهُمْ {رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ} حَيْثُ لَمْ يُعَاجِلكُمْ بِالْعُقُوبَةِ وَفِيهِ تَلَطُّف بِدُعَائِهِمْ إِلَى الْإِيمَان {وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ} عذابه إذا جاء {عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ} {سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا} نَحْنُ {وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ} فَإِشْرَاكنَا وَتَحْرِيمنَا بِمَشِيئَتِهِ فَهُوَ رَاضٍ بِهِ قال تعالى {كَذَٰلِكَ} كَمَا كَذَّبَ هَؤُلَاءِ {كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ} رُسُلهمْ {حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا} عَذَابنَا {قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ} بِأَنَّ اللَّه رَاضٍ بِذَلِكَ {فَتُخْرِجُوهُ لَنَا} أَيْ لَا عِلْم عِنْدكُمْ {إِن} مَا {تَتَّبِعُونَ} فِي ذَلِكَ {إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ} مَا {أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ} تَكْذِبُونَ فِيهِ {قل} إن لم يكن حُجَّة {فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ} التَّامَّة {فَلَوْ شَاءَ} هدايتكم {لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ} {قُلْ هَلُمَّ} أَحْضِرُوا {شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا} الَّذِي حَرَّمْتُمُوهُ {فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ} يُشْرِكُون

---

**ترجمه**: (اې محمد ﷺ) دوی ته اووایه چې کومه وحی ماله راورلې شوې ده په دې کښې خو زه داسې څه څیز نه وینم چې په یو خوړونکی باندې حرام وی اِلّا دا چې هغه مردار وی (یکون) په یاء اوتاء سره (مَیْتَةً) په نصب سره دې او په یو قراءت کښې په یاء تحتانیه سره دې یا بهیدلې وینه یعنی دم سائل په خلاف غیرسائل مثلاً تریخې او........ یا دَ خنزیر غوښه ځکه چې هغه خوناپاکه او حرام ده یا فسق وی چې دَ غیرالله په نوم باندې ذبح کړې شوې وی یعنی دَ غیرالله نوم اخستو سره ذبح کړې شوې وی. کوم سړې چې په مذکوره څیزونو کښې یو څیز ته مجبور وی او هغه دَدغې نه اوخوړل بغیر دَدې نه چې هغه دَ نافرمانئ کولو اراده لری او بغیر دَدې نه چې دَ حدضرورت نه تجاوز اوکړی نو یقینًا ددغه خوړلې شوی په باره کښې ستارب دَ معافئ نه کاراخستونکې اورحم کونکې دې اومذکوره څیزونو سره دَحدیث دَ وجې نه داړو والاشلونکی ځناوراو دَ پنجو والا مرغان شامل کړې شوی دی او په یهودو باندې مونږ دَ نوکونو والا ټول ځناور حرام کړل او هغه داسې ځناوردی چې دَهغوی ګوتې جدا نه وی لکه اوښ اوشترمرغ او دَغوا چیلئ لری اودَ پوښتورګیې یعنی ګردې وازګه مونږ په هغوی باندې حرام کړل مګر هغه وازګه کومه چې دَهغې شاپورې لګیدلې وی یا په کولمو کښې لګیدلې وی حوایا په معنی د دَ کولمو دحاویا یادحاویه جمع ده یا هغه وازګه چې هډوکی پورې لګیدلې وی او هغه دَ پتونو وازګه ده هغه دَ هغوی دَ پاره حلال وه. دَتحریم دا سزا مونږ هغوی ته دَسرکشئ دَ وجې نه ورکړه دکوم ذکرچې په سورت نساء کښې تیرشوې دې او مونږ په خپلو خبرونو او وعدو کښې ربښتونی یو اوځه چې تا راوړی دی که چرې دوی په هغې کښې ستا تکذیب اوکړی

نودوی ته اووایه ستاسو رب ډیر وسیع رحمت والا دې ځکه چې دَدې په سزاکښې هغه په تاسو باندې تادی نه ده کړې او (ربکم) وئیلو کښې هغوی ته دَایمان دعوت ورکولو کښې نرمی ده اودَهغه عذاب چې کله راشی نودَمجرمانو نه به نه واپس کیږی. دامشرکان به داسې وائی که چرې الله تعالی غوښتل نونه به مونږ شرک کولو اونه به زمونږ پلارانو اونه به مونږ څه څیزحرام ګرځولو (معلومه شوه) زمونږ شرک کول او زمونږ حرام ګرځول دَالله تعالی په مشیئت سره دی اوهغه په دې راضی دې. الله تعالی اوفرمائیل چې څنګه دی خلقوتکذیب اوکړو دغه شان ددوئ نه وړاندې خلقو هم دَ خپلو رسولانو تکذیب کړې وو تردې چې هغوی زمونږ دَ عذاب مزه څکله تاسو دَهغوی نه تپوس اوکړئی آیا هغوی سره په دې خبره چې الله تعالی په دې راضی دې څه دلیل شته. (که چرې شته) نوهغه زمونږ په وړاندې پیش کړئی یعنی تاسو سره هیڅ دلیل نشته. تاسو په دې معامله کښې صرف دَ خیالی خبرو اتباع کوئی او په دې معامله کښې صرف اټکلی خبرې کوئی یعنی په دې کښې دَدروغونه کار اخلئی. ته ورته اووایه چې که تاسو سره دلیل نه وی نود الله تعالی سره حجت تامه موجود دې. که چرې هغه ته ستاسو هدایت منظور وې نوهغه به تاسو ټولو ته هدایت درکړې وې. ته ورته اووایه چې خپل ګواهان پیش کړئی چې په دې خبره باندې ګواهی ورکړی چې کوم څیزتاسوحرام کړې دې الله تعالی هغه حرام کړې دې بیاکه هغوی تصدیق اوکړی نوته دَهغوی تصدیق مه کوه اودَداسې خلقودَ باطل خیالاتو اتباع مه کوه څوک چې زمونږ دَآیاتونو تکذیب کوی اوهغه چې په آخرت باندې ایمان نه لری او څوک چې (نور) دَخپل رب برابر ګرځوی (یعنی) شرک کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** مَآأُوحِيَ إِلَيَّ: شیئا، ما موصوله أوحیَ دَدې صله عائدمحذوف دې تقدیری عبارت دادې اَلَّذِیْ أَوْحَاهُ اللهُ إِلَيَّ.

**قوله.** شیئا، په دې کښې اشاره ده چې محرمًا دموصوف محذوف صفت دې أی شیئًا محرمًا.

**قوله:** مَیْتَةً بالنصب، کان که چرې ناقصه اومنلې شی نودَدې اسم ضمیریه مستتروی اودَدغه ضمیر مرجع به شئ محرم وی. او مَیْتَةً به د کان دخبر کیدو دَوجې منصوب وی. دا اویکونُ به دخپل اسم مرجع کوم چې محرم دې دَ رعایت دَوجې نه دَمذکرصیغه وی. دا دواړه صورتونه به دَ میتَةً دَ نصب په صورت کښې وی. دمیتةٌ دَ رفع په صورت کښې په تکون کښې صرف هم یوقراءت وی یعنی تاء فوقانیه او تکون به په دې صورت کښې تامه وی اومیتَةٌ به دَدې فاعل وی کله چې دغه ذکرشوې خبره په پوهه کښې راشی نودَمفسرعلام قول وفی قراءة بالرفع مع التحتانیة به سبقت قلم شی. صحیح الفوقانیه دې. فقط.

**قوله**: إِلَّآ أَنۡ تَكُونَ، كه چرې دعموم احوال نه مستثنى اومنلې شي نومستثنى به متصل وى اوكه چرې دا اووئيلې شي چې مستثنى منه محرمًا دې كوم چې ذات دې اومستثنى ميتة صف دې لهذا مستثنى دَ مستثنى منه دَ جنس نه نه كيدو دَ وجې به مستثنى منقطع وى. والأول أقرب. (صاوى)

**قوله**: حرام، بهتربه وه چې مفسرعلام دَ رجسٌ تفسير دَحرام په ځاى په نجس سره كړې وى ځكه چې حرمت خو إلَّآ أن يكون ميتة الخ استثناء نه مفهوم دې.

**قوله**: اوفسقا، دَدې عطف په ميتةً باندې دې دَدې مضاف محذوف دې أى ذافسق يابه د مبالغې په توګه باندې حمل وى په دې صورت كښې به د زيدعدلٌ دَ قبيل نه وى. لحم خنزير باندې هم دَ قرب دَ وجې نه عطف صحيح دې او فَإِنَّهُ رِجۡسٌ جمله معترضه ده.

**قوله**: أُهِلَّ لِغَيۡرِ اللهِ دادَ فسقًا صفت دې.

**قوله**: وَيُلۡحَقُ بِمَا ذُكِرَ بِالسُّنَّةِ په دې اضافې كښې دَ يوسوال مقدرجواب طرف ته اشاره ده.

**سوال**: د آيت نه دَمذكوره څلوروځيزونودَ حرمت حصر مفهوم معلوميږى حالانكه دَدې نه علاوه نورهم ډيرځيزونه حرام دى؟

**جواب**: حصر حقيقى مرادنه دې بلكه دَحديث په رنړاكښې نور هم ډيرځيزونه حرام دى.

**قوله**: الثروب، جمع ثربٍ، دَوازګې هغه نرئى جلئ ته وائى چې په معده اوكولموغيره پورې انختې وى.

**قوله**: كُلى، دادَ كُلْيَة جمع ده ګردې ته وائى.

**قوله**: شَحۡمُ الأَلۡيَةِ د دځناورو دملا او دلكى درميانى حصه، وازګه چې دَ لكئ دهډوكى پورې لګيدلې وى.

**قوله**: نحنُ داپه اشركنا كښې دَضمير مستتر تاكيددې دې دَپاره چې مرفوع متصل باندې عطف صحيح شى ځكه چې ضمير مرفوع متصل باندې عطف دَپاره فصل ياتاكيدضرورى وى.

**قوله**: إِنۡ لَمۡ يَكُنۡ لَكُمۡ حُجَّةٌ، په دې كښې اشاره ده چې فللهِ الحجة البالغة شرط محذوف جزاء ده كوم چې مفسرعلام ظاهركړې دې. لهذا دعطف الخبرعلى الإنشاءاعتراض هم ختم شو.

**قوله**: أُحۡضُرُوا **سوال**: دَهَلُمَّ تفسير احضروا په صيغه دَ جمع كولوځه مصلحت دې؟

**جواب**: هَلُمَّ د اسماء افعال نه دې اودلته دَ حجازدَ لغت مطابق استعمال شوې دې ځكه

چې دَحجازيينو په نيز دا غير منصرف دې په خلاف دَ بنوتميم، لهذا دا اعتراض ختم شو
چې دلته مناسب هلته وا په صيغه دَجمع وو ځکه چې دَدې مخاطب ډير خلق دی.

[اياتونه: ۱۵۱ - ۱۵۴]

{قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ} أَقْرَأْ {مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَ} نْ مُفَسِّرَة {لَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَ} أَحْسِنُوا {بِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ} بِالْوَأْدِ {مِنْ} أَجْلِ {إِمْلَاقٍ} فَقْرٍ تَخَافُونَهُ {نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ} الْكَبَائِرَ كَالزِّنَا {مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ} أَيْ عَلَانِيَتَهَا وَسِرَّهَا {وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ} كَالْقَوَدِ وَحَدِّ الرِّدَّةِ وَرَجْمِ الْمُحْصَنِ {ذَٰلِكُمْ} الْمَذْكُورُ {وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ} تتدبرون {وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي} أَيْ الْخَصْلَةِ الَّتِي {هِيَ أَحْسَنُ} وَهِيَ مَا فِيهِ صَلَاحُهُ {حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ} بِأَنْ يَحْتَلِمَ {وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ وَتَرْكِ الْبَخْسِ {لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا} طَاقَتَهَا فِي ذَٰلِكَ فَإِنْ أَخْطَأَ فِي الْكَيْلِ وَالْوَزْنِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ صِحَّةَ نِيَّتِهِ فَلَا مُؤَاخَذَةَ عَلَيْهِ كَمَا وَرَدَ فِي حَدِيثٍ {وَإِذَا قُلْتُمْ} فِي حُكْمٍ أَوْ غَيْرِهِ {فَاعْدِلُوا} بِالصِّدْقِ {وَلَوْ كَانَ} الْمَقُولُ لَهُ أَوْ عَلَيْهِ {ذَا قُرْبَىٰ} قَرَابَةٍ {وَبِعَهْدِ اللَّهِ أَوْفُوا ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ} بالتشديد والسكون تتعظون {وَأَنَّ} بِالْفَتْحِ عَلَىٰ تَقْدِيرِ اللَّامِ وَالْكَسْرِ اسْتِئْنَافًا {هَٰذَا} الَّذِي وَصَّيْتُكُمْ بِهِ {صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا} حَالٌ {فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ} الطُّرُقَ الْمُخَالِفَةَ لَهُ {فَتَفَرَّقَ} فِيهِ حَذْفُ إِحْدَى التَّاءَيْنِ تَمِيلَ {بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ} دينه {ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ} {ثُمَّ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ} التَّوْرَاةَ وَثُمَّ لِتَرْتِيبِ الْأَخْبَارِ {تَمَامًا} لِلنِّعْمَةِ {عَلَى الَّذِي أَحْسَنَ} بِالْقِيَامِ بِهِ {وَتَفْصِيلًا} بَيَانًا {لِكُلِّ شَيْءٍ} يُحْتَاجُ إِلَيْهِ فِي الدِّينِ {وَهُدًى وَرَحْمَةً لَعَلَّهُمْ} أَيْ بَنِي إِسْرَائِيلَ {بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ} بِالْبَعْثِ {يُؤْمِنُونَ}

**ترجمه**: (اې محمد ﷺ) هغوی ته اووایه راشئ چې زه تاسو ته واوروم چې ستاسو رب په تاسو باندې کومې پابندئ لګولې دی. ① داچې هغه سره څوک شريک مه ګرځوئ (أَنْ) مفسره دې. ② والدينو سره ښه سلوک کوئ ③ او خپل اولاد دَ فقر (اولکې) دَ ويرې نه ژوندی ښخولو سره مه قتلوئ مونږ تاسو ته رزق درکوو او هغوی ته هم (ورکوو) ④ بې شرمئ (يعنی) دَ لويو ګناهونو مثلاً زنا خواته مه ورنيږدې کيږئ که په ښکاره وی او که په پټه يعنی که علی الاعلان وی او که په پټه ⑤ او يو نفس کوم چې الله تعالی محترم ګرځولې وی مه قتلوئ مګر په حق سره مثلاً دَ قصاص او مرتد دَ سزا په توګه او واده کړی دَ رجم په توګه دا مذکوره (هغه خبرې دی) دکوم چې تاسو ته تاکيد کړې شوې دې دَپاره چې تاسو دَعقل نه کار واخلئ او دَ غور او فکر نه کار واخلئ ⑥ او دَيتيم مال ته هم مه ورنيږدې کيږئ مګر په داسې طريقه چې مستحسن يعنی ښه ده او دغه طريقه هغه ده په کوم کښې چې دَ (يتيم دَمال) اصلاح وی تردې چې هغه لوئی شی په داسې توګه چې بالغ شی ⑦ او په ناپ تول کښې پوره تول سره دَ انصاف نه کار

اخلئ ونډئی وهل پریږدئی مونږ په دې معامله کښې په چا باندې دَهغه دَ طاقت نه زيات بوج نه اچوو او که چرې په ناپ تول کښې غلطی اوشی نو الله تعالی صحيح نيت بنه پيژنی لهذا په هغې باندې نيول نشته لکه چې په حديث کښې راغلی دی. ⑧ اوکله چې تاسو په څه فيصله وغيره کښې خبره کوئی نوانصاف کوئی سره دَدې چې هغه کس په موافقت اويا مخالفت کښې داخبره ده که خپلوان ولې نه وی ⑨ اوالله تعالی سره چې کوم عهد اوکړئی هغه پوره کوئی. دَدې خبرو الله تعالی تاسو ته تاکيدی حکم درکړې دې دې دَپاره چې تاسو نصيحت قبول کړئی. (تذکرون) دَ ذال په تشديد اوسکون سره (دې دَپاره چې تاسو ياد اوساتئی) اودا خبرې دکومې چې ماتاسو ته تاکيدی حکم درکړې دې زما نيغه لار ده مستقيمًا حال دې (اَنَّ) په فتحې سره دې دَ لام د تقدير په صورت کښې او په کسرې دې، د استيناف په صورت کښې، لهذا هم په دغه لار ځئی اودَ دې په خلاف لارو مه ځئی چې هغه تاسو دَالله تعالی دَ لارې نه گمراه کړی (فتفرق) کښې دَ يوتاء حذف سره دې (يعنی دَ حق لارې نه مه) واړوی داده هغه لاره مستقيم دَ کومې چې الله تعالی تاسو ته تاکيد کړې دې دې دَپاره چې تاسو دکگې لارې نه بچ شئ او بيا مونږ موسی عليه السلام ته کتاب تورات ورکړې وو ثم دَترتيب اَخباردَپاره ده په هغه سړی باندې دَنعمت دَتکميل دَپاره وی چاچې په دې باندې په بهتر طريقه باندې عمل اوکړو اودَ احکامو تفصيل وی دکوم چې په دين کښې ضرورت وی اوهدايت اورحمت وی دې دَپاره چې بنی اسرائيل دَ بعث په ذريعه دَخپل رب په ملاقات باندې ايمان راوړی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: مُفَسِّرة، اِلاَّ کښې اَنْ فعل تلاوت دَپاره مفسره دې دَ پښتو د لفظ (يعنی) مترادف دې نه چې ناصبه، ځکه چې ناصبه کيدو په صورت کښې عطف طلب علی الخبر لازم راتلودَ وجې نه عطف صحيح نه وی مذکوره اَنْ کښې ډيروجوهات دی په دې کښې دوه وجهې مختاردی. ① اَن مفسره وی ځکه چې ماقبل کښې اَتلُ دَ قول په معنی کښې دې ځکه چې اَن مفسره دَپاره قول يا دَ قول هم معنی کيدل ضروری دې. لا، ناهيه ده اوتشرکوا فعل مضارع مجزوم دې. ② اَن مصدريه وی په دې صورت کښې به اَن او څه چې دَدې مدخول دی د ماحَرَّمَ نه به بدل وی.

**قوله**: اِملاق، د دې معنی مفلسی، غريبی اولگه تنگدستی ده.

**قوله**: بالخصلةِ په دې سره د اَلتی د تانيث د وجې ته اشاره ده.

**قوله**: ثم لِتَرْتِيبِ الاَخْبَارِ دا دَ يوسوال جواب دې.

**سوال**: ثم آتينا د دې عطف په وَصّٰکم باندې دې کوم چې د اِعطاء کتاب لموسیٰ په مؤخر

کیدو باندې دلالت کوی حالانکه ایتاء کتاب په وصیت باندې مقدم دی.

**جواب**: دلته ثُمَّ ترتیب اخباری دپاره ده نه چې د ترتیب وجودی دپاره.

**قوله**: لِلنِّعْمَةِ په دې کښې اشاره ده چې تمامًا مفعول کیدو د وجې نه منصوب دی. تمامًا نه پې لام ځکه حذف کړو چې تمامًا په معنی اِتمامًا دی.

**قوله**: بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ دا د یؤمنون متعلق دی د فواصل رعایت دپاره مقدم کړې شوی دی.

**[ایاتونه:۱۵۵-۱۶۵]**

{وَهٰذَا} القُرْآن {كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ فَاتَّبِعُوهُ} يَا أَهْل مَكَّة بِالْعَمَلِ بِمَا فِيهِ {وَاتَّقُوا} الْكُفْر {لعلكم ترحمون} أَنْزَلْنَاهُ لِـ {أَنْ} لَا {تَقُولُوا إِنَّمَا أُنْزِلَ الْكِتَابُ عَلَى طَائِفَتَيْنِ} الْيَهُود وَالنَّصَارَى {مِنْ قَبْلِنَا وَإِنْ} مُخَفَّفَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ إِنَّا {كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ} قِرَاءَتهمْ {لَغَافِلِينَ} لِعَدَمِ مَعْرِفَتنَا لَهَا إِذْ لَيْسَتْ بِلُغَتِنَا {أَوْ تَقُولُوا لَوْ أَنَّا أُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتَابُ لَكُنَّا أَهْدَى مِنْهُمْ} لِجَوْدَةِ أَذْهَاننَا {فَقَدْ جَاءَكُمْ بَيِّنَةٌ} بَيَان {مِنْ رَبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ} لِمَنْ اتَّبَعَهُ {فَمَنْ} أَيْ لَا أَحَد {أَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَّبَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَصَدَفَ} أَعْرَضَ {عَنْهَا سَنَجْزِي الَّذِينَ يَصْدِفُونَ عَنْ آيَاتِنَا سُوءَ الْعَذَابِ} أَيْ أَشَده {بِمَا كَانُوا يَصْدِفُونَ} {هَلْ يَنْظُرُونَ} مَا يَنْتَظِر الْمُكَذِّبُونَ {إِلَّا أَنْ تَأْتِيَهُمُ} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {الْمَلَائِكَةُ} لِقَبْضِ أَرْوَاحهمْ {أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ} أَيْ أَمْره بِمَعْنَى عَذَابه {أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ} أَيْ عَلَامَاته الدَّالَّة عَلَى السَّاعَة {يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ} وَهِيَ طُلُوع الشَّمْس مِنْ مَغْرِبهَا كَمَا فِي حَدِيث الصَّحِيحَيْنِ {لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ} الْجُمْلَة صِفَة النَّفْس {أَوْ} نَفْسًا لَمْ تَكُنْ {كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا} طَاعَة اي لَا يَنْفَعهَا تَوْبَتهَا كَمَا فِي الْحَدِيث {قُلِ انْتَظِرُوا} أَحَد هَذِهِ الْأَشْيَاء {إِنَّا مُنْتَظِرُونَ} ذَلِكَ {إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ} بِاخْتِلَافِهِمْ فِيهِ فَأَخَذُوا بَعْضه وَتَرَكُوا بَعْضه {وَكَانُوا شِيَعًا} فِرَقًا فِي ذَلِكَ وَفِي قِرَاءَة فَارَقُوا أَيْ تَرَكُوا دِينهمْ الَّذِي أُمِرُوا بِهِ وَهُمْ الْيَهُود وَالنَّصَارَى {لَسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ} أَيْ فَلَا تَتَعَرَّض لَهُمْ {إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ} يَتَوَلَّاهُ {ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ} فِي الْآخِرَة {بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ} فَيُجَازِيهِمْ بِهِ وَهَذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ السَّيْف {مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ} أَيْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ {فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا} أَيْ جَزَاء عَشْر حَسَنَات {وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى إِلَّا مِثْلَهَا} أَيْ جَزَاءَهُ {وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ} يُنْقَصُونَ مِنْ جَزَائِهِمْ شَيْئًا {قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ} ويبدل من محله {دينا قيما} مستقيما {ملة إبراهيم حنيفا وما كان من المشركين} {قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي} عِبَادَتِي مِنْ حَجّ وَغَيْره {ومحياي} حياتي {ومماتي} موتي {لله رب العالمين} {لَا شَرِيكَ لَهُ} فِي ذَلِكَ {وَبِذَلِكَ} أَيْ التَّوْحِيد {أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ} مِنْ هَذِهِ الْأُمَّة {قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِي رَبًّا} إِلَهًا أَيْ لَا أَطْلُب غَيْره {وَهُوَ رَبُّ} مَالِك {كُلِّ شَيْءٍ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ} ذَنْبًا {إِلَّا عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ} تَحْمِل نَفْس {وَازِرَةٌ} آثِمَة {وزر} نفس {أُخْرَى ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ مَرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فيه تختلفون} {وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ} جَمْع

خَلِيفَة أَيْ يَخْلُف بَعْضكُمْ بَعْضًا فِيهَا {وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ} بِالْمَالِ وَالْجَاه وَغَيْر ذَلِكَ {لِيَبْلُوَكُمْ} لِيَخْتَبِرَكُم {فِيمَا آتَاكُمْ} أَعْطَاكُمْ لِيَظْهَر الْمُطِيع مِنْكُمْ وَالْعَاصِي {إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ} لِمَنْ عَصَاهُ {وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ} لِلْمُؤْمِنِينَ {رَحِيمٌ} بِهِمْ

**ترجمه**: اوداقرآن پاك ډېر لوئي خيراوبركت والا كتاب دې كوم چې مونږ نازل كړې دې. اې د مكې والو! څه چې په دې كښې دى په هغې باندې عمل كولوسره ددې اتباع اوكړئ دې د پاره چې په تاسو رحم اوكړې شى دامونږ نازل كړو دې د پاره چې تاسو داسې اونه وئيلې شئ چې كتاب خوزمونږ نه وړاندې دوو ډلو يهود اونصارىٰ باندې نازل كړې شوى وو او مونږ د هغې د لوستلو اوبل ته د خودلونه ناخبره وو زمونږ په ژبه كښې د دغه كتابونود نه كيدود وجې مونږته د هغې معرفت حاصل نه وو. (إنْ) مخففه دې د دې اسم محذوف دې أى إنّا يا داسې اونه وايئى چې كه چرې په مونږ باندې چرته يوكتاب نازل كړې شوې وې نو مونږ به د خپل ذهنونو د تيزوالى د وجې نه ډېر په نيغه لاروې. نو اوس تاسوله ستاسو د رب د طرف نه د هغه كس د پاره څوك چې د دې اتباع اوكړى يو (واضحه) بيان اورحمت او هدايت راغلو اوس به د هغه كس نه زيات ظالم څوك وى چاچې د الله تعالى آياتونه دروغ اوګڼړل؟ او د هغې نه ئې اعراض اوكړو ، هيڅوك نشته ، مونږ به ډېر زر هغه خلقوته چې زمونږ د آياتونونه اعراض كوى ډېر خراب يعنى ډېر سخت عذاب وركړو د هغوى د اعراض كولو د وجې نه دغه دروغ ګڼړونكوته صرف د دې خبرې انتظار دې چې هغوى له د هغوى روحونه قبض كولو د پاره فرښتې راشى. (تأتيهم)په ياء او تاء سره ياهغوى له ستا رب راشى يعنى د هغه حكم په شكل د عذاب راشى ياستا د رب څه لويه نخښه راشى، په كومه ورځ چې ستا د رب د طرف نه څه نخښه راشى اوهغه د مغرب د طرف نه د نمر راختل دى لكه چې د صحيحين په حديث كښې دى د يوكس د پاره به د بل داسې كس ايمان په كار رانه شى چې (اول) ئې په (دنيا كښې) ايمان راوړې نه وى (جمله لم تكن) د نفسًا صفت دې ياهغه په خپل ايمان كښې څه نيک عمل نه وى كړې يعنى د هغه توبه به د هغه په كار نه راځى لكه چې په حديث كښې راغلى دى هغوى ته اووايه ددې څيزونونه د يو انتظاركوئ مونږ هم د هغې په انتظاريو بيشكه كوموخلقو چې خپل دين په دې كښې اختلاف كولوسره جدا جدا كړو په داسې طريقه چې بعض ئې واخستلو اوبعض ئې ترك كړلو او په دې كښې ډلې ډلې شو. او په يوقراءت كښې فارقوا دې يعنى خپل هغه دين ئې ترك كړودكوم چې هغوى ته حكم وركړې شوې وو اوهغه يهود اونصارىٰ دى ستاسو هغوى سره هيڅ تعلق نشته لهذا تاسو هغوى ته تعرض مه كوئى (بس) د هغوى معامله الله تعالى ته حواله ده اوهغه به ئې ګورى بيابه هغوى ته په آخرت كښې د هغوى ټول كړه وړه اوښائى چې هغوى ته به د هغوى د عملونو سزا وركړى اوداحكم آيت سيف (يعنى) په حكم دجهادسره

منسوخ دي. کوم کس چې نیك کار اوکړو یعنی دَ لاإله إلاالله اقراریې اوکړو نوهغه ته به لس چنده یعنی دَ لسو نیکو برابر اجرملاویږی اوکوم کس چې بدکار اوکړی هغه ته به دَ هغې برابر سزا ملاویږی او په دوئ به ظلم نه شی کولې یعنی ددوئ په اجرکښې به هیڅ هم نه شی کمولې. ته ورته اووایه چې ماته زما رب یوه نیغه لار خودلې ده بالکل ټیک دین او حنیفًا دَ (صراط) دمحل نه بدل دې کومه چې دَحضرت ابراهیم علیه السلام لارده چې دَ الله تعالی طرف ته په یومخیز وو اوهغه دَ شرک کونکونه نه وو. اووایه زما مونځ اوزما ټول مراسم دعبادت حج وغیره اوزما ژوند اومرګ ټول دَالله تعالی رب العالمین دَپاره دی په دې کښې دهغه هیڅوک شریک نشته اوهم ددې توحید ماته حکم راکړې شوې دې اوزه په دې امت کښې دَټولو نه رومبې منونکې یم. ته ورته اووایه چې آیا دَالله تعالی نه سوابل څوک معبود جوړولودَپاره لټون اوکړم یعنی دهغه غیریه نه لټوم حالانکه هغه دَهرشی مالک دې هرکس چې څه هم بدی کوی دَهغې ذمه وار هغه پخپله دې اوهیڅ یو ګناهګار دَ بل نفس بوج نه شی اوچتولې بیا تاسو ټولوله دَخپل رب طرف ته واپس ګرځیدل دی بیا به هغه تاسو ته دَهغه څیز حقیقت دراوښائی په کوم کښې چې تاسو اختلاف کولو اوهغه هم هغه دې چې تاسوئی په زمکه کښې دَ یوبل خلیفه جوړکړئی. خلائف دَ خلیفه جمع ده اویوته یې په بل باندې دَ مال او شان وغیره په درجاتو کښې فوقیت ورکړو دې دَپاره چې تاسو په درکړې شوی څیزونوکښې ازمیښت کړی چې فرمان بردار دَ نافرمان نه جدا کړی. یقینًا ستارب خپله نافرمانی کونکوته ډیر زر سزا ورکونکې دې اویقینًا هغه دَ مؤمنانو مغفرت کونکې او په هغوی رحم کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لِاَنْ لاَ تَقُوْلُوْا، لام اولا دمقدر منلومقصد دَیوسوال مقدر جواب دې او سوال دادې چې اَنْ تَقُوْلُوْا، دَ انزلناه مفعول له واقع کیدل معنًا صحیح نه دی بلکه عدم قولْ مفعول له دې؟ هم دَدې سوال دَ جواب دَپاره مفسرعلام لام جاره محذوف منلوسره دَانزلناه علت بیانولوطرف ته اشاره اوکړه اودَدې خبرې طرف ته ئی هم اشاره اوکړه چې ان مصدریه دې هم دغه وجه ده چې دَ تقولوا نه نون حذف شو. کسائی او فراء رحمهما الله وئیلی دی چې دَ أن تقولوا اصل لأن لاتقولوا دې. حرف جار اوحرف نفی یې حذف کړولکه دَ الله تعالی قول يُبَيِّنُ الله لكم أن تضلوا دَدې اصل لئلاتضلوا وو دغه شان دَالله تعالی د قول رَوَاسِيَ اَنْ تَمِيْدَ بكم اصل لئلاتميدبكم وو. شارح رحمه الله هم دا توجیه اختیارکړې ده اوبصریینانو دَ حذف مضاف توجیه اختیارکړې ده تقدیری عبارت دادې أنزلناه كراهيةَ أنْ تقولوا بصریین وائی چې دَلاحذف جائزنه دې ځکه چې جئتُ أنْ اكرمَكَ وئیل صحیح نه دی په معنی أن لااكرمك.

**قوله**: أوتقولوا دَدي عطف په سابق ان تقولوا باندي دي لهذا دلته به هم لام او لا مقدر وی.

**قوله**: اَلْجُمْلَةُ صِفَةُ نفسًا په دي كښې اشاره ده چې جمله لم تكن آمنت من قبل، دَنفسًا صفت دي نه چې دَايمان لكه چې د قرب نه په ظاهره شبه كيږی ځكه چې دَ ايمان دَپاره به ايمان لازم راشی كوم چې محال دي. (تراويح الارواح)

**قوله**: أونَفْسًا لَمْ تَكُنْ، په دي كښې اشاره ده چې دَ أوكَسَبَتْ عطف په آمَنَتْ باندي دي نه چې اِيْمَانُهَا باندي دی.

**قوله**: أي لاتَنْفَعُهَا تَوْبَتُهَا دَدي اضافي مقصد دَ يوسوال مقدرجواب دي.

**سوال**: دا آيت دَ معتزلوْ دَ مذهب په حقانيت باندي دلالت كوی ځكه چې دَهغوی په نيز ايمان مجردعن الأعمال الصالحه به نافع نه وی.

**جواب**: دَجواب حاصل دادي چې آيت لف تقديری دَقبيل نه دي أی لا ينفع نفسًا إيمانها ولا كَسْبُهَا في الإيمان لم تكن آمنت من قبل أوكسبت فيه خيرًا.

**قوله**: جَزاءُ عَشْرِ حَسَنَاتٍ په دي عبارت كښې مفسرعلام فَلَهُ عَشْرُ أمثالها كښې په عشركښې دَترك تاء دَ وجې طرف ته اشاره كړي ده ځكه چې په ظاهره عشرة أمثالها كيدل پكار دی ځكه چې مثل مذكر دي. دَجواب حاصل دادي چې أمثال معنًا مؤنث دي.

**قوله**: وَيُبْدَلُ مِنْ مَحَلِّهِ دَهداني مفعول اول دَهداني ياء ده اومفعول ثاني إلى صراط مستقيم دي او دينًا قيمًا دَصراط دمحل نه د بدل كيدودَ وجې نه منصوب دي نه چې مفعول ثانی لكه چې بعض حضراتو ته دا مغالطه لاحق شوي ده.

**قوله**: أعطاكم په دي كښې اشاره ده چې آتاكم د ايتاء نه دي نه چې دَ إتيان نه.

[اول جلد ختم شو]